# تسهیلات

## پښتو شرح

# مشکواة

تالیف:- مولانا شاه فیصل فاضل دارالعلوم اسلامیه چارسده

اتم جلد (۸)

د شلو (۲۰) خصوصیاتو سره چې لس (۱۰) په کښې دا دی

① پیښوری پښتو سره بین القوسین د قندهاری پښتو د ګرانو ټکو اضافه
② د مشکاة د عربی او اردو متداولو ټولو شروحاتو مجموعه
③ په ترجمه کښې بین القوسین د مرقاة المفاتیح داضافی قیوداتو ترجمه
④ دحدیث هرې جملې ته اود هغې ترجمې د آسانتیا دپاره نمبرې ورکول
④ په فهقی اختلافی مسئلو کښې مدلل او آسان مباحث
⑤ د اوږدو احادیثو د متن او ترجمې تقسیم
⑥ دهرحدیث د صحاح سته وغیره څخه تخریج
⑦ د حل اللغات په عنوان سره د مرقاة المفاتیح څخه د مشکلو لغات حل
⑧ دقوله په عنوان سره دحدیث د هرې مشکلې جملې تشریح
⑨ دهرباب په اول کښې دهغې د احادیثو خلاصه
⑩ د کتاب په اول کښې د علوم الحدیث مفیده مقدمه

خپرنکې
فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور
موبائل ۰۳۱۵-۹۵۹۵۷۱۷

**دکتاب نوم** تسهیلات شرح مشکواۃ

**شارح** مولانا پروفیسر شاہ فیصل

فاضل وفاق المدارس، امدادالعلوم، جامعہ اسلامیہ چارسدہ

**معاون مترجم**:: عبدالکریم صدیقی

**د ملاوید پتې**

- جدید اسلامی کتب خانه خوست
- المصباح کتب خانه کابل
- روغانیوال کتب خانه جلال آباد
- رحیمی کتب خانه خوست
- حرم کتب خانه کابل
- دینی کتب خانه تیمرگره
- تاج کتب خانه صوابی
- مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
- مکتبه دارالاخلاص کابل
- مکتبه رحمانیه قندهار
- مکتبه رحمانیه کوئټه
- الوری کتب خانه قندهار
- نعمت کتب خانه کابل
- مکتبه علمیه اکوړه خټک
- حقانیه کتب خانه گردیز
- وطن دوست کتب خانه گردیز
- اقرأ کتب خانه جلال آباد
- مکتبه معروفیه کوئټه
- مکتبه عمریه چمن
- مکتبه عباسیه تیمرگره
- مکتبه امیر حمزه قندهار

# اجمالی فہرست

....

# د احادیثو د عنواناتو فهرست

......

# فهرست اختلاف مذاهب

# [ ۱ ] بَابُ مَا لَا يُضْمَنُ مِنَ الْجِنَايَاتِ ]

## په کومو جنايتونوکښې چه تاوان نه وي

**خلاصة الباب:**

**فيه أحد وعشرون حديثاً مشتملة على ثلاث مسائل:**

① عدم القصاص في بعض الجنايات: ۱، ۲، ۳، ۴، ۵، ۶، ۷، ۲۰.

② النهي عن الأمور التى الضارة دون النافعة: ۷، ۸، ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۱۸، ۱۹، ۲۱.

③ الزجر على التعدي والظلم فى التعذيب: ۱۳، ۱۴، ۱۵، ۱۶.

**د وړاندنی باب سره ربط:** دَ جناية جمع ده کوم چه دَ جرم ارتکاب اونقصان ته وائی لايضمن دَ مجهول صيغه ده دَ ضمان اوتاوان په معنی کښې دي. دَدې باب نه وړاندې دَ دغه نقصاناتو او جرائم بيان وو په کوم کښې چه تاوان راتلو اوس دَهغه جرائم ذکر دې دَ کوم په مرتکب کيدوسره چه تاوان نه راځی اونه څه معاوضه راځی.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۲۵۱۰] په ديت کښې دړې معاف شوی څيزونه

۲۵۱۰—[۱] (۱)① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:② ( «وَالْعَجْمَاءُ جَرْحُهَا جُبَارٌ③ وَالْمَعْدِنُ جُبَارٌ④ وَالْبِئْرُ جُبَارٌ» ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د چوپايه وو زخمي کول معاف دي. ③ په کان (درنګ) کې دَب کيدل هم معاف دی. ④ او په کوهي کې لويدل هم معاف دی. (بخاري. مسلم)

**حل اللغات:** ① وَالْعَجْمَاءُ: چارپايان. څاروی. بې زبانه. ② جُبَارٌ: معاف دی. ③ وَالْمَعْدِنُ: کان. په زمکه کښې دننه د يو څيز خزانه او ګنړ مقدار

**تسهيلات:**

**د حديث د بعضې الفاظو وضاحت:** ① وَالْعَجْمَاءُ: څناور او ځاروو ته عجماء ځکه اووئيلي شو چه دوی خبرې نه شی کولې عجم اوعجمی هم دې نه دي ځکه چه دَعربو په مقابله

۱ ) اخرجه البخاري فى كتاب الدّيات/باب: العجماء جبار(رقم-۶۹۱۳) ومسلم فى كتاب الحدود/باب جرح العجماء، والمعدن، والبئر جبار (رقم)۴۵ - (۱۷۱۰) و ابو داود فى كتاب الدّيات/باب العجماء، والمعدن، والبئر جبار(رقم-۴۵۹۳) والترمذى فى كتاب الأحكام عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فى: العجماء جرحها جبار (رقم-۱۳۷۷) والنسائى فى كتاب الزّكاة/باب المعدن(رقم-۲۴۹۶)وابن ماجه فى كتاب الدّيات/باب الجبار(رقم-۲۶۷۳) ومالک فى الموطا كتاب العقول/باب جامع العقل (رقم-۱۲)

کنی عجم لکه ګویا چه ګونګیان دی عجماء مؤنث دې عجم مذکر دې

۞ جَرْحُهَا: جرح زخم اونقصان کولوته وائی دالفظ دَ جیم فتحه سره مصدر دې یعنی زخم لګول اوزخمی کول دَ جیم ضمه سره اسم دې کوم چه دَ زخم په معنی کښې دې

۞ جُبَارٌ: دَهدر اوباطل معنی کښې دې یعنی چه دغه ځناور دَ چاځه مالی یا جانی نقصان کړې دې نودَ دغه ځناور په مالك باندې هیڅ تاوان نشته دې

**د مالك په غیرموجودګی د څاروی چاته د نقصان رسولو په حکم کښې ۲ مذاهب:**

①اوس دَدې مسئلې تفصیل داسې دې چه دَ ائمه احنافو په نیز مسئله داسې ده که چرې ځناور مثلاً اس یا څاروی سره سرې نشته دې اوځناوراوتختیدو اودَ چادَفصل څه نقصان ئې اوکړو یاڅوك سړې ئې اووهلو نوکه دا حادثه دَ ورځې پیښه شی اوکه دَ شپې په دې صورت کښې په مالك باندې هیڅ تاوان نشته دې اوکه چرې ځناور سره سړې موجود وی اوځناور نقصان اوکړو نوکه سړې په دې باندې سور وی اوکه مخکښې روستو وی اوځناور څه نقصان اوکړو که په سرئې اوکړو اوکه په خپو باندې اوکړو په دې صورت کښې به په مالك باندې تاوان راځی لکه چه خبره دَ سړی په موجود کیدو اونه موجود کیدو باندې ده.

②امام شافعی رحمه الله فرمائی چه دَ ځناورنقصان کولوسره تاوان راتلل یا نه راتلل دارومدار په سړی باندې نه دې بلکه په ورځ او شپه باندې دارومداردې. که ځناور دَ شپې نقصان اوکړو نوپه مالك به جرم راځی ځکه چه دَ شپې ځناور تړل او قابوکول دَ مالك ذمه واری ده هغه کوتاهی اوکړه لهذا تاوان به ورکوی اوکه چرې ځناورنقصان دَ ورځې اوکړو نو په مالك باندې به هیڅ تاوان نه وی ځکه چه دَ ورځې دَ خپل ځان اودَ خپل فصل حفاظت دَ هرسړی په خپله ذمه دی دَ ځناور په مالك باندې دَحفاظت ذمه واری نشته دې

**داول فريق دليل:** دَوی د ورځې اوشپې دافرق دَ ابوداؤد شریف دَ حضرت براء بن عازب رضی الله عنه دَ یوروایت نه اخستې دې په کوم کښې چه دا فرق بیان کړې شوې دې

**د اول فريق د دليل جواب:** دا حدیث مرفوع نه دې بلکه موقوف دې

**د دويم فريق دليل:** مذکوره حدیث د دوی مستدل دې چه په خپل مقصدکښې ښه واضح دې

**د شاه انور شاه رائې:** حضرت شاه انورشاه صاحب رحمه الله فرمائیلی دی چه په دې مسئله کښې عرف ته کتل پکاردی چه دَعلاقې اوملك رواج اودستور څه دې دَ ځناوردې مسئلې سره دَ ټول تړیفك نظام مستنبط کولې شی چه دَ ګاډی سائق او قائدته به کتلې شی اوپه هغه باندې به حکم لګولې شی

**قوله:** «وَالْمَعْدِنُ جُبَارٌ»:

**د مذکوره جملې دوه مطلبونه:** ① يو سړی معدنيات او خزانه راويستله او په زمکه کښې کنده پاتې شوه په هغې کښې څوك راغلو پريوتلو نو په چا باندې تاوان نشته دې

② چا په کان کنستلو کښې په مزدورئی باندې کارکونکی چه د کان ملبه د پورته نه په هغه باندې راپريوتله او هغه لاندې ورخښ شو نو د دې تاوان په چا باندې نه دې.

**قوله:** وَالْبِئْرُ جُبَارٌ:

**د مذکوره جملې دوه مطلبونه:** ① که يو سړی د کوهی کنستلو د پاره مزدوران اوساتل او په مزدورانو باندې د کوهی ملبه ورپريوتله نو د دې تاوان په چا نشته دې.

② يو سړی په خپله زمکه کښې کوهې او کنستلو په هغې کښې څوك سړې راغلو پريوتلو نو د دې تاوان په چا باندې نشته دې او که چرته کوهې د خلقو د تيريدو په لار کښې او کنستلو يا د بل سړی په زمکه کښې او کنستلو او په هغې کښې څوك راغلو پريوتلو نو بيا به تاوان راځی.

**[۳۵۱۱] په خپل مدافعت کښې عدم تاوان**

٣٥١١—[٢] (١) ① «وَعَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: ② غَزَوْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَيْشَ الْعُسْرَةِ ③ وَكَانَ لِي أَجِيرٌ فَقَاتَلَ إِنْسَانًا ④ فَعَضَّ أَحَدُهُمَا يَدَ الْآخَرِ ⑤ فَانْتَزَعَ الْمَعْضُوضُ يَدَهُ مِنْ فِي الْعَاضِّ ⑥ فَأَنْدَرَ ثَنِيَّتَهُ فَسَقَطَتْ ⑦ فَانْطَلَقَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَهْدَرَ ثَنِيَّتَهُ ⑧ وَقَالَ: (أَيَدَعُ يَدَهُ فِي فِيكَ تَقْضِمُهَا كَالْفَحْلِ») مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او يعلى ابن اميه وايي ② چې زه (د غزوه تبوك) د صبر آزما لښکر سره د رسول الله ﷺ سره (په جهاد کې) شريك وم، ③ زما سره زما يو نوکر هم وو، هغه (په يوه خبره) د يو سړي سره جنګ وکړي. ④ او هغه په دواړو کې يو د بل سره لاس او چيچلو. ⑤ خو هغه خپل لاس د چيچونکي د خولي نه داسې راوښکلو ⑥ چې د هغه غابښونه ووتل. د چا چې غابښونه وتلي وو. ⑦ هغه (د داد رسي د پاره) د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شو (چې حضور ﷺ دهغه په حق کې فيصله وکړه) ليکن حضور ﷺ دهغه د غابښونو هيڅ تاوان واجب نه کړي. ⑧ او هغه ته يې وفرمايل چې آيا هغه سړي خپل لاس ستا په غابښونو کې پريښى وى، چې تا پرې داسې شخوند وهلو. څنګه چې پرې اوښ شخوند وهي. (بخاري، مسلم)

---

١) اخرجه البخارى فى كتاب الإجارة/باب الأجير فى الغزو (رقم-٢٢٦٥) ومسلم فى كتاب القسامة والمحاربين والقصاص والدّيات/باب الصّائل على نفس الإنسان أو عضوه. إذا دفعه المصول عليه. فأتلف نفسه أو عضوه. لا ضمان عليه (رقم-٢٣ - (١٦٧٤) والنسائى فى كتاب القسامة/باب ذكر الاختلاف على عطاء فى هذا الحديث (رقم-٤٧٦٩) وابن ماجه فى كتاب الدّيات/باب من عضّ رجلا فنزع يده فندر ثناياه (رقم-٢٦٥٦) واحمد فى المسند: ٤/٢٢٣

**حل اللغات:** ①جَيْشَ: لښکر، د مجاهدینو ډله، ②الْعُسْرَةِ: تنګدستی، ③أَجِيرٌ:مزدورکار. نوکر ④قَاتَلَ: جنګ اوکړلو ⑤فَعَضَّ: نصر ینصرنه دَماضی صیغه ده چک ئې اولګولو. دَ غاښونو لاندې کولوسره شخوند وهلو ⑥الْمَعْضُوضِ: په چا چه چک لګولې شوې وو. ⑦فِي: خُله، ⑧الْعَاضِّ: اسم فاعل دې، چک لګونکې، ⑨فَأَنْدَرَ: دَ باب انفعال نه، غاښونه پریوتل. راؤوتل. ⑩ثَنِيَّةَ: د هغه مخامخ غاښونه ⑪فَأَهْدَرَ:تاوان ئې مقرر نکړو،⑫تَقْضِمُهَا:چې ته شخوند وهې په هغې⑬الْفَحْلِ: اوښ.

**تسهیلات:**

**قوله: جَيْشَ الْعُسْرَةِ:**

**د جیش العسره مصداق او پس منظر:** دَ تنګئی لښکردې نه مراد غزوه تبوك دې دَ روم بادشاه ته چا وئیلی ووچه مسلمانان دَ اوچ کالئی دَ وجې نه دَ جنګ قابل نه دی په دې وجه بغیردَ څه تاخیرنه په حجازباندې حمله کول پکاردی. هرقل تیارې شروع کړو نبی کریم ﷺ ته چه کله خبر اوشو نو نبی کریم په جنګ کښې رومبې والې کول مناسب اوګڼړل اوپه مدینه کښې عام اعلان کولوسره دَ دیرش زره لښکرسره سخت دَ تنګئی په حالت کښې دَ رجب په میاشت ۹ھ کښې تبوك طرف ته روان شو. حضرت عثمان ؓ اونورو صحابه کرامو په چنده کښې ښه حصه واخستله. هرقل اوېریدلو اومیدان ته رانغلو. نبی کریم ترشلو ورځو پورې په تبوك کښې قیام اوکړو بیا کامیاب اوکامران مدینې طرف ته واپس تشریف راوړو.

**دخپل حفاظت دپاره د اقدام قتل جواز:** ① قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه ښه په سوچ اوپوهه سره چه څوك حمله کونکې حمله کوی اودَهغې نه دَ حفاظت دَپاره سرې څه متعین طریقه استعمالوی نوپه دې کښې هیڅ تاوان نشته دې ځکه چه دفاع کونکې مجبوره دې اوحمله کونکی ته چه کوم نقصان اورسیدو دادَهغه دَحملې اوزیاتی نتیجه ده دکوم چه هغه پخپله ذمه واردې.

② شرح السنه کښې لیکلی دی هم دغه حکم دَهغه ښځې دې کومې چه په خپله دفاع کښې یو بدکاری کونکې سړې قتل کړو په هغې باندې هیڅ تاوان نشته دې. ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه اول دې سړې دَنرمئی نه کارواخلی که دَ جنګ نه بغیرکارنه کیږی نوبیا دې اووژنی.

**[۳۵۱۲] د خپل مال د محافظ دپاره د شهادت اعزاز**

**۳۵۱۲ ـ [۳] (۱) [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [۲] «مَنْ قُتِلَ دُونَ مَالِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.**

**ترجمه:** [۱] او عبد الله ابن عمرو ﷺ وايي چې ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل [۲] کوم سړی چې د خپل مال د پاره ووژل شي هغه شهيد دی. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات** (۱) دُونَ مَالِهِ: د مال په حفاظت کښې

**تسهیلات:**

**قوله: مَنْ قُتِلَ دُونَ مَالِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ:**

**د خپل مال په حفاظت کښې قتل شوي شهيد:** که يو کس د خپل مال او اسباب حفاظت کولو او دې چا قتل کړو نو دې شهيد دې. ځکه چې دې ظلم سره قتل کړې شوې دې همدا حکم د هغه کس باره کښې هم دې ځوك د خپل اهل وعيال حفاظت کوی او قتل کړې شی. واضح دې وی چې دخپل ځان نه دظلم لرې کولو دپاره د رشوت ورکولو گنجائش شته دې په چا باندې دظلم کولو دپاره حرام خو رشوت اخستل بهر حال حرام دی

**[۳۵۱۳] د خپل مال په حفاظت کښې د قتل د جرم معافی**

**۳۵۱۳ ـ [۴] (۲) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ [۲] أَرَأَيْتَ إِنْ جَاءَ رَجُلٌ يُرِيدُ أَخْذَ مَالِي؟ [۳] قَالَ: فَلَا تُعْطِهِ مَالَكَ، [۴] قَالَ: أَرَأَيْتَ إِنْ قَاتَلَنِي: قَالَ: قَاتِلْهُ. [۵] قَالَ: أَرَأَيْتَ إِنْ قَتَلَنِي؟ قَالَ: فَأَنْتَ شَهِيدٌ، [۶] قَالَ: أَرَأَيْتَ إِنْ قَتَلْتُهُ؟. قَالَ: هُوَ فِي النَّارِ. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).**

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې يو سړی (د جناب رسالت مآب په خدمت کې حاضريدو سره) عرض وکړو. چې يا رسول الله ﷺ [۲] ماته وښايه که يو سړی ماته زما مال (په زبردستي) اخستو ته راشي (نو آيا زه خپل مال هغه ته حواله کړم؟) [۳] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې نا. ته هغه ته خپل مال مه ورکوه. [۴] هغه عرض اوکړو چې دا راته وښايه. که هغه زماسره جنگ کوي (نو څه وکړم) حضور ﷺ ورته وفرمايل. ته هم ورسره جنگ وکه. [۵] هغه عرض اوکړو چې دا راته وښايه. که هغه زه ووژلم؟ حضور ﷺ ورته

۱ ) اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة/باب من قاتل دون ماله (رقم ۲٤۸۰) ومسلم فی کتاب الإيمان/باب الدّليل على أنّ من قصد أخذ مال غيره بغير حقّ. كان القاصد مهدر الدّم فی حقّه. وإن قتل كان فی النّار. وأنّ من قتل دون ماله فهو شهيد (رقم-۲۲۶ - (۱٤۱) و ابو داود فی کتاب السّنّة/باب فی قتال اللّصوص (رقم-٤۷۷۱) والترمذی فی کتاب الدّيات عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فيمن قتل دون ماله فهو شهيد (رقم-۱٤۱۹) والنسائی فی کتاب تحريم الدّم/باب من قتل دون ماله (رقم-٤۰۸۷)واحمد فی المسند: ۱۶۳/۲

۲ ) اخرجه مسلم فی کتاب الإيمان/باب الدّليل على أنّ من قصد أخذ مال غيره بغير حقّ. كان القاصد مهدر الدّم فی حقّه. وإن قتل كان فی النّار. وأنّ من قتل دون ماله فهو شهيد (رقم-۲۲۵ - (۱٤۰)

وفرمايل چې ته به د شهادت درجه پيدا کړې،[٦] هغه عرض وکړو. ښه دا راته وښايه. که زه هغه قتل کړم (نو د ده به څه حشر وي؟) حضور ﷺ ورته وفرمايل چې هغه به دوزخ ته ځي (او په تا به د هغه هيڅ وبال نه وي) مسلم

**تسهيلات:**

**قوله:** أَرَأَيْتَ إِنْ جَاءَ رَجُلٌ يُرِيدُ أَخْذَ مَالِي؟:

**د جان او مال په حفاظت کښې د قتل کولو حکم:** يعنى دې سړى نبى کريم ته اووئيل نا سو ماته اوښايئى قاتله يعنى که هغه تا نه په زور مال اخستل غواړى او په دې کښې ت سره جنګيږى نو ته هم هغه سره اوجنګيږه. هوفى النار يعنى دهغه په قتل کولو سره په تا باندې هيڅ نقصان نه راځى بلکه هغه به پخپله دوزخ ته ځي.

**د جان ،مال او عزت د حفاظت حق:** دا دواړه احاديث مسلمانانوته تعليم ورکوى چه مسلمان دَ خپل ځان مال عزت اوناموس دَ حفاظت حق لرى. اودَ هريو حمله کونکى به بهادرئى سره مقابله اودفاع کولې شى. دَ مسلمان دا طريقه نه ده چه يو سړې دهغه مال عزت اوناموس سره لوبې کوى اودَهغه مال په ناجائزه طريقه باندې په زور اخلى اودې دکم همتئى اوبزدلئى مظاهره کولو سره لاس په لاس کيږدى کينى اودَ عزت نفس دَدې حق نه لاس واخلى. بلکه مسلمان ته دا حق حاصل دې چه هغه دې دَ دغه حمله کونکى فسادى ښه په بهادرئى اوهمت سره مقابله اوکړى اودَ ذلت په ژوندباندې دې دَعزت مرګ ته ترجيح ورکړى. که دغه فتنه خورونکى فسادى دې قتل کړونودې به شهيد شى اوکه چرې ده دغه فسادى حمله کونکې قتل کړو نودَ هغه وينه ضائع ده اوهغه به دوزخ ته ځى اسلام دَ عزت نفس دا حق مسلمان ته هغه وخت ورکړې دې کله چه حمله کونکې هم مسلمان وى اوکه حمله کونکې دَ کافرانو لښکروى لکه مقبوضه کشمير بوسنيا فلسطين او افغانستان چيچنيا صورت حال دې نوهلته په طريقه اولى مسلمانانوله وسله اوچتول او په ميدان کښې جهاد کول اودَ خپل ځان مال او عزت اوناموس اوعقيدې ايمان او وطن دَ حفاظت حق حاصل دې (توضيحات شرح مشكاة)

**[٢٥١٤] د دروازې په سورى کښې د کتولکى د سترګې دويستلو حکم**

٣٥٠٣-[٥] (١)[١] وَعَنْهُ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [٢] (( لَوِ اطَّلَعَ فِي بَيْتِكَ أَحَدٌ، وَلَمْ تَأْذَنْ لَهُ، [٣] فَخَذَفْتَهُ بِحَصَاةٍ، [٤] فَفَقَأْتَ عَيْنَهُ، [٥] مَا كَانَ عَلَيْكَ مِنْ جُنَاحٍ )). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

١ ) اخرجه البخاري فى كتاب الدّيات/باب من أخذ حقّه أو اقتصّ دون السّلطان (رقم-٦٨٨٨) ومسلم فى كتاب الآداب/باب تحريم النّظر فى بيت غيره (رقم-٤٤ - (٢١٥٨) والنسائى فى كتاب القسامة /باب من اقتصّ وأخذ حقّه دون السّلطان(رقم-٤٨٦١) واحمد فى المسند: ٢٤٣/٢

**ترجمه:** ۱ او د حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دی چې هغه د رسول الله ﷺ نه دا واوریدل ۲ (که ستا دروازه بنده وي، او د هغه په چوند کي) یو سړی ستا په کور کې تا وکړي، (یعنی د هغه چوانه وګوری) هر کله چې تا هغه ته (کور ته د راتلو) اجازت نه وي ورکړي، ۳ او ته هغه په کاني وولي، ۴ چې په هغه سره د هغه سترګه وچوي. ۵ نو په تا هیڅ ګناه (تاوان) نشته، (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① اِطَّلَعَ: رابنکاره شو، ② فَخَذَفْتَهُ: نو تا هغه اوویشتل ③ فَفَقَأْتَ: نو تا ہې سترګه اوویستله، سترګه دط زخمی دې کره، ④ جُنَاحٍ: تاوان، ګناه

**تسهیلات:**

**قوله فَخَذَفْتَهُ بِحَصَاةٍ:**

**د حذف معنی:** په دوو ګوتو کښې نیولو سره وړوکې کانړې ویشتلو ته حذف وائی په کوم سره چه عموماً سترګه زخمی کیږی. دَ جمرات ویشتلو دَپاره چه کوم کانړی استعمالیږی هغې ته هم حذف وائی.

**قوله: مَاكَانَ عَلَيْكَ مِنْ جُنَاحٍ:**

**د عدم جناح په مفهوم کښې اقوال:** ① یعنی په تاباندې به دَهیڅ قسم ګناه نه وی دَهغه سترګه ضائع لاړه هیڅ تاوان نشته دې. امام شافعی رحمه الله په دې ظاهری حدیث باندې داسې فتویٰ ورکړې ده چه په ویشتونکی باندې به هیڅ تاوان نه راځی.

② امام ابوحنیفه داحدیث په تغلیظ تشدید اوزجر اوتبیخ اومبالغه باندې حمل کوی اوکه چرې چا واقعی دَ چاسترګه زخمی کړه نوضمان اوتاوان به راځی. دَ ظاهری حدیث نه دَ تاوان نفی کیږی.

③ بعضې علماؤ داشرط لګولې دې چه اول دَ دغه سړی بندول اومنع کول ضروری دی که چرې منع نه شونوبیائی اوولئی.

**[۲۵۱۵] د دروازې په سوری کښې د کتلو سزا**

۳۵۵۵—[۶] (۱) ۱ «وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، ۲ أَنَّ رَجُلًا اطَّلَعَ فِي جُحْرٍ فِي بَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ۳ وَمَعَ رَسُولِ اللهِ مِدْرًى يَحُكُّ بِهِ رَأْسَهُ، ۴ فَقَالَ: (لَوْ أَعْلَمُ أَنَّكَ تَنْظُرُنِي لَطَعَنْتُ بِهِ عَيْنَيْكَ ۵ إِنَّمَا جُعِلَ الِاسْتِئْذَانُ مِنْ أَجْلِ الْبَصَرِ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

۱ ) اخرجه البخاری فی کتاب الدّیات/باب من اطّلع فی بیت قوم ففقئوا عینه، فلا دیة له (رقم-۶۹۰۱) ومسلم فی کتاب السّلام/باب الطّبّ والمرض والرّقی (رقم-۴۰ - (۲۱۸۶) والترمذی فی کتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب من اطّلع فی دار قوم بغیر إذنهم (رقم-۲۷۰۹) والنسائی فی کتاب القسامة/باب ذکر حدیث عمرو بن حزم فی العقول. واختلاف النّاقلین له (رقم-۴۸۵۹) واحمد فی المسند: ۳۳۰/۵

**ترجمه:** [۱] او سهل ﷺ ابن سعد وايي [۲] چې يو سړي د رسول اللهﷺ دروازې ته وکتل، [۳] او هغه وخت رسول اللهﷺ په پشت خار (ګمنز) سره خپل سر مبارك ګرولی، [۴] حضورﷺ [هغه سړي په تاكولو وليدلو، نو] وي فرمايل چې كه ماته معلومه وې (يعني زما يقين واى) چې ته (قصداً د د روازې په سوری كښې) ماته ګوري، نو مابه دا (ګمنز) ستا په ستركه كې ټومبلي وه [۵] (آيا ته نه پوهيږې، چې د يو غير په كور كې د راتلو په وخت) د اجازت اخستو حكم د هم دغه ستركې په وجه وركول شوى دى (چې هغه په غير محرم نه ولګيږي) بخاري مسلم.

**حل اللغات:** ① جُحْر: سوره، چاودې، ② مِدْرًى: ګمنز (پشت خار) ③ يَحُكُّ: ګروى. ④ لَطَعَنْتُ: ما به ټومبلې وې،

**تسهيلات: قوله:** مِدْرًى:

**د مدرى په مفهوم كښې اقوال:** دالفظ دَميم كسره اودال سكون او راء تنوين سره دې دې لفظ دَمفهوم په تعين كښې دَعلماؤ مختلف اقوال دى خوټول اقوال دَمعنى په اعتبارسره نيزدې نيزدې دى.

① ملاعلى قارى رحمه الله فرمائى چه بعضې علماؤ دا خودلى دى چه دادَ خلال په شان دَ اوسپنې يوسيخ دې دكوم سرچه تاؤ شوې وى. غټ خلق په دې سره دَ بدن هغه حصه ګره وى چرته چه لاسونه نه رسيږى دامعنى دَحديث سره زياته موافق ده.

② نهايه ابن اثيركښې ليكلى دى چه دادَ لرګى يا وسپنې نه جوړشوې يوځيزدې چه دګمنزې دَ غابنونو په شكل كښې وى مګردَهغې نه اوږد وى. كوموخلقوسره چه ګمنز نه وى هغوى دَ دې په ذَريعه دَ سر اينختې ويښته كولاووى نيغه وى او صحيح كوى.

③ دَ فارسى لغت مشهوركتاب صراح كښې ليكلى دى چه "مدار" تيغ وشاخ بزرگ که زنان بوی فرق سر راست کنند يعنى يوښاخونووالا اوږ سيخ اوكنډه په كوم سره چه ښځې دَ سر په ويښتو كښې مانګ او لارصحيح كوى.

④ مظاهرحق كښې دَدې ترجمه پشت خارګمنزسره كړې شوې ده بهرحال دا يوقسم آله ده په كوم سره چه ويښته جوړولو اودَ بدن دَ هغه حصو ګرولوكار اخستې شى كوم ځائى پورې چه لاس نه رسى.

**د حديث وضاحت:** دَدې حديث نه داهم معلوميږى چه كه چا واقعى په دې حديث باندې عمل اوكړو اودَ كتونكى ستركه ئى ضائع كړه نوتاوان به نه راځى احنافو دا حديث هم په زجر توبيخ. تغليظ اوتشديدباندې حمل كړې دې. دَحديث نه داهم معلوميږى كه كور والوپخپله دروازه كولاؤ پريخې ده اودكتلونه بغيرپخپله نظر دننه پريوځى نوبيا دَ كتونكى غلطى نه ده بلكه دَ كور والو غلطى ده.

**[۲۵۱۶] بې ضرورته د کانړي ویشتلو ممانعت**

۳۵۲۶-[۷] (۱) [۱] «وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّهُ رَأَى رَجُلًا يَخْذِفُ، [۲] فَقَالَ: لَا تَخْذِفْ؛ فَإِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الْخَذْفِ، [۳] وَقَالَ: (إِنَّهُ لَا يُصَادُ بِهِ صَيْدٌ، [۴] وَلَا يُنْكَأُ بِهِ عَدُوٌّ، [۵] وَلٰكِنَّهَا قَدْ تَكْسِرُ السِّنَّ [۶] وَتَفْقَأُ الْعَيْنَ» ) مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت عبد الله ابن مغفل نه روایت دی چې هغه یو سړی د قتیې ګوتي او د شهادت د ګوتي سره په سنګریزو ویشتلو سره ولیدلو، [۲] نو ورته وي وفرمایل چې سنګ ریزی مه وله. ځکه چې رسول الله ﷺ د داسې کانړو ویشتلو نه منع کړیده. [۳] ورته وي فرمایل چې د دغه شان کانړو ویشتلو سره نه خو ښکار کیدی شي [۴] او نه د دین یو دښمن زخمي کیدی شي (بلکه دا محض لهو ولعب دی. چې نه ځیني د دنیا څه فائده شته او نه د دین، لا دا چې د دی سره خلقو ته ضرر رسیږي، څنګه چې حضور ﷺ وفرمایل) [۵] البته داسې شکي ویشتل غاښ ماتوي، [۶] او سترګه چوي. (بخاري. مسلم)

**حل اللغات:** ① يَخْذِفُ: کانړي ویشتلو، ② يُنْكَأُ: زخمي کولو، ③ تَفْقَأُ: چاودل

**تسهیلات:**

**قوله:** نَهَى عَنِ الْخَذْفِ: د حدیث پاك حاصل دادې چې صحابئ رسول یو کس اولیدو چې په بل کس باندې ئې هسې کانړي ویشتل، لکه څنګه د ځینو هلکانو عادت وی نو دې صحابي هغه منع کړو او وې فرمائیل چې دا کار عبث دې او مضر هم دې مضر نه بچ کیدل ضروري دی، نو همدا حکم د هر هغه عمل باره کښې دې چې په هغې کښې د جنګ کولو خطره وی لکه لینده وغیره.

**[۲۵۱۷] په عوامي مجلسونو کښې د وسلې په احتیاط سره د ساتلو حکم**

۳۵۲۷-[۸] (۲) [۱] وَعَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] ( «إِذَا مَرَّ أَحَدُكُمْ فِي مَسْجِدِنَا وَفِي سُوقِنَا [۳] وَمَعَهُ نَبْلٌ فَلْيُمْسِكْ عَلَى نِصَالِهَا [۴] أَنْ يُصِيبَ أَحَدًا مِنَ الْمُسْلِمِينَ مِنْهَا بِشَيْءٍ» ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابو موسی ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] هر کله چې په تاسو کې یو

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الذّبائح والصّید/باب الخذف والبندقة (رقم-۵۴۷۹) و ابو داود فی کتاب الأدب/باب فی الخذف (رقم-۵۲۷۰) والنسائی فی کتاب القسامة/باب دیة جنین المرأة (رقم-۴۸۱۵) وابن ماجه فی کتاب الصّید/باب النّهی عن الخذف (رقم-۳۲۲۶) واحمد فی المسند: ۸۶/۴

۲) اخرجه البخاری فی کتاب الفتن/باب قول النّبیّ صلّی الله علیه وسلّم: «من حمل علینا السّلاح فلیس منّا» (رقم-۷۰۷۵) ومسلم فی کتاب البرّ والصّلة والآداب/باب الوعید الشّدید لمن عذّب النّاس بغیر حقّ (رقم-۱۲۴ - (۲۶۱۵) و ابو داود فی کتاب الجهاد/باب فی النّبل یدخل به المسجد (رقم-۲۵۸۷) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب من کان معه سهام فلیأخذ بنصالها(رقم-۳۷۷۸)واحمد فی المسند: ۴۱۸/۴

سړی زمونږ جومات او زمونږ بازار ته راشي، ايا د هغه ځای سره تيرېږي[۳] او د هغه سره غشی وي، نو هغه ته پکار دی چې هغه بند کړي (يعني د هغه په تيره څوکه لاس کېږدي) [۴] چې په هغه سره يو مسلمان ته ضرر ونه رسوي، (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① نَبْلٌ: غشې، نيزه ② نِصَالِهَا: د هغې سوکه، (تيره طرف).

**تسهيلات:**

**قوله:** فَلْيُمْسِكْ عَلَى نِصَالِهَا:

**د تيره څيز په ګڼړه کښې د ګرځولو حکم:** دَ غشی تيره مخ او پهل ته وائی مراد تولې داسې وسلې دی په کوم سره چه دَ چا دَ زخمی کيدو ياهلاك کيدو خطره وی که هغه توره وی که غشې وی که توپك وی ياچاړه وغيره وی دا په بازارونو جماتونو او عام دَ ګڼړې ځايونوکښ په احتياط سره خپل ځان سره کيخودل پکاردی دې دَپاره چه په غلطئی سره څوك زخمی نه شی چنانچه دَ وسلې دَ اخستلو او ورکولو په آدابوکښې دادی چه دَ ورکولوپه وخت ئی تيره مخ خپل طرف ته وی دې دَپاره چه اخستونکي خطره نه محسوس کوی اونه زخمی شی. ددې حديث نه معلومه شوه چه په اسلامی معاشره کښې دَ وسلې اخستلو ورکولو او اوچتولوسره ګرځيدوکښې پابندی نشته دې. اسلام دَ ناجائز چلولو او استعمالولو سزا مقررکړې ده دکوم په وجه چه وسله دَ يومسلمان دَ ځان دَپاره دَ څه قسم خطره پيدا نه کړې شی.

**[۲۵۱۸] يومسلمان ته په وسلې سره د اشارې کولو ممانعت**

۳۵۱۸—[۹] (۱)[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[۲] «لَا يُشِيرُ أَحَدُكُمْ عَلَى أَخِيهِ بِالسِّلَاحِ؛[۳] فَإِنَّهُ لَا يَدْرِي لَعَلَّ الشَّيْطَانَ يَنْزِعُ فِي يَدِهِ[۴] فَيَقَعُ فِي حُفْرَةٍ مِنَ النَّارِ» ) مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په تاسو کې دي هيڅ سړی د خپل (مسلمان) ورور طرف ته په وسله سره اشاره نه کوي.[۳] ځکه هغه ته معلومه نه ده چې شايد شيطان د هغه د لاس نه وسله راکاږي[۴] او د هغه په وجه د وسلې مالك د دوزخ په اورکي واچول شي، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① يَنْزِعُ: ضرب يضرب نه . راکاږی، ② حُفْرَةٍ: کنده،

**تسهيلات: قوله:** فَإِنَّهُ: "اي احدكم" يادا ضمير شان دې نود مرجع ضرورت نشته .

**قوله:** يَنْزِعُ فِي يَدِهِ:

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الفتن/باب قول النبیّ صلّی الله علیه وسلّم: «من حمل علینا السّلاح فلیس منّا» (رقم-۷۰۷۲) ومسلم فی کتاب البرّ والصّلة والآداب/باب النّهی عن الإشارة بالسّلاح إلی مسلم (رقم-۱۲۶ - (۲۶۱۷)

**شیطان ته د نزع د نسبت وجه:** اي حال کون السلاح في يده" دَ شیطان طرف ته اسناد په اعتبارِدَ سبب دي چه هغه دَ دي سبب جوړیږي یعنی شیطان خودَ انسان دَ تباهئی او بربادئی په کوشش کښي ناست دي اوس که چرې څوك سرې دَ بل طرف ته په ټوقوسره هم په وسله سره اشاره کوی نوکیدي شي چه شیطان په مینځ کښي وسوسي اودخل ورکولو سره دغه ټوقي په رښتیاؤ کښي بدل کړی اودَ ټوقو په ځائی جنګ شروع شی اودَ مسلمان قتل اوشی نوقاتل به دَ دوزخ په کنده کښي پریوځی بل دا چه شیطان ظالم اوبدبخت پخپله دغه وسلي له حرکت ورکولوسره دَمسلمان دَ ځان دَپاره خطره جوړولي شی ځکه چه دا خبیث دَ اولاد آدم دښمن دي.

**[۳۵۱۹] مسلمان پسي وسلي راویستو نکي باندي د فرشتو لعنت**

۳۵۱۹-[۱۰] (۱)۝۱ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ۝۲ «مَنْ أَشَارَ إِلَى أَخِيهِ بِحَدِيدَةٍ،۝۳ فَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ تَلْعَنُهُ حَتَّى يَضَعَهَا۝۴ وَإِنْ كَانَ أَخَاهُ لِأَبِيهِ وَأُمِّهِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ

**ترجمه:**۝۱ او حضرت ابوهریره ﷛ وایي چي رسول اللهﷺ وفرمایل ۝۲ کوم سړی چي د خپل مسلمان ورور طرف ته په وسپنه (یعني په وسله وغیره) سره اشاره کوي،۝۳ په هغه فرشتي د هغه وخته لعنت وایي د څو پوري چي هغه هغه اوسپنه کیږدي،۝۴ که څهٔ هم هغه د هغه حقیقي ورور ولي نه وي، (بخاري مسلم)

**تسهیلات: قوله:** مَنْ أَشَارَ إِلَى أَخِيهِ بِحَدِيدَةٍ:

د حدیث مبارك حاصل دادي چي کوم کس خپل رور طرفته د قتل وسلحي سره اشاره اوکړی که د ویرولو دپاره وی اوکه د ټوقو په طور وی نو په داسي کس باندي ملائیك لعنت وائی . یا مطلب دادي چي کله خپل سکه رور باندي وسله اوچتولو باندي فرښتي لعنت وائی نو په اجنبی باندي په وسله اوچتولو باندي فرښتي لعنت په طریق اولی وائی

**[۳۵۲۰] په مسلمان پسي وسله راویستو نکی دپاره وعید**

۳۵۲۰-[۱۱] (۲)۝۱ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ وَأَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:۝۲ «مَنْ حَمَلَ عَلَيْنَا السِّلَاحَ فَلَيْسَ مِنَّا».۝۳ رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. وَزَادَ: «وَمَنْ غَشَّنَا فَلَيْسَ مِنَّا».

۱ ) اخرجه مسلم في كتاب البرّ والصّلة والآداب/باب النّهي عن الإشارة بالسّلاح إلى مسلم (رقم-۱۲۵ - (۲۶۱۶) والترمذي في كتاب الفتن عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء في إشارة المسلم إلى أخيه بالسّلاح (رقم-۲۱۶۲) واحمد في المسند:۲/۲۵۶

۲ ) اخرجه البخاري في كتاب الفتن/باب قول النّبيّ صلّى الله عليه وسلّم: «من حمل علينا السّلاح فليس منّا» (رقم-۷۰۷۰) ومسلم في كتاب الإيمان/باب قول النّبيّ صلّى الله عليه وسلّم: «من غشّنا فليس منّا» (رقم-۱۶۴ - (۱۰۱) والنسائي في كتاب تحريم الدّم/باب من شهر سيفه ثمّ وضعه في النّاس (رقم-۴۱۰۰) وابن ماجه في كتاب الحدود/باب من شهر السّلاح (رقم-۲۵۷۵)

**ترجمه:**[١] اوحضرت ابن عمر رضي الله عنهما او ابوهريره رضي الله عنه د نبي كريم ﷺ نه نقل كوي چې حضور ﷺ وفرمايل [٢] كوم سړى چې (دبازى او مسخرو په طور) په مونږ وسله پورته كړي، نو هغه زمونږ نه نه دى (يعني زمونږ په طريقه عامل نه دى)[٣] بخاري مسلم، او مسلم رحمه الله دا الفاظ هم نقل كړي دي چې كوم سړى خپل يو څيز د خرڅولو په وخت د خرڅونكي شي يو عيب او نقصان پټولو سره مونږ ته دهوكه راكړي، هغه زمونږ نه نه دى.

**حل اللغات:** ①حَمَلَ: پورته كړلو ، (د وسلې پورته كولو دپاره حَمل لفظ استعمالېږي) ②غَشَّ: ملاوټ ئې اوكړلو ، دهوكه ئې وركړه.

**تسهيلات: قوله:** مَنْ حَمَلَ عَلَيْنَا السِّلَاحَ:

**دوسلې راويستلو دوه صورتونه:** ① كه هغه په تړوقو كښې په چا باندې وسلحه راوا ړوى ② يا په چا باندې د رعب اچولو دپاره ، نو ددې نه منع فرمائيلې شوې ده
او د جمع ضمير په دې وجه راوړې شو چې پورا امت په دې كښې احتياط اوكړى

**قوله:** فَلَيْسَ مِنَّا:

**د ليس منا څخه مراد:** يعنى زمونږ په طريقه باندې نه دې ، لهذا كافر كيدل مراد نه دي

**د علينا السلاح تركيب:** امام طيبى رحمه الله فرمائى چې (عَلَيْنَا السِّلَاحَ) جار مجرور لره د فعل سره متعلق هم كولې شى . په دې صورت كښې به السلاح منصوب بنزع الخافض وى .
او دا حال جوړول هم جائز دى. په دې صورت كښې به السلاح مفعول وى.

**قوله:** وَمَنْ غَشَّنَا فَلَيْسَ مِنَّا:

**د غش څخه مراد:** ملاوټ نه مراد يا خو د مبيعه عيب پټول او خرڅول دى يا ملاوټ كولو نه پس خرڅول ، غرض دا چې ددې نه هره كاروبارى دهوكه مراد ده. او غشنا كښې د متكلم ضمير نه مراد ټول مسلمانان دى ، يا اهل عرب يا اهل مدينه دى. مطلب دا دې چې چا مسلمانانو لره ، اهل عرب لره يا اهل مدينه لره دهوكه وركړه هغه زمونږ په طريقه نه دې ، او ترمذى شريف كښې روايت دې چې چا عربو ته دهوكه وركړه هغه به زما شفاعت اونه مومى او هغه سره ته زما محبت اونه رسى .

**[٣٥٢١] په مسلمان باندې د وسلې راويستلو وعيد**

٣٥٢١–[١٢] (١)[١]وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:[٢] ( «مَنْ سَلَّ عَلَيْنَا السَّيْفَ فَلَيْسَ مِنَّا» ) . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

١ ) اخرجه مسلم فى كتاب الإيمان/باب قول النّبيّ صلّى الله عليه وسلّم: «من حمل علينا السّلاح فليس منّا» (رقم-١٦٢ - (٩٩) والترمذى فى كتاب صفة القيامة والرّقائق والورع عن رسول اللّه صلّى اللّه عليه وسلّم/باب (رقم-٢٥٢٠) واحمد فى المسند: ٤٦/٤

**ترجمه:** ۱ او حضرت سلمه ابن اکوع وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ کوم سړی چې (بې له ارادې د قتل، په بازی کی هم) په مونږ توره پورته کړه، نو هغه زمونږ نه دی. (مسلم)

**حل اللغات:** ۱ سَلَّ: پورته کړلو، راويستلو د غشی په شان سوکې والا څيز پورته کولو دپاره لفظ د سل استعماليږی.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ سَلَّ عَلَيْنَا السَّيْفَ:

**د سل او حمل په معنی کښې فرق:** پورته په حديث نمبر (۳۵۲۰) کښې لفظ حمل دې دلته په دې حديث کښې لفظ سل دې مراد وسله اوچتول اودَ يو مسلمان دَ ويرولو دپاره وسله خودل دی دَ تورې دَ څوکې دَپاره دلته سل لفظ راغلې دې اودَ عام وسلې د اوچتولو دَپاره دَحمل لفظ راځی. پورته په حديث نمبر (۳۵۱۹) کښې اشار لفظ راغلې دې. دَدې ټولو الفاظو مطلب هم يو دې چه دَ مسلمان دَ ويرولو دَپاره وسله خودل منع دی او دَ ګناه کار دې سره دَدې چه په دې کښې تاوان نشته دې.

**قوله:** فَلَيْسَ مِنَّا:

**يو سوال او د هغې جواب:**

**د ليس منا په مفهوم کښې دوه اقوال:** باقی په مذکوره رواياتو کښې چې د ليس منا لفظ استعمال شوې دې نو د دې ظاهری مطلب مراد نه دې ځکه چې په ګناه کبيره سره سړې دَ اسلام نه نه اوځی بلکه په دا قسمه احاديثو کښې عالمانو توجيهات کړی دی.

۱ دا سړې په دې شعبه او دې خاص فعل اومعامله کښې دَ مسلمانانو په طريقه نه دې اګرچه باقی ټولو اقوالو افعالو کښې هغه دَ مسلمانانو په طريقه دې اومسلمان دې مګر په دې خاص عمل کښې هغه دَ مسلمانانو په طرز نه دې.

۲ دا قسم جملې نبی کريم دَ اسلوب حکيم په توګه ارشاد فرمائيلې دې دې دَپاره چه مسلمان دا ناجائز کار اونه کړی يعنی چه کوم مخلص مسلمان دا اوری چه په دې کارکولو سره سړې دَخپل خوږ نبی ﷺ نه کټ کيږی نو هغه مسلمان به کله هم دې کارته نيزدې نه شی بلکه چغې به وهی صورې به وهی اودا کار به پريږدی اودَ اسلام طرف ته به په منډه ورځی.

پورته حديث نمبر (۳۵۲۰) کښې من غشنا جمله راغلې ده غس دهوکې ته وائی چه په ظاهره يو کار ښه ښکاری مګر په پټه توګه په دې کښې عيب پټ پروت دې کوم چه دا سړې نه ښکاره کوی. دا دهوکه اکثر دَ خرڅولو اواخستلو په معاملاتو کښې کيږی او نورو څيزونو ته هم دا حديث عام دې.

## [۲۵۲۲] خلقوته تکلیف ورکونکی دپاره وعید

۳۵۲۲-[۱۳] (۱) [۱] وَعَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ، [۲] أَنَّ هِشَامَ بْنَ حَكِيمِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مَرَّ بِالشَّامِ عَلَى أُنَاسٍ مِنَ الْأَنْبَاطِ [۳] وَقَدْ أُقِيمُوا فِي الشَّمْسِ [۴] وَصُبَّ عَلَى رُءُوسِهِمُ الزَّيْتُ [۵] فَقَالَ: مَا هَذَا؟ قِيلَ: يُعَذَّبُونَ فِي الْخَرَاجِ. [۶] قَالَ هِشَامٌ: أَشْهَدُ لَسَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [۷] ( «إِنَّ اللَّهَ يُعَذِّبُ الَّذِينَ يُعَذِّبُونَ النَّاسَ فِي الدُّنْيَا» ). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت هشام ابن عروه د خپل پلار نه نقل کوي [۲] چې حضرت هشام ابن حکیم د ملك شام د سفر په دوران کې د نبطي قوم څه افراد په داسې حال کې ولیدل. [۳] چې هغه د نمر په ګرمي کې درول شوي وو، [۴] او د هغوئ په سرونو ګرم کړه تیل اچول شوي وو. [۵] هشام ابن حکیم (دا پریشانه کونکې منظر لیدو سره) اوویل چې دا څه دی؟ (یعني خلقو ته د کوم جرم په بدله کې دا غیر انساني سزا ورکول کیږي) هغه ته وښودل شو چې د څه خراج (زرعي ټیکس) نه ورکولو په وجه دوی په دي عذاب کې مبتلا کړل شوي دي، [۶] حضرت هشام وفرمایل چې زه شهادت ورکوم، ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي دي [۷] چې الله ﷻ به (په آخرت کې) داسې خلق په عذاب کې مبتلا کړي. کوم چې خلق په دنیا کې په عذاب کې مبتلا کوي، (مسلم)

**حل اللغات:** ① الْأَنْبَاطِ: زمیندار، نبط اونبیط دَمشهورغرنوم دې. داخلق به دغه غرسره اوسیدل په دې وجه ورته انباط وائی. ② صُبَّ: اړول. تویول ③ الْخَرَاجِ: زرعی ټیکس.

**تسهیلات:**

**قوله:** هِشَامَ بْنَ حَكِيمِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ:

**د هشام بن حکیم تعارف:** دادَ لوئی شان والا صحابی دې په امربالمعروف اونهی عن المنکرکولوکښې مشهور اومعروف وو. دَ اشراف قریش نه وو دَ فتح مکه په موقع باندې مسلمان شوې اودَ ۱۲۰ کالوپه عمرکښې ۵۴هجری کښې په مدینه منوره کښې انتقال شوې دې. شپیته کاله ئی په جاهلیت کښې اوشپیته کاله ئی په اسلام کښې تیرکړی

**قوله:** الْأَنْبَاطِ:

**د لفظ انباط تحقیق:** علامه نووی رحمه الله فرمائی چه انباط دَعجم زمیندارانوته وائی. الزیت دَ زیتون ګرم تیل مراد دی. فی الخراج یعنی هغوی خراج او ټیکس تراوسه پورې نه دې اداکړې په دې وجه ورته دا سخته سزا ورکولې شی

۱) اخرجه مسلم فی کتاب البرّ والصّلة والآداب/باب الوعید الشّدید لمن عذّب النّاس بغیر حقّ (رقم-۱۱۸ - (۲۶۱۳) واحمد فی المسند: ٤/٤٠٣

**قوله** إِنَّ اللّٰهَ يُعَذِّبُ:

**د تعذيب بدله په آخرت کښې:** يعنی کوم سړې چه مخلوق خدا په دنيا کښې څنګه ناحقه په عذاب کښې راګيره وی الله تعالی به دَ قيامت په ورځ هغه هم په هغه شان عذاب او سزا کښې راګيره وی. په يوحديث کښې دی (لاتعذبوابعذاب الله) اودلته ګرم تيل اچولوسره په اورکښې دَ سوزولوسزا چه يوانسان بل ته ورکوی کومه چه دَالله تعالی نه سوا دَ بل چادَپاره مناسب نه ده.

**[۲۵۲۳] ظلم د الله تعالی دغصې سبب**

۲۵۲۳- [۱۴] (۱) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②«يُوشِكُ إِنْ طَالَتْ بِكَ مُدَّةٌ ③أَنْ تَرَى قَوْمًا فِي أَيْدِيهِمْ مِثْلُ أَذْنَابِ الْبَقَرِ ④يَغْدُونَ فِي غَضَبِ اللّٰهِ ⑤وَيَرُوحُونَ فِي سَخَطِ اللّٰهِ) ⑥وَفِي رِوَايَةٍ: (وَيَرُوحُونَ فِي لَعْنَةِ اللّٰهِ»). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ راته وفرمايل ② که ستا عمر اوږد شو ③ نو ته به نزدې هغه خلق ووينې چې د هغوئ په لاسونو کې به د غوا د لکۍ په شان يو شی [يعنی دوري به وي] ،④ د هغوئ سحر به د الله ﷻ په غضب کې وی.⑤ او د هغوئ ماښام به د الله ﷻ په سخته ناراضګي کې تيرېږي (يعني په هغه خلقو به هر وخت د الله ﷻ غضب نازلېږلو)⑥ او په يو روايت کې داسې دي چې د هغوئ ماښام به د الله ﷻ په لعنت کې تيرېږي، (مسلم)

**حل اللغات:** ①أَذْنَابِ: لکئ، ②يَغْدُونَ: سحر وخت کښې تلل (داخليدل). ③يَرُوحُونَ: دماښام په وخت کښې راواپس کيدل. ④سَخَطِ: غضب، غصه (لعنت).

**تسهيلات:**

**قوله** يُوشِكُ إِنْ طَالَتْ بِكَ مُدَّةٌ أَنْ تَرَى الخ:

په دې حديث مبارك کښې هغه خلقو طرفته اشاره مقصود ده کوم چې د ظالم جابر حکمران ماتحت وی او خپل ځان نه لاندې طبقه يعنی عامو مسلمانانو باندې دوئ ته د ظلم کولو دهمکۍ ورکوی. **يغدون** او **يرحون** نه مراد دوام او استمرار دې. او د حديث پاك مطلب دادې چې په داسې خلقو باندې مسلسل د الله ﷻ غصه او ناراضګی نازلېږی. يا ددې مطلب دادې چې په دې خلقو باندې په داسې وخت کښې سبا کيږی چې په خلقوباندې ظلم کوی او هغوئ ويروی ، او په دوئ باندې د الله ﷻ غضب نازلېږی او ددې خلقو ماښام هم په داسې کارونو کښې تيرېږی.

۱ ) اخرجه مسلم فی کتاب الجنّة وصفة نعيمها وأهلها/باب النّار يدخلها الجبّارون والجنّة يدخلها الضّعفاء (رقم-۵۳ - (۲۸۵۷) واحمد فی المسند: ۳۲۳/۲

[۲۵۲٤] د امت محمدي دوه دوزخي ډلې

۳۵۲٤-[۱۵] (۱) [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «صِنْفَانِ مِنْ أَهْلِ النَّارِ لَمْ أَرَهُمَا: [۳] قَوْمٌ مَعَهُمْ سِيَاطٌ كَأَذْنَابِ الْبَقَرِ يَضْرِبُونَ بِهَا النَّاسَ، [٤] وَنِسَاءٌ كَاسِيَاتٌ عَارِيَاتٌ [۵] مُمِيلَاتٌ مَائِلَاتٌ، [٦] رُءُوسُهُنَّ كَأَسْنِمَةِ الْبُخْتِ الْمَائِلَةِ، [۷] لَا يَدْخُلْنَ الْجَنَّةَ وَلَا يَجِدْنَ رِيحَهَا، [۸] وَإِنَّ رِيحَهَا لَتُوجَدُ مِنْ مَسِيرَةِ كَذَا وَكَذَا» . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د دوزخيانو دوه ډلې داسې دي چې مانه دي ليدلي (او نه يې وينم) [۳] يوه ډله خو د هغه خلقو ده، چې د هغوئ په لاسونو کې به د غوا د لکۍ په شان دوري وي، چې په هغه سره به ناحقه خلق وهي، [٤] او دويمه ډله د هغه ښځو ده چې په ظاهره خو يې کپړې اغوستې وي، خو په حقيقت کې بربنډې وي، [۵] هغه به سړي ځان ته مائيل کوي، او خپله به د سړو طرف ته مائيلې وي، [٦] د هغوئ سرونه به د بختي اوښ د بوک په شان خوزي، [۷] داسې ښځې به په جنت کې نه داخليږي ، او نه به د جنت بوی پيدا کړي، [۸] حالانکه د جنت بوی به دومره دومره (يعني مثلًا د سلو کلونو) د فاصلې (ليرې والی) نه محسوسيږي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① صِنْفَانِ: دوه قسمه خلق، ② سِيَاطٌ: دُوره، کروړه، ③ كَأَذْنَابِ الْبَقَرِ: د غوا دلکۍ په شان، ④ كَاسِيَاتٌ: تنکې باريکې جامې اغوستونکې ښځې، ⑤ عَارِيَاتٌ: بربنډې ښځې. ⑥ مُمِيلَاتٌ: نور خلق ځان ته مائله کيدونکې ښځې ⑦ مَائِلَاتٌ: په خپله نورو ته مائله کيدونکې ښځې ⑧ أَسْنِمَةِ: اسنمه دَسنام جمع ده د اوښ قُب. ⑨ الْبُخْتِ: بُختي اوښ (د اوښانو يو قسم ⑩ الْمَائِلَةِ: مائله وی په يو طرف ته حرکت کوی ،خوزي، ⑪ مَسِيرَةِ: فاصله، مسافت.

**تسهيلات:**

**قوله:** «صِنْفَانِ مِنْ أَهْلِ النَّارِ:

**د امت د دوو ډلو پيشنګوئي:** يعنی دوه قسم خلق دی چه ما هغه تراوسه پورې نه دی ليدلی يعنی هغه تردغه وخته پورې موجود شوی نه دی روستو به راځی من اهل النار، يعنی هغوی به دوزخ ته ځی مستوجب ناربه وی دا جدا خبره ده چه دَ سزا تيرولونه پس به دَ دوزخ نه اوځی

**قوله:** قَوْمٌ مَعَهُمْ سِيَاطٌ

**د سياط تحقيق او د دې په مراد کښې اقوال:** دادَ سوط جمع ده کوړې ته وائی عربی ممالك کښې دَدې نوم مقرعة دې دَ کوم جمع چه مقارع ده. دا دَ څرمن نه جوړه وی دَدې

۱ ) اخرجه مسلم فی کتاب الجنّة وصفة نعيمها وأهلها/باب النّار يدخلها الجبّارون والجنّة يدخلها الضّعفاء (رقم-۵۲ - (۲۱۲۸)

پلنوالي معمولي شان وی او دَ غوئی دَ لکئی په شان اوږده وی جلاد غل بربنډ کړی او په دې باندې وهی
① عام شارحین دَ موجوده زماني پولیس دَدې حدیث واضح مصداق ګڼړی ځکه چه دَ غوایانو دَ لکو په شان چوکي صرف دَدوی په لاسونو کښې وی سره ددې چه نور ظالمان هم دَدې حدیث مصداق جوړیدې شی کوم چه ظالمانو خانانو وډیره ګانو او سردارانو چودهرایانو ظالمان نوکران وی دَدې حدیث نه وړاندې چه کوم حدیث تیرشوې دې په هغې کښې هم دَ دغه ظالمانو ذکر دې هلته دَهغوی دَ ظلم دَ اوقات هم بیان کړې شوې دې
② شارحین حدیث لیکی چه دَدې حدیث مصداق هغه خلق دی چه دَ یو ظالم صاحب اقتدار سړی خواکې ناست وی هغوی ته وړاندې روستو کیږی او دَ هغوی په نوم باندې عام خلق ویره وی غریبانان او کمزوری خلقو ته کنځلې کوی او وهی ټکوی او دَ شریفانو عزتونه دَ خپو لاندې کوی او دَ لیونی سپی په شان هریو خوری. دَ هدایه په حاشیه کښې لیکلی دی چه دَ ظالمانو کوم کارندې دی دَهغوی طرف ته دَ شفقت په نظر سره کتل جائزنه دی
③ ملاعلی قاری رحمه الله لیکلی دی چه دې نه مراد هغه ظالمان خلق دی چه دَ ظالم حکمرانانو په در باندې چکرې وهی او دَ لیونو سپو په شان خلق ناحق وهی او په هغوی لاټهی چارج کوی او زغلوی.

**قوله وَنِسَاءٌ كَاسِيَاتٌ:**

**د کاسیات په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① بعضې علماؤ دَ حدیث دَدې حصې مطلب داهم اخستې دې چه په دنیا کښې دغه ښځې عیش عشرت ډول سنګار او نازونعم کښې په هرقسم لباس کښې خوندونه اخلی مګر دَ تقوىٰ نه په خالی کیدوباندې په آخرت کښې دَ تقوىٰ نیك اعمال دَ لباس نه بربنډې وی
② یعنی داسې ښځې به وی چه په ظاهره به په لباس کښې وی لیکن دَ لباس باریکی به ئی داسې وی چه بدن به ئی صفا ښکاری یا به ئی لباس دومره تنګ وی چه په دې سره به دَ بدن نمائش کیږی مثلاً سهاړی چه واچوی یانیم عریان لباس واچوی یا لوپټه په غاړه کښې زوړند کړی دَ سینې نمائش شروع کړی په دې ټولو صورتونو کښې په ظاهره لباس ښکاری لیکن په حقیقت کښې ښځه په دې کښې بربنډه وی

**د حدیث د بعضې الفاظو وضاحت:**

①**مُمِيلَاتٌ**: یعنی په دغه لباس کښې ځان جوړ کړی او بازارونو کښې ګرځی او اجنبی سړی خپل طرف ته مائل کوی او ګرځی.

② مَائِلَاتٌ یعنی دَ کورنه لچك لچك كښې په دې حالت كښې وتل پخپله دَدې خبرې دليل دې چه هغه په قلبي توګه باندې دَ پردو سړو طرف ته مائل ده اوس هغه دَبل دَ کبرې چه دَ آزادو خلقو په زړونو كښې ئې خپل کور جوړکړې دې اوچه وائې زړه صفا ساتل پكاردى دې حديث شريف اوخودل چه په دغه پوزيشن كښې راتلل هم دَ زړه دَ خرابئ نښه ده.

③ الْبُخْتِ: دادَ بختی جمع ده بختى اوښ هغه وى چه دَ عجمي اوعربي اوښانودَ مشترك نسل نه پيداشوې وى دادَ بادشان بخت نصر طرف ته منسوب دې هغه داسې نسل روان کړې وو ددې په مقابله كښې عراب اوعربى دى.

④ الْمَائِلَةِ: داكلمه دَاسنمه صفت دې يعنى دَ چاقوالي اوغټوالي دَ وجې نه هغه قب به يوطرف ته مائل وى اوخوزيږى به دغه شان دَ ښځودَ سرجوړې اخواديخوا خوزيږى ځکه چه دلته هغه ښځې مراددى چه په خپلو سرونو باندې دَ خپلو چونټو جوړې تړى اودَ چرګ دَ چارخولـك په شان اخواديخوا مائل كوى. ملاعلى قارى رحمه الله ليكلى چه دادَ مصر دَ ښځونقشه ده. نبى كريم ليدلې نه دى اووئى خودل دادنبى كريم معجزه وه.

**قوله:** لَا يَدْخُلْنَ الْجَنَّةَ:

**جنت ته د نه داخليدو په مفهوم كښې دوه اقوال:** ① كه دغه ښځې دا ناجائزفيشن او حرام كار حلال اوګنړى نوبيابه دوى دَ ايمان نه محروم كيدوسره هميشه دَپاره په دوزخ كښې وى اودَ جنت خوشبوئى نه شى حاصلولې. ② اوكه صرف ګناهګارې دى نومراد دادې چه كله نيكانې ښځې جنت ته ځى ترهغه وختنه پورې به دوى دَ جنت خوشبوئى نه شى اخستلې دَ سزا خوړلونه پس به جنت ته ځى.

③ دا حديث په زجرتوبيخ اوتشديد تغليظ باندې محمول دې

**[۳۵۲۵] دمخ د وهلو ممانعت**

۳۵۲۵ ـ [۱۲] (۱) ① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② («إِذَا قَاتَلَ أَحَدُكُمْ فَلْيَجْتَنِبِ الْوَجْهَ ③ فَإِنَّ اللهَ خَلَقَ آدَمَ عَلَى صُورَتِهِ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هر كله چې په تاسو كې يو سړى څوك وهي، نو هغه ته پكار دى، چې د مخ نه ځان اوساتي. ③ ځكه چې الله تعالى آدم په خپل صورت پيدا كړي دى. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① قَاتَلَ: وهى. جنګ كوى.

---

۱) اخرجه البخاري في كتاب الإجارة/باب إذا ضرب العبد فليجتنب الوجه (رقم-۲۵۵۹) ومسلم في كتاب البرّ والصّلة والآداب/باب النّهي عن ضرب الوجه (رقم-۱۱۲ - (۲۶۱۲) واحمد في المسند: ۲/۴۶۳

**تسهيلات:**

**قوله: فَلْيَجْتَنِبِ الْوَجْهَ:**

**په مخ باندې د وهلو نه ممانعت:** يعنى په مخ باندې دَ وهلونه بچ كيدل پكاردى ځكه چه انسان دَ عالم اصغرپه شان دي اودَ ده مخ دَ ده دَ محاسن اوخوبيانو مركزدې اودَ الله تبارك وتعالى دَ تخليق اعلى شاهكاردې. لهذا دا بالكل مناسب نه دى چه څوك دې دَ دي توهين اوكړى اودَې په وهلوسره شكل وران كړى.

**قوله: فَإِنَّ اللهَ خَلَقَ آدَمَ عَلٰى صُورَتِهِ:**

**د على صورته په مطلب كښې مختلف اقوال:** دَدې جملې په وضاحت كښې مختلف اقوال دى اودَ اقوالو دَ كثرت وجه دَ ضميردَمرجع تعين دې. دلته

① الله تعالى حضرت آدم عليه السلام دَ تخليق په ممتاز صورت باندې پيدا كړو په كوم كښې چه دَ نورو مخلوقاتو دَتخليق انداز نه دې اختياركړې شوې نودَنورو مخلوقاتو دَ تخليق مراحل جدا دى اودَحضرت آدم عليه السلام معامله جدا ده.

② ضميرمرجع پخپله حضرت آدم عليه السلام دې اومطلب به داسې شى چه الله تعالى حضرت آدم عليه السلام هم دَ آدم په صورت كښې پيدا كړې دې يعنى دَ آدم عليه السلام صورت په خپله يو مثال دې لكه چه يوبچې دَ خپل مور پلار په شكل باندې نه وى نو مئيندې وائى دا بچې هم په خپل شكل پيدا شوې دې دا توجيه ډيره واضحه ده.

③ ضميردَ الله تعالى طرف ته راجع دې اودَ صورت نه مراد بدن شكل او شباهت نه دې بلكه دَ صورت نه مراد صفات اوكمال دې يعنى الله تعالى حضرت آدم عليه السلام په خپلو صفاتو باندې پيدا كړو چه په هغه كښې علم وقار صبر برداشت اوليدل اوريدل اودكلام صفتونه كيخودل سره دَدې چه په دې صفاتو كښې تفاوت اوفرق دې. ليكن الله تعالى "تخلقوا باخلاق الله" په توګه حضرت آدم عليه السلام اودَ هغه اولاد پيدا كړو چه دَ الله تعالى اخلاق خپل كړئى.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۳۵۲۶] د چا د كور پرده لرې كولو سزا**

۳۵۲۶—[۱۷] (۱) [۱] عَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] ((مَنْ كَشَفَ سِتْرًا فَأَدْخَلَ بَصَرَهُ فِي الْبَيْتِ قَبْلَ أَنْ يُؤْذَنَ لَهُ، [۳] فَرَأَى عَوْرَةَ أَهْلِهِ [۴] فَقَدْ أَتَى حَدًّا لَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَأْتِيَهُ،

۱ ) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فى الاستئذان قبالة البيت (رقم-۲۷۰۷)

**ترجمه:** [١] حضرت ابوذر ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] كه يو سړى د چا د كور پرده خلاصه كړه او د هغه په كور كې يې خپل نظر واچولى، هر كله چې هغه ته (د هغه په كور كې د تاكولو او دا خليدو) اجازت نه وو، [٣] او هغه د هغه كور والا وليدل [٤] نو (هغه يو داسې كار وكړي، چې د هغه په وجه) هغه قابلِ تعزير شو ، ځكه چې دا هيڅ كله جائز نه دى، چې هغه (بلا اجازته) د چا كور ته راشي (او د هغه په كوركي وګوري)،

**حل اللغات:** ① كَشَفَ: ښكاره كړلو، لرې كړلو، ② سِتْرًا: سَتر، پرده، ③ حَدًّا: پوله، سزا، تعزير.

> [١] وَلَوْ أَنَّهُ حِينَ أَدْخَلَ بَصَرَهُ، [٢] فَاسْتَقْبَلَهُ رَجُلٌ فَفَقَأَ عَيْنَهُ، مَا عَيَّرْتُ عَلَيْهِ، [٣] وَإِنْ مَرَّ الرَّجُلُ عَلَى بَابٍ لَا سِتْرَ لَهُ غَيْرِ مُغْلَقٍ، [٤] فَنَظَرَ، فَلَا خَطِيئَةَ عَلَيْهِ، [٥] إِنَّمَا الْخَطِيئَةُ عَلَى أَهْلِ الْبَيْتِ» ). [٦] رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] كه په هغه كور كې تاكولو سره وكتل، [٢] او د كور والاوو نه يو سړى مخې ته راغلى، او هغه د تاكونكي سترګه ماته كړه، نو زه به هغه سترګه ماتونكي ته هيڅ كله سزا ورنه كړم) او نه په طور د تاوان به په هغه څه څيز واجب كړم، [٣] خو كه يو سړى په داسې دروازه تيريږي، چې په هغه نه څه پرده وي او نه هغه بنده وي. [٤] او د هغه نظر د كور په خلقو ولګيږي، نو په هغه څه ګناه نشته، [٥] بلكه ګناه خو په كور والا ده. چې هغوئ دا دروازه ولې بنده نه كړه، او په هغه يي پرده ولې وانه چوله. [٦] ابوداؤد ﷫ دا روايت نقل كړي دى او ويلې يې دى چې دا حديث غريب دى.

**حل اللغات:** ④ فَقَأَ: سترګه اوچوله ، راويستله ⑤ مَا عَيَّرْتُ: تعييرد باب تفعيل نه شرم وركول. يعني ما غيرت اونكړو. سزا مې ورنكړه، ⑥ مُغْلَقٍ: بند،

**تسهيلات:**

**قوله:** فَرَأَى عَوْرَةَ أَهْلِهِ: دَعورت نه مراد هرهغه څيزدې دكوم په كتلوسره او ښكاره كيدلوسره چه سړې شرم اوعار محسوس كوى. دَ كورخلق په دې كښې داخل دى.

**قوله:** فَقَدْ أَتَى حَدًّا:

**د حداً په مراد كښې دوه اقوال:** ① دلته دَ حدنه تعزيرمراد دې يعنى قابل تعزير جرم ئې اوكړو ② يا دَ حدنه مراد هغه غاړه او پوله اومقام دې دكوم پورې چه دَدې سړى راتګ جائز نه وو.

**قوله:** فَاسْتَقْبَلَهُ رَجُلٌ: يعنى دكوردَ دننه نه څوك سړې مخې ته راغلو

**قوله:** مَا عَيَّرْتُ عَلَيْهِ: يعنى زه به دغه سترګه زخمى كونكې سړې نه ملامته كوم ځكه چه جرم دَ دغه كتونكى سړې دې. دا هغه وخت چه كوم وخت دَ كور مخې ته پرده زوړند وى او دروازه بنده وى اوكه چرې دروازه كولاؤ وى يا پرده نه وى نوبيا جرم دَ كور والو دې

کتونکی ته به دا سزا نه شي ورکولې داحديث مسلمانانو ته دا تعليم ورکوی چه د کورونو دروازې بندې ساتئی يا مکمل پرده زوروندې کړئی دې د پاره چه بې پردگی نه وی.

**[۳۵۲۷] د تورې وغيره د ورکولو په وخت کښې تيره طرف ځان ته ساتل**

۳۵۲۷-[۱۸] (۱) ۱ وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: ۲ «نَهَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُتَعَاطَى السَّيْفُ مَسْلُوْلًا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت جابر ﷺ وايي ۲ چې رسول اللهﷺ بې تيکي توره په لاس کې د ساتلو نه منع فرمايلي ده، (ترمذي ابوداود)

**حل اللغات:** ۱ أَنْ يُتَعَاطَى: چې لاس په لاس کښې يوبل ته يو څيز ورکړی ۲ مَسْلُوْلًا: ښکاره. برېنډه توره.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْ يُتَعَاطَى السَّيْفُ مَسْلُوْلًا:

**برېنډه توره بل ته د ورکولو حکم:** يعنی برېنډه او راويستلې شوې توره دَ چا په لاس کښې مه ورکوه ځکه چه دَدې دَ پرېوتلو اومخامخ سړې زخمی کيدو احتمال دې بل برېنډه توره اخستو په وخت اخستونکی ته دَ زخم لګيدو ويره وی چه دَ يومسلمان دَتکليف سبب جوړيدې شی. داحکم صرف دَ توره نه دې بلکه دَهريوتيره مخ والا چاقو چاړه وغيره هم دغه حکم دې اودا دَ حسن معاشرت اودَ تهذيب خلاف دی. په دې وجه دا نهی تنزيهی ده کوم ته چه نهی ارشادی وائی اوتهذيب داسې دې چه دَتيره مخ والا څيزچاته دَ ورکولوپه وخت هغه تيره مخ خپل طرف ته کوه اويا په تيکی کښې بندولوسره ورکوئی دې دپاره چه اخستونکی ته ويره نه وی.

**[۳۵۲۸] د دوو ګوتو په مينځ کښې ورکولو سره د تار د شلولو ممانعت**

۳۵۲۸-[۱۹] (۲) ۱ وَعَنِ الْحَسَنِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنْ سَمُرَةَ، ۲ «أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى أَنْ يُقَدَّ السَّيْرُ بَيْنَ أُصْبُعَيْنِ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت حسن رحمه الله د حضرت سمرة ﷺ نه نقل کوي ۲ چې رسول الله ﷺ د دې خبري نه منع فرمايلي ده چې تسمه دې د دوو ګوتو په منځ کې وشلول شي (ځکه چې په داسې کولو سره ګوتې زخمي نشي)، (ابوداود)

**حل اللغات:** ۱ يُقَدَّ: قد يقد نصر ينصر نه. شلولې شی. څيرې شی ۲ السَّيْرُ: تسمه. د څرمنې ټکړه. سخت تار

۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد /باب فی النّهی أن يتعاطی السّيف مسلولا (رقم-۲۵۸۸) والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول اللّه صلّی اللّه عليه وسلّم /باب ما جاء فی النّهی عن تعاطی السّيف مسلولا (رقم-۲۱۶۳) والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول اللّه صلّی اللّه عليه وسلّم /باب ما جاء فی النّهی عن تعاطی السّيف مسلولا (رقم-۲۱۶۳) واحمد فی المسند: ۳/۳۰۰

۲) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب السنّة /باب فی قتال اللّصوص (رقم-۴۷۷۲)

**تسهيلات: قوله:** أَنْ يُقَدَّ السَّيْرُ بَيْنَ أُصْبُعَيْنِ :

**د مذكوره جملې مفهوم:** دَدې جمع سيور راځي دې نه مراد تسمه يا هغه سخت تار دې دَ كوم په پرې كولوسره چه دَ ګوتو پرې كيدو احتمال وي. خلق دغه شان څيزونه په عام توګه دَ دوارو لاسونو په ګوتوكښې نيسي اودَ كټ كولو كوشش كوي په كوم سره چه ګوتې زخمي كيږي. دَدې نه ممانعت هم نهي تنزيهي او انهي ارشادي اودَ شفقت په بنياد باندې دې

**[٢٥٢٩] دَ ځان په حفاظت كښې د مړشوی دپاره د شهادت زيرې**

٢٥٢٩-[٢٠] (١) ① وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ② ((مَنْ قُتِلَ دُونَ دِينِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ، ③ وَمَنْ قُتِلَ دُونَ دَمِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ، ④ وَمَنْ قُتِلَ دُونَ مَالِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ، ⑤ وَمَنْ قُتِلَ دُونَ أَهْلِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ)). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت سعيد ابن زيد ﷺ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② كوم سړی چې د خپل دين حفاظت كولو سره ووژل شي، هغه شهيد دی، ③ او كوم سړی چې د خپل ځان د حفاظت كولو سره ووژل شي، هغه شهيد دی، ④ او كوم سړی چې د خپل مال په حفاظت كولو ووژل شی، هغه شهيد دی، ⑤ او كوم سړی چې د خپل اهل وعيال په حفاظت كولو سره ووژل شي، هغه شهيد دی، (ترمذي ابوداود نسايي)

**حل اللغات:** ① دُونَ: دون دَ جدا جدا په معنی كښې دې. دا لفظ كله دَ سوا په معنی كښې راځي اوكله اَدون دَ كم تر په معنی كښې راځي، نزدې، مراد ترې حفاظت دې.

**تسهيلات: قوله:** مَنْ قُتِلَ دُونَ دِينِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ:

**د څلورو څيزونو په حفاظت كښې د مرګ حكم:** دَ دين حفاظت كښې دَ وژلو مطلب دادې چه دَ يومسلمان په مخكښې يوكافر يا مبتدع اوملحد دَ اسلام دين او قرآن توهين اوتحقيراوكړو اودامسلمان هغه سره په جنګ شو اودغه ملحد دې مړ كړو نودا شهيد دې اودَ شهيد درجه حاصلونكې دې. كه چرې ده هغه ملحد قتل كړو نودې غازی دې. هم دغه شان معامله دَمال اومتاع اوعزت اوناموس او دَ شرم ده. كه يوسړې دَهغه عزت دَ خپو لاندې كوی اوهغه دې قتل كړو نو په هغه باندې هيڅ تاوان نشته اوكه دغه حمله كونكی هغه قتل كړو نودا شهيد دې. علماؤ ليكلی دی چه اول به ئی په نرمئی سره پوهه كوې او كه نه منع كيږی نو بيا به لاس اوچتوې نوبيا به دا سړې يا غازی اويا شهيد وی.

---

١) والترمذي في كتاب الدّيات عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فيمن قتل دون ماله فهو شهيد (رقم-١٤٢١) والنسائي في كتاب تحريم الدّم/باب من قتل دون ماله (رقم-٤٠٩٠) وابن ماجه في كتاب الحدود/باب من قتل دون ماله فهو شهيد (رقم-٢٥٨٠) واحمد في المسند:١/١٩٠

**[٣٥٣٠] په امت محمدی د وسلې راويستونکی دپاره په جهنم کښې دروازه**

٣٥٣٠ -[٢١] (١)١ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ٢ «لِجَهَنَّمَ سَبْعَةُ أَبْوَابٍ: ٣ بَابٌ مِنْهَا لِمَنْ سَلَّ السَّيْفَ عَلَى أُمَّتِي - أَوْقَالَ أُمَّةِ مُحَمَّدٍ» - ) ٤ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. ٥ وَحَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ: (الرِّجْلُ جُبَارٌ) ذُكِرَ فِي (بَابِ الْغَضَبِ). ٦ وَهَذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الثَّالِثِ

**ترجمه:** ١ او حضرت ابن عمر ﷺ د نبي كريم ﷺ نه نقل كوي چې حضور ﷺ وفرمايل ٢ د دوزخ اوه دروازي دي، ٣ په هغه كې يوه دروازه د هغه سړي د پاره ده، چې زما د امت په خلقو، يا دا يي وفرمايل چې په امت محمديه په ناحقه توره اوچته كړي. ٤ او دا روايت ترمذي ﷺ نقل كړي دی او ويلي يې دی چې دا حديث غريب دی ٥ او د ابوهريره رضى الله عنه حديث چې «الرجل جبار» په باب الغضب كښې ذكرشوې دې ٦ اودا باب د دريم فصل څخه خالی دې.

**حل اللغات:** ① سَلَّ: اوچت كړلو،

**تسهيلات:**

**نوټ:** د دې حديث تسهيل د حديث نمبر (٣٥٢١) په وضاحت كښې ذكرشوې دې.

## [٢] بَابُ الْقَسَامَةِ

**دَ قسامت بيان**

**خلاصة الباب:**

**فيه حديثان مشتملان على مسئلتين:**

① كون القسامة خمسين يميناً جانب المدعى، ١

② كون القسامة خمسين يميناً جانب المدعى عليه، ٢

د قسامت لغوي تحقيق:

قسامت دَ قا زبر سره دَ قسم نه ماخوذدې. قسم يقسم قسماًوقسامة دَقسم اوچتولو په معنى كښې دې او په قسامه كښې هم دَ پنځوسو سرو نه قسم اخستلې شی يا قسامة دَ قسمت او تقسيم نه ماخوذ دې اوچونكه په قسامه كښې قسمونه په ډيرو سرو باندې تقسيم كيږی په دې وجه دې ته قسامه اووئيلې شو.

دَ قسامه حكم دَ اسلام نه وړاندې په جاهليت كښې هم وو اسلام دَ وينې دَ حفاظت اودَ انسانی جان دَ حفاظت دَ وجې نه داحكم باقی اوساتلو. اوس قسامه دَ اسلام دَ احكاماتو

١ ) اخرجه الترمذي في كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب: ومن سورة الحجر (رقم-٣١٢٣) واحمد في المسند: ١٤/٢

نه يو شرعي حکم دي چه دَ نبي کريم دَ مبارکې زمانې نه تر ننه پورې محکم او غير منسوخ راروان دې قسامه دَ اسلام دَ قواعدونه يو اهم قاعده او د انسانانو دَ مفاداتو او مصالحو يوه لويه ذريعه ده او دَ انساني معاشرې دپاره د امن يو اهم سبب دې دَ قسامه دَ تنفيذ او نافذ کولو په طريقه کارکښې سره ددې چه د علماؤ په مينځ کښې څه قدرې تفاوت دې ليکن ددې باوجود ټول فقهاء او ټول علماء د قسامه په ثبوت او بقاء باندې متفق دی

**د قسامت اصطلاحي تعريف:** قسامه هغه پنځوس قسمونو ته وئيلې شی چه په هغه اهل محله يا اهل دار يعنې دکور په خلقو کيخودې شی چرته چه مقتول ليدلې شوې وی

**د قسامت مثال:** مثلاً په يوه محله کښې يو سړې مړ اوليدلې شو اوس که په دغه سړی باندې دَ مرئی خفه کولو يا په يوځيزدَ وهلو څه نښه موجودنه وی نو هم دا به گڼړلې شی چه دا سړې هم په خپل مرګ مړ دې دَ قاتل دَ لټون هيڅ ضرورت نشته دې اوکه د دغه مړسړی په بدن باندې دَ زخم يا مرئی خفه کولو نشان وی نو هم دغه به ګڼړلې شی چه دا ځ قتل کړې دې اوس دَ قاتل لټون ضروری دی. نو شريعت دغه دَمحلې والا ذمه وار ګرځولی دی په کومه محله کښې چه مقتول موندلې شوې دې چه هغوی دې قاتل اوښائی يا دې قسمونه اوخوری چه هغوی نه دَدې قتل علم نشته دې او نه ورته دَ قاتل علم دی

**د قسم خوړلو طريقه:** دَ قسم خوړلو طريقه داسې ده "والله ما قتلناه وماعلمنا قاتله" قسم اوچتونکی به دَ محلې معززخلق وی عاقل بالغ او آزاد به وی سره دَدې چه پنځوس کسان دَ دغه محلې نه نه پوره کيږی نو دَ قسم تکرار کولو سره به پنځوس قسمونه پوره کوی

**د قسامت حکم او فائده:** دَ قسم خوړلو سره به په هغوی باندې ديت لازم وی دې دپاره چه انسانی ځان بې ځايه او ضائع نه شی او دَ هرې محلې خلق دَ انسانی ځان حفاظت کونکی جوړ شی

**دقسامت سبب:** دَقسامه سبب او دَهغې علت په يوه محله کښې دَمقتول موندلې کيدل دی

**د لوث لغوی معنی:** لوث نښان او علامت ته وائی

**د لوث صورتونه:** ① لوث دا دې چه په قاتل باندې دَ وينو څاڅکی لګيدلې وی

② دَهغه توره دَ مقتول په وينه سره ککړه وی

③ دَ مقتول په خاندان يا دغه محلې والو کښې دَ اول نه دښمنی روانه وی

④ چه يو عادل سړې ګواهی ورکړی يا ډير غيرعادلان داګواهی ورکړی چه دې محلې والو مقتول وژلې دې. دا قرينه قوليه ده او دَ ګواهئی نصاب پوره نه دې. په دې وجه په دغه ناقص ګواهئی سره دَ قاتل نه قصاص نه شی اخستلې

**د لوث عدم اعتبار:** دَ ائمه احناف په نيزدَ لوث هيڅ اعتبار نشته دې نور ائمه دَدې اعتبار کوی تفصيل راروان دې.

**صورت د مسئلې:** په یوه محله کښې مقتول مونډلې کیدوباندې به په دغه محله کښې دَ قاتل دَ لټون عمل شروع کولې شی لیکن دَ تفتیش دَدې عمل ترتیب به څه وی. په دې کښې دَ فقهاء کرامو جدا جدا اجتهادی فتوې دی په کوم سره چه دَ قسامه په مفهوم کښې هم فرق راغلې دې اوګورئی

**د قاتل د لټولو په ترتیب کښې ۲ مذاهب:**

**اول مسلک:** دَ شوافعو اومالکیه مسلك دادې چه کوم وخت دَ مقتول اولیاؤ په محلې والوباندې دَ مقتول دَ قتل دعویٰ اوکړه نودوی مدعیان شو اومحلې والا مدعاعلیهم شو نوکه چرې دلته دَ لوث صورت وی یعنی په چاباندې دَ قتل نشانات موجود وی نودَ مقتول دَاولیاء نه به پنځوس قسمونه اخستلې شی چه تاسو قسم اوخورئی اوښایئې چه قاتل څوك دې؟ که چرې دې پنځوسو کسانو قسمونه اوخوړل چه فلانکې سړې قاتل دې نوکه اوس دعویٰ دَ قتل خطاء ده نو په دغه خلقوبه دیت لازم راشی اوکه چرې دَ قتل عمددعویٰ ده نودَامام شافعی رحمه الله مختارقول دادې چه هم دیت به واجب کیږی لیکن دَ امام مالك رحمه الله امام احمد رحمه الله په نیزاودَ امام شافعی رحمه الله دَ یوقول مطابق به په قاتل باندې قصاص راځی. اوکه چرې دَ مقتول اولیاؤ دَ قسم خوړلونه انکاراوکړو نو بیابه دَ محلې والونه دَ پنځوسوکسانو قسم اخستلې شی. دغه شان که چرې دَ لوث صورت نه وی نو هغه وخت به هم قسمونه په محلې والوباندې راځی.

که دَ محلې والوقسمونه اوخوړل چه نه مونږ قتل کړې اونه مونږ ته دَ قاتل علم شته نودَمحلې والابه دَ دیت اوقصاص نه آزادشی. اوکه دَمحلې والا دَ قسم خوړلونه انکاراوکړی نو بیابه په دوی باندې دیت واجب شی.

**د اول مسلک دوه ضروری خبرې:** ① دجمهورو دَ دې مسلك نه یوه داخبره معلومه شوه چه په محلې والوباندې به قسم په هغه صورت کښې راځی کوم وخت چه دَ لوث صورت نه وی اویاصرف په هغه صورت کښې په هغوی قسم راځی کله چه دَ مقتول اولیاء دَ قسم کولونه انکار اوکړی

② د قسم خوړلو دپاره اصل ذمه وار د مقتول اولیاء دی چې لوث موجود وی

**دویم مسلک:** دَ قسم خوړلودپاره اصل ذمه وار دَ مقتول اولیاء دی کوم وخت چه لوث موجودنه وی

که په یوه محله کښې مقتول اومونډلې شی اودَ قاتل پته نه لګی نودَاحنافوپه دې کښې دا مسلك دې چه دَ مدعیانو نه به اول بینه غوښتلې شی که چرې هغوی سره ګواه نه وی نودَ محلې نوموړی اومشهورو پنځوسو سړونه به قسم اخستې شی.هریوبه داسې قسم خوری په الله تعالی قسم چه ما نه داسړې قتل کړې دې اونه ماته دَده دَ قاتل څه علم دې

دَدغه پنځوسو سړو انتخاب به دَ مقتول ولی کوی اوس که دَ محلې دې پنځوسو کسانو قسم اوخوړلو نو په اهل محله باندې به دیت واجب شی. داخلق دَ قصاص او جیل ته تللو نه دَ قسم په وجه بچ شو خو که دامنتخب پنځوس سړی دَ قسم خوړلونه انکار کوی نو دوی به په جیل کښې اچولې شی تردې چه دا خلق یا دَ قتل اقرار اوکړی یا قسمونه اوخوری.

**د دویم مسلک دوه ضروری خبرې:** دَدې مسلك نه دوه خبرې معلومې شوې ① دَ مقتول وارثان یعنی په مدعیانو باندې به په هیڅ یوصورت کښې قسم نه راځی
② قسم نه خوړلوسره په قسامه کښې قصاص نه راځی په هرحالت کښې هم دیت دې خکه چه دَ قسامه په یوحدیث کښې هم دَ قصاص ذکرنه دې راغلې

**د مذهبینو خلاصه:** خلاصه دا چه دَ احنافو په نیز په هیڅ یوصورت کښې قسمونه دَ مقتول په وارثانونه راځی اودَ جمهورو په نیزدَ لوث په صورت کښې دَ مقتول په اولیاء باندې قسمونه راځی.

بل دَ احنافو په نیز په اهل محله باندې په هرصورت کښې دیت لازم دې که هغوی قسمونه اوخوری اوکه دَ قتل اقرار اوکړی. دا په دې وجه چه دَ یو مسلمان وینه ضائع نه شی. جمهور وائی چه قسمونه خوړلوسره به محلې والا دَدیت نه آزادشی.

**د اول فریق دلیل:** دَ قسامه په احادیثو کښې مختلف اومتضاد الفاظ راغلی دی نوفقهاء په اجتهادی اندازسره دَ دغه الفاظونه په خپله مدعاباندې دلیل پیش کړې دې. نو اول فریق دَ وجوب قصاص دَپاره دَدې الفاظونه استدلال فرمائیلې دې کوم چه سهل بن ابی حثمه رضی الله عنه په روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ دَ مقتول اولیاء ته اوفرمائیل "استحقوا قتیلکم اي قصاص قتیلکم" امام شافعی رحمه الله اوامام مالك رحمه الله دَ مقتول دَ اولیاء نه قسمونه اخستلودَپاره هم دَدې حدیث دَدې الفاظونه استدلال کوی "بأيمان خمسين منكم وفي رواية تحلفون خمسين يمينًا".

**د اول فریق د دلیل جوابونه:** ①دَ قسامه چې څومره احادیث دی په یوکښې هم دَ قصاص تذکره نشته دې تولو کښې دَ دیت ذکردې لهذا دَ قصاص قول دَدې روایاتو په موجودګئی کښې مناسب هم نه دې اومعتبرهم نه دې.

**د دویم فریق دلائل:** ① دَ مقتول دَ اولیاء نه قسمونه نه اخستلودَپاره دا مشهورحدیث د دوی مستدل دې. چه په حقیقت کښې دَ دین دَټولو معاملاتودَپاره یوه ضابطه ده یعنی "البينة على المدعي واليمين على من انكر"
② دَ باب القسامة دَ رافع بن خدیج رضی الله عنه روایت هم د دوی مستدل دې چه فصل ثالث کښې دَ قسامه دویم حدیث دې په کوم کښې چه په واضحه توګه دَ مدعیانو نه ګواه طلب

کړې شوې دی او بیا دَمدعاعلیهم نه دَ قسم اخستلو ترتیب ذکر دې
② په ابو داؤد شریف کښې دَ رافع بن خدیج رضی الله عنه په روایت کښې چه کوم تفصیل دې هغه خپلول پکاردی په هغې کښې په واضحه توګه ذکر دی چه نبی کریم دَ ټولونه اول دَ مقتول دَ اولیاء نه څوك چه مدعیان وو او فرمائیل تاسو په دې قتل باندې ګواهان راولی هغوی اووئیل چه مونږ سره ګواهان نشته دې نبی کریم اوفرمائیل چه بیا دَیهودونه دَ پنځوسو کسانو قسمونه واخلئی. هغوی اووئیل چه دَ یهودو په قسمونو باندې څو اعتماد نشته دې. په دې باندې نبی کریم دَ زجر توبیخ او انکار په توګه اوفرمائیل نو بیا تاسو پخپله قسمونه خوړل غواړئی اوخورئی؟ یعنی دَهغوی قسمونه منظورنه دی نو بیا تاسو پخپله قسمونه اوخورئی حالانکه تاسو مدعیان ئی اودَمدعی دَپاره قسم خوړل نه دی ځکه چه مشهور حدیث دې (البینة علی المدعی والیمین علی من انکر) دَدې واضحه حدیث په مقابله کښې دَ قسامه دَ احادیثو اشارات نه استدلال نه شی کولې.
③ دَقسامه باره کښې حضرت عمر رضی الله عنه هم دَ صحابه په مجمع کښې مدعی علیهم نه قسمونه واخستل اودَ اجماع په توګه ئی واضح اوفرمائیل چه دَ مقتول په اولیاء باندې قسمونه نشته دې

**د قسامت په احادیثو کښې تعارض او دهغې دفع:** باب القسامه کښې صاحب مشکوة صرف دوه احادیث ذکرکړی دی اوامام مسلم رحمه الله ډیر احادیث ذکر کړی دی. په دغه احادیثوکښې یوڅو الفاظ داسې دی په کوم کښې چه خپل مینځ کښې تضاداوتعارض دې. ځکه چه دَ قسامه نور روایاتوته کتلوسره یوڅوخبرې مخې ته راځی.
① بعضې روایاتو کښې دَ بینه ذکر دې اوبعضې کښې دَ بینه تذکره نشته دې.
② دَ بعضې روایاتونه معلومیږی چه اول دَ مقتول دَ اولیاء نه دَ قسم خوړلو مطالبه کړې شوې ده اوبعضې نه معلومیږی چه اول دَمدعا علیهم نه دَ قسمونو مطالبه کړې شوې ده
③ دَ بعضې روایاتونه معلومیږی چه یهودیانو قسمونه خوړلې وو او بعضې نه معلومیږی چه هغوی انکار کړې دې
④ بعضې روایاتو کښې راغلی دی چه دَمقتول دیت نبی کریم اداکړې وو او بعضې روایاتو کښې دی چه یهودیانو دیت اداکړې وو. دَ دې تضاد وضاحت داسې دې چه کوم ځائی په روایاتو کښې دَ بینه تذکره نشته دې نو هغه دَعدم وجدان بینه دَ وجې نه دې ګنی دَ بینه ذکر موجود دې او چرته چه دَ مدعی نه دَ قسم مطالبه معلومیږی نو هغه په حقیقت کښې استفهام انکاری دې. او چرته چه دَ روایاتونه معلومیږی چه یهودیانو قسمونه خوړلی دی نو په اصل کښې یهودیانو دَ محکمه قضاء نه بهر قسمونه خوړلی وو لیکن په

عدالت كښې ئې انكار او كړو. او چرته چه په رواياتو كښې ذكر دى چه ديت نبى كريم اداكړې نو په اصل كښې د ديت څه حصه نبى كريم اداكړې او څه حصه يهوديانو اداكړه. تنازعه دفع كولو د پاره ديرش اوښان نبى كريم وركړل او اويا اوښان يهوديانو وركړې وو. د دې تفصيلاتو نه پس به اوس په احاديثو باندې پوهيدل آسان شي

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [٢٥٢١] په قسامت كښې د قسم اخستلو بيان

٢٥٢١-[١] (١) ١ عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، وَسَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، أَنَّهُمَا حَدَّثَا ٢ «أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ سَهْلٍ وَمُحَيِّصَةَ بْنَ مَسْعُودٍ أَتَيَا خَيْبَرَ، ٣ فَتَفَرَّقَا فِي النَّخْلِ، ٤ فَقُتِلَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَهْلٍ، ٥ فَجَاءَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ سَهْلٍ وَحُوَيِّصَةُ وَمُحَيِّصَةُ ابْنَا مَسْعُودٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ،

**ترجمه:** ١ حضرت رافع ﷺ ابن خديج او سهل ﷺ ابن حثمه دواړه بيان كوي ٢ چې عبدالله بن سهل او محيصه ﷺ ابن مسعود خيبر ته راغلل، ٣ نو (يوه ورځ د سيل كولو سره) دواړه د كجورو په وڼو كې يو د بل نه جدا شو (يعني يو يو طرف ته لاړل. او دويم بل طرف ته) ٤ عبدالله ابن سهل (يواځي پيدا كيدو سره) چا قتل كړي ٥ (د دې حادثې نه وروسته) عبد الرحمن ابن سهل (چې د مقتول حقيقي ورور وو) او د مسعود دواړه ځامن حويصه ﷺ او محيصه ﷺ (چې د مقتول د تره ځامن وو) د نبي كريم ﷺ په خدمت كې حاضرشو ،

**حل اللغات:** ① فَتَفَرَّقَا: ديو بل نه جدا شول

١ فَتَكَلَّمُوا فِي أَمْرِ صَاحِبِهِمْ فَبَدَأَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ، ٢ وَكَانَ أَصْغَرَ الْقَوْمِ، فَقَالَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (كَبِّرِ الْكُبْرَ) - ٣ قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ: يَعْنِي لِيَلِيَ الْكَلَامَ الْأَكْبَرُ - ٤ فَتَكَلَّمُوا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اسْتَحِقُّوا قَتِيلَكُمْ ٥ أَوْقَالَ صَاحِبَكُمْ بِأَيْمَانِ خَمْسِينَ مِنْكُمْ

**ترجمه:** ١ او د خپل عزيز مقتول په باره كې يې مقدمه پيش كړه، عبد الرحمن چې د خبرو شروع وكړه (چې د مقتول حقيقي ورور وو) ٢ او په دريو سړو كې د ټولو نه كم عمره وو، نبي كريم ﷺ هغه ته وفرمايل چې د خپل مشر د مشرۍ خيال وساته (يعني په تاسو دريو سړو كې چې كوم مشر وي، هغه دې خبرې شروع كړي) ٣ حضرت يحيى ابن سعيد (چې د دې حديث يو راوي دى) وايي چې د دې ارشاد ګرامي نه د حضور ﷺ مراد دا وو چې كوم

١) اخرجه البخاري في كتاب الأدب/باب باب إكرام الكبير. ويبدأ [ص:٣٤] الأكبر بالكلام والسؤال (رقم-٦١٤٢) ومسلم في كتاب القسامة والمحاربين والقصاص والديات/باب القسامة (رقم-٢ - (١٦٦٩) والترمذي في كتاب الديات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في القسامة (رقم-١٤٢٢) والنسائي في كتاب القسامة/بابذكر اختلاف الفاظ الناقلين لخبر سهل فيه (رقم-٤٧١٢) ومالك في الموطا كتاب القسامة/باب تبدئة أهل الدم في القسامة (رقم-١)

سړی د ټولو نه مشر وي، نو هغه د خبرو ذمه وار وي.④ نو د دې نه وروسته په هغوئ کې مشر خبري شروع کړه، نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل که په تاسو کې پنځوس سړي قسم واخلي، نو تاسو د خپل مقتول،⑤ يا د مقتول په ځای دا يي وفرمايل چې د خپل ملګري د خون بها يا قصاص اخستو مستحق يئ ،

**حل اللغات:** ①كَبِّرِ الْكُبْرَ: د مشر د مشرئ خيال اوساته ②لِيَلِيَ الْكَلَامَ الْأَكْبَرُ: يعنی مشر دخبرو ذمه وار وی ③اسْتَحِقُّوا قَتِيلَكُمْ: نو تاسو د خپل مقتول دحق (خون بها يا قصاص) اخستو مستحق يئ. ⑤ أَيْمَانِ: قسم

① قَالُوا: يَارَسُولَ اللّٰهِ أَمْرٌ لَمْ نَرَهُ قَالَ: ② فَتُبَرِّئُكُمْ يَهُودُ فِي أَيْمَانِ خَمْسِينَ مِنْهُمْ ③ قَالُوا: يَارَسُولَ اللّٰهِ قَوْمٌ كُفَّارٌ ④ فَفَدَاهُمْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ قِبَلِهِ. ⑤ وَفِي رِوَايَةٍ تَحْلِفُونَ خَمْسِينَ يَمِينًا ⑥ وَتَسْتَحِقُّونَ قَاتِلَكُمْ أَوْصَاحِبَكُمْ ⑦ فَوَدَاهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عِنْدِهِ بِمِائَةِ نَاقَةٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① هغوئ عرض اوکړو چې يا رسول الله! ﷺ دا خو داسې څيز دی، چې مونږ نه دی ليدلی (يعنې مونږ ته قطعًا دا نه ده معلومه چې مقتول کوم سړي قتل کړي دی) ② حضور ﷺ ورته وفرمايل چې پنځوس يهوديان دي قسم اخستو سره (ستاسو د دې شبې نه) تاسو پاك کړي (يعنې هغه دي دا قسم واخلي، چې مقتول مونږ نه دی قتل کړي. او دغه شان په هغوئ چې د قتل کولو شبه يا الزام دی، هغه به دوي ختم کړي)③ هغوئ عرض اوکړو چې يا رسول الله! ﷺ هغه خو کا فران دي (د هغوئ په قسمونو څه اعتبار دی)④ نو رسول الله ﷺ (د فتنې د دفع کولو د پاره) د مقتول وارثانو ته د خپل طرف نه خون بها اداکړه ⑤ او په يو روايت کې دا الفاظ دي چې حضور ﷺ وفرمايل تاسو پنځوس قسمونه واخلی.⑥ او د خپل مقتول يا دا يي وفرمايل چې د خپل ملګري د خون بها مستحق شی. ⑦ د دې نه وروسته حضور ﷺ د خپل طرف نه (د بيت المال نه) سل اوښان په خون بها کې ادا کړل. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ⑥أَمْرٌ: کار. معامله ⑦لَمْ نَرَهُ: چه مونږ نه ده ليدلې ⑧فَتُبَرِّئُكُمْ: برى دې کړى تاسو. خلاص دې کړی تاسو ⑨فَوَدَاهُ: ادا ئې کړلو

**تسهيلات:**

**قوله:** فَتَفَرَّقَا فِي النَّخْلِ:

**د حديث مذکور پس منظر:** يعنی عبدالله بن سهل ﷺ اوحويصه بن مسعود ﷺ خيبرته تلی وو ځکه چه د خيبرد فتح کيدونه پس د هغې زمکه په مسلمانانو کنبې تقسيم شوې وه. نومسلمانان به کله کله د خپلو زمکو د کتلو په غرض سره هلته تلل. يهوديان خوهسې هم د مسلمانانو ځانی دښمنان وو. دې نه علاوه دا چه هغوی په دغه زمکوباندې خپل حق

كړلو په دې وجه به هغوى هلته وخت په وخت حالات خرابولو سره بدامنى خوروله. هم په دغه ماحول كښې دا دوه صحابه كرام رضي الله عنهما هلته تلي وو اوكله چه دَ يوبل نه جداشو نوموقع موندو سره دَخيبريهوديانو عبدالله بن سهل رضي الله عنه په باغونوكښې شهيدكړو هم دغه يهوديانو روستو په خيبركښې حالات نور خراب كړل اوبدامنئى سره فحاشى هلته بنه عروج ته اورسيده نوحضرت عمرفاروق رضي الله عنه په خپل دورخلافت كښې هغوى دَ نبى كريم دَ فرمان مطابق دَ شام دَ زمكې طرف ته ورديكه كړل.

**قوله:**(كَبِّرِالْكُبْرَ)-:

**د حديث فوائد:** ① په حدودوكښې وكالت جائز دې اودَ غائب سره سره دَحاضر وكالت هم جائز دې.

② يودا آدب ملاؤشو چه احترام اواكرام اودَ آدابو تقاضا داده چه په مجلس كښې دې كشران چپ ناست وى اوخبرې اترې دې مشران حضرات كوى. الكاشف ۱۱۷/۷.

③ دلته دَمقتول ولى اوحقيقى رور حضرت عبدالرحمن بن سهل رضي الله عنه موجود وو ليكن دكشروالى دَ وجې نه نبى كريم دكلام كولوحكم نورو ته وركړو كوم چه مشران وو اودَتره خامن ئې وو. ددې حديث نه داخبره هم ثابته شوه چه قسامت كښې دَمدعى نه مخكښې قسم واخستې شى دادَجمهورو مسلك دې. دَ احنافو دليل راتلونكى روايت كښې دې.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۲۵۳۲] قسامت كښې دَقسم شروع دچا څخه؟

۲۵۳۲-[۲] (۱) ① عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ: «أَصْبَحَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ مَقْتُولًا بِخَيْبَرَ، ② فَانْطَلَقَ أَوْلِيَاؤُهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرُوا ذٰلِكَ لَهُ، ③ فَقَالَ: أَلَكُمْ شَاهِدَانِ يَشْهَدَانِ عَلَى قَاتِلِ صَاحِبِكُمْ، ④ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ لَمْ يَكُنْ ثَمَّ أَحَدٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ،

**ترجمه:** ① حضرت رافع ابن خديج وايي چې په انصارو كې يو سړى (يعني عبد الله ابن سهل) په خيبر كې قتل شو، ② د هغه وارثان (يعني د هغه ورور او د تره خامن) د رسول الله ﷺ په خدمت كې حاضر شو، او خپله مقدمه يي پيش كړه. ③ حضور ﷺ هغو ته وفرمايل چې آيا ستاسو سره دوه شاهدان شته؟ چې ستاسو د مقتول د قاتل په باره كې شاهدي وركړي. ④ هغوئ عرض اوكړو چې يا رسول الله ﷺ هلته يو مسلمان خو موجود نه وو،

**حل اللغات:** ① ثَمَّ: اسم اشاره ده هلته.

۱) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الديّات/باب في ترك القود بالقسامة (رقم-۴۵۲۴) والترمذى فى كتاب الأحكام عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء في أنّ البيّنة على المدّعي. واليمين على المدّعى عليه (رقم-۱۳۴۲)

[۱] وَإِنَّمَا هُمْ يَهُودُ وَقَدْ يَجْتَرِؤُنَ عَلَى أَعْظَمَ مِنْ هٰذَا [۲] قَالَ: فَاخْتَارُوا مِنْهُمْ خَمْسِينَ فَاسْتَحْلِفُوهُمْ، فَأَبَوْا، [۳] فَوَدَاهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عِنْدِهٖ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] البته یهودیان وو، چې په ظلم کولو فتنه او فساد خورولو او په حیله ګیری کې ډیر مشهور دی. هغه خو د دې نه هم د لوی کار جرات کوي (لکه انبیاء قتلول. په کلام الله کې تحریف کول او احکام خداوندي نه صریحًا سرکښي کول) [۲] حضور ﷺ ورته وفرمایل چې ښه دی تاسو د هغوئ نه پنځوس سړي منتخب کړي. او هغوئ نه قسمونه واخلي. لیکن د مقتول وارثانو، د یهودیانو د قسم اخستو نه انکار وکړي (ځکه چې هغه پوهیدل چې هغه دومره مکار دي چې دروغ قسمونه به واخلي) [۳] نو رسول الله ﷺ د هغه مقتول خون بها د خپل طرف نه اداء کړه، (ابوداود)

**حل اللغات:** (۲) يَجْتَرِؤُنَ: جرأت کوی.

**د احنافو استدلال:**

**تسهیلات:**

**قوله:** أَلَكُمْ شَاهِدَانِ:

**د احنافو تائید:** دا حدیث په دې باندې واضح دلالت کوی چه په قسامت کښې دَ مدعی نه اول ګواه طلب کولې شی که چرې ګواه نه وی نوبیابه دَمدعاعلیه نه قسم اخستې شی اوهم دغه دَ شریعت عام ضابطه هم ده اوهم په دې باندې دَ احنافو عمل هم دې (البینة علی المدعی والیمین علی من انکر)

احناف وائی چه دې روایت نه وړاندې روایت کښې اجمال دې او ممکن دی چه بیانولو کښې دَ راویانو نه تقدیم اوتاخیر شوې وی لهذا دَدې مجمل په مقابله کښې دا مفسرروایت اخستل زیات مناسب دی اودَصاحب مشکوة طرزبیان هم دغه شان دې چه هغه راتلونکې روایت دَ تفسیرپه توګه او دَ وضاحت په توګه راوړی.

# [۳] بَابُ قَتْلِ أَهْلِ الرِّدَّةِ وَالسِّعَايَةِ بِالْفَسَادِ]

## دَ مرتد او فساديانو د قتلولو بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه أحد وعشرون حديثاً مشتملة على خمس مسائل:**

① النهي عن التعذيب بالنار: ۱، ۲، ۹.

② النهي عن الفساد ذات البين: ۵، ۶، ۱۲، ۱۵.

③ النهي عن المثلة: ۷، ۸.

④ النهي عن التعلق بالمشركين: ۱۳، ۱۴.

⑤ قتل أهل الردة والبغاة وقطاع الطريق والسحرة: ۱، ۳، ۴، ۷، ۱۰، ۱۱، ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۲۱.

قال الله تعالى ﴿ إِنَّمَا جَزَٰٓؤُاْ ٱلَّذِينَ يُحَارِبُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَيَسْعَوْنَ فِى ٱلْأَرْضِ فَسَادًا أَن يُقَتَّلُوٓاْ أَوْ يُصَلَّبُوٓاْ ﴾ [سورة المائدة الایه: ۳۳].

**قوله:** أَهْلِ الرِّدَّةِ

**د ارتداد لغوی معنی:** دا باب دَمرتددَ قتل اوفساد خورونکودَقتل متعلق دي ارتدیرتدارتدادا، واپس کيدلو او راګرځيدلوپه معنی کښې دي کوم سړي چه دَاسلام قبلولونه پس دَ اسلام نه اوړی هغه ته مرتدوائی.

**د ارتداد اصطلاحی تعریف:** شاه ولی الله رحمه الله فرمائی دَ دايمان موجودوالی نه پس په ژبه دَ کفرکلمه راوړلونوم ردة ارتداددي. يعنی چه په ژبه باندې ئی داسې کلمه راشی چه دَ دين دَ ضرورياتونه په انکار باندې مبنی وی يا په تکذيب باندې مبنی وی يادَ دين دَ يوحکم په استهزاء باندې مبنی وی يا قصداً داسې فعل اوشی چه په استهزاء او استخفاف دين باندې دلالت کوی.

**د ارتداد شرطونه:** دَ ارتداددَپاره دَ سړی عاقل کيدل شرط دي او بالغ کيدل هم شرط دي لهذا په نابالغ ماشوم يا مجنون باندې دَارتدادحکم نه نافذ کيږی کوم سړي چه مرتدشی هغه ته به دوباره اسلام پيش کولې شی که هغه بيا په اسلام کښې داخل شو نوټيك ده ګنی هغه به قتل کولې شی.

**دَ ارتدادصورتونه:**

① دَالله تعالی ذات او صفات کښې دَ يوانکار يا توهين کول.

② په انبياء کرام کښې دَچانه انکارکول يا توهين کول. دَ الله تعالی اودَهغه دَ رسول ﷺ

طرف ته څه نامناسب خبره منسوب کول،

③ دَ مونځونو او نورو عباداتو انکارکول اودَدې توهين کول،

④ دَ کفرکلمات وئيل اودَ موجب کفرافعالو ارتکاب کول، دَ قرآن مجيدنه انکارکول يا دا ناقص اومحرف گنړل يا قولاً اوفعلاً دَدې توهين کول،

④ حرام حلال اوحلال حرام گنړل، دَ قيامت انکارکول يا دې سره متعلق دَ شريعت منافي عقيده سائل.

⑤ دَ علم دين اوعلماء اسلام متعلق دَ موجب کفرقول اوفعل ارتکاب کول.

⑥ دَعالم بالا اوفرښتو نه انکارکول يادَهغې توهين کول، دَ جنت اودوزخ نه انکارکول يا دې پورې توقې کول دا ټول دَ ارتداد اقوال او افعال دی.

**دمرتدينو خلاف د جهاد کولو وجوب:** دَمرتدينوخلاف جهادکول ضروری وی. صديق اکبر ﷺ دَ نبی کريم دَ وصال نه پس دَ مرتدينوخلاف دَ يوکال پورې جهادکړې وو. دَ طرفين شپيته زره کسان مړه شوی وو نوهله په جزيره عرب کښې اسلام دغه ځائی ته اورسيدلو کوم چه په عهدنبوی ﷺ کښې وو.

**مرتد ته د اسلام دعوت ورکول:** مرتدته دَاسلام دعوت ورکول مستحب حکم دې واجب نه دې ځکه چه يوځل واجب دعوت هغه ته رسيدلې دې. که چرې مرتدمهلت غواړی نودَامام شافعي رحمه الله په نيزدې ورځو پورې مهلت ورکول واجب دی. بعضې علماء فرمائی چه مهلت ورکول واجب او ضروری نه دی ځکه (من بدل دينه فاقتلوه) چه کوم حديث دې په دې کښې دَ مهلت ورکولوهيڅ ذکر نشته دې. بهرحال دريوورځوپورې به دَدغه مرتدخبره اوريدې شی اوهغه له دَ ښه پوهيدلو اوپوهه کولوموقع ورکول پکاردی اوبهترداده چه هغه په جيل کښې اوساتلې شی. که چرې هغه منع نه شونوهغه به قتل کولې شی.

**د ښځې د ارتداد په سزا کښې ۲ مذاهب:**

① ائمه شوافعو رحمهم الله وغيره دَ مرتدې ښځې دَ قتل قائلين دی.

② دَاحنافو په نيز ښځه که دَ اسلام نه واوړی نو دَهغې سزا جيل دې اوپوهه کول دی قتل کول نه دی

**د اول فريق اول دليل:** ①دَحديث عموم د دوی مستدل دې په کوم کښې چه دی (من بدل دينه فاقتلوه) اودا حکم مطلق دې. د نارينه او زنانه د حکم تفريق په کښې نشته نو دا حديث دَمرتدې ښځې قتل ته هم شامل دې.

**داول فريق داول دليل جواب:** اګرچې دلته مطلقاً په کلمه د ،،من،، کښې عموم دې سرو او ښځو ټولو ته شامليږی خو په نورو احاديثو کښې د ښځې د قتلولوځخه استثناء

راغلي ده. د هغه احاديثو په وجه به دلته د ،،من،، د عموم څخه د ښځې تخصيص کوو.

**د اول فريق دويم دليل:** ② دحضرت معاذ رضی الله عنه حديث د دوی مستدل دې په هغې کښې دی «ايما امراة ارتدت عن الاسلام فادعها فان عادت فبها وان لا فاضرب عنقها» دلته دا صريحی حديث دې که مرتده ښځه وی نوهغه به هم اول اسلام طرف ته رابللې شی که دوباره اسلام ته راؤنه گرځيده نوځتې نې کټ کړه

**داول فريق ددويم دليل جواب:** د معاذ رضی الله څخه د ښځې د نه قتلولو روايت هم منقول دې نوهرکله چې د يو راوی دوه احاديث په خپل مينځ کښې متعارض شی دواړه به ساقطيږی. او قابل استدلال به نه پاتې کيږی.

**ددويم فريق دلائل:** ① دابن عباس رضی الله عنهما حديث دې «لاتقتلو امراة اذا ارتدت» يعنی که چې ښځه مرتده شی نو هغه مه قتلوئ. دا به ابن عباس رضی الله عنهما د نبی عليه السلام څخه اوريدلې وی د ځانه په حدودو کښې څوک خبره نشی کولې

② په ډيرو احاديثو کښې دَ ښځې دَ قتل کولو نه نبی کريم منع فرمائيلې ده.

③ ښځه ناقص العقل ده او دَ دښمن په صفونو کښې يوځائی کيدوسره دَ جنگيدو قابل هم نه ده البته که يوه کافره ښځه سرداری کوی يا مال ورکوی نوهغه به قتل کولې شی

**قوله:** وَالسِّعَايَةِ بِالْفَسَادِ:

**د سعاية مصداق:** دادَ ساعی جمع ده چه دَ محنت اوکوشش کولو په معنی کښې دې دلته دَدې نه داسې سړې مراددې چه په دين اسلام اومسلمانانو کښې دَ فسادخورولوکوشش کوی. دَ سعاة مصداق لاروهونکی ډاکوان اوقطاع الطريق قسم خلق دی نو ﴿ إِنَّمَا جَزَٰٓؤُا۟ ٱلَّذِينَ يُحَارِبُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ ﴾ [سورة مائدة الايه ۳۳] آيت کښې هم دَدې قسم خلقوطرف ته اشاره موجودده

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۲۵۲۳] دَ مرتد د قتلولو حکم

۲۵۲۳–[۱] (۱) ① عَنْ عِكْرِمَةَ قَالَ: «أُتِيَ عَلِيٌّ بِزَنَادِقَةٍ فَأَحْرَقَهُمْ ② فَبَلَغَ ذَلِكَ ابْنَ عَبَّاسٍ فَقَالَ: ③ لَوْ كُنْتُ أَنَا لَمْ أُحْرِقْهُمْ لِنَهْيِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ④ "لَا تُعَذِّبُوا بِعَذَابِ اللّٰهِ". ⑤ وَلَقَتَلْتُهُمْ لِقَوْلِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ بَدَّلَ دِينَهُ فَاقْتُلُوهُ"». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

۱) اخرجه البخار ی فی کتاب استتابة المرتدّين والمعاندين وقتالهم /باب حکم المرتدّ والمرتدّة واستتابتهم (رقم-۶۹۲۲) و ابو داود فی کتاب الحدود/باب الحکم فيمن ارتدّ (رقم-۴۳۵۱) والترمذی فی کتاب الحدود عن رسول الله صلّی الله عليه وسلّم/باب ما جاء فی المرتدّ (رقم-۱۴۵۸) والنسائی فی کتاب تحريم الدّم/باب الحکم فی المرتدّ (رقم-۴۰۵۹) کتاب الحدود/باب المرتدّ عن دينه (رقم-۲۵۳۵)

**ترجمه:** [١] حضرت عكرمه رضي الله عنه وايي چې (يوځل) څه زنديقان د حضرت علي كرم الله وجهه په خدمت کې راوستل شو ، نو حضرت هغه وسوځول، [٢] ابن عباس رضي الله عنهما چې د دې خبري نه خبر شو ، نو وي فرمايل [٣] كه زه وې نو ما به نه وه سوځلى، ځكه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم دا ممانعت فرمايلى دى [٤] چې يو سړي په داسې عذاب کې مه مبتلاء كوى چې د الله تعالى د عذاب په شان وي (لكه ځوك په اور کې سوځول) [٥] بلكه ما به هغه قتل كړي وو، ځكه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې كوم سړى خپل دين بدل كړي هغه قتل كړي. (بخاري)

**حل اللغات:** ① بِزَنَادِقَةٍ: زنادقه دَ زنديق جمع ده، په دين كښې الحاد كونكې، ملحد فى الدين.

**تسهيلات:**

**قوله:** أُتِيَ عَلِيٌّ بِزَنَادِقَةٍ

**دزنديق په تفسير كښې مختلف اقوال:** ① زنديق يو داسې سړې دې چه دَاسلام دَ حقانيت اقراركوى ليكن دَ دين اسلام احكامات او دَ دين دَ ضرورياتو داسې تفسير اوتشريح كوى كوم چه دَ سلف صالحين اوصحابه و تابعينو دَ تشريح اوتوضيح خلاف وى ياد شريعت يو ثابت شوې قطعى حكم مثلاً جنت دوزخ منى ليكن دَدې دواړو دَ خپل طرف نه دَځان نه جوړشوې تشريح كوى او وائى چه جنت څه خاص ځائى اومقام نه دې بلكه دَجنت نه مراد قلبى راحت اوتسلى ده اودَ دوزخ نه مراد قلبى غم او پريشانى ده په خارج كښې دَدې دواړو هيڅ حقيقت نشته دې.

② زنديق هغه وى چه دَ اسلام منافى عقيده لرى اودَهغې خورونه او اظهارهم كوى اودې سره دَ اسلام دعوىٰ هم كوى.

③ زنديق دَ مجوسيانودَ يوقوم نوم دې چه دَزرتشت مجوسى دَځان نه جوړشوې كتاب "زند" منونكى دى ليكن په عام اصطلاح كښې هرملحدفى الدين ته زنديق وئيلى شى.

**د حضرت على د خدائى قائلين:** بعضې علماؤ دَ عبدالله بن سبايهودى منافق دَقوم كسانو ته زنديق وئيلې دې. كومو چه حضرت على رضي الله عنه ته خدائى اووئيل حضرت على رضي الله عنه هغوى منع كول ليكن دغه خلقو اووئيل چه حضرت على رضي الله عنه تواضع كوى هم دغه على پورته په عرش باندې الله وو (العياذبالله) اوښكته دَحضرت على رضي الله عنه په شكل كښې راكوزشوې دې. حضرت على رضي الله عنه هغوى پوهه كړل مگر داخلق منع نه شو ځكه چه داخلق دَفتنه اوفساد خورولو دَپاره اسلام كښې داخل شوې وو

**د مذكوره خلقو په اور كښې سوزول:** حضرت على رضي الله عنه دَهغوى دَ سوزولو حكم وركړو اوكندې اوكنستلې اوپه هغې كښې اور بل كړو. اودغه ټول ئى اوسيزل. كله چه حضرت على رضي الله عنه هغوى اوسيزل نوحضرت ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل كه چرې زه دَعلى په ځائى

باندې وې نوما به هغوی په اورکښې د سیزلو په ځائې قتل کول یا په بل څه ذریعه به مې وژل ځکه چه د اور په ذریعه قتل کول د الله تعالی حق دې.

**په زندیق او منافق کښې فرق:** په زندیق اومنافق کښې دا فرق وی چه منافق خپلې غلطې عقیدې پټوی لیکن زندیق خپل عقائد ښکاره کوی.

**د زندیق د توبې حکم:** علماؤ لیکلی دی د زندیق توبه معتبر نه ده لهذا د هغه د توبه او استغفار هیڅ ضرورت نشته دې. هغه قتل کول دی لیکن بعضې نور علماء فرمائی د زندیق توبه جائز اوقبوله ده. امام نووی رحمه الله په شرح مسلم کښې لیکلی دی چه راجح اوصحیح دغه دی چه د زندیق توبه قبوله ده ځکه چه د توبه احادیث مطلق دی اوصحیح دی اګرچه د زندیق توبه قبلیدو اونه قبلیدو کښې پنځه اقوال دی.

**د حضرت علی د خپل اجتهادی غلطۍ اقرار:** د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما رائې چه کله حضرت علی رضی الله عنه واوریده نوزنادقه سوزول ئې بندکړل اووئې فرمائیل د ابن عباس قول رښتیادې. معلومه شوه چه حضرت علی رضی الله عنه د اجتهاد په توګه هغوی سوزول دې د پاره چه د نورو د پاره عبرت جوړشی اوحضرت علی رضی الله عنه ته د خدائی وئیلودا جرم نورڅوک اونه کړی.

**[۳۵۲٤] په اور سره د سوزولو څخه ممانعت**

۳۵۳۳ - [۲] (۱) [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«إِنَّ النَّارَ لَا يُعَذِّبُ بِهَا إِلَّا اللّٰهُ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما وایي چې رسول الله وفرمایل [۲] د اور په عذاب کې خو یواځې الله جل جلاله يي مبتلا کوي (نو د الله جل جلاله نه سوا د بل چا د پاره مناسب نه دی چې هغه انسان ته دهغه د یوجرم په وجه په اورکې د سوځولو سزا ورکړي) بخاري

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ النَّارَ لَا يُعَذِّبُ بِهَا إِلَّا اللّٰهُ: ژوندي په اور کښې د سیزلو اختیار صرف الله جل جلاله لره دې چې الله جل جلاله به خینې عاصی مسلمانان او کفار په اور کښې سیزی.

**[۳۵۲۵] د خوارجو د ښکاره کیدو پیشن ګوئی**

۳۵۳۵ - [۳] (۲) [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: [۲] "«سَيَخْرُجُ قَوْمٌ فِي آخِرِ

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسیر /باب التودیع (رقم-۲۹۵٤)
۲) اخرجه البخاری فی کتاب استتابة المرتدین والمعاندین وقتالهم /باب قتل الخوارج والملحدین بعد إقامة الحجة علیهم (رقم-۶۹۳۰) ومسلم فی کتاب الزکاة /باب التحریض علی قتل الخوارج (رقم-۱۵٤ - (۱۰۶۶)) و ابو داود فی کتاب السنة /باب فی قتال الخوارج (رقم-٤۷۶۷) واحمد فی المسند: ۱/۱۳۱

الزَّمَانِ ③ حُدَّاثُ الْأَسْنَانِ سُفَهَاءُ الْأَحْلَامِ ④ يَقُولُونَ مِنْ خَيْرِ قَوْلِ الْبَرِيَّةِ ⑤ لَا يُجَاوِزُ إِيمَانُهُمْ حَنَاجِرَهُمْ ⑥ يَمْرُقُونَ مِنَ الدِّينِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ ⑦ فَأَيْنَمَا لَقِيتُمُوهُمْ فَاقْتُلُوهُمْ ⑧ فَإِنَّ فِي قَتْلِهِمْ أَجْرًا لِمَنْ قَتَلَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت علي کرم الله وجهه وايي چې ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل ② ډير نزدې د دې زماني په آخر کې به څه داسې خلق پيدا شي ③ چې خلمي به وي د سپك عقل والا به وي، ④ خلقو ته به نبي خبرې بيانوي، ⑤ ليکن د هغوئ ايمان به د هغوئ د حلق نه مخې ته نه ځي (د ايمان نه مراد مونځ دی، يعنی د هغوئ مونځونه به نه قبليږي)، ⑥ او دا خلق به د دين [يعنی د امام وخت او د علمايي حق د اطاعت] نه داسې وځي، څنګه چې غشی د ليندۍ نه وځي، ⑦ په تاسو کې چې کوم سړی د داسې خلقو سره يو ځاي شي، نو هغه دې قتل کړي، ⑧ ځکه چې د هغوئ د قتلولو به هغه سړي ته د قيامت په ورځ انعام ورکول کيږي، کوم څوك چې هغه قتل کړي، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① حُدَّاثُ: دَ حديث جمع ده مګر خلاف القياس دې. کم عمر ځوانان. ② الْأَسْنَانِ: دَ سن جمع ده غاښونوته وائی. دَعمرنه کنايه ده. ځکه چه دَ غاښونو په اعتبارسره عمربدليږی. ③ سُفَهَاءُ: دَ سفيه جمع ده کمزوری عقل والا. بې عقل اوبې وقوف ④ الْأَحْلَامِ: دَ حِلم جمع ده په حاء باندې کسره ده. عقل ته وائی. ⑤ الْبَرِيَّةِ: دَزمکې دَپاسه مخلوق دَپاره وئيلې شی. ⑥ لَا يُجَاوِزُ: تجاوز نه کوی. تيريږی نه ⑦ حَنَاجِرَهُمْ: دَ حنجرة جمع ده، حلقوم او مرئ مراد ده. ⑧ يَمْرُقُونَ مِنَ الدِّينِ: مرق يمرق مرقاً دَ نصرينصرنه دَوتلوپه معنی کښې دې. ⑨ الرَّمِيَّةِ: د ويشتلو آله. لينده.

**تسهيلات:**

**قوله:** يَقُولُونَ مِنْ خَيْرِ قَوْلِ الْبَرِيَّةِ:

**د مشکاة په نسخو کښې اختلاف:** يعنی دَ خوخو خلقو ښکلې خبرې نقل کولوسره به بيانوی. دلته داخبره دَ ياد ساتلوده چه دَ مشکوة شريف په ټولو نسخوکښې عبارت هم دغه شان دې چه دَ خير لفظ په قول باندې مقدم دې مګر په مصابيح کښې دَ قول لفظ دَخير په لفظ باندې مقدم دې عبارت داسې دې "من قول خيرالبرية"

**د خير البرية په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① شيخ اشرف رحمه الله فرمائی دَ "خير البرية" نه مراددادې چه دَنبی کريم ﷺ دَ تعليماتوخبرې به کوی

② بعضې دَ "خيرالبرية" نه مراد قرآن اخستې دې يعنی دَ قرآن پاك آياتونه به وائی مګر په هغې باندې به ايمان نه راوړی ايمان به ئې صرف په ژبه باندې وی زړه به ئې دَ ايمان نه خالی وی.

**قوله: يَمْرُقُونَ مِنَ الدِّينِ:**

**د مذکوره جملې مفهوم:** د نصرينصرنه دَوتلو د معنى كښې دې "الدين" نه ملاعلى قارى د وخت د برحق بادشاه تابعدارى مراد اخستې ده يعنى دين نه به داسې خارج شى لكه په ښكار باندې غورزولې شوې غشې د ښكار د مينځ نه په تيزئى سره اوځى اود وينې نه بالكل ككړ كيږى نه. دا خلق به هم د اسلام نه صفاصفا اوځى اوپه دوى باندې به داسلام هيڅ اثر نه ښكارى. ددې پيشنګويئى مصداق خوارج دى.

**د خوارجو شرعى حيثيت څه دې؟:** -علامه خطابى رحمه الله د خوارج متعلق فرمائى چه داد مسلمانانونه يوه فرقه ده مګر ګمراهئى دوى راګيرکړى دى ددوى ذبيحه حلال ده اودهغوى ښځوسره نكاح جائز ده. د حضرت على رضى الله عنه نه د خوارج باره كښې تپوس اوكړې شو چه آيا داخلق كافران دى؟ هغوى اوفرمائيل چه د كفرنه خوداخلق تختيدوسره تلى دى. تپوس اوكړې شو آيا دا منافقان دى؟ هغوى په جواب كښې اوفرمائيل منافقان ذكر نه كوى داخلق خو الله تعالى سحر اوماښام يادوى. تپوس اوكړې شو بياداخلق څوك دى د دوى شرعى حيثيت څه دې؟ حضرت على رضى الله عنه اوفرمائيل دا يوه فرقه ده څوك چه ګمراهئى راګيركړى دى. چارښتياوئيلى دى.

ایک ہی بس لفظ سے ہے دونوں فرقوں کا خروج — خائے خر سے خارجی اور رائے خر سے رافضی

توضيحات ۳۱۴/۱باندې د منكرين تقدير تكفير اوعدم تكفير بحث هم اوګورئى. د حضرت على رضى الله عنه اوحضرت معاويه رضى الله عنه په مينځ كښې د مشاجرې په وخت د تحكيم د واقعې په موقع باندې خوارج پيدا شوې وو. دا د حضرت على رضى الله عنه ملګرى وو اوهم دهغوى خلاف ئې خروج اوكړو او كوفې سره "حروارا" مقام كښې جمع شو ددوى شمير شپږ زره وو. په جنګ نهروان كښې حضرت على رضى الله عنه هغوى ته ماتې وركړه اوقتل ئې كړل. د نن صبا د سلطنت عمان فرمانروا سلطان قابوس د خوارج نه دې اوپه دغه ملك كښې د خوارج زور دې. نور تفصيل راروان دې.

### [۲۵۳۶] د خوارجو د قاتل دپاره د حق پرسته كيدو زيرې

۲۵۳۶-[۴] (۱)① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:② "«يَكُونُ أُمَّتِي فِرْقَتَيْنِ③فَيَخْرُجُ مِنْ بَيْنِهِمَا مَارِقَةٌ يَلِي قَتْلَهُمْ أَوْلَاهُمْ بِالْحَقِّ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**① او حضرت ابو سعيد خدري رضى الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل② (څه زمانه وروسته) زما امت به په دوو فرقو كې تقسيم شي.③ په هغه دوارو فرقو كې به يو داسې جماعت پيدا شي چې (د حق د اطاعت نه ) وتونكي به وي، د دې جماعت د وژلو

۱) اخرجه مسلم فى كتاب الزكاة/باب ذكر الخوارج وصفاتهم (رقم-۱۵۱ - (۱۰۶۴) واحمد فى المسند: ۳۲/۳

ذمه واري به (په دي دوو فرقو کي) هغه سړی پوره کوي چې حق ته نزدې وي، (مسلم)

**حل اللغات:** ①مَارِقَةٌ: نصر ينصر نه دَ وتلو په معنی کښې دې. ②يَلِي: ذمه واری واخلی ③أَوْلَاهُمْ: زيات حقدار.

**تسهيلات:**

**قوله:** يَكُونُ أُمَّتِي فِرْقَتَيْنِ:

**د فرقتين مصداق:** دې دواړو فرقونه دَحضرت علی رضی الله عنه اوحضرت معاويه رضی الله عنه ملګری دوه فرقې مراددی په دوی کښې يوه فرقه شيعان علی يعهنی حاميان علی رضی الله عنه په نوم سره مشهوره وه اودويمه فرقه شيعان معاويه رضی الله عنه په نوم سره مشهوره وه.

**قوله:** فَيَخْرُجُ مِنْ بَيْنِهِمَا مَارِقَةٌ:

**د مارقة مفهوم:** (اي جماعة مارقة) يعنی دَ اميردَ اطاعت نه وتونکې فرقه دې نه مراد خوارج دی چه دَ واقعه تحکيم په وخت پيداشو. (ان الحکم الا لله) نعرې به ئی لګولې. حضرت علی رضی الله عنه ئی کافر اوګرځولو اودَهغوی خلاف ئی جنګ شروع کړو. په دې جنګ نهروان کښې حضرت علی رضی الله عنه دَهغوی شپږ زره کسان مړه کړل.

**قوله:** يَلِي قَتْلَهُمْ أَوْلَاهُمْ بِالْحَقِّ»:

**د حضرت علی حقانيت:** دَدې کلام مصداق حضرت علی مرتضٰی رضی الله عنه دې هغوی خوراجوسره ډير جنګونه کړی دی. په جنګ نهروان کښې هغوی څو زره خوارج هلاك کړی دی. په دې کښې هيڅ شك نشته چه دَحضرت علی رضی الله عنه او حضرت معاويه رضی الله عنهما دَ خپل مينځ په تنازعات کښې حضرت علی رضی الله عنه په حق باندې وو اومونږ حضرت معاويه رضی الله عنه ته هم بد نه وايو ځکه چه هغه په اجتهادی غلطئی باندې وو. په دې جمله کښې هم هغه دَحضرت علی رضی الله عنه په مقابله کښې هغوی حق منلې شوې دی. خو حضرت علی رضی الله عنه ته اولی واقدم بالحق وئيلې شوې دې.

**[۲۵۳۷] په قاتل باندې د کفر اطلاق**

۲۵۳۷—[۵] (۱)① وَعَنْ جَرِيرٍ قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ: ② "لَا تَرْجِعُنَّ بَعْدِي كُفَّارًا ③ يَضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الفتن/باب قول النبیّ صلّی الله علیه وسلّم: «لا ترجعوا بعدی کفّارا. یضرب بعضکم رقاب بعض» (رقم-۷۰۸۰) ومسلم فی کتاب الإيمان/باب «لا ترجعوا بعدی کفّارا یضرب بعضکم رقاب بعض» (رقم-۱۱۸-(۶۵) و ابو داود فی کتاب السّنّة/باب الدّليل علی زيادة الإيمان ونقصانه(رقم-۴۶۸۶) والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب ما جاء لا ترجعوا بعدی کفّارا یضرب بعضکم رقاب بعض (رقم-۲۱۹۳)والنسائی فی کتاب تحريم الدّم/باب تحريم القتل (رقم-۴۱۳۱) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب لا ترجعوا بعدی کفّارا یضرب بعضکم رقاب بعض (رقم-۳۹۴۲) واحمد فی المسند: ۴/۳۶۶

**ترجمه:** ① او حضرت جریر ﷜ وایي چې رسول الله ﷺ د حجة الوداع په موقع مسلمانان مخاطب کولو سره ارشاد وفرمایلو ② خبردار زما نه وروسته د کفر په ذریعه شا ته مه گرځئ، ③ چې په تاسو کې دي یو د بل غاړې وهل شروع کړه. «بخاري مسلم»

**تسهیلات:**

**قوله:** لَاتَرْجِعُنَّ بَعْدِي كُفَّارًا:

**د مسلمان په قتل د کفر د اطلاق درې وجوهات:** ① کوم سړې چه د یو مسلمان ناحق قتل حلال گڼرې هغه کافر کیږي

② دا سړې په دغه عمل باندې کفرته نیزدې شو داجوابونه ځکه ورکړې کیدې شي چه د اهل سنت په نیز د کبیره گناه مرتکب کافر کیږي نه

③ دلته حقیقي کفرمراد نه دې بلکه دکافرانو والا کار مراد دې چه دې سړی د کافرانو په شان کار اوکړو.

**[۳۵۳۸] د مسلمانانو خپلو کښې په قتال باندې د جهنم وعید**

۳۵۳۸—[۲] (۱) ① وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ② "«إِذَا الْتَقَى الْمُسْلِمَانِ حَمَلَ أَحَدُهُمَا عَلَى أَخِيهِ السِّلَاحَ ③ فَهُمَا فِي جُرُفِ جَهَنَّمَ، ④ فَإِذَا قَتَلَ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ دَخَلَاهَا جَمِيعًا»".

**ترجمه:** ① او حضرت ابوبکر ﷜ د نبي کریم ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمایل ② هر کله چې دوه مسلمان په خپل منځ کې په داسې حال کې یو ځایي شي چې په هغوئ کې یو په بل «مسلمان» ورور وسله پورته کړي، ③ نو هغه دواړه د دوزخ ځنډې ته ورسیږي، ④ بیا که په هغوئ کې یو بل قتل کړي، نو دواړه به یو ځای په دوزخ کې اچول کیږي.

**حل اللغات:** ① جُرُفِ: د دوزخ غاړه.

① وَفِي رِوَايَةٍ عَنْهُ قَالَ: ② «إِذَا الْتَقَى الْمُسْلِمَانِ بِسَيْفَيْهِمَا فَالْقَاتِلُ وَالْمَقْتُولُ فِي النَّارِ ③ قُلْتُ: هٰذَا الْقَاتِلُ فَمَا بَالُ الْمَقْتُولِ ④ قَالَ: "إِنَّهُ كَانَ حَرِيصًا عَلَى قَتْلِ صَاحِبِهِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او په یو روایت کې ابوبکر ﷜ نه داسې منقول دی ② چې حضور ﷺ وفرمایل که دوه مسلمانان توره راؤښکلو سره سره یو ځایي شي، او په هغوئ کې یو ولگیږي. دویم قتل کړي نو قاتل او مقتول دواړه به «د دوزخ» په اور کې اچول کیږي. ③ ما عرض اوکړو چې د قاتل دوزخ ته تلل خو ظاهر دی، اچې هغه ظلم کړي دی. ځکه به په دوزخ

۱) اخرجه البخاري في كتاب الدّيات/باب قول الله تعالى: {ومن أحياها} [المائدة: ۳۲] (رقم-۶۸۷۵) ومسلم في كتاب الفتن وأشراط السّاعة/باب إذا تواجه المسلمان بسيفيهما (رقم-۱۶ - ۲۸۸۸) و ابو داود في كتاب التّرجّل /باب في النّهي عن القتال في الفتنة (رقم-۴۲۶۸) والنسائي في كتاب تحريم الدّم/باب تحريم القتل (رقم-۴۱۲۰) وابن ماجه في كتاب الفتن/ باب إذا التقى المسلمان بسيفيهما(رقم-۳۹۶۵)واحمد في المسند:۴۱/۵

کې اچول کیږي]، خو د مقتول په باره کې داسې ولې دي؟ (چې هغه خو مظلوم دی، هغه دي ولې په دوزخ کې وغورځول شي؟)۴ حضور ﷺ وفرمايل (ځکه چې) هغه هم د خپل ملګري (یعني حریف مقابل) په قتلولو آماده وو، دا جدا خبره ده چې د هغه وار خطا لاړل، او د دويم ځل په ځاى ولګيدلو ، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ۴ بَالُ :حال، سبب،

**تسهيلات:**

**قوله:** فَهُمَا فِي جُرُفِ جَهَنَّمَ:

**د جرف لغوی معنی:** دَدوزخ غاړې ته جرف وئیلې شوې دې ځکه چه جرب سیلاب سره دَ زمکې هغه پرې شوې حصې ته وائی دَ کوم غاړې چه ډیرې کمزورې شوې وی

**قوله:** فَالْقَاتِلُ وَالْمَقْتُولُ:

**د قاتل او مقتول جهنم ته د تلو وجه:** قاتل اومقتول دواړه به په دوزخ کنبې ځکه چه دواړوکنبې يوهم په حق باندې نه وو اوکله چه يوپه حق باندې وی نوهغه به دوزخ ته نه ځی

**قوله:** عَلَى قَتْلِ صَاحِبِهِ حَرِيصًا:

**د مقتول جهنم ته د تلو وجه:** يعنی دَ مقتول په زړه کنبې دَقاتل دَ قتل زبردسته جذبه وه اودَ عزم درجه وه چه زه به دا قاتل قتل کوم ليکن قاتل دَ هغه په قتل باندې مخکنبې کامياب شو که چرې دَ دغه مقتول په زړه کنبې دَ قاتل دَ قتل منصوبه نه وې اوکله چه قاتل حمله اوکړه نودې مقتول صرف دفاع کوله په دې صورت کنبې به دې نه شی راګيرولې ځکه چه اسلام دَده په دې صورت کنبې دَ دفاع حق ورکړې دې

**[۳۵۲۹] د مرتدو غلو سزا**

۳۵۲۹—[۷] (۱) ۱ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: «قَدِمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَفَرٌ مِنْ عُكْلٍ ۲ فَأَسْلَمُوا فَاجْتَوَوُا الْمَدِينَةَ ۳ فَأَمَرَهُمْ أَنْ يَأْتُوا إِبِلَ الصَّدَقَةِ ۴ فَيَشْرَبُوا مِنْ أَبْوَالِهَا وَأَلْبَانِهَا فَفَعَلُوا، ۵ فَصَحُّوا فَارْتَدُّوا وَقَتَلُوا رُعَاتَهَا، ۶ وَاسْتَاقُوا الْإِبِلَ ۷ فَبَعَثَ فِي آثَارِهِمْ فَأُتِيَ بِهِمْ ۸ فَقَطَعَ أَيْدِيَهُمْ وَأَرْجُلَهُمْ ۹ وَسَمَلَ أَعْيُنَهُمْ ۱۰ ثُمَّ لَمْ يَحْسِمْهُمْ حَتَّى مَاتُوا.

**ترجمه:** ۱ او حضرت انس ﷺ وايي چې د نبي کريم ﷺ په خدمت کې د قبيله عکل څه خلق راغلل، ۲ او اسلام يي قبول کړي، خو په هغوئ د مديني آب وهوا موافق را نغله

١ ) اخرجه البخاری فی كتاب الحدود/باب لم يسق المرتدون المحاربون حتّى ماتوا (رقم-٦٨٠٤) ومسلم فی كتاب القسامة والمحاربين والقصاص والدّيات/باب حكم المحاربين والمرتدين (رقم-٩ - (١٦٧١) و ابو داود فی كتاب الحدود/باب الحكم فيمن سبّ النّبیّ صلّى الله عليه وسلّم (رقم-٤٣٦٣) والترمذی فی كتاب الطّهارة عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فی بول ما يؤكل لحمه (رقم-٧٢) والنسائی فی كتاب الزّكاة/باب المؤلّفة قلوبهم (رقم-٢٥٧٨) وابن ماجه فی كتاب الحدود/باب من حارب وسعى فی الأرض فسادا (رقم-٢٥٧٨) واحمد فی المسند:١٦٣/٣

(چې د هغه په وجه هغه په دي مرض کې مبتلا شو چې نسونه يي وپړسيدل او رنګونه يي زيړ شو) ۳ حضور ﷺ هغو ته حکم وکړي چې هغه (د ښار نه دباندي) د زکوة د اوښانو خای ته لاړ شي ۴ او هلته دي د هغه اوښانو متيازي او پئ وځکي. هغوئ په دي عمل وکړي. ۵ او ښه شو ، بيا هغه (په داسې ګمراهي کې مبتلا شو چې مرتدان شول او (د پاسه لا دا چې) د هغه اوښانو شپونکي يي قتل کړي. ۶ او اوښان يي د ځان سره وتښـول. ۷ اهر کله چې رسول الله ﷺ د دې نه خبر شوځ نو په هغوئ پسي يي څو سواره وليږل. چې هغه ټول يي نيولي را وستل ۸ (د هغوئ د دې جرم د سزا په طور د حضور ﷺ په حکم سره) د هغوئ لاس او پښې پرې کړل شو. ۹ او د هغوئ سترګې روخکل شوی. ۱۰ تر دی چې د هغوئ لاس او پښې په ګرم ګرم تيلو کې وداغلی هم نه شو (يعني څنګه چې قاعده ده چې د اعضاء پريکولو نه وروسته په ګرم تيلو کې داغ ورکول کيږی. چې وينه يي بنده شي، ليکن د هغوئ سره دا هم ونه کړی شو) آخر ټول مړه شو .

**حل اللغات:** ①نَفَرٌ: افراد ، خلق. ②عُكْلٍ :د يوې قبيلې نوم دې. ③فَاجْتَوَوْا: آب وهوا پرې ناموافق راغله . ④أَبْوَالِ : د بول جمع ده، متيازې، ⑤وَأَلْبَانِ :د لبن جمع ده. پئ. شودې. ⑥فَارْتَدُّوا: مرتد شول. ⑦رُعَاتَهَا: د راعی جمع ده، شپونکي، ګډبه، ⑧ وَاسْتَاقُوا : اوزغلول. اوشړل. اوتختول ⑨آثَارِهِمْ: روسته روسته، ⑩وَسَمَلَ : ګرمو سيخانو سره سترګې داغل. او ويستل ⑪ يَحْسِمْهُمْ: زخم له داغ ورکوی.

> ۱ وَفِي رِوَايَةٍ فَسَمَّرُوا أَعْيُنَهُمْ ۲ وَفِي رِوَايَةٍ: أَمَرَ بِمَسَامِيرَ فَأُحْمِيَتْ فَكَحَّلَهُمْ بِهَا ۳ وَطَرَحَهُمْ بِالْحَرَّةِ يَسْتَسْقُونَ ۴ فَمَا يُسْقَوْنَ حَتَّى مَاتُوا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ په يو روايت کې داسې دي چې د هغوئ په سترګو کې ګرم سلايان ووهل شو. ۲ او په يوروايت کې دا الفاظ دي چې حضور ﷺ د سلايانو ګرمولو حکم ورکړي. هر کله چې هغه ګرم شو ، نو هغه (د اوسپنې) سلاياني د هغوئ په سترګو کې وګرځول شو. ۳ او د دې نه وروسته هغه خلق د مدينې په غرونو کې وغورځول شو ، کله چې به هغوئ اوبه غوښتې ۴ هغوئ ته به اوبه نه ورکول کيدی، ددې پورې چې ټول مړه شو . (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ⑫فَسَمَّرُوا: ګرمې سلاياني ئې ورته په سترګو کښې اووهلې. ⑬فَأُحْمِيَتْ: پس ګرمې کړې شوې ⑭فَكَحَّلَهُمْ بِهَا: په سترګو کښې ئې ورله سلاياني اووهلې ⑮طَرَحَهُمْ: وې غورزول ⑯بِالْحَرَّةِ: کنده، د غرونو منځ ⑰يَسْتَسْقُونَ :داوبو طلب ئې کول.

**تسهيلات: قوله: نَفَرٌ:**

**د نفر معنی:** دَ دريونه واخله تر دَلسو سړو ډلې دَپاره دَ نفر لفظ وئيلې شي. وئيلی شي چه دا خلق اته کسان وو.

**قوله: مِنْ عُكْلٍ:**

**په لفظ د عکل کښې د رواياتو اختلاف:** دادَ يوقبيلې نوم دې ① دَ بخاري په بعضې رواياتو کښې دې سره دَعرينه لفظ هم راغلې دې مګر شك سره "اوعرينة" الفاظ دى.

② بعضې رواياتو کښې صرف دَ عرينه ذکر راغلې دې

③ او هم دَ بخاري په يوروايت کښې "عکل وعرينة" عطف سره راغلې دې اوهم دغه راجح اوکامل روايت دې معجم طبراني کښې دى چه په دوى کښې څلورکسان دَعرينه قبيلې نه وو اودرې دَعکل نه وو

**قوله: فَاجْتَوَوْا:**

**د اجتواء تعريف:** اجتوا هغه بيمارئى ته وائى چه دَيوعلاقې دَ آب وهوا ناموافق راتلودَ وجې نه سړى ته لګى. په کوم سره چه خيټه خرابيږى. مطلب دا چه په دغه خلقو باندې دَ مدينې آب وهوا برابر رانغله اوبيماران شو اودَمخونو رنګونه ئى بدل شو.

"اهل الصدقة" چونکه دا خلق مسافرهم وواوفقيران هم وو په دې وجه دَ بيت المال دَ اوښانونه دَهغوى دَپاره فائده اوچتول جائز وو.

**قوله: فَيَشْرَبُوا مِنْ أَبْوَالِهَا وَأَلْبَانِهَا:**

**د ماکول اللحم د پولو د طهارت دليل:** امام مالك رحمه الله امام احمدبن حنبل رحمه الله اوامام محمد رحمه الله فرمائى دَ کوموځناورغوښه چه پاکه ده دَهغوى متيازې هم پاکې دى اودَ مذکوره روايت نه استدلال کوى. امام ابوحنيفه رحمه الله امام شافعى رحمه الله اوامام ابويوسف رحمه الله په نيز دَ ماکول اللحم ځناورو متيازې نجس دى. اودَ امام ابو يوسف رحمه الله په نيزداقسم متيازې دَ دوائى په توګه استعمالولې شى که هغه په حالت دَ اختيارکښې وى اوکه په حالت دَ اضطرار کښې وى ليکن دَامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزپه حالت دَ اختيارکښې يوحرام څيز په توګه دَ دوائى استعمالول جائز نه دى. دَ دې مسئلې توضيح په جلداول کښې ليکلې شوې ده هلته اوګورئى.

**د حديث د بعضې جملو وضاحت:** ① وَاسْتَاقُوا: په دې کښې سين اوتاء دَ مبالغه دَپاره دې مراد "ساقوا" دې يعنى کامل اهتمام اومحنت سره ئى اوښان اوتختول بوئى تلل.

② وَسَمَلَ أَعْيُنَهُمْ: بعضې رواياتوکښې دَ سمر لفظ راغلې دې. علامه ابن التين رحمه الله فرمائى چه دَدواړومعانى هم يو ده چه په ګرمو سيخونو سره دَهغوى سترګې اويستلې شوې. بعضې رواياتوکښې دَ کحل لفظ هم راغلې دې دَدې مطلب هم دغه دې.

③ ثُمَّ لَمْ يَحْسِمْهُمْ: دا حسم دَ سمع يسمع نه دَ داغلوپه معنى کښې دې څکه چه دَ يوزخم نه کله وينه بهيږى اوبند يږى نه نوهغې له داغ ورکولې شى. کله په کپړا سره اوکله په ګرمو

تیلوسره داغ ورکولې شي نوبیا وینه بندیږي دلته داسې نه دي کړې شوي بلکه وینه جاري پریخودې شوې وه

**په سزا کښې د سختۍ وجوهات:** ① چه دا مساوات فی القصاص وو ځکه چه دغه خلقو هم ګډبنوسره هم داسې بې رحمانه سلوك کولوسره قتل کړې وو

② دغه خلقو د ډیرو لویو جرمونو ارتکاب کړې وو یوخودا خلق مرتد شوي وو دویم قاتلان جوړشوي وو دریم دوی قزاق اوډاکوان جوړ شوې وو په دې وجه هغوی له د سختۍ نه سخته سزاورکړې شوه چه د نورو دپاره د عبرت سبب شي

③ دا سزا هغه وخت ورکړې شوې وه چه قرآن کښې تردغه وخته پورې د قزاقیانو حکم نه وو راغلې هم دغه وجه ده چه دلته "مثله" اوکړې شوه خودا په اتفاق سره منسوخ دې معلومه شوه چه دا حکم ډیر مخکښې وو بیا قرآني آیاتونوسره د قزاقیانو د سزا تعین اوشو چه یولاس یو خبه په مخالف سمت کښې پرې کړی شي اوی په سولئی باندې اوخیژولې شي یا دې د وطن نه اوویستلې شي. د ائمه احناف په نیز د وطن نه د ویستلونه مراد په جیل کښې اچول دې دپاره چه دا خلق توبه اوکړي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۲۵٤۰] په اسلام کښې د مُثلې ممانعت

۲۵٤۰-[۸] (۱) ۱ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ: ۲ «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحُثُّنَا عَلَى الصَّدَقَةِ ۳ وَيَنْهَانَا عَنِ الْمُثْلَةِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ حضرت عمران ابن حصین رضي الله عنه وايي ۲ چې رسول الله ﷺ به په صدقه خیرات ورکولو مونږ ته رغبت راکولی، ۳ او د مثله (د بدن د یو اندام د پریکولو) نه به یې منع فرمایله. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① اَلْمُثْلَةِ: اندامونه کټ کول. مثلاً پوزه غوږ سترګې اولاس خپې پرې کول

**تسهیلات: قوله:** وَيَنْهَانَا عَنِ الْمُثْلَةِ:

**دمثلة تعریف:** د مړی یا د ژوندی د بدن بعضې اندامونه کټ کولوته مثله وائی.

دلته لاندینې بحث د لوئې عالم مولانا سیف الله رحماني د کتاب ،،حلال او حرام،، نه نقل کوم تاسو ئې ملاحظه کړئ.

**د مړی د اندامونو نه د استفادې حکم:** پاتې شوه د نورو مضبوطو اندامونو پیوند کول نو د فقهي مثالونو نه معلومیږي چه د مړی د اندامونو نه پیوند لګول خو خامخا ناجائز

۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد، باب فی النّهی عن المثلة (رقم-۲۶۶۷) واحمد فی المسند: ٤/٤٤٠

كيدل پكار دى خكه چه شوافع، بعض احناف، د مالكيانو فقهاؤ كښ ابن عربى او په حنابله ؤ كښ ابو الخطاب د مضطر (مجبور) سړى دپاره د مړى د خوراک اجازت وركړې دې ﴿ قال الشافعي وبعض الحنفية يباح وهو اولى لان حرمة الحي اعظم واختار ابوالخطاب انه له اكله ﴾(١) هم دا خبره امام قرطبى ليكلې ده (٢) او د ابن عربى رائې په دې الفاظو باندې نقل كړې شوې ده ﴿ الصحيح عندى ان لا ياكل الادمى الا اذا تحقق ذلك ينجيه ويحييه ﴾(٣) د ژوندو انسانانو د اندامونو استعمال عام طور سره فقهاء كرامو منع كړې دې، دا جزئيه اكثر د فقه په كتابونو كښ موجود ده، چه مكره (مجبور) ته كه څوک دا پيش كړى چه ته د مكره (مجبور كونكى) د منشاء مطابق ما قتل كړه يا زما د بدن نه (څه حصه) پرې كړه او اوخوره نو د مجبور دپاره د هغه قتل كول او د هغه د څه حصې پرې كول جائز نه دى (٤) بلكه بعض فقهاء كرامو مضطر د دې خبرې نه هم منع كړې دې چه خپله د خپل بدن څه حصه پرې كولو سره اوخورى (٥) خو كه غور اوكړې شى نو معلوميږى چه دا ممانعت د دې دپاره وو چه په هغه زمانه كښ د بدن د يوې حصې د پرې كولو او راويستلو هغه محفوظ طريقه وجود ته نه وه راغلې كومه چه نن صبا ده بلكه داسې پرې كولو سره هغه انسان ته سخت ضرر د هلاكت ويره وه پس مضطر د خپل بدن نه څه حصه پرې كولو سره ولې نه شى خوړې ابن قدامه په دې باندې په دې الفاظو رنړا اچوى؛

﴿ لنا ان اكله من نفسه ربما قتله فيكون قاتله بنفسه ولا يتيقن حصول البقاء باكله ﴾(٦)

**ترجمه:** [١] زمونږ دليل دا دې چه د هغه د خپل بدن نه خوراک به د هغه دپاره د هلاک سبب باعث شى، پس هغه به خودكشى كونكې شى او د هغه د خوراک كولو نه د ژوند د بچ كيدو يقين نشته.

په موجوده زمانه كښ چونكه د دې دپاره محفوظ او مزيداره طبى طريقه په وجود كښ راغلې ده په دې دې صورت لره هم جائز كيدل پكار دى عام طور سره د دې رواياتو نه غلط فهمى پيدا كيږى چه د هغې مطابق يوې زنانه لره د بلې زنانه د ويښتو د استعمالولو نه منع كړې شوې ده يا هغه فقهى عبارات چه په هغې كښ يو سړې د خپل مات شوى غاښ په ځائې د بل انسانى غاښ نه منع كړې شوې دې حال دا چه دا صحيح نه

---

١ ) المغنى: ٣٣٥/٩)
٢ ) الجامع لاحكام القرآن: ٢٢٩/٣)
٣ ) الجامع لاحكام القرآن: ٢٢٩/٢)
٤ ) بدائع الصنائع: ١٧٧/٧)
٥ ) قاضى خان على الهنديه: ٤٠٤)
٦ ) المغنى: ٣٣٥/٩)

ده. ځکه چه د ډول دپاره د نورو ویښتو جوړول ضرورت نه دې، صرف ډول او زینت دې او انسانی غابښ داسې څیز نه دې چه د هغې دې متبادل نه وی او یا په دې زمانه کښ د هغې متبادل موجود نه وی، د پیوند کولو صورت کښ د یو انسان دپاره د بل انسان اندام د سخت ضرورت او د ځان د بچاؤ دپاره استعمالولې شی او هغه وخت چه کله د هغې څۀ متبادل موجود نه وی.

**د انسان اندامونه اخستل خرڅول:** اوهر چه د انسان د اندامونو د اخستلو او خرڅولو خبره ده نو په بعض موقعو کښ شریعت انسانی وجود او انسانی اندامونه متقوم (قابل قیمت) ګنړلې دی او دا هغه وخت دې چه کله یو انسان هلاک کړې شی او یا د هغه یو اندام خراب کړې شی هغې ته په اصطلاح د شرع کښ دیت وائی په دې باندې هم اتفاق دې چه د آزاد انسان د پوره وجود اخستل خرڅول نه شی کیدې. د انسانی بدن مختلف اجزاء ویښته او شودۀ وغیره هم دا دوه څیزونه وو چه د هغې نه به په تیره زمانه کښ فائده اخستلې شوه، ویښته چه دهغې استعمال به عموما د ډول اوسنګار دپاره کولې شو. فقهاء کرامو د دې اخستل او خرڅول هم منع کړې دی او دا وجه ئې مقرر کړې ده چه دا د انسانی حرمت او کرامت مغایر دې:

﴿ وشعر الانسان والانتفاع به اي لم يجز بيعه والانتفاع به لان الادمي مكرم غير مبتذل فلا يجوز ان يكون الشئ من اجزاءه مهانا مبتذلا ﴾(۱)

علامه شامی رحمه الله د ویښتو په شان د انسان د نوکونو اخستل او خرڅول هم منع کړې دی ﴿ وكذا بيع كل ما انفصل عن الادمي كشعر وظفر لانه جزء الادمي ولذا وجب دفنه ﴾(۲) خو د شودو (پیو) اخستلو او خرڅولو کښ د فقهاء کرامو اختلاف دې احناف د تکریم انسانیت د وجې نه منع کوی ﴿ لم يجز بيع لبن المراة لانه جزء الادمي وهو بجميع اجزاء مكرم عن الابتذال بالبيع ﴾(۳) او امام شافعی رحمه الله دې ته جائز وائی. د سرخسی بیان دې:

﴿ وقال الشافعي رحمه الله يجوز بيعه ويضمن متلفه لان هذا لبن طاهر او مشروب طاهر كلبن الانعام ولانه غذاء للعالم فيجوز به كسائر الاغذية ﴾(٤)

**ترجمه:** [۱] او امام شافعی رحمه الله فرمائی چه د دې بیع جائز ده او د دې په ضائع کولو باندې به ضمان لازمیږی، ځکه چه دا پاک شودۀ یا مشروب دې د څاروو د پیو په شان او ځکه چه دا د دنیا د خلقو غذا ده. پس د دې خرڅول هم د ټولو خوراکونو په شان به جائز وی.

۱ ) البحر الرائق: ۸/٦ او هندیه هم اوګوره: (۱۱۴/۳)
۲ ) ردالمختار: ۲۴٦/۵)
۳ ) البحر الرائق ۸۱/٦ او عالمګیری: ۱۱۴/۳)
۴ ) المبسوط: ۱۲۵/۱۵)

**د حنابلو په نيز د اندامونو د بيع حکم**: د فقهاء حنابله ترمينځه اګر چه په دې مسئله کښې اختلاف دې خو د حنبلی فقه د باغ مشهور ترجمان ابن قدامه رحمه الله په نزد هم ترجيح هم دې خبرې ته ده چه د ښځې د پيو اخستل خرڅول جائز دی (۱)

**د اندامونو په بيع کښې داحنافو مسلک**: پس د احنافو په نزد به صرف د مجبورئ په درجه کښې د داسې اندامونو اخستل خرڅول جائز وی ځنګه فقهاء کرامو د ضرورت په وخت رشوت ورکولو يا د سودی قرض اخستلو اجازت ورکړې دې خو د شوافعو او حنابلو په نزد به د داسې اندامونو اخستل او خرڅول دواړه صحيح وی. په دې سلسله کښې د ابن قدامه دا عبارت او د هغې عموم قابل د لحاظ دې چه ﴿وسائر اجزاء الادمی يجوز بيعها لانه يجوز بيع العبد والامة﴾(۲) وړاندې تلو سره ابن قدامه اګر چه د بدن نه د پرې کړې شوې اندامونو اخستل خرڅول حرام کړی دی خو دا د دې وجې نه نه چه د انسانی بدن نه فائده اخستل جائز نه دی بلکه د دې وجې نه د هغه وخته پورې د انسانی اندامونو نه فائده اخستل ممکن شوې نه وو ﴿وحرم بيع العضو والمقطوع لانه لانفع فيه﴾(۳)

اوس چه کله داسې ممکن شوی دی د ابن قدامه د تشريح مطابق د داسې اندامونو اخستل خرڅول به هم صحيح وی.

**د اندامونو د بيع د جواز شرطونه**: پس حاصل دا دې چه:

① د انسانی اندامونو پيوند کولو دپاره چه کومه طبی طريقه ايجاد شوې ده په هغې کښې د انسانيت سپکاوې نشته.

② په دې وجه دا جائز ده خو په دې شرط چه په دې سره مقصود د يو مريض بچ کول وی يا د بدن يو فائده واپس کول وی لکه نظر.

③ او طبيب حاذق وئيلې وی چه په دې سره د صحت غالب ګمان دې

④ د غير مسلم اندامونه هم د مسلمان په بدن کښې لګولې شی

⑤ که د مړی د بدن نه اندام اخستلې شی نو دا به ضروری وی چه خپله هغه په ژوند کښې اجازت ورکړې وی ځکه چه هغه د بدن مالک دې او د هغې د وارثانو هم د هغه دپاره راضی کيدل ضرروی دی

⑥ که د ژوندی انسان اندام اخستلې کيږی نو دا ضروری ده چه خپله هغه اجازت ورکړې وی او د هغې د وجې نه خپله هغه ته سخت تکليف نه وی

---

۱ ) المغنی: ۱۷۷/۴)
۲ ) المغنی: ۱۷۷/۴)
۳ ) المغنی: ۱۷۷/۴)

⑥ د اندامونو خرخول او اخستل هم صحیح دی د شوافعو او د حنابلو په نزد د اندامونو د اخستلو اودخرخولو د دواړو ګنجائش شته دې او د احنافو په نزد په درجه د مجبورئ کښې اخستلې شی خو خرخولې نه شی (۱)

۳۵۴۱—(۲) [۱] وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ عَنْ أَنَسٍ.

**ترجمه:** [۱۱] د نسايي رحمه الله دا روايت د حضرت انس رضی الله عنه نه نقل کړي دی

**[۳۵٤۲] په بې زبانه ځناورو د نبی کریم صلی الله علیه وسلم شفقت**

۳۵۴۲—[۹] (۳) [۱] وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللهِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: [۲] «كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ فَانْطَلَقَ لِحَاجَتِهِ [۳] فَرَأَيْنَا حُمَرَةً مَعَهَا فَرْخَانِ فَأَخَذْنَا فَرْخَيْهَا [۴] فَجَاءَتِ الْحُمَرَةُ فَجَعَلَتْ تَفْرُشُ فَجَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الرحمن ابن عبد الله رضی الله عنه د خپل پلار نه نقل کوي چې هغه اوویل [۲] (یو ځل) مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په سفر کې وو، هر کله چې (په یوه موقع) حضور صلی الله علیه وسلم د قضايي حاجت د پاره تشریف یووړی، [۳] نو مونږ یوه حُمَره (چې د یوې مرغۍ نوم دی) ولیده چې د هغې سره دوه چیچان وو، مونږ هغه دواړه دمرغۍ بچی (چیچان) ونیول. [۴] د هغه نه وروسته حُمَره راغله او خپل وزر یې په زمکه غوړول، او خپله خیته یې په زمکه لګول شروع کړل (ګویا دغه شان هغې د خپلو چیچانو په نیولو احتجاج شروع کړې) کوم وخت چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم تشریف راوړو.

**حل اللغات:** ① حُمَرَةً: په حاء پیش اومیم مشدد ، دَ سوررنګ یومرغئی ته وائی چه دَ چرچنړې برابروی. ② فَرْخَانِ: د چنچنړې وړوکې بچې. ③ فَجَعَلَتْ: ای شرعت. شروع شوه. تَفْرُشُ: خوروَل. سیوري جوړول.

[۱] فَقَالَ: مَنْ فَجَعَ هٰذِهِ بِوَلَدِهَا رُدُّوا وَلَدَهَا إِلَيْهَا، [۲] وَرَأَى قَرْيَةَ نَمْلٍ قَدْ حَرَّقْنَاهَا [۳] قَالَ: مَنْ حَرَّقَ هٰذِهِ فَقُلْنَا: نَحْنُ. [۴] قَالَ: إِنَّهُ لَا يَنْبَغِي أَنْ يُعَذِّبَ بِالنَّارِ إِلَّا رَبُّ النَّارِ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] نو حضور صلی الله علیه وسلم (د حُمَره دومره بیتابه لیدو سره وفرمایل چې د دې چیچان نیولو سره دا چا پریشانه کړې ده؟ د دې مرغې بچې (چیچان) دې واپس ورکړي. [۲] بیا حضور صلی الله علیه وسلم د هغه میږانو میږ تون (د میږانو د اوسیدو ځای) ولیدلو. کوم چې مونږ سوزولی وو، [۳] وي فرمایل چې دا میږتون چا سوځلي دی؟ مونږ عرض اوکړو چې مونږ سوځلي دي. [۴] حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې د پروردګار نه علاوه چې د اور هم هغه مالك

۱) د تفصیل دپاره اوګورئ: جدید فقهی مسائل حصه دوم)
۲) اخرجه النسائی فی السنن کتاب تحریم الدّم/باب النّهی عن المثلة (رقم-۴۰۴۷)
۳) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد . باب فی کراهیة حرق العدوّ بالنّار (رقم-۲۶۷۵) واحمد فی المسند: ۱/۴۰۴

دی د بل چا د پاره دا مناسب نه دی. چې هغه دي ځوك د اور په عذاب کې مبتلا کړي.
(ابوداود)

**حل اللغات:** ④ لَحَمَ: دَباب تفعیل نه غم درد او تکلیف رسول ⑤ لَایَنْبَغِی: ای لایجوزولایصح. جائز نه دی.

**تسهیلات: قوله: لَحَمَلَتْ تَفْرُشُ:**

**د تفرش مطلب:** دا په اصل کښې تفرش دې. مطلب دادې چه مرغئی کله وزرې خورې کړی او په خپلو بچوباندې سورې اوکړی او پته وی نودې ته تفرش وائی. لیکن دلته وزرې خورولو سره په زمکه باندې اینختو سره دَ غم اظهارکول مراددی.

**قوله: لَایَنْبَغِی أَنْ یُعَذِّبَ بِالنَّارِ:**

**په اور سره د تعذیب عدم جواز:** یعنی الله تعالی اور په دنیاکښې دَ انسانانودَ فائدې دَپاره پیداکړې دې نوانسان دې دَدې نه هم هغه نفع اوچته کړی اودَده دَپاره جائزنه دی چه دَا اور دَ ضرر اونقصان دَپاره استعمال کړی اوالله تعالی دَ دې اور خالق اومالك دې هغه دَدې په نفع اوضرر دواړو کښې دَاستعمالولوحق لری.

**میږو ته د سزا ورکولو حکم:** دَ میږوباره کښې دامسئله ده که چرې هغه چاته تکلیف رسوی نوهغه ختمول اومړه کول جائز دی دَدې نه علاوه مړه کول جائزنه دی. دغه شان میږی په اور کښې سوزول هم منع دی اودَ تکلیف رسولوپه صورت کښې دوائی اچولوسره مړه کول جائزدی په اور سره مړه کول جائزنه دی.

## [۳۵٤۳] دامت د باطلې ډلې پیشن ګوئي

٣٥٤٣ ـ [١٠] (١) ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ② «سَيَكُونُ فِي أُمَّتِي اخْتِلَافٌ وَفُرْقَةٌ، ③ قَوْمٌ يُحْسِنُونَ الْقِيلَ وَيُسِيئُونَ الْفِعْلَ ④ يَقْرَءُونَ الْقُرْآنَ لَا يُجَاوِزُ تَرَاقِيَهُمْ ⑤ يَمْرُقُونَ مِنَ الدِّينِ مُرُوقَ السَّهْمِ مِنَ الرَّمِيَّةِ لَا يَرْجِعُونَ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابو سعید خدري رضی الله عنه او انس بن مالك رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي ② چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل نزدي زما په امت کې به اختلاف او افتراق پیدا شي. ③ یوه فرقه چې خبري خو به ښه کوي. لیکن عمل به یي خراب وي. ④ د دې فرقي خلق به قرآن کریم وايي لیکن د هغوئ هغه وئیل به د هغوئ د حلق نه نه خکته کیږي (یعني قبلیږي به نه) ⑤ او هغه خلق به د دین (یعني د امام وخت او د علماء حق د اطاعت) نه داسې وځي. څنګه چې غشی د لیندی نه وځي. او هغوئ به د دین طرف ته د هغه وخته نه واپس کیږي.

---

١) اخرجه ابوداود في السنن کتاب السنّة/باب في قتال الخوارج (رقم-٤٧٦٥) واحمد في المسند: ٣/ ٢٢٤

**حل اللغات:** ①فُرْقَةٌ: افتراق، ډله بازي، فرقې فرقې کيدل. ②يُحْسِنُونَ: ښائسته به کوي. الْقِيلَ: خبرې. ③وَيُسِيئُونَ: خراب به وي، بد به وي ④تَرَاقِيَهُمْ: د ترقوت جمع ده مرئ ، حلق ⑤يَمْرُقُونَ: اوځي به، خارجيږي به . ⑥مُرُوقَ السَّهْمِ: وتلی شوي غشی.

١ حَتَّى يَرْتَدَّ السَّهْمُ عَلَى فُوقِهِ ٢ هُمْ شَرُّ الْخَلْقِ وَالْخَلِيقَةِ ٣ طُوبَى لِمَنْ قَتَلَهُمْ وَقَتَلُوهُ ٤ يَدْعُونَ إِلَى كِتَابِ اللَّهِ وَلَيْسُوا مِنَّا فِي شَيْءٍ ٥ مَنْ قَتَلَهُمْ كَانَ أَوْلَى بِاللَّهِ مِنْهُمْ ٦ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا سِيمَاهُمْ قَالَ التَّحْلِيقُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ د ځو پورې چې غشی خپل سوفار (د غشي په سر کې هغه ځيز چې د ليندې د تار برسيره يې ايږدي او د ګوتو په سرونو کې يې نيسي) طرف ته واپس رانشي. ٢ او هغه خلق به په خلقو او ځارويو کې د ټولو نه بد ترين وي. ٣ خوشخبري د هغه سړي د پاره چې دا خلق قتل کړي، يا هغه خلق هغه قتل کړي [يعني کوم سړی چې د دې خلقو د فتنې او د دوی د ګمراهي د دفع کولو د پاره د هغوئ مقابله وکړي. ددې پورې چې يا خو هغه خلق فنا کړي، يا دې د هغه خلقو د لاسه د حق د پاره په جنګ کولو کې خپله قتل شي، نو په دواړو صورتونو کې د هغوئ د پاره د حق تعالى ﷻ د رضا او خوشنودي او د آخرت د سعادتونو خوشخبري ده، چې په مخکني صورت کې خو به هغه د غازي لقب تر لاسه کړي، او په دويم صورت کې به د شهادت عظيمه مرتبه حاصله کړي] ٤ هغه خلق به په ظاهره خو انسانانو ته د کتاب الله دعوت ورکوي اليکن د رسول الله ﷺ د سنتو او د هغه د احاديثو په پرېښودلو خلق ته تلقين کوي، حالانکه احاديث نبوي د قرآن کريم تفسير او شرح ده، چې د احاديث نه بغير په قرآن کريم پوهه يدل او د هغه په احکامو عمل کول نا ممکن دی] هغه خلق په هيڅ معامله کې زمونږ (مسلمانانو) سره نه دی (يعني هغوئ په هيڅ خبره کې مسلمانان نه شميرل کيږي) ٥ کوم سړی چې هغه قتل کړي. هغه به خپل جماعت کې د خدای ﷻ د ټولو نه زيات نزدې دی. ٦ صحابه ؤ ﷺ (د دې اوريدو سره) عرض اوکړو چې يا رسول الله! ﷺ د دې خلقو شناخت څه دی؟ حضور ﷺ وفرمايل سرخريل. (ابوداود)

**حل اللغات:** ⑦فُوقِهِ: پتاق. په ليندہ کښې د غشی د نيولو ځائي. ⑧الْخَلْقِ: مخلوق. ⑨الْخَلِيقَةِ: ځناور. ⑩طُوبَى: خوشخبری، خوشحالی ⑪أَوْلَى بِاللَّهِ: الله تعالى ته زيات نزدې. ⑫سِيمَاهُمْ: شناخت، نشاني. ⑬التَّحْلِيقُ: سر خريل، يا حلقې جوړولو سره کيناستل

**تسهيلات:**

**قوله:** سَيَكُونُ فِي أُمَّتِي اِخْتِلَافٌ وَفُرْقَةٌ:

**د ګمراه ډلې د راتلو پيشنګوئي:** يعنی زما په امت کښې به څه داسې خلق پيدا کيږی چه دَ خپلو خواهشاتو بنديګان به وی دَ دوی دَ خودغرضئی او اعمالو او افعالو دَ وجې نه به په

امت کښې اختلاف پیداکیږي او اتحاد به درې ورې شي. لیکن دَهغوی دَ ژبوبه داحال وي چه دَاسلام به ډیر زیات منونکي معلومیږي داخلق به قرآن لولي مګرقرآن به دَهغوي دَ حلق نه لاندې نه کوزیږي داخلق به دَاسلام نه داسې خارج شي لکه څنګه چه یوغشې دَ ښکار نه پورې راپورې اوځي دَ اسلام طرف ته دَ دوی واپس راتلل به داسې محال وي لکه دَ لندې نه وتلې غشې چه واپس نه شي راتللې

**قوله:** حَتَّى يَرْتَدَّ السَّهْمُ عَلَى فُوقِهِ:

**تعليق بالمحال:** دَ لندې هغه حصه په کومه چه غشې خیژولوسره چلولې شي دې ته فوق وائي دَدې ترجمه سوفار دې اوداکلام دَ تعلیق بالمحال دَ قبیلې نه دې.

**قوله:** قَالَ التَّحْلِيقُ:

**د تحليق دوه مطلبونه:** ① یعنی دَ سرویښته به خره وی کله به ویښته نه ساتي داخاص علامت دَ خوارج وو. اوس که یوسړې ویښته ساتل جائزګڼي اوخره وی هم نودا نښاني دَ داسې سړي نه ده.

② بعضې علماء دَ تحلیق نه مراد په حلقوکښې کیناستل مراد اخستې دي یعنی دَ دغه خلقو به دا نښاني وي چه په جمات کښې به حلقې جوړه وي اوکینې به اودَ خان خودلودَپاره به نمائش کوي. مسنون طریقه داده چه دَ مونځونو په وختونوکښې دې سړې دَ قبلې طرف ته مخ کولوسره کیني په دې حدیث کښې دَ خوارج طرف ته اشاره ده.

**قوله:** شَرُّ الْخَلْقِ وَالْخَلِيقَةِ:

**د خلق او خليقة په مصداق کښې درې اقوال:** ① په نهایه کښې لیکلي دي چه دَخلق نه مراد انسان دې اودَخلیقه نه مراد څناور دي.

② دا دواړه لفظونه هم په یوه معنی کښې دي اودَتاکید په توګه ئې دویم لفظ ځکه راوړې دې دې دَپاره چه ټولو مخلوقاتوته مفهوم عام شي.

③ داهم ممکن دي چه دَ خلیقة نه مراد داموجوده کائنات وي اوکوم چه بیا راپیدا کیدونکي مخلوق دې دَخلق په لفظ سره دَهغې اراده کړې شوې وي. داخلق بدترین مخلوق ځکه دې چه دَ ایمان اواسلام په جامه کښې دَ کفرکارکوي

**[۲۵٤٤] د مسلمان د قتل د جواز درې صورتونه**

۳۵۴۳—[۱۱] (۱) ① وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«لَا يَحِلُّ دَمُ امْرِءٍ مُسْلِمٍ ③ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ ④ إِلَّا بِإِحْدَى ثَلَاثٍ زِنًا بَعْدَ إِحْصَانٍ لِأَنَّهُ يُرْجَمُ ⑤ وَرَجُلٌ خَرَجَ

۱) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الحدود/باب الحكم فيمن ارتدّ (رقم-۴۳۵۳) والنسائي في كتاب تحريم الدّم/باب الصّلب (رقم-۴۰۴۸) واحمد في المسند: ۲۰۵/۶

مُحَارِبًا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ٦ فَإِنَّهُ يُقْتَلُ أَوْ يُصْلَبُ ٧ أَوْ يُنْفَى مِنَ الْأَرْضِ ٨ أَوْ يَقْتُلُ نَفْسًا فَيُقْتَلُ بِهَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ د نفسِ مسلمان وينه حلاله نه ده ٣ څوک چې د دې خبرې شهادت ورکوي چې د الله تعالى سوا بل معبود نشته او محمد ﷺ د الله تعالى رسول دی، ٤ خو د دې دريو صورتونو نه د يو صورت د واقع کيدو په وجه د هغه وينه حلاله کيږي، يو خو دا چې هغه د محصن کيدو (يعنی د واده کيدو) نه وروسته زنا وکړي، نو هغه دې سنګسار شي، ٥ دويم صورت دا چې د الله تعالى او د هغه د رسول ﷺ سره د جنګ کولو د پاره اُوځی (يعني کوم مسلمان چې راه زنی وکړي يا د بغاوت لار اختيار کړي) ٦ نو هغه دې قتل کړل شي، يا پانسي دې شي، ٧ يا په قيد کې دې واچول شي، ٨ او دريم صورت د قتلِ نفس دی (چې کوم مسلمان څوک عمداً قتل کړي) نو د هغه په بدله کې دې هغه قتل کړل شي، (ابوداود)

**حل اللغات:** ① إِحْصَانٌ: نکاح کنبې راتلل ، واده کول. ② يُرْجَمُ: رجم کولې به شی، سنګسار. ③ مُحَارِبًا: جنګ کونکې، ④ يُصْلَبُ: پهانسی کولې به شی، ⑤ يُنْفَى: قيد کولې به شی.

**تسهیلات:**

**قوله: وَرَجُلٌ خَرَجَ مُحَارِبًا بِاللَّهِ:**

**د شوکمارو څلور قسمه سزاګانې:** دَدې قسم حديث دَتشريح اوتوضيح سره وړاندې تيرشوې دې ليکن دلته په دې حديث کنبې دَ ارتدادپه ځائی دَ غلا ذکردې کوم ته چه شوکمار هم وئيلې شی.

دلته دَ شوکمارو باره کنبې دَ دريوسزاګانو ذکرکړې شوې دې اودَ قرآن کريم په آيت کنبې دَڅلورو سزاګانوذکرراغلې دې. دَ سورت مائده آيت ٣٣داسې دې﴿ إِنَّمَا جَزَٰٓؤُا۟ ٱلَّذِينَ يُحَارِبُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَيَسْعَوْنَ فِى ٱلْأَرْضِ فَسَادًا أَن يُقَتَّلُوٓا۟ أَوْ يُصَلَّبُوٓا۟ أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُم مِّنْ خِلَٰفٍ أَوْ يُنفَوْا۟ مِنَ ٱلْأَرْضِ ﴾[سورة المائدة:٣٣].

يعنی ① يوه سزادا چه دغه سړې قتل کړې شی

② دويمه دا چه دې په سولئی کړې شی

③ دريمه سزا داچه دَدغه سړی لاس خپې په مخالف سمت کنبې پرې کړې شی

④ څلورمه دا چه دا سړې دَ وطن نه اوشړلې شی يعنی دَ زمکې نه اوويستلې شی په جيل کنبې واچولې شی.

**د ډاکوانو د سزا په ترتب (٢) کنبې مذاهب:**

① که چرې ډاکو اوشوکمار که مال نه وی لوټ کړې او څوك ئی قتل کړې وی نوهغه به صرف قتل کولې شی اوکه قتل ئی هم کړې وی او مال ئی هم لوټ کړې وی نوهغه به قتل

كولو سره په سولئي رازوړندولې شي.

④ امام مالك رحمه الله فرمائي چه ژوندي به زوړندولې شي او وژلې به شي اوكه هغه صرف مال لوټ كړې وي نو د هغه يولاس اويوه خپه به د مخالف سمت نه كټ كولې شي اوكه چرې ډاكو اوقزاق خلق ويرولې وي نه ئي مال اخستې وي اونه ئي قتل كړې وي نو په دې صورت كښې به دې د زمكې نه ويستلې شي اود وطن نه به شړلې شي.

**د جلاوطن كولو مطلب:**

اوس شوافعو حضرات فرمائي چه دا سړې به مسلسل د وطن نه شړلې شي. د يوې زمكې نه بلې ته او د هغه ځائي نه به بل ځائي ته شړلې شي دې د پاره چه دې په يوځائي كښې په آرام كينه نې. مگر احناف وائي د زمكې نه د ويستلو مطلب دادې چه د آزادې زمكې نه ئي اوباسئي او په جيل كښې ئي بند كړئي. دلته دا سوال دې چه په آيت كښې د څلورو سزاگانو ذكر دې او په حديث كښې د دريو ذكر دې چه په ظاهره تعارض دې نو ددې جواب دادې چه ډير قوي احتمال دې چه په حديث كښې د يوراوي نه د بيان دوران كښې د لاس خپې پرې كولو ذكر د څه وجې نه پاتې شوې دې. دلته په حديث كښې اود قرآن په آيت كښې د "او" لفظ د تفصيل بيانولو د پاره دې چه دا سزاگانې په دې ترتيب سره دي. بعضې وئيلي "او" د اختيار او تخيير د پاره دې.

**[٣٥٤٥] يو مسلمان په ويره كښې دا چولو ممانعت**

٣٥٤٥—[١٢] (١) [١] وَعَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى قَالَ: «حَدَّثَنَا أَصْحَابُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٢] أَنَّهُمْ كَانُوا يَسِيرُونَ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٣] فَنَامَ رَجُلٌ مِنْهُمْ فَانْطَلَقَ بَعْضُهُمْ إِلَى حَبْلٍ مَعَهُ لِأَخْذِهِ. [٤] قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يُرَوِّعَ مُسْلِمًا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابن ليلى (تابعي) رحمه الله وايي چې د محمد ﷺ صحابه ؤ رضي الله عنهم مونږ ته دا حديث بيان كړي، [٢] چې هغه په يوه موقع د شپي د رسول الله ﷺ سره په سفر كې ملگري وو. [٣] په هغوئ كې يو سړي چې اوده شو ، نو په هغوئ كې يو دويم سړی د خپل ځای نه (پاڅيدو سره) لاړل، او د خوب والا سره يوه رسۍ پرته وه، هغه يي را پورته كړه، د خوب والا په دي سره وويرېدی، [٤] حضور ﷺ هم د هغه دا حركت وليدلو (يا حضور ﷺ د هغه په باره كې واوريدل) نو وي فرمايل چې د يو مسلمان د پاره دا خبره حلاله نه ده چې هغه يو مسلمان وبيروي، ابوداؤد.

**حل اللغات:** ① يَسِيرُونَ: په سفر روان وی ② حَبْلٍ: رسۍ، ③ لِأَخْذِهِ: د راخستلو د پاره. ④ أَنْ يُرَوِّعَ: چه اوبيروی.

١) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب /باب من يأخذ الشيء على المزاح (رقم- ٥٠٠٤) واحمد في المسند: ٥/٣٦٢

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يُرَوِّعَ مُسْلِمًا:

**مسلمان لره د ويرولو حرمت:** د پوره حديث مضمون دا دې عبدالرحمن بن ابى ليلى د بعض صحابه كرامو نه نقل كوى چه هغوى يو كرت د رسول الله ﷺ سره په يو سفر كښې روان وو چه د هغوى يو ملګرې اوده شو چه هغه سره د هغه رسئ هم وه. د هغه يو ملګرى هغه رسئ اوچته كړه هسې د هغه د ويرولو دپاره په توقو كښې. چه كله هغه پاسيدو او وې كتل چه زما رسئ غائب ده نو اويريدو، رسول الله ﷺ ته هم د دې خبرې خبر ملاؤ شو نو هغوى پورته ذكر شوې جمله ارشاد اوفرمائيله چه د يو مسلمان دپاره جائز نه دى چه بل مسلمان اويروى.

**[٢٥٤٦] د اسلامى عزت كمولو څخه ځان ساتل**

٢٥٤٦ - [١٣] (١) [١] وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [٢] «مَنْ أَخَذَ أَرْضًا بِجِزْيَتِهَا فَقَدِ اسْتَقَالَ هِجْرَتَهُ [٣] وَمَنْ نَزَعَ صَغَارَ كَافِرٍ مِنْ عُنُقِهِ فَجَعَلَهُ فِي عُنُقِهِ [٤] فَقَدْ وَلَّى الْإِسْلَامَ ظَهْرَهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابودرداء رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه نقل كوي [٢] چې حضور ﷺ وفرمايل كوم سړى چې څه د جزيې والا زمكه واخسته، نو هغه خپل هجرت مات كړي. [٣] او چا چې د كافر ذلت د هغه د غاړې نه ښكلو سره په خپل څټ كې واچولى. [٤] نو هغه اسلام وروسته شا ته وغورځولى. (ابوداود)

**حل اللغات:** ① بِجِزْيَتِهَا: سره د جزيې، ② اسْتَقَالَ: مات ئې كړو. ③ نَزَعَ: وې ويستل. ④ صَغَارَ: ذلت. ⑤ عُنُق: څټ. غاړه. ⑥ وَلَّى: وې غورزولو.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ أَخَذَ أَرْضًا بِجِزْيَتِهَا:

**په حديث كښې د جزيه نه مراد:** علامه خطابى رحمه الله فرمائى په دې حديث كښې دَ جزيه نه مراد خراج دې يعنى چه كوم مسلمان دَ يوذمى نه خراجى زمكه واخستله نواوس به دا مسلمان خراج اداكوى اوپه دغه اخستلوسره دَ زمكې هغه خراج نه ساقط كيږى. دا مسلك دَائمه احناف دې په دې صورت كښې ئې "اسلام شاته اوغورزولو" سره تغليظ تشديد اوتهديداو زجرمقصود دې.

**قوله:** فَقَدِ اسْتَقَالَ هِجْرَتَهُ:

**دهجرت د ضائع كولو مطلب:** يعنى دغه سړى چه دَ داركفرنه داراسلام طرف ته كوم هجرت كړې وو هغه دا خراب اوبربادكړو. استقال دَ اقاله نه دې دَ واپس كولو په معنى كښې دې

١) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الخراج والإمارة والفيء /باب ما جاء في الدخول فى أرض الخراج (رقم-٣٠٨٢)

ځکه چه دَ خراج او جزيه کوم ذلت دَ ذمي په غاړه کښې پروت وو دغه سړی دَهغه دَ غاړې نه اوويستلو او په خپله غاړه کښې ئې واچولو.

**قوله: وَمَنْ نَزَعَ صَغَارَ كَافِرٍ مِنْ عُنُقِهِ**

**ه مذکوره جملې مطلب:** يعنی دَ خراج او جزيه کوم ذلت چه دَ ذمي په غاړه کښې پروت وو دې سړی دَ جزيه والا زمکه اخستلوسره دَ کافردَ غاړې نه هغه ذلت اوويستلو اوخپله غاړه کښې واچولو دَحديث دا آخری حصه دَدې دَ ړومبې حصې دَپاره بيان اوتفصيل دې

**[٢٥٤٧] په جنګ کښې د کافرانو د ولې ځغه د جدا اوسيدو حکم**

٣٥٤٧-[١٣] (١) ① وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ: «بَعَثَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَرِيَّةً إِلَى خَثْعَمَ ② فَاعْتَصَمَ نَاسٌ مِنْهُمْ بِالسُّجُودِ فَأَسْرَعَ فِيهِمُ الْقَتْلَ ③ فَبَلَغَ ذَلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَ لَهُمْ بِنِصْفِ الْعَقْلِ ④ وَقَالَ: أَنَا بَرِيءٌ مِنْ كُلِّ مُسْلِمٍ مُقِيمٍ بَيْنَ أَظْهُرِ الْمُشْرِكِينَ ⑤ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ لِمَ؟ قَالَ: لَا تَتَرَاءَى نَارَاهُمَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت جرير بن عبد الله وايي چې رسول الله ﷺ د قبيله خثعم مقابلې ته يو لښکر وليږلی، ② د هغه قبيلې څه خلقو (چې اسلام قبول کړي وو، ليکن د هغوئ استوګنه د قبيلې د کافرانو سره وه) د مونځ پناه ونيوله (يعني د لښکر ليدو سره هغوئ خلقو د خپل اسلام د ظاهرولو د پاره په سجده پريوتل چې لښکر والا ته علم اوشي چې دا مسلمانان دي، او دغه شان هغه د حملې نه وساتل شي) ليکن د هغوئ په قتل کې د تلواري نه کار وآخستی شو (يعني د لښکر والا د هغوئ په سجدو اعتبار ونه کړي او دا ګمان يې وکړي چې دا هم کافران دی، او محض د قتل نه د ځان ساتلو د پاره خپل ځان مسلمانان ظاهروي، هغوی هم قتل شو) ③ هر کله چې د دې واقعې اطلاع رسول الله ﷺ ته ورسيده، نو حضور ﷺ د هغه مقتولينو ورثاء ته د نيم ديت ورکولو حکم وکړي، ④ او وې فرمايل چې زه د هغه مسلمان د بيزاری اظهار کوم چې د مشرکانو په منځ کې اقامت اختيار کړي، ⑤ صحابه و ﷺ عرض اوکړو چې يا رسول الله! ﷺ ستا د بيزاری سبب څه دی؟ حضور ﷺ وفرمايل چې مسلمانانو ته د کافرانو نه دومره لرې اوسيدل پکار دی چې هغه د يو بل اور ونه ليدي شي (ليکن که يو مسلمان په کافرانو کې مخلوط پاتې شو، نو هغه ګويا د دې حکم پروا يې ونه کړه) ابوداود.

**حل اللغات:** ① سَرِيَّةً: لښکر، ② خَثْعَمَ: يوه قبيله ده. ③ فَاعْتَصَمَ: ځان ئې بچ کړو، پناه ئې حاصله کړه، ④ الْعَقْلِ: ديت، مالی معاوضه، ⑤ أَظْهُرِ: شاته، ⑥ لَا تَتَرَاءَى: چه اونه وينی دواړه،

---

١) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الجهاد، باب النهی عن قتل من اعتصم بالسجود (رقم-٢٦٤٥) والترمذی فی كتاب السير عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی كراهية المقام بين أظهر المشركين (رقم-١٦٠٤)

**تسهيلات:**

**قوله: فَاعْتَصَمَ نَاسٌ مِنْهُمْ بِالسُّجُودِ:**

**د اسلام د اظهار دپاره د سجدې كولو حكم:** دې نه مونځ كول مراددى. كله چه دغه نوى مسلمانانو اسلامى لښكراوليدلونودَ ځان بچ كولودَ پاره ئې مونځ كول شروع كړه اسلامى لښكر ګنړل چه دا خلق دَ ځان بچ كولودَپاره په سجده كښې پريوتلى دى ځكه ئې زر زر وهل شروع كړه. په غلط فهمئى كښې داسې اوشو. دَ حديث دَ ظاهرى الفاظونه معلوميږى چه دې خلقو سره څه تفصيلى علم نه ووصرف سجده ئې اوكړه دې دَپاره چه دَ اسلام اظهاراوكړى.

**قوله: بِنِصْفِ الْعَقْلِ:**

**د نيم ديت وركولو حكمت:** نبى كريم نيم ديت وركړو حالانكه هغوى ته دامعلومه وه چه دا مسلمانان وو. دائى دې طرف ته اشاره اوفرمائيله چه مسلمانانوله دَاسلام قبلولونه پس دَ كافرانو په مينځ كښې اوسيدل جائزنه دى ځكه چه داسې به مجاهدين په آزادئى سره او په آسانئى سره دَ كافرانوخلاف اونه جنګيدې شى. په دې وجه نبى كريم دَ داسې مسلمانانو نه دَ ويزارئى اعلان هم اوكړو څوك چه مشركانوسره ګډوډ اوسيږى. يارسول الله لم؟ دلته استفهام دې يعنى لاي شئ تكون بريئا اولاي شئ امرت بنصف العقل مطلب دادې يا رسول الله ﷺ تاسو نيم ديت ولې وركړو يا تاسو دَدوى نه ولې ويزاره كيږئى دَدې څه وجه ده؟

**قوله: قَالَ لَا تَتَرَاءَى نَارَاهُمَا:**

**د مذكوره جملې مفهوم:** دا جمله استينافيه ده او په دې كښې دَ ماقبل سوال علت بيان كړې شوې دې. يعنى دا ويزارى دَدې دَپاره ده چه داخلق كافرانوسره يوځائى ولې اوسيږى. دوى له دَ يوبل نه دومره لرې اوسيدل پكاردى چه دَ يوبل اور اونه وينى ځكه چه داسې ګډوډ اوسيدوسره به مسلمانان كافرانوسره جهاد څنګه كوى؟

**[٢٥٤٨] د تحقيق حال نه بغير څوك مه قتلوئ**

٢٥٤٨-[١٥] (١)[١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [٢] «الْإِيمَانُ قَيَّدَ الْفَتْكَ لَا يَفْتِكُ مُؤْمِنٌ. [٣] رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَقَالَ: أَنَا بَرِيْءٌ مِنْ كُلِّ مُسْلِمٍ مُقِيمٍ بَيْنَ أَظْهُرِ الْمُشْرِكِينَ [٤] قَالُوا: يَارَسُولَ اللهِ لِمَ؟ قَالَ: لَا تَتَرَاءَى نَارَاهُمَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهريره ﷺ د نبي كريم ﷺ نه نقل كوي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل [٢] ايمان خپل حامل يعنى مومن د دى خبري نه منع كوي، چې هغه څوك ناګهانه قتل

(١) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجهاد /باب فى العدوّ يؤتى على غرّة ويتشبّه بهم (رقم-٢٧٦٩)

کړي، نو هيڅ مومن دی ناګهان قتل نه کوي، [۳] د دې روايت امام ابوداؤد کړې دې او فرمائيلی ئې دی چې زه د هر مسلمان څخه بيزاره يم د مشرکانو په مينځ کښې اوسيږی [۴] صحابه کرامو عرض وکړو ولې؟ (تاسود دغه مسلمان څخه بيزاره ئې) [۵] رسول الله صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل. داسلام اور اودکفر اور په يوځائې کښې نه شی پاتی کيدی، (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ①قَيَّدَ: دا لفظ مشدد دې، دَ باب تفعيل نه، تړل اوبندول. ②الْفَتْكَ: ناڅاپی قتل، په غفلت کې قتل کول.

**تسهيلات:**

**قوله: الْإِيمَانُ قَيَّدَ الْفَتْكَ:**

**بغيرد تحقيقه د مسلمان يا ذمی کافر د قتل عدم جواز:** مطلب دا چه ايمان ناجائزقتل بندکړې دې لهذا په چا کښې چه ايمان وی هغه داسې حرکت نه شی کولې څوك چه داسې حرکت کوی په هغه کښې کامل ايمان نه وی. خلاصه دا چه يومسلمان يا ذمی کافر بغيردَ تحقيق نه قتل کول جائزنه دی اوکه چرې څوك مفسد اوغدار وی اودَ مسلمانانو خلاف منصوبه بندی کوی نودَهغه حکم جدا دې لکه چه کعب بن اشرف دَهغه دَ فسادد وجې نه اچانك دَ غفلت په حالت کښې قتل کړې شو.

**[۲۵۴۹] دَتختيدلی مرتدغلام سزا**

۳۵۴۹—[۱۲] (۱) [۱] وَعَنْ جَرِيرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَى وَسَلَّمَ قَالَ: [۲] «إِذَا أَبَقَ الْعَبْدُ إِلَى الشِّرْكِ فَقَدْ حَلَّ دَمُهُ» .رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جرير ﷺ د نبي کريم ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] هر کله چې يو غلام د شرك (يعني د دار الحرب جانب) ته وتښتيږي، نو د هغه خون به حلال وي. (ابوداود)

**حل اللغات:** ①أَبَقَ: اوتختی، تيخته ئې اوکړه. ②حَلَّ: حلال شو، جائزشو. ③دَمُ: وينه، قتل.

**تسهيلات:**

**قوله: إِذَا أَبَقَ الْعَبْدُ إِلَى الشِّرْكِ:**

**د تختيدلی غلام د قتلولو وجه:** يعنی چه يوغلام دَ خپل مولی نه په تيخته دار حرب ته لاړشی نوچه کوم مسلمان ته هغه ملاؤ شی هغه دې قتل کړی هغه مباح الدم دې ځکه چه داغلام به ځی اودَ کافرانو دَ تقويت ذريعه به جوړيږی. اوکه چرې دغه غلام کافر اومرتد کيدوسره لاړشی نوبيا په طريقه اولی دَهغه قتل کول حلال دی.

۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الحدود /باب الحکم فيمن ارتدّ (رقم-۴۳۶۰) واحمد فی المسند: ۳۶۲/۴

**[۳۵۵۰] د ګستاخ رسول ﷺ سزا**

۳۵۵۰-[۱۷] (۱) ۞ وَعَنْ عَلِيٍّ «أَنَّ يَهُودِيَّةً كَانَتْ تَشْتِمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ۞ وَتَقَعُ فِيهِ فَخَنَقَهَا رَجُلٌ حَتَّى مَاتَتْ ۞ فَأَبْطَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَمَهَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۞ دحضرت علي ﷺ نه روايت دى چې يوې يهودى ښځې به نبي كريم ﷺ ته بد رد ويل، ۞ او په حضور ﷺ كې عيب راښكلو سره طعن به يې كولى. د حضور ﷺ په شان كې دا ګستاخي يو سړي برداشت نه كړه، او د هغه ښځې غاړه يې خفه كړه. په هغه سره هغه مړه شوه، ۞ نبي كريم ﷺ د هغه خون معاف كړي، (ابوداود)

**حل اللغات:** ① تَشْتِمُ: بد رد وائي، كنځل كوى، ② وَتَقَعُ: عيب راښكاره كوى. طعن كوى. ③ فَخَنَقَ: مرئ ئې خفه كړه ،

**تسهيلات:**

**قوله: تَقَعُ فِيهِ:**

**د نبى كريم ﷺ ګستاخى كول:** يعنى په نبى كريم باندې به ئى طعن كولو بدې خبرې به ئى كولې دا كافره ښځه وه او ذميه وه.

**قوله: فَأَبْطَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَمَهَا:**

**د أبطل مطلب:** يعنى نبى كريم دَهغې وينه بې ځايه اوګرځوله. دَدې حديث نه معلومه شوه چه دَنبى كريم په شان كښې ګستاخى كونكې ذمى واجب القتل دې اودَ ده نه به دَده عهدذمه ختمولوسره مباح الدم كيږى

**د ګستاخ رسول سزا:** يعنى نبى كريم ته كنځلې كونكې مباح الدم دې زه هم دا اختياروم. دَ علامه بدرالدين عينى رحمه الله دَ دې فتوىٰ په رڼاكښې صاحب دَ فتح القدير ابن همام رحمه الله هم دغه فتوىٰ وركړې ده. دَمفتى روم ابو سعود رحمه الله هم دغه فتوىٰ ده، دَ صاحب شفاء هم دا فتوىٰ ده. دَ نيل الاوطار درمختار هم دغه فتوىٰ ده. او خير الرملى رحمه الله هم دَتعزير په توګه هم دغه فتوىٰ وركړې ده. (زجاجة المصابيح ج ۳ ص ۵۵) شكر دې الحمدلله دَ احناف دَ اكابرعلماؤ هم دغه مسلك دې اودا مونږ دَ زړه دَ ژوروالى نه خوښه وو. پوره تفصيل په زجاجة المصابيح (۳/۵۵) كښې كتلې شى.

**[۳۵۵۱] د جادوګر د قتل حكم**

۳۵۵۱-[۱۸] (۲) ۞ وَعَنْ جُنْدَبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۞ «حَدُّ السَّاحِرِ ضَرْبُهُ بِالسَّيْفِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

۱) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الحدود/باب الحكم فيمن ارتدّ (رقم-۴۳۶۲)

۲) اخرجه الترمذى فى كتاب الحدود عن رسول اللّٰه صلّى اللّٰه عليه وسلّم/باب ما جاء فى حدّ السّاحر(رقم-۱۴۶۰)

**ترجمه:**۱ او حضرت جندب رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل۲ د جادو گر حد (شرعي سزا) دا ده چې هغه په توره سره قتل کړل شي، (ترمذي)

**حل اللغات:** ①حَدُّ: شر عی سزا،

**تسهیلات: قوله:** حَدُّ السَّاحِرِ:

**د جادو وجود:** دَ علماء کرامو په دې باندې اتفاق دې چه جادوکول حرام دی. دَ اهل سنت په نیزجادو یوحقیقت دې اودَې اثر دې. دَمعتزله خیال دې چه دَجادو څه حقیقت نه وی دا صرف یوخیال اووهم دې. دَ جادو کونکو جادوگرو دَ سزاباره کښې دَ علماؤ اوفقهاؤ په اقوالو کښې څه اختلاف دې.

**د جادو گر په سزا کښې ۳ مذاهب:**

① دَامام مالك رحمه الله په نیز اودَ امام احمدبن حنبل دَ راجح قول مطابق ساحرکافردې او سحر زده کول او خودل هم کفردې. لهذا ساحربه قتل کولې شی اودَ ده نه به دَ توبې مطالبه نه شی کولې. خواه په یومسلمان باندې جادو کړې وی یاپه یوذمی باندې کړې وی

② امام شافعی رحمه الله فرمائی چه که دَ جادوگردا جادو موجب کفروی اوهغه توبه هم اونه کړی نوهغه به قتل کولې شی.

③ دَ احناف په نیز دې مسئله کښې لږ تفصیل دې. هغوی فرمائی که ساحر په خپل جادو کښې دَ شرك اودَ شركی كلماتو ارتكاب اوكړو اوموجب كفرعقيده ئی اوساتله نوهغه كافردې اوكه چرې دَ ساحرسحر دَ يوحرام كاردَ ارتكاب ذريعه جوړيږی يا دَ يوفريضې دَ ساقط كيدو اوترك سبب جوړيږی نوداسې سحر حرام دې اوكه په جادوكښې څه كفريه كلمات هم نه وی اودَ يوحرام ارتكاب هم نه وی اودَ يونيك مقصددَپاره اوكړې شی مثلاً په نسخه خاوند كښې جوړ پيدا كولو دَپاره اوكړی يا دَاهل حرب دَ يوساحردَ سحر دَختمولو دَپاره اوكړی نودامباح اوجائز دی. ليكن داخبره ياد لرئی چه دَ داسې صالح اومسلمان جادو گرپه دې دنياكښې چرته وجودهم شته كه نه؟.

**د جادو په ذريعه د قتل سزا:** داخبره هم ياد لرئی چه جادو چونكه دَ جوارحو عمل نه دې بلكه په ډيره صفائی سره دَ جوارح دَ استعمال نه بغير اثر اچولې شی. لهذا كه په سحر باندې څوك قتل كړې شو نوپه دې كښې قصاص نشته دې او په دې كښې تعزير دې چه دَتعزير په توگه به داسې جادوگر قتل كولې شی هم دغه دَ دې حد دې. علماؤ ليكلی دی چه دَ جادو په شان دَعلم نجوم زده كول او خودل اوهرقسم شعبده بازی زده كول اوخودل هم حرام دی. دَ جادو حقيقت اودَدې تعريفات او اقسامو بيان توضيحات ۲۴۸/۱باندې شوې دې هلته اوگورئی.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۳۵۵۲] دَ باغي دَ قتلولو حكم

۳۵۵۲–[۱۹] (۱) ١ وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ شَرِيكٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ «أَيُّمَا رَجُلٍ خَرَجَ يُفَرِّقُ بَيْنَ أُمَّتِي ٣ فَاضْرِبُوا عُنُقَهُ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ١ حضرت اسامه ابن شريك رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ كوم سړى چې د وخت د امام خلاف خروج (بغاوت) وكړي، او دغه شان هغه زما په امت كې تفرقه واچوي، ٣ نو د هغه څټ والوځوى. (نسايي)

**تسهيلات:**

**قوله:** أَيُّمَا رَجُلٍ خَرَجَ يُفَرِّقُ:

**د باغي د قتلولو وجه:** دَ مسلمانانو دَ اجتماعيت دَپاره خليفه وخت يو بنيادي حيثيت لري دَ هغه اطاعت په دې وجه په ټولو مسلمانانو باندې لازم كړې شوې دې دې دَپاره چه په امت كښې انتشار او افتراق رانه شي او امت خور اور نه شي. امام او خليفه دَ امت دَ وحدت علمبردار وى او هغه دَدې ذمه وار وى. خو كه يو سړې دَ دغه اجتماعي اتحاد او اتفاق دَدائرې نه اوځي او بغاوت كوى نو هغه دَ يو جرم نه بلكه دَ ډيرو جرائمو ارتكاب كوى. په دې وجه به هغه اول پوهه كولې شي او هغه ته به دَ سركشئ نه دَمنع كيدو وائى او كه دَهغه څه معقول اعتراض وى يا څه شك شبه وى او څه مطالبه ئې وى نو هغې ته به پوره توجوور كولې شي. كه دَاصلاح دَ دغه ټولو كوششونو باوجود هغه سړې دَخپلې سركشئ او بغاوت نه نه منع كيږى نو هغه دې قتل كړې شى دې دَپاره چه لويه فتنه پيدا نه شي لكه څنګه چه حضرت على رضي الله عنه خوارجو سره معامله كړې وه. دلته دا خبره دَ ياد ساتلو ده چه دا حق هغه خليفه او دَ مسلمانانو هغه بادشاه ته حاصل دې چه امت دَ اسلام په رڼا كښې چلوى ګنى خروج به جائز شي. تفصيل ان شاء الله باب الامارة كښې راتلونكې دې. الكاشف: ۷/۱۳۸.

## [۳۵۵۳] د خوارجو باره كښې د نبى عليه السلام خبر وركول

۳۵۵۳–[۲۰] (۲) ١ «وَعَنْ شَرِيكِ بْنِ شِهَابٍ قَالَ: ٢ كُنْتُ أَتَمَنَّى أَنْ أَلْقَى رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ٣ أَسْأَلُهُ عَنِ الْخَوَارِجِ فَلَقِيتُ أَبَا بَرْزَةَ فِي يَوْمِ عِيدٍ فِي نَفَرٍ مِنْ أَصْحَابِهِ ٤ فَقُلْتُ لَهُ: هَلْ سَمِعْتَ رَسُولَ اللهِ

۱) اخرجه النسائي في السنن كتاب تحريم الدّم/باب قتل من فارق الجماعة، وذكر الاختلاف على زياد بن علاقة، عن عرفجة فيه (رقم-۴۰۲۳)

۲) اخرجه النسائي في السنن كتاب تحريم الدّم/باب من شهر سيفه ثمّ وضعه في النّاس (رقم-۴۱۰۳)

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْكُرُ الْخَوَارِجَ؟ [۵] قَالَ: نَعَمْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأُذُنَيَّ وَرَأَيْتُهُ بِعَيْنَيَّ،

**ترجمه:** [۱] او حضرت شریك ابن شهاب (تابعي) رحمه الله وايي [۲] چې زما يوه دا لويه ارزو وه. چې زه د نبي كريم ﷺ د يو صحابي سره د ملاقات سعادت حاصل كړم. [۳] او د هغه نه د خوارجو په باره كې پوښتنه وكړم، چې نن صبا كوم خوارج پيدا كيږي، چې آيا حضور ﷺ د دوی متعلق پيش گويي كړي وه؟ نو زه د (يو صحابي) حضرت ابو برزه رضي الله عنه سره د اختر په ورځ د هغه د دوستانو په موجودگی كې يو ځاى شوم. [۴] او د هغه نه مي پوښتنه وكړه چې آيا تاسو د رسول الله ﷺ نه د خوارجو ذكر اوريدلی دی؟ [۵] هغه وفرمايل چې هو، ما په خپلو غوږونو سره د رسول الله ﷺ نه د خوارجو ذكر كول اوريدلی دی، او په خپلو سترگو سره مي دا واقعه هم ليدلي ده،

**حل اللغات:** ① أَلْقَى: ملاقات اوكړو.

[۱] أُتِيَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَالٍ فَقَسَمَهُ [۲] فَأَعْطَى مَنْ عَنْ يَمِينِهِ وَمَنْ عَنْ شِمَالِهِ [۳] وَلَمْ يُعْطِ مَنْ وَرَاءَهُ شَيْئًا، [۴] فَقَامَ رَجُلٌ مِنْ وَرَائِهِ فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ مَا عَدَلْتَ فِي الْقِسْمَةِ، [۵] رَجُلٌ أَسْوَدُ مَطْمُومُ الشَّعْرِ عَلَيْهِ ثَوْبَانِ أَبْيَضَانِ، [۶] فَغَضِبَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَضَبًا شَدِيدًا وَقَالَ: [۷] وَاللّٰهِ لَا تَجِدُونَ بَعْدِي رَجُلًا هُوَ أَعْدَلُ مِنِّي.

**ترجمه:** [۱] چې يو وخت د رسول الله ﷺ په خدمت كې څه مال راوړل شو، حضور ﷺ هغه مال (په حاضرينو د مجلس كې) داسې تقسيم كړي، [۲] چې كوم خلق د حضور ﷺ ښي طرف ته ناست وو، هغوئ ته يي وركړي، او كوم خلق چې چپ طرف ته ناست وو، هغوئ ته يي وركړي، [۳] ليكن كوم خلق چې د حضور ﷺ د شا طرف ته ناست وو، هغوئ ته يي ورنه كړي. [۴] نو د حضور ﷺ شا طرف ته په ناستو خلقو كې يو سړی اودريدلو او هغه اوويل چې اې محمد! ﷺ تا په تقسيم كې انصاف ونه كړي. [۵] هغه سړی تور رنگي وو، هغه د سر ويښتان خريلي وو. او هغه دوه سپيني جامي اغوستي وي [۶] (د هغه خبره اوريدو سره) رسول الله ﷺ سخت غضب ناك شو، او وي فرمايل [۷] چې قسم په خداى ته به زما نه وروسته يو سړی زما نه زيات انصاف كونكى پيدا نه كړي،

**حل اللغات:** ② وَرَاءَ: شاته. روسته. ③ مَطْمُومُ: طَمَّ يَطُمُّ د نصرينصرنه دي، ويښته پرې كړې شوي.

[۱] ثُمَّ قَالَ: يَخْرُجُ فِي آخِرِ الزَّمَانِ قَوْمٌ كَانَ هَذَا مِنْهُمْ [۲] يَقْرَأُونَ الْقُرْآنَ لَا يُجَاوِزُ تَرَاقِيَهُمْ [۳] يَمْرُقُونَ مِنَ الْإِسْلَامِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ [۴] سِيمَاهُمُ التَّحْلِيقُ لَا يَزَالُونَ يَخْرُجُونَ [۵] حَتَّى يَخْرُجَ آخِرُهُمْ مَعَ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ [۶] فَإِذَا لَقِيتُمُوهُمْ هُمْ شَرُّ الْخَلْقِ وَالْخَلِيقَةِ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او بيا يي وفرمايل چې په آخره زمانه كې به يوه ډله پيدا شي. او دا سړی گويا د هغي ډلي يو فرد دی. [۲] د هغي ډلي خلق به قرآن وايي ليكن د هغوئ ونيل به د هغوئ د

حلق نه مخکی نه ځي،[۴] او هغه خلق به [د امام وخت خلاف د خروج او سرکشئ په ذریعه] د اسلام نه داسې اُوځی. څنګه چې غشی د ښکار د منځ نه اُوځی،[۴] د هغه خلقو علامت دا دی چې هغوبه سرونه به خریلي وي، د دې ډلي خلق به (په هره زمانه کې پیدا کیدی شي) او همیشه به خروج کوی،[۵] ددي پورې چې د هغوئ آخري سړی به د مسیح دجال سره (د حضرت عیسی علیه السلام خلاف) خروج وکړي (هر کله چې هغه قیامت ته نزدې په دنیا کې نازل شي)[۶] نو کله چې ستاسو د هغوئ سره مقابله شی. نو هغه قتل کړئ. هغه خلق په سړو او څارویو کې بدترین مخلوق دي، (نسایي)

**حل اللغات**: ⑦تَرَاقِيَ : دَ ترقوت جمع ده مرئ ، حلق. ⑤يَمْرُقُونَ : اوځی به. خارجیږی.⑨سِيمَاً : شناخت. نشانی. ⑥التَّحْلِيقُ: سرخریل، یا حلقې جوړولو سره کیناستل ⑧الْخَلْقِ: مخلوق.⑨ الْخَلِيقَة: یوځناورذي.

**تسهیلات**:

**قوله**: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأُذُنَيَّ:

**د لفظ باذني او وبعيني د استعمالولو وجه**: یوروایت یقیني جوړولودپاره دَاقسم الفاظ صحابه کرامو استعمالول دې دَپاره چه اوریدونکی ته یقین راشی چه دې صحابی خپل لیدلي اوریدلي بیان کړې دې په مینځ کښې څه حواله او واسطه نشته دې.

**قوله**: رَجُلٌ أَسْوَدُ:

**د رجل اسود د قید اضافه کولو فائده**: علامه طیبی رحمه الله او ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه دامبتداء دَمحذوف خبردې یعنی "هورجل اسود" راوی دَدې جملې طرف ته اضافه کولو سره دې طرف ته اشاره اوکړه چه څنګه دَدغه سړی ظاهری شکل خبیث وو دَ هغه باطن هم دغه شان خبیث وو. الکاشف: **۷/۱۳۹**.

**دحدیث د بعضې جملو وضاحت**: ① مطموم الشعر: لکه څنګه چه داسړې دَ ویښتونه صفا راغلې وو هم دغه شان دَعقل شعور اوادب نه هم خالی راغلې وو.

② ثوبان ابيضان: یعنی دَ نفاق حامل وو اودَ پاسه ئی سپین لباس وو اودَ دننه تک تور وو لکه داسې وو "نظافة ظاهرة وكثافة باطنة" یاداسې اووایئی بیاض کسوته وسواد جثته

③ وَاللهِ لَا تَجِدُونَ بَعْدِي رَجُلًا هُوَ أَعْدَلُ مِنِّي.

اعدل دَ اسم تفضیل په معنی کښې نه دې بلکه نفس فعل عادل په معنی کښې دې لکه اهون هین په معنی کښې دې. الصیف احرمن الشتاء کښې احردَ نفس فعل په معنی کښې دې دغه شان دَ اعم واخص الفاظ دَ عام اوخاص په معنی کښې راغلی دی.

④ سيماهم: یعنی دادَهغوی داسې علامت دې چه هغوی سره لازم دې اودَ التزام په توګه

هغوی خپل کړې دي. که یوسړې دَ دغه عقیدې او التزام نه بغیر دَ سر ویښته خره وی نو هغه منع نه دې

**قوله: وَالْخَلِيقَةِ:**

**د خلیقه نه مراد:** یادَ انسان او جنات په مقابله کښې ځناوروته خلیقة وئیلې شوی دی اویا خلق تیرشوی مخلوق او خلیقة راتلونکې مخلوق ته وئیلې شوې دې. تفصیل تیرشوې دې. هرمسلمان له پکاردی چه هغه دَ خپلو مشرانو بزرگانو ادب اوکړی ځکه چه

**د ادب اهمیت:** ادب ثابت شوې حقیقت دې چه بې ادب کله هم نه کامیابیږی بلکه اکثر دَ یوې لوئی فتنې سبب جوړیږی او په دنیا اوآخرت کښې محروم کیږی.

نن صبانوې نسل چه دَهرخیرنه خالی ګرځی دَدې وجه هم دغه بې ادبی ده سکولونو اوکالجونو هغوی آزاد اوبې حیا او بې ادب جوړکړی دی. حضرت احمدعلی لاهوری رحمه الله په خپل ملفوظات کښې فرمائیلی دی چه انګریزانو زمونږ تخت په زور واخستو زمونږ تاج ئې واخستو زمونږ دین ئې واخستو اومونږ ئې په خپل دین باندې اعتراض کونکې پریخودو.

## [۲۵۵٤] په محشر کښې دوه قسمه مخونه

۳۵۵۴ــ[۲۱] (۱)[۱] وَعَنْ أَبِي غَالِبٍ «رَأَى أَبُو أُمَامَةَ رُءُوسًا مَنْصُوبَةً عَلَى دَرَجِ دِمَشْقَ [۲] فَقَالَ: أَبُو أُمَامَةَ كِلَابُ النَّارِ شَرُّ قَتْلَى تَحْتَ أَدِيمِ السَّمَاءِ [۳] خَيْرُ قَتْلَى مَنْ قَتَلُوهُ ثُمَّ قَرَأَ [۴] ﴿يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ﴾ [آل عمران: ۱۰۶] الْآيَةَ [۵] قِيلَ لِأَبِي أُمَامَةَ أَنْتَ سَمِعْتَ مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟

**ترجمه:** [۱] ابو غالب (تابعي) رحمه الله وايي چې حضرت ابو امامه (صحابي) رضي الله عنه يوه ورځ د دمشق په لار د خوارجو سرونه پراته وليدل (يا په پانسي زوړند شوي وليدل) [۲] نو وي فرمايل چې دا د دوزخ سپي دي، او د آسمان لاندي بدترين مقتولين دي، [۳] او بهترين مقتول هغه دی کوم چې دوئ قتل کړي وي، او بيا هغه دا آيت وويلو [۴] (ترجمه) د قيامت په ورځ به ډير مخونه منور وي او ډيرمخونه به تور وي الخ [۵] ابو غالب رحمه الله د حضرت ابو امامه رضي الله عنه نه پوښتنه وکړه چې آيا تاسو دا خبره د رسول الله ﷺ نه اوريدلي ده؟

**حل اللغات:** ① رُءُوس: سرونه. ② مَنْصُوبَةً: پراته. ③ عَلَى دَرَجٍ: درج جمع ده دَدې مفرد "درجة" ده کولاؤ لاره. اودَ پاټکوالا لوئی پاؤړئ ته هم "درجة" وائی. ④ كِلَابُ النَّارِ: د دوزخ سپی، ⑤ شَرُّ قَتْلَى: بد ترين وژلی شوی خلق. (دلته خوارج مراد دی) ⑥ خَيْرُ قَتْلَى: بهترين وژلی شوی خلق (دلته مسلمانان مراد دی) ⑦ أَدِيمِ: سطح، مخ، ⑧ تَبْيَضُّ: تک سپين به وی ⑨ وَتَسْوَدُّ: تک تور به وی.

۱) اخرجه الترمذي في كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب: ومن سورة آل عمران(رقم-۳۰۰۰) والنسائي في كتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب في ذكر الخوارج (رقم-۱۷۶)

[١] قَالَ: لَوْلَمْ أَسْمَعْهُ إِلَّا مَرَّةً أَوْمَرَّتَيْنِ أَوْثَلَاثًا [٢] حَتَّى عَدَّ سَبْعًا مَا حَدَّثْتُكُمُوهُ». [٣] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ.

**ترجمه:** [١] ابو امامه رضی الله عنه وفرمایل که ما دا خبره یو ځل، دوه ځله، درې ځله ،[٢] د دې پورې چې هغه اووه ځله (اوشمیرل) نه وی اوریدلی، نو ستا په مخکې به مې نه بیانوله (یعنې که ما دا خبره د حضور ﷺ نه په دومره په کثرت سره په وار وار نه وی اوریدلی، نو ستا په مخکې به مې نه بیانوله)[٣] ترمذي ابن ماجه، ترمذي رحمه الله ویلي دي چې دا حدیث حسن دی.

**تسهیلات:**

**دحدیث د بعضې جملو وضاحت:**

① **رؤسا منصوبة:** داسې معلومیږی چه دَ خوارج دَ قتل کولونه پس چاۮهغوی سرونه دَ عبرت دَپاره په سولئی باندې زوړند کړې وو یاهسې چرته په اوچت ځائی باندې کیخودلې وو.

② **تحت ادیم السماء:** ادیم دَ ظاهری سطح په معنی کښې دې که هغه دَ آسمان سطح اومخ وی کوم چه مونږ ته ښکاری یا دَ زمکې ظاهری مخ وی کوم چه ښکاری. په اصل کښې ادیم پوستکی او څرمن ته وائی ځکه چه هغه هم په ظاهری سطح باندې وی په دې وجه دا لفظ دَ ظاهری سطح دَپاره استعمالولې شی.

**قوله: كِلَابُ النَّارِ:**

**د خوارجو د خروج تاریخی پس منظر:** چونکه په حدیث کښې په خوارج باندې دَ "کلاب النار" اطلاق شوې دې. په دې وجه حضرت ابوامامه رضی الله عنه هغوی هم په دې نوم سره یادکړی اودا دَ خوارج دَ هغه خباثتونوطرف ته مخفی غوندې اشاره ده چه هغه خلق دَ اسلام اودَ هغې دَخلفاء باره کښې کوی لکه چه داخلق دَ اهل حق دَپاره دَ لیونو سپوپه شان دی چه خلق خوری اوبیابه داخلق په دوزخ کښې دَ سپو په شکل کښې ښکاره کیږی. دَ خوارج دَ خروج تاریخی پس منظر داسې دې چه مخکښې دا خلق حضرت علی رضی الله عنه سره ملګری وو اودَ حضرت معاویه رضی الله عنه خلاف جنګیدل. بیا دَ تحکیم واقعه پیښه شوه او واقعه داسې پیښه شوه چې په جنګ صفین کښې دَ حضرت علی فوجونوته دَ حضرت معاویه په فوجونو باندې فتح حاصلیدله. حضرت معاویه رضی الله عنه پریشان شو نوحضرت عمرو بن العاص رضی الله عنه هغوی ته اوفرمائیل چه تاسو خپل فوج ته حکم ورکړئی چه هغوی دې نیزو سره قرآن پاك اوتړی اوچت دې کړی اواعلان دې اوکړی چه زمونږ په مینځ کښې به دا قرآن فیصله کوی. کله چه هغوی داسې اوکړه او قرآن ئې په نیزوکښې اوچت کړو نود

حضرت علی ﷺ ملګرو اووئیل چه اوس جنګ جاری ساتل جائز نه دی ځکه چه په قرآن پاك باندې به فیصله کیږی حضرت علی ﷺ اوفرمائیل چه جنګ مه بندوئی دا د مخالفینو یوه حربه ده چه جنګ بند شي او د شکست نه بچ شي حضرت علی ﷺ هم دغه ملګرو په جنګ بندولو باندې مجبور کړو کوم چه روستو خوارج جوړشو هغوی وئیل مونږ د قرآن په مخکښې جنګیدوله نه ورځو چنانچه جنګ بند شو او د صلح خبرې اومذاکرات شروع شو فیصله په دې باندې اوشوه چه حضرت علی ﷺ اوحضرت معاویه ﷺ دواړه متنازعه جوړشوی وو په دې وجه دې دوی دواړه خپل اختیار یو دریم ګړی ته ورکړی اوهغه دریم ګړی چرته یو غیرمتنازع سړې خلیفه مقرر کړی هم دغه ثالثین مقرر کولو ته د تحکیم نوم ورکړې شوې دې حضرت علی ﷺ د خپل طرف نه خپل وکیل حضرت ابوموسی اشعری مقرر کړو اوحضرت معاویه ﷺ حضرت عمرو بن العاص ﷺ خپل وکیل مقرر کړو فیصله دا اوشوه چه دواړه وکیلان به راشی او د ټولو خلقو په وړاندې به خپل موکل د خلافت نه معزول کړی اوبیا به نوی خلیفه خوښ کړی چنانچه د معاهدې لاندې حضرت ابوموسی اشعری ﷺ د حضرت علی ﷺ د معزول کولو اعلان اوکړو لیکن حضرت عمرو بن العاص ﷺ اعلان اوکړو چه حضرت علی ﷺ د هغه وکیل معزول کړې دې اوس هغه خلیفه پاتې نه شو اوزه خپل موکل حضرت معاویه ﷺ په خلافت باندې هم هغه شان ساتم د دې اعلان نه پس بیا سخت جنګ شروع شو لیکن د حضرت علی ﷺ هم دې ملګرو د جنګ نه لاس راښکلو چه اول ئې په مذاکراتو باندې زور لګولې وو اوس دې خلقو دا وینا کول شروع کړه چه حضرت علی ﷺ د الله تعالی نه علاوه د انسانانو حکم اومنلو لهذا اوس دې کافرشوې دې ځکه چه د قرآن اعلان دې ﴿إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ ط﴾ حضرت علی ﷺ په ډیر محنت سره دغه خلق پوهه کړل لیکن دا خلق په بغاوت اودریدل او د حضرت علی ﷺ د فوج نه شپږ زره کسان جدائی اختیارولو سره کوفې سره حروراء مقام خپل مرکز جوړ کړو او حضرت علی ﷺ سره ئې جنګ اوکړو په جنګ نهروان کښې حضرت علی ﷺ د هغوی ډیرزیات خلق قتل کړې وو.

**د اسلام د دریو قائدینو د قتلولو منصوبه بندی:** بیا هم د دغه خلقو نه درې سړی په منصوبه بندئی سره د اهل اسلام درې لوئی قائدین وژلو د پاره مقرر کړې شو یوشیطان د حضرت معاویه د قتل کولو د پاره روان کړې شو دویم د حضرت عمرو بن العاص ﷺ د وژلو د پاره او دریم خبیث د حضرت علی د وژلو د پاره روان کړې شو د دې خبیث نوم عبدالرحمن بن ملجم وو باقی دوه خو په خپلو منصوبو کښې ناکام شو لیکن دې بدبخت د سحر د مونځ د پاره کوزیدو سره د حضرت علی ﷺ په سرباندې د توری ګذار اوکړو اوحضرت علی ﷺ شهید شو بیا دې اونیولې شو اوقتل کړې شو.

**د ابن ملجم په مدح کښې د یو خارجی شاعر اشعار**: دَ ابن ملجم بدبخت په تعریف کښې یو خارجی شاعر عمران بن حطان دا شعرونه اوونیل

یاضربة من تقی ما اراد بها　　　الا لیبلغ من ذی العرش رضوانا

واه واه دَ یو پرهیزګارد توري وار څه ښکلې وار وو په کوم سره چه صرف هغه دَعرش والا دَ خوشحاللو اراده اوکړه

انی لاذکره یوما فاحسبه　　　اوفی البریة عند الله میزانا

زه چه کله هغه یادوم نوخیال کوم چه دَ الله تعالی په نیزدَ هغه چاپړې دَ ټولو نه درونددې

اکرم بقوم بطون الارض اقبرهم　　　لم یخلطوا دینهم بغیا وعدوانا

هغه خلق څومره عزت مند دی دَ چا قبرونه چه دَ زمکې لاندې دی چاچه خپل دین دَ بغاوت اودَحق نه تجاوز کولو سره ککړ نه کړو.

**د ابن ملجم په مذمت کښې د ابو طیب طبری اشعار**: دَدې بدبخت دَ اشعارو په جواب کښې دَ اهل سنت نه قاضی ابو طیب طبری بهترین اشعار وئیلو سره اوفرمائیل

انی لابرأ مما انت قائله　　　فی ابن ملجم الملعون بهتانا

دَ ابن ملجم ملعون باره کښې تا دروغ وئیلی دی زه دَهغه نه بالکل ویزاره یم

انی لاذکره یوما فالعنه　　　دینا والعن عمران بن حطانا

زه چه کله هم هغه یادوم نو په هغه باندې اوهغه سره په عمران بن حطان باندې لعنت ورلیګم

علیکم ثم علیه الدهر متصلا　　　لعائن الله اسرارا واعلانا

په تاباندې اوبیا په ابن ملجم باندې دَ الله تعالی دَ طرف نه دَ همیشه دَپاره یوشان په پټه او په ښکاره لعنتونه دې وی.

فانتم من کلاب النار جآءلنا　　　نص الشریعة برهانا وتبیانا

نه خود دوزخ سپې ئی په دې دعوی باندې زمونږ سره په توګه دَ دلیل دَ شریعت واضح حدیث موجود دې (کذا فی حیاة الحیوان ۳۴/۱).

دَدې اشعارو په آخری شعرکښې قاضی ابو طیب طبری رحمه الله دَ مذکوره حدیث دَدغه جملې طرف ته اشاره کړې ده په کوم کښې چه کلاب النار موجود دې حضرت ابو امامه رضی الله عنه دَ قرآن کریم دَدې آیت طرف ته هم اشاره کړې ده ﴿يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ﴾ یعنی دَ خوارج مخونه به تک تور وی اودَمؤمنانو مخونه به روښانه وی. مشکوة شریف کښې دَ خوارج متعلق ډیر احادیث باب المرتدین کښې درج کړې شوی دی دَ کوم نه چه اشاره ملاویږی چه شاید خوارج دَ مرتدین په حکم کښې دی. دَتکفیرخوارج مسئله دې نه وړاندې تیره شوې ده.

**د خوارجو په باره کښې شرعي حکم:** حضرت شاه انورشاه کشمیري رحمه الله اکفار الملحدین کښې لیکلی دی چه "قال الغزالی فی الوسیط تبعاً لغیره فی حکم الخوارج وجهان احدهما انه کحکم اهل الردة والثانی انه کحکم اهل البغی ورجح الرافعی الاول الخ" یعنی امام غزالی رحمه الله په خپل کتاب وسیط کښې دَ عام علماؤ مطابق دَخوارج متعلق لیکلی دی چه دَدوی په شرعی حکم کښې دوه اقوال دی. اول دا چه دَدې خلقو حکم دَ مرتدینو په شان دې. دویم قول دا چه دَدوی حکم دَ باغیانو دې. علامه رافعی اول قول را جح ګرځولې دې. په دې کلام باندې حضرت شاه صاحب رحمه الله تبصره کولو سره فرمائی چه دا حکم دَهرقسم خارجیانو ته شامل نه دې ځکه چه خوارج په دوه قسمه دی یوخوهم هغه دی دَ کوم تذکره چه حضرت امام غزالی رحمه الله کړې ده او دویم قسم هغه خوارج دی کوموچه دَخپلې عقیدې اونظریاتوطرف ته دَ راغوښتلودَپاره خروج نه دې کړې بلکه په حکومت باندې دَ قبضه کولودَپاره خروج کړې دې. دا خوارج بیا په دوه قسمه دی یوهغه چاچه دَ ظالم حکمرانانو دَ ظلم دَ وجې نه او په قرآن اوسنت باندې عمل دَ نه کولودَ وجې نه دَهغوی خلاف دَ الله تعالی دَ دین په حمایت کښې خروج اوبغاوت کړې دې. داخلق اهل حق دی هم دَدوی نه حضرت امام حسین اودَ مدینې هغه علماء دی کومو چه دَ یزیدخلاف خروج کړې وو اوهم دَدوی نه هغه خلق دی چاچه دَحجاج بن یوسف خلاف بغاوت کړې وو. نور خوارج هغه دی چه صرف په حکومت باندې دَ قبضه کولودَپاره راؤځی هم هغه باغیان دی او (په احادیثوکښې هم دَدوی مذمت راغلې دې).

# [۱۷] كِتَابُ الْحُدُودِ

## دَ حدودبيان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثلاثة وثلاثون حديثاً مشتملة على اثنى عشرة مسئلة:**

① حد زنا الغلام والجارية: ۹، ۱۰، ۲۶.

② عدم الرجم لغير المحصن والتجليد له: ۱، ۳، ۴، ۱۹، ۲۷.

③ الرجم على المحصن والمحصنة: ۱، ۳، ۴، ۵، ۶، ۷، ۸، ۱۱، ۱۳، ۱۸، ۱۹، ۲۴.

④ أسباب ثبوت الحد: ۳، ۶، ۸، ۱۱، ۱۲، ۱۳، ۲۷.

⑤ الإعراض عن المقربالزنا والتلقين له: ۶، ۷، ۸، ۱۱.

⑥ الأمربالستر ودرأالحدود: ۱۳، ۱۴، ۱۶.

⑦ عدم عفو الإمام عن الحدود : ۱۵، ۳۲.

⑧ أسباب الدرا والتخفيف في الحدود: ۱۷، ۱۸، ۲۰، ۲۶.

⑨ قباحة الوطي فى الدبرومع البهيمة والحد فيهما: ۲۱، ۲۲، ۲۳، ۲۹، ۳۰، ۳۱.

⑩ حكم القذف: ۲۴، ۲۵.

⑪ قباحة الزنا: ۲۸.

⑫ فائدة إقامة الحدود: ۳۲.

**قوله: الحدود:**

**د حد لغوى معنى:** دَ حدجمع ده اوحد په اصل كښې دَ منع په معنى كښې دې دَ دې يوه معنى دَ حاجز هم ده يعنى دَ دوو څيزونوپه مينځ كښې حائل اومانع چه دواړه دَ ملاوولونه بنده وى. شرعى حدودهم انسان دَ ګناه نه منع كوى.

**د حد اصطلاحى تعريف:** فقهاء كرامو دَ شرعى حد اصطلاحى تعريف داسې كړې دې "الحدعقوبة مقدرة يجب حقاًالله تعالىٰ" يعنى دَ شريعت په اصطلاح كښې حد دَهغه متعين سزا نوم دې چه شريعت دَ حقوق الله دَ حفاظت دَپاره مقرر كړى دى.

**په تعريف كښې د مذكوره قيد (مقدرة) فائده:** په قيدسره تعزير اووتلو څكه چه دَتعزيرتعين شريعت نه كوى بلكه دَ شريعت په رڼاكښې دَدې تعين دَامام او قاضى په اختياركښې دې. په دې تعريف سره دَ حقا الله الفاظ سره حدوداوقصاص كښې هم فرق ښكاره شو. څكه چه دَ قصاص تعين حق العبد دَپاره كړې شوې دې. هم دغه وجه ده چه دَ ثبوت نه پس قصاص معاف كولې شى حدنه شى معاف كيدې.

**د شرعی سزاګانو قسمونه:** دَ قواعداوضوابط په رڼاکښې اسلامی شرعی سزاګانې درې قسم دی.

① هغه سزاګانې دی کومې چه الله تعالی پخپله متعین کړی دی لیکن دَهغې جاری کول ئی په بندیګانو باندې پرې خودې دی. په دې کښې دَ یوخارجی طاقت یعنی حاکم او حکومت ته دَ دخل کولو حق نشته دې. لکه چه دادَ متعلقه سړی دَذاتی نوعیت معامله ده اودې سړه به هغه پخپله ګوری. په شریعت کښې دَدې قسم سزاګانو نوم کفارات دې لکه دَ قسم کفاره او روژې وغیره کفاره.

② هغه سزاګانې دی دَ کوم مقدارچه شریعت مقررکړی دی اودَ کتاب اوسنت نه ثابتیدوسره سره دَ دې مقدار متعین هم دې. په شریعت کښې دَ داسې سزاګانونوم حدود دې لکه زنا غلا شراب څکل وغیره جرمونوسزاګانې دی. دَدې سزاګانودَ ثبوت نه پس حاکم اوقاضی نه دا ساقط کولې شی اونه کمې زیاتې کولې شی صرف دَ نافذ کولو حکم هغه سره دې. یعنی دَ قانون سازئی اختیار هغه سره نشته دې صرف دَ تنفیذ اختیاردې.

③ هغه سزاګانې دی کومې چه کتاب اوسنت خو متعین کړی نه دی لیکن دَ کومو خرابو کارونو په ارتکاب باندې چه دا سزاګانې ورکولې شی. شریعت دغه خراب کارونه دَ جرائم په فهرست کښې شمیرکړې دی اودَ سزا مقدار اودَ هغې دَ تعین مسئله دَ حاکم او قاضی په اختیارکښې پریخودې دی چه هغوی دې دَ شریعت دَ قواعدو په رڼا کښې دَ موقع مناسبت سره دَ دغه جرم دَ پاره سزا تجویزکړی دَ داسې سزاګانونوم په اسلام کښې تعزیردې.

**په څلور قسمه سزاګانود حد اطلاق:** په اسلام کښې په څلورو سزاګانودَ حدوداطلاق کیږی. ① حدزنا ② حد سرقه ③ حدقذف ④ حد خمر

**د حدود الله برکات:** حدودالله مقررولوکښې ډیر فائدې اوبرکتونه دی کوم چه څوک کماحقه نه شی بیانولې. ملاعلی قاری رحمه الله په دې په مرقات کښې تفصیلی رڼااچولې ده. په حدودالله کښې لوئی فائدې څکه دی چه دَدې په ذریعه لوئی لوئی خراب کارونه بندولې شی اوصرف دَ حدود په نفاذسره سړې دَ دغه ګنده کارونونه بچ کیدې شی. مثلاً حدزنا په نفاذ سره سړې دَ نسب دَ ضیاع، دَ اولاددَ ضیاع اودَ ځان دَ ضیاع اوتباهئی نه بچ کیږی اودا څیزونه په بین الاقوامی توګه دَ هرعقل مند په نیز واجب الحفاظت دی. حدخمر: سره دَ زوال عقل حفاظت کیږی اوزړه اودماغ په خپل ځائې پاتې کیدل په بین الاقوامی توګه مطلوب اومقصود امردې. حدقذف: سره عزت نفس اودَ ننګ اوناموس حفاظت کیږی چه په بین الاقوامی توګه یو محمود او ممدوح څیزدې. او حد سرقه: سره دَ مال دَ حفاظت انتظام کیږی اوامن او امان اودَ مال حفاظت په عالمی توګه باندې

دَهریو دَپاره ډیر ضروري دي. خلاصه دا چه دَ نسل حفاظت، عزت نفس، دَعقل حفاظت او دَ مال حفاظت داسې څیزونه دی دَ کوم په افادیت چه دَ ټولې دنیا انسانان متفق دی. لهذا هر یو عقل مند انسان په اسلامی حدود او په حدود آرډیننس باندې اعتراض نه شی کولې. بیا دَدې نه علاوه دَ مسلمانانو دَپاره دَ حدود الله دَ نفاذ لوئی لوئی برکتونه دی په حدیث شریف کښې دی دَ یو حد په نفاذ سره ملکی معیشت ته دومره فائده کیږی لکه څنګه چه دَ څلویښتو ورځو پورې په مفید او نافع باران سره کیږی.

بل په معاشره کښې او په سوسائټئی کښې حدود الله دَ امن او امان ضامن دی ځکه چه په معاشره کښې په سلو کسانو کښې که ۵فیصد خلق شرابیان کبابیان یاغله او زناکاروی نو هغوی دَ ۹۵فیصد خلقو ژوند په خطره کښې اچولو سره پریشانه کوی اسلام حکم ورکوی چه دغه پنځو ته سزا ورکړئی چه دَ ۹۵فیصد ژوند په امن امان عزت او شرافت سره تیرشی. مجرمانو خلقو ته چه دَهغوی دَ جرم سزا په دې دنیا کښې ورکړې شوه نو هغوی به دَ آخرت والا دَ دوزخ دَ سزا نه بچ شی. دا ټولې فائدې په حدود الله کښې دی شریعت دا نه غواړی چه خامخا دې څوك په تکلیف کښې کړی هغه حدود الله دَ انسانانو دَ تنګولو دَپاره نه دی مقرر کړی بلکه انسانان ئی انسانان جوړولو دَپاره مقرر کړی دی. په سعودی عرب کښې یو څو حدود قائم دی هلته څومره امن دې او په افغانستان کښې دَ طالبانو په اسلامی حکومت کښې هلته څومره امن او امان وو او هلته څومره شرافت او انسانیت وو دَ کوم مثال چه په دنیا کښې نه ملاویږی. خو دنیاته دا شرافت خوښ نه شو او ټول کافران، شیطانان، اشرار او منافقان یو ځائی شو دغه حکومت ئی راګذار کړو او س هلته نه امن دې نه انسانیت دې او نه شرافت دې.

**د صحابه کرامو نه د کبائرو په ارتکاب کښې حکمتونه:** دا خبره هم په ذهن کښې اوساتئی چه په شریعت کښې دَ څومره احکاماتو تجربه دَ نبی کریم په ذات باندې کیدلې شوه نبی کریم هغه احکامات په خپل عملی ژوند کښې راوستلو سره دَ امت مخې ته یوه نمونه وړاندې کړه لکه په نامه دَ یادیدونکی څوئی ښځې سره نکاح کول وغیره وغیره. لیکن کوم افعال چه داسې وو دکوم ارتکاب چه دَ نبی دَ شان منافی وو او دَ عصمت انبیاء کرام دَ اصولو منافی وو نو په داسې احکاماتو باندې په تکوینی توګه باندې په صحابه کرامو باندې عمل اوکړو دې دَپاره چه دَ راتلونکی امت دَپاره نمونه جوړه شی. لهذا په تکوینی توګه باندې دَ بعضې صحابه کرامو نه زنا اوشوه بعضې واقعات دَ غلا یا شرب خمر یا قذف رامخې ته شو نو دَ حد لګیدو سره دَ امت دَپاره دَ حد قائم کولو طریقه راپیدا شوه. دَ نفاذ حد ثبوت هم ملاؤ شو او دَ شریعت دَ احکاماتو تکمیل هم اوشو. لهذا په حدود کښې چه کله هم دَ یو لوئی ګناه ارتکاب دَ یو صحابی نه ښکاره شی نو هغې ته صرف دَ ګناه په

حيثيت سره مه گورئی بلکه هغه دَ تکمیل شریعت په آئینه کښې اوګورئی چه دلته هم صحابه کرامو خپل خانونه دَ دَ شريعت دَتكميل دَپاره پيش كړل كتاب حدود كښې باب قطع السرقة نه وړاندې به درې قسم احاديث راځی دَاکثر احاديثو تعلق حددَ زنا سره دې اودې په ضمن كښې دَ بعضې تعلق حدقذف سره دې دَباقی رواياتو تعلق حدلواطت سره دې لهذا په دې كتاب كښې دَ حد قذف دَپاره جدا عنوان نه دې كيخودلې شوې دغه شان دَ لوطی سزا دَپاره څه عنوان نشته دې دَ حدقذف نورتفصيل احاديث باب اللعان كښې تيرشوی دی

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۲۵۵۵] دَرسول پاکﷺ دَدربار نه دَزنا دَيوې مقدمې فيصله

۲۵۵۵-[۱] (۱) [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ «أَنَّ رَجُلَيْنِ اخْتَصَمَا إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۲] فَقَالَ أَحَدُهُمَا: اقْضِ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللّٰهِ. [۳] وَقَالَ الآخَرُ: أَجَلْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَاقْضِ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللّٰهِ [۴] وَأْذَنْ لِي أَنْ أَتَكَلَّمَ قَالَ: تَكَلَّمْ [۵] قَالَ إِنَّ ابْنِي كَانَ عَسِيفًا عَلَى هٰذَا فَزَنَى بِامْرَأَتِهِ

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهريره ﷺ او زيد ابن خالد ﷺ وايي چې (يوه ورځ) د رسول اللهﷺ په خدمت كې دوو خلقو خپله قضيه راوړه، [۲] په هغوئ كې يوه اوويل چې زمونږ په منځ كې د كتاب الله موافق حكم وكړه، [۳] دويم هم عرض اوكړو چې يا رسول الله ﷺ زمونږ په منځ كې د كتاب الله موافق حكم وكړه، [۴] او ماته اجازت راكړه، چې زه بيان وكړم (چې د قضيې صورت څه دی؟) حضورﷺ ورته وفرمايل بيان يې كړه، [۵] هغه سړي بيان وكړي، زما ځوی د دې سړي سره مزدور وو، هغه د ده د ښځې سره زنا وكړه،

**حل اللغات:** ① اِخْتَصَمَا: دوه كسانو جګړه اوكړه ② اِقْضِ: فيصله اوكړه، ③ أَجَلْ: ای نَعَم، آؤ. د تيرې شوې خبرې د اقرار كولو په وخت استعماليږی. ④ عَسِيف: مزدور، اجير.

[۱] فَأَخْبَرُونِي أَنَّ عَلَى ابْنِي الرَّجْمَ [۲] فَافْتَدَيْتُ مِنْهُ بِمِائَةِ شَاةٍ وَبِجَارِيَةٍ لِي [۳] ثُمَّ إِنِّي سَأَلْتُ أَهْلَ الْعِلْمِ [۴] فَأَخْبَرُونِي أَنَّ عَلَى ابْنِي جَلْدَ مِائَةٍ وَتَغْرِيبَ عَامٍ [۵] وَإِنَّمَا الرَّجْمُ عَلَى امْرَأَتِهِ

**ترجمه:** [۱] خلقو ماته اوويل چې ستا دځوی سزا سنګساري ده، [۲] ليكن ما هغه د سنګسارولو په بدله كې سل بزې (چيلئ) او يوه وينځه وركړه، [۳] بيا چې په دې باره كې

[1] ) اخرجه البخاری فی كتاب الأيمان والنّذور/باب: كيف كانت يمين النّبىّ صلّى الله عليه وسلّم (رقم-۶۶۳۳) ومسلم فی كتاب الحدود/باب من اعترف على نفسه بالزّنى (رقم-۲۵ - (۱۶۹۷) و ابو داود فی كتاب الحدود/باب المرأة الّتى أمر النّبىّ صلّى الله عليه وسلّم برجمها من جهينة (رقم-۴۴۴۵) والترمذی فی كتاب الحدود عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فی الرّجم على الثّيّب (رقم-۱۴۳۳) والنسائی فی كتاب آداب القضاة/باب صون النّساء عن مجلس الحكم (رقم-۵۴۱۰) و ابن ماجه فی كتاب الحدود/باب حدّ الزّنا (رقم-۲۵۴۹)واحمد فی المسند: ۱۱۵/۴

ما د علماوو نه معلومات وكړل.④ نو هغوئ اوويل چې (ستا خوی محصن نه دی يعنی واده والا نه دی ځکه) د هغه سزا سل دوري دی، او د يو كال جلا وطني ده.⑤ او د دې سړي د ښځي سزا سنګساري ده (ځکه چې هغه واده شوي ده)

**حل اللغات:** ⑤وَتَغْرِيبُ: جلا وطنی، د وطن نه ويستل. ⑥عَامٍ: يو كال.

① فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَمَا وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ ② لَأَقْضِيَنَّ بَيْنَكُمَا بِكِتَابِ اللهِ ③ أَمَّا غَنَمُكَ وَجَارِيَتُكَ فَرَدٌّ عَلَيْكَ ④ وَأَمَّا ابْنُكَ فَعَلَيْهِ جَلْدُ مِائَةٍ وَتَغْرِيبُ عَامٍ ⑤ وَأَمَّا أَنْتَ يَا أُنَيْسُ فَاغْدُ إِلَى امْرَأَةِ هٰذَا ⑥ فَإِنِ اعْتَرَفَتْ فَارْجُمْهَا، فَاعْتَرَفَتْ فَرَجَمَهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① رسول الله ﷺ (دا قضيه اوريدو سره) وفرمايل چې خبر شئ! قسم دی په هغه ذات پاك چې د هغه په لاس كې (يعني په قبضه د قدرت كې) زما ساه ده.② زه به ستاسو په منځ كې د كتاب الله موافق فيصله كوم.③ نو واوره ستا بزي (چيلئ) او ستا وينځه به تاته واپس دركول كيږي.④ او (كه خپله د ملزم اقرار يا د څلورو شاهدانو د شهادت سره) د زنا جرم ثابت وی، نو ستا خوی ته به سل دوري سزا وركول كيږي، او د يو كال د پاره به جلا وطن كول كيږي.⑤ بيا حضور ﷺ حضرت انيس رضي الله عنه مخاطب كولو سره ورته وفرمايل چې اې انيسه! ته د دې سړي ښځي ته ورشه.⑥ كه هغه د زنا اقرار وكړي. نو هغه سنګساره كړه، هغي ښځي د زنا اقرار وكړي، او حضرت انيس رضي الله عنه هغه سنګساره كړه. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ⑥فَاغْدُ: ورشه.

**تسهيلات:**

**قوله:** اقْضِ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللهِ:

**په حديث كښې د كتاب الله په مراد كښې دوه اقوال:** ① دې نه دَ الله تعالى حكم مراد دې ځكه چه دَرجم حكم دَ قرآن په الفاظو كښې موجود نه دې. "اي بحكم الله"

② مګربعضې علماء فرمائی چه مرادهم قرآن كريم دې دادَدې آيت طرف تـه اشاره ده چه اول نازل شوي وو بيائی الفاظ منسوخ شو اوحكم ئی باقی پاتې شو الفاظ دادی "الشيخ والشيخة اذا زنيا فارجموهما البتة نكالا من الله والله عزيز حكيم"

**د حديث د بعضې جملو وضاحت:** ① "فَاقْضِ" علامه طيبى رحمه الله ليكى چه دا فاجزائيه ده شرط ئی محذوف دې يعنی كله چه دَدې سړی بيان راشی نوتاسو هم دَ الله تعالى په كتاب باندې فيصله اوكړئی. دوارو متخاصمين اشاره اوكړه چه تاسو زمونږ په مينځ كښې خالص په كتاب الله باندې فيصله اوكړئی. دَ څه صلح اومصالحت ضرورت نشته دې كوم حكم چه دې هغه نافذ كړئی.

② جَلْدَ مِائَةٍ: جلد کوړې ته وائی شرعی کوړه دومره سخته نه وی دَ نن صبا حکمرانانو چه کومې کوړې دی داخو تباهی ده دَدې په لسو کوړو سره چه د سړی دَمرګ خطره وی الکاشف ۱۴۴/۷.

**قوله: وَتَغْرِيبُ عَامٍ:**

**د تعریب تعریف:** تغریب مسافر جوړول او دَوطن نه ویستو ته وائی

په دې باندې دَ ټولو فقهاوٗ اتفاق دې چه محصن یعنی واده شوې که هغه سړې وی او که ښځه کله چه دَ زنا ارتکاب اوکړی او دَ ګواهانو په ذریعه یا په اقرار سره زنا ثابته شی نو دا به رجم یعنی سنګسارولې شی او که چرې محصن نه وی یعنی ناواده کړې وی نو دَ جرم دَ ثابت کیدو نه پس به سل کوړې وهلې شی.

**د جلاوطنی باره کښې ۳ مذاهب:**

دَفقهاوٗ په دې کښې اختلاف چه آیا دَ ټول کال دَپاره دَ وطن نه ویستل په حد کښې داخل دی که دا دَ تعزیر حصه ده.

① امام شافعی رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی که غیر محصن سړې وی او که ښځه دَ کوړو وهلو نه پس دَ یو کال دَ پاره تغریب یعنی دَ وطن نه ویستل دَ زنا دَحد حصه ده

② دَامام مالک رحمه الله په نیز تغریب عام دې په دې به عمل کیږی لیکن دا صرف دَ سړو پورې خاص دی او دَ ښځو دَپاره دَ فتنې په وجه دا حکم نه دې ځکه چه که ښځه دې دَ وطن اویستله نو فتنه به نوره هم زیاته شی.

③ احناف وائی چه دَ ټول کال دَپاره دَ وطن نه ویستل په حد کښې داخل نه دی داخو صرف تعزیر دې. که چرې امام او قاضی سیاسةً او حکمةً څوک دَ وطن نه ویستل مناسب ګڼړی نو دَ مصلحت په توګه دې هغه دَ علاقې نه اوویستلې شی مګر بهتر تغریب دادې چه هغه په جیل کښې واچوی او دَ پوره کال دَپاره دې دَ تنهائی په قید کښې پروت وی. شوافعو دَ تغریب عام مسافت درې ورځې اودرې شپې فاصله مقرر کړې ده

**داول فریق دلائل:** ① هغه ټول احادیث د دوی مستدل دې په کومو کښې چه دَ سلو کوړو سره دَ تغریب عام ذکر راغلې دې دَدې باب حدیث نمبر (۳۵۵۸) هم ددوی مستدل دې

② دغه شان حدیث نمبر (۳۵۵۵)د دوی مستدل دې.

③ دغه شان حدیث نمبر (۳۵٦٦) هم د دوی مستدل دې. دا روایات د دوی به مدعا باندې واضح دلائل دی.

**داول فریق د د لائلو مجموعی جوابونه:** ① دَتغریب حکم سیاست او مصلحت باندې مبنی دې لکه چه دا دَ تعزیر یوه حصه ده. که چرې قاضی دا مناسب ګڼړی نو داسې دې اوکړی

لکه څنګه چه دَ حضرت عمر رضي الله عنه نه هم دَ تغریب واقعه نقل ده.

② داحکم په شروع کښې وو بیا موقوف یا منسوخ شو. دَدې وجه داده چه نبی کریم دَ زنادَ حد په څو واقعاتو کښې دَ کوړو نه پس دَ تغریب عام حکم نه دې کړې که چرې داحکم واجب العمل وې نونبی کریم به کله هم دَدې نه ډډه نه کوله. بهرحال که چرې قبائلی نظام ته اوکتلې شی نودا حکم اوس هم هلته موجود دې او په دې باندې عمل کولوسره لوئی لوئی فتنې بندیږی. احناف هم دې ته سیاست وائی.

**د دریم فریق دلائل:** دَ قرآن کریم آیت ﴿مِائَةَ جَلْدَةٍ﴾ د دوی مستدل دې. دا آیت مطلق دې که دَ زناکار دَ کوړو سره دَ ټول کال دَپاره دَ وطن نه ویستل په حد کښې داخل اومنلې شی نودا به دَدې آیت په حکم باندې زیاتوالې شی کوم چه مناسب نه دې.

② دَ خلفاء راشدینو رضي الله عنهم فیصلې هم د دوی مستدلات دی. په مصنف عبدالرزاق کښې دَ حضرت علی رضي الله عنه په حواله سره یوروایت نقل کړې شوې دې چه حضرت علی رضي الله عنه اوفرمائیل "کفی بالنفی فتنه" دَ وطن نه ویستل دَ فتنې دَ زیاتولودَپاره کافی دی.

③ په مصنف عبدالرازق کښې دَ حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په حواله سره نقل کړې شوی دی چه هغوی امیه بن ربیعه دَ وطن نه اویستلو نوهغه عیسائی جوړشو په دې باندې عمر فاروق رضي الله عنه اوفرمائیل "لااغرب بعده مسلماً" زه به اوس هیڅ یومسلمان دَ وطن نه نه اوباسم دا الفاظ په واضحه توګه دا ښائی چه تغریب دَ حد حصه نه ده که چرې دا سې وې نوحضرت عمر رضي الله عنه داکله هم نه شو ختمولې. (دادواړه روایتونه زجاجة المصابیح ۵۹/۳ باندې دی).

**قوله:** فَإِنِ اعْتَرَفَتْ فَارْجُمْهَا:

**د زنا د اقرار په صورت کښې د تعدد د اقرار او د مجالسو باره کښې ۲ مذاهب:**

①اوس دا مسئله زیربحث ده چه آیا په یوځل اعتراف بالزناباندې به حد جاری کیږی یا دَ اعتراف دَپاره تعدد شرط دې بل په دې کښې هم کلام دې چه آیا په یومجلس کښې اعتراف کول کافی دی یا په څلور مجالسو کښې جدا جدا اعتراف کول ضروری دی. په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.

① امام شافعی رحمه الله او امام مالک رحمه الله فرمائی یوځل اقرار کول دَ زنادَ ثبوت دَپاره کافی دی اودَ مجلس دَ تعدد او اعتراف دَ تعدد هیڅ ضرورت نشته دې.

② امام ابوحنیفه رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی چه دَ زنادَ ثبوت دَپاره څلور ځل اقرار کول شرط دې دې دَپاره چه دَ څلورو ګواهانو په ځائی شی. بل دَ یومجلس په ځائی دَ څلورو مجالسو تعددهم لازم دې.

**داول فريق دليل:** ① زيربحث حديث د دوى مستدل دې. په دې كښې چه دَ يوځل اقرار كولوذكر دې اودَ مجلس دَ تعدد هم څه ذكر نشته دې.

**داول فريق د دليل جواب:** په دې كښې دَ جنس اعتراف ذكر دې په دې كښې دَ يويا دو ذكر نشته دې نه دَ نفى ذكر دې نه دَ اثبات ذكر دې. نو په دې كښې خويا هم هغه معهود ځلور اعتراف مراد دى يا روايت مجمل دې. دَدې تفسير او تفصيل دَ حضرت ماعز رضي الله عنه په روايت كښې دې.

**د دويم فريق دليل:** ① دَ حضرت ماعز رضي الله عنه په واقعه كښې ځلور ځل د اقرار كولوذكر راغلې دې. نبى كريم درې ځل هغه واپس كړو اوپه ځلورم ځل ئى دَ رجم حكم وركړو كه چرې په يوځل يا دوو ځلوپه اقرار سره حد واجب كيدلو نونبى كريم به دَ ماعز رضي الله عنه دَ واپس كولو په ځائى فورى توګه باندې حد جارى كولو. دَحضرت ماعز رضي الله عنه دَ رجم په ټولو رواياتو باندې كه چرې نظرواچلوې شى نو په تعدد مجلس او تعدد اقرار كښې به چاته څه شك باقى پاتې نه شى.

**[۲۵۵٦] دغير محصن زاني سزا**

| |
|---|
| ۲۵۵٦—[۲] ( ) ①وَعَنْ زَيْدِبْنِ خَالِدٍقَالَ: «سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ②يَأْمُرُفِيمَنْ زَنٰى وَلَمْ يُحْصَنْ ③جَلْدَمِائَةٍ وَتَغْرِيبَ عَامٍ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |

**ترجمه:** ①او حضرت زيد ابن خالد رضي الله عنه وايي چې ما د نبي كريم صلى الله عليه وسلم اوريدلى دى ② چه د غير محصن (٢) زاني په باره كې ئې حكم اوفرمائيلو③ چې هغه دي سل دوري ووهل شي. او د يوكال د پاره دي جلا وطن كړل شي، (بخاري)

**حل اللغات:** ①وَلَمْ يُحْصَنْ: واده او نكاح ئې نه وه كړې، ②تَغْرِيبَ: جلا وطنى.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَمْ يُحْصَنْ:

**د احصان شرطونه:** زناكاركه غيرمحصن وى نودَهغه سزا سل كوړې دى ليكن كه چرې زانى محصن وى نودَ هغه سزا رجم ده. اوس دَ احصان زنا اومحصن جوړيدو څه شرطونه دى. علماؤ دَ پنځوشرطونوذكر كړې دې.

① بلوغ ② عقل ③ واده كيدلوسره خلوت صحيحه كونكې ④ آزادى، يعنى حريت ⑤ اسلام

(١) اخرجه البخارى فى كتاب الحدود/باب البكران يجلدان وينفيان (رقم-٦٨٣١)

(٢) محصن: هغه عاقل وبالغ او مسلمان ته وايي چى واده يې شوى وى، او د خپلې ښځې سره يې صحبت كړى وى.

دا احصان دَ زناشرطونه دی دَ احصان قذف هم دغه شرطونه دی صرف هلته دَ واده کړې کیدو په ځائې پاکدامن کیدل شرط دې. که چرې مقذوف پاکدامن نه دې نو په قاذف باندې به حد دَ قذف نه لګی

**د اسلام په شرطیت کښې مذاهب:**

① شوافعو اوحنابله فرمائی دَ زنادَ سزا دَپاره مسلمان کیدل شرط نه دې

② احناف اومالکیه فرمائی چه احصان الزنا دَپاره اسلام شرط دې لهذا ذمی اوذمیه که چرې زنا اوکړی نوحدبه نه نافذ کیږی.

**داول فریق دلیل:** نبی کریم دَ دوو یهودیانو په مینځ کښې دَ حدزنا حکم نافذکړې وو حالانکه هغه غیرمسلم وو دَ کومو قصه چه وړاندې راځی.

**داول فریق د دلیل دوه جوابونه:** ① دا حکم دَ تورات وو دَ قرآن عظیم نه وو هم دغه وجه ده چه په یهودیانو باندې تورات وئیلوسره فیصله صادر کړې وه.

② یا هغه حکم دَ تنکیل او عبرت دَپاره په توګه دَ سیاست ووچه په یهودیانو کښې دَزنا رواج عام شوې وو.

**د دویم فریق دلیل:** دَ حضرت ابن عمر رضی الله عنهما مرفوع اوموقوف روایت د دوی مستدل دې دکوم الفاظ چه علامه زیلعی رحمه الله نصب الرایه کښې داسې نقل کړی دی. "من اشرك بالله فليس بمحصن".

**[۳۵۵۷] د محصن زانی سزا**

[۳]-۳۵۵۷ (١) ① وَعَنْ عُمَرَ قَالَ: «إِنَّ اللَّهَ بَعَثَ مُحَمَّدًا بِالْحَقِّ ② وَأَنْزَلَ عَلَيْهِ الْكِتَابَ ③ فَكَانَ مِمَّا أَنْزَلَ اللَّهُ عَلَيْهِ آيَةُ الرَّجْمِ ④ رَجَمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَجَمْنَا بَعْدَهُ ⑤ وَالرَّجْمُ فِي كِتَابِ اللَّهِ حَقٌّ عَلَى مَنْ زَنَى ⑥ إِذَا أُحْصِنَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ ⑦ إِذَا قَامَتِ الْبَيِّنَةُ ⑧ أَوْكَانَ الْحَبَلُ أَوِ الِاعْتِرَافُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت عمر رضی الله عنه وايي چې بلا شبه الله تعالیٰ محمد صلی الله علیه وسلم د حق سره رالیږلی، ② او په هغه يې خپل کتاب نازل کړي، ③ الله تعالیٰ چې (په هغه کتاب کې) څه نازل کړي دی، په هغه کې آيت د رجم هم دی، ④ رسول الله صلی الله علیه وسلم هم رجم کړي دي اودهغه نه وروسته مونږ هم رجم کړي دي. ⑤ او په کتاب الله کې د هغه سړي د رجم (سنګسار) کولو حکم ثابت دی، چې زنا وکړي، ⑥ اوهغه محصن وی که څه هغه سړی وي يا ښځه وي ⑦ (او د

(١) اخرجه البخاری فی کتاب الحدود/باب الاعتراف بالزّنا (رقم-۶۸۲۹) ومسلم فی کتاب الحدود/باب رجم الثّيّب فی الزنی (رقم-۱۵ - (۱۶۹۱) و ابو داود فی کتاب الحدود/باب فی الرّجم (رقم-۴۴۱۸) والترمذی فی کتاب الحدود عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب ما جاء فی تحقیق الرّجم (رقم-۱۴۳۲) وابن ماجه فی کتاب الحدود/باب الرّجم (رقم-۲۵۵۳) ومالک فی الموطا کتاب الحدود/باب ما جاء فی الرّجم (رقم-۱) واحمد فی المسند:۱/۴۰

رجم سزا به هغه وخت ورکول کیږي، هر کله چې د زنا جرم ثابت شي د شاهدانو په ذریعه
[٨] یا د حمل په ذریعه یا د اعتراف او اقرار په ذریعه وي، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ①الْحَبَلُ: حمل، ②الإعْتِرَافُ: اقرار کول.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَالرَّجْمُ فِي كِتَابِ اللهِ:

**په کتاب الله کښې د رجم آیت:** حضرت عمر رضي الله عنه په دې جمله کښې دې آیت طرف ته اشاره کړې ده چه کوم یوځل په قرآن کښې نازل شوې وو لیکن بیا دَدې الفاظ منسوخ شو اوحکم باقي پاتې شو هغه آیت دا وو "الشيخ والشيخة اذا زنيا فارجموهما البتة نكلا من الله والله عزيز حكيم" اوس دا آیت دَ تلاوت دَپاره منسوخ او حکم ئې باقي دې.

**د غیرمحصن دپاره د سلو کوړو سزا:** په اسلام کښې ناواده کړې غیرمحصن سړی دَپاره دَسل کوړو سزا موجود ده په دې کښې خودَ هیڅ شك شبه گنجائش نشته.

**د قرآن اوسنت نه د رجم اثبات:** دَ رجم دَ سزا حکم هم دَ قرآن کریم دې اودَ قرآن نه ثابته ده لیکن دې دَپاره چه کوم آیت رانازل شوې وو دکوم الفاظ چه پورته ذکرکړې شو هغه منسوخ التلاوة دې اوحکم اوس هم موجود دې. اوداسې کیږی دا زمونږ فیصله نه ده نه دا زمونږ معامله ده. دَ صحابه کرامو اوشارع اسلام معامله اوفیصله ده. دَ صحابه کرامو هم دغه گواهي ده چه داسې شوی دی بیا په دې باندې دَ هغوی اجماع منعقد ده چه دَ رجم حکم دَ قرآن حکم دې.

**د عمررضي الله عنه خطبه:** حضرت عمرفاروق رضي الله عنه په مسجدنبوی کښې په خطبه کښې اعلان اوکړو چه رجم دَ الله تعالی حکم دې اوپه قرآن کښې دې. دَ یوې اوږدې زمانې تیریدونه پس به خلق وائي دَ رجم حکم قرآن کښې نشته دې په دې سره به هغوی گمراه شي. قسم په خدائی که خلقودانه وئیل حضرت عمر رضي الله عنه په قرآن کښې اضافه کړې نوما به دا آیت په قرآن کښې داخلولوسره دَ الفاظ لیکلو.

**په قرآن کښې د یهودو د رجم واقعه،** دَدې واقعاتو اواشاراتو نه ثابته شوه چه رجم کول دَقرآن حکم دې بل دَ یهودیانودَ رجم نه په انکارباندې په قرآن کریم کښې یوه رکوع دَ رجم دَ ثبوت متعلق راغلې ده سورة مائده رکوع نمبر۷ کتل پکاردی. بل احادیث مبارکه دَ رجم په سلسله کښې په تواترسره راغلي دی.

دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم عمل او رجم کول او په صحابه کرامو باندې نافذکول اودَ مدینې په یهودیانو باندې هم نافذکول دا واضح دلائل دی چه دَ رجم حکم دَ قرآن او اسلام حکم دې. په حضرت عمر فاروق رضي الله عنه باندې دې دَ الله تعالی رحمتونه وی دَهغوی دَ ایماني نور

دَ وجې نه دَ لرې نه راتلونکې فتنې په نښه کړې شوې صحابه کرامو دا جاری اوساتلې په دې باندې دَ صحابه کرامو اجماع ده اودَ نبی کریم دَ ژوند مبارك غیرمبهم واقعات دی دَ خوارج نه سوا اودَ نن صبا ملحدینو اومنافقینونه بغیرچادې نه انکار نه دې کړې

**قوله أَوْكَانَ الْحَبَلُ:**

**د پیغلې د حمل ښکار کیدو په حکم کښې ۲ مذاهب:**

دَ ثبوت حد دَ ګواهانو قیام یا دَ مرتکب جرم پخپله اقرار کول خوکافی دی په دې کښې دَ چاهم اختلاف نشته دې. البته په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې که چرې دَ ناواده کړې ښځې حمل ښکاره شی نودَ هغې څه حکم دې.

① امام ابوحنیفه رحمه الله امام مالك رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی دَ حمل په ښکاره کیدو باندې به دَ زناحد نه شی لګولې.

② امام شافعی رحمه الله فرمائی چه دَحمل ښکاره کیدل په ناواده کړې ښځه کښې دَ زنادَ حد دَ ثبوت دَپاره کافی دې

**داول فریق دلیل:** په زیر بحث حدیث کښې ذکوره جمله "اوکان الحمل" د دوی مستدل دې

**د اول فریق د دلیل جواب:** دادَ سبب بعیده په توګه ذکرکړې شوې دې چه کله بغیردَ خاوندنه بچې ښکاره شی نوبیابه په ګواهانو باندې ثبوت کیږی اویا به په اقرار باندې ثبوت کیږی اوبیابه حد لګی. دامطلب نه دې چه صرف دَ حمل په بنیاد به حد لګی بهر حال دا تاویل کمزورې دې.

**د دویم فریق دلیل:** دَ حمل وجود محتمل دې کیدې شی چه دَ اکراه په صورت کښې وی یا دَ اشتباه دَ وجې نه وی یا په حالت نوم کښې وی یا غیراختیاری توګه باندې وی دَدې احتمالاتو دَ وجې نه به حد ساقط کیږی ځکه چه "الحدود تندرئ بالشبهات" یوه واضحه قاعده ده

**[۲۵۵۸] د واده شوې زاني او زانيه د پاره د رجم حکم**

۲۵۵۸—[۴] (۱)① وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ②«خُذُوا عَنِّي خُذُوا عَنِّي قَدْ جَعَلَ اللهُ لَهُنَّ سَبِيلًا، ③ الْبِكْرُ بِالْبِكْرِ جَلْدُ مِائَةٍ وَتَغْرِيبُ عَامٍ ④ وَالثَّيِّبُ بِالثَّيِّبِ جَلْدُ مِائَةٍ وَالرَّجْمُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت عباده رضی الله عنه ابن صامت راوي دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② «د

---

(۱) اخرجه مسلم فی کتاب الحدود/باب حدّ الزنی (رقم-۱۲ - (۱۶۹۰) و ابو داود فی کتاب الحدود/باب فی الرّجم (رقم-۴۴۱۵) والترمذی فی کتاب الحدود عن رسول الله صلی الله علیه وسلّم/باب ما جاء فی الرّجم علی الثّیب (رقم-۱۴۳۴) وابن ماجه فی کتاب الحدود/باب حدّ الزّنا(رقم-۲۵۵۰) واحمد فی المسند:۳۱۳/۵

زانيه په باره كي، ما نه دا حكم حاصل كړي، چې الله ﷻ د ښځو د پاره لار مقرر كړيده.[۳] كوم غير محصن سړی چې د يوې غير محصنې ښځې سره زنا وكړي، نو سل دورې دې ووهل شي، او د يو كال د پاره دې جلاوطن كړل شي،[۴] او كوم محصن سړی چې د يوې محصنې ښځې سره زنا وكړي، نو سل دورې دې ووهل شي، او سنګسار دې كړل شي، (مسلم)

**حل اللغات**: ①خُذُوا: واخلئ. حاصل كړئ. ②الْبِكْرُ: غيرمحصن. ناواده سړی. ③جَلْدُ: كوړه. دوره ④وَالثَّيِّبُ: محصن. واده والا سړی. ⑤الرَّجْمُ: سنګسار كول. په كاڼړو ويشتل.

**تسهيلات**:

**قوله**: قَدْ جَعَلَ اللّٰهُ لَهُنَّ سَبِيلًا:

**د سبيل د وعدې پوره كول**: نبی كريم دا ارشاد ځكه فرمائيلې چه دې نه وړاندې دَ قرآن په آيت كښې دَ زناكار سړی او زناكارې ښځې حدنه وو مشروع شوې هغه آيت دادې ﴿وَالّٰتِیْ یَاْتِیْنَ الْفَاحِشَةَ مِنْ نِّسَآئِكُمْ فَاسْتَشْهِدُوْا عَلَیْهِنَّ اَرْبَعَةً مِّنْكُمْ ۚ فَاِنْ شَهِدُوْا فَاَمْسِكُوْهُنَّ فِی الْبُیُوْتِ حَتّٰی یَتَوَفّٰىهُنَّ الْمَوْتُ اَوْ یَجْعَلَ اللّٰهُ لَهُنَّ سَبِیْلًا﴾ سورة النساء: ۱۵.

دَدې ايت نه پس چه كله دَ سورت نور آياتونه نازل شو او په هغې كښې دَ زناحد راغلو نونبی كريم اعلان اوكړوچه الله تعالى دَ لارې راويستلو كومه وعده كړې وه هغه ئې پوره كړه. اوس الله تعالى دَهغوی دَپاره لار مقرركړه چه دَ ناواده كړی سړی اوښځې دَپاره سل كوړې او دَ يوكال دَپاره دَ وطن ويستل دی اودَ واده كړی دَپاره سل كوړې اورجم دې.

**قوله**: وَالثَّيِّبُ بِالثَّيِّبِ جَلْدُ مِائَةٍ وَالرَّجْمُ:

**د جمع بين الرجم والجلد حكم**:

دَدې حديث په آخری جمله كښې داحكم وركړې شوې دې چه ناواده كړې زناكار اوزناكاره ښځې اول سل كوړې اووهئ اوبيائې رجم كړئې. دَدې نه معلومه شوه چه كوړې وهل اوسنګساركول په يوانسان باندې يوحد كښې جمع كيدې شي.

**يو كس ته د رجم او كوړو دواړو سزاګانو وركولو كښې مذاهب**

① اهل ظواهر اوبعضې تابعينو دَدې احاديثوپه ظاهر باندې عمل كړې دې او رجم سره ئې اول دَ كوړو سزا جائز ګرځولې ده.

② دَ جمهورفقهاؤ اوجمهورامت په نيز رجم سره دَ كوړو سزا نه شی وركولې.

حديث كښې تاويلونه:

جواب ① دَ دوی دَطرف نه دَ دې حديث يوجواب دادې چه دا حكم منسوخ شوې دې ځكه چه نبی كريم روستو رجم سره كوړې نه دی جمع كړی دادَدې حكم دَ منسوخ كيدو دليل دې

②**دویم جواب:** دادې كه چرې كوړې لګول رجم سره د يوحديث نه ثابت شي نودا حكم به سياسةً وى حداً به نه وى

**دريم جواب:** دادې چه بعضې وخت نبي ، كريم يوسړي په يوجرم كښې په كوړووهلې مګر روستو معلومه شوې چه دا سړې محصن وو په دې وجه بيانبي كريم رجم هم كړې دې په كوم سره چه رجم او جلد جمع شو. بهر حال په عهدنبوى كښې د هميشه معمول نه كيدو د وجې نه دا تاويلونه اوكړې شو

**[۲۵۵۹] په تورات كښې د واده شوي زنا كار دپاره د رجم سرا**

۳۵۵۹-[۵] ()[۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ، «أَنَّ الْيَهُودَ جَاءُوا إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[۲] فَذَكَرُوا لَهُ أَنَّ رَجُلًا مِنْهُمْ وَامْرَأَةً زَنَيَا،[۳] فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا تَجِدُونَ فِي التَّوْرَاةِ فِي شَأْنِ الرَّجْمِ؟[۴] قَالُوا: نَفْضَحُهُمْ وَيُجْلَدُونَ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت عبدالله ابن عمر ﷺ وايي چې (يوه ورځ) د يهوديانو يو جماعت د حضور ﷺ په خدمت كې حاضر شو ،[۲] هغوئ د حضور ﷺ په مخكې دا بيان وكړې. چې د هغوئ په قوم كې يوي ښځي او يوه سړي (چې دواړه محصن، يعنى واده يې شوي وو) زنا وكړه ،[۳] حضور ﷺ د هغوئ نه پوښتنه وكړه چې ستاسو په تورات كې د رجم په باره كې څه ويلي دي؟[۴] يهوديانو اوويل چې مونږ زنا كونكي ذليل او رسوا كوو، او هغه په دورو وهو (د هغوئ داخبره اوريدو سره)

**حل اللغات:** ①نَفْضَحُ: مونږ به رسوا كړو

[۱] قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ: كَذَبْتُمْ إِنَّ فِيهَا الرَّجْمَ،[۲] فَأْتُوا بِالتَّوْرَاةِ فَنَشَرُوهَا[۳] فَوَضَعَ أَحَدُهُمْ يَدَهُ عَلَى آيَةِ الرَّجْمِ[۴] فَقَرَأَ مَا قَبْلَهَا، وَمَا بَعْدَهَا،[۵] فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ: ارْفَعْ يَدَكَ. فَرَفَعَ فَإِذَا فِيهَا آيَةٌ،[۶] فَقَالُوا: صَدَقَ يَا مُحَمَّدُ، فَإِنَّ فِيهَا آيَةَ الرَّجْمِ،[۷] فَأَمَرَ بِهِمَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَرُجِمَا.

**ترجمه:**[۱] حضرت عبدالله ابن سلام ﷺ اوويل چې تاسو خلق دروغ وايئ، په تورات كې هم د رجم حكم موجود دى،[۲] تورات راوړي (زه تاسو ته د رجم حكم ښايم) كوم وخت چې تورات راوړل شو، او هغه كولاؤكړل شو ،[۳] نو په يهوديانو كې يو سړي په هغه ځاى لاس كيښودلو، چرته چې د رجم په باره كې آيت وو (يعني هغه په خپلو لاسونو سره د رجم آيت د پټولو كوشش وكړي)[۴] او د هغه مخكې او وروسته آياتونو وئيل يې شروع كړل [۵] (د دې ليدو سره) حضرت عبد الله ابن سلام ﷺ ورته اوويل چې خپل لاس لرې كړه، هغه

---

[۱]) اخرجه البخارى فى كتاب الحدود/باب أحكام أهل الذمّة وإحصانهم. إذا زنوا ورفعوا إلى الإمام (رقم-۶۸۴۱) ومسلم فى كتاب الحدود/باب رجم اليهود أهل الذمّة فى الزنى (رقم-۲۶ - (۱۶۹۹)) و ابو داود فى كتاب الحدود/باب فى رجم اليهوديين (رقم-۴۴۴۶) كتاب الحدود/باب ما جاء فى الرّجم (رقم-۱) واحمد فى المسند:۵/۲

خپل لاس لرې کړي، بيا ټولو وليدل، چې هلته هغه آيت ليکل شوی وو، چې په هغه کې د رجم حکم وو، ⑥ يهوديانو اوويل چې اې محمد ﷺ عبدالله ابن سلام رينښتيا وايي. په دې کې د رجم آيت دی، ⑦ نو حضور ﷺ د هغه دواړو د زاني او زانيه د سنګسارولو حکم وکړي. او هغه دواړه سنګسار کړل شو

**حل اللغات:** ⑥ فَنَشَرُوْ: کهلاؤ ئې کړو. پرانې نستلو

> ① وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: ارْفَعْ يَدَكَ. فَرَفَعَ فَإِذَا فِيهَا آيَةُ الرَّجْمِ تَلُوحُ، ② فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ إِنَّ فِيهَا آيَةَ الرَّجْمِ، ③ وَلَكِنَّا نَتَكَاتَمُهُ بَيْنَنَا، ④ فَأَمَرَ بِهِمَا، فَرُجِمَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① په يو روايت کې داسې دي چې حضرت عبدالله ابن سلام ﷺ هغه سړي ته (چې هغه د رجم آيت تر خپل لاس لاندې د پټولو کوشش کړي وو) اوويل چې خپل لاس لرې کړه، هغه چې خپل لاس لرې کړي، نو وليدل شو چې هلته د رجم آيت موجود وو. ② د هغه آيت پټونکي اوويل چې اې محمد ﷺ په تورات کې د رجم آيت موجود دی. ③ خو مونږ په خپل منځ کې دا نه ښکاره کوو، ④ د دې نه وروسته حضور ﷺ د هغه دواړو د سنګسارولو حکم وکړي، او هغه سنګسار شو ، (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ③ تَلُوحُ: ښکاره کيدو. ④ نَتَكَاتَمُهُ: مونږ دا پټولو، نه مو ښکاره کولو.

**تسهيلات:**

**قوله:** «أَنَّ الْيَهُودَ جَاءُوا:

**په يهودو د رجم حکم جاري کولو دوه وجوهات:** ① دَ احصان دَپاره اسلام شرط دې خو په دَ يهودو دَ رجم کولو حکم ځکه صادر کړې شو چه نبی کريم داحکم دَ تورات مطابق صادرکړي وو او په تورات کښې دَ رجم دَپاره احصان شرط نه وو.

② دغه وخته پورې دَ قرآن حکم نه وو راغلې نو په تورات باندې عمل اوکړې شو کله چه دَ قرآن حکم راغلو دَ تورات حکم منسوخ شو. لهذا اوس به په ذمی باندې دَ رجم حکم نه شی جاری کولې. په دې مسئله کښې دَشوافعو اوحنابله اختلاف مخکښې ليکلې شوې دې.

**په ابوداؤد کښې په مذکوره حديث کښې تفصيل:** ابوداؤدشريف کښې دَدې قسم حديث کتاب الحدود باب رجم اليهودين کښې راغلې دې په هغې کښې دومره اضافه ده چه کله نبی کريم ﷺ يهودو سره بيت المدارس يعنی دَهغوی په مدرسه کښې کيناستو نوهغوی دَ نبی کريم دَ اکرام دَپاره تکيه کيخوده نبی کريم تورات راؤغوښتلو چه کله تورات راوړلې شو نونبی کريم تکيه دَ لاندې نه اوچته کړه مخې ته ئې کيخوده او په هغې باندې تورات کيخودو اوتورات ئې په زمکه باندې کينخودو. دې نه ټولو عربوته دا سبق ملاويږی چه هغوی په زمکه باندې قرآن کيخودوسره بې آدبی کوی اودَ قرآن احترام نه کوی.

د ابوداؤد د حدیث الفاظ دادی: ((ثم قال ائتونی بالتوراة فاتی بها فنزع الوسادة من تحته ووضع التوراة علیها وفی روایة ووضع الوسادة تعظیما لکتاب الله تعالی وقال آمنت بك وبمن انزلك))(ابوداؤد: ۲/۲۵۵).
سره ددې چه تورات منسوخ شوې کتاب وومګر د الله تعالی طرف ته د منسوب کیدو وجې نه نبی کریم د هغې احترام اوکړو او په غیرمحروف تورات باندې د ایمان راوړلو اعلان اوکړو اوس که یومسلمان دخپل عظیم کتاب قرآن پاك اود الله تعالی دعظیم کتاب احترام نه کوی نوهغه ددې د فوائدو اوبرکتونونه څنګه مالا مال کیدې شی؟ قالہ اللہ الستکی

**قوله:** فَوَضَعَ أَحَدُهُمْ يَدَهُ عَلَى آيَةِ الرَّجْمِ:

**په تورات کښې د رجم حکم پټولو کوشش:** دا د تورات یوعالم وو د کوم نوم چه ابن صوریا وو مګر د یهودیانو په رګ اوریشه کښې د الله تعالی په کتابوکښې د تحریف ماده ورکلکه شوې وه په دې وجه په دغه ډك مجلس کښې هم د حق د پټولو اوپه ګوتو سره زور ورکولو کوشش ئی کولو. د نن صبا مسلمانان حکمرانان د یهودیانودغه فریضه اداکوی اود قرآن احکام پټوی دغه وخت عبدالله بن سلام رضی الله عنه یهودیان رسوا کړل اونن صبا علماء حق دا فریضه اداکوی. یهودیانو اعتراف اوکړو چه په مونږ کښې کله اثر والا او صاحب اقتدار اومالدار طبقه دزنا ارتکاب کوی نومونږ دهغوی دپاره د تورات د رجم حکم نرم کړو اوهغه په کوړو سره او لعن طعن کښې بدلوو او په غریب باندې یودم پوره حکم جاری کوو. دغه شان په تورات کښې تحریف اوشو افسوس چه د نن صبا ملحد حکمرانان د الله تعالی د کتاب حکم په غریبانانو باندې هم نافذ کولوته نه پریږدی

**[۳۵۶۰] دزنا په اقرار سره د حد جاری کول**

۳۵۶۰-[۲] ()[۱] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: «أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ فَنَادَاهُ: ۲ يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي زَنَيْتُ. ۳ فَأَعْرَضَ عَنْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ۴ فَتَنَحَّى لِشِقِّ وَجْهِهِ الَّذِي أَعْرَضَ قِبَلَهُ فَقَالَ: إِنِّي زَنَيْتُ، ۵ فَأَعْرَضَ عَنْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ۶ فَلَمَّا شَهِدَ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ دَعَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې (یوه ورځ) نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته یو سړی راغلی، کله چې حضور صلی الله علیه وسلم په مسجد نبوي کې تشریف فرماوو. هغه سړي آواز وکړي. ۲ چې یا رسول الله! صلی الله علیه وسلم زما نه زنا شویده. ۳ حضور صلی الله علیه وسلم (د دي اوریدو سره) د هغه نه خپل مخ واړولی. ۴ هغه سړي بیا هغه طرف ته د حضور صلی الله علیه وسلم مخ مبارك ته راتلو سره ودریدلو. کوم جانب ته چې حضور صلی الله علیه وسلم مخ ګرځولی وو. او هغه اوویل چې زما نه زنا شویده. ۵

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب الطّلاق/باب الطّلاق فی الإغلاق والکره. والسکران والمجنون وأمرهما. والغلط والنّسیان فی الطّلاق والشّرک وغیره (رقم-۵۲۷۱) ومسلم فی کتاب الحدود/باب من اعترف علی نفسه بالزّنی (رقم-۱۶ - (۱۶۹۱)

حضور ﷺ بیا خپل مخ د هغه طرف نه وګرځولی.[٦] ددې پورې حې دغه شان هغه څلور خله د خپل جرم اقرار وکړې، نو حضور ﷺ هغه ځان ته راوغوښتلی،

**حل اللغات:** ①فَتَنَحَّى: یو طرف هت شو رادیخوا شو. راتاؤ شو ②لِشِقٍّ: طرف. ③أَعْرَضَ: چه اړولې ئې وو، ④قِبَلَهُ: هغه طرف ته.

[١] فَقَالَ: أَبِكَ جُنُونٌ؟ قَالَ: لَا.[٢] فَقَالَ: أُحْصِنْتَ؟ قَالَ: نَعَمْ يَا رَسُولَ اللهِ.[٣] قَالَ: اذْهَبُوا بِهِ فَارْجُمُوهُ.[٤] قَالَ ابْنُ شِهَابٍ: فَأَخْبَرَنِي مَنْ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللهِ يَقُولُ فَرَجَمْنَاهُ بِالْمَدِينَةِ[٥] فَلَمَّا أَذْلَقَتْهُ الْحِجَارَةُ هَرَبَ حَتَّى أَدْرَكْنَاهُ بِالْحَرَّةِ[٦] فَرَجَمْنَاهُ حَتَّى مَاتَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[١] او پوښتنه یې ورنه وکړه چې ته لیونی شوی یې؟ هغه اوویل چې نا.[٢] بیا حضور ﷺ پوښتنه ورنه وکړه چې آیا ته محصن یې یعنی واده والا یې؟ هغه اوویل چې هو. یا رسول الله ﷺ[٣] د دې نه روسته، حضور ﷺ صحابه ؤ ﷺ ته وفرمایل چې دا سړی بوځئ او سنګسار یې کړئ.[٤] د دې حدیث د یو راوي ابن شهاب بیان دی. کوم سړي چې دا حدیث د حضرت جابر ﷺ ابن عبد الله نه اوریدلی وو، هغه ماته وښودل (حضرت جابر ﷺ اوویل چې) مونږ د حضور ﷺ د دې حکم نه وروسته هغه سړی په مدینه کې سنګسار کړې [٥] (مونږ چې په کاڼو ویشتل شروع کړل، او) هغه ته کاڼی لګیدل شروع شو . نو هغه وتښتیدلی، ددې پورې چې مونږ هغه په حَرّه کې ونیولی (د مدینې هغه مضافاتي علاقه، چې د تورو کاڼو والا وه، حره به یې ورته ویل)[٦] او بیا هغه سنګسار شو . ددې پورې چې مړ شو . (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ⑤جُنُونٌ: لیونتوب. ⑥أُحْصِنْتَ؟: آیا تا واده کړې دې؟ ⑦أَذْلَقَتْ: ویشتل. کاڼړي لګیدل. ⑧هَرَبَ: اوتختیدلو. ⑨أَدْرَكْنَا: مونږ بیا موندلو. ⑩الْحَرَّةِ: د یو ځائې نوم دې

[١] وَفِي رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ عَنْ جَابِرٍ بَعْدَ قَوْلِهِ قَالَ: نَعَمْ[٢] فَأَمَرَ بِهِ، فَرُجِمَ بِالْمُصَلَّى،[٣] فَلَمَّا أَذْلَقَتْهُ الْحِجَارَةُ فَرَّ فَأُدْرِكَ،[٤] فَرُجِمَ حَتَّى مَاتَ،[٥] فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرًا وَصَلَّى عَلَيْهِ».

**ترجمه:**[١] او د امام بخاري ﷺ په یو بل روایت کې چې حضرت دجابر ﷺ نه منقول دی.چې دحضور ﷺ په دې پوښتنې چې آیا ته محصن یې؟ د هغه سړي د جواب چې هو، نه وروسته دا الفاظ دي.چې [٢] د دې نه وروسته حضور ﷺ د هغه سړي د سنګسارولو حکم ورکړې. نو هغه په عیدګاه کې سنګسار کړل شو .[٣] هر کله چې په کاڼو لګیدل یې شروع شو ، نو هغه وتښتیدلی، خو بیا ونیول شو .[٤] او سنګسار شو ، ددې پورې چې مړ شو .[٥] د هغه د مرګ نه وروسته حضور ﷺ د هغه تعریف وتوصیف بیان کړې، او په هغه یې دجنازې مونځ وکړې یاد وصلی علیه مطلب دادی چې دهغه د پاره یې دعا وکړه.

**حل اللغات:** ⑪الْمُصَلَّى: د مونځ ځائې، (عیدګاه مراد ده).

**تسهيلات:**

**قوله**: أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ:

**د احنافو د مذهب دليل**: په دې جمله سره دَ احناف او حنابله مسلك په واضحه توګه باندې ثابتيږي چه څلور ځل اقرار دَ زنادَ ثبوت دَپاره ضروري ګنړي. شوافعو او مالكيه يوځل اقرار كافي ګنړي.

**قوله**: أَبِكَ جُنُونٌ؟:

**د حد ساقطولو كوشش كول**: دَدې جملې نه معلوميږي چه قاضي اوحاكم له پوره تحقيق كول پكاردي اودا كوشش كول پكاردي چه اعتراف كونكې خپل بيان بدل كړي دې دَپاره چه حد ساقط شي په دې شرط چه په دې معامله كښې دَ شرعي قواعد پوره خيال اوساتلې شي دا تحقيق دَ اعتراف په صورت كښې دې. دَ ګواهانودَ ګواهئ په صورت كښې نه دې هلته په ګواهانوباندې دَ جرح مسئله ده.

**قوله**: فَلَمَّا أَذْلَقَتْهُ الْحِجَارَةُ:

**د مرجوم تختيدل**: اذلاق په تيره خيزباندې څوك زخمي كولوسره كمزورې كولوته وائي مطلب داچه كله دَ كانړو ګذارونو هغه زخمي كولوسره كمزورې اوعاجزجوړكړى نو "هرب" هغه اوتختيدو.

**مقر بالزنا ته د حد ساقطيدو موقعې وركول** : دلته مسئله داسې ده كه چرې مجرم اقراري اوتختى نوهغه پسې شاته نه دى لګيدل پكار كيدې شي چه هغه دَ خپل اقرار نه رجوع كوى اودا رجوع كول ترآخروخته پورې صحيح ده. هم دغه وجه ده چه شريعت په قصاص كښې توره مقرركړه څكه چه هلته دَ سزا شروع كيدو سره حكم سرته رسول ضروري دى نودَ څه مهلت وركولوفائده نشته دې.

ليكن دلته چونكه دَ زنا اقرار دې نوكوم وخت هم داسړې دَ زنانه انكاركولې شي اوپه دغه انكارسره به حد ساقط شي. هم دَدې حكمت دَ وجې نه شريعت دلته دَ سنګسار كولو حكم وركړې دې دَپاره چه ترآخروخته پورې دَ بچ كيدو مهلت موجود وى. دلته كه چرې دَ ګواهانودَ وجې نه جرم ثابت شوې وى نوبيا دَ انكار هيڅ فائده نشته دې. هلته دَ ګواهانو په رجوع سره حد ساقط كيدې شي. په دې حديث كښې دَ مرجوم دَ تيختې نه معلومه شوه چه په رجم كښې مرجوم دَ رجم كولودَپاره تړل ضروري نه دى اونه په څه كنده كښې ساتل ضروري دى. اوښځه به دَ پردې دَ حفاظت دَ وجې نه په كنده كښې اودرولو سره رجم كولې شي.

**قوله: فَرُجِمَ بِالْمُصَلَّى:**

**په رواياتو کښې تعارض:** نو اوس به دا اعتراض نه راځي چه بعضې رواياتو کښې بقيع غرقد سره د سنګسارکولو ذکر ملاويږي بعضې کښې د مصلى ذکر راغلې دې اوبعضې کښې د حره تذکره ده کوم چه تعارض په نښه کوي

**د تعارض جواب:** بقيع غرقد سره جنازه ګاه وه نودواړه هم يوځائي دي او د حره ذکر ځکه راغلې دې چه دا سړې د هغه ځائي پورې نختيدوسره وتلې وو نوهلته هم د رجم عمل شوې وو

**د مصلى نه مراد:** که چرې د مصلى نه عيدګاه مراد وى نوچه کله يوځائي ته د جمات او عيدګاه حکم ورکولو سره په هغې کښې مونځونه شروع شي نوبيا د هغې دتقدس لحاظ ساتل ضروري دى لهذا هلته رجم کول جائز نه دى دې د پاره چه په وينو باندې ککړنه شي په يوحديث کښې رغلى دى ((جنبوا مساجدكم صبيانكم ومجانينكم ورفع اصواتكم وشراكم و اقامة حدودكم)) په دې وجه علامه نووي رحمه الله فرمائي دلته د مصلى نه مرادهغه ځائي دې چرته چه به د جنازه مونځ کيدلو دا عيدګاه نه وه او صرف د مونځ ځائي جمات يا عيدګاه نه شي ګرځولې اونه دهغې حيثيت د جمات او عيدګاه کيږي

**قوله: وَصَلَّى عَلَيْهِ:**

**د لفظ صلى صيغې په ضبط کښې ۲ اقوال:** ① صلى عليه د مجهول صيغه ده او دا مطلب دې چه نبي کريم د سنګسار شوى سړى په جنازه کښې پخپله شرکت نه دې کړې البته صحابه کرامو د جنازې مونځ کړې وو

② دا د معروف صيغه ده او مطلب دا دې شي چه نبي کريم د سنګسارشوى سړى په جنازه کښې شريك شوې وو

راجح هم دا دى چه دا صيغه د معلوم ده او د جمهورو رائې هم دغه ده د مسلم شريف په څو روايتونوکښې دا صيغه د معروف او معلوم نقل ده

**د مرجوم په جنازه کښې ۳ مذاهب:**

اوس په دې کښې د فقهاؤ اختلاف دې چه د سنګسارشوى سړى جنازه به کولې شي که نه؟ ① نو د امام مالك رحمه الله په نيزد مرجوم سړى جنازه کول مکروه دى

② امام احمد رحمه الله فرمائي چه عام مسلمانان دې اوکړى مګرد وخت بادشاه يا قاضي يا مشهورعالم فاضل او د کمال علماء دې شرکت نه کوي

③ د امام شافعي رحمه الله او امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزد هرمسلمان کلمه ويونکى جنازه به کولې شي که هغه مرجوم وى که فاسق وى اوکه د ځان قاتل وغيره وى د امام احمد رحمه الله يو قول هم دا سې دې

**تطبيق بين الروايات:** دَ احاديثو په کتوسره معلوميږي چه بعضې رواياتوکښې دَ نبی کريم نه دَ جنازې کولونفی معلوميږی اوبعضې رواياتونه معلوميږي چه نبی کريم جنازه کړې ده په دې کښې داسې تطبيق دې نبی کريم خوجنازه کړې ده ليکن په توګه دَ زجرئی تاخيرهم فرمائيلې دې دَ کوم نه چه نه کول معلوم شوې وو

**[۲۵٦۱]بغيرثبوته د حد جاری کولو ممانعت**

۳۵٦۱-[۷]()وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: ۲«لَمَّا أَتَى مَاعِزُ بْنُ مَالِكٍ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهُ: ۳لَعَلَّكَ قَبَّلْتَ، أَوْ غَمَزْتَ، أَوْ نَظَرْتَ، ۴قَالَ: لَا يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ: أَنِكْتَهَا؟ - لَا يُكَنِّي - ۵قَالَ: نَعَمْ فَعِنْدَ ذٰلِكَ أَمَرَ بِرَجْمِهِ» . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ۱او حضرت ابن عباس ﷻ وايي۲ هر کله چې ما عز ابن مالك نبي كريم ﷺ ته (مسجد نبوي ته) راغلی، او هغه اوويل چې زما نه زنا شويده. حضور ﷺ هغه نه وفرمايل ۳ چې شايد تا (د اجنبيي نه) مچي (ښکل) واخستي وي. يا هغه دي په شهوت سره مسه کړي وي، يا دی ورته کتلي وي (يعني دا څيزونه د زنا باعث جوړيږي. تا په دي کې څه حرکت کړي وي، او اوس هغه په زنا سره تعبير کوي)۴ هغه عرض اوکړو چې نا . يا رسول الله! ﷺ ، حضور ﷺ ورته وفرمايل چې آيا تا جماع کړي ده، او (روای وايي چې) حضور ﷺ دا خبره په اشاري سره ونه پوښتله (بلکه په صفا لفظونو کې يې پوښتنه وکړه، چې آيا واقعي تا زنا کړيده؟)۵ ماعز اوويل چې هو، ما جماع کړيده د دې (تحقيق او تفتيش) نه روسته، حضور ﷺ د ماعز د سنګسارولو حکم وفرمايلو، (بخاري)

**حل اللغات:** ①قَبَّلْتَ: تا ښکل کړې وی، ②غَمَزْتَ: تا په شهوت سره لاس وراوړې وی ③نَظَرْتَ: تا کتلې وی ④أَنِكْتَهَا؟: آيا تا جماع کړې ده. ناك ينيك عربی لغت کښې دَ جماع دَ پاره دَ ټولونه زيات واضح او ښکاره لفظ دې.

**تسهيلات:**

**قوله: أَنِكْتَهَا؟ - لَا يُكَنِّي:**

**قاضی دپاره د عام فهم الفاظو استعمال:** دې سره دا خبره معلومه شوه چه په عدالت کښې قاضی له پکاردی چه دَ کنائی الفاظو په ځائی واضح بامعنی او دَعاموخلقو پوهې والا الفاظو استعمالولو ماحول جوړکړی اومبهم او ذومعنی الفاظ دې نه استعمالوی او نه دې په اشارو سره کار چلوی دَ"لايکنی" معنی هم دغه ده چه نبی کريم دَ کنايه او اشاره نه کار نه دې اخستې.

() اخرجه البخاری فی کتاب الحدود/باب: هل يقول الإمام للمقرّ: لعلّک لمست أو غمزت (رقم-٦٨٢٤) و ابو داود فی کتاب الحدود/باب رجم ماعز بن مالک (رقم-٤٤٢٧)

**[٢٥٦٢] دماعز رضی الله عنه په خپل ځان د زنا اقرار کول**

٣٥٦٣ــ[٨] (١) ① وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: «جَاءَ مَاعِزُ بْنُ مَالِكٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: ② يَا رَسُولَ اللّٰهِ طَهِّرْنِي ③ فَقَالَ: وَيْحَكَ! ارْجِعْ، فَاسْتَغْفِرِ اللّٰهَ، وَتُبْ إِلَيْهِ، ④ قَالَ: فَرَجَعَ غَيْرَ بَعِيدٍ، ثُمَّ جَاءَ ⑤ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ طَهِّرْنِي. ⑥ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَ ذٰلِكَ ⑦ حَتّٰى إِذَا كَانَتِ الرَّابِعَةُ،

**توجمه:** ① او حضرت بریده ﷺ وایي چې (یوه ورځ) د نبي کریم ﷺ په خدمت کې ماعز ابن مالك حاضر شو، او عرض يې وکړي، ② چې یا رسول الله! ﷺ ما پاك كړه (یعنی زما نه چې کومه ګناه شویده، چې د هغې په حد جاري کولو سره زما د هغه ګناه د معافي سبب جوړ شي) ③ حضور ﷺ ورته وفرمایل چې په تا افسوس دی، واپس لاړ شه (یعني د دې ځای نه واپس لاړ شه، یا خپله خبره واپس واخله) او د الله ﷻ نه (د خپلي ژبي په ذریعه) استغفار وکړه، او (په زړه سره) توبه وکاږه، ④ راوي وايي چې هغه لاړل او د لږ تلو سره بیا واپس راغلی، ⑤ او هغه اوویل چې یا رسول الله! ﷺ ما پاك كړه. ⑥ نبي کریم ﷺ ورته هغه الفاظ وفرمایل کوم چې یې مخکې فرمایلي وو، ځلور ځله دغه شان وشو. ⑦ او (هر کله چې په ځلورم ځل ماعز اوویل چې یا رسول الله! ﷺ ما پاك كړه)

**حل اللغات:** ① طَهِّرْنِي: ما پاک کړه، شرعی حد راباندې قائم کړه. ② وَيْحَكَ: افسوس دې په تا. (دحیرانتیا دپاره استعمالیږي)

① قَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فِيمَ أُطَهِّرُكَ؟ ② قَالَ: مِنَ الزِّنَا قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَبِهِ جُنُونٌ؟ ③ فَأُخْبِرَ أَنَّهُ لَيْسَ بِمَجْنُونٍ ④ فَقَالَ: أَشَرِبَ خَمْرًا؟ ⑤ فَقَامَ رَجُلٌ، فَاسْتَنْكَهَهُ، فَلَمْ يَجِدْ مِنْهُ رِيحَ خَمْرٍ ⑥ فَقَالَ: أَزَنَيْتَ؟ قَالَ: نَعَمْ. ⑦ فَأَمَرَ بِهِ، فَرُجِمَ ⑧ فَلَبِثُوا يَوْمَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةً، ثُمَّ جَاءَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ،

**توجمه:** ① نو رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل چې زه تا د څه شي نه او په څه وجه پاك كړم؟ ② هغه اوویل چې (په حد جاري کولو سره) د زنا (دګناه) نه، حضور ﷺ (د هغه دا خبره اوریدو سره صحابه ؤ ﷺ ته) وفرمایل چې آیا دی لیونی دی؟ ③ (د صحابه وو ﷺ د طرف نه) حضور ﷺ ته وښودل شو چې دي لیونی نه دی، ④ بیا حضور ﷺ پوښتنه وکړه چې آیا ده شراب څکلي دي؟ ⑤ (د دې اوریدو سره) یو سړی ودریدلو، د هغه خوله یې بوی کړه (چې معلومه شي چې هغه شراب څکلي دي که نه؟) لیکن د شرابو بوی یې پیدا نه کړي، ⑥ حضور ﷺ بیا ماعز نه پوښتنه وکړه چې آیا (واقعي) تا زنا کړیده؟ هغه اوویل چې هو، ⑦ د دې نه وروسته حضور ﷺ د هغه د سنګسارولو حکم ورکړي، نو هغه

[١] ) اخرجه مسلم في كتاب الحدود/باب من اعترف على نفسه بالزنى (رقم-٢٢ - (١٦٩٥)) و ابو داود في كتاب الحدود/باب المرأة التي امر النبيّ صلّى الله عليه وسلّم برجمها من جهينة (رقم-٤٤٤٢) واحمد في المسند: ٣٤٨/٥

سنګسار شو، [۸] دوی یا دری ورځي دغه شان تیري شوی (یعنی په مجلس نبوي کې د ماعز د سنګسارۍ په باره کې تر دوو یا دریو ورځو څه ذکر ونه شو) بیا (یوه ورځ) رسول الله ﷺ (مجلس ته) تشریف راوړو،

**حل اللغات:** ③فَاسْتَنْكَهَهُ: دهغه دخلې بدبوئی واخسته چه د شرابو بدبوئی خو ترې نه راځی که په مستئ کښې داخبره کوی

[۱] فَقَالَ: اسْتَغْفِرُوا لِمَاعِزِ بْنِ مَالِكٍ لَقَدْ تَابَ تَوْبَةً لَوْ قُسِمَتْ بَيْنَ أُمَّةٍ لَوَسِعَتْهُمْ، [۲] ثُمَّ جَاءَتْهُ امْرَأَةٌ مِنْ غَامِدٍ مِنَ الْأَزْدِ، [۳] فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ طَهِّرْنِي، [۴] فَقَالَ: وَيْحَكِ ارْجِعِي، فَاسْتَغْفِرِي اللَّهَ، وَتُوبِي إِلَيْهِ، [۵] فَقَالَتْ: تُرِيدُ أَنْ تَرُدَّنِي كَمَا رَدَدْتَ مَاعِزَ بْنَ مَالِكٍ [۶] إِنَّهَا حُبْلَى مِنَ الزِّنَا، [۷] فَقَالَ: أَنْتِ؟ قَالَتْ: نَعَمْ. [۸] قَالَ لَهَا: حَتَّى تَضَعِي مَا فِي بَطْنِكِ.

**ترجمه:** [۱] او وي فرمایل چې تاسو خلق د ماعز دپاره دبخښني او دهغه د درجاتو د بلندۍ د پاره دعاء کوی، بلا شبه هغه داسې توبه وخکلې ده. که د هغه ثواب په پوره امت تقسیم شي، نو د ټولو د پاره به کافي شي، [۲] بیا د دې نه روسته (یوه ورځ) یوه ښځه چې د قبیلهٔ ازد د یو خاندان غامد نه وه، د حضور ﷺ په خدمت کې حاضره شوه. [۳] او عرض یې وکړې چې یا رسول الله! ﷺ ما پاکه کړه، [۴] حضور ﷺ ورته وفرمایل چې په تا افسوس دی، واپس ولاړه شه، او الله ﷻ ته توبه او استغفار وکړه. [۵] هغې ښځې عرض اوکړو چې آیا تاسو غواړی چې څنګه تاسو ما عزابن مالك (په اولني خل) واپس کړي وو. هغه شان ما هم واپس کړي، [۶] حالانکه زه هغه ښځه یم، چې د زنا په ذریعه حامله شوي یم (نو د دې اقرار نه وروسته زما د انکار اوس هیڅ سوال نه پیدا کیږي. ځکه چې د حمل ظاهریدل زما د جرم د ټولو نه لوی ثبوت دی، بخلاف د ماعز چې هغه د پاره د انکار ګنجائش وو) [۷] حضور ﷺ ورته وفرمایل چې ته (یعنی حضور ﷺ یو شان خپل تغافل ظاهرولی او د هغه د زنا د اقرار نه د رجوع کولو یوه بله موقع ورکولو د پاره ورته وفرمایل چې دا ته څه وایې؟ آیا ته د زنا په ذریعه حامله یې؟) هغې ښځې د دې باوجود په خپل اقرار اصرار وکړي. او هغې اوویل چې هو. [۸] نو حضور ﷺ ورته وفرمایل چې ښه ته د هغه وخته انتظار وکړه، د څو پورې چې ته د خپل ماشوم د ولادت نه فارغه شي. راوي وایي (د حضور ﷺ د دې ارشاد نه وروسته)

**حل اللغات:** ③غَامِدٍ مِنَ الْأَزْدِ: غامد په یمن کښې د ازد قبیلې د خاندان نوم دې. ⑤أَنْ تَرُدَّنِي: چه ته ما واپس کړې.

[۱] قَالَ: وَكَفَلَهَا رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ حَتَّى وَضَعَتْ، [۲] فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: قَدْ وَضَعَتِ الْغَامِدِيَّةُ، [۳] فَقَالَ: إِذًا لَا نَرْجُمُهَا وَنَدَعُ وَلَدَهَا صَغِيرًا لَيْسَ لَهُ مَنْ يُرْضِعُهُ، [۴] فَقَامَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ، فَقَالَ: [۵] إِلَيَّ رَضَاعُهُ يَا نَبِيَّ اللَّهِ، قَالَ: فَرَجَمَهَا.

**ترجمه:** ① يو انصاري د هغې ښځې د خبر ګيري او كفالت د هغه وخته ذمه واخستله. د څو پورې چې هغه د ولادت نه فارغه شي. ② او بيا (څه موده وروسته) هغه سړی د نبي كريم ﷺ په خدمت كې حاضريدو سره عرض وكړو، چې هغه غامديه ښځه د ولادت نه فارغه شويده. ③ حضور ﷺ وفرمايل چې اوس لا مونږ هغه نه سنګساره كوو. او د هغې كم عمر والا وړوكی (په دې حالت كې) نه پريږدو، چې څوك يې وركونكی يې نه وي (يعني كه مونږ اوس هغه سنګساره كړله. نو د هغه ماشوم چې پې خوړونكی او ډير وړوكی دی. هلاك به شي، ځكه چې دهغه د مور نه وروسته د هغه خبر ګيري كونكی څوك نشته ځكه اوس د هغه سنګسارول مناسب نه دی) ④ يو بل انصاري (د دې اوريدو سره) ودريدلو او عرض يې وكړې ⑤ چې يا رسول الله ﷺ د هغه ماشوم د پيښو وركولو (او د هغه د خبر اخستلو) زه ذمه وار يم. راوي وايي چې د دې نه وروسته حضور ﷺ هغه ښځه سنګسار د كړله (يعني د هغې د سنګسارولو حكم يې وركړې. او هغه سنګساره كړل شوه)

**حل اللغات:** ⑨ يُرْضِعُ: بچي ته پې وركوي.

① وَفِي رِوَايَةٍ أَنَّهُ قَالَ لَهَا: ② اذْهَبِي حَتَّى تَلِدِي. ③ فَلَمَّا وَلَدَتْ، قَالَ: اذْهَبِي فَأَرْضِعِيهِ حَتَّى تَفْطِمِيهِ. ④ فَلَمَّا فَطَمَتْهُ، أَتَتْهُ بِالصَّبِيِّ فِي يَدِهِ كِسْرَةُ خُبْزٍ، ⑤ فَقَالَتْ: هَذَا يَا نَبِيَّ اللَّهِ قَدْ فَطَمْتُهُ، ⑥ وَقَدْ أَكَلَ الطَّعَامَ، فَدَفَعَ الصَّبِيَّ إِلَى رَجُلٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ، ⑦ ثُمَّ أَمَرَ بِهَا، فَحُفِرَ لَهَا إِلَى صَدْرِهَا، ⑧ وَأَمَرَ النَّاسَ، فَرَجَمُوهَا

**ترجمه:** ① په يو بل روايت كې داسې دي چې حضور ﷺ هغې ښځې ته وفرمايل ② چې څه ولاړه شه. د څو پورې چې ته د ولادت نه فارغه نه شي (انتظار كوه) ③ بيا چې هغه د ولادت (د ماشوم د پيدا كيدو) نه فارغه شوه. نو حضور ﷺ هغې ته وفرمايل چې څه خپل ماشوم ته پې وركوه. ددې پورې چې د تي نه يې پريكړې. ④ بيا چې هغې وړوكی د تي نه پريكړې. نو د هغه ماشوم سره د حضور ﷺ په خدمت كې حاضره شوه، هغه وخت د ماشوم په لاس كې د روټۍ ټكړه وه. ⑤ هغې عرض اوكړو چې يا رسول الله ﷺ ما دا وړوكی د تي نه پريكړې دی. ⑥ اوس ده روټۍ خوړل شروع كړه دي، حضور ﷺ هغه وړوكی خو يو مسلمان ته حواله كړې. ⑦ او د هغې ښځې د پاره يې حكم وفرمايلو چې يوه كنده وكاږي. هر كله چې د هغې تر سينې كنده اوښكله شوه. ⑧ نو حضور ﷺ د هغې د سنګسارولو حكم وكړې. او هغه سنګساره شوه

**حل اللغات:** ⑥ تَفْطِمِي: بچې د پنيو نه پريكوې ⑧ كِسْرَةُ: ټكړه. ⑨ خُبْزٍ: روټۍ ⑩ حُفِرَ: كنده اوكنستې شوه

① فَيُقْبِلُ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ بِحَجَرٍ فَرَمَى رَأْسَهَا، ② فَتَنَضَّحَ الدَّمُ عَلَى وَجْهِ خَالِدٍ، فَسَبَّهَا، ③ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَهْلًا يَا خَالِدُ ④ فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ ⑤ لَقَدْ تَابَتْ تَوْبَةً لَوْ تَابَهَا صَاحِبُ مَكْسٍ لَغُفِرَ لَهُ. ⑥ ثُمَّ أَمَرَ بِهَا، فَصَلَّى عَلَيْهَا، وَدُفِنَتْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① (د سنګسارولو په دوران کې چې) حضرت خالد بن وليد رضی الله عنه په يو کاڼي هغه په سر وويشتله، ② د هغې د سر وينه د حضرت خالد رضی الله عنه په مخ وموښته. نو حضرت خالد رضی الله عنه هغې ته بد رد ونيل شروع کړه، ③ حضور ﷺ ورته وفرمايل اې خالده! رضی الله عنه (د دې بخښش شوی دی) دې ته بد رد مه وايه، ④ قسم دې په هغه ذات چې د هغه په لاس کې زما ساه ده، ⑤ دې ښځې داسې توبه وخکلې ده، که داسې توبه يو (ناروا) ټيکس اخستونکی وکاړي، نو دهغه مغفرت او بخښش به هم وشي، ⑥ د دې نه وروسته حضور ﷺ د هغې د جنازې د مونځ کولو حکم وکړي، نو د هغې د جنازې مونځ وشو او هغه دفن کړل شوه. (مسلم)

**حل اللغات:** ① تَنَضَّحَ: اولګيده. ② فَسَبَّ: بد رَد ئې اوونيل. کنځل ئې اوکړلو ③ مَهْلًا: مه. داسې مه وايه. ④ صَاحِبُ-مَكْسٍ: ټيکس وصولونکي.

**تسهيلات: قوله:** طَهِّرْنِي:

**د صحابۀ د الله تعالى نه ويره:** ماد ګناه نه پاکه کړه. دې نه معلوميږی چه دَ صحابه کرامو مقام څومره اوچت وو چه دَ يوګناه دَ ارتکاب نه پس دومره بې آرام دي چه يو ساعت ورته آرام نه راځی او پخپله په ځان باندې دَ حد لګولو درخواست کوی. دا فرق دې دَ عام امت او صحابه کرامو په مينځ کښې چه هلته په زرګونو کوششونه کولې شی په خپل ځان دَ سزا جاری کيدودَپاره اودلته په زرګونو محنتونوسره دَ ګناه پټولو او دَ سزانه دَ بچ کيدلو کوشش کيږی. هلته دَ تکميل شريعت دَپاره دَ نمونې په توګه خپل ځان پيش کوی اودلته دَتبطيل شريعت دَپاره دَ تيختې لار اختياره وی. دَ طهرنی دَ الفاظونه معلوميږی چه حدود مطهرات دی اوهم دغه مسلك دَ جمهور فقهاؤ دې. دَاحنافو په نيزحدود زاجرات دی اوچه کله توبه ورسره وی نوبيامطهرات دی تفصيل اول تيرشوې دې.

**قوله:** امْرَأَةٌ مِنْ غَامِدٍ:

**دغامد په لفظ کښې د رواياتو اختلاف او تطبيق:** غامد په يمن کښې دَ يوې قبيلې نوم دې هم په دې وجه دې ښځې ته غامدية داهم وائی دَدې لويه قبيله ازد ده نودَدغه ښځې په نسبت دَدغه قبيلې وجه ازديه هم صحيح دې او امرأة من جهينه الفاظ چه کوم ځائی راغلی دی هغه هم صحيح دی

**قوله:** فَتَنَضَّحَ الدَّمُ عَلَى وَجْهِ خَالِدٍ:

**عفو او درګذر کول:** يعنی په کاڼی ويشتلوسره دَ سرنه دَ فوارې په شان وينې توپ کړو اودَحضرت خالد رضی الله عنه په مخ باندې اولګيدله هغه بدرد اوونيل نو نبی کريم اوفرمائيل خالد داسې مه کوه.

**[۲۵۶۲] د بدکاري وینځې سزا**

۳۵۶۳-[۹] ()[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:[۲] «إِذَا زَنَتْ أَمَةُ أَحَدِكُمْ فَتَبَيَّنَ زِنَاهَا[۳] فَلْيَجْلِدْهَا الْحَدَّ[۴] وَلَا يُثَرِّبْ عَلَيْهَا[۵] ثُمَّ إِنْ زَنَتْ فَلْيَجْلِدْهَا الْحَدَّ وَلَا يُثَرِّبْ عَلَيْهَا[۶] ثُمَّ إِنْ زَنَتِ الثَّالِثَةَ فَتَبَيَّنَ زِنَاهَا[۷] فَلْيَبِعْهَا وَلَوْ بِحَبْلٍ مِنْ شَعَرٍ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت ابوهریره ﷺ وایي چې ما د رسول الله ﷺ نه واورېدل[۲] که په تاسو کې د چا وینځه زنا وکړي، او د هغه زنا ښکاره شي (یعني د هغې زنا کاري ثابته شي)[۳] نو په هغې دي حد جاري کړي،[۴] او هغې ته دي پېغور نه ورکوي.[۵] که هغه بیا زنا وکړي، نو په هغې دي حد جاري کړي، اوهغې ته دې پېغور نه ورکوی [۶] او که هغه په درېیم ځل زنا وکړي، او د هغې زنا ثابته شي،[۷] نو هغه وینځه دي خرڅه کړي. اګر چې په ډېر معمولي قیمت یې خرڅه کړي، (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ①وَلَا يُثَرِّبْ: شرم، عار به نه ورکوی. ②فَلْيَبِعْ: نو خرڅه دې کړی ③حَبْل: رسئ

**تسهیلات:**

**قوله:** فَتَبَيَّنَ زِنَاهَا فَلْيَجْلِدْهَا:

**د غلام او وینځې په سزا کښې نیم والې:** تجلید دَ کوړو وهلو په معنی کښې دې. داخبره مخکښې بیان کړې شوې ده چه دَ غلام او وینځې دَپاره رجم نشته دې ځکه چه دوی محصن نه دی. دَ احصان یوشرط دادې چه سړې به آزاد وی اوغلام آزادنه وی په دې وجه دَ غلام اووینځې دَ زناپه حد کښې سنګسارول نشته دې. بل دَ کوړو حدهم دَ احرارو په نسبت نیم دې یعنی دَ سلوکوړو په ځائی پنځوس دی. دَ جمهور فقهاؤ اوسلف صالحین هم دغه مسلك دې که غلام واده کړې وی اوکه ناواده کړې وی په غلام کښې دَبکر اوثیب فرق نشته دې.

**د مولی په خپل غلام باندې د حد جاری کولو په حکم کښې ۲ مذاهب:**

مولی په خپل غلام باندې پخپله دَ حد نافذکولوحق لری که نه؟ په دې کښې دَ فقهاء کرامو اختلاف دې ①جمهورفرمائی مولی ته حق حاصل دې چه هغه په خپل غلام باندې حد نافذ کړی یعنی دَ زنا په حدکښې هغه پنځوس کوړې اووهی او دَ غلا په حد کښې اوقصاص او نور حدود کښې مولی ته اختیارنشته دې چه هغه دې په خپل غلام باندې حد نافذکړی

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب البیوع/باب بیع المدبّر (رقم-۲۲۳٤) ومسلم فی کتاب الحدود/باب رجم الیهود أهل الذمّة فی الزّنی (رقم-۳۰ - (۱۷۰۳) و ابو داود فی کتاب الحدود/باب فی الأمة تزنی ولم تحصن (رقم-٤٤٧٠) والترمذی فی کتاب الحدود عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب ما جاء فی الرّجم علی الثّیّب (رقم-۱٤۳۳) ومالک فی الموطا کتاب الحدود/باب جامع ما جاء فی حدّ الزّنا (رقم-۱٤) واحمد فی المسند: ٤/۱۱۶

② ائمه احناف فرمائی مولی په خپل غلام باندې هیڅ قسم حد نه شی جاری کولې دا کار دَ قاضی اوحاکم دې که هغه دَ زناحد وی اوکه نورو حدودوی.

**داول فریق دلائل:** ① زیربحث د حضرت ابوهریره رضي الله عنه روایت د دوی مستدل دې د دې نه مولی ته دَ حد نافذ کولو اشاره ملاویږی

② دې سره متصل دَحضرت علی رضي الله عنه دَ روایت هم د دوی مستدل دې. دا حدیث مولی ته د حد جاری کولو په اختیار کښې صریح دلیل دې

**د اول فریق د دلائلو جواب:** په دې کښې دَ مرافعه الی الحاکم قید کیخودلې شوې دې چه یا دې دَ حاکم په ذریعه حد اولګوی اویادې دَحاکم نه اجازت اخستوسره حد قائم کړی. لکه چه په دې کښې اسناد مجازی دې.

**د دویم فریق دلائل:** ① دَ صحابه کرامو اوتابعینوحضراتونه دا اصول په اکثریت سره نقل دی چه دَ حدودالله دَ اقامت حق صرف سلطان ته دې دَ سلطان نه علاوه بل هیچاته داحق حاصل نه دې. دَدې اصولو مطابق دَ احناف فتویٰ ده چه مولی ته په خپل غلام باندې دَ حدنافذ کولو حق نشته دې. اوکه حاکم اجازت ورکړی نوبیامولی داحدپه خپل غلام باندې نافذ کولې شی.

② دَ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دې. «ان النبی ﷺ قال: اربع الی الولاة ① الحدود ② والصدقات ③ والجمعات ④ والفیئ» یعنی دَ حدودنفاذ صدقات او جمعات قیام او تقسیم دَ غنائم معامله حکام ته حواله ده.

**قوله:** وَلَا يُثَرِّبُ عَلَيْهَا:

**د مذکوره جملې دوه مطلبه:** ① یعنی په دې باندې لعن طعن اوملامتیامه کوئی بلکه هم دغه حد دَ تولو دَپاره کافی دې.

② دَدې جرم مرتکب په شروع کښې دَ حدپه ځائی به صرف ملامته کولې شو اوس ئی اوفرمائیل چه صرف ملامتیا کافی نه ده بلکه حد قائم کړئی.

**[۳۵٦٤] په مریض د حد جاري کولو مسئله**

۳۵۷۳-[۱۰] (¹) ① وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② يَا أَيُّهَا النَّاسُ أَقِيمُوا عَلَى أَرِقَّائِكُمُ الْحَدَّ ③ مَنْ أُحْصِنَ مِنْهُمْ وَمَنْ لَمْ يُحْصَنْ، ④ فَإِنَّ أَمَةً لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَنَتْ فَأَمَرَنِي أَنْ أَجْلِدَهَا، ⑤ فَإِذَا هِيَ حَدِيثُ عَهْدٍ بِنِفَاسٍ، ⑥ فَخَشِيتُ إِنْ أَنَا جَلَدْتُهَا أَنْ أَقْتُلَهَا ⑦ فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: (أَحْسَنْتَ).

¹) اخرجه مسلم فی کتاب الحدود/باب تأخیر الحدّ عن النفساء (رقم-۳٤ - (۱۷۰۵) و ابو داود فی کتاب الحدود/باب فی الأمة تزنی ولم تحصن (رقم-٤٤٧۳) والترمذی فی کتاب الحدود عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب ما جاء فی إقامة الحدّ علی الإماء (رقم-۱٤٤۱) واحمد فی المسند: ۱/٤٥٦

رَوَاهُ مُسْلِمٌ

**ترجمه:** ١ او د حضرت علي رضي الله عنه په باره کې منقول دی چې وي فرمايل ٢ اې خلقو! په خپلو غلامانو او وينځو حد جاري کوی (يعني که هغه زنا وکړي. نو پنځوس دورې يې ووهي) ٣ که هغه محصن يعني واده شوی وي. يا غير محصن. ٤ د رسول الله ﷺ يوې وينځې زنا وکړه، نو حضور ﷺ ماته حکم وکړي، چې په دې حد جاري کړه. ٥ خو هر کله چې ماته معلومه شوه. چې په اوس حال کې د هغې ولادت شوی دی. ٦ نو زما سره انديښنه شوه. که زه يې پنځوس دورې ووهم، نو مړه به شي. ٧ ما نبي کريم ﷺ ته د دې ذکر وکړي. نو حضور ﷺ وفرمايل چې تابنه وکړه (چې په دې حالت کې دې په هغې حد جاري نه کړي) مسلم

**حل اللغات:** ① أَقِيمُوا: قائم کړئ. جاري کړئ. ② أَرِقَّائِكُمْ: په غلامانو او وينځو. خپلو ③ أُحْصِنَ: چه واده ئې کړې وی. ④ حَدِيثُ عَهْدٍ: اوسني حالت. موجوده وخت. ⑤

١ وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ: قَالَ ٢ (دَعْهَا حَتَّى يَنْقَطِعَ دَمُهَا ثُمَّ أَقِمْ عَلَيْهَا الْحَدَّ، ٣ وَأَقِيمُوا الْحُدُودَ عَلَى مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ).

**ترجمه:** ١ او د ابوداود رحمه الله په يو روايت کې دا الفاظ دي چې هر کله حضرت علي رضي الله عنه حضور ﷺ ته په دې باره کې ذکر وکړي، نو حضور ﷺ وفرمايل ٢ د څو پورې چې د هغه د نفاس وينه بنده نشي، د هغه وخته هغه پريږده، د هغه نه وروسته وربانديې حد جاري کړه. ٣ او په خپلو غلامانو او وينځو حد جاري کوي

**تسهيلات:**

**قوله:** فَإِذَا هِيَ حَدِيثُ عَهْدٍ بِنِفَاسٍ:

**د بيمارۍ په حالت کښې د جلد او رجم حکم:** يعني دَ نفاس په حالت کښې وه اودا حالت دَ بيمارئی دې په دې وجه ئی هغې ته کوړې اونه لګولې. صاحب فتح القدير ابن همام رحمه الله ليکلی دی که چرې سزا دَ کوړووی نو بيمار له به کوړې نه شی ورکولې ځکه چه په دې سره به هغه مړشی. دهغه دَ جوړيدوپورې به سزا مؤخرکولې شی اوکه چرې بيماری داسې وی چه دَهغې نه دَ هغه بچ کيدل مشکل وی تی بی يا کينسر نوداسې مريض به په داسې ځانګه باندې وهلې شی په کوم کښې چه سل لختې وی داحيله شوه اوکه سزا دَ سنګسارکيدووی نوبيابه په هرحالت کښې سنګسارکولې شی. که هغه جوړی اوکه ناجوړه ځکه چه په رجم کښې خو ژوندې پاتې کيدل نشته. يادساتئی چه کوړې به نه په سخته ګرمئی کښې ورکولې شی اونه په سخته يخنئی کښې ځکه چه دَ مړکيدوخطره وی لهذا په معتدل موسم کښې کوړې ورکول پکاردی

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [٢٥٦٥] د زنا د اقرار نه پس د انکار حکم

٢٥٦٥–[١١] (١) [١] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [٢] «جَاءَ مَاعِزٌ الْأَسْلَمِيُّ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: [٣] إِنَّهُ قَدْ زَنَى، فَأَعْرَضَ عَنْهُ، [٤] ثُمَّ جَاءَ مِنْ شِقِّهِ الْآخَرِ، فَقَالَ: [٥] إِنَّهُ قَدْ زَنَى. فَأَعْرَضَ عَنْهُ، [٦] ثُمَّ جَاءَ مِنْ شِقِّهِ الْآخَرِ، فَقَالَ: [٧] يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّهُ قَدْ زَنَى. [٨] فَأَمَرَ فِي الرَّابِعَةِ، فَأُخْرِجَ إِلَى الْحَرَّةِ [٩] فَرُجِمَ بِالْحِجَارَةِ،

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي [٢] چې ماعز اسلمي رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کې حاضريدو سره اوويل [٣] چې هغه (يعني ما) زنا کړي ده. (د دې اوريدو سره، حضور صلى الله عليه وسلم مخ ورنه واړولى. [٤] هغه د دويم جانب نه (تاويدو سره يعنې مجلس بدلولو سره) بيا د حضور صلى الله عليه وسلم مخې ته راغلى. اوهغه اوويل [٥] چې هغه زنا کړي ده. حضور صلى الله عليه وسلم بيا د هغه نه مخ واړولى. [٦] او هغه بيا د دويم جانب نه (تاويدو سره) د حضور صلى الله عليه وسلم مخې ته راغلى. او هغه اوويل [٧] چې يا رسول الله! صلى الله عليه وسلم هغه زنا کړي ده. [٨] آخر په څلورم ځل حضور صلى الله عليه وسلم د هغه د سنګسارولو حکم ورکړي. نو هغه حره ته راوستل شو (چې د مدينې تورو کاڼو والا مضافاتي علاقه ده) [٩] او هغه يې په کاڼو وويشتلى.

**حل اللغات:** ① شِقِّ: اړخ، طرف. ② الْحَرَّةِ: مدينې سره نزدې د يو ځائې نوم

[١] فَلَمَّا وَجَدَ مَسَّ الْحِجَارَةِ فَرَّ يَشْتَدُّ، [٢] حَتَّى مَرَّ بِرَجُلٍ مَعَهُ لَحْيُ جَمَلٍ فَضَرَبَهُ بِهِ، [٣] وَضَرَبَهُ النَّاسُ حَتَّى مَاتَ. [٤] فَذَكَرُوا ذَلِكَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ فَرَّ حِينَ وَجَدَ مَسَّ الْحِجَارَةِ وَمَسَّ الْمَوْتِ، [٥] فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (هَلَّا تَرَكْتُمُوهُ»). [٦] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، [٧] وَفِي رِوَايَةٍ: (هَلَّا تَرَكْتُمُوهُ [٨] لَعَلَّهُ أَنْ يَتُوبَ فَيَتُوبَ اللهُ عَلَيْهِ).

**ترجمه:** [١] د هغه په بدن چې کاڼي ولګيدلو ، نو وتښتيدلى. [٢] د دې پورې چې د يو سړي سره تير شو. چې د هغه په لاس کې د اوښ د ژامې هډوکي وو. هغه سړي په هغه هډوکي سره وويشتلى. [٣] او نورو خلقو هم (په نورو څيزونو سره) وويشتلى. د دې پورې چې هغه مړ شو. [٤] نو صحابه وُ رضي الله عنهم چې حضور صلى الله عليه وسلم ته دا ذکر وکړي چې هغه د کاڼو د ويشتلو سره او د مرګ سختي ليدو سره تښتيدلى وو. ليکن مونږ په هغه پسې شو. سنګسار مو کړي. [٥] نو حضور صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې تاسو خلقو هغه ولې پرې نه ښووى. [٦] (ترمذي ابن ماجه) [٧] په يو روايت کې دا الفاظ دي چې حضور صلى الله عليه وسلم (دا ذکر اوريدو سره) وفرمايل چې تاسو خلقو هغه ولې پرې نه ښودلى. [٨] دير ممکنه وه چې هغه توبه وځکلي واى. او الله جل جلاله يې توبه قبوله کړي وى

(١) اخرجه الترمذي في كتاب الحدود عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء في درء الحدّ عن المعترف إذا رجع (رقم-١٤٢٨) و ابن ماجه في كتاب الحدود/باب الرّجم(رقم-٢٥٥٤) واحمد في المسند: ٤٥٠/٢

**حل اللغات:** ③مَسَّ الحِجَارَةِ: دكانړو ويشتل ،لګيدل. ④فَرَّ: اوتختيده، ⑤يَشْتَدُّ: چې سخت شو، ⑥لَحْيُ جَمَلٍ: د اوښ د ژامې هډوکې.

**تسهيلات: قوله:** ثُمَّ جَاءَ مِنْ شِقِّهِ الْآخَرِ:

**د احنافو د مذهب تائيد:** دَ څلورو وارو طرفونونه راتلل ځکه وو دې دَپاره چه په مجلس کښې بدلون راشي اوهم دغه دَ احنافو مسلك دې چه څلور اقراره په څلورو جدا مجالسو کښې ضروري دي.

**قوله:** (هَلَّا تَرَكْتُمُوهُ):

**د حد جاري کولو په دوران کښې د اقرار کولو نه د انکار حکم:** يعني چه کله ئې منډې وهلې نوتاسو تختيدو ته ولې پرينخودو. ممکن ده چه هغه دَ اقرار نه رجوع کول غوښتلې که چرې توبه ئې کړې وې نو الله تعالى به ئې توبه قبوله کړې وه. فقهاؤ ليکلي دي چه دَ سنګسارولو په حد کښې که اقراري مجرم دَ اقرار نه کوم وخت هم انکار اوکړو نوحد به ساقط شي او په سنګسارولو کښې هم دغه فائده اوحکمت دې.

**د مقربالزنا په تختيدو د رجم د سقوط په حکم کښې ۳ مذاهب:**

① دَ امام مالك رحمه الله په نيزدَ هغه نه به تپوس کولې شي که هغه دَ اقرار نه دَ انکار په بنياد سره تختيدلې دې نوحد به ساقط شي اوکه دَتکليف دَ سختئي نه تختيدلې دې نوبيا به حد نه ساقط کيږي دا انکار نه دې.

② دَ شوافعو په نيزترکومې چه په ژبه سره ښه په صراحت سره انکار اونه کړي حد به نه ساقط کيږي

③ دَ احناف په نيزقولاً يا فعلاً کله چه دَ حد نه دَ تيختې لار اختيار کړه نوپه دې سره به حد ساقط کيږي ليکن صرف په تختيدو سره حد نه ساقط کيږي. "وبالهرب لايسقط الحد قاله ملاعلي قاري"

**مجموعي مستدل:** ټولو دَحضرت ماعز رضي الله عنه دَ روايت نه استدلال کړې دې. احناف وائي "هلاترکتموه" الفاظ نبي کريم دَ رحمت اوشفقت په بنياد فرمائيلي دي.

**[٢٥٦٦] د ماعز رضي الله عنه د زنا اعتراف**

٢٥٦٦- [١٢] (١)①وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِمَاعِزِ بْنِ مَالِكٍ: ② (أَحَقٌّ مَا بَلَغَنِي عَنْكَ؟) ③قَالَ: وَمَا بَلَغَكَ عَنِّي؟ ④قَالَ: (بَلَغَنِي أَنَّكَ قَدْ وَقَعْتَ عَلَى جَارِيَةِ آلِ فُلَانٍ) قَالَ: نَعَمْ، ⑤فَشَهِدَ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ، فَأَمَرَ بِهِ فَرُجِمَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

(١) اخرجه مسلم في كتاب الحدود/باب من اعترف على نفسه بالزنى رقم-١٩ - (١٦٩٣)

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما راوي دی چې نبي کريم ﷺ ماعز رضي الله عنه ابن مالك ته وفرمايل [۲] چې ستا په باره کې ماته چې څه معلوم شوی دی، آيا هغه رښتيا دي؟ [۳] ماعز رضي الله عنه اوويل چې زما په باره کې تاسو ته څه معلوم شوی دی؟ [۴] حضور ﷺ وفرمايل چې تا د فلاني سړي د وينځې سره زنا کړي ده، ماعز رضي الله عنه عرض اوکړو چې هو ‹دا رښتيا دي› [۵] او هغه دا ‹په څلور مجلسونو کې› څلور ځله اقرار وکړي، نو رسول الله ﷺ د هغه د سنګسار کيدو حکم وکړي، او هغه سنګسار کړل شو. ‹مسلم›

**حل اللغات:** ① وَقَعْتَ: ته واقع شوې ئې، زنا دې کړې ده.

**تسهيلات:**

**قوله:** (أَحَقٌّ مَا بَلَغَنِي عَنْكَ؟):

**د رواياتو په مينځ کښې تعارض:** دَبعضې رواياتونه معلوميږي چه حضرت ماعز رضي الله عنه پخپله بيان ورکړې دې اوهم پخپله ئې نبی کريم سره خبرې اترې شروع کړې دی او په زيرنظرحديث کښې دی چه نبی کريم دَهغه نه اول تپوس کړې دې بيا هغه بيان ورکړې دې.

**د تعارض دفع:** په دې رواياتوکښې هيڅ تعارض نشته دې. بلکه دَ زنا دَ ارتکاب نه پس حضرت ماعز رضي الله عنه دَهغه قوم هغه دَ فيصلې دَپاره رسول الله ﷺ له راوستلو اوبيائی دَ کلام شروع کولو سره نبی کريم ته هرڅه اوخودل. نبی کريم دَحضرت ماعز رضي الله عنه نه تپوس اوکړو چه دې خلقو ماله کوم شکايت راوړې دې آياستامتعلق هغه الزامات صحيح دی؟ يادا سې اووئيلې شی چه يوراوی دَ تفصيل نه کار اخستې دې اوچا په اختصار سره بيان کړې دې داتعارض نه دې.

**قوله:** أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ.

**د زنا د ثبوت دپاره د اقرار عدد:** ① څلورځل دَ اقرار التزام بنائی چه داحکم دَ زناد ثبوت دَپاره ضروری دې.

② شوافع يو اقرار کافی ګنړی.

**[۲۵٦۷] د نورو په عيبونو د پردې اچولو حکم**

٢٥٦٧-[١٣] (¹) [١] وَعَنْ يَزِيدَ بْنِ نُعَيْمٍ، عَنْ أَبِيهِ، «أَنَّ مَاعِزًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٢] فَأَقَرَّ عِنْدَهُ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ، [٣] فَأَمَرَ بِرَجْمِهِ وَقَالَ لِهَزَّالٍ: [٤] (لَوْ سَتَرْتَهُ بِثَوْبِكَ كَانَ خَيْرًا لَكَ» ) [٥] قَالَ ابْنُ الْمُنْكَدِرِ: إِنَّ هَزَّالًا أَمَرَ مَاعِزًا أَنْ يَأْتِيَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُخْبِرَهُ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

¹) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الحدود/باب في الستر على أهل الحدود (رقم-٤٣٧٨)

**ترجمه**: ① او یزید ابن نعیم خپل پلار نه روایت کوي چې ماعز رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو. ② او د حضور ﷺ په مخکې (په څلورو مجلسونو کې) څلور ځله (د خپلې زنا) اقرار وکړي. ③ حضور د هغه د سنګسارولو حکم وکړي (او هغه په کاڼو وویشتل شو) او حضور ﷺ هزال رضي الله عنه ته وفرمایل ④ که تا ماعز رضي الله عنه د خپلو کپړو سره پټ کړي وي (یعنې د هغه په زناني پرده اچولې وي، او هغه دې نه وه ظاهره کړې) نو دا به ستا د پاره ښه وه. ⑤ ابن منکدر رحمه الله (چې تابعي او د دې حدیث یو راوي دی) وايي چې هزال رضي الله عنه ماعز رضي الله عنه ته ویلي وو چې د نبي کریم ﷺ په خدمت کې حاضر شه. د خپلې واقعې نه یې خبرکړه. (ابو داود)

**تسهیلات**:

**قوله**. إِنَّ هَزَّالًا أَمَرَ مَاعِزًا:

**په ماعز باندې د پردې اچولو ترغیب**: دَ هزال یوه وینځه وه چه دَ هغې نوم فاطمه وو هزال هغه آزاده کړې وه هغې سره ماعز رضي الله عنه زناکړې وه. روستوهزال هغه ته اووئیل زه نبی کریم خبرکړه هغوی به ستادَ پاره استغفاراوکړی ته به معاف شې. حضرت ماعز رضي الله عنه دَهغه په وینا باندې راغلو او په هغه باندې حد جاری کړې شو. نبی کریم هزال ته هم دغه خبره اوفرمائیله چه تادا راز ولې ښکاره کړو؟ تاپه هغه باندې پرده ولې وانچوله که چرې تا په هغه باندې پرده اچولې وه نو تاته به ډیر ثواب ملاؤ شوې وی.

**په عادی ګناهګار باندې د پردې اچولو حکم**: دا پرده اچول دَ یوداسې شریف سړی باره کښې ده کوم چه عادی مجرم نه وی مګر چه په ژوند کښې ترې یوځل جرم شوې وی خو که څوك عادی مجرم وی اودَ هغه جرم متعدی وی نوهغه پټول نه دی پکار بلکه دَهغې ښکاره کول ضروری دی دې دپاره چه عام مسلمانان دَهغه دَ فسادنه محفوظ پاتې شی

**[۳۵۶۸] قاضی ته د مقدمې اوړلو څخه وړاندې د معاف کولو ترغیب**

۳۵۶۸–[۱۴] (۱) ① وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: ② أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: («تَعَافَوُا الْحُدُودَ فِيمَا بَيْنَكُمْ ③ فَمَا بَلَغَنِي مِنْ حَدٍّ فَقَدْ وَجَبَ»). رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه**: ① عمرو ابن شعیب د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه (عبد الله بن عمرو ابن العاص) نه روایت کوي ② چې رسول الله ﷺ وفرمایل تاسو په خپل منځ کې خپل حدود معاف او محوه کوی (د دې نه مخکې چې د هغه خبر ماته را ورسیږي) ③ خو که د جرم

---

(۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الحدود/باب العفو عن الحدود ما لم تبلغ السلطان (رقم-۴۳۷۶) والنسائی فی کتاب قطع السارق/باب ما یکون حرزا وما لا یکون (رقم-۴۸۸۵)

اطلاع ماته را ورسیږي (او هغه ثابت شي) نو بیا په هغه حد جاري کول واجب (یعني فرض) کیږي، (ابوداود نسایي)

**حل اللغات:** ① تَعَافَوْا: معافی کوئ، دفع کوئ ② الْحُدُودَ: جمع د حدد ه شرعی سزاګانې

**تسهیلات:**

**قوله «تَعَافَوْا الْحُدُودَ فِيمَا بَيْنَكُمْ»:**

**قابلِ حد جرم عدالت ته د نه اوړلو ترغیب:** داخطاب په حقیقت کښې عوامو ته دې چه کله تاسو په خپل مینځ کښې څوك دَ یوجرم مرتکب اووینئی نو خپل مینځ کښې رفع دفع کولوسره فیصله کوئی مونږ پورې خبره مه رسوئی څکه چه حدکله محکمه عدالت ته اورسی نودَهغې دَ رفع دفع کولوچاته هم اختیارنشته دې. په دې حدیث کښې دَمعاف کولوچه کوم حکم ورکړې شوې دې دادَ وجوب په توګه نه دې بلکه دَاستحباب په توګه دې

**[۲۵۶۹] د حد څخه علاوه د نورو جرمونو معاف کول جواز**

۲۵۶۹-[۱۵] (۱)① وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ②(«أَقِيلُوا ذَوِي الْهَيْئَاتِ عَثَرَاتِهِمْ إِلَّا الْحُدُودَ»). رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او د بي بي عائشه ﵂ نه روایت دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل② د عزت لرونکی خطاوي معاف کوی، علاوه دحدودونه (چي دهغه معاف کول جائزنه دي) ابوداود

**حل اللغات:** ① أَقِيلُوا: معاف کوئ، دفع کوئ. ② ذَوِي الْهَيْئَاتِ: شرافت والا. عزت دار. ① عَثَرَات: د حدود الله نه علاوه نور ګناهونه

**تسهیلات:**

**قوله: أَقِيلُوا ذَوِي الْهَيْئَاتِ:**

**د ذوی الهیئات نه مراد:** اصحاب منزلت شریفان او سپین روبی نیکان خلق مراددی څکه چه شیطان دَانسان دښمن دې. که دَ یوسپین روبی عزت دار سړی نه دَ حدودنه علاوه څه غلطی اوشی اونور خلق خبرې شروع کړی نودَدغه عاجزژوندون خو به ختم شی په دې وجه داسې معزز خلقوته یوځل نیم مهلت ورکول پکاردی دې دَپاره چه دَهغوی ژوندون بچ شی.

**قوله: عَثَرَاتِهِمْ: د عثرات نه مراد :** علماؤ لیکلی دی چه دلته عثرات نه مراد دَ حدودالله نه علاوه ګناه ده که دَهغې تعلق حقوق الله سره وی اوکه حقوق العباد سره وی. دَدې حکم مخاطب هغه حاکمان دی په چاچه دَ شرعی سزاګانونافذ کول لازم دی. هغوی ته وئیلی شوی دی چه نیکان خلق او سین روبی خلق مه تنګوئی دَ حدودالله نه علاوه په هغوی

(۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الحدود/باب فی الحدّ یشفع فیه (رقم-۴۳۷۵) واحمد فی المسند: ۱۸۱/۶

باندې بل څه سزا مه جاري کوئی که چرې دَهغوی نه داسې گناه اوشی دَ کوم په وجه چه په هغوی باندې حدنافذ کول واجب وی نو دَهغې دَ معاف کولو اختیار هیچاته هم نشته دې

**[۲۵۷۰] د حدودو په شبهاتو سره د ساقط کولو حکم**

۲۵۷۰-[۱۲] ()[۱] وَعَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ: رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «ادْرَءُوا الْحُدُودَ عَنِ الْمُسْلِمِينَ مَا اسْتَطَعْتُمْ [۳] فَإِنْ كَانَ لَهُ مَخْرَجٌ فَخَلُّوا سَبِيلَهُ [۴] فَإِنَّ الْإِمَامَ أَنْ يُخْطِئَ فِي الْعَفْوِ [۵] خَيْرٌ مِنْ أَنْ يُخْطِئَ فِي الْعُقُوبَةِ». [۶] (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: قَدْ رُوِيَ عَنْهَا وَلَمْ يُرْفَعْ وَهُوَ أَصَحُّ).

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه ﷺ راويه ده چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] د څو پورې چې کيدی شي مسلمانان د حد د سزا نه وساتي،[۳] که د مسلمان (ملزم) د پاره د ساتنی ذره هم څه موقع راوځي، نو د هغه لار پريږدي (يعني هغه بري کړي)[۴] ځکه چې د امام (حاکم او منصف) په معاف کولو کې خطاء کول،[۵] په سزا ورکولو کې د خطاء کولو نه ښه دي.[۶] امام ترمذي ﷺ دا روايت نقل کړي دی او ويلي يي دي چې دا حديث د بي بي عائشي ﷺ نه روايت شوی دی، او د دې سلسلهٔ رواة (د راويانو سلسله) حضور ﷺ ته نه ده رسول شوي. او دا قول زيات صحيح دی (چې دا حديث موقوف دی. يعني د بي بي عائشي ﷺ خپل ارشاد دی، حديث نبوي نه دی، ځکه چې په کوم سلسله سند سره دا حديث موقوف ثابتيږي، هغه د دې سلسلهٔ سند نه زيات صحيح او قوي دي. چې د هغه نه د دې حديث مرفوع کيدل معلوميږي)

**حل اللغات:** ① ادْرَءُوا: دفع کوئ. معاف کوئ، ② مَخْرَجٌ: لاره د وتلو. دمعاف کولو ③ فَخَلُّوا سَبِيلَهُ: نو خالی کړئ لار دده. پريږدئ دې. معاف ئې کړئ، ④ الْعُقُوبَة: سزا.

**تسهيلات: قوله:** «ادْرَءُوا الْحُدُودَ عَنِ الْمُسْلِمِينَ:

**د حد په اثبات کښې د تساهل حکم:** دَدې خطاب تعلق هم قاضيانو او حکامو سره دې که چرې داحديث دَدې نه دَمخکينی حديث تفصيل اوگرځولې شی نوبې ځايه به نه وی. دلته په دې حديث کښې حکام ته په فيصلې اورولو کښې يو هدايت کړې شوې دې اوهغوی ته دا تعليم وکړې شوې دې چه دَخپلو جذباتو اوحساساتو رخ داسې ساتئی چه دَيوملزم سره ستاسو ذاتی عناد پيدا نه شی اودَ ذاتی عناد په بنيادباندې نه څه فيصله وانوروئې لکه چه اصلاح په ذهن کښې ساتلوسره قاضی اوحاکم له دَ طبيب اومعالج په شان شفيق او مهربان جوړيدو تعليم ورکړې شوې دې.

لهذا ترکومې پورې چه ممکن کيدې شی قاضی له دَحدنافذ کولونه دغه ملزم بچ کول پکاردی اوکه کوم قسم هم څه شک گنجائش راورلې شی هغه راويستلوسره ملزم ته فائده

[۱] ) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الحدود عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء في درء الحدود (رقم-۱۴۲۴)

رسول پکاردی په ښه سوچ اوفکرسره دملزم نه سوالات کول چه دهغه په بیان کښې فرق راشي اود حد نه بچ شي ځکه چه په حد لګیدوسره به د یوشریف سړي داسې رسوائي اوشي چه هغه به د ژوند تیرولو قابل پاتې نه شي

**[۲۵۷۱] په زنا بالجبر کښې په زاني باندې دحد جاري کول**

۳۵۷۰-[۱۷] () وَعَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ قَالَ: [۲] «اسْتُكْرِهَتِ امْرَأَةٌ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۳] فَدَرَأَ عَنْهَا الْحَدَّ [۴] وَأَقَامَهُ عَلَى الَّذِي أَصَابَهَا [۵] وَلَمْ يَذْكُرْ أَنَّهُ جَعَلَ لَهَا مَهْرًا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت وائل ﷺ ابن حجر نه روایت دی [۲] د نبي کریم ﷺ په زمانه کې یوې ښځي سره زبردستي وشوه (یعني یو سړي د هغه سره په زبردستي زنا وکړه) [۳] هغه ښځه خو د حد نه خلاصه شوه. [۴] لیکن په زنا کونکي حد جاري شو. [۵] راوي دا ذکر ونه کړې چې حضور ﷺ هغې ښځي ته (د زنا کونکي نه) مهر هم ورکړي که نه. (ترمذي)

**حل اللغات:** ①اسْتُكْرِهَتْ: په تا باندې زبردستي شوې ده. ②فَدَرَأَ: نو لرې ئې کړه. ③أَقَامَهُ: جاري ئې کړو ④أَصَابَهَا: چه هغې ته رسیدلې وو. چې زنا ئې ورسره کړې وه

**تسهیلات:**

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت وائل بن حجر:** نوم وائل ابوهنیده کنیت دَ پلار نوم حجر د سلاطینو حضرموت نه وېخپله وائل هم سردارو. دَ مکې دَ فتح نه پس دَ اسلام قبلولوپه نیت راغله حضور ﷺ دَ هغوی استقبال هم اوکړود هغوی دپاره ئې څادر هم خورکړو په هغې باندې کینول اودَ هغوی دَ اولاد دپاره ئې دَ برکت دعاهم اوکړه؟(۳) کله چه دوی اسلام قبول کړو تلل نو نبي کریم ﷺ دَ هغوی ته په حضر موت کښې دَ زمکې یوه ټکړه ورکړه اودَ رخصت کولو په وخت کښې دَ لرې پورې هغوی سره لاړو.دکوفې دَ آبادیدونه پس په کوفه کښې اوسیدل.په جنګ صفین کښې حضرت علیؓ سره وو اودَ حضرموت قبیلې جهندا د هغوی په لاس کښې وه (۴)

**مرویات:** دَ دوی نه ۱۷۱ احادیث نقل دي بخاری کښې یوهم نشته او په مسلم کښې ۶ روایات دي.

**قوله:** وَلَمْ يَذْكُرْ وَلَمْ يَذْكُرْ أَنَّهُ جَعَلَ لَهَا مَهْرًا:

**په زنا بالجبر کښې د عقر (مهر) لزوم:** یعنی راوی دا اونه خودل چه نبي کریم دَ دغه ښځې دپاره مهر مقررکړې وو شارحین لیکي چه دَ راوی دلته دَ مهر ذکر نه کول دَمهر نه مقررکولودلیل نه دې ځکه چه په نورو روایتونو کښې موجود دې چه نبي کریم مهر مقرر

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الحدود عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في المرأة إذا استكرهت على الزنا (رقم-۱۴۵۳) و ابن ماجه في كتاب الحدود/باب المستكره (رقم-۲۵۹۸) واحمد في المسند:۳۹۹/۶

کړې وو او په حرام جماع کښې چه کوم مهر راځي هغې ته "عقر" وائي اوداد مهرمثل په شان وی په زنابالجبر کښې به حد صرف په سړی باندې جاري کولې شي او ښځه به بې ګناه وی خو په دې شرط چه واقعي زنابالجبر وی دلته د لفظ مهرنه مراد عقر دې.

**[۳۵۷۳] په زور د زنا کونکي سزا**

۳۵۷۳-[۱۸] (١) ① وَعَنْهُ «أَنَّ امْرَأَةً خَرَجَتْ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُرِيدُ الصَّلَاةَ، ② فَتَلَقَّاهَا رَجُلٌ، فَتَجَلَّلَهَا، ③ فَقَضَى حَاجَتَهُ مِنْهَا، ④ فَصَاحَتْ، وَانْطَلَقَ، ⑤ وَمَرَّتْ عِصَابَةٌ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ، ⑥ فَقَالَتْ: إِنَّ ذٰلِكَ الرَّجُلَ فَعَلَ بِي كَذَا وَكَذَا، ⑦ فَأَخَذُوا الرَّجُلَ، فَأَتَوْا بِهِ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ،

**ترجمه:** ① او وائل رضي الله عنه ابن حجر وايي چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په زمانه کې يوه ښځه د مونځ د پاره (د کور نه) ووتله، ② نو په لار کې هغې سره يو سړی ملاؤ وش چې په هغې يې کپړه واچوله ③ او د هغې نه يې خپل حاجت پوره کړي (يعني د هغې سره يې په زبردستی سره زنا وکړه) ④ هغې ښځې شور جوړ کړي، او هغه سړی (هغه هلته پريښودلو سره) لاړل. ⑤ هر کله چې څه مهاجر صحابه رضي الله عنهم اخوا ته تير شول، ⑥ نو هغې ښځې هغوئ ته وښودل چې دغه سړي زما سره داسې داسې کړي دي (يعني په ما کپړه اچولو سره زه يې بې بسه کړم. او بيا يې زما سره بدکاري وکړه) ⑦ خلقو هغه سړی راونيولی او د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کې يې حاضر کړي (او ټوله قصه يې ورته بيان کړه)

**حل اللغات:** ① فَتَجَلَّلَهَا: څادر پرې واچوی، پټه ئې کړی. ② فَقَضَى حَاجَتَهُ: حاجت ورسره پوره کړی. زنا ورسره اوکړی. ③ فَصَاحَتْ: چغې ئې کړې، شور ئې جوړ کړو.

① فَقَالَ لَهَا: اذْهَبِي، فَقَدْ غَفَرَ اللّٰهُ لَكِ. ② وَقَالَ لِلرَّجُلِ الَّذِي وَقَعَ عَلَيْهَا: ارْجُمُوهُ. ③ وَقَالَ: لَقَدْ تَابَ تَوْبَةً لَوْ تَابَهَا أَهْلُ الْمَدِينَةِ لَقُبِلَ مِنْهُمْ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① حضور صلى الله عليه وسلم هغې ښځې ته د توبې وفرمايل چې ځه، الله تعالى بخښلی يې (ځکه چې په دې بدکاري کې نه يواځې دا چې ستا د خواهش او رضا دخل نه وو. بلکه ته مجبوره او بې بسه کړل شوی هم وې) ② او کوم سړی چې د هغې ښځې سره بدکاري کړې وه. د هغه په حق کې يې دا فيصله وکړه. چې هغه دې سنګسار کړل شي (يعني هغه د خپل جرم اقرار وکړي. او هغه محصن وو. ځکه حضور صلى الله عليه وسلم خلقو ته حکم وکړي. چې هغه سنګسار کړي. نو هغه سنګسار شو) ③ د سنګساري نه وروسته حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل دې سړي (په خپل ځان حد جاري کولو سره) داسې توبه وخکلې ده. که داسې توبه د مدينې والاوو وخکلي وای نو د هغوئ توبه به قبوله شوي وه، (ترمذي، ابوداؤد)

(١) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الحدود/باب في صاحب الحدّ يجيء فيقرّ (رقم-٤٣٧٩) والترمذي في كتاب الحدود عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء في المرأة إذا استكرهت على الزّنا (رقم-١٤٥٣) واحمد في المسند: ٣٩٩/٦

**تسهیلات:**

**قوله:** وَقَالَ لِلرَّجُلِ الَّذِي وَقَعَ عَلَيْهَا: ارْجُمُوهُ.

**په حدیث باندې اشکال اوددهغې جواب:** دلته کښې یو اشکال دې چه د زنا جرم خوهغه وخته پورې نه ثابتیږی ترڅو چه څلور ګواهان موجود نه وی یا چه دهغه مجرم د طرف نه اقرار نه وی حالانکه دلته کښې خوصرف دغه ښځې اوونیل چه دې سړی ماسره زنا کړې ده نه خو ورسره په دې باندې څه ګواهان وو او نه دهغه دطرف نه اقرار وو نو بیا نبی علیه السلام څنګه حکم اوکړلو چه دې رجم کړئ ددې په جواب کښې محدثینو فرمائیلی دی چه «فلما أمربه ليرجم» ددې نه د راوی مراد دا نه دې چه نبی علیه السلام په حقیقت کښې د رجم فیصله کړې ده بلکه مراد دا ده چه نزدې وه چه نبی علیه السلام د رجم فیصله کړې وه او دنبی علیه السلام میلان دې طرف ته وو چه ګواهان راوړی یا اقرار اوکړی نود رجم فیصله به اوکړې شی تراوسه پورې درجم فیصله شوې نه وه نو اشکال باقی پاتې نشو.

**فائده:** ددې حدیث نه دا معلومه شوه چه د کومې ښځې سره په زبردستئ زنا اوشی نوپه هغې به څه سزا نه وی.

**[۲۵۷۳] په یوه زنا د دوو حدونو جاری کول**

٣٥٧٣-[١٩] ()[١] وَعَنْ جَابِرٍ «أَنَّ رَجُلًا زَنَى بِامْرَأَةٍ[٢] فَأَمَرَ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجُلِدَ الْحَدَّ[٣] ثُمَّ أُخْبِرَ أَنَّهُ مُحْصَنٌ[٤] فَأَمَرَ بِهِ فَرُجِمَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:**[١] او حضرت جابر رضی الله عنه وایي چې یو سړي د یوي ښځي سره زنا وکړه.[٢] نو نبي کریم ﷺ هغه په دورو د وهلو حکم وکړي هغه ته په طور د حد دوري وکول شوی.[٣] د دې نه وروسته چې حضور ﷺ ته وښودل شو. چې هغه محصن (واده والای) دی.[٤] نو حضور ﷺ د هغه د سنګسارولو حکم وکړي، نو هغه سنګسار کړل شو. (ابوداود)

**تسهیلات:**

**قوله:** فَأَمَرَ بِهِ فَرُجِمَ:

**په یو جرم کښې د دوو سزاګانو جاری کول:** که حاکم اوقاضی غلطی اوکړی نودوه حدود یوځائی کیدې شی. مطلب دا شوچه یوحد دَ بل په ځائی کیدې نه شی د دې سړی باره کښې یوځل نبی کریم ته اوخودلې شو یا هغوی پخپله اندازه اولګوله چه دا ناواده کړې دې نود کوړو سزا ورته اوشوه. روستوچه کله معلومه شوه چه داخو محصن یعنی واده کړې دې نو هغه سنګسار کړې شو.

() اخرجه ابو داود في السنن كتاب الحدود/باب رجم ماعز بن مالک (رقم-٤٤٣٨)

## [۲۵۷٤] په مريض مجرم د حد جاري كولو طريقه

۳۵۷۴—[۲۰] (۱) ۞وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ «أَنَّ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرَجُلٍ ۞كَانَ فِي الْحَيِّ مُخْدَجٍ سَقِيمٍ ۞فَوَجَدَ عَلَى أَمَةٍ مِنْ إِمَائِهِمْ يَخْبُثُ بِهَا، ۞فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: خُذُوا لَهُ عِثْكَالًا فِيهِ مِائَةُ شِمْرَاخٍ ۞فَاضْرِبُوهُ ضَرْبَةً». رَوَاهُ شَرْحُ السُّنَّةِ وَفِي رِوَايَةِ ابْنِ مَاجَهْ نَحْوَهُ.

**ترجمه:** ۞او حضرت سعيد بن سعد ابن عباده روايت كوي چې (يوه ورځ) حضرت سعد ابن عباده يو داسې سړى د حضور ﷺ په خدمت كې راوستلى، ۞چې د خپلې محلې يو ناقص الخلقت (كمزور) او مريض سړى وو، ۞هغه سړي د علاقې د وينځو نه د يوې وينځې سره په زنا كولو نيول شوى وو، ۞نبي كريم ﷺ د هغه په باره كې دا حكم وكړې. چې د خرما يو داسې څانګه واخلئ، چې په هغه كې سل وړوكې كوشنى څانګې وي. ۞او بيا په هغه څانګو سره هغه سړى يو ځل ووهئ، (شرح السنة) ابن ماجه ﷫ هم دغه شان روايت نقل كړي دى.

**حل اللغات:** ①الْحَيّ: محله، ②مُخْدَجٍ: ناقص اندامونو والا، واړه واړه اندامونو والا ③سَقِيمٍ: بيمار ④يَخْبُثُ: پليتى كوى يعنى زنا كوى، ⑤عِثْكَالًا: دَ عين كسره ده. دَ كهجوري هغه لوئى ښاخ چه پكې ډيرې وړې سانګې وى. ⑥شِمْرَاخٍ: دَ شين كسره ده، وړې سانګې

**تسهيلات: قوله:** فَاضْرِبُوهُ ضَرْبَةً

**په بيمار باندې د حد په جارى كولو كښې د آسانتيا دپاره حيله:** يعنى په دغه لوئى ښاخ باندې هغه اووهئى په كوم كښې چه وړې څانګې وى. دغه شان به دغه سړى ته دَ سلو كوړو سزا اوشى او زيات به زخمى هم نه شى نو مړ كيږى به هم نه. دَدې نه معلومه شوه كه حد زنا رجم وى نو په هرحالت كښې حد لګول پكاردى اوكه دَ زناحد كوړې دى نوبيا دَ بيمار دَ جوړيدو انتظاركول پكاردى اوكه دَ صحت اميدنه وى نوبيا دغه شان حيله كول پكاردى كومه چه دې حديث كښې ذكر ده داځكه چه دَ كوړو په حدكښې څوك قتل كول جائزنه دى

## [۲۵۷۵] د لواطت سزا

۳۵۷۵—[۲۱] (۲) ۞وَعَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۞«مَنْ وَجَدْتُمُوهُ يَعْمَلُ عَمَلَ قَوْمِ لُوطٍ ۞فَاقْتُلُوا الْفَاعِلَ وَالْمَفْعُولَ بِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

---

[۱]) اخرجه ابن ماجه فى السنن كتاب الحدود/باب الكبير والمريض يجب عليه الحدّ (رقم-۲۵۷٤) واحمد فى المسند:۵/۲۲۲

[۲]) اخرجه ابو داود فى السنن كتاب الحدود/باب فيمن عمل عمل قوم لوط (رقم-٤٤٦۲) والترمذى فى كتاب الحدود عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فى حدّ اللّوطىّ (رقم-۱٤۵٦) و ابن ماجه فى كتاب الحدود/باب من عمل عمل قوم لوط (رقم-۲۵٦۱) واحمد فى المسند:۱/۳۰۰

**ترجمه:** [۱] او حضرت عکرمه د حضرت ابن عباس ﷠ نه نقل کوي. هغه اوويل چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] که تاسو يو سړی د قوم لوط په شان عمل کونکی پيدا کړي، [۳] نو فاعل او مفعول دواړه قتل کړي، (ترمذي ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① عَمَلَ قَوْمِ لُوطٍ: د قوم لوط والا عمل، لواطت کول، سړو سره بدفعلي کول ② الْفَاعِلَ: کار کونکې (بدکاری کونکې سړې مراد دی) ③ الْمَفْعُولَ بِهِ: چاسره چه څه کارکولې شی. دلته ترې هغه څوک مراد دې چې لواطت ورسره شوې وی.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ وَجَدْتُمُوهُ يَعْمَلُ عَمَلَ قَوْمِ لُوطٍ:

**د لواطت ابتداء:** دَحضرت لوط ﷤ قوم په دغه غليظ قباحت کښې اخته وو اودَ دې قباحت شروع اودَ دې ړومبې تجربه بين الاقوامی بې غيرت ابليس هم په خپل بدن باندې کړې وه دې دپاره چه دَ حضرت آدم ﷤ اولاد دوزخ ته لاړشی بعضې علماؤ ليکلی دی چه ابليس دَ يو سړی باغ ته دَ ښکلی ځوان هلك په شکل کښې راغلو او ونې ته اوختلو او ميوه ئې راشوکوله او په زمکه باندې غورزول شروع کړه. دَ باغ مالك وئيل چه څومره ميوه خوړلې شې اوخوره يا که کورته اوړې يوسه تاته اجازت دې ليکن غورزولوسره ئې مه ضائع کوه. دې هلك يوه خبره وانوريده بيا دَ باغ مالك اووئيل چه آخر ستا مقصد څه دې؟ هغه وئيل زما مقصد دادې چه ماسره بدکاری اوکړې که چرې نه کوې نو زه به ميوه هم دغه شان راشوکوم. دې سړی اعوذبالله اووئيله او وئی وئيل داعمل هم څوك کولې شی ليکن ابليس چه کله دَ ميوو غورزول دَ حد نه زيات کړل نودې سړی هغه ښکته راؤ غوښتلو اوهغه سره ئې بدکاری اوکړه. کله چه دَ بدکارئی نه فارغ شو نوهغه له په دې کښې مزه راغله اولاړو نورو هلکانوسره ئې داکار شروع کړو او په مزه مزه دا عمل په قوم لوط کښې خورشو. تردې چه ښځې ئې پريخودې. نوچه کله دَ دغه هلکانو ډيرې راغلې نودَهغې سرونه خرول ئې شروع کړه اوداعمل دومره عام شوچه په کوڅو، لاړو، بازارونواو ښکاره مجلسونو کښې شروع شو. حضرت لوط ﷤ ډير منع کړل مگر هغوی اونه منل آخر دَ الله تعالی عذاب ټول هلاك کړل. يادلرئی چه لوط عجمی لفظ دې دَدې معنی په عجمی لغت کښې لټول پکاردی دادَعربی لغت په نظر مه گورئی. بعضې خلقو ته په دې غلط فهمی کښې ډير لوئی نقصان شوې

**قوله:** فَاقْتُلُوا الْفَاعِلَ وَالْمَفْعُولَ بِهِ:

**د لوطی په سزا کښې دَ فقهاؤ رائې:**

په مشکوة شريف کښې دَ لواطت دَ سزا باره کښې يوزيربحث حديث دې په کوم کښې چه دَدې عمل کونکی دَ قتل کولوحکم دې. وړاندې حديث نمبر(۳۵۸۳) راځی هلته ذکر دې چه

حضرت علی رضی الله عنه لواطت کونکی په اورکښې سوزولی وو او حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه په هغوی باندې دیوال راغورزولې وو بعضې روایتونو کښې دَ غرنه دَ راغورزولوذکر دې په سمندرکښې دَ ډوبولوذکر هم دې نودَ روایتونو په اختلاف سره دَ فقهاؤ رائې هم مختلف شوې

دَ امام شافعی او صاحبینو په نیزدَ لوطی سزا حددَ زنا په شان ده که چرې واده کړې وی نو رجم دې او که ناواده کړې دې نو هغه به په کوړو وهلې شی دَ فاعل اومفعول دواړو دغه حکم دې دَ امام مالك رحمه الله مشهورمسلك اودَ امام احمدبن حنبل رحمه الله مسلك اودَ امام شافعی رحمه الله یوقول دادې چه په عمل دَ لواطت کښې به فاعل او مفعول دواړه قتل کولې شی امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه دَدې قبیح فعل سزا تعزیردې او په تعزیرکښې دا ټولې سزاګانې ورکولې شی البته دَدې دَپاره څه حد مقررنه دې هرصاحب مسلك دَ یوروایت یا قیاس نه استدلال کړې دې صاحبینواو امام شافعی رحمه الله دا حد په حد زنا باندې قیاس کړې دې امام مالك رحمه الله اودَهغوی موافقینو دَ زیربحث حدیث نه استدلال کړې دې امام ابوحنیفه رحمه الله ټولې سزاګانې په ذهن کښې ساتلو سره فیصله کړې ده چه قاضی ته اختیاردې چه هغه په دې ټولو سزاګانوکښې کومه مناسب ګڼړی نافذ دې کړی امام ابوحنیفه رحمه الله لوطی سزا زیاته عام کړې ده او زیاته سخته فتوی ئی ورکړې ده لهذا په هغوی باندې دا اعتراض بهتان دې چه امام صاحب رحمه الله دَ لوطی حدنه منی هغوی خودا فرمائی چه صحابه کرامو کښې په دې باره کښې مختلف رائې وې مختلف سزاګانې ورکړې شوی دی لهذا دا په یوحد کښې نه شی شمیرلې ځکه چه حد متعین وی اودَ تعزیر میدان وسیع دې چه کوم قسم سزا ورکول غواړې ورکړه په افغانستان کښې طالبانو دَ دیوال راغوزولو سزا جاری کړې وه دَ زیر نظر حدیث الفاظ هم ښائی چه دَدې عمل سزا تعزیر دې مقررحد نه دې ځکه چه قتل ئی کړی دا الفاظ په حد کښې شامل نه دی ځکه چه په حدکښې یا کوړې دی یا سنګسارول دی دَدې دَپاره رجم یا مأة جلدة الفاظ راغلی دی

## [۲۵۷٦] څاروې سره دَ بد فعلی کولو سزا

۲۵۷٦ــ[۲۲] (١) ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ «مَنْ أَتَى بَهِيمَةً فَاقْتُلُوهُ وَاقْتُلُوهَا مَعَهُ. ٣ قِيلَ لِابْنِ عَبَّاسٍ: مَا شَأْنُ الْبَهِيمَةِ؟ ٤ قَالَ: مَا سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ذَلِكَ شَيْئًا، ٥ وَلَكِنْ أُرَاهُ كَرِهَ أَنْ يُؤْكَلَ لَحْمُهَا أَوْ يُنْتَفَعَ بِهَا، وَقَدْ فُعِلَ بِهَا ذَلِكَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

[١]) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الحدود/باب فیمن أتی بهیمة (رقم-٤٤٦٤) والترمذی فی کتاب الحدود عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فیمن یقع علی البهیمة (رقم-١٤٥٥) و ابن ماجه فی کتاب الحدود/باب من أتی ذات محرم ومن أتی بهیمة (رقم-٢٥٦٤) واحمد فی المسند:١/٣٠٠

**ترجمه:** او ابن عباس رضی الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ②كوم سړی چې د يو حيوان سره بد فعلي وكړي، هغه قتل كړي، او د هغه سره هغه حيوان هم قتل كړي، ③د ابن عباس رضی الله عنهما نه پوښتنه وشوه چې د حيوان په باره كې دا حكم ولي دی؟ (يعني حيوان خو عقل نه لري، او نه مكلف دی، نو د هغه د قتلولو حكم ولي دي؟) ④ابن عباس رضی الله عنهما وفرمايل چې ما د دې (د حكمت او مصلحت) په باره كې د رسول الله ﷺ نه خو څه نه دي اوريدلي. ⑤خو زما گمان دی چې حضور ﷺ دا خبره ناخوښه كړه، چې د كوم حيوان سره چې بد فعلي شوي وي، د هغه غوښه دې وخوړل شي، يا د هغه (د پيئو، وينښتانو او افزائش نسل) نه دې فائده وآخستى شي (او هر كله چې د دې حيوان نه د هر قسم څه فائده اخستل مكروه دی، نو بيا د هغه قتلول ضروري دی. (ترمذي ابوداود ابن ماجه)

**حل اللغات:** ①بَهِيمَةً: څناور، حيوان. ②مَاشَأْنُ؟: څه گناه او جرم دې؟

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ أَتَى بَهِيمَةً فَاقْتُلُوهُ:

**د اسحاق بن راهويه استدلال اوددهغې جواب:** يعني چاچه څناورسره بدفعلي اوكړه نو هغه څناور هم قتل كړئی او هغه سړې هم قتل كړئی. ټول فقهاء په دې متفق دی چه د څناورسره بدفعلی كولوسزا تعزير دې. صرف دَ اسحاق بن راهويه په نيزدغه سړې قتل كول دی فقهاؤ داحديث اخستې دې په كوم كښې چه دا الفاظ دی ((من اتى بهيمة فلا حدعليه)) (ترمذى) أسحاق بن راهويه دَزير بحث حديث "فاقتلوه" الفاظ نه استدلال كړې دې جمهور فرمائی چه دا خو په زجرتوبيح تشديداو تغليظ باندې محمول دی

**قوله:** وَاقْتُلُوهَا مَعَهُ:

**د مفعول څناور د قتلولو وجه:** څناور اگرچې غيرمكلف دې خو په ده باندې د سزا جاری كولو په باره كښې حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه مادَ رسول الله ﷺ نه په دې باره كښې خو څه نه دی اوريدلی مگر زماخيال دې چه څناور به څكه وژلې شی چه څوك ددې دَ پيئو يا غوښې نه څه فائده اوچته نه كړی حالانكه دې سره دا خراب كارشوې دې دكوم اثر چه ددې پيئو اوغوښې ته رسيدې شی دَ څناور دَ قتل باره كښې يوه توجيه داهم كړې شوې ده چه څناور په دې وجه هم قتل كړئی چه بدفعلی كونكی سړی ته خلق شرم نه وركړځوی چه گوره كه نه ستا هغه ناوې خو هغه ده گرځي په دې وجه دا مكروه ريكارډ ختمول بهتر دی.

علماء فرمائی چه يوې ښځې چرته څه څناور مثلاً لنگور يا سپی وغيره سره جماع اوكړه نودَدې حكم هم دَ څناور سره دَ بدفعلئی كونكی په شان دې.

**[۲۵۷۷] د نبي عليه السلام په خپل امت د لواطت کولو ويره**

۳۵۷۷-[۲۳] (¹) [۱] وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «إِنَّ أَخْوَفَ مَا أَخَافُ عَلَى أُمَّتِي [۳] عَمَلُ قَوْمِ لُوطٍ.» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د خپل امت په باره کې چې زما سره د کوم څيز د تولو نه زياته ويره ده، [۳] هغه د قوم لوط عمل (يعني اغلام) دي. (ترمذي ابن ماجه)

**تسهيلات: قوله:** إِنَّ أَخْوَفَ مَا أَخَافُ عَلَى أُمَّتِي:

ددې مطلب دادې چې زما امت دې د بې صبرۍ او د نفساني خواهشاتو په وجه په دې بدفعل کښې اخته نشي يا ددې مطلب دادې چې دا کار ډير خراب او سخت قبيح دې او ددې حرمت ډير زيات شديد دې زه ددې خبرې نه ويريږم چې هسې نه زما امت په دې کښې اخته نشي او ددې په وجه دوئ عذاب کښې اخته نشي

**[۲۵۷۸] په مقر بالزنا باندې د ښځې په حق کښې د حد قذف جارې کول**

۳۵۷۸-[۲۴] (²) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ «أَنَّ رَجُلًا مِنْ بَنِي بَكْرِ بْنِ لَيْثٍ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۲] فَأَقَرَّ أَنَّهُ زَنَى بِامْرَأَةٍ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ [۳] فَجَلَدَهُ مِائَةً وَكَانَ بِكْرًا [۴] ثُمَّ سَأَلَهُ الْبَيِّنَةَ عَلَى الْمَرْأَةِ [۵] فَقَالَتْ: كَذَبَ وَاللهِ يَا رَسُولَ اللهِ [۶] فَجُلِدَ حَدَّ الْفِرْيَةِ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابن عباس ﷺ نه روايت دی چې (يوه ورځ) د بکر بن ليث د خاندان يو سړی د نبي کريم ﷺ په خدمت کې راغلی. [۲] او اقرار يي وکړي چې هغه (يعني ما) د يوي ښځي سره څلور ځله (يعني په څلورو مجلسونو کې) زنا کړي ده. [۳] نبي کريم ﷺ هغه سل دوري ووهلي. او هغه سړی يي غير محصن (يعني ناواده وو) [۴] بيا حضور ﷺ د هغه نه د هغه ښځي په زنا کاري ګواهان طلب کړل. [۵] ښځي عرض اوکړو چې قسم په خدای يا رسول الله ﷺ دا سړی دروغ وايي. [۶] د دې نه وروسته حضور ﷺ په هغه سړي د تهمت لګولو حد جاري کړي. (ابوداود)

**حل اللغات** ① بِكْرًا: غيرمحصن. ناواده کړې. ② حَدّ: شرعی سزا. ③ الْفِرْيَة: دروغ. تهمت. بهتان

**تسهيلات: قوله:** فَجُلِدَ حَدَّ الْفِرْيَةِ:

**په يو سړي د متعدد د حدودو قائمولو حکم:** يعنې د دروغو د تهمت حد ورته اولګولې شو دې سړي اول پخپله اقرار اوکړوچه ما فلانکې ښځې سره زناکړې ده اوس دامعلومه نه

---

¹) اخرجه الترمذي في كتاب الحدود عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء في حدّ اللّوطيّ (رقم-۱٤۵۷) و ابن ماجه في كتاب الدّيات/باب دية الأصابع (رقم-۲۶۵۳) واحمد في المسند: ۳۸۲/۳

²) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الحدود/باب إذا أقرّ الرّجل بالزّنا. ولم تقرّ المرأة (رقم-٤٤۶۷)

شوه چه دَدې نه دَهغه څه مقصد وو کیدې شي چه هغه دغه ښځه بدنامول غوښتل
بهرحال دَ هغه په اقرار باندې هغه په کوړواووهلې شو خوچه کله دَ ښځې نه تپوس
اوکړې شونوهغې اووئیل په الله قسم دې دروغ وائي اوس دَ بهتان په وجه داسړې په
حدقذف کښې هم په کوړو اووهلې شو دې نه معلومه شوه چه یوسړی ته په دوو مختلف
جرمونوکښې مختلف سزاګانې ورکولې شي.

**[۲۵۷۹]په عائشی رضي الله عنها د تهمت لګونکوسزا**

۲۵۷۹–[۲۵] (¹) ۱ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: ۲ «لَمَّا نَزَلَ عُذْرِي ۳ قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ، فَذَكَرَ ذٰلِكَ، ۴ فَلَمَّا نَزَلَ مِنَ الْمِنْبَرِ ۵ أَمَرَ بِالرَّجُلَيْنِ وَالْمَرْأَةِ فَضُرِبُوا حَدَّهُمْ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ او بي بي عائشه رضي الله عنها وایي ۲ کوم وخت چې زما برې کیدل نازل شو (یعني زما د پاکدامنې په ثبوت کې آیاتونه نازل شو) ۳ نو نبي کریم ﷺ په منبر ودریدو سره خطبه ارشاد وفرمایله او د دې ذکر یې وکړې، ۴ او کوم وخت چې د منبر نه راخکته شو. ۵ نو دوو سړو او یوې ښځې ته یې د سزا ورکولو فیصله وکړله، نو په هغوئ (د تهمت لګولو) حد جاري شو، (ابوداود)

**تسهیلات:**

**قوله:** أَمَرَ بِالرَّجُلَيْنِ وَالْمَرْأَةِ:

**حضرت عائشه رضي الله عنها د حدیث پس منظر:** په حضرت عائشه رضي الله عنها باندې ۵هجری کښې دَ یوغزوه دوران کښې دَ شاته پاتې کیدو دَ وجې منافقینو بهتان لګولې وو یومیاشت پورې صحابه کرام رضي الله عنهم په سخت اضطراب کښې وو منافقانوسره یوڅو مسلمانانو هم په دې تهمت کښې خپلې ژبې ګنده کړې وې. په دوی کښې یوه ښځه اودوه سړی وو په دوی کښې دَ یو نوم مسطح وواودَ دویم نوم حضرت حسان رضي الله عنه خودلې شوې دې اودَ ښځې نوم حمنه بنت جحش وو.

**د حسان په حضرت عائشه باندې په تهمت لګولو کښې د شرکت تحقیق:** دَحضرت حسان رضي الله عنه باره کښې خوحضرت عائشه رضي الله عنها هم دا فرمائیلی چه هغه په دې بهتان کښې ککړکیدې نه شي ځکه چه هغه دا شعروئیلې دې.

فإن ابي ووالده وعرضي　　لعرض محمد منكم وقاء

او پخپله حضرت حسان رضي الله عنه هم سخت انکارکړې دې چه دا دَ دښمنانو په مباندې الزام دې. هغه دَحضرت عائشه رضي الله عنها په برأت اومنقبت اوخپله صفائی کښې دااشعار وئیلی دی.

---

¹) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الحدود/باب في حدّ القذف (رقم-٤٤٧٤) والترمذي في كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب: ومن سورة النّور(رقم-٣١٨١) و ابن ماجه في كتاب الحدود/باب حدّ القذف (رقم-٢٥٦٧)

حصان رزان ما تزن بريبة — وتصبح غرثى من لحوم الغوافل
حليلةُ خير الناس ديناً و منصبًا — نبي الهدى ذى المكرمات الفواضل
مهذبة قد طيَّب الله خيمها — وطَهرها من كل سُوء وباطل
فان كنتُ قد قلتُ ما قد زعمتموا — فلا رفعت سوطي إليَّ اناملي
فان الذى قد قيل ليس بلائط — ولكنه قول امرءٍ بِيَّ ماحل
وكيف و ودي ما حَيِيْتُ و نصرتي — لال رسول الله زين المحافل

دَحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها دَ يوې جملې نه پته لګی چه حضرت حسان رضي الله عنه په دې بهتان کښې زبانی حصه اخستې وه خو په هغه باندې حد اونه لګيدو البته هغه په آخری عمرکښې دَ سزا په توګه نابيناشوې وو. بهرحال کله چه نبی کريم دَ عائشه بی بی رضي الله عنها دَ برأت آياتونه اولوستل اودَ منبرنه راکوزشو نومخلص درې مسلمانانوته حدقذف سزا اتيا اتيا کوړې ورکړې شوې اومنافقانوسره څه غرض اونه ساتلې شو ځکه چه په نفاق اوکفرسره ککړشوې سړې په حدقذف سره به څه پاکولې شی.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۳۵۸۰] په زنا بالجبر کښې صرف په زانی د حد قائمول

۳۵۸۰-[۲٦] (١) ①عَنْ نَافِعٍ، أَنَّ صَفِيَّةَ بِنْتَ أَبِي عُبَيْدٍ أَخْبَرَتْهُ أَنَّ عَبْدًا مِنْ رَقِيقِ الْإِمَارَةِ وَقَعَ عَلَى وَلِيدَةٍ مِنَ الْخُمُسِ، فَاسْتَكْرَهَهَا حَتَّى اقْتَضَّهَا، ②فَجَلَدَهُ عُمَرُ، ③وَلَمْ يَجْلِدْهَا مِنْ أَجْلِ أَنَّهُ اسْتَكْرَهَهَا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①د حضرت نافع رحمه الله نه روايت دی چې بي بي صفيه رضي الله عنها بنت ابو عبيد هغه ته بيان وکړي چې د امارت او خلافت (يعني د حضرت عمر رضي الله عنه د حکومت) يو غلام د يوې داسې وينځې سره زنا کول وغوښتل. چې د مال غنيمت د خمس نه وه، او هر کله چې وکړه. ددې پورې چې د هغې د بکارت پرده (يعني پيغلتوب) يې زائله کړه. ②حضرت عمر رضي الله عنه هغه پنځوس دوري ووهلې. ③او هغه وينځې يې په دورو ونه وهله (يعني هغه ته يې د بد کارۍ سزا ورنه کړه) ځکه چې هغه غلام د هغې سره په زبردستۍ سره جماع کړې وه. (بخاري)

**حل اللغات:** ①رَقِيق: غلام. ②الْإِمَارَة: حکومت. ③وَلِيدَة: وينځه. ④الْخُمُس: پنځمه حصه (دلته دمال غنيمت پنځمه حصه مراد ده)، ⑤اقْتَضَّهَا: په زوره ئې ترې حاجت پوره کړو (يا دبکارت پرده ئې ورسره اوشلوله

(١) اخرجه البخاری فی صحيحه رقم الحديث ٦٩٤٩

**تسهيلات:**

**قوله**: وَلَمْ يَجْلِدْهَا مِنْ أَجْلِ أَنَّهُ اسْتَكْرَهَهَا

**نوټ**: وينزې ته دحد نه ورکولو وجه دا وه چې هغې باندې زبردستي شوې وه اوچا سره چې په زور باندې زنا اوکړې شي هغې باندې حد نه جاري کې ی ددې تشريح وړاندې د حديث نمبر (۳۵۷۲) په شرح کښې تيره شوې ده

**[۳۵۸۱] د ماعز رضي الله عنه د زنا د واقعې يو بل تفصيل**

۳۵۸۱-[۲۷] (¹) ① وَعَنْ يَزِيدَ بْنِ نُعَيْمِ بْنِ هَزَّالٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: ② «كَانَ مَاعِزُ بْنُ مَالِكٍ يَتِيمًا ③ فِي حِجْرِ أَبِي ④ فَأَصَابَ جَارِيَةً مِنَ الْحَيِّ، ⑤ فَقَالَ لَهُ أَبِي: ائْتِ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبِرْهُ بِمَا صَنَعْتَ لَعَلَّهُ يَسْتَغْفِرُ لَكَ ⑥ وَإِنَّمَا يُرِيدُ بِذَلِكَ رَجَاءَ أَنْ يَكُونَ لَهُ مَخْرَجًا، ⑦ فَأَتَاهُ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي زَنَيْتُ فَأَقِمْ عَلَيَّ كِتَابَ اللهِ.

**ترجمه**: ①او يزيد ابن نعيم ابن هزّال د خپل پلار (نعيم ابن هزّال) نه نقل کوي چې هغه (يعني نعيم) اوويل ②چې ماعز ابن مالك يتيم وو، ③او زما د پلار (حضرت هزّال) په پالنه کې وو، ④هغه (د ځوانيدو سره) د قبيلې د يوې وينځې سره زنا وکړه، ⑤زما پلار چې په خبر شو، نو هغه ته يې اوويل چې ته د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شه. او څه چې دې کړي دي، حضور ﷺ ته يې اووئيلو، شايد ستا د مغفرت دعا وکړي، ⑥او زما د پلار د دې ويلو د دې نه علاوه بل هيڅ مقصد نه وو، چې استغفار (د ګناه نه) د هغه د نجات سبب جوړ شي (يعني زما د پلار دا مقصد نه وو چې هغه دې حضور ﷺ ته ورشي. او حضور ﷺ دې د هغه د سنګساريدو حکم وکړي، څنګه چې بعضو خلقو ګڼلي ده) ⑦ماعز د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شو. او عرض يې وکړي چې يا رسول الله! ﷺ زما نه زنا شويده، تاسو په ما د کتاب الله حکم جاري کړي.

**حل اللغات**: ① حِجر: غيږ، پرورش.

① فَأَعْرَضَ عَنْهُ، فَعَادَ، ② فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي زَنَيْتُ فَأَقِمْ عَلَيَّ كِتَابَ اللهِ. ③ حَتَّى قَالَهَا أَرْبَعَ مِرَارٍ، ④ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّكَ قَدْ قُلْتَهَا أَرْبَعَ مَرَّاتٍ فَبِمَنْ ⑤ قَالَ: بِفُلَانَةَ. ⑥ قَالَ: هَلْ ضَاجَعْتَهَا؟ قَالَ: نَعَمْ. ⑦ قَالَ: هَلْ بَاشَرْتَهَا؟ ⑧ قَالَ: نَعَمْ. قَالَ: هَلْ جَامَعْتَهَا؟ ⑨ قَالَ: نَعَمْ.

**ترجمه**: ①حضور ﷺ (د هغه دا خبره اوريدو سره) خپل مخ ځني بل طرف ته وګرځولی، هغه ورته بيا د بل طرف نه ورته راغلی، ②او هغه اوويل چې يا رسول الله! ﷺ زما نه زنا شويده تاسو په ما د کتاب الله حکم جاري کړي، ③ ددې پورې چې هغه دا خبره څلور

(¹) اخرجه ابوداود في السنن رقم الحديث ۴۴۱۹

خله يعني په څلور مجلسونو کي، وکړه. ۲ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چې تا داخبره څلور ځله وکړله يعني څلور ځله اقرار کولو سره ستا د زنا جرم ثابت شوی دی. اوس دا وښایه، چې، تا د چا سره زنا کړیده؟ ۵ هغه (نوم اخستو سره) اوویل چې د فلاني ښځې سره. ۶ حضور ﷺ پوښتنه ورته وکړه چې آیا ته د هغه سره هم خواب (یعني هم اغوش) شوی وې؟ هغه اوویل چې هو. ۷ حضور ﷺ پوښتنه ورته وکړه چې آیا تا د هغه بدن خپل بدن سره را نغښتی وو. ۸ هغه اوویل چې هو. حضور ﷺ پوښتنه ورته وکړه چې آیا تا د هغه سره جماع کړي وه؟ ۹ هغه اوویل چې هو.

**حل اللغات:** ② هَلْ ضَاجَعْتَهَا: آیا ته ورسره ملاست وې؟ ③ هَلْ بَاشَرْتَهَا: آیا تا دهغې بدن ځان ته راجخت کړی دی؟ ④ هَلْ جَامَعْتَهَا: آیا تا دهغې سره جماع کړې ده؟

۱ قَالَ: فَأَمَرَ بِهِ أَنْ يُرْجَمَ، ۲ فَأُخْرِجَ بِهِ إِلَى الْحَرَّةِ فَلَمَّا رُجِمَ ۳ فَوَجَدَ مَسَّ الْحِجَارَةِ، فَجَزِعَ، فَخَرَجَ يَشْتَدُّ ۴ فَلَقِيَهُ عَبْدُ اللهِ بْنُ أُنَيْسٍ، وَقَدْ عَجَزَ أَصْحَابُهُ، فَنَزَعَ لَهُ بِوَظِيفِ بَعِيرٍ، فَرَمَاهُ بِهِ، فَقَتَلَهُ ۵ ثُمَّ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ ذٰلِكَ لَهُ ۶ فَقَالَ: هَلَّا تَرَكْتُمُوهُ لَعَلَّهُ أَنْ يَتُوبَ، ۷ فَيَتُوبَ اللهُ عَلَيْهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ راوي وايي چې د دې نه وروسته حضور ﷺ د هغه د سنګسارولو حکم وکړي. ۲ نو هغه حره ته بوتلل شو، هر کله چې هلته سنګسار شو. ۳ او کوم وخت چې هغه د کاڼو ګزارونه برداشت نه کړل، نو هغه بد حواسه شو (يعني د کاڼو ګذارونه يې ونه زغملی شو) او چرته چې سنګسارول کيدی، د هغه ځايې نه وتښتيدلی. ۴ په لار کې عبدالله ابن انيس ورسره يو ځای شو. چې د هغوئ سره ملګري وو (يا د ماعز سنګسار کونکي) ستړي شوي وو. نو عبدالله ﷺ د اوښ د پښي هډوکي پورته کړي او په هغه يې ماعز ﷺ وويشتلی. ددې پورې چې هغه يې ختم کړي. ۵ د دې نه وروسته عبدالله ﷺ د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شو. او ټوله واقعه يې ورته بيان کړه. ۶ حضور ﷺ ورته وفرمايل چې تاسو هغه ولي پرې نه ښودلی. شايد هغه د خپل اقرار نه رجوع کړي وه. ۷ او الله ﷻ د هغه توبه قبلولو سره د سنګسارۍ نه بغير يې د هغه ګناه معاف کړي وی. (ابوداود)

**حل اللغات:** ⑤ مَسَّ الْحِجَارَةِ: کاڼړی لګيدل. ⑥ فَجَزِعَ: نو بې صبره شو. برداشت نې اونکړې شو ⑦ يَشْتَدُّ: سخت شو ⑧ فَنَزَعَ: راويستلو. ⑨ بِوَظِيفِ: د پښې هډوکې. ⑩ بَعِيرٍ: اوښ ⑪ فَرَمَاهُ: نو هغه نې پرې ويشتلو

**تسهيلات:**

**نوټ:** د دې حديث تشريح د حديث نمبر (۳۵۶۵) په وضاحت کښې تيره شوې ده.

## [۲۵۸۲] د زنا او د رشوت د کثرت قدرتي سزاګانې

۳۵۸۲–[۳۸] (¹) ١ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ٢ «مَا مِنْ قَوْمٍ يَظْهَرُ فِيهِمُ الزِّنَا إِلَّا أُخِذُوا بِالسَّنَةِ، ٣ وَمَا مِنْ قَوْمٍ يَظْهَرُ فِيهِمُ الرِّشَا إِلَّا أُخِذُوا بِالرُّعْبِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ١ او حضرت عمرو رضی الله عنه ابن العاص وايي چې ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل ٢ په کوم قوم کې چې د زنا کثرت شي، په هغوئ قحط سالي راځي. ٣ او په کوم قوم کې چې د رشوت وبال عام شي، نو په هغوئ رعب مسلط کول کيږي. (احمد)

**حل اللغات:** ① بِالسَّنَةِ: سين اونون دواړو باندې زبردې، اوچ کالی، قحط ② الرِّشَا: رسئ، رابښکل، دلته ترې رشوت مراد دې. ③ الرُّعْب: رعب، دباؤ، ويره.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِلَّا أُخِذُوا بِالسَّنَةِ:

**د زنا په وجه د قحط د مسلط کيدو حکمت:** علامه طيبي رحمه الله فرمائي چه د زنا په وجه باندې د قحط مسلط کيدو حکمت کيدې شي چه دا وی چه زنا د نسل د تباهئ ذريعه ده اوقحط د فصل د تباهئ ذريعه ده. په دواړوکښې د فساد اوتباهئ مماثلت دې نوزنا د قحط د راوستلو ذريعه جوړه شوه. دا ګناه د نسل د تباهئ ذريعه جوړه شوه او ددې په اثرسره قحط راځي په کوم سره چه د فصل تباهي کيږي. الکاشف **۷/۱۶۹**.

**قوله:** الرِّشَا:

**د رشا معنی او وجهٔ تسميه:** په راء باندې پيش هم دې اوکسره هم جائزده رشاء په اصل کښې هغه رسئ ته وائی د کوم په مدد چه د کوهی نه اوبه راويستلې شی ځکه چه رشوت هم د ناجائزمال د رابښکلو ذريعه ده په دې وجه دې ته رشا اووئيلې شو دا د رشوة جمع ده

**قوله:** إِلَّا أُخِذُوا بِالرُّعْبِ:

**د رشوت په کثرت د سره مرعوب کيدو وجه:** يعنی د رشوت په کثرت سره قوم اوملك دخپلو خلقونه هم مرعوب کيږی اود دښمن نه هم مرعوب پاتې کيږی د دې وجه داده چه کله د رشوت ورکولو او اخستلو د وجې نه د قوم جرات او همت لکه د غلو په شان ښکته کيږی اود قوم ضمير مړ کيږی اود ايماندارئی او صداقت جذبه ختميږی نو د دښمن په مقابله کښې اوس د دغه رشوت خورو نه ټول انسانی صفات اوعظمتونو اوعزتونو تصورات ختميږی اوحاکم اومحکوم دواړه د دښمن نه مرعوب اوسيږی دغه وخت کښې د دوی ضمير د اوچتوالی احساس نه ورکوی بلکه د نور ښکته کيدو احساس ورکوی او

¹) اخرجه احمد في المسند: ٤/٢٠٥

هم دغه رعب دې اود خپلو خلقو ویره پرې څکه خوریږی چه کله دا رشوت خور خپلې ذمه وارئې نه پوره کوی نودې د هریونه ویریږی لهذا دې د یوجج د حکم نافذ کولو اوجاری کولو نه هروخت ویره خوری چه هسې نه چانه مې رشوت اخستې دې هغه راپورې اونه انخلی دغه شان په مجموعی حیثیت سره قوم بزدل جوړیږی

**[۲۵۸۳] په لوطی باندې لعنت**

۳۵۸۳—[۲۹] ()[۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَأَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [۲] «مَلْعُونٌ مَنْ عَمِلَ عَمَلَ قَوْمِ لُوطٍ». رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما او ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړی چې د قوم لوط په شان عمل (یعني اغلام، بچه بازي) کوي. هغه ملعون دی. (رزین)

**حل اللغات:** ①مَلْعُونٌ: لعنت کړې شوې، د الله د رحمت نه لرې. ②عَمَلَ قَوْمِ لُوطٍ: د قوم لوط والا عمل. لواطت کول. هلکانو سره بدفعلی کول.

۳۵۸۳—()[۱] وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ عَلِيًّا أَحْرَقَهُمَا وَأَبَابَكْرٍ هَدَمَ عَلَيْهِمَا حَائِطًا.

**ترجمه:** [۱] او د رزین په یو روایت کې د ابن عباس رضی الله عنهما نه منقول دی چې حضرت علي رضی الله عنه (په طور د سزا) اغلام کونکی فاعل او مفعول دواړه سوزلي وو، اوحضرت ابوبکر رضی الله عنه په هغوئ دیوار راایله کړی وو.

**حل اللغات:** ①أَحْرَقَهُمَا: دواړه ئې اوسوزول. ②هَدَمَ: وران ئې کړل. ③حَائِط: دیوال

**تسهیلات:**

**قوله: مَلْعُونٌ مَنْ عَمِلَ عَمَلَ قَوْمِ لُوطٍ**

**کوم کوم خلق ملعون دی:**

جامع صغیر کښې امام محمد رحمه الله د حسن بصری رحمه الله په سند سره د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه داروایت نقل کړې دې ① کوم سړې چه خپلې مور ته بد اووائی هغه ملعون دې ② کوم سړې چه د غیرالله په نوم باندې ذبح اوکړی هغه ملعون دې ③کوم سړې چه د اسلام د زمکې په سرحدونو کښې بدلون اوکړی هغه ملعون دې ④ کوم سړې چه یو ړوند ته غلطه لار اوښائی هغه ملعون دې ⑤ کوم سړې چه ځناور سره بدفعلی اوکړی هغه ملعون دې ⑥ کوم سړې چه د قوم لوط په شان د هلك بازئی عمل کوی هغه ملعون دې

---

[۱] ) رواه رزین
[۲] ) رواه رزین

**قوله:** أَنَّ عَلِيًّا أَحْرَقَهُمَا:

**د لواطت د سزا نوعیت:** یعنی حضرت علی رضی الله عنه فاعل اومفعول دواړه په اورکښې اچولوسره سیزلی وو او حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په دواړو باندې دیوال راغورزولې وو چونکه دا سزا دَ احنافو په نیزدَتعزیر په زمره کښې راځی په دې وجه دَ صحابه کرامو په دورکښې اودَهغې نه پس وختونوکښې دَدغه سزا په صورتونوکښې فرق راروان دې لیکن دادَ دې دَعدم جرم دَ وجې نه نه ده بلکه دَحددَ عدم تعین دَ وجې نه ده اودَ تعزیرباب خود حدنه زیات وسیع دې.

**د لوطی په سزا کښې مذاهب:**

① بعضې علماؤ وئیلی دی چه لواطت کونکې دَ اوچت غر نه راګزارکړئی اودَپاسه پرې دَ کاڼرو باران اوکړئی دې دَپاره چه دَ قوم لوط دَ سزا په شان مشابهت راشی

② بعضو وئیلی دی چه په ده باندې مکان راغوزار کړئی او ورخښ نی کړئی بعضو وئیلی چه دې په سمندر کښې ورډوب کړئی.

③ بعضې وئیلی چه دې په تنګ اوتیاره بدبوداره ځائی کښې راګیرکړئی بعضې وائی چه ترهغه وخته پورې جیل کښې بندکړئی ترکومې چه توبه نه وی کړې.

④ بعضې وئیلی دی که لوطی عادتی وی اودا قبیح فعل باربار کوی نودَمصلحت لاندې دې قتل کړې شی دغه شان عادی مفعول به هم قتل کړئی دا ټولې خبرې مختلف حواله جات سره زجاجة المصابیح ج۳ص۷۸ باندې ذکردی. دَدغه ټولو اقوالو په رڼا کښې دَ نن صباغیرمقلد حضراتو دا پروپیګنډا په دیانت اوصداقت باندې مبنی نه ده چه دا وائی دَ احنافو په نیز په لواطت باندې څه سزا نشته دې.

⑤ امام ابوحنیفه رحمه الله که چرې دا وائی چه دَدې دَپاره دَ صحابه کرامو په دورکښې څه متعین سزا نه وه لهذا دا دَ تعزیر په زمره کښې راځی نو په دې باندې دَ اعتراض ګنجائش ترکومې پورې دې آیا دَ دومره اقوالو نه پس ځوئیلی شی چه دَ حد په توګه دَ دې عمل دَپاره فلانکې خاص حد متعین دې؟ که چرې نه شی وئیلې نوهم دغه خبره خو دَ امام ابو حنیفه رحمه الله ده دَ باقی فقهاؤ اختلاف وړاندې تیرشوې دې

**[۲۵۸۵] ښځې سره په لواطت کولو دالله تعالی غصه**

٢٥٨٥-[٣٠] ()[١] وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [٢]«لَا يَنْظُرُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ [٣] إِلَى رَجُلٍ أَتَى رَجُلًا أَوِ امْرَأَةً فِي دُبُرِهَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

---

[۱]) اخرجه الترمذی رقم الحدیث ۱۱۶۵، واحمد فی المسند ۲/ ۳٤٤

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] الله تعالی په هغه سړي د رحمت نظر نه کوي، [۳] چې د یو سړی یا ښځې سره لواطت وکړي، دا روایت امام ترمذي رحمه الله نقل کړي دی او ویلي یې دي چې دا حدیث حسن غریب دی.
**حل اللغات:** ①أَتَى رَجُلًا: راتلل ئې او کړل سړی ته (مراد ترې لواطت دې) ②دُبُر: شا طرف.

**تسهیلات:**

**قوله: أَتَى رَجُلًا أَوِامْرَأَةً فِي دُبُرِهَا:**

**ښځې سره په دبر کښې د جماع حرمت:** په ډیرو احادیثوکښې سخت ممانعت او لعنت راغلې دې چه یوسړې خپلې ښځې سره بدفعلي اوکړی. چونکه په دې کښې دَ اشتباه خطره وه چه دَ خاونداخیال وی چه دا خوزما ښځه ده نودَدې هرقسم فائده اخستل به جائز وی. په دې وجه په دې باندې په احادیثوکښې سخت نکیر او سخت وعید راغلې دې او چونکه بعضې بدبخت سیاه کار ښه په قصد ښځې سره دَ بدفعلئی عمل کوی اوممکن ده چه یو لوئی مخلقو په دې جرم کښې راګیر وی په دې وجه اسلام په ښکاره الفاظوکښې دَدې ممانعت اوکړو او په دې باندې وعید واؤرولو اودَ لواطت ممانعت په عامو آیاتونو او عام احادیث کښې ئی دې ته شامل کړه. بلکه دَ لواطت سزا ئی دې کښې شمیر کړه.

### [۲۵۸٦] ځاروی سره د بدفعلی کولو سزا

٢٥٨٦ — [٣١] ([۱]) [۱] وَعَنْهُ أَنَّهُ قَالَ: [۲] «مَنْ أَتَى بَهِيمَةً فَلَا حَدَّ عَلَيْهِ» . [۳] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ أَنَّهُ قَالَ: [۴] وَهَذَا أَصَحُّ مِنَ الْحَدِيثِ الْأَوَّلِ وَهُوَ «مَنْ أَتَى بَهِيمَةً فَاقْتُلُوهُ» . [۵] وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه منقول دی هغه (بطریق مرفوع) اوویل [۲] چې کوم سړی چې د حیوان سره بد فعلي وکړي، هغه د حد سزا وار نه دی (لیکن قابلِ تعزیر دی) [۳] دا روایت ترمذي رحمه الله او ابوداود رحمه الله نقل کړي دی، او ترمذي رحمه الله د سفیان ثوري نه روایت کوي، چې هغه (یعني سفیان) اوویل [۴] چې دا حدیث د ابن عباس رضی الله عنهما د هغه د مخکني حدیث نه زیات صحیح دی (کوم چې په دویم فصل کې د هغه نه نقل شوی دی، او هغه مخکنی حدیث دا دی چې کوم سړی د حیوان سره بد فعلي وکړي هغه قتل کړي، [۵] نو علماوو په دې عمل کړي دی، چې د حیوان سره بد فعلي کونکی د حد سزاوار نه دی، البته په طور د تعزیر هغه ته سزا ورکول کیدی شي.
**حل اللغات:** ①بَهِيمَةً: ځناور، حیوان. ②حَدَّ: شرعی سزا.

[۱] ) اخرجه ابو داود فی السنن كتاب الحدود/باب فیمن أتی بهیمة (رقم-٤٤٦٥)، والترمذی رقم الحدیث ١٤٥٥

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ أَتَى بَهِيمَةً فَاقْتُلُوهُ:

**څناور سره د بدفعلی کونکی سزا:** دې نه مخکښې حديث نمبر(۳۵۸۶) کښې په دې مسئله کښې پوره تفصيل تيرشو هلته اوګورئ هلته داذکر شو چه څناورسره بدفعلی کونکې قتل کړئ او څناور هم قتل کړئ هغه روايت هم د حضرت ابن عباس ﷠ نه نقل دې اوداهم د حضرت ابن عباس ﷠ نه نقل دې په ظاهره داسې معلوميدله چه زير بحث حديث مرفوع حديث نه دې بلکه د حضرت ابن عباس ﷠ خپل قول دې ليکن د حضرت سفيان ثوری ﷫ تبصره سره داخبره واضحه کيدوسره مخې ته راغله چه دا دواړه احاديث مرفوع دی ځکه چه هغوی اوفرمائيل چه دې حديث نه مخکښې والا حديث زيات صحيح دې که چرې دواړه احاديث مرفوع نه وی نو د سفيان ثوری ﷫ د کلام به هيڅ مقام پاتې نه شی.

**[۳۵۸۷] په حد جاري کولو کښې د عدم امتياز حکم**

۳۵۸۷—[۳۲] ( ) ۱ عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ «أَقِيمُوا حُدُودَ اللهِ فِي الْقَرِيبِ وَالْبَعِيدِ، ۳ وَلَا تَأْخُذْكُمْ فِي اللهِ لَوْمَةُ لَائِمٍ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت عباده ﷛ ابن صامت راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ نزدې او بعيد (په ټولو) حدود الله جاري کړئ، ۳ او (خبردار) د الله ﷻ په حکم (يعني حد جاري کولو کې د يو ملامت کونکي ملامتی دی ستاسو په لار کې خنډ نشي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① أَقِيمُوا: قائم کړئ. نافذکړئ . ② الْقَرِيبِ: نزدې ③ الْبَعِيدِ: لرې ④ لَوْمَةُ: ملامتيا . ⑤ لَائِمٍ: ملامته کونکې

**تسهيلات:**

**قوله:** فِي الْقَرِيبِ وَالْبَعِيدِ:

**د قريب او بعيد دوه مطلبونه:** ① حدود الله په نيزدې اولرې خپلوانوباندې يوشان نافذ کوئ هسې نه چه په لرې خپلوانوباندې نافذ کوی اود نيزدې خپلوانو سره نرمی کولو سره دهغوی نه حد ساقط کړی دا امتيازی سلوك په حدود الله کښې جائزنه دی

② د نيزدې نه مراد کمزورې او بې طاقت دې په چاچه حدنافذ کول آسان دی اود بعيد نه مراد طاقتور اود اثررسوخ والا سړې دې چه هغه ته رسيدل ممکن نه دی نو نبی کريم اوفرمائيل چه په کمزوری اوطاقتوربانديې او غريب اومالداربانديې يوشان حد نافذ کوئ فرق مه کوئ

[1] ) اخرجه ابن ماجه فی السنن کتاب الحدود/باب إقامة الحدود (رقم-۲۵۴۰) واحمد فی المسند:۵/۳۳۰

## [۲۵۸۸] د حد جاري كولو فائدې

۳۵۸۸-[۳۳] ( ) [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [۲] «إِقَامَةُ حَدٍّ مِنْ حُدُودِ اللَّهِ [۳] خَيْرٌ مِنْ مَطَرِ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً فِي بِلَادِ اللَّهِ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر ؓ نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] په حدود الله کې د يو حد جاري كول [۳] د الله ﷻ په ښارونو تر څلويښت شپو د باران تر وريدو نه ښه دی. ابن ماجه

**حل اللغات** ① مَطَر: باران. ② بِلَاد: جمع د بلد ده . ښار.

۳۵۸۹-( ) [۱] وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ.

**ترجمه:** [۱] نسائي رحمه الله دا روایت د حضرت ابوهريره ؓ نه نقل کړي دی

**تسهيلات:**

**قوله:** إِقَامَةُ حَدٍّ مِنْ حُدُودِ اللَّهِ:

**د حدود د د نفاذ بركات:** حدود الله قائمولو سره په بلاد الله کښې برکتونه خکه راځي چه حدود الله نافذ کولو سره ګناهونه اوجرائم بندولې شي اوکله چه ګناه بنديږي نود آسمان نه د برکتونو د نازليدلو دروازې کولاويږي دَ دې نه برعکس حدود نه نافذ کول يا په دې کښې سستي كول لكه چه دَ الله تعالى مخلوق ته په ګناه اومعاصی کښې د راګيرولوموقع ورکولې کيږي اودا معاصی قحط سالی اوج کالی اودَ عالم د فساد اسباب دی د کوم په وجه چه نه يوازې انسان ددې ښکار جوړيږي بلکه غيرانسان ځناوران مرغنی ځاروی او لوني وارهِ ځناور هم ددې ښکار کيږي او ټول تباه اوبرباد کيږي چنانچه نقل دی "حباري" هم ددې ناکرده ګناه په زد کښې راتلو سره مانده کيدو سره مره کيږي لكه چه په يوحديث کښې ذکردی

**د حباری د تخصيص وجه:** حباری د يوې مرغنی نوم دې ددې ذکر خکه اوکړې شو چه هغه د رزق او اوبو په لټون کښې په خپله خپل مثال دې ترلرې لرې پورې ځی او دانه اوبه لټولو سره راوړی کله چه هغه مړه شی نود نورو مرغوبه څه حال وی

---

[۱] ) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب الحدود /باب إقامة الحدود(رقم ۲۵۳۷)

[۲] ) اخرجه النسائي في السنن كتاب قطع السارق /باب الترغيب في إقامة الحدّ (رقم-٤٩٠٥)

# [ ۱ ] بَابُ قَطْعِ السَّرِقَةِ

## دَ غل لره د لاس پرې کولو بیان

**خلاصة الباب:**
**فيه ستة عشر حديثاً مشتملة على ست مسائل:**

① المعاني الموجبة لقطع اليد في السرقة: ۱، ۲، ۳، ۵، ۱۶.
② قباحة السرقة: ۳، ۱۳.
③ المعاني الغير الموجبة لقطع اليد: ۴، ۶، ۷، ۸، ۹، ۱۰، ۱۵.
④ حكم السرقات المتعددة: ۱۰، ۱۱.
⑤ السياسة في حكم السرقة بتوجيه واحد: ۳، ۱۲.
⑥ عدم العفو في الحد بعد الرفع إلى الحاكم: ۸، ۱۴.

**قوله:** السرقة:

**د سرقه لغوی معنی:** سرقه دَ سین فتحه او راء په کسره سره ده او په دغه راء باندې فتحه وئیل هم جائزدی. سرقه په لغت کښې دَ بل څیزپه پټه باندې اوچتول او اوړلوته وائی

**د سرقه اصطلاحی تعریف:** په شرعی اصطلاح کښې تعریف داسې دې چه عاقل بالغ سړې چه دَ چا مملوك اومحفوظ مال په پټه اوچتولوسره اوړلوته سرقه وائی باب قطع السرقة کښې علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه دلته دَاهل لفظ به محذوف منلې شی اي باب قطع اهل السرقة

### د موجب حد سرقې په مقدار کښې ۲ مذاهب:

دَ غل لاس پرې کولو او حد سرقه کښې دَ چا اختلاف نشته دې څکه چه دَ قرآن کریم نه ﴿وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوا أَيْدِيَهُمَا﴾ ثابت دی البته په دې کښې اختلاف دې چه مطلقًا مال پټولو باندې دا پرې کول دی یادَمال څه مقرر مقدار کیدل ضروری دی اسورت مائده: ۳۸.] په دې کښې دَ جمهورفقهاؤ او اهل ظواهر اوخوارج اوحسن بصری رحمه الله په مینځ کښې اختلاف دې

① حسن بصری رحمه الله خوارج او اهل ظواهر په نیزمطلقًا دَمال په غلا باندې لاس پرې کول جائز اومشروع دی

② جمهور صحابه تابعین او ائمه اربعه فرمائی چه دَ لاس دَ پرې کولودَپاره ضروری دی چه څه خاص مقدار په پټه یو سړې اوچت کړی اویوسی

**د اول فريق اول دليل:** دَقرآن کريم آيت ((وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ)) آيت د دوی مستدل دي په دې کښې دَ غل دَ غلا ذکردي دَ مال دَ مقدار ذکر نشته دې لهذا چاچه څه پټ کړل دَهغه لاس به پرې کيږی

**د اول فريق د اول دليل جواب:** آيت پخپله مجمل دې دَدې تفصيل په احاديثو کښې دې لهذا دَمطلق آيت نه استدلال نه شی کولې.

**د اول فريق دويم دليل:** راتلونکې دَ حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت د دوی مستدل دې دَ کوم الفاظ چه دادی (لعن الله السارق يسرق البيضة فقطع يده) بيضه دَ سرخود ته وائی دا يوه فوجی ټوپئی وی ياظاهری معنی هګئ مراد ده. (ويسرق الحبل فتقطع يده) حبل رسئی ته وائی

**د اول فريق د دويم دليل جوابونه:** ① په دې حديث کښې دَ غلا نصاب بيانول مقصود نه دی بلکه په دې کښې دَ غل په عادت باندې تنبيه ورکړې شوې ده چه هم دغه واړه واړه څيزونه چه دې وخت کښې دَ لاس دَ پرې کولو سبب نه دې ليکن په دې سره دَ غلا عادت جوړيږی اوبيا دَ نصاب سرقه پورې دَ غلا نوبت ته رسيږی اولاس پرې کيږی نو په دې کښې دَ شروعات ذکر دې نصاب نه دې بيان کړې شوې

② بعضې علماؤ ليکلی دی چه دَبيضه نه مراد هګئی نه ده بلکه دَ اوسپنې فوجی ټوپئی ده اودَدې قيمت دَ نصاب سرقه پورې رسيږی. دغه شان دَ رسئی نه مراد دَ اوسپنې يا دَ نور قيمتی څيزونو رسئی ده دَ کوم قيمت چه دَ نصاب سرقه ته رسيږی يا هم هغه دَ عادت والا خبره ده.

**د دويم فريق دلائل:** ①هغه ټول احاديث د دوی مستدلات دی په کومو کښې چه دَخاص مقدار دَمال ذکردې بعضې کښې دَ ربع دينار ذکر دې اوبعضې کښې دَ ثلاثه دراهم ذکردې بعضې کښې دَ ثمن المجن ذکر دې او بعضو کښې دَ عشرة دراهم ذکر دې اودَ کم مقدار نفی ده

② دَ ټولو صحابه کرامو اجماع هم ده چه دَ خاص مقدار دَ مال نه علاوه دَ لاس پرې کول نشته دی امام ابوحنيفه رحمه الله نه چاتپوس اوکړو چه په لاس کښې نصف ديت دې بيا دَ لسو درهمو په عوض ولې کټ کيږی هغوی اوفرمائيل (لماکانت المدامنة کانت ثمينة فلما خانت هانت) يعنی چه کله لاس امين وو نودَهغې عظمت او قيمت وو ليکن چه ده خيانت اوکړو نوذليل شو

**د موجب حد سرقه په نصاب کښې ۳ مذاهب:**

دَ جمهورو په خپل مينځ کښې اختلاف دې چه دَ لاس پرې کولو دَنصاب مقدار څومره دې.

①دَ امام شافعی رحمه الله په نيز ربع دينار نصاب دې اوپه نصاب مقرر کولو کښې سرو زروته

بنیادی حیثیت حاصل دي
② دَ امام مالك رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله په نصاب سرقه ربع دینار دې یا د دې قیمت درې دراهم دی
دَدې حضراتو په نیز په نصاب کښې اصل او بنیادی څیز چاندی ده شوافعو مالکیه اوحنابله په مینځ کښې لفظی اختلاف دې ځکه چه یو دینارد دولس درهم وی نو د دې ربع دَ تولو په نیز درې دراهم دی
③ دَ ائمه احناف په نیز دَ لاس پرې کولو نصاب لس درهم دې اصل اختلاف د جمهورو او احناف په مینځ کښې دې او دواړو سره قابل اعتماد دلائل دی
**داول فریق (جمهورو) دلائل:** هغه ټول روایات د وی مستدل دی په کومو کښې چه ربع دینار یا ثلاثه دراهم ذکر دې لکه ① دَحضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها حدیث نمبر(۳۵۹۰) کښې ربع دینار ذکر دې.
② دَحضرت ابن عمر رضی الله عنه په حدیث نمبر(۳۵۹۱) کښې دَ ثلاثة دراهم او دَ ډهال ذکر دې
**د دویم فریق (احنافو) دلائل:**
① دَحضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه روایت په ترمذی کښې دې (قال لاقطع الا فی دینار اوعشرة دراهم) (ترمذی ج۱ص۲۶۸) دا روایت په مختلف طرق سره دَ الفاظو تغیر سره نقل دې بعضو کښې دا روایت مرسل او بعیضو کښې متصل دې لیکن شرعی اندازې چه په کومو روایاتو کښې ذکر دی هغه دَ مرفوع په حکم کښې دی په طبرانی کښې هم دغه روایت داسې دې (عن بن مسعود عن النبی صلی الله علیه وسلم قال لاقطع الا فی عشرة دراهم) (رواه الطبرانی فی الاوسط)
② (وعن عبدالله بن عمر قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لا قطع دون عشرة دراهم) (طحاوی)
③ (وعن ابن عباس رضی الله عنه قال قطع النبی صلی الله علیه وسلم ید رجل فی مجن قیمته دینار اوعشرة دراهم) (ابوداؤد)
④ مصنف ابن ابی شیبه کښې ذکر دی چه دَحضرت عمر رضی الله عنه په دورخلافت کښې یو سړې راوستلې شو چه کپړه ئې پټه کړې وه حضرت عمر رضی الله عنه حضرت عثمان رضی الله عنه ته اوفرمائیل چه دَدې قیمت اولګوه هغوی چه کله قیمت اولګولو نواته دراهم قیمت رااووتلو فلم یقطعه حضرت عمر رضی الله عنه دَهغه لاس پرې نه کړو ځکه چه دَ لس درهم نه غلا کمه وه (کذافی زجاجة المصابیح ج۳ ص۸۲)
⑤ (عن ابن مسعود قال یقطع الید علی عهد رسول الله صلی الله علیه وسلم فی عشرة دراهم وعنه قال لا یقطع ید السارق فی اقل من عشرة دراهم)

⑨ دَ صحابه كرامو په وړاندې دَ حضرت عمر رضي الله عنه فيصله اوپه هغې باندې دَ ټولو خاموشي اجماع سكوتي ده لهذا په لس درهم نصاب باندې دَ صحابه كرامو اجماع هم ده «دراهم اووه نيمې ماشې چاندي ده»

**د اول فريق د دلائلو دوه جوابونه:** ① دَ حدلګولو اولاس پرې كولو معامله ده اودَ حد حكم په معمولي شك سره ساقط كيږي. اوس چه لس درهم مقدار نه كم چه كوم ځائې هم نقل دې په هغې كښې شبه راغله لهذا دَدې په بنيادباندې به حدنه نافذ كيږي «ادراء والحدود بالشبهات» واضحه ضابطه ده

② دَ لاس دَ پرې كولودَ نصاب مدار ثمن مجن يعنى دَ ډهال په قيمت باندې دې اودَ ډهال قيمت دَ زمانې په اعتبارسره بدليدلو. حضرت عائشه رضي الله عنها دادَ ربع دينار دَ قيمت په زمانه كښې ليدلې نوداسې بيان ئې اوكړو. ابن عمر رضي الله عنه دَ دريو درهمو دَ قيمت په زمانه كښې اوكتلو نودَ دې تذكره ئې اوكړه. بيا يوداسې وخت راغلوچه دَدې قيمت يودينار يا لس درهم شو اوهم دا احنافو واخستلو لكه چه ابوداؤدذكركړى دى.

نسائي بيهقى اوطحاوى دَحضرت ابن مسعود رضي الله عنه داقول نقل كړې دې «قال كان ثمن المجن على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم يقوم عشرة دراهم» دا واضح روايت دې چه دَ ډهال دَ قيمت استقرار په لس درهم باندې شوې وو.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[٢٥٩٠] د حد سرقه نصاب**

٣٥٩٠ —[١] (١) [١] عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [٢] «لَا تُقْطَعُ يَدُ سَارِقٍ إِلَّا بِرُبْعِ دِينَارٍ فَصَاعِدًا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] بي بي عائشه رضي الله عنها د نبي كريم ﷺ نه نقل كوي، چې حضور ﷺ وفرمايل [٢] د غله لاس په هغه صورت كې پريكول كيږي. هر كله چې هغه څلورمه حصه دينار يا د دې نه د زيات ماليت غلا كړي وي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① سَارِقٍ: غل. ② صَاعِدًا: زيات

---

(١) اخرجه البخارى فى كتاب الحدود/باب قول الله تعالى: {والسارق والسارقة فاقطعوا أيديهما} [المائدة: ٣٨] وفى كم يقطع؟ (رقم-٦٧٨٩) ومسلم فى كتاب الحدود/باب حدّ السّرقة ونصابها (رقم-٢ - (١٦٨٤)) و ابو داود فى كتاب الحدود/باب ما يقطع فيه السارق (رقم-٤٣٨٣) والترمذى فى كتاب الحدود عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فى كم تقطع يد السارق (رقم-١٤٤٥) والنسائى فى كتاب قطع السارق/باب ذكر اختلاف أبى بكر بن محمّد وعبد الله بن أبى بكر عن عمرة فى هذا الحديث (رقم-٤٩٢٨) وابن ماجه فى كتاب الحدود/باب حدّ السارق (رقم-٢٥٨٥) واحمد فى المسند: ١٠٦/٦

**تسهيلات:**

**قوله: إِلَّا بِرُبْعِ دِينَارٍ فَصَاعِدًا:**

داحديث پاك د امام شافعي رحمه الله دمسلك دليل دې چې د دينار څلورمې حصې نه د كم ماليت په غلا باندې دې لاس پرې نه كړې شي يعنې دده په نزد د سرقه نصاب كم از كم څلورمه حصه دينار دې ملاعلي قاري رحمه الله خپل كتاب كښې ددې حديث پاك لاندې ډير تفصيلي بحث كړې دې او په دې مسئله كښې چې د علماء كرامو كوم اختلافي اقوال دى د هغې د نقل كولو سره سره ئې د احنافو مسلك په مضبوطو دليلونو ثابت كړى دى

**[۲۵۹۱] د درې دراهمو په غلا كولو د حد جارى كول**

٣٥٩٠ – [٢] (١) ١ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: ٢ «قَطَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَ السَّارِقِ فِي مِجَنٍّ ثَمَنُهُ ثَلَاثَةُ دَرَاهِمَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي ٢ چې رسول الله ﷺ د يو ډهال په غلا كولو. چې د هغه قيمت درې درهمه وو، د غله (راسته) لاس پريكړې وو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① مِجَنّ: ډهال، ② ثَمَن: قيمت.

**تسهيلات:**

**قوله: فِي مِجَنٍّ ثَمَنُهُ ثَلَاثَةُ دَرَاهِمَ:**

شمنى رحمه الله فرمائي چې داحديث پاك هغه روايت معارض دې كوم چې ابن ابى شيبه د حضرت عبدالله ابن عمر وابن العاص نه نقل كړې دې كوم كښې چې هغه وئيلي دى چې ددې ډهال قيمت لس درهمه وو. د حضرت ابن عباس رضي الله عنه او حضرت عمر او ابن شعب نه هم داشان منقول دى داشان شيخ ابن همام رحمه الله د ابن عمر رضي الله عنه اور ابن عباس رضي الله عنه نه هم دا شان خبره نقل كړې ده چې ددې ډهال قيمت لس درهمه وو او عينى رحمه الله د هدايه په حاشيه كښې هم دا ليكلي دى لهذا هم په دې بنياد داحنافو مسلك دادې چې د قطع يد د لاس پريكولو سزا به هم په هغه غل باندې نافذه وى چا چې كم از كم د لس درهمو بقدر مال پټ كړې وى، ددې نه د كم ماليت په غلا باندې به دا سزا نه وى تر كومې چې ابن عمر ددې روايت تعلق دې د كوم چې ددې ډهال قيمت درې درهمه متعين كيږى حالانكه په حقيقت كښې د هغه ډهال قيمت لس درهمه وو لكه څنګه چې اكثرو روايتونو نه ثابت

(١) اخرجه البخارى فى كتاب الحدود/باب قول الله تعالى: {والسّارق والسّارقة فاقطعوا أيديهما} [المائدة: ٣٨] وفى كم يقطع؟ (رقم-٦٧٩٨) ومسلم فى كتاب الحدود/باب حدّ السّرقة ونصابها (رقم-٦ - (١٦٨٦) و ابو داود فى كتاب الحدود/باب ما يقطع فيه السّارق (رقم-٤٣٨٥) والترمذى فى كتاب الحدود عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فى كم تقطع يد السّارق (رقم-١٤٤٦) و ابن ماجه فى كتاب الحدود/باب حدّ السّارق(رقم-٢٥٨٤)

شو په دې موقع شیخ عبدالحق رحمه الله او ملا علی قاری رحمه الله په خپلو خپلو شروحو کښې ډیر لوې تفصیل سره په دې بحث کړې دې ، اهل علم ددوئ کتابو ته مراجعت کولې شی.

**[۲۵۹۲] په یوه هګۍ او یوه رسۍ غلا کولو باندې د حد جاري کولو حکم**

۳۵۹۳-[۳] () [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: [۲] «لَعَنَ اللَّهُ السَّارِقَ يَسْرِقُ بَيْضَةً [۳] فَتُقْطَعَ يَدُهُ [۴] وَيَسْرِقُ الْحَبْلَ فَتُقْطَعَ يَدُهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] په غله دې د الله جل جلاله لعنت وي، چې هغه د اګۍ غلا کوي، [۳] او د هغه لاس پریکول کیږي، [۴] او د رسۍ غلا کوي او د هغه لاس پریکول کیږي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① اَلْحَبْلَ: رسۍ.

**تسهیلات: قوله: يَسْرِقُ بَيْضَةً فَتُقْطَعَ يَدُهُ:**

امام نووی رحمه الله فرمائی چې ددې حدیث پاك نه معلومه شوه چې بلا تعین ګناهګارو باندې لعنت لیږل جائز دی او هم دا خبره د الله جل جلاله ددې ارشاد نه هم ثابت ده ﴿أَلَا لَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الظَّالِمِينَ﴾ خو که یو کس لره متعین کولو نه پس په هغه باندې لعنت اولیږی او دهغه نوم واخلی نو دا جائز نه دی.

د نصاب سرقه په سلسله کښې دا حدیث په دې امر باندې دلالت کوی چې څلورمه حصه د دینار یا دریودرهمو نه د کم مالیت په غلا کولو باندې هم د قطع ید سزا جاری کیدیشی حالانکه څلور واړو ائمه کرامو کښې د چا په مسلك کښې هم د څلورمې حصې ددینار یا د دریو درهمو نه کم باندې دقطع ید سزا نشته دې . په دې اعتبار سره دا حدیث پاك د ټولو ائمه کرامو دمسلك خلاف دې لهذا ددې ټولو له طرفه دا وئیلې کیدیشی چې دې ځائې کښې د بیضه نه مراد بیضه آهن مراد ده کومې ته چې خود وائی او دا مجاهدینو او فوجیانو په سر کولو دا شان رسی نه د کشتې رسی مراد ده کومه چې ډیره قیمتی وی ددې نه علاوه ځینې حضرات دا هم وائی چې داسلام په ابتداء کښې د اګۍ او رسی په پټولو باندې د قطع ید سزا وه خو روستو دا منسوخ شوه

ځینې حضرات فرمائی چې ددې ارشاد مطلب دادې چې ددهٔ د غلا کولو عادت داشان جوړیږی چې واړه څیزونه پټوی او بیا روستو غټ څیزونه پټول شروع کړی. او ددې په نتیجه کښې ده ته د قطع ید سزا ورکولې کیږی

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الحدود/باب قول الله تعالی: {والسارق والسارقة فاقطعوا أیدیهما} [المائدة: ۳۸] وفی کم یقطع؟ (رقم-۶۷۹۹) ومسلم فی کتاب الحدود/باب حد السرقة ونصابها (رقم-۷ - (۱۶۸۷) والنسائی فی کتاب قطع السارق/باب تعظیم السرقة (رقم-۴۸۷۳) کتاب الحدود/باب حد السارق(رقم-۲۵۸۳) واحمد فی المسند: ۲۵۳/۲

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۲۵۹۲] د میوې وغیره په غلا باندې د حد جاري کولو حکم

۲۵۹۲-[۳] (۱) ① عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ② «لَا قَطْعَ فِي ثَمَرٍ وَلَا كَثَرٍ». رَوَاهُ مَالِكٌ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُودَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① حضرت رافع ﷺ ابن خدیج د نبي کریم ﷺ نه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② په او میوو او د کجورو د سپین کچه ورو په غلا قطع ید (د لاس د پریکولو سزا) نشته. (مالك ترمذي ابوداود نسائي دارمي ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① كَثَر: د کهجورو کچه غونچه

**تسهیلات:**

**قوله:** «لَاقَطْعَ فِي ثَمَرٍوَلَاكَثَرٍ»:

**د ونې د میوې په غلا کښې عدم قطع ید:** دَ کثر کاف او ثاء دواړو باندې زبرډې د کهجورې غونچه مراد ده. کله چه بالکل په شروع کښې راښکاره شي خلق دغه خوري ـ په دغه کهجورو کښې دننه دَ سپینې وازګې په شان مغزوي دغه هم خلق خوري دې ته جمار بضم الجيم هم وائي. ثمر هرهغه تازه میوې ته وائي چه په ونوپورې زوړندې وي مګر عام اطلاق ئې دَ کهجورې په میوه باندې کيږي. کله چه کهجورې دَ ونونه پرې کړې شي نو اوس دَ ثمر په ځائی هغې ته رطب وائي اوکله چه ذخیره کړې شي او اوچې شي نوهغې تمر وائي (کذا في النهایه) بعضې دَ ګلونو غوټو ته کثر وئیلي دي بهرحال په دې ځیزونو کښې د لاس پرې کول ځکه نشته چه دَ غلادَپاره مال محرز اومحفوظ کیدل ضروري دی دلته محفوظ نه دې.

**د کټ شوې میوې او محفوظ شوې میوې په حد سرقه کښې ۲ مذاهب:**

په دې باندې دَ ټولو اتفاق دې چه په ونوباندې لګیدو میوو کښې دَ لاس پرې کول نشته دي اختلاف په دې کښې دې چه کله دا میوه منډو او کورونو ته راشي محرز اومحفوظ شي نوآیا په دې کښې دَ لاس پرې کول شته که نه دې کښې اختلاف دې

① جمهور فرمائي چه ددې قسم میوو په غلاکښې دَ لاس پرې کول دی که تردغه وخته پورې میوه لمده ده اوکه اوچه ده

---

[۱] ) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الحدود/باب ما لا قطع فيه (رقم-۴۳۸۸) والنسائي في كتاب قطع السارق/باب ما لا قطع فيه (رقم-۴۹۶۰) وابن ماجه في كتاب الحدود/باب لا يقطع في ثمر ولا كثر (رقم-۲۵۹۳) ومالك في الموطا كتاب الحدود/باب ما يجب فيه القطع (رقم-۲۲)

۲ امام ابو حنيفه رحمه الله فرمائي چه هرهغه څيزكوم چه زرخرابيدونكي وي كه هغه ميوه وي كه پيئي وي كه كبان وي كه غوښه وي اويا دَ څه قسم سبزي وي يا تيار خوراك وي په دې تولو څيزونو كښې دَ لاس پرې كول نشته اوچه كله ميوه كورته راشي اوچ شي نوبيا دَلاس پرې كول شته

**داول فريق دليل:** راتلونكي د حضرت عمروبن شعيب رضي الله عنه روايت د دوی مستدل دې
۲ دَدې څيزونو په غلا باندې دَ سرقه دَ لفظ اطلاق كيږي لهذا دا غلاده او په غلا دَ لاس پرې كول دي

**داول فريق د دليل جواب:** د دې روايت تعلق دَ اوچې ميوې سره دې يا هغه روايت دَدې رافع والا روايت مقابله نه شي كولې اوكله چه دَحديث نه دَهغوی استدلال ثابت نه شو نودَ حديث رافع په مقابله كښې قياس پيش كول مناسب نه دي.

**د دويم فريق دليل:** دويم فريق دَدې حديث نه استدلال كړې دې چه "في ثمر" دانكره تحت النفي ده او په دې كښې عموم دې مطلب دا چه تازه ميوه يازرخرابيدونكي څيزونو كښې دَ لاس پرې كول نشته لهذا په يوتازه ميوه كښې دَلاس پرې كول نشته كه هغه محرز في البيت وي يا پنډيرى كښې محفوظ وي نفي عام ده.

### [۳۵۳] دونې څخه د ميوې كټ كولو سزا

۳۵۳- [۵] (۱) ۱ وَعَنْ عَمْرِوبْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِوبْنِ الْعَاصِ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ۲ أَنَّهُ «سُئِلَ عَنِ الثَّمَرِ الْمُعَلَّقِ ۳ قَالَ: مَنْ سَرَقَ مِنْهُ شَيْئًا بَعْدَ أَنْ يُؤْوِيَهُ الْجَرِينُ ۴ فَبَلَغَ ثَمَنَ الْمِجَنِّ ۵ فَعَلَيْهِ الْقَطْعُ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ

**ترجمه:** ۱ او عمرو ابن شعيب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيكه حضرت عبدالله ابن عمرو ابن العاص نه او هغه د نبي كريم ﷺ نه نقل كوي ۲ چې د رسول الله ﷺ نه په ونو كې د لګيدلو ميوو په باره كې پوښتنه وشوه، ۳ رسول الله ﷺ وفرمايل كه يو سړى د هغه ميوو نه څه هغه وخت غلا كړي. هر كله چې هغه د ونو نه شوكولو سره جمع شوي وي. ۴ او د هغه (غلا كړو ميوو) قيمت د يو ډهال د قيمت برابر وي. ۵ نو هغه به د قطع يد سزاوار وي. (ابوداود نسائي)

**حل اللغات:** ۱ الْمُعَلَّقِ: رازوړند. چه په ونه كې لګيدلي وی. ۲ أَنْ يُؤْوِيَ: چه راجمع كړې شوی وی. ۳ الْجَرِينُ: درمن كې جمع كړې شوې. راشوكولي شوی ۴ الْمِجَنِّ: ډهال.

۱) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الحدود/باب ما لا قطع فيه (رقم-۴۳۹۰) والترمذى فى كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الرخصة فى أكل الثمرة للمارّ بها (رقم-۱۲۸۹) والنسائى فى كتاب قطع السارق/باب الثمر المعلّق يسرق (رقم-۴۹۵۷) واحمد فى المسند: ۲/۲۰۷

**تسهیلات:**

**قوله: بَعْدَ أَنْ يُؤْوِيَهُ الْجَرِينُ**

باغ کښې داسې ځائې ته وئیلې کیږی کوم ځائې کښې چې د باغ مالکان میوې اوشکوی او هلته ئې راجمع کوی بیا ئې دهغه ځائې نه کور یا بازار ته د خرڅولو دپاره اوړی

**روایتونو کښې تعارض او بیان د راجح:** د احدیث مبارك د مخکښې حدیث پاك (لاقطع فی ثمرولاکثر) د مطلق مفهوم خلاف دې بلکه د نبی کریم ﷺ ددې فرمان چې (ولاقطع فی طعام) خلاف هم دې . چونکه د حدودو په باب کښې ضروری دی چې د مسلمان ساه او دده د اندامونو دحفاظت پیش نظر حد جاری کولو کښې حتی الامکان احتیاط او رعایت پکار دې . لهذا ددې تعارض په صورت کښې هغه احادیثو ته ترجیح ورکول مناسب دی کوم چې د میوؤ وغیره دغلا په سزا کښې مطلق دی.

**[۳۵۹۵] دغیر مملوکه څاروو په غلا کښې عدم حد**

۳۵۹۵—[۲] (۱) [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي حُسَيْنٍ الْمَكِّيِّ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: [۲] «لَا قَطْعَ فِي ثَمَرٍ مُعَلَّقٍ وَفِي حَرِيسَةِ جَبَلٍ [۳] فَإِذَا آوَاهُ الْمُرَاحُ وَالْجَرِينُ [۴] فَالْقَطْعُ فِيمَا بَلَغَ ثَمَنَ الْمِجَنِّ». رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت عبد الله ابن عبد الرحمن ابن ابي حسین مکي نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] په ونو د لګیدلي میوي، او په غرونو کې د څریدونکو څارویو په مقدمه کې د قطع ید (د لاس د پریکولو) سزا نشته. [۳] خو که یو سړی یو غرځني حیوان د څارویو د تړلو ځای نه راوستلو سره وتړي یا میوي (خشك کیدو نه وروسته) په درمند کې جمع کړي.نو د هغه په غلا د قطع ید سزا به ورکول کیږي. [۴] په شرط د دې چې د مسروقه (غلا شوی) شي مالیت دیو ډهال دقیمت په قدریا د هغه نه زیات وي. (مالك)

**حل اللغات:** ① حَرِيسَةِ: حریسه د محروسه په معنی کښې اومحروسه د محفوظه په معنی کښې دې ② جَبَلٍ: غر. ③ آوَاهُ: محفوظ ئې کړی ④ الْمُرَاحُ: باړ. د څاروو تړلو ځائې. ⑤ وَالْجَرِينُ: درمن. د فصل راجمع کولو ځائې

**تسهیلات:** **قوله: وَفِي حَرِيسَةِ جَبَلٍ:**

**د حریسة الجبل وضاحت او په دې کښې د عدم قطع الید وجه:** اوجبل غرته وائی. مطلب دادې چه مثلاً یوځناور په غرکښې څریږی ګرځی اوهم هلته شپه تیره وی اوچا هغه پټ کرو نود غل لاس به نه شی پرې کولې ځکه چه دامال محرز اومال محفوظ نه دې. اوکه

---

(۱) اخرجه مالک فی الموطا کتاب الحدود/باب ما یجب فیه القطع (رقم-۲۲)

یوسړي ددي په شان څناور دَ غر نه راؤنیسی کورته ئی راولی اوغل هغه پټ کړی نو اوس په دي کښي دَ لاس پرې کول دی نودمحروسة جبل مطلب دا شو چه صرف غر دي ته حفاظت کوی نور څه محافظ نه دی نو په دې کښي دَ لاس پرې کول نشته دې.

**قوله: وَالْجَرِيْنُ:**

**د جرین معنی:** دا کهلیان ته وائی اودَ کهجورودَ اوچولو ځائی ته هم وائی نوچه کله میوه اوچه شي اوددَاسې محفوظ مقام نه پټه کړې شی نو په دې کښي په اتفاق سره دَلاس پرې کول دی په دې شرط چه نصاب پرې کولوته اورسی

**[٢٥٩٦] د ډاکوانو(لوټ مار) کولو سزا**

٢٥٩٦—[٧] ( ) [١] وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] «لَيْسَ عَلَى الْمُنْتَهِبِ قَطْعٌ [٣] وَمَنِ انْتَهَبَ نُهْبَةً مَشْهُورَةً فَلَيْسَ مِنَّا». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] او د حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] د لوټ مار غل (ډاکو) سزا قطع ید نه ده، [٣] او کوم سړي چې خلق لوټي (لوټ کوي) هغه زمونږ نه نه دي (یعني زمونږ په نبودلي لار تلونکي نه دي) ابوداود.

**حل اللغات:** ①الْمُنْتَهِبِ: ډاکو. شوکمار، ②نُهْبَةً:شوکه. ډاکه③مَشْهُورَةً:مشهوره.

**تسهیلات: قوله:** لَيْسَ عَلَى الْمُنْتَهِبِ قَطْعٌ:

**انتهاب کښي د عدمِ قطع الید وجه:** دا ډاکو اولوټ کونکی ته وائی داسړي اوددَه کردار سره ددې چه دَ غل نه په ډیرو درجوباندې زیات دي لیکن شریعت دَ غلا اوسرقه چه کوم مفهوم پیش کړې دې په دې کښي دَ چا مال محفوظ پټ په پټه اخستلو مفهوم دې لهذا دلاس پرې کول په سرقه کښې دی او په نهبه کښې نه دی ددې فرق نه معلومه شوه چه په شریعت کښي باریك او دقیق فرقونه هم نه دی نظر انداکړې شوی دَ انتهاب سزا جدا ده کوم چه په باب دمرتدینو کښې بیان کړې شوی دی

**[٢٥٩٧] په خائن (خیانت کګر) دحد سرقه جاری کولو عدم جواز**

٢٥٩٧—[٨] ( ) [١] وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [٢] «لَيْسَ عَلَى خَائِنٍ [٣] وَلَا مُنْتَهِبٍ [٤] وَلَا مُخْتَلِسٍ قَطْعٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

---

[١] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الحدود /باب القطع فی الخلسة والخیانة (رقم-٤٣٩١)واحمد فی المسند:٣٨٠/٣

[٢] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الحدود /باب القطع فی الخلسة والخیانة (رقم-٤٣٩٣) والترمذی فی کتاب الحدود عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم /باب ما جاء فی الخائن، والمختلس، والمنتهب (رقم-١٤٤٨) والنسائی فی کتاب قطع السارق /باب ما لا قطع فیه (رقم-٤٩٧٢) و ابن ماجه فی کتاب الحدود /باب الخائن والمنتهب والمختلس (رقم-٢٥٩١) واحمد فی المسند: ٣٨/٢

**ترجمه**: [۱] او حضرت جابر ﷜ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د خیانت کونکي، [۳] لوټ کونکي [۴] او مال تښتوونکی (بدمعاش) لاس پریکول مشروع نه دی (ترمذي نسائي ابن ماجه دارمي)

**حل اللغات**: ①خَائِنٍ: خیانت کونکې، ②مُنْتَهِبٍ: ډاکو، شوکمار، ③مُخْتَلِسٍ: غصب کونکې، په زوره مال اخستونکې، بدمعاش.

**تسهیلات**:

**قوله**: لَيْسَ عَلَى خَائِنٍ..... قَطْعٌ:

**د خائن نه مراد او د عدم قطع الید وجه**: خائن هغه سړی ته وائی چه دَ چاپه امانت کښې خیانت کوی یابالکل دَ هغې انکارکوی داسره دَ دې چه لویه ګناه ده لیکن دَ سرقه خپل قواعددی. هغه ضابطې دلته نه پوره کیږی ځکه چه دا مال په یولحاظ سره محرز نه دې ځکه چه دادَ هغه په خپل لاس کښې دي.

**[۲۵۹۸] د صفوان څخه د څادر پټیدل**

۲۵۹۸ –() [۱] وَرُوِيَ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ: «أَنَّ صَفْوَانَ بْنَ أُمَيَّةَ قَدِمَ الْمَدِينَةَ، [۲] فَنَامَ فِي الْمَسْجِدِ، وَتَوَسَّدَ رِدَاءَهُ، [۳] فَجَاءَ سَارِقٌ، وَأَخَذَ رِدَاءَهُ، فَأَخَذَهُ صَفْوَانُ، [۴] فَجَاءَ بِهِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَمَرَ أَنْ تُقْطَعَ يَدُهُ. [۵] فَقَالَ صَفْوَانُ: إِنِّي لَمْ أُرِدْ هَذَا، هُوَ عَلَيْهِ صَدَقَةٌ. [۶] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "فَهَلَّا قَبْلَ أَنْ تَأْتِيَنِي بِهِ"».

**ترجمه**: [۱] او صاحب مصابیح په شرح السنة کښې دا روایت نقل کړي دی چې (یوه ورځ) حضرت صفوان ابن امیه مدینې ته تشریف راوړو، [۲] په جومات (مسجد) کې تر سر لاندې خپل څادر اېښودلو سره اوده شو [۳] (په دې دوران کې) یو غل راغلی. او هغه څادر یې غلې څیني رابښکلو سره یووړی، اوتښتیدل یې وغوښتل، خو صفوان ﷜ هغه راونیولی، [۴] او د نبي کریم ﷺ په خدمت کې راوستلی (او واقعه یې بیان کړه) حضور ﷺ (خپله د مجرم په اقرار یا د شاهدانو په ذریعه په غلا ثابتیدو) د هغه د لاس د پریکولو حکم وکړي [۵] (دا فیصله اوریدو سره) حضرت صفوان (ته رحم راغلی. او هغه) اوویل چې د ده ستا ﷺ په خدمت کې د راوستلو نه زما دا اراده نه وه (چې یواځې زما د څادر په وجه دی د ده لاس پرې کړل شي، ځکه زه سفارش کوم چې ته ﷺ دي معاف کړي) ما خپل څادر ده ته صدقه کړي. [۶] رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چې بیا ماته د راوستلو نه مخکې تا خپل څادر ده ته ولې نه صدقه کولی؟ او ولې دې نه معاف کولی؟

**حل اللغات**: ①تَوَسَّدَ: بالخ ئې جوړکړلو . د سر لاندې څه څیز کیخودل. ②رِدَاءَ: څادر.

(۱) اخرجه مالک فی الموطا کتاب الحدود/باب ترک الشّفاعة للسّارق إذا بلغ السّلطان (رقم-۲۸)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَقَالَ صَفْوَانُ: إِنِّي لَمْ أُرِدْ هَذَا:

**د حد جاري كيدو نه پس د معافۍ حكم:** جـات كښې چه كوم سړي اوده وو اوڅادر دَ هغه لاندې وو نودا مال محرز محفوظ وو دَدې په غلا سره لاس پرې كول ضروري وو مګر صفوان ته چه كله اندازه اوشوه چه داخودې غريب دېرنقصان اوشو نوصفوان اووئيل چه څادر صدقه ده لاس مه پرې كوئى نبى كريم اوفرمائيل چه داخبره تاهغه وخت كولې شوه كله چه ماله غل نه وو راوستې. دَ راوستلو اوجرم ثابت كيدلونه پس اوس دا حكم دَ حقوق العباد نه وتلوسره حقوق الله كښې داخل شو لهذا ته اوس دې نه شې معاف كولې چنانچه دَ پوره امت په دې باندې اتفاق دې چه دَ يوحدثابت كيدو سره او حكم اورولونه پس څوك دا معاف كولې نه شي.

۳۵۹۹ــ( )[۱]وَرَوَى نَحْوَهُ ابْنُ مَاجَهْ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ صَفْوَانَ، عَنْ أَبِيهِ.

**ترجمه:** [۱]د غه شان روايت ابن ماجه رحمه الله د عبد الله ابن صفوان نه او هغه د خپل پلار حضرت صفوان نه.

۳٦۰۰ــ( )[۱]وَالدَّارِمِيُّ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ.

**ترجمه:** [۱]او دارمي رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل كړې دى

**[۳٦۰۱] په جهادى سفر كښې په غلا كولو عدم حد**

۳٦۰۱ــ[۹] ( ) [۱]وَعَنْ بُسْرِ بْنِ أَرْطَاةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [۲] "«لَا تُقْطَعُ الْأَيْدِي فِي الْغَزْوِ»". [۳]رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ، إِلَّا أَنَّهُمَا قَالَا: "فِي السَّفَرِ". بَدَلَ "الْغَزْوِ".

**ترجمه:** [۱]او حضرت بسر ابن ارطات رضي الله عنه وايي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه واوريدل [۲]چې په غزا كې د لاس پريكولو سزا نه نافذه كيږي. [۳]دا روايت ترمذي، دارمي، ابوداود او نسائي نقل كړي دى. ليكن د ابوداود اونسائي په روايت كې د غزا په ځاى د سفر لفظ دى

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا تُقْطَعُ الْأَيْدِي فِي الْغَزْوِ»:

[۱]) اخرجه ابن ماجه فى كتاب الحدود/باب من سرق من الحرز(رقم- ۲۵۹۵) واحمد فى المسند: ۴۰۱/۳
[۲]) والنسائى فى كتاب قطع السارق/باب ما يكون حرزا وما لا يكون (رقم-۴۸۸۲)
[۳]) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الحدود/باب فى الرّجل يسرق فى الغزو أيقطع؟ (رقم-۴۴۰۸) والترمذى فى كتاب الحدود عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء أن لا تقطع الأيدى فى الغزو(رقم-۱۴۵۰) والنسائى فى كتاب قطع السارق/باب القطع فى السّفر(رقم-۴۹۷۹)

**د دې جملې مطلبونه:**

① دَغنیمت دَ مال نه په غلاکښې لاس پرې کول نشته دې ځکه چه په دې کښې شك راغلو چه په مال غنیمت کښې ټول مجاهدین شریك دی نو چه کومه حصه هغه پټه کړه په
1 هغې کښې دې پخپله هم شریك دې

② میدان جهاد کښې که یو مجاهد غلا اوکړه اوهغه دَ مال غنیمت نه هم نه وی نودَ هغه لاس به بیاهم نه شي پرې کولې ځکه چه ډیر ممکن دی چه دَ هغه زړه مورشي اودکافرانو طرف ته اوتختی اومرتدشی. په دې وجه اوس صبر اوکړنی چه واپس دارالاسلام ته اورسی بیا په هغه باندې حدنافذ کړئی په میدان جهادکښې حدنه نافذکولویوه وجه داهم ده چه هلته دَ عدالت محکمه چرته ده قاضی کوم ځائی دې اوامیر کوم ځائی دې؟ دَجهادامیرته دَ احکامودَنافذکولواختیارنشته دې.

**په غزوه کښې د حد سرقې په نفاذ کښې ۲ مذاهب:**

① دَجمهورعلماؤ مذهب دې چه دَ غلانه پس به حد په هرځائی کښې نافذ کولې شی که هغه دارالحرب وی اوکه دارالاسلام وی

② د احنافو په نیز په جهاد کښې د حد جاری کول نشته

**داول فریق دلیل:** دوی دَ لاس پرې کول په نورو عبادتونو باندې قیاس کوی چه مونځ وغیره عبادات اودَ هغې قواعد او ضوابط دارالحرب کښې موجود دی لهذادَ لاس پرې کول او دَحدود نافذ کول هم هلته کیدل پکاردی.

**داول فریق د دلیل جواب:** د جهاد په موقع د حد نه جاری کولو په باره کښې صریح نص موجود دې.نو په داسې صورت کښې به قیاس قابل اعتبار نه وی.

**د دویم فریق دلیل:** احناف سره صحیح اوصریح حدیث دې چه دَ لاس پرې کول په جهاد کښې نشته دې. په یوروایت کښې دَ غزوه په ځائی فی السفرعبارت دې طیبیm وئیلی دی چه دَسفرنه مراد جهاد دې

**[۳۶۰۲] دبار بار غلا کولو سزا**

۳۶۰۲ - [۱۰] ① وَعَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ② «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِي السَّارِقِ: ③ إِنْ سَرَقَ فَاقْطَعُوا يَدَهُ ④ ثُمَّ إِنْ سَرَقَ فَاقْطَعُوا رِجْلَهُ، ⑤ ثُمَّ إِنْ سَرَقَ فَاقْطَعُوا يَدَهُ، ⑥ ثُمَّ إِنْ سَرَقَ فَاقْطَعُوا رِجْلَهُ». رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوسلمه رحمه الله د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه دا نقل کوي ② چې رسول الله ﷺ د غله په باره کې وفرمایل ③ هر کله چې هغه غلا وکړي، نو د هغه (راسته) لاس دې پرې کړل شي، ④ که بیا غلا وکړي، نو د هغه (چپه) پښه دې پرې کړل شي، ⑤ که بیا

دريم ځل يې غلا وکړه، نو چپ لاس دې پرېکړل شي، [٦] که بيا يې غلا وکړه، نو ښي پښه دې پرې کړل شي، (شرح السنة)

**تسهيلات: قوله:** ثُمَّ إِنْ سَرَقَ.

**په دريم ځل د غلا کولو په حد کښې ۲ مذاهب:**

په دې باندې دټولو فقهاؤ اتفاق دې چه اول به په غلا باندې ښي لاس کټ کولې شي او په دويم ځل غلاکولو باندې به گسه خپه کټ کولې شي ليکن دې نه پس به په دريم ځل څه کولې شي په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.

① جمهور فرمائي که غل په دريم ځل دَ غلا ارتکاب اوکړو نودَهغه گس لاس به کټ کولې شي او په څلورم ځل به ترې گسه خپه کټ کولې شي چه بونډې مونډې پاتې شي

② دَامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په دريم اوڅلورم ځل غلا کولو باندې به ترې لاس نه شي کټ کولې ځکه چه دې سره به دغه سړې بالکل کنډم اوناکاره پاتې شي بلکه داسې سړې به دَهميشه دَپاره په جيل کښې اچولې شي اوکه دَتعزير مصلحت او سياست په بنيادباندې ټول اندامونه پرې کول شي نوداسې کيدې شي.

**د اول فريق دليل:** مذکوره حديث د دوی مستدل دې. په کوم کښې چه دَټولو اندامونو دَ پرې کولوذکر دې

**د اول فريق د دليل جواب:** امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي چه دَدې حديث نه معلومه شوه چه هغه سابقه حديث منسوخ الحکم دې ځکه چه دَ ټولو اندامونوختمول په حقيقت کښې انسان ختمول دی حالانکه دَدې دَپاره دَ قصاص نظام قائم دې

**د دويم فريق دلائل:** ①دَ حضرت عمر رضي الله عنه دَ فيصلې اودَحضرت علی رضي الله عنه دَ فتوی نه استدلال کړې دې حضرت علی رضي الله عنه فرمائي (اني لأستحي من الله ان لا ادع له يدا يبطش بها ورجلا يمشي بها) يعنی ماته دالله تعالی نه حياء راځي چه په داسې حالت کښې ئې پرېږدم چه هغه نه خوراك كولې شي نه ځكل كولې شي اونه استنجاء کولې شي

**[۳۶۰۳] دباربار غلا کونکی سزا**

٣٦٠٣–[١١] (١) [١] وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: [٢] «جِيءَ بِسَارِقٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٣] فَقَالَ: اقْطَعُوهُ، فَقُطِعَ [٤] ثُمَّ جِيءَ بِهِ الثَّانِيَةَ، [٥] فَقَالَ: اقْطَعُوهُ، فَقُطِعَ [٦] ثُمَّ جِيءَ بِهِ الثَّالِثَةَ، فَقَالَ: اقْطَعُوهُ، فَقُطِعَ [٧] ثُمَّ جِيءَ بِهِ الرَّابِعَةَ، فَقَالَ: اقْطَعُوهُ، فَقُطِعَ [٨] فَأُتِيَ بِهِ الْخَامِسَةَ، فَقَالَ: اقْتُلُوهُ، فَانْطَلَقْنَا بِهِ، فَقَتَلْنَاهُ [٩] ثُمَّ اجْتَرَرْنَاهُ فَأَلْقَيْنَاهُ فِي بِئْرٍ، وَرَمَيْنَا عَلَيْهِ الْحِجَارَةَ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

[1] ) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الحدود /باب في السارق يسرق مرارا (رقم-٤٤١٠)

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ﷛ وايي [۲] چې د نبي کريم ﷺ په خدمت کې يو غل راوستل شو . [۳] نو حضور ﷺ حکم وکړي چې د هغه ښي لاس پريکړي، نو د هغه لاس پريکول شو . [۴] دوباره هغه بيا راوستل شو ، [۵] نو حضور ﷺ حکم وکړي، د هغه چپه پښه پريکړي. نو د هغه چپه پښه پريکول شوه، [٦] بيا په دريم ځل هغه راوستل شو ، نو حضور ﷺ حکم وکړي چې د هغه چپ لاس پريکړي، نو د هغه چپ لاس پريکول شو ، [۷] بيا په ځلورم ځل هغه راوستل شو ، نو حضور ﷺ حکم وکړي چې د هغه ښي پښه پريکړي. نو د هغه ښي پښه پريکول شوه، [۸] بيا چې په پنځم ځل هغه راوستل شو ، نو حضور ﷺ حکم وکړي چې دی قتل کړي، نوموږ هغه ونيولی. او قتل موکړي. [۹] د دې نه وروسته موږ د هغه مړی راکښولو سره راوړلی. او په کوهي کې مو واچولی. او بيا مو برسيره کاڼي ورباندې وويشتل، (ابوداؤد نسايي)

**حل اللغات:** ① اِجْتَرَرْنَاهُ: موږ هغه راښکل

---[۱] وَرُوِيَ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ فِي قَطْعِ السَّارِقِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ وَعَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «اِقْطَعُوْهُ ثُمَّ احْسِمُوْهُ».

**ترجمه:** [۱] او بغوي ﷫ په شرح السنة کې د غله د لاس پريکولو په سلسله کې د نبي کريم ﷺ دا فرمان نقل کړي دی [۲] چې د هغه لاس پريکړي او بيا هغه لاس ته داغ ورکړي

**حل اللغات:** ① احْسِمُوْهُ: داغ ورته ورکړئ.

**تسهيلات: قوله: فَقُطِعَ:**

**د احنافو خلاف د حديث څخه استدلال:** دا ځلورم ځل دې اوبياهم دَ غلا دَ وجې نه خپه پرې کړې شوې ده دَ جمهورو په نيزخوهم دغه ترتيب دې چه ټول اندامونه ترې پرې کړئی
**د احنافو جواب:** ليکن احناف فرمائی چه دا يوجزئی واقعه ده ګنی ضابطه دَ نور لاس پرې کولو نه ده بلکه په دريم ځل غلا باندې به داغل په جيل کښې دَ بندولو حکم دې
**په پنځم ځل غلا کولو باندې د قتل حکم:** په دې حديث کښې په پنځم ځل غلا کولو باندې د لاس پرې کولو په ځائی دَ قتل کولوئيلی شوی دی او په دې باندې عمل هم شوې دې
**د مذکوره حديث نه د احنافو پنځه جوابونه:**

① دا مسلسل لاس خپه پرې کول اوبيا قتل کوی ياخومنسوخ دی
② دا قتلول دَ تعزيرحصه ده
③ دا قتلول سياسةً او حکمةً دې
④ دا سړې مرتدشوې وو اودَ ده نعش راښکلو سره معلوميږی چه دادَارتداد صورت وو
⑤ دا قتل دَبغاوت په وجه وو چې هغه د اسلامی رياست نه بغاوت کړې وو ګنی دَ نعش به دا بې حرمتی نه کيدله

**[۲٦۰۵] د غل لاس د هغه په غاړه کښې د زوړندولو مسئله**

۲٦۰۵-[۱۲] ()[۱] وَعَنْ فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ قَالَ: [۲] «أُتِيَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَارِقٍ [۳] فَقَطَعَ يَدَهُ [۴] ثُمَّ أَمَرَ بِهَا فَعُلِّقَتْ فِي عُنُقِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت فضاله ابن عبيد رضي الله عنه وايي [۲] چې د رسول الله ﷺ په خدمت کې يو غل راوستل شو، [۳] نو د حضور ﷺ په حکم سره د هغه لاس پريکول شو ، [۴] بيا حضور ﷺ حکم وکړي چې د هغه کټ شوي لاس دي د هغه په څټ کې زوړندولې شي (چې نور خلق ځني عبرت واخلي) نو هغه لاس د هغه په څټ کې زوړند کړې شو ، (ابو داود نسائي ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① فَعُلِّقَتْ: رازوړند کړې شو ، ② عُنُق: څټ،

**تسهیلات:**

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت فضاله بن عبيد** رضي الله عنه : نوم ئې فضاله ابومحمد کنيت دَپلار نوم عبيد بن نافذ او دَ مور نوم ئې عقبه بنت محمد بن عقبه وو. حضرت فضاله رضي الله عنه مديني ته په راتلوسره مسلمان شوې وو. دَغزوه بدر نه علاوه ئې په ټولو غزواتوکښې شرکت کړې وو او دَ بيعت رضوان دَ شرکت عزت هم دوی ته ملاوشوې وو. (۲) دَحضور ﷺ دَوفات نه پس هغوی شام ته تشريف يوړو هلته ئې پخپله کور جوړکړو يا حضرت امير معاويه رضي الله عنه جوړشوې ورکړې وو.

حضرت ابودرداء رضي الله عنه دَ دمشق قاضي وو دَ وفات کيدونه وړاندې هغوی فرمائيلې وو چه زما نه پس فضله بن عبيد رضي الله عنه قاضي جوړکړئی خلق به هغوی له دَ لرې لرې نه دَ حديث اوريدو دَ پاره راتلل. يوسړې دَ هغوی نه دَ حديث اوريدو دَپاره راغلو وئې کتل چه خيرن ويښته او پښې ابله دې هغه په حيرانتياسره تپوس اوکړو چه تاسو دَ ښار امير ئې اودا حالت دې. وئې فرمائيل رسول الله ﷺ دَ زيات ځان آسانئی او ډول سنګار نه منع کړې وو اوکله کله ئې بربنډې پښې اوسيدل خودلې وو.(۳)

---

[۱]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الحدود/باب في تعليق يد السارق في عنقه (رقم-٤٤١١) والترمذي في كتاب الحدود عن رسول الله صلى الله عليه وسلّم/باب ما جاء في تعليق يد السارق (رقم-١٤٤٧) والترمذي في كتاب الحدود عن رسول الله صلى الله عليه وسلّم/باب ما جاء في كراهية أن يشفّع في الحدود (رقم-١٤٣٠) والنسائي في كتاب قطع السارق/باب تعليق يد السارق في عنقه (رقم-٤٩٨٢) وابن ماجه في كتاب الحدود/باب تعليق اليد في العنق (رقم-٢٥٨٧) واحمد في المسند: ١٩٠/٦

[۲]) اصابه ٢١٠/٢). (٢) مسنداحمد ١٩/٦) (٣) مسنداحمد ٢٢/٦) (٤)الترمذي في الزهد بَب ما جاء في معيشة النبي صلى الله عليه وسلم) (٥) الترمذي في الزهد بَب ما جاء في معيشة النبي صلى الله عليه وسلم).

**وفات:** ۵۳ھ کښې دَ اميرمعاويه رضي الله عنه په دور کښې وفات شو. په دمشق کښې تر ننه پورې دَ هغوی قبر موجود دې. دَ هغوی نه ۵۰ روايتونه نقل دی. په صحيح مسلم کښې دَ هغوی نه دوه روايات نقل دی.

**قوله: فَعُلِّقَتْ فِي عُنُقِهِ:**

**کټ شوې لاس په غاړه کښې د اچولو وجه:** يعنی دَ غل پرې کړې شوې لاس په سټ کښې اچولو او دَ زوړندولوحکم ئې ورکړو نبی کريم دا ځکه اوکړه چه دا سزا دَخلقو دَپاره عبرت جوړشی اونور دَدې جرم دَ ارتکاب نه منع شی. چنانچه تاريخ ګواه دې چه يوځل دوه داسې کولوسره اسلامی معاشره دَ غلا دَ ګناهونونه پاکه شوه نولاس کټ کول خو غلاسره لازم دی. اولاس دَ غل په غاړه کښې تړل دا سبب دَ عبرت دې او قرآن کريم کښې (نَكَالًا مِّنَ اللَّهِ) کښې دې طرف ته اشاره هم موجود ده لهذا سزا سبب دَ عبرت جوړول جائز دی

**په غاړه کښې د کټ لاس په زوړندولو کښې ۲ مذاهب:**

① امام شافعی رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی چه په غاړه کښې لاس زوړندول په لاس پرې کولوکښې مسنون دی داسې کول پکاردی

② امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی چه داعمل دَ لاس پرې کولو سره سياسةً مصلحةً او عبرةً دې داځه مستقل سنت نه دی

**داول فريق دليل:** حديث الباب د دوی مستدل دې

**د دويم فريق دليل:** نبی کريم هميشه والی سره دَدې التزام نه دې کړې. دَ قاضی دَ رائې اعتبار به کيږی.

**[۳٦۰٦] دغلا غلام د خرڅولو حکم**

٣٦٠٦ – [١٣] (١) ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②«إِذَا سَرَقَ مَمْلُوكٌ فَبِعْهُ وَلَوْ بِنَشٍّ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل ②که غلام غلا وکړي. نو هغه خرڅ کړه، اګر چې د نُش په بدله کې د هغه خرڅول پريوځي. نش د نيم اوقيه يا د شل درهمو برابره دي، (ابوداود نسائي ابن ماجه)

**حل اللغات:** ①مَمْلُوكٌ: غلام. ②نَشٍّ: د نيم اوقيه. يا د شل درهمو برابر.

(١) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الحدود/باب فی بيع المملوک إذا سرق (رقم-٤٤١٢) والنسائی فی کتاب قطع السارق/باب القطع فی السفر(رقم-٤٩٨٠) وابن ماجه فی کتاب الحدود/باب العبد يسرق (رقم-٢٥٨٩) واحمد فی المسند:٣٣٧/٢

**تسهيلات: قوله:** وَلَوْبِنَشٍّ:

**د نش لغوى:** په نون باندې زبراو شين مشدددې دا نصف اوقيه يعني شل درهمو ته وائي. مطلب داچه كله غلام غلا اوكړي اودَغلا عادت شي نو هغه په قليل اوحقير رقم باندې هم خرڅه وه.

**د غلام د خپل مالك نه د غلا په حد كښې مذاهب:**

① كه چرې غلام دَ خپل آقانه غلا اوكړي نو امام مالك رحمه الله اوامام شافعي رحمه الله فرمائي كه چرې غلام دَ خپل مولى نه غلا اوكړي نودَهغه لاس به پرې كولې شي كه هغه غلام تختيدلې وى اوكه نه وى تختيدلې.

② امام ابوحنيفه رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائي كه غلام دَخپل آقانه يابنځه دَخپل خاوندنه ياخاوند دَخپلې ښځې نه ياغلام دَخپل آقادَ ښځې نه غلا اوكړي نودَهغه لاس به نه شي پرې كولې

**داول فريق دليل:** هغه روايت د دوى مستدل دې په كوم كښې چه راغلى دى حضرت ابن عمر h خپل غل غلام سعيدته حوالـه كړو چه دَهغه لاس پرې كړي.

**د اول فريق د دليل دوه جوابونه:** ① دابن عمررضي الله عنهما په مقابله كښې د عمررضي الله عنه زيات معتبر دې.

② ابن عمر رضى الله عنهم هغه كس د قطع يد دپاره نه وو ليږلې بلكه د تحقيق حال دپاره ئې ليږلې وو هم دا وجه ده چې سعيدبن العاص انكار اوكړواو وئې فرمائيل «لاتقطع يد الآبق إذا سرق»

**د دويم فريق دليل:** غلام خپل مولى سره شريك طعام دې لهذادَ مولى مال دَ غلام دَپاره مال محرزنه دې په دې كښې شبه راغله. حضرت عمرفاروق رضي الله عنه داسې تاوان او دَلاس پرې كول وغيره مستردكړي دى هغوى فرمائي (هوخادمكم اخذمتاعكم) په حديث نمبر (٣٦٠٨) كښې داحديث راروان دى.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[٣٦٠٧] د حد د معاف كولو عدم جواز**

٣٦٠٧ـ [١٣] (١) ① عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: ② «أُتِيَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَارِقٍ فَقَطَعَهُ، ③ فَقَالُوا: مَا كُنَّا نَرَاكَ تَبْلُغُ بِهِ هَذَا، ④ قَالَ: لَوْكَانَتْ فَاطِمَةُ لَقَطَعْتُهَا». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

---

[١] اخرجه النسائي في السنن كتاب قطع السارق/باب ذكر اختلاف ألفاظ النّاقلين لخبر الزّهريّ في المخزوميّة الّتي سرقت (رقم-٤٨٩٦) واحمد في المسند: ٤١/٦

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي [۲] چې يو ځل د رسول الله ﷺ په خدمت کې يو غل راوستل شو، حضور ﷺ چې دهغه د لاس پريکولو حکم وکړي، [۳] نو صحابه ؤ رضي الله عنهم عرض اوکړو چې زمونږ دا خيال نه وو، چې ته ﷺ به د ده د لاس د پريکولو حکم وکړي (بلکه زمونږ ګمان خو دا وو چې ته ﷺ به يې معاف کړي) [۴] حضور ﷺ (د دي اوريدو سره) وفرمايل که (زما لور) فاطمه رضي الله عنها هم وي، نو مابه د هغې لاس پريکړي وی . (نسائي)

**حل اللغات:** ① تَبْلُغُ بِهِ هَذَا: چه ته به ئې دې ته رسوی، (دا حکم به لګوې).

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا كُنَّا نَرَاكَ:

**د صحابؤ د لاس نه کټ کولو خيال راتلو وجه:** دا صيغه مجهول لوستلې کيږی اوترجمه دَمعروف وی يعنی په هغوی باندې زمونږ داګمان اوخيال نه وو. صحابه کرامودَ لاس نه پرې کولوخيال کيدې شی دَدې وجې نه کړې وی چه غالبًا داسړې دَنبی کريم دَ خپلوانونه وو يادَخاص متعلقينونه وو. ليکن نبی کريم دين اسلام او دَدې اصولوته اوکتل اودَ هغه خلقودَحيرانتيا په جواب کښې اوفرمائيل چه حدسرقة وغيره ارتکاب که چرې زما لور فاطمه رضي الله عنها هم اوکړی نودَالله تعالی دَدې حکم په مخکښې به بنديزنه جوړيږم.

**[۳۶۰۸] د مالک څخه په غلا کولو د غلام د لاس عدم قطع**

۳۶۰۸—[۱۵] ([۱]) [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى عُمَرَ بِغُلَامٍ لَهُ [۲] فَقَالَ: اقْطَعْ يَدَهُ فَإِنَّهُ سَرَقَ مِرْآةً لِامْرَأَتِي، [۳] فَقَالَ عُمَرُ: لَا قَطْعَ عَلَيْهِ وَهُوَ خَادِمُكُمْ أَخَذَ مَتَاعَكُمْ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې يو سړی حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ته خپل غلام راوستلی. [۲] ورته يي اوويل چې د ده لاس پريکړه، ځکه چې ده زما د ښځې هينداره پټه کړي ده. [۳] ليکن حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل چې دی د لاس پريکولو مستوجب نه دی. ځکه چې دا ستاسو خدمتګار دی. او ستاسوشی ده آخستلو دی. (مالك)

**حل اللغات:** ① مِرْآةٌ: شيشه. آئينه. هينداره.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا قَطْعَ عَلَيْهِ وَهُوَ خَادِمُكُمْ:

**د غلام د خپل مالک نه د غلا په عدم حد باندې دليل:** داحديث دَ ائمه احناف بهترين مستدل دې چه غلام ته دَخپل مولی په مال کښې يوقسم شراکت حاصل دې. حضرت عمر رضي الله عنه هم دَدې علت طرف ته اشاره اوکړه اودې طرف ته ئې هم اشاره اوکړه چه دَ غلام

[۱] ) اخرجه مالک في الموطا کتاب الحدود /باب ما لا قطع فيه (رقم-۳۳)

مخکښې ستاسو مال محرزنه دې لهذا دلاس پرې کول نشته ځکه چه شك پيداشو او (الحدودتندرءبالشبهات) يوه عام ضابطه ده. دې نه وړاندې په حديث نمبر(۳٦۰٦) کښې د ائمه د اختلاف تفصيل تيرشوې دې. داحديث د احنافودليل دې اوپه دې کښې دعلت اووجې طرف ته هم اشاره ده.

## [۳٦۰۹] په کفن چورد حد سرقه جاري کولو حکم

۳٦۰۹-[۱٦] () ①وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: «قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②يَا أَبَا ذَرٍّ قُلْتُ: لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللهِ وَسَعْدَيْكَ ③قَالَ: كَيْفَ أَنْتَ إِذَا أَصَابَ النَّاسَ مَوْتٌ يَكُونُ الْبَيْتُ فِيهِ بِالْوَصِيفِ يَعْنِي الْقَبْرَ؟ ④قُلْتُ: اللهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ ⑤قَالَ: عَلَيْكَ بِالصَّبْرِ.» ⑥قَالَ حَمَّادُ بْنُ أَبِي سُلَيْمَانَ: تُقْطَعُ يَدُ النَّبَّاشِ لِأَنَّهُ دَخَلَ عَلَى الْمَيِّتِ بَيْتَهُ. رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ①وحضرت ابوذر ﷛ وايي چې (يوه ورځ) رسول الله ﷺ ماته وفرمايل ②چې اې ابوذره! ما عرض اوکړو چې زه حاضر يم، يا رسول الله! ﷺ او فرمانبردار يم. وفرمايه. څه ارشاد دی؟ ③حضور ﷺ وفرمايل چې ته به هغه وخت څه کوي؟ هر کله چې مرګ (يعني څه وبا) خلق په خپل ګير کې واخلي؟ آيا هغه وخت به ته د مرګ نه تښتې، يا د صبر او استقامت لار به اختياروې؟ او کور يعنی د قبر ځای به د يو غلام برابر شي (يعني هغه وخت به د وبا په وجه دومره په کثرت سره مرګونه وي چې د يو يو قبر ځای به د يو يو غلام د قيمت برابر واخستل کيږي) ④ما عرض اوکړو چې په دې باره کې الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ ښه پوهيږي (يعني زه نه پوهيږم چې هغه وخت به زما څه حال وي؟ آيا زه به د صبر او استقامت لار اختيار کړم، يا خپل مسکن پريښودلو سره به وتښتم؟) ⑤حضور ﷺ وفرمايل چې هغه وخت په تا صبر لازم دی، ⑥حماد ابن سلمه وايي چې د کفن د غله لاس دې پريکول شي. ځکه چې هغه د مړي په کور کې داخل شوی دی. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ①وَسَعْدَيْكَ: محاوره ده. حاضريم.تابعدار يم ②بِالْوَصِيفِ: کم عمر غلام ③النَّبَّاشِ: کفن چور چه د مړو نه کفنونه اوباسي...

**تسهيلات:**

**قوله:** بِالْوَصِيفِ:

**د وصيف د لفظ تحقيق:** ددې جمع وصائف ده کوم هلك ياغلام چه دخدمت قابل شی دغه کم عمر ښائسته غلام ته وصيف وائی هم دې نه المستوصف دې کوم چه د سپنسرئی شفاخانه ته وائی.

---

() اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الحدود/باب فی قطع النبّاش (رقم-۴۴۰۹)

**قوله**: النَّبَّاشِ:

**د کفن چور د غلا سزا**: کفن چور ته وائی داسړې قبرته کوزیږي اوډمړی نه نوي کفن راکاږي پټه وی اوس دَ دغه غل څه سزاده؟ آیا ده دَ مال محرز غلا کړې ده یادَ دې څه حکم دې په دې کښې دَ فقهاؤ څه معمولی شان اختلاف دې.

**د کفن چور په حد کښې ۲ مذاهب**:

① دَ جمهورفقهاؤ په نیزدَ کفن دَغل په عمل باندې به دَ غل لاس پرې کولې شی

② دَ امام ابوحنیفه رحمه الله په نیزبه ئی لاس نه شی پرې کولې البته دَ تعزیرپه توګه به سزا ورکولې شی.

**داول فریق دلائل**: ① زیرنظر حدیث د دوی مستدل دې دَ استدلال طرز عجیبه دې هغه داسې چه نبی کریم دَ حضرت ابوذر رضی الله عنه نه دَ یوزمانې دتنګوالی اووبائی مرضونودَ وجې دَ زیاتومرګونوطرف ته اشاره اوفرمائیله چه دې وخت کښې به دَ یوبدن برابر دَ قبرځائی یعنی مړی دَپاره کور به دَ یوغلام په عوض ملاویږی.

② حمادبن ابی سلیمان رحمه الله په دې کښې یودقیق نکته راپیداکړه چه دَ مړی قبردَهغه کوردې او په کورکښې چه کوم مال وی هغه محفوظ اومحرز وی. لهذا که چادَقبریعنی دَ مړی دکورنه کفن پټ کړو نو په دې کښې دَ لاس پرې کول پکاردی ځکه چه هغه مال محرز په پټه یوړو.

③ هغه روایت هم د دوی مستدل دې په کوم کښې چه (من نبش قطعنا) (رواه البیهقی)

④ عقلی دلیل دادې چه دَ کفن غل غل دې اوغلا سرقه ده په کوم کښې چه قطع ید دې

**داول فریق د دلائلو دوه جوابونه**: داول فریق د مستدلاتو څخه جواب دا دې چه دَ محدثینوپه نیزدا روایات منکرات دی

② که دا مستدلات صحیح هم وی نودا حکم سیاسةً اومصلحةً وزجرًا وارد دې.

**د دویم فریق دلائل**: ① امام ابوحنیفه رحمه الله دَدې حدیث نه استدلال کړې دې (لیس علی النباش قطع) (مصنف ابن ابی شیبه)

② دَ حضرت معاویه رضی الله عنه په دورکښې په دې مسئله بحث اوشو نوعام صحابه کرامو دَ لاس پرې کول منع کړه اوتعزیر ئی جاری کړو

③ دَدوی عقلی دلیل دادې چه کفن مال محرزنه دې ځکه چه قبرمکان محرزنه دې.

**نوټ**: دَ جمهورو په نیزکه چرې غل یوځل دَ غلا اقرار اوکړی نودَ لاس پرې کولودَپاره به دغه اقرار کافی شی دَ جمهورو په مقابله کښې امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی چه غل کله بار بار اقرار کوی نوهله به غلا ثابتیږی او لاس به پرې کړې کیږی.

# [۲] بَابُ الشَّفَاعَةِ فِي الْحُدُودِ

## په حدودو کښې دَ سفارش بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثلاثة أحاديث مشتملة على مسئلتين:**

① الزجر لمن يشفع في السرقة: ۱، ۲.

② تلقين العذر للسارق: ۳.

**په حد کښې د چا د شفاعت عدم قبولیت:** ملاعلی قاری رحمه الله په دې مقام کښې لیکلي دي چه دَ حدود مقدمه کله دَ حاکم عدالت ته اورسي نو په هغې کښې سفارش کول حرام دي او په دې باندې دَ امت اجماع ده. اوکه چرې مقدمه تردغه وخته پورې دَ حاکم مخې ته نه ده رسیدلې نود رسیدلونه وړاندې سفارش کول دَ اکثرو علماؤ په نیزجائزده په دې شرط چه په هغه سړی کښې شر اوفساد نه وی دَ چادَپاره چه سفارش کولې شی دَ حدودو نه علاوه په تعزیراتو کښې سفارش کول مطلقًا جائزدې ځکه چه دَ تعزیر تعلق نسبتًا معمولي جرائم سره وی. بې ځائه او په ځائې سفارش دَ دې مفهوم هرځائې په ذهن کښې ساتل پکاردی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۳۶۱۰] په حدودو کښې د سفارش عدم قبولیت

۳۶۱۰—[۱] (۱) ۱ عَنْ عَائِشَةَ، «أَنَّ قُرَيْشًا أَهَمَّهُمْ شَأْنُ الْمَرْأَةِ الْمَخْزُومِيَّةِ الَّتِي سَرَقَتْ، ۲ فَقَالُوا: مَنْ يُكَلِّمُ فِيهَا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ۳ فَقَالُوا: وَمَنْ يَجْتَرِءُ عَلَيْهِ إِلَّا أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ حِبُّ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَكَلَّمَهُ أُسَامَةُ ۴ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَتَشْفَعُ فِي حَدٍّ مِنْ حُدُودِ اللّٰهِ ثُمَّ قَامَ فَاخْتَطَبَ

**ترجمه:** ۱ د بي بي عائشي رضي الله عنها بیان دی چې یو څل قریشی صحابه رضي الله عنهم د یوي مخزومي ښځي په باره کې ډیر فکرمند وو. چې هغې غلا کړي وه راو د خلقو نه عاریة سامان اخستو سره په هغه به منکره کیده هم. او حضور صلی الله علیه وسلم د هغې د لاس د پریکولو حکم کړي وو، ۲ هغه قریشي صحابه و رضي الله عنهم په خپل منځ کې مشوره وکړه. چې د دې ښځي په مقدمه کې کوم سړی حضور صلی الله علیه وسلم ته سفارش کولی شي؟ ۳ بیا هغوئ دا اوویل چې د حضرت

[1]) اخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء/باب حديث الغار (رقم-۳۴۷۵) ومسلم في كتاب الحدود/باب قطع السارق الشريف وغيره. والنهي عن الشفاعة في الحدود (رقم-۸ - (۱۶۸۸))والنسائي في كتاب قطع السارق/باب ذكر اختلاف ألفاظ الناقلين لخبر الزهري في المخزومية التي سرقت (رقم-۴۸۹۹) وابن ماجه في كتاب الحدود/باب الشفاعة في الحدود (رقم-۲۵۴۷)

اسامه ابن زید رضی الله عنه سره د رسول الله ﷺ ډیر محبت او تعلق دی. ځکه په دي باره کي حضور ﷺ ته د څه ویلو جرأت د اسامه نه ماسوا بل څوك نشي کولی (نو هغوئ ټولو اسامه دي ته تیار کړي، چې هغه د هغه ښځي په باره کې د حضور ﷺ سره خبري وکړي) حضرت اسامه رضی الله عنه (د هغه خلقو په وینا) حضور ﷺ سره خبري وکړي. [۴] رسول الله ﷺ (د هغه خبره اوریدو سره) وفرمایل ته د الله تعالیٰ د حدود نه د یو حد په باره کې سفارش کوي؟ نو بیا حضور ﷺ ودریدلو او خطبه یي ورکړه.

**حل اللغات:** ① أَهَمَّهُمْ: فکرمند کړل هغوی . ② شَأْنُ الْمَرْأَةِ: د یوې ښځې باره کښې. ③ يَجْتَرِئُ: جرأت کوی،

[۱] ثُمَّ قَالَ: إِنَّمَا أَهْلَكَ الَّذِينَ قَبْلَكُمْ أَنَّهُمْ كَانُوا إِذَا سَرَقَ فِيهِمُ الشَّرِيفُ تَرَكُوهُ [۲] وَإِذَا سَرَقَ فِيهِمُ الضَّعِيفُ أَقَامُوا عَلَيْهِ الْحَدَّ [۳] وَايْمُ اللهِ لَوْ أَنَّ فَاطِمَةَ بِنْتَ مُحَمَّدٍ سَرَقَتْ لَقَطَعْتُ يَدَهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ([۱] او د حمد وثناء نه وروسته یي په دی خطبه کي) وفرمایل چې ستاسو نه مخکې چې کوم خلق تیر شوي دي، هغه دا شی هلاك کړل، که په هغوئ کې به یو شریف سړي (یعني د دنیاوي عزت او طاقت والا) به غلا وکړه، نو هغه به یې بې سزا پرینښودلی. [۲] او که یو کمزوری غریب سړي به غلا وکړه، نو هغه ته به یي سزا ورکوله. [۳] قسم په خدای که د محمد ﷺ لور فاطمه رضی الله عنها هم غلا وکړي، نو زه به د هغې لاس پریکړم. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ④ وَايْمُ اللهِ: قسم په الله،

[۱] وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَتْ: كَانَتِ امْرَأَةٌ مَخْزُومِيَّةٌ تَسْتَعِيرُ الْمَتَاعَ وَتَجْحَدُهُ [۲] فَأَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَطْعِ يَدِهَا [۳] فَأَتَى أَهْلُهَا أُسَامَةَ، فَكَلَّمُوهُ فَكَلَّمَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيهَا ثُمَّ ذَكَرَ الْحَدِيثَ نَحْوَ مَا تَقَدَّمَ

**ترجمه:** [۱] او د مسلم په یو روایت کې داسې دي چې د بي بي عائشي رضی الله عنها بیان دی د یوي مخزومي ښځي دا عادت وو چې هغې به د خلقو نه څه څیز عاریةً آخستلو . او بیا به یي د هغه نه انکار کولی (چې ما نه دي آخستلو) [۲] نبي کریم ﷺ د هغې د لاس د پریکولو حکم وکړي چې هر کله د هغې ښځي عزیزانو ته د دې خبري علم وشو ، [۳] نو هغه حضرت اسامه رضی الله عنه ته راغلل، او په دي باره کې یي ورسره خبري وکړي (چې هغه حضور ﷺ ته سفارش وکړي) بیا اسامه رضی الله عنه حضور ﷺ ته د هغه متعلق عرض وکړو. د دې نه وروسته د حدیث هغه الفاظ مذکور دي کوم چې په پورته حدیث کې نقل شوی دی

⑤ تَسْتَعِيرُ: عاریت باندې غواړی ، استعمال دپاره څه څیز غواړی ، ⑥ الْمَتَاعَ: سامان، ⑦ وَتَجْحَدُ: انکار کوی.

**تسهیلات:**

**قوله: أَهَمَّهُمْ:** یعنی قریش ئې پریشان کړی وو

**د المرأة مصداق:** "المرأة" دا ښځه فاطمه بنت اسود بن عبدالاسد وه چه دَ ابو سلمه وریره وه.

**د حدیث د بعضې جملو وضاحت:**

① المخزومية: یعنی دَ قریشو لوئی قبیلې بنو مخزوم سره دَ هغې تعلق وو دَ ابوجهل تعلق هم دې قبیلې سره وو

② ومن يجترء: یعنی دَدې سفارش جرأت څوك كولې شی یعنی څوك ئې هم نه شی كولې دا استفهام انكاری دې

③ حب رسول الله: یعنی محبوب رسول ﷺ دا لفظ دَ حاء كسره سره دې اوباء باندې شد دې

④ فاختطب: اختطاب دَ خطبه وركولو په معنی كښې دې یعنی نبی كريم دَ صحابه كرامو په مخكښې بيان اوكړو چه دَدې بې ځايه سفارش نوعيت په ټولو باندې ښكاره شی

⑤ وَايْمُ الله" دا دَ قسم الفاظ دی ای اقسم بالله یعنی دَ الله قسم خوړلو سره وايم

⑥ تستعير: په عاريت باندې سامان غوښتل

⑦ وتجحده" یعنی بيائی انكاركولو شارحين حديث ليكلی دی چه دَدې كلام نه مقصود صرف دَ هغه ښځې تعارف كول دی ځكه چه په عاريت باندې اخستې شوې څيز انكار سره دَ لاس پرې كول واجب كيږی نه اوحقيقت كښې واقعه هم داسې نه وه بلكه په اصل كښې هغه ښځه دَ غلا عادت وه.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۳۶۱۱] په حد كښې سفارش دالله تعالى دحكم بغاوت**

٣٦١١—[٢] ( ) [١] عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: [٢] «مَنْ حَالَتْ شَفَاعَتُهُ دُونَ حَدٍّ مِنْ حُدُودِ اللهِ فَقَدْ ضَادَّ اللهَ، [٣] وَمَنْ خَاصَمَ فِي بَاطِلٍ وَهُوَ يَعْلَمُهُ [٤] لَمْ يَزَلْ فِي سَخَطِ اللهِ تَعَالَى حَتَّى يَنْزِعَ، [٥] وَمَنْ قَالَ فِي مُؤْمِنٍ مَا لَيْسَ فِيهِ [٦] أَسْكَنَهُ اللهُ رَدْغَةَ الْخَبَالِ [٧] حَتَّى يَخْرُجَ مِمَّا قَالَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ

**ترجمه:** [١] عبدالله ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې ما د رسول الله ﷺ نه دا واوریدل [٢] د كوم سړي سفارش چې د الله تعالى په حدودوكي د يو حد په منع كې حائل شي (يعني كوم سړی چې د خپل سفارش په ذريعه حاكم د حد د نفاذ نه منع كړي) هغه د الله تعالى سره ضد وكړي (او

( ) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الأقضية/باب فيمن يعين على خصومة من غير أن يعلم أمرها (رقم-٣٥٩٧) وابن ماجه في كتاب الأحكام / باب من ادعى ما ليس له وخاصم فيه (رقم-٢٣٢٠) واحمد في المسند: ٢/ ٧٠

ګویا داسې هغه د الله ﷻ د حکم مخالفت وکړي. ځکه چې د الله ﷻ حکم دا دی چې په هغه دي حد جاري شي [۳] او کوم سړی چې سره د پوهه یدو په یو ناحقه او دروغ خبره کې د چا سره جنګ وجدل کوي (یعني هغه پوهیږي چې دا خبره ناحقه او غلطه ده. خو با وجود د دې په هغه کې جنګ وجدل کوي) [۴] نو هغه هغه وخته پورې د الله ﷻ په غضب کې وي د څو پورې چې د هغه نه منع نشي. [۵] او کوم سړی چې د یو مؤمن په باره کې یوه داسې خبره وکړه. چې په هغه کې نشي موندلی (یعني په یو مومن یې څه عیب ولګولی. یا د هغه طرف ته د څه غلطي خبري تهمت کولو سره یې ورته نقصان ورسولی) [۶] نو الله ﷻ به هغه هغه وخته پورې د دوزخیانو په ختهٔ نو (پیپ) او په وینه کې ساتي. [۷] د څو پورې چې هغه د خپلي کړي خبري نه راونه وځي (یعني د څو پورې چې هغه توبه نبکلو سره د هغه ګناه نه منع نشي، هغه به د دوزخیانو په حالت کې وي. یا دا چې د څو هغه د هغه ګناه د عذاب تیرولو سره پاك نشي، د دوزخیانو په منځ کې به وي) دا روایت احمد رحمه الله او ابوداود رحمه الله نقل کړي دی.

**حل اللغات:** ①حَالَتْ: دَ حیلولت نه، حائله شوه. ②ضَادَّ: ضد ئې اوکړو. ③خَاصَمَ: جګړه ئې اوکړه ④سُخْطِ: غصه. ⑤يَنْزِعَ: چه اوځی. منع شی. ⑥أَسْكَنَهُ: اوبه ئې ساتی. ⑦رَدْغَةَ: ختهٔ. نباوره. ⑧الْخَبَالِ: وینه. پیپ. نَو.

[۱] وَفِي رِوَايَةِ الْبَيْهَقِيِّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ: [۲] «مَنْ أَعَانَ خُصُومَةً لَا يَدْرِي أَحَقٌّ أَمْ بَاطِلٌ [۳] فَهُوَ فِي سَخَطِ اللَّهِ حَتَّى يَنْزِعَ».

**ترجمه:** [۱] او بیهقي رحمه الله په شعب الایمان کې دا الفاظ هم نقل کړي دی [۲] چې کوم سړی په یو داسې جنګ کې مدد وکړي چې د هغه د حق او ناحق کیدو هغه ته علم نه وي. [۳] نو د څو پورې چې هغه د خپل مدد نه منع نشي، د الله ﷻ په غضب کې به وي

**حل اللغات:** ⑨أَعَانَ: مدد ئې اوکړو ⑩خُصُومَةً: جنګ. جګړه

**تسهیلات:**

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت عبدالله بن عمر** رضي الله عنهما: د دوی نوم عبدالله. کنیت ئې ابوعبدالرحمن او د پلار نوم ئې حضرت عمر رضي الله عنه دې او د مور نوم ئې زینب بنت مظعون دې

**اسلام قبلول:** د خپل پلار سره یوځائې مسلمان شوې دې د پلار سره ئې د مکې نه مدینې ته هجرت کړې وو په بدر او احد کښې ئې ورته د شرکت اجازت نه وو ملاو شوې ځکه چه ماشوم وو (۱)

(۱) طبقات ابن سعد)_

**غزواتو کښې شرکت:** په غزوه خندق، بیعت رضوان، فتح مکه، غزوه حنین، محاصره طائف، حجة الوداع، غزوه تبوک ټول کښې ئې دنبی کریم ﷺ سره شرکت کړې وو د فتنې نه ډیر لرې وو د یزید په لاس ئې بیعت کړې وو او دا ئې فرمائیلی وو که دې بیعت کښې خیر وی نو مونږ پرې راضی یو او که په دې کښې شر وی نو مونږ پرې صبر کوو [۱]
حضرت ابن عمر ﷛ ته به خلقو د علم او عمل دریاب وئیل د دنیا نه کناره کشی حضرت عثمان ﷛ ورته د قضاء عهده پیش کړله خو دوی د قبلولو نو انکار اوکړو په ملکی انتظاماتو کښې ئې بیخی حصه نه اخستله

**خصوصی صفات:** د دوی په ژوند کښې څو خصوصی صفات وو ① د سنت تابعداری ② د الله تعالی ویره ③ د غریبانو سره همدردی ④ سخاوت ⑤ د اختلاف نه پرهیز ⑥ د مشتبهاتو نه اجتناب

**د قرآن سره مینه:** د قرآن پاک سره ئې خصوصی تعلق وو په قرآن کښې به ئې ډیر سوچ او فکر کولو ددې اندازه د دې نه لګی چه صرف سوة بقره ئې په ۱۴ کاله کښې یاده کړې وه
**د حدیث سره تعلق:** د قرآن نه پس ئې د احادیثو سره مینه وه کله چه به د نبی کریم ﷺ په مجلس کښې موجود نه وو او د دوی په غیرحاضرئ کښې به نبی کریم ﷺ ارشادات فرمائیلی وو نو د نورو خلقو نه به ئې دهغې تپوس نه کول او هغه به ئې یادول
**وفات:** د حضرت عبدالله بن عمر ﷛ په مدنیه منوره کښې د مرګ ډیره تمنا وه او دا به ئې وئیل د کومې زمکې نه چه ما هجرت کړې دې په هغې کښې زه مرګ نه خوښوم هغوی دا وصیت هم کړې وو که زه په مکه کښې مړ شوم نو ما به د حرم نه بهر دفن کوئ زه عاجز شاه فیصل چه په کال ۱۴۳۱ کښې حج ته تلې ووم نو هلته راته الله تعالی د دوی د قبر زیارت هم رانصیب کړل هغه داسې چه زمونږ یو ملګرې وو هغوی د دوی قبر معلوم وو هغوی د ځان سره واخستلو او د دوی قبرته لاړلود دوی د قبر نه ګیرچاپیره دیوال تاؤ وو او په مینځ کښې د دوی قبر مبارک وو خوا کښې ورسره یوه زوړ کنډر هم وو کوم چه د خپلې زمانې مضبوط کور ښکاریدلو خو مونږ ته دا معلومه نه شوه چه دا کوم ځائې دې بهر صورت د حج په دې مبارک سفر کښې الله تعالی دې عاجز ته ډیر تاریخی مقامات اوخودل

**مرویات:** د دوی د روایاتو تعداد ۱۲۳۰ دې په دې کښې په ۸ حدیثونو کښې بخاری اوپه ۳۱ کښې مسلم منفرد دې

[۱]) طبقات ابن سعد تذکرا ابن عمر ﷛)_(۲) تذکرة الحفاظ (۱\ ۳۵)- (۳)موطا امام مالک) - (٤)اصابة (٤\۱۰۹)_ (۵) طبقات ابن سعد (٤\۱۳۸)_(۶)تهذیب الکمال (۲۰۷)_(۷) رواه مسلم فی الذکرباب استحباب الاستغفار والاستکثار منه رقم ٤۸۷۰ وکذا ابو فی الصلاة رقم ۱۲۹٤واحمد مسند الشامیین رقم ۱۷۱۷۳)_

**توله:** مَنْ حَالَتْ شَفَاعَتُهُ دُونَ حَدٍّ:

**د دون د لفظ لغوی تحقیق:** دون نه دَ جدا جدا په معنی کښې دې. دا لفظ کله دَ سوا په معنی کښې راځی اوکله ادون دَ کم تر په معنی کښې راځی دلته دَ جدا جدا په معنی کښې دې یعنی حد دیخوا پاتې شو اودَ هغه سرې سفارش وړاندې راغلو حائل شو

**توله:** أَسْكَنَهُ اللَّهُ رَدْغَةَ الْخَبَالِ:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې اقوال:** ① په راء باندې زبردې او دال باندې سکون هم جائزدې اوزبرهم صحیح دې ختې او خاورې ته وائی الخبال: په خاء باندې زبردې دَ فساد په معنی کښې دې دلته دَ دوزخیانودَ بدن وینه او نوونه مراد دی. کوم ته چه په بل حدیث کښې عصارة اهل النار وئیلې شوې دې.

② بعضې شارحینووئیلی دی چه خبال په دوزخ کښې دَ یوې کندې نوم دې چرته چه دا گنده گیرئی جمع کیږی. بهرحال دَ دغه مجموعه کلمې ترجمه خیری سره کولې شی چه دَ دوزخیانو وینې نوونه او نورې گنده گیرئی به ځکی. (اعاذنا الله منه)

**[۳۶۱۲] په مقر باندې د حد سرقه د جاری کولو حکم**

۳۳-[۳] ()[۱] وَعَنْ أَبِي أُمَيَّةَ الْمَخْزُومِيِّ «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِلِصٍّ[۲] قَدِ اعْتَرَفَ اعْتِرَافًا[۳] وَلَمْ يُوجَدْ مَعَهُ مَتَاعٌ[۴] فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا أَخَالُكَ سَرَقْتَ، قَالَ: بَلَى.[۵] فَأَعَادَ عَلَيْهِ مَرَّتَيْنِ أَوْثَلَاثًا كُلَّ ذَلِكَ يَعْتَرِفُ[۶] فَأَمَرَ بِهِ فَقُطِعَ وَجِيءَ بِهِ[۷] فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اسْتَغْفِرِ اللَّهَ وَتُبْ إِلَيْهِ

**ترجمه:**[۱] او ابو امیه مخزومي ﷺ بیان کوي چې یو ځل د نبي کریم ﷺ په خدمت کې یو غل پیش کړل شو .[۲] چې هغه د خپل جرم ښکاره اقرار وکړي.[۳] لیکن د غلا په مال کې هیڅ د هغه سره را ونه ختل.[۴] رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل چې زما خیال نه دی چې تا غلا کړي ده. هغه اوویل چې هو . ما غلا کړیده [۵] حضور ﷺ ورته دوباره او دری باره دا اوویل چې (زما خیال نه دی چې تا غلا کړیده) خو هغه به هر ځل دا اقرار کولی (چې ما غلا کړیده)[۶] آخر حضور ﷺ د هغه د لاس د پریکولو حکم وکړي. او د هغه لاس پرې کړی شو . [۷] بیا (د لاس پریکولو نه وروسته) هغه د حضور ﷺ په خدمت کې راوستل شو . نو رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل چې (د خپلې ژبې په ذریعه د) الله ﷻ نه بخښش وغواړه (او د خپل زړه په ذریعه) د هغه طرف ته متوجه سه.

**حل اللغات:** ① لِصٍّ: غل. ② مَا أَخَالُكَ: زه خیال نه کوم. زما خیال نه دې. گمان نه دې

[1] اخرجه ابو داود في السنن كتاب الحدود /باب في التلقين في الحدّ (رقم-۴۳۸۰) وابن ماجه في كتاب الحدود/باب تلقين السارق (رقم-۲۵۹۷)

[۱] فَقَالَ: أَسْتَغْفِرُ اللَّهَ وَأَتُوبُ إِلَيْهِ [۲] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اللَّهُمَّ تُبْ عَلَيْهِ. ثَلَاثًا». [۳] رَوَاهُ النَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ

**ترجمه:** [۱] هغه سړي اوويل چې زه د الله ﷻ نه بخښنه غواړم، او د هغه طرف ته متوجه کيږم (يعني توبه کاږم) [۲] نو رسول الله ﷺ درې ځله وفرمايل چې اې الله! د ده توبه قبوله کړې [۳] (ابوداود نسائي ابن ماجه دارمي)

۳۳-[۱] هَكَذَا وَجَدْتُ فِي الْأُصُولِ الْأَرْبَعَةِ وَجَامِعِ الْأُصُولِ. وَشُعَبُ الْإِيمَانِ وَمَعَالِمُ السُّنَنِ عَنْ أَبِي أُمَيَّةَ (۱) [۲] وَفِي نُسَخِ الْمَصَابِيحِ عَنْ أَبِي رِمْثَةَ بِالرَّاءِ وَالثَّاءِ الْمُثَلَّثَةِ بَدَلَ الْهَمْزَةِ وَالْيَاءِ.

**ترجمه:** [۱] او صاحب مشكوٰة فرمايي چې ما دا روايت په دې څلورو اصل کتابونو (ابوداؤد نسائي ابن ماجه دارمي) کې، اوپه جامع الاصول کې او د بيهقي رحمه الله شعب الايمان کې، او د خطابي رحمه الله په معالم السنن کې دغه شان يعنی د ابو اميه رضي الله عنه نه منقول پيدا کړې دی. [۲] ليکن د مصابيح په بعضو نسخو کې په دې روايت کې ابو رمثه (همزه او د يا په ځای راء مکسوره او په ثاء مثلثه سره) نه منقول دی (خو شيخ ابن حجر عسقلاني رحمه الله وضاحت کړې دی، چې د دې روايت د ابو رمثه نه منقول کيدل غلط دی. او ابو رمثه رضي الله عنه اگر چې صحابي دی، ليکن دا روايت د هغه نه منقول نه دی).

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا أَخَالُكَ سَرَقْتَ مَا أَخَالُكَ:

**د تلقينِ عذر معنی او حکم:** په همزه باندې زير لوستلې کيږی دا زيات راجح دې داد خال يخال نه د اظن په معنی کښې دې د دې جملې نه د نبی کريم مقصد دا وو چه دا سړې دخپل اعترافی بيان نه واوړی يابيان بدل کړی دې دپاره چه د ده نه حد ساقط شی او په حدودالله کښې د حاکم دپاره داسې تلقين کول يا د قاضی دپاره مناسب دې د دې عمل نوم "تلقين عذر" دې د امام شافعی رحمه الله په نيزداعمل په ټولو حدودو کښې جائز دې ليکن د امام ابوحنيفه رحمه الله او نور ائمه حضراتو په نيز تلقين عذرحد زنا سره خاص دې

**قوله:** اللَّهُمَّ تُبْ عَلَيْهِ:

**په حد سره د گناه د نه معاف کيدو دليل:** دې نه داخبره معلوميدې شی چه حدودالله زاجرات دی طاهرات نه دی لکه څنگه چه د احنافو مسلك دې دلته د حد لگيدلو نه پس هم د استغفار دعاکول د دې تائيد دې سره د دې چه واضح تر احاديث د حدود په مکفرات او طاهرات کيدو باندې دال دی او دامسئله په تفصيل سره تيره شوې ده

(۱) مصابيح السنه رقم الحديث ۲۷۲۱

# [۳] بَابُ حَدِّ الْخَمْرِ

## دَشرابو دَحد او حرمت بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثمانية أحاديث مشتملة على أربع مسائل:**

① مقدار حد الشرب أولاً وآخراً : ۱، ۲، ۴، ۵، ۸.
② حكم شار الخمر مراراً: ۳.
③ تذليل الشارب : ۴، ۵.
④ التخفيف في حد شرب الخمر: ۶، ۷.

**دَشرابو حُرمت [حراموالی] او دې سره تړلی حُکمونه**: دَاسلام په شروع کښې دَنورو جاهلی طریقو په شان شراب نوشی هم عامه وه هرکله چې رسول الله ﷺ دَهجرت کولو نه پس مدینې منورې ته تشریف راوړلو نو دغلته هم دَشرابو څکلو او جوارئ کولو رواج ؤ وعام خلق دَدې دواړو خیزونو په ظاهری فائدو عاشقان ؤو د ې کښې دننه ډیرو نقصاناتو اوناکاروالی ته دَهغوئ فکرنه وو لیکن دَ الله ﷻ دَعادت په جوړ په هرقوم او ملک کښې څه عقلمند خلق هم وی چې عقل لره په طبیعت غلبه ورکوی او دَعقل په مقابله کښې. خواهش پریږدی. په دې معامله کښې دَنبی کریم ﷺ مقام ډیرزیات لوړوو. کوم څیزچه روستو حرامیدونکې وو دَهغوئ طبیعت دَوراندې نه دَ هغې نه کرکه کوله صحابه کرامو ﷺ کښې هم دغه شان داسې صاحبان وو کوموچه دَحلالوالی په زمانه کښې هم کله شرابوله لاس نۀ وو وراوړې. مدینې طیبې ته په رسیدو یو څو صحابه کرامو ﷺ ته ددې دَ خرابو او ناکار والو زیات احساس اوشولکه چې حضرت فاروق اعظم ﷺ معاذبن جبل ﷺ او یو څو نور انصاری صحابه هم دَدې احساس له کبله دَنبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړوچه شراب اوجواری [خمار] خو دَانسان عقل هم خرابوی او مال هم تباه کوی دې باره کښې ستاسو څه حکم دې ددې په جواب کښې دا آیت نازل شو داهغه ړومبی آیت دې چې کوم کښې مسلمانانو لره دَشرابو اوجوارئ نه منع کولو دَپاره ړومبې قدم پورته کړې شو

په دې آیت کښې دا ښودل شوی دی چې په شرابو او جوارئ کښې څه ظاهری فائده خوارُومرُو او خامخا شته مگر دَگناه غټې غټې خبرې هم ترې پیدا کیږی چې په فائدو ئې غالبې دی. دَگناه دَخبرونه مطلب دَگناه سببونه دی مثلاً په شرابو کښې دَټولو نه غټه خرابی داده چې عقل اوپوهه پرختم شی کوم چې دَټولو انسانی کمالاتو او شرافت جوړه ده ځکه چې صرف دَعقل په زوردَبَدو کارونو نه انسان منع کیدې شی داچه نۀ وی نو دَټولو

بدوکارونو دپاره لار خلاصيږي

په دې آيت کښې په ښکاره ډول شرابو ته حرام نۀ دی وئيلی شوی خو خرابئ اونقصانونه ئې بيان کړې شوچه دَشرابو څکلو په وجه بنيادم په ډيرو گناهونو او خرابو کښې راګيريدې شی ګويا کښې دَشرابو پرېښودو دپاره يو مشوره ورکړې شوې ده هم دغه وجه ده چې ددې آيت په نازليدو دَصحابه کرامو ډلې جوړې شوې يوې ډلې خودا مشوره قبوله کړه اوشراب ئې بيخی پريښودل او څه صحابه کرامو رضي الله عنهم په دې خيال ددې څکل جاری اوساتل چې داخو حرام تاکلې شوی نۀ دی صرف دَ خرابو او نقصانونو ذکرئې شوې دې دغې نقصانونو او خرابونه به ئې ځان سا تلوتردې چې(۱) يوورځ دَحضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه له طرفه په ورکړې شوی دعوت کښې دَخوراک نه پس شراب اوڅکلې شُودَماښام وخت ؤودَمانځه دپاره ئې کوم کَس چې امام جوړکړې ؤوهغه دَنشې په حالت کښې ﴿قُلْ يٰٓاَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ﴾ په مانځه کښې غلط اولوستو نودَشراب بندولودَپاره دَدوئيمې پوړۍ[ځينې] په ډول داآيت نازل شو ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقْرَبُوا الصَّلٰوةَ وَاَنْتُمْ سُكٰرٰى﴾ اې ايماندارو تاسودَنشې په حالت کښې دَمانځه خواته مه ورځئ

دې سره صرف دَمانځه په وختونو کښې شراب بيخی حرام کړې شو او په نورو وختونو کښې بياهم اجازت وويوې ډلې دَصحابه کرامو رضي الله عنهم خووړاندې نه شراب پرېښی وو کله چې داآيت نازل شونوهغوئ اووئيل چې کوم يوځيز دَمونځ نه سرې منع کوی هغه دَمونږ ولې اوکړوځکه چې په هغې کښې هيڅ خيرنشته مګر دَمونځ دَوختونو نه بغير هرکله چې دَشرابو حراموالې اوس هم په ښکاره ډول نۀ وونازل شوې نوبعضې صحابه کرامو رضي الله عنهم به دمانځه دَوختونو نه بغير شراب څکل تردې چې دَعتبان بن مالک رضي الله عنه له طرفه په ورکړې شوی دعوت کښې دَخوراک څکاک نه پس درواج په جوړشراب.اوڅکلې شودَنشې په حالت کښې دَدستورپه مطابق دَشعروشاعرئ اودَ فخرونو کولو بيان شروع شو سعدبن ابی وقاص رضي الله عنه په يو قصيده کښې دَانصاروبداودَخپل قوم ښه اووئيل يو انصاری خوان رضي الله عنه له غصه ورغله اوداوښ دَجامنې [زامنې] هډوکې ئې دَسعدبن ابی وقاص سرله راپرېښودو هغه سخت زخمی شو حضرت سعد دَحضور ﷺ په خدمت کښې دَانصاری ځوان ګيله اوکړه نونبی ﷺ دادعا اوکړه [اللهم بين لنا في الخمر بيانا شافيا] چه اې الله خل دَبيخی حرمت[حراموالی]حکم دسورت مائده داتفصيلی آيت نازل شو(۲).

---

(۱) سنن ابي داود، كتاب الأشربة، باب تحريم الخمر: ج ۲، ص ۵۱۷

(۲) صحيح مسلم، كتاب الفضائل، فضل سعد بن أبي وقاص: ج ۲، ص ۲۱۸

﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنْصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ۝ إِنَّمَا يُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَنْ يُوقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ وَعَنِ الصَّلَاةِ فَهَلْ أَنْتُمْ مُنْتَهُونَ ۝﴾ يعني اې ايماندارو خبره داده چې شراب اوجواری اوبُتان اودَجواریٔ غشی داټول ګنده څیزونه شیطانی خبرې دی تاسو بیخی دې نه ډډه کوئ دَپاره دَدې چې تاسو خلاصې بیامومئ شیطان خودا غواړی چې دَشرابو اوجواریٔ په ذریعه ستاسو منځ کښې بُغض اودښمنی پیدا کړی اودَ الله ﷻ دَیاد اودَمانځه نه تاسو بند کړی،بنه نو اوس به هم منع شئ؟

**دَ شرابو دَ حراموالی درجه په درجه حُکمونه** :: دَ الله ﷻ دَحُکمونو اصلی اوحقیقی حکمتونه هم احکم الحاکمین پیژنی مګرپه احکام شرعیو کښې په ژورکتو سره دامعلومیږی چې دَاسلامی شریعت په احکامو کښې دَانسانی جذباتو ډیرخیال ساتلې شوې دې چې په دې عمل کولو کښې بنیادم ته ډیرتکلیف نهٔ وی پخپله قرآن کریم فرمائی﴿لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا﴾ [البقرة]﴾یعنی الله ﷻ په انسان داسې حکم نهٔ چلوی چې دَهغه دَطاقت اوتوفیق نه بره وی.هم دَدې رحمت اوحکمت تقاضا وه چې دَشرابو په حرامَولو کښې اسلام دَوارپه وارنه کاراغستې دې

وارپه وارد شرابو بندَولو او حرامَولو دَقرآنی تاریخ خلاصه داده چې دَشرابو په باره کښې څلور آیتونه نَازل شوی دی،یو آیت دَسورت بقره دې دکوم تفسیرچه اوس لګیادې کوئی.دې کښې دَشرابونه دَپیدا کیدونکو ګناهونو اونقصانونو بیان دې دَحراموالی بیان ئې نشته ګویا کښې دَدې دَپریښودومشوره ئې ورکړه دَدې حکم ئې ورنکړو

دَسُورت نساء په بل آیت﴿لَا تَقْرَبُوا الصَّلَاةَ وَأَنْتُمْ سُكَارَى﴾کښې خاص دَمونځونو په وختونو کښې شراب حرام اوناکلې شوپه نوروو ختونو کښې ئې اجازت وُو

دریٔم اوڅلورم دَسورت مائده دادوه آیتونه دی چې اوس وړاندې تیرشوی دی په دې کښې شراب بیخی حرام اوناکلې شو

اسلامی شریعت دَشرابو حرامَوَل وارپه وار ځکه اوکړل چې دټول عمر عادت بیا په تیره تیره دَنشې عادت پریښودل بنیادم ته ډیرګران پریوځی علماءکرام فرمائی ا﴿ فطام العادة اشد من فطام الرضاعة﴾ایوعادت پریښودل دې نه ډیرزیات ګران دی چې یوماشوم دَتی نه پریکړې شی له دې وجې اسلامی شریعت دَحکیمانه اصولو په جوړاول دَدې بدوالې په دماغو کښې کښینولو بیائې دَمونځونو په وختونو کښې حرام کړل بیادَیوې خاصې مودې نه پس ئې بیخی حرام کړل.

وارپه وارد شرابو حرامَوَل دَحکمت خُداوندی تقاضا وه دغه رنګ دَحرامولو نه پس

هم دغه قانون په پوره سختئ سره جاري کول هم دَحکمت خداوندی تقاضاوه لـه دې وجې رسول الله ﷺدَشرابو په باره کښې اول دعذاب سخت وعيدونه اوښودل لکه فرمائ چې دا[ام الخبائث] [دَ پليتو مجموعـه] او[ام الفـواحش] [دبيحيـايو مجموعـه]ده دَدې پـه ځکلوبنيادم په خرابوخرابو ګناهونو کښې ګيريدې شي

پـه يوحـديث شـريف کـښې ارشـادفرمائ چـې شـراب اوايمـان يوځـائې کيـدې نشي[ادارواينونه په نسائ کښې دی په جامع ترمذی کښې دَحضرت انس ﷺنه روايت دې چې حضور ﷺدَشرابو په باره کښې په لسو کسانولعنت ونيلې دې په نچوړوونکی. جوړوونکی. څکونکی. څکوونکی، دَدې پـه باروونکی اوراوړونکی چاتـه چې راوړې شي.په خرڅوونکی، اغستونکی، دَدې په بخښونکی ګټه خوړونکی(۱) بيائې دَځلې پـه تعليم اوتبليغ بس نکړه بلکه په عملی اوقانونی ډول ئې اعلان اوفرمائيلوچه چاسـره کـوم قسم شراب وی هغه دفلانی ځائې کښې جمع کړی.

**صحابه کرامو دَحکم منلو بې انتها جذبه لرله**:: دَرومبی حکم په آؤريدوسره منونکوصحابه کرامو ﷺ په خپلوخپلوکورونوکښې دَخپل استعمال دَپاره ايښی شراب هم هغه وخت توئې کړل دَحضرت عبدالله بن عمر ﷺ بيان دې چې کله دَنبی کريم ﷺله طرفه ډنډورچی [اعلان کوُونکی]دَمدينې منورې په کوځوکښې دَشرابودَحراميدواعلان اوکړو نو که دَچاپه لاس کښې دَشرابولوښې ووهم هلته ئې اوغورځولوچاسره چې دشرابوصراحی يا دونړئ يا جام وه هغه ئې دکورنه بهرماته کړه حضرت انس ﷺپه يومجلس کښې دَ شرابو ساقی جوړشوې وواَبوطلحه، ابوعبيدة بن الجراح ،اُبی بن کعب اوسهيل رضوان الله عليهم اجمعين غوندجليل القدرصحابه کرام دغلته موجود ؤو دَ اعلان کوُونکی د آواز اوريدو سره ټولواووئيل چې اوس داټول شراب واړوئ ددې جام اوصراحی ماته کړئ په ځنې روايتونوکښې راغلی ډی چې دَحراميدو دَاعلان په وخت دشرابوجام که دَچاشونډوته رسيدلې هم ؤونوهم هغلته ئې اوغورځولو(۲)په مدينه منوره کښې په دغه ورځوکښې شراب دَباران دَاوبوپه شان ترډيروورڅوبهيدل کله چې باران اوشونودشرابو ډدُوځې او بويونه اورنګ به دَزمکې نه رابرسيره شو

په يوځائې کښې دَشرابوحکم آؤريدوسره فرمانبردارصحابه کراموهغـه شـراب هم هلته جمع کړل کوم چې بازارکښې دتجارت پـه غـرض پراتـهٔ ووهلتـه حضور ﷺپـه خپلو لاسونو مبارکو دَ شـرابو ډيـرې مـشکيزې ځيرې کړې اونورې ئې دَصحابه کرامو ﷺپه لاس ځيرې کړې دَ شرابو يوصحابی سوداګردَشام نه راوړی شراب دَمدينې منورې نه بَهر

(۱) جامع الترمذی، أبواب البيوع، باب ما جاء في بيع الخمر والنهي عن ذالک: ج ۱، ص ۲۴۲
(۲) صحيح البخاری، کتاب الأشربة، باب نزل تحريم الخمر وهي من البسر والتمر: ج ۲، ص ۸۳۶

په یو غونډئ څکه پرېښودل چې دَدې دَحرامیدو پته ورته لګیدلې وه دَحضور ﷺ په خدمت کښې حاضرشو او دَهغې شرابو په باره کښې ئې دَحکم تپوس اوکړونو حضور ﷺ دَخدائې تعالی دَحکم په جوړ دَتولو د څښکیزو دَخیری کولو او دَشرابو بیولو حکم ورکړو ،نو دَخدائې تعالی اورسول په مینه مست دغې فرمانبرداره بنده خپله ټوله موړی او سرمایه یې پخپل لاسه بې سوچه اوبې فکره په زمکه واړوله دَصحابه کرامو ﷺ دابیمثاله فرمانبرداری کول اوخبره مَنَل دَاسلام معجزه ده څکه چې معلومه خبره ده .په کوم څیزچه څوک راواوړی اوعادت ئې شی نو دَهغې نه منع کیدل دَلږ ساعت دَپاره هم ډیرګران شی دَ الله ﷻ یوحکم اودَرسول الله ﷺ یوفرمان دَدوئ په عادتونو کښې داسې بدلی راوسته چې اوس تردومره نفرت کوونکی ووڅومره چې پرورانِدې راؤړیدلی ؤو

**دَاسلامی سیاست اودَعام ملکی سیاست لوئې فرق** په تیروشؤوآیتونوکښې دَشرابو د حراموالی دَحکم

په نتیجه کښې دَمسلمانانوعملی نمونه مخامخ راغله دادَاسلام معجزه بولې یا دَ پیغمبر دَتربیت بې مثاله اثر اویادَاسلامی سیاست لازمی نتیجه اوګڼړې یوخوادامثال چې دَ شرابو دَنشې دَعمرونوعادت اوداسې رواج چې لږساعت دَپاره هم دَهغې پرېښودل ډیرګران معلومیدل مګر دَدې دَحراموالی اودَاعلان په آؤریدو .دَمسلمانانو طبیعت بیخی بدل شو هغوئ خپل ډیرګران معلومیدل مګر دَدې دَحراموالی اودَاعلان په آؤریدو .دَمسلمانانوطبیعت یودم بدل شو دهغوئ په عادتونو کښې داسې انقلاب راغلو چې څو منټه مخکښې کوم څیز چې ددوئ ډیر زیات خوښ وو بلکه دخپل ژوند سرمایه یې ګڼړله . هغه څو منټه بعد هغوئ دپاره مبغوض بداوپلیت شو

اوبل خواد نن صبا ترقی موندونکی سیاست [چه زړونه ورته پسخیږی] خصوصاًدامریکې دَ سیاست مثال واخلئ چې هلته څوکاله مخکښې هرکله چې دَصحت اومعاشرې ماهرانو دَ شرابوبې حده او مهلکې خرابئ اونقصانونه اولیدل اومحسوس ئې کړل نودَخپل قانون په اډانړه دهغې دَ بندَولودپاره دَخپل ملک دَنشرواشاعت اعلی نوې ذریعې ئې پکارراوستې په دې باره کښې په سوونوا خبارونه اورسالې دَلکونو په شمیرکښې ئې خورې کړې بیادَامریکې په آئین او د ستور کښې دَترمیم کولوپه ذریعه دَشرابودَبندیزقانون جاری کړې شو مګر په امریکه کښې ددې اثر نتیجه ټولې دنیا په خپلو سترګو اولیدله . او د هغه ځائې د سیاسی اختیار لرونکو رپورټونه دنیا اولیدل . هغه دا وو چې دې ترقی یافته او تعلیمافته قوم د نورو ورځو په مقابله کښې په دې ورځو کښې زیات شراب استعمال کړی وو. تر دې چې حکومت مجبور شو او خپل قانون یې منسوخ کړو.

داد ستر گوليدلى حال دې چې هيچرې ورته دروغ او غلط نه شي وئيلې خواوس داكتل پكاردى چې دعربونوؤصحابه كرام ﷺ مسلمانانو او دامريكنيانو [چه په نوي زمانه كښې ډير ترقي يافته بللې شي] دحالاتو او معاملو په مينځ كښې دَدې ډيرلوئې فرق اصلى سبب اوراز څه دي؟

كه لږ شان غور اوكړو نو دا خبره به ښكاره شي چې اسلامى شريعت قانون صرف د قوم داصلاح دپاره كافى نه دې ګڼرلې بلكه د قانون نه ړومبې دَذهنونو جوړولو كاركړې دې . او دعبادت او تقوى اود آخرت د فكر سره يې ددوئ مزاجونه داسې تيار كړل چې او په دوئ كښې يې يو داسې انقلاب راوستو چې ټول د رسول كريم ﷺ په آواز باندې خپل خانونه او مالونه قربان كولو ته تيار شو. مكى دور كښې د خلقود تربيت كار په رياضتونو سره كيدو ، هركله چې د جانثارانو يوه ډله تياره شوه نو دې نه پس قانون جارى كړې شو ، د ذهنونو جوړولو دپاره خو امريكې هم ډيرې زياتې ذرائع استعمال كړې . اګر چې هغوئ سره هر څه وو خو دآخرت فكر ورسره نه وو . او د مسلمانانو په رګ رګ د آخرت فكر موجود وو ،

كاش! چې نن هم زمونږ عاقلان او پوهه خلق دا نسخه [يعنى فكر آخرت] استعمال كړى چې دې دنيا ته امن او سكون نصيب شي.

**دَشرابودَضرابواوفائدوپه مينځ كښې موازنه اومقابله كول** په آيت كښې دشرابو اوجوارئ دوارو دَلږوفائدااو دَډيروخرابول اوګناهونوذكرشوې دې څه تفصيل به دَدې بيان كړوپه آخركښې به دَدې آيت نه قائده كړل شوى يوڅوفقهى ضابطې بيانوؤ.

دَشرابو فائدې په عامو خلقو كښې دامشهورې دى چې په دې سره خوشحالى پيدا كيږى [په عارضى ډول] قوت او طاقت پرزياتيږى رنګ ورسره صفا كيږى او سور كيږى مګر ددې په مقابله كښې ئې خرابئ ډيرې زياتې دى مثلاً دَشرابى معده روروبيخى بيكاره شى خوراک كولوته ئې ډيرزړه نۀ كيږى .دَمغ شكله ئې بدله شى.خيټه ئې غټه شى اودَيو جرمنى ډاكتر دَوينا په جوړدَشرابودَعادت په وجه دَشرابى دَټول رَغونږه او ا ندامونه دَځلو ينبو توكالو په عمركښې داسې كمزورې شى لكه چې شپيته كلن بنيادم وى يعنى په ځوانئ كښې دَهغه ټول بدن دبوډاګانو په شان كمزورې شى شرابو څكلو سره سره ئې زړۀ اوپښتورګي خرابيږى خصوصاًنرې نرې رنځ تړپيداكيږى چې دَيورپ دَډاكټر انودَويناپه جوړدَدغه ملكونو زيات خلق دَشرابو په وجه په نرى رنځ كښې ګرفتاريږى اودَبعضې دغه ډاكټرانودَوينا په جوړپه يورپ كښې نيم خلق دَدغه راولاړشوى نرى رنځ نه مرى .كوم چې دَشرابودَزيات رواج نه وړاندې هلته نرى رنځ به ډير كم چرته ؤو. هركله چې دَشرابو يورواج زيات شونونرې رنځ هم دغلته زيات شو

دادَشرابوبدنی خرابئ دی خوپه عقل باندې پریوتی اثرات دَدې نه زیات دی کومولره چې خلق دَنشې په حالت کښې کنړی چې په شدبد کښې نهٔ وی اوعقل ئې کارنهٔ کوی هرکله چې نشه لاړه شی نوعقل ئې کارشروع کړی لیکن داخبره دَحقیقت په رنړا کښې څکه کمزورې ده چې دَشرابو اثر په عقل باندې مستقل پائیداراودعمرسره سم وی چې دَهوش په حالت کښې هم ددهٔ عقلی قوت کمزورې وی دادَماهروډاکټرانو تحقیق دې دَخانه خبره نهٔ ده چې کله خوشرابی هم دَشرابوپه وجه لیونې کیږی. دارنګ طبیبان اوډاکټران په دې متفق دی چې شراب دَبدن یوه برخه نهٔ جوړیږی نهٔ تروینه جوړیږی چې بدن پرِ طاقت واخلی بلکه دَدې کارصرف دومره وی چې په عارضی ډول وینه راپاروی اوعارضی قوت پرمحسوسیږی اودَوینې دراپاریدل کله کله دَناګهانی مرګ سبب جوړیږی چې ډاکټران ورته هرټ فیل [هډاوپیل] وائی.

دَشرابوڅکلوپه وجه هغه رګونه سختیږی دکوموپه ذریعه چې ټول بدن ته چې رُوح رسیږی ددې نتیجه داوی چې شرابی زربوډاکیږی

ددې اثرپه مرئ اوساه داسې کیږی چې تل ټوخې ورځی آوازئې غټ شی اوبالآخر نرې رنځ تر جوړ شی. دَدې بداثرپه نسل داسې پریوځی چې دَشرابی اولادکمزورې وی او کله خواولادئې پیدا کیږی هم نهٔ.

دَشرابیانوداویناچه شرابوسره چستی اوقوت پیداکیږی څکه غلطه ده چې په شروع کښې خوداسې ښکاری مګرددې جرړې رورو[کرار کرار] داسې خورې شی چې بیاتردغه تیرشوی نقصانات راولاړشوی وی اوقابوموندل پرِهیڅرې نشی کیدې

په معاشره کښې دَشرابویوخرابی داهم ده چې دې نه اکثرجنګ جګړې دښمنی اوبغض راولاړیږی چې نتیجه ئې ډیره خرابه وی څکه خوپه سورت مائده کښې داخرابی په ښکاره الفاظوکښې په خصوصیت سره بیان کړې شوې ده فرمائ

﴿إِنَّمَا يُرِيدُ الشَّيْطَٰنُ أَن يُوقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ﴾ یعنی شیطان داغواړی چې دَ شرابو او جوارئ په ذریعه ستاسوپه مینځ کښې بغض اوعداوت پیدا کړی.

دَشرابو یوخرابی داهم ده چې څنی وخت شرابې په خپلې نشه کښې خپل پټ رازونه ښکاره کړی چې نتیجه ئې ډیره خرابه وی خصوصاً په هغه وخت کښې خوئې نتیجه ډیره مهلکه ثابته شی اوپه ملک کښې پرپوره انقلاب راپورته کیږی، ملکی سیاست اوجنګی مصلحتونه ټول بربادیږی کله چې هغه نشئ [رازښکاره کوونکې] دَحکومت یوخاص زمه دارکَس وی اورازهم دَحکومت وی اوجاسوسان هم دَدې لټون پسې وی.

دَشرابویوخرابی داهم ده چې شرابی بنیادم دَخلقوبلکه دَوروهم څکه دَخنداشی چې دَهغه خبرې اوکړه وړه بې تولې، بې رَوه اوبې ګودره دی دَټولونه لویه خرابی ئې داده

چې دا دَ پليتو مور [بنياد] دې غټ غټ جرمونه او گناهونه ترراولاړيږي، زنا او قتل اکثرهم ددې نتيجې دى لکه څنگه چې ثابته ده چې عامې شراب خانې دَقتل اوزنا اډې دى.

دا خو دَشرابو بدنى ضررونه دى او ددې روحانى ضررو نه بالکل هم ښکاره داسې دى چې د نشې په حالت کښې مونځ دَ الله ﷻ ذکر او عبادت ترپاتې وى. لکه چې قرآن کريم فرمائ ﴿وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ وَعَنِ الصَّلَاةِ﴾ يعنى تاسو لره شراب دَ الله ﷻ دَذکر او مونځ نه بندوى، .

مالى نقصان ئې هم داسې ښکاره دې چې يو آبادئ کښې دَشراب خانې پرانستلو [خلاصولو] سره دَهغه ټولې آبادئ مال دولت راغونډوى او جارو کوى څکه چې ددې څنې قسمونه په ډير گرانه بيعه اغستې شى لکه دَشميرشميرې څنې ماهرانو دَيو ښار دَشرابو ټوله بيعه دَټول فرانس حکومت دلگښت برابره ښودلې ده .

دَشرابو دادينى دنيوى جسمانى اوروحانى خرابئ حضور ﷺ په دې الفاظو کښې راجمع کړې دى چې ورته ئې [امُ الخبائث ()] يا[امُ الفواحش] [دَپليتو يا بيحيا يو جرړه] او ئيلى دى. لکه دَيو جرمنى ډاکټر داخبره دَمَتَل په توگه په ټوله دنيا کښې مشهوره ده چې که چرې نيمې شراب خانې بندې شى نوزهٔ ددې خبرې ضمانت درکوم چې نيمې شفاخانې [دوا خانې] او نيمې جيلخانې به څکه بندې شى چې ضرورت به ئې پاتې نشى [دَمفتى محمد عبده المنار تفسير ص ۲۲۲ ج ۲] .

علامه طنطاوى په خپل کتاب الجواهر کښې دَدې لړئ څنې ضرورى معلومات ليکلى دى چې څه له هغې څنې دلته رانقل کولې شى.

يو فرانسيسى محقق په خپل کتاب [خواطر وسوانح فى الاسلام] کښې ليکى . . ډيره زياته هلاکوونکى وسله او دوه ارخيزتيره توره چې دَاهل مشرق [مسلمانانو] مونږ او بيخ پرېرېکړې شوا ودوئ پرقتل کړې شو هم داشراب وو زمونږ دَالجزائر په مسلمانانو داوسله أزمائيله ليکن اسلامى شريعت زمونږ په لاره کښې ارجوړشو په هغوئ زمونږ ددې وسلى هيڅ اثراونه شوا وپه نتيجه کښې دَهغوئ نسل هم دارنگ لگيادې زياتيږى دې خلقو که زمونږ دا تحفه داسې قبوله کړې وې لکه څنگه چې دَدوئ يو منافقې قبيلې قبوله کړې ده، نودوئ به هم زمونږ په مخکښې ذليل اوخوارؤو نن دکومو خلقو کوروکښې چې زمونږ دَشرابو دورونه چليږى هغوئ زمونږ په مخکښې داسې سپک اوذليل شو چې سرنشى راپورته کولې؟

يو انگريزقانون دان ښتام ليکى چې دَاسلامى شريعت په ډيرو ښه والوکښې يو ښه والې

---

[١]) سنن النسائى، كتاب الأشربة، باب ذكر الأثام المتولدة عن شرب الخمر – الخ: ج ٢، ص ٣٣٠

داهم د ې چې په دې کښې شراب حرام دی مونږ اولیدل چې کله دافریقې خلقو دې استعمال شروع کړه دهغوئ په نسلونو کښې لیونتوب ورننوتو اودیورپ کومو خلقو نه چې دا دې خوند ترخولې شی نو دهغوئ په عقلونو هم کانړې پریوتو پکاردی چې دافریقې په خلقو دابند کړې شی او دیورپ خلقو ته په دې سختې سزاګانې ورکړې شی..

غرض داچه کوم یو شریف سړی په سره سینه ژورلیدل اوکړل نو بې اختیاره نې چغه کړې ده چې دا [شراب] پلیتی ده شیطانی کاردې زهردی دتباهئ اوبربادئ سامان دې، دپلیتو ددې جرړې نه واوړئ ﴿فَهَلْ اَنْتُمْ مُّنْتَهُوْنَ﴾ [۱]

دشرابو دحراموالی اوبندیز باره کښې دخلورو آیتونو بیان وړاندې اوشو مناسب ښکاری چې دسورت نخل دهغه بل آیت بیان هم اوشی په کوم کښې چې دیو بل ډول دنشئ څیزونو ذکر راغلې دې فرمائی:

﴿وَمِنْ ثَمَرٰتِ النَّخِيْلِ وَالْاَعْنَابِ تَتَّخِذُوْنَ مِنْهُ سَكَرًا وَّرِزْقًا حَسَنًا ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ﴾ او د کهجورو او د انګورو د میوونه تاسو خلق نشئ څیزونه اودغوره خوراک څیزونه جوړوئ، بیشکه په دې کښې دهغه خلقو دپاره لوئې دلیل دې چې عقل لری.

**د آیت وضاحت او تفسیر**: په ړومبی آیتونو کښې د الله ﷻ دهغه نعمتونو ذکرووچه دانسانی خوراکې دپاره دهغې دپیداکولو نه د الله ﷻ عجیبه غریبه کاریګری اوقدرت رابرسیره کیږی، اول دپیو [شیدو] ذکر دې کوم ئې چې دخاروو په خیټو کښې دوینو او خشنړو [خوشیانو] دمینځ نه د بنیادم له پاره صفاسُتره خوراک جوړکړې دې اودبنیادم دنورې کاریګرئ اوعمل په دې کښې ضرورت نشته. د ﴿نُسْقِيْكُمْ﴾ لفظ هم داحکمت ښکاره کوی [یعنی مونږ ېئ دراوڅکول] دې نه پس ئې اوفرمائیل چې دکهجورو او انګورو دځه میوونه دخپل خوراک اوفائدې څیزونه جوړوئ مطلب داچه دانسان په عمل دخل داڅیزونه تیاریږی اوجوړیږی خوبیاداڅیزونه دوه قسمه دی یونشئ څیزونه چې خمریاشراب ورته وئیلې شی دویم دغوره خوراک څیزونه یعنی تازه کهجورې اوانګوریااوچې قجورې اواوچ انګوراوڅکې! خلاصه دخبرې داشوه چې بنیادم له الله ﷻ کهجورې او انګورغوندمیوې په خپل کامل قدرت سره ورکړې اودې دخپل خوراک جوړولو دااختیارئې هم ورته ورکړوچه دې ترېنه دخوراک کاروا خلی اوقوت پربیامومی یانشئ څیزترتیارکړی چې خپل عقل پربیکاره اوخراب کړی

ددې تفسیرپه جوړددې آیت نه دنشئ څیزونوپه حلالوالی څه دلیل څکه نشی نیوې چې دلته الله ﷻ په خپل قدرت پیداکړی شوی نعمتونه بیانوی. ددې احکام نه

---

[۱] ترجمه: اوس اووایه چه تاسو به ددغه څیزونونه منع شئ؟

بيانوي او دا ښکاره کوي چې د نعمت اصليت په دې نهٔ بدليږي چې هغې لره يو انسان بې ځايه استعمال کړي لکه د كجورو او انګورو د نعمت نه اشراب ازحمت څيزونه جوړ کړي خو بيا هم يو باريکه اشاره دا سې اوشوه چې ﴿سکر﴾ په مقابله کښې د ﴿ رزق حسن ﴾ ذکر کول دا ښائي چې ﴿سکر﴾ ښهٔ رزق نهٔ دې جمهورمفسرين[1] داسکر .. معنى نشئ ځيز .. کوي اروح المعاني .قرطبي .جصاص ا[2]

په اتفاق دأمت سره دامکي آيتونه دي او دشرابو حرامولي په مدينه طيبه کښې نازل شوې دي ددې آيتونو د نازليدو په وخت اګرچه شراب حلال وو او مسلمانانو په عمومي ډول څکل خو دا پورته ذکرشوې اشاره پکښې ارومرو او خامخا وه چه د شرابو څکل ښه کارنهٔ دې په سختئ دشرابو حرامولي په ښکاره ډول د دې نه پس نازل سوا خلاصه د جصاص او قرطبي ا [3]

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [٣٦١٤] په عهد رسالت کښې د شرب خمر سزا

٣٦١٣ـ[١] ( ) [١] عَنْ أَنَسٍ «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَرَبَ فِي الْخَمْرِ بِالْجَرِيدِ وَالنِّعَالِ. [٢] وَجَلَدَ أَبُوبَكْرٍ أَرْبَعِينَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او حضرت انس رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ د شراب نوشي حد (سزا) د كجورو لښو او چپلو سره د وهلو حکم وکړي. [٢] او حضرت ابوبکر رضي الله عنه په خپل دورِ خلافت کې شراب څکونکي څلويښت دوري ووهلي (بخاري مسلم)

**حل اللغات** ① الْجَرِيد: د كجورو لښتې څانګه. ② وَالنِّعَالِ: پيزار. چپلي

٣٦١٥ـ( ) [١] وَفِي رِوَايَةٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٢] «كَانَ يَضْرِبُ فِي الْخَمْرِ بِالنِّعَالِ وَالْجَرِيدِ أَرْبَعِينَ».

**ترجمه:** [١] او په يو روايت کې د حضرت انس رضي الله عنه نه داسې منقول دی [٢] چې نبي کريم ﷺ

[1] ) بعض علماء د دې معنى سرکه يا بې نشه نبيذ کړې ده (جصاص، قرطبي) خو په دې ځای کې ددې اختلاف نقل کولو ضرورت نشته-۱۲منه

[2] ) روح المعاني تحت هذه الآية ج ٢، ص ١١١، ١١٢ و تفسير القرطبي تحت سورة النحل ٦٧، ج ١٠، ص ١٢٨ واحكام القرآن للجصاص، باب تحريم الخمر ج ٢، ص ٣١٣، ٣١٤

[3] ا ځنې علماؤ ددې معنى سرکه هم اغستې ده او بعضونې بې نشې رس اوشيره معنى اغستې ده [جصاص وقرطبي]مګر دلته ددې اختلاف نقل کولو ضرورت نشته ۱۲منه

[4] ) اخرجه البخاري في كتاب الحدود/باب ما جاء في ضرب شارب الخمر (رقم-٦٧٧٣) ومسلم في كتاب الحدود/باب حدّ الخمر (رقم-٣٦ - (١٧٠٦) و ابو داود في كتاب الحدود/باب الحدّ في الخمر (رقم-٤٤٧٩)وابن ماجه في كتاب الحدود/باب حدّ السكران (رقم-٢٥٧٠) واحمد في المسند: ١٧٦/٣

[5] ) اخرجه مسلم في كتاب الحدود/باب حدّ الخمر (رقم-٣٧ - (١٧٠٦)

به د شراب نوشي حد (سزا) کې څلويښت د کجورو لښتو او چپلو سره وهلی (يعني د وهلو حکم به يي ورکولی)

**تسهیلات: قوله:** ضَرَبَ فِي الْخَمْرِ بِالْجَرِيدِ:۱

**د شرابو څښکلو د ثبوت شرطونه:** ① که چرې يوسړي شراب اوڅکی سره ددي چه په لږ مقدارکښې وی بيا هغه حاکم له بوتلې شی اوهغه وخت د دغه سړی په خله کښې د شرابو بدبوئی موجود وی ۱

② يا هغه د نشې په حالت کښې پيش کړې شوې وی او دوه کسان د دغه شرابو څکلوګواهی ورکړی

③ يا هغه پخپله د خپلو شرابو څکلواقرار اوکړی اودا معلومه شی چه دې سړی په خپل اختيار سره شراب څکلی دی چا ورسره څه زور نه دي کړې نو په دې سړی باندې به د شرابوڅکلو حدجاری کولې شی. که دغه سړې آزاد وی نو اتيا کوړې اوکه چرې غلام وی نو څلويښت کوړې به وهلې شی.

**په کومو صورتونو کښې چې کوړې نشی ورکولې:** ① که د شرابی د خلې نه بدبوئی ختمه شوې وی نوقاضی په هغه د حد حکم نه شی کولې.

② دغه شان که اقرار ئې هم کړې وی يا دوو ګواهانوګواهی ورکړې وی مګر د خلې بدبوئی ختمه شوې وی بيا به هم حدساقط شی. د نشې کيفيت داسې کيدل پکاردی چه هغه سړې د زمکې اوآسمان فرق نه شی کولې يا په نشه کښې چغې صورې وهی

**په عهد نبوی صلي الله عليه وسلم او صديقی رضي الله عنه کښې د شرابو څښکلو سزا:** د رسول الله ﷺ په زمانه مبارکه کښې چونکه د خلقو د ذهنونونه د شراب نوشئی تصور ختم شوې وو اود شرابو څکلو واقعات ختم شوی وو. په دې وجه به نبی کريم د شرابو د څکونکی تحقير او توهين کولو. د څادرونو په کوړو او چپړو سره په وهلو به ئی د شرابی استقبال کولو. که چابه يووخت کښې د شرابوڅکلو جرأت کولو نوهغه به په څپلو د څادرونو په کوړو ښاخونواو چوکوباندې وهلو اود هغوی دتحقير اوتوهين د پاره به ئی سختې خبرې کولې. الغرض ددې د پاره باضابطه څه متعين حدموجودنه وو. د عهد نبوی نه پس په عهدصديقی کښې هم داسې وه بيا د حضرت عمر رضی الله عنه په دور خلافت کښې د اتيا (۸۰) کوړو اعلان اوشو.

**نوټ:** يادلرئی چه په حدد خمراو حدد زناکښې به کوړې د بدن په داسې حصه باندې وهلې شی کومې حصې چه نرمې وی دغه شان به د بدن په مختلف حصوباندې وهلې شی په يوه حصه باندې به نه شی وهلې.

## [۳٦۱٦] دشُرب خمر دپاره د اتيا دورو لګولو ابتداء

—[۲] ()[۱] وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ قَالَ: [۲] «كَانَ يُؤْتَى بِالشَّارِبِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۳] وَإِمْرَةِ أَبِي بَكْرٍ وَصَدْرًا مِنْ خِلَافَةِ عُمَرَ [۴] فَنَقُومُ عَلَيْهِ بِأَيْدِينَا وَنِعَالِنَا وَأَرْدِيَتِنَا [۵] حَتَّى كَانَ آخِرُ إِمْرَةِ عُمَرَ فَجَلَدَ أَرْبَعِينَ [٦] حَتَّى إِذَا عَتَوْا وَفَسَقُوا جَلَدَ ثَمَانِينَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: [۱] حضرت سائب ابن يزيد وايي [۲] چې د رسول الله ﷺ په زمانه مبارکه کې، [۳] اود حضرت ابوبکر رضي الله عنه د خلافت په ورځو کې. او دحضرت عمر فاروق رضي الله عنه د خلافت په ابتدايي دور کې (دا معمول وو چي کله به يو شراب څکونکی راوستل شو) .[۴] نو مونږ به هغه په خپلو لاسونو. خپلو چپلو او خپلو څادرونو سره (يعني د څادرونو دوري جوړولو سره په هغه به مو وهلی، [۵] او حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د خپل خلافت په آخري دورکي څلويښت دوري سزا ورکول شروع کړه، [٦] ددي پورې چې کله د شراب څکونکو په تعداد کې اضافه شروع شوه، او سرکشي زياته شوه. نو حضرت عمر رضي الله عنه اتيا دوري سزا مقرره کړه. (بخاري)

**حل اللغات**: ①الشَّارِبِ: څکونکې، (شراب څکونکې) ②وَصَدر: ابتدائي دور ③أَرْدِيَتِـة: څادرونه ④آخِرُ إِمْرَةِ عُمَرَ: د عمر دخلافت آخرى دور ⑤عَتَوْا: نافرماني ئې زياته کړه ⑥فَسَقُوا: سرکشي ئې اوکړه

**تسهيلات: قوله: فَجَلَدَ أَرْبَعِينَ:**

**په دور فاروقي کښې په اتياؤ کوړو باندې اجماع**: لکه څنګه چه وړاندې ليکلې شوی دی چه دعهد نبوی نه واخله ترعهدصديقی پورې دَ حدخمر تعين نه وو بياچه په عهدفاروقی کښې کله دَشام او فارس ملکونه فتح شو اودَ مصرملك هم دَ مسلمانانو په قبضه کښې راغله نو نوی نوی خلق په اسلام کښې داخل شو څه په کښې بااثر وو څه ډير مالداران اوعيش پرست وو او دَ يوحد پورې دور هم دَ تابعينو وو په دې وجه دَ شرابو څکلو واقعات زيات شو

حضرت عمر رضي الله عنه دَ خپلې شورىٰ ارکـان راغونـډ کړل اودَ حـد خمر دَپـاره ئـې مـشوره اوغوښتله هغه وخت دَ شورىٰ يو ممبر حضرت علي رضي الله عنه اوفرمائيل شرابی چه کوم وخت شراب څکی نوهغه دَ نشې او مستئی په عالم کښې بهتان هم تړی اوکنځلې هم کوی اودَ کنځلودَپاره حدقذف اتيا کوړې په قرآن کښې مقرر دی نودَ شرابی دَپاره هم دغه اتيا کوړې متعين کول پکاردی په دې باندې دَ ټولو صحابه کرامو اجماع اوشوه اوتراوسه پورې دَ فقهاؤ په دې باندې اتفاق دې اودَ امام شافعی رحمه الله امام احمدبن حنبل رحمه الله او

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب الحدود /باب الضّرب بالجريد والنّعال (رقم-٦٧٧٩)

اهل ظواهر په نيز اصل حد څلويښت كوړې دي او نورې څلويښت په توګه دَ تعزير دي دَ امام ابوحنيفه رحمه الله امام مالك رحمه الله او نورو فقهاؤ په نيز حد خمر اتيا كوړې دي. شوافعو او حنابله دَحضرت انس رضي الله عنه دَ روايت نه استدلال كړې دې چه په هغې كښې دَ اتياؤ كوړو ذكر دې او دَ اجمال تفصيل دې بل دا حضرات دَ صحابه كرامو اجماع هم په توګه دَ دليل پيش كوى دَ دې دلائلو په مخكښې داحضرات دَ حضرت انس رضي الله عنه مجمل روايت جواب وركول ضروري نه ګڼړي. دَدې حضراتو دَ طرف نه بعضې حضرات وائى دَ نبى كريم په زمانه مباركه كښې چه كومې څلويښت كوړې لګولې شوې وې هلته دَ دوو چوكو دَ يوځائى كولو ذكر ملاويږي لهذا په عهد نبوى كښې هم دَ اتياؤ كوړو ثبوت ملاويږي. په نصب الرايه كښې ټول روايات نقل كړې شوې دي.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۳٦۱۷]په څلورم ځل د شرابو څكلو سزا

۳٦۱۷—[۳]()[۱]عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:[۲]«مَنْ شَرِبَ الْخَمْرَ فَاجْلِدُوهُ[۳]فَإِنْ عَادَ فِي الرَّابِعَةِ فَاقْتُلُوهُ[۴]قَالَ: ثُمَّ أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ ذٰلِكَ بِرَجُلٍ قَدْ شَرِبَ فِي الرَّابِعَةِ[۵]فَضَرَبَهُ وَلَمْ يَقْتُلْهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:**[۱] حضرت جابر رضي الله عنه د نبي كريم ﷺ نه نقل كوي چې حضور ﷺ وفرمايل[۲] كوم سړى چې شراب وڅكي هغه په دورو ووهى،[۳] او كوم سړى چې يې بار بار څكي. ددي پورې چې په څلورم ځل په څكلو ونيول شي، نو هغه قتل كړي،[۴] حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې دي ارشاد ګرامي نه وروسته د حضور ﷺ په خدمت كې يو سړى پيش كړل شو. چې هغه په څلورم ځل شراب څكلي وو،[۵] هغه يې ووهلى، خو قتل يې نه كړي (ترمذي)

۳٦۱۸—()[۱]وَرَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ عَنْ قَبِيصَةَ بْنِ ذُؤَيْبٍ.

**ترجمه:**[۱] ابوداود رحمه الله د قبيصه رضي الله عنه ابن ذؤيب نه نقل كړي دي

۳٦۱۹—()[۱]وَفِي أُخْرَى لَهُمَا وَلِلنَّسَائِيِّ وَابْنِ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيِّ[۲]عَنْ نَفَرٍ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُمُ ابْنُ عُمَرَ وَمُعَاوِيَةُ وَأَبُو هُرَيْرَةَ وَالشَّرِيدُ إِلَى قَوْلِهِ فَاقْتُلُوهُ.

[۱]) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الحدود عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء من شرب الخمر فاجلدوه، ومن عاد في الرّابعة فاقتلوه(رقم-۱٤٤٤)

[۲]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الحدود/باب إذا تتابع في شرب الخمر (رقم-٤٤٨٥)

[۳]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الحدود/باب إذا تتابع في شرب الخمر (رقم-٤٤٨٢)والترمذي في كتاب الحدود عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء من شرب الخمر فاجلدوه، ومن عاد في الرّابعة فاقتلوه(رقم-۱٤٤٤) و ابن ماجه في كتاب الحدود/باب من شرب الخمر مرارا (رقم-۲۵۷۳)

**ترجمه**: او د ترمذي او ابوداود په يو بل روايت کې او د نسائي ابن ماجه او دارمي په روايت کې[۲] چې هغوئ د رسول الله ﷺ د صحابه وو ﷺ د يو جماعت نه نقل کړي دي چې په هغوئ کې حضرت ابن عمر ﷺ حضرت معاويه ﷺ حضرت ابوهريره ﷺ او حضرت شريد ﷺ هم شامل دي. دا حديث د لفظ فاقتلوه پورې منقول دی، يعنی په دې روايتونو کې د ثُمّ اتي الخ عبارت نشته.

**حل اللغات**: ①وَالشَّرِيدُ: د يو صحابي ﷺ نوم دې.

**تسهيلات**: **قوله: فَاقْتُلُوْهُ**

**د شارب خمر د قتل عدم جواز**: ټول امت په دې باندې متفق دې چه دَ شرابو ځکونکې به په حد کښې نه شی قتل کولې سره دَدې چه هغه باربار شراب څکی اوکه دَوخت حاکم په توګه دَ تعزير سياست مصلحت لاندې قتل کول مناسب ګنړی نوداسې کولې شی مګر حداً داسې کول ناجائز دی ځکه چه اجماع صحابه ﷺ په عدم قتل باندې منعقد شوې ده بل په خپله دې روايت کښې دَترمذی ﷺ په حواله سره دا روايت دې چه يو سړې په څلورم ځل نبی کريم له راوستې شو نو نبی کريم "فضربه ولم يقتله" په کوړو اووهلو اوقتل ئې نه کړو معلومه شوه چه په قتل باندې عمل اونه شو. امام ترمذی ﷺ فرمائی زما په کتاب کښې دوه احاديث داسې دی په کوم چه امت عمل نه شی کولې يوهغه حديث په کوم کښې چه ذکر دی نبی کريم بغيردَ څه ويرې او دهشت اودَ څه مطر اوسفرنه بغيرپه مدينه کښې "جمع بين الصلوتين" کړی دی امام ترمذی ﷺ فرمائی او دويم حديث هم دا زيربحث حديث دې په کوم چه دَامت عمل نشته چه دَ څه عذر نه بغيردَ جمع بين الصلوتين ځنګه اوکړې شی اوشارب خمر کله قتل کړې شوې. باقی احناف "فاقتلوه" دَ روايت مختلف جوابونه ورکړی دی اول دا چه دَقتل نه مراد ضرب شديد دې واقعی وژل اوقتل کول مراد نه دی يا قتل سياسةً دې حد نه دې يا يو سړې شراب څکل حلال ګنړی

**[۳۶۲۰] د شرابي تحقير (سپکاوی)**

۳۶۲۰—[۳] (۱) [۱]وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْأَزْهَرِ قَالَ: [۲]«كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ أُتِيَ بِرَجُلٍ قَدْ شَرِبَ الْخَمْرَ [۳]فَقَالَ لِلنَّاسِ: اضْرِبُوهُ.[۴] فَمِنْهُمْ مَنْ ضَرَبَهُ بِالنِّعَالِ [۵] وَمِنْهُمْ مَنْ ضَرَبَهُ بِالْعَصَا [۶] وَمِنْهُمْ مَنْ ضَرَبَهُ بِالْمِيتَخَةِ.[۷] قَالَ ابْنُ وَهْبٍ: يَعْنِي الْجَرِيدَةَ الرَّطْبَةَ.[۸] ثُمَّ أَخَذَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُرَابًا مِنَ الْأَرْضِ [۹] فَرَمَى بِهِ فِي وَجْهِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت عبد الرحمن ﷺ ابن ازهر وايي [۲] چې ګويا هغه منظر اوس هم زما د سترګو په مخکې دی. چې يوه ورځ د رسول الله ﷺ په خدمت کې يو داسې سړی پېش

---

[۱] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الحدود/باب إذا تتابع في شرب الخمر (رقم-۴۴۸۹) واحمد في المسند: ۴/۸۸

کړل شو، چې هغه شراب څکلي وو .[۳] حضور ﷺ خلقو ته وفرمايل چې دا سړی ووهی، [۴] نو په هغه خلقو کې بعضو خو په چپلو ووهلی.[۵] بعضو په لرګو سره وهلی.[۶] او بعضو د کجورو په لښتو سره ووهلی.[۷] حضرت ابن وهب رحمه الله (چې د دې حديث راوي دی) وايي چې حضرت عبد الرحمن د ميتخه نه د خرما شنه لښته (چې په هغه پاڼې نه وي، يعنی لښته) مراد واخستي ده.[۸] بيا (حضرت عبد الرحمن رضي الله عنه بيان وکړي. هر کله چې ټولو خلقو هغه شرابي ووهلی، نو) حضور ﷺ د زمکې نه خاوره پورته کړه.[۹] او د هغه په مخ يې وويشتله (د هغه په مخ خاوره ويشتلو سره ګويا حضور ﷺ د هغه په حقله د حقارت (سپکاوی) اظهار وکړي، ځکه چې هغه د شراب څکلو سره يو ډير قبيح فعل کړي وو) ابوداؤد

**حل اللغات:** ① بِالْمِيتَخَةِ: دکجورو شنې لښتې ،څانګې. ② الْجَرِيدَةَ الرَّطْبَةَ: دکجورو شنې لښتې.

**تسهيلات:**

**د حديث د بعضې جملو وضاحت:**

① بِالنِّعَالِ: څپلو ته نعال وائی عصا چوکې او همساته وائی

② بِالْمِيتَخَةِ په ميم زيردې ياء باندې سکون دې اوتاء باندې زبر بيا خاء معجمه دې ملعقة په وزن باندې دې وړې چوکې ته وائی کومه چه شنه وی اوچه نه وی لکه چه راوی پخپله وضاحت فرمائيلې دې

③ أَخَذَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُرَابًا: خاوره دَهغه په مخ باندې ويشتل دَ زياتی تحقير او تذليل دَپاره وو دَ حد حصه نه وه (ليکن دَمحبوب دَلاس دغه خاوره که دَ مخ په خائی باندې په زړه لګيدلې نوبيابه په هغې کنبې به کومه مزه راتله)

**[۳٦۲۱] شرابی ته د بدعاء کولو نه مما نعت**

> ۳٦۲۱—[۵] ( )[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: «إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِرَجُلٍ قَدْ شَرِبَ[۲] فَقَالَ: اضْرِبُوهُ. فَمِنَّا الضَّارِبُ بِيَدِهِ وَالضَّارِبُ بِثَوْبِهِ وَالضَّارِبُ بِنَعْلِهِ[۳] ثُمَّ قَالَ: بَكِّتُوهُ. فَأَقْبَلُوا عَلَيْهِ يَقُولُونَ:[۵] مَا اتَّقَيْتَ اللهَ مَا خَشِيتَ اللهَ[٦] وَمَا اسْتَحْيَيْتَ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**ترجمه:**[۱] حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې (يوه ورځ) رسول الله ﷺ ته يو سړی راوستل شو چې هغه شراب څکلي وو .[۲] حضور ﷺ مونږ ته وفرمايل چې دی ووهی، نو په مونږ کې بعضو هغه په خپل لاسونو سره، بعضو په خپلو کپړو سره (يعنی د هغه دوره جوړولو سره،) او بعضو به په خپلو چپلو سره هغه وهلی.[۳] بيا حضور ﷺ وفرمايل اوس په ژبه سره د ده تنبيه وکړي، او عار ورکړي. نو خلق د هغه طرف ته متوجه شول. او هغه ته يې

[۱]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الحدود/باب الحدّ فی الخمر (رقم-۴۴۷۷)

وئيل شروع کړه،[۴] چې تا د الله ﷻ د مخالفت نه پرهيز ونه کړي،[۵] نه د خداى پاك نه ونه ويرېدلى، [۶] او نه د رسول الله ﷺ متابعت ترك كولو سره، يا په دي حالت کې د هغه مخې ته راتلو نه هم ونه شرمېدلى،

**حل اللغات:** ①بَكِّتُوهُ: دَ باب تفعيل تبكيت نه، هغه ته ئې زجر اوتوبيخ وركړو ،هغه ئې شرمنده كړل ②مَا اتَّقَيْتَ: ته نه يريږې

[۱]قَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ: أَخْزَاكَ اللَّهُ،[۲]قَالَ: لَا تَقُولُوا هَكَذَا،[۳]لَا تُعِينُوا عَلَيْهِ الشَّيْطَانَ[۴]وَلَكِنْ قُولُوا اللَّهُمَّ اغْفِرْ لَهُ اللَّهُمَّ ارْحَمْهُ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:**[۱] او بيا چې بعضو خلقو دا اوويل چې الله ﷻ دي تا (په دنيا او آخرت دواړه خايه يا په آخرت کې) ذليل او رسوا کړي،[۲] نو حضور ﷺ وفرمايل چې داسې مه وايئ. [۳] او په ده د شيطان په غالب كيدو کې مدد مه كوى،[۴] بلكه داسې وايئ چې اي الله ﷻ (د ده گناه رژولو سره) دى وبخښي، او (ده ته د طاعت او نيكي توفيق وركولو سره) په ده رحم وكړي،دي په دنيا کې وبخښي،اوپه عاقبت کې په ده خپله رحم وكړي، (ابوداود)

**حل اللغات:**③أَخْزَاكَ: اودې شرموى تالره.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَالضَّارِبُ بِثَوْبِهِ:

**د مذكوره جملې مطلب:** دَدې مطلب دادې لكه چه څادر دَ رسئى په شان راتاؤكړى او دَهغې نه كوړه شان جوړه كړى او په هغې باندې اووهى دا په كلوكښې معروف طريقه ده

**قوله:** أَخْزَاكَ اللَّهُ:

**په مذكوره جملې سره د خيرو عدم جواز:** دَدې بددعاتعلق چونكه عالم آخرت سره وو اودَ آخرت رسوائى خو دوزخ ته په تلوكښې كيږى په دې وجه نبى كريم منع اوفرمائيله چه داخودَ شيطان خواهش دې چه مسلمان دې دوزخ ته لاړشي نو په داسې بددعاسره دَ شيطان په منصوبه كښې دَهغه امدادمه كوئى.

**[۳۶۲۲]د ثبوت جرم څخه بغير د حد د جارى كولو عدم جواز**

۳۶۲۲-[۲]( )[۱]وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: «شَرِبَ رَجُلٌ فَسَكِرَ[۲]فَلُقِيَ يَمِيلُ فِي الْفَجِّ[۳]فَانْطُلِقَ بِهِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[۴]فَلَمَّا حَاذَى دَارَ الْعَبَّاسِ انْفَلَتَ[۵]فَدَخَلَ عَلَى الْعَبَّاسِ فَالْتَزَمَهُ،[۶]فَذُكِرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَضَحِكَ[۷]وَقَالَ: أَفَعَلَهَا، وَلَمْ يَأْمُرْ فِيهَا بِشَيْءٍ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې يو سړي شراب وڅکل او مست شو،[۲] ددي پوري چې خلقو په لار کې په دي حال کې وموندلى، چې هغه تالى وهلو سره تلى

[۱]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الحدود /باب الحدّ في الخمر (رقم-۴۴۷۶)

(خکه چې د شرابیانو عادت وي، چې په نشه او ذلت کې تالي وهلو سره په لار ځي)٣ نو خلقو هغه ونیولی چې د رسول الله ﷺ په خدمت کې یې پیش کړي، ٤ لیکن څه وخت چې د حضرت عباس رضي الله عنه مکان ته نزدې ورسیدلی، نو د خلقو د لاس نه کولاؤ شو، ٥ او حضرت عباس رضي الله عنه ته په رسیدو سره د هغه سره یې ځان ومنښلوي (یعني هغه داسې د حضرت عباس رضي الله عنه نه سفارش او پناه وغوښتله)٦ هر کله چې نبي کریم ﷺ ته دا بیان وشو، نو حضور ﷺ وخندل، ٧ او وي فرمایل چې آیا هغه داسې وکړل؟، نو بیا حضور ﷺ د هغه په باره کې هیڅ حکم ونه کړي، (ابوداود)

**حل اللغات:** ① فَسَكِرَ: نشه شو، مست شو، ② يَمِيلُ فِي الْفَجِّ: په تلو کښې نې تالئ وهلې. ③ فَانْطَلِقَ: بوتللې شو، روان کړې شو ④ حَاذَى: دَ محاذات نه دې، برابر شو، نزدې شو، ⑤ انْفَلَتَ: خلاص شو، ⑥ فَالْتَزَمَهُ: هغه پورې ونختلو (دخلاصولو سفارش غوښتلو دپاره)

**تسهيلات:**

**د حديث د بعضې جملو وضاحت:**

① **فَلُقِيَ**: دادَ مجهول صیغه ده یعنی په کوڅه کښې دَ نشې په حالت کښې اوموندلې شو الفج دَدوو غرونو مینځ کښې کولاؤ لارې ته فج وائی دلته کولاؤ او ارته کوڅه مراد ده

② **فَالْتَزَمَهُ**: یعنی هغه سړې حضرت عباس رضي الله عنه پورې اونختلو او دَ سفارش او بچ کولو دپاره هغه پورې اینختې وو.

③ **فَذُكِرَ**: داهم دَ مجهول صیغه ده یعنی دَ نبی کریم مخې ته دَ دغه عجیبه واقعې ذکر اوکړې شو

④ **فَضَحِكَ**: نبی کریم دَ حیرانتیادَ وجې نه په خنداشو معلومه شوه چه حیرانونکې خبره باندې خندل مباح دی.

⑤ **أَفَعَلَهَا**: دلته همزه دَ استفهام دَپاره دې اواستفهام تعجبی دې یعنی بنه هغه واقعی داسې اوکړل؟

**قوله**: «وَلَمْ يَأْمُرْ فِيهَا بِشَيْءٍ»:

**د حدله قائلولو حکم:** یعنی دَ حدلګولو حکم ئی ورنه کړوپه دې وجه دَهغه سړی دَ طرف نه اقرار هم نه وو اود شرابو څکلوځوك ګواه هم نه وو صرف په کوڅه کښې په تالئی وهلوسره چا لیدلې وو نودادَ شرعی حد دَ ثبوت دَپاره کافی هم نه وو بل دا چه دغه وخت نه سکر وو نه دَ شرابو څکلو څه بدبوئی وه په دې وجه حد اونه لګیدلو. دَدې نه هم معلومه شوه او وړاندې دَ حضرت علی رضي الله عنه یوروایت هم راروان دې دَ کوم نه چه اندازه لګیدلې شي چه په اسلامی حدودو کښې دَ شرابو حد دَ ټولونه آسان او سپك حد دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [٣٦٢٣] په حد کښې محدود د مرګ په صورت کښې عدم دیت

٣٦٢٣-[٤] (١) عَنْ عُمَيْرِ بْنِ سَعِيدٍ النَّخَعِيِّ قَالَ: سَمِعْتُ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ يَقُولُ: ٢ مَا كُنْتُ لِأُقِيمَ عَلَى أَحَدٍ حَدًّا فَيَمُوتَ ٣ فَأَجِدَ فِي نَفْسِي مِنْهُ شَيْئًا إِلَّا صَاحِبَ الْخَمْرِ؛ ٤ فَإِنَّهُ لَوْ مَاتَ وَدَيْتُهُ ٥ وَذَلِكَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَسُنَّهُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ حضرت عمير ابن سعيد نخعي وايي چې ما د حضرت علي ابن ابي طالب كرم الله وجهه نه دا واوريدل ٢ كه زه په يو سړي حد جاري كړم، او هغه سړى (د حد جاري كولو په وجه) مړ شي، ٣ نو په مابه د دې هيڅ اثر نه وي (يعني زما سره به هيڅ غم نه وي. ځكه چې په هغه حد جاري كول د شريعت د حكم مطابق دى، او د شريعت د حكم په نفاذ كې د رحم او شفقت هيڅ محل نشته هو د شراب څكونكي خبره بله ده، ٤ كه هغه د ځلويښتو دورو نه د زياتو دورو وهلو په وجه مړ شي، نو زه به د هغه ديت وركوم. ٥ او د هغه وجه دا ده چې نبي كريم ﷺ د شراب څكلو حد (سزا) نه ده مقرره كړي (يعنى دا تعين يې نه دى كړى چې دومره يې ووهى) بخاري مسلم.

**حل اللغات:** ١ وَدَيْتُهُ: زه به ئې ديت، خون بها وركوم. ٢ لَمْ يَسُنَّهُ: نه ئې دې مقرر كړې

**تسهيلات:**

**د حديث د بعضې جملو وضاحت:**

١ **فَأَجِدَ فِي نَفْسِي:** يعنى كه په حد لګولو سره څوك مړشى نوزه به په زړه كښې دا نه محسوس كوم چه دازما دَطرف نه زياتې شوې ځكه چه هغه دَ اسلامى حد په زد كښې راغلې دې

٢ **وديته:** دا جمله دَحضرت على ﷺ دَطرف نه دَ احتياط په توګه هم ده اودې طرف ته اشاره هم ده چه حد خمر په نورو حدودو كښې نرم حد دې. دَدې مطلب دانه دې چه دا حد نه دې پخپله دَحضرت على ﷺ دَ فيصلې مطابق حضرت عمر ﷺ دَ ټولو صحابه كرامو ﷺ په موجودګئ كښې دَ اتياؤ كوړو سزا مقرركړې وه په كوم چه دَصحابه كرامو اجماع اوشوه.

٣ **لم يسنه:** دَدې مطلب دادې چه نبى كريم تعين نه وو فرمائيل حد خوئى لګولې وو مګرطريقې مختلف وې په دې كښې دوه بناخيزه چوكه ده. څلويښت كوړې هم وهلى دى چه دَ اتياؤ كوړو ثبوت وركوى. بل د خلفاء راشدين فيصله ده اودَ صحابه كرامو اجماع ده نو په دې كښې دَ شك ګنجائش نشته دې.

---

[١] ) اخرجه مسلم فى كتاب الحدود/باب حدّ الخمر (رقم-٣٩ - (١٧٠٧) والبخارى فى كتاب الحدود/باب الضّرب بالجريد والنّعال (رقم-٦٧٧٨)

**[۳٦۲٤] د عمر رضي الله عنه د طرفه د شراب څښلو د سزا تعين**

[۸] ()[۱] وَعَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدٍ الدِّيْلِيِّ قَالَ: [۲] إِنَّ عُمَرَ اسْتَشَارَ فِي حَدِّ الْخَمْرِ فَقَالَ لَهُ عَلِيٌّ: [۳] أَرَى أَنْ تَجْلِدَهُ ثَمَانِينَ جَلْدَةً; [٤] فَإِنَّهُ إِذَا شَرِبَ سَكِرَ [٥] وَإِذَا سَكِرَ هَذَى [٦] وَإِذَا هَذَى افْتَرَى [۷] فَجَلَدَ عُمَرُ فِي حَدِّ الْخَمْرِ ثَمَانِينَ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ثور ابن زيد ديلمي وايي [۲] چې حضرت عمر رضي الله عنه د شرابو د حد (سزا) مقررولو په باره کې د صحابه ؤ رضي الله عنهم سره مشوره وکړه، نو حضرت علي رضي الله عنه هغه ته وفرمايل [۳] چې زما رايه دا ده چې شرابي دي اتيا دوري ووهل شي. [٤] ځکه چې هغه شراب وڅکي نو مست شي. [٥] او چې مست شی نو اوتي بوتي وايي. [٦] او هرکله چې اوتی بوتي وايي نو بهتان لګوي. [۷] نو حضرت عمر رضي الله عنه حکم جاري کړي چې شرابي دي اتيا دوري وهل کيږي. (مالك)

**حل اللغات:** ① اِسْتَشَارَ: مشوره ئې وغوښتله ② هَذَي: ګډې وډې خبرې کول. اوتې بوتې بکواس وئيل ③ افْتَرَى: دروغ ئې اووئيل.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ عُمَرَ اسْتَشَارَ فِي حَدِّ الْخَمْرِ:

**د شرابو دحد باره کښې د صحابو مشوره:** حضرت علی رضي الله عنه ډيره کلکه خبره اوکړه اود ډيرو قواعدومخې ته کيخودوسره ئی بهترين قياس اوکړو چونکه په اسلام کښې د حدقذف ذکر په واضحه توګه قرآن کښې موجود دې اودې وجه په پاکوبيبيانوباندی بهتان تړل دی نوچه چرته هم داسې صورت پيښ شی دهغې حکم به هم د قذف وی او چونکه شرابی بې عقل کيږی او برړيدوسره کنځلې کوی او اکثر په پاکو بيبيانوباندې بهتان لګوی اود بهتان سزا اتيا (۸۰) کوړې دی لهذا د شرابوهم اتيا کوړې کيدل پکاردی

د حضرت علی رضي الله عنه دا فيصله اغلبی اواکثری حالات باندې مبنی ده چه اکثر شرابيان هم دغه شان کوی لهذا د ټولو هم دغه حکم دې صحابه کرامو رضي الله عنهم خوښولوسره اتفاق اوکړو نو اجماع شوه

() اخرجه مالک فی الموطا رقم الحديث ۲ من کتاب الاشربه

# [۴] بَابُ مَا لَا يُدْعَى عَلَى الْمَحْدُودِ

## محدود (چه په چا حد جاری شی هغه) ته د خیرو نه کولو بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه خمسة أحاديث مشتملة على ثلاث مسائل:**

① عدم جواز اللعن على المحدود: ۱، ۲.

② عدم جواز غيبة المحدود: ۳.

③ كون الحد كفارة الذنب وهذا علة للحكمين الأولين: ۴، ۵.

تنبیه: په یوه نسخه کښې د باب په لفظ باندې تنوین دې او د مالفظ نشته دې. مطلب دا چه دا یو داسې باب دې په کوم کښې چه دا بیان دې چه په حد کښې مضروب سړی ته خیرې مه کوئی مثلاً چه په چا باندې حد جاری شی او یو مسلمان سړې د دغه مضروب باره کښې او وائی چه اخزاك الله یا دا او وائی چه په هغه باندې د سپی په شان کانړی اووریدل نود دې خیزونو ممانعت راغلې دې.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [۳۶۲۵] په ګناهګار د لعنت ویلو عدم جواز

۳۶۲۵-[۱] ([۱]) ①عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ «أَنَّ رَجُلًا اسْمُهُ عَبْدُ اللّٰهِ يُلَقَّبُ حِمَارًا كَانَ يُضْحِكُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ②وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ جَلَدَهُ فِي الشَّرَابِ ③فَأُتِيَ بِهِ يَوْمًا فَأَمَرَ بِهِ فَجُلِدَ ④فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ: ⑤اللّٰهُمَّ الْعَنْهُ مَا أَكْثَرَ مَا يُؤْتَى بِهِ. ⑥فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَلْعَنُوهُ ⑦فَوَاللّٰهِ مَا عَلِمْتُ أَنَّهُ يُحِبُّ اللّٰهَ وَرَسُولَهُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①حضرت عمر رضي الله عنه فرمایي چې یو سړی وو چې د هغه نوم خو عبدالله وو، خو (په دې وجه چې هغه ډیر ټوقی وو، هغه ته به یې حمار (یعني خر) ویلی، هغه به (خپل ټوقی آمیز خبرو سره) نبي کریم ﷺ خندولی. ②نبي کریم ﷺ یو ځل په هغه د شرابو د څکلو په جرم کې حد جاري کړې وو. ③بیا هغه به یوه بله ورځ د حضور ﷺ په خدمت کې پیش کړل شو. حضور ﷺ د هغه په دورو د وهلو حکم وکړي، نو هغه په دورو ووهل شو. ④په حاضرینو د مجلس کې یو سړي اوویل ⑤چې اې الله! ﷻ په ده دې ستا لعنت وي، دی څومره ځله بار بار د شراب د څکلو په جرم کې نیولی راوستل شو. ⑥نو حضور ﷺ وفرمایل چې په ده لعنت مه کوه. ⑦قسم په خدای هغه خبره چې زه په پوهیږم، دا سړی د

[۱]) اخرجه البخاري في كتاب الحدود/باب ما يكره من لعن شارب الخمر، وإنّه ليس بخارج من الملّة (رقم- ۶۷۸۰)

الله ﷻ او د هغه د رسول (ﷺ) سره محبت کوي، (بخاري)

**حل اللغات:** ①مُلَقَّبٌ: لقب (د خپل نوم نه بغير په بل نوم مشهور کيدل) ②حِمَار: خر.

**تسهيلات:**

**قوله: مَا أَكْثَرَ مَا يُؤْتَى بِهِ:** اولنى ما تعجبيه دې ، دويم ما مصدريه دې.

**قوله: لَا تَلْعَنُوهُ:** چا باندې لعنت مه وائې ، ددې تفصيل دادې چې چا باندې لعنت ليږى نو هغه ته به کتلې شى چې هغه ددې لعنت مستحق دې که نه ، که ددې لعنت مستحق وى نو په هغه به لعنت اوشى ، او که د لعنت مستحق نه وى نو هغه لعنتبه به لعنت ليږونکى ته واپس راشى اوس د لعنت مستحق هغه خلق دى کومو ته چې قرآن او احاديثو کښې ملعون وئيلې شوى دى او هغه کفار ، فساق او منافقان وغيره دى.

**[۳۳۳] گناهګار ته د خيرو کولو ممانعت**

۳۳۳—[۲] (١)①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: «أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرَجُلٍ قَدْ شَرِبَ ②فَقَالَ: اضْرِبُوهُ فَمِنَّا الضَّارِبُ بِيَدِهِ ③وَالضَّارِبُ بِنَعْلِهِ وَالضَّارِبُ بِثَوْبِهِ ④فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ: أَخْزَاكَ اللّٰهُ ⑤قَالَ: لَا تَقُولُوا هٰكَذَا لَا تُعِينُوا عَلَيْهِ الشَّيْطَانَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې (يوه ورځ) د نبي کريم ﷺ په خدمت کې يو سړى پيش کړل شو ، چې هغه شراب څکلي وو ، ② حضور ﷺ وفرمايل چې دى ووهى. نو په مونږ کې بعضو هغه په لاس سره ووهلى ، ③ بعضو په خپلو چپلو سره ووهلى او بعضو د خپلو کپړو (دوره جوړولو سره) ووهلى ، ④ کوم وخت چې هغه سړي واپس تللى ، نو بعضو خلقو اوويل چې الله ﷻ دې تا ذليل او رسوا کړي ، ⑤ حضور ﷺ (د دې اوريدو سره) وفرمايل چې داسې مه وايئ ، او په ده د شيطان غالب کيدو کې مدد مه کوى. (بخاري)

**حل اللغات:** ①أَخْزَاكَ اللّٰهُ: الله دې تا اوشرموى ، ذليل او رسوا شې

**تسهيلات:**

**قوله: قَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ: أَخْزَاكَ اللّٰهُ:**

**محدود ته د کنځلو کولو ممانعت:**

ددې حديث څخه معلومه شوه چې يو کس څه جرم اوکړى او د هغې په وجه هغه باندې حد قائمولې شى نو هغه ته بدرد وئيل او کنځلې کولو حرام دى ځکه چې انسان سره نفس او شيطان وى بعضې وخت کښې هغه د دوى په ګرفت کښې راشى او ګناه ترې اوشى غوره مسلمان هغه دې چې ګناه ترې اوشى نو توبه اوباسى.

(١) اخرجه البخاري في كتاب الحدود/باب الضرب بالجريد والنعال (رقم-٦٧٧٧)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۳۶۲۷] د محدود بې عزتي د مردارې خوړلو سره ترادف

۳۶۲۷–[۳] (¹) ۱ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: «جَاءَ الْأَسْلَمِيُّ إِلَى نَبِيِّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ۲ فَشَهِدَ عَلَى نَفْسِهِ أَنَّهُ أَصَابَ امْرَأَةً حَرَامًا أَرْبَعَ مَرَّاتٍ ۳ كُلَّ ذٰلِكَ يُعْرِضُ عَنْهُ ۴ فَأَقْبَلَ فِي الْخَامِسَةِ فَقَالَ: أَنِكْتَهَا؟ قَالَ: نَعَمْ. ۵ قَالَ: حَتّٰى غَابَ ذٰلِكَ مِنْكَ فِي ذٰلِكَ مِنْهَا؟ قَالَ: نَعَمْ. ۶ قَالَ: كَمَا يَغِيبُ الْمِرْوَدُ فِي الْمُكْحُلَةِ وَالرِّشَاءُ فِي الْبِئْرِ؟ قَالَ: نَعَمْ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي چې ماعز اسلمي رضي الله عنه د نبي كريم ﷺ په خدمت كې حاضرشو، ۲ او په خپل باره كې ځلور ځله يعنې په ځلورو مجلسونو كې دا شاهدي وركړه (يعني دا اقرار يې وكړې) چې هغه د يوې ښځې سره د زنا په طريقه جماع كړېده. ۳ او حضور ﷺ به هر ځل (د هغه په اقرار كولو) خپل مخ مبارك څني ګرځولي (چې هغه د خپل اقرار نه رجوع وكړي او د حد نه وساتل شي) ۴ او په پنځم ځل د هغه طرف ته متوجه كيدو سره يې وفرمايل چې آيا د هغې ښځې سره دې صحبت كړې دی؟ هغه اوويل چې هو. ۵ حضور ﷺ ورته وفرمايل چې آيا تا داسې صحبت كړې دی. چې هغه (يعني ستا عضو مخصوص) د هغې (ښځې په حصهٔ مخصوص كې) غائب شو؟ هغه اوويل چې هو. ۶ حضور ﷺ وفرمايل چې (آيا داشې) څنګه چې سلايي په سرمه داني (رانجه نونې) كې او رسی په كوهي كې غائبه كيږي؟ هغه اوويل چې هو،

**حل اللغات:** ① يُعْرِضُ: اعراض به ئې كولو، مخ به ئې اړولو. ② أَنِكْتَهَا؟: آيا تا جماع كړې ده هغې سره. ③ غَابَ ذٰلِكَ مِنْكَ: چه غائب شوې وی ستا دا (دسړی خاص اندام) ④ فِي ذٰلِكَ مِنْهَا: دهغې په هغې كښې (دښځې خاص اندام) ⑤ الْمِرْوَدُ: سلائی د رانجو. ⑥ الْمُكْحُلَةِ: رنجړومه. د رانجو كسوړئ. ⑦ الرِّشَاءُ: رسئ.

۱ قَالَ: هَلْ تَدْرِي مَا الزِّنَا؟ قَالَ: نَعَمْ ۲ أَتَيْتُ مِنْهَا حَرَامًا مَا يَأْتِي الرَّجُلُ مِنْ أَهْلِهِ حَلَالًا ۳ قَالَ: فَمَا تُرِيدُ بِهٰذَا الْقَوْلِ؟ ۴ قَالَ: أُرِيدُ أَنْ تُطَهِّرَنِي، ۵ فَأَمَرَ بِهِ فَرُجِمَ، ۶ فَسَمِعَ نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلَيْنِ مِنَ أَصْحَابِهِ يَقُولُ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ: ۷ انْظُرْ إِلَى هٰذَا الَّذِي سَتَرَ اللّٰهُ عَلَيْهِ فَلَمْ تَدَعْهُ نَفْسُهُ ۸ حَتّٰى رُجِمَ رَجْمَ الْكَلْبِ، فَسَكَتَ عَنْهُمَا،

**ترجمه:** ۱ حضور ﷺ ورته وفرمايل چې آيا ته پوهيږې چې زنا څه ته وايي؟ هغه اوويل چې هو ۲، ما د هغې ښځې سره په حرام طور سره هغه كار كړې دی، كوم چې يو سړی يې د خپلې ښځې سره په حلال طور سره كوي، ۳ حضور ﷺ ورته وفرمايل څه چې تا ويلي دي د دې نه ستا مقصد څه دی؟ ۴ هغه اوويل چې زه دا غواړم چې ته ﷺ (په ما حد

¹) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الترجّل /باب فى كف اللّسان (رقم-۴۲۶۶)

جاري كولو سره) ما د دې ګناه نه پاك كړي (د دومره جرم كولو نه وروسته د هغه د زنا جرم بالكل ثابت شو )[٥] (نو) حضور ﷺ د هغه د سنګساری حكم جاري كړي، او هغه سنګسـار كړل شو.[٦] بيا نبي كريم ﷺ په خپلو صحابه وُ ﷺ كې د دوو سړو نه واوريدل چې په هغوئ كې يو خپل ملګري ته وئيل[٧] چې دي سړي ته وګوره، الله ﷻ د ده پرده پوشي كړي وه، ليكن د ده نفس دي د خپلي ګناه د اقرار نه منع نه كړي.[٨] د دي پوري چې دی د يو سپي په شان شنګسـار كړل شو، د دې اوريدو سره حضور ﷺ هغه وخت هغه دواړو ته څه ونه ويل،

**حل اللغات:** ⑧فَلَمْ تَدَعْهُ: پرې نه خودلو، ⑨رَجْمَ الْكَلْبِ: په شان د ويشتلو دسپی. لكه څنګه چه سپې ويشتلې شي،

| |
|---|
| [١] ثُمَّ سَارَ سَاعَةً حَتَّى مَرَّ بِجِيفَةِ حِمَارٍ شَائِلٍ بِرِجْلِهِ[٢] فَقَالَ: أَيْنَ فُلَانٌ وَفُلَانٌ؟ قَالَا: نَحْنُ ذَانِ يَا رَسُولَ اللَّهِ[٣] فَقَالَ: انْزِلَا فَكُلَا مِنْ جِيفَةِ الْحِمَارِ[٤] فَقَالَا: يَا نَبِيَّ اللَّهِ مَنْ يَأْكُلُ مِنْ هَذَا؟[٥] قَالَ: فَمَا نِلْتُمَا مِنْ عِرْضِ أَخِيكُمَا آنِفًا أَشَدُّ مِنْ أَكْلٍ مِنْهُ[٦] وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ[٧] إِنَّهُ الْآنَ لَفِي أَنْهَارِ الْجَنَّةِ يَنْغَمِسُ فِيهَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. |

**ترجمه:**[١] البته تر څه وخته پورې د تلو نه وروسته د يو مړه خره سره نزدي تير شو چې د هغه پښې (د هغه بدن د ډير زيات پړسيدو په سبب) اوچت شوي وي.[٢] نو حضور ﷺ پوښتنه وكړه چې فلانی فلانی (يعني هغه دوه) سړي چرته دي؟ چې هغوئ د ماعز ﷺ په دي وجه تحقير (سپكاوی) كړي وو، چې هغه سنګسار شوی وو، هغوئ عرض اوكړو چې يا رسول الله! ﷺ مونږ دواړه حاضر يو.[٣] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې تاسو دواړه راخكته شی. او د دې خره مرداره غوښه وخوري.[٤] هغوئ (په ډيره حيرانتيا سره) عرض اوكړو چې يا رسول الله! ﷺ د دی غوښه څوك خوری (يعني د دې غوښه خو د خوراك قابله نه ده. تاسو د دې د خوراك د پاره مونږ ته څنګه فرماياست؟)[٥] حضور ﷺ ورته وفرمايل تاسو چې اوس دخپل وروركومه بي عزتي كړي ده،هغه د دې مردار خره د غوښو د خوړلو نه هم زياته خرابه خبره ده.[٦] قسم دی په هغه ذات چې د هغه په لاس كې زما ساه ده.[٧] بيشكه هغه (يعني ماعز ﷺ) اوس د جنت په نهرونو كې غوتې وهی. (ابوداود)

**حل اللغات:** ⑩بِجِيفَةِ حِمَارٍ: مُردار خر، ⑪شَائِلٍ بِرِجْلِهِ: خپې ئې اوچتې وې، ⑫نَحْنُ ذَانِ: مونږه دا يو، ⑬فَمَا نِلْتُمَا: كوم ته چه تاسو رسيدلی وئ، تاسو چه اوس كوم كار كړې دې ⑭عِرْضِ: بې عزتی، ⑮آنِفًا: اوس، ⑯يَنْغَمِسُ: غوپې وهی، غوتې وهی

**تسهيلات:**

**قوله:** مَرَّ بِجِيفَةِ حِمَارٍ شَائِلٍ بِرِجْلِهِ:

**د شائل د لفظ تفسير:** څناور چه كله مړشی اومردار پروت وی نو هغه اوپړسيږی اودهغه خپې پورته طرف ته اوچتې شی هم دې ته شائل وائی.

**[۳۳۸] د لیاوی حد د ګناه دپاره کفاره ګرځیدل**

۳۳۸ ـ [۴] ()۱ وَعَنْ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ «مَنْ أَصَابَ ذَنْبًا أُقِيمَ عَلَيْهِ حَدُّ ذَلِكَ الذَّنْبِ فَهُوَ كَفَّارَتُهُ». رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه**: ۱ او حضرت خزیمه ﷺ ابن ثابت وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ کوم سړی چې یوه داسې ګناه وکړي چې حد واجب کونکی وي، او بیا په هغه د هغه ګناه حد جاري شي (یعني مثلًا یو سړي زنا وکړه او هغه په دورو ووهل شو ، او یا یو سړي غلا وکړه او د هغه لاس پرې شو) نو هغه حد د هغه ګناه کفاره ده (یعني د حد جاري کیدو نه وروسته هغه سړي د هغه ګناه نه پاك شي) شرح السنة.

**تسهیلات**: **قوله**: فَهُوَ كَفَّارَتُهُ:

**د حدودو کفارات کیدو کښې ۲ مذاهب**:

① د حضرت امام شافعي ﷫ په نزد حدود کفاره دی ، حد لګیدو نه پس مجرم دواړو جهانونو کښې د جرم نه پاك شي.

② د حضرت امام ابوحنیفه ﷫ په نزد حدود کفاره نه دی بلکه زواجر دی چې مجرم بیا دپاره داسې فعل او حرکت اونه کړی .

**داول فریق دلیل**: زیربحث حدیث د دوی مستدل دې ځکه چې په دې کښې ورته کفاره وئیلې شوې ده یعنی د حد نفاذ د ده د ګناه دپاره کفاره شوه.

**داول فریق د دلیل دوه جوابونه**: ① دلته یو قید محذوف دې (فهوکفارته إذا تاب)

② عام طور حد نافذ کیدو سره د توبې توفیق ملاویږی ، خاص کر د صحابه کرامو په دور کښې به داسې وو. دا مسئله په اول جلد کښې تیره شوې ده.

**د دویم فریق دلائل**: ① د غل په سزا کښې (وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوا أَيْدِيَهُمَا............ فَمَنْ تَابَ مِنْ بَعْدِ ظُلْمِهِ) فرمائیلې شوی دی. ددې نه معلومیږی چې د حدودو نه پس د توبې ضرورت هم شته دې که حدود کفارهٔ سیئات وې نو دلاس پرکولو نه پس بهٔ د توبې ضرورت نه وو.

② (وَالَّذَانِ يَأْتِيَانِهَا مِنْكُمْ فَآذُوهُمَا فَإِنْ تَابَا) دلته هم د توبې ذکر دې.

③ (إِنَّمَا جَزَاءُ الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللهَ وَرَسُولَهُ ........ إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا إلخ) په دې کښې هم د سزا نه پس د توبې ذکر دې.

---

[1]) اخرجه احمد فی المسند: ۲۱۵/۵

⑩ يو حديث پاك كښې راځي چې نبي كريم ﷺ په يو كس باندې حد جاري كړو او دې نه پس نبي كريم اوفرمائيل چې (قل أستغفرالله وأتوب إليه) ددې دلائلونه معلوميږي چې حدود كفارات نه دي بلكه زواجر دي. او حدودو نه پس د توبې ضرورت باقي وي.

**[۳۶۲۹] په حد قائم شوي جرم باندې په آخرت كښې عدم سزا**

٣٦٢٩—[٥] ()① وَعَنْ عَلِيٍّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ②«مَنْ أَصَابَ حَدًّا فَعُجِّلَ عُقُوبَتَهُ فِي الدُّنْيَا ③ فَاللهُ أَعْدَلُ مِنْ أَنْ يُثَنِّيَ عَلَى عَبْدِهِ الْعُقُوبَةَ فِي الْآخِرَةِ، ④ وَمَنْ أَصَابَ حَدًّا فَسَتَرَهُ اللهُ وَعَفَا عَنْهُ ⑤ فَاللهُ أَكْرَمُ مِنْ أَنْ يَعُودَ فِي شَيْءٍ قَدْ عَفَا عَنْهُ». ⑥ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت علي كرم الله وجهه د نبي كريم ﷺ نه نقل كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② كوم سړى چې د حد سزا وار وي (يعني يوه داسې گناه وكړي. چې په هغه حد مقرر دې) او بيا په دې دنيا كې هغه ته د هغه سزا وركول شوه (يعني په هغه هغه حد جاري كړل شو، يا تعزير يعني يوه بله سزا وركول شوه)③ نو په آخرت كې به هغه ته د هغه گناه څه سزا نشي وركولى، ځكه چې دا د الله ﷻ د شانِ عدل نه بعيده (ليرې) ده. چې هغه په آخرت كې خپل بنده ته دوباره سزا وركړي،④ او كوم سړي چې د يو حد (يعني د گناه مرتكب شي) او الله ﷻ د هغه هغه گناه پټه كړه، او هغه يې معاف كړي.⑤ نو د الله ﷻ د شانِ كريمي نه دا بعيده ده چې د هغه په هغه څيز دوباره مواخذه (نيوكه) وكړي، كوم چې هغه معاف كړي دى،⑥ (ترمذي ابن ماجه) او ترمذي ﷫ ويلي دي چې دا حديث غريب دى.

**حل اللغات:** ①أَنْ يُثَنِّيَ: چه دوباره وركړى. مكرر كړى،

**تسهيلات:**

**قوله: مَنْ أَصَابَ حَدًّا فَعُجِّلَ عُقُوبَتَهُ فِي الدُّنْيَا:**

**حدود د آخرت د سزا دپاره د كفاره كيدو كښې اختلاف:** دَ پورته ذكر شوو دوارو احاديثو نه يوه خبره په واضحه توگه معلوميږي چه په دنياكښې دَ حد په ذريعه سره دَ سزا تيرولونه پس به په آخرت كښې دا سړي دَ سزا نه بچ شي ددې مضمون احاديث ډيرزيات دي اودَ حدود كفارات كيدو كښې يا زاجرات كيدو كښې دَ فقهاؤ اختلاف هم دې. مادَ دې تفصيل په جلد اول كښې هم كړې دې كه په حقيقت باندې نظر واچولې شى نودَ فقهاؤ دا اختلاف دومره ژورنه دې. احناف فرمائى كه دَ گناه مرتكب دَ حد دَ سزا سره په ژبه سره توبه او استغفار اوكړى نوبيا حدود مطهرات اومكفرات دى اوبنكاره خبره ده

[1] ) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الإيمان عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء لا يزنى الزّانى وهو مؤمن (رقم-۲۶۲۶) و ابن ماجه فى كتاب الحدود/باب «الحدّ كفّارة» (رقم-۲۶۰۴) واحمد فى المسند: ۹۹/۱

چه څوك به داسې سرې وی چه دومره لویه سزا خوړلو په وخت کښې به دَ خلې نه توبه اونه کړی. نودَدې ټولو احادیثو مطلب دَ احناف په نیز داشو چه حدود بشرط توبه مکفرات ومطهرات دی. په دې حدیث کښې دویمه خبره دا معلومه شوه چه کله الله تعالی دَخپل طرف نه په یوه ګناه باندې پرده اچوی نوبنده له هم پکار دی چه دَ خپلې ګناه پخپله تشهیر نه کوی. په دې کښې یوخودَ ګناه تشهیر دې کوم چه منع دې اودویم دَ نفس توهین هم دې نو په خاموشئ سره دې استغفار کوی

# [۵] بَابُ التَّعْزِيرِ

## دَتعزیربیان

**خلاصة الباب:**

**فيه أربعة أحاديث مشتملة على أربع مسائل:**

(۱) عدم تجاوز االتعزيرإلى مقدار الحد: ۱-

(۲) حرمة ضرب الوجه في تنفيذالحد: ۲-

(۳) تعيين قدر التعزير في بعض الجرائم: ۳-

(۴) حكم التعزيرفي الخيانة: ۴-

**قوله:** التعزير:

**د تعزیر لغوی معنی:** تعزیر عزر نه دې دَ کوم معنی چه منع کول، ملامت کول اودړکه کول دی. دَ تعزیرپه ذریعه هم سړې دَ ګناه نه بندولې او رټلې شی

**د تعزیر اصطلاحی معنی:** فقهاؤ په اصطلاح کښې تعزیردَهغه سزا نوم دې چه دَ پاره دَ تادیب اوتهذیب ورکولې شی اودَ کوم مقدارچه دَ ادنی حدنه کم وی.

**دَ تعزیر ثبوت:** په قرآن کریم کښې دَ تعزیر ثبوت په دې آیت سره دې ﴿وَاضْرِبُوهُنَّ ۚ فَإِنْ أَطَعْنَكُمْ فَلَا تَبْغُوا عَلَيْهِنَّ سَبِيلًا﴾ سورة النساء ۳۴. او په حدیث کښې (ولاترفع عصاك عنهم أدبا) دَ آیت او حدیث دواړونه دَ ښځې دَ وهلو اشاره ملاویږی اوهم دغه تعزیردې. په یوبل حدیث کښې دی (رحم الله امراءً علق سوطه حیث یراه اهله) (مرقات ملاعلی قاری) یعنی الله تعالی دې په هغه بنده باندې رحم اوکړی چه خپله همسا په داسې ځائې کښې زوړنده کړی چرته چه دَهغه ښځې ته ښکاری

**په حد اوتعزیر کښې فرق:** حددَهغه خاص سزا نوم دې چه دَ کتاب الله او سنت رسول الله ﷺ نه هم ثابت وی اومتعین هم وی. دَ وخت حاکم ته نه په دې کښې دَ ترمیم اواضافه اختیارشته اونه دَنورو تصرفاتو اختیارشته، حاکم ته صرف دَدې دَ نافذ کولوحق حاصل

دي. دَ دې برعکس تعزیر هغه سزا ده کومه چه کتاب او سنت نه ده متعین کړې بلکه دَ دې تعین مفوض الی رائی الامام دې. دَ امام شافعي رحمه الله په نیز په حاکم او قاضي باندې دَ تعزیر جاري کول لازم نه دی بلکه دَ هغه په رائې باندې موقوف ده چه هغه دَ تعزیر سزا ورکړي که نه خو امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائي چه په امام باندې لازم او ضروري دی بلکه واجب دی چه هغه دې تعزیر نافذ کړي.

امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائي که چرې دَ تعزیر ذکر په نص کښې موجود وی نو بیا دَ دې نافذ کول واجب دی او که دَ تعزیر حکم په نص دَ قرآن کښې موجود نه وی نو بیا دَ وخت دَ حاکم په رائې باندې موقوف ده چه هغه څنګه غواړي نافذ دې کړي یا دې نه نافذ کوي.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۳۶۲۰] دَ تعزیر په طور زیات نه زیاته څومره سزا ورکول کیدی شي؟**

۳۶۲۰-[۱] ()[۱] عَنْ أَبِي بُرْدَةَ بْنِ دِينَارٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ[۲]: «لَا يُجْلَدُ فَوْقَ عَشْرِ جَلَدَاتٍ إِلَّا فِي حَدٍّ مِنْ حُدُودِ اللّٰهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوبرده رضي الله عنه ابن نیار د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] الله جل جلاله چې کوم حدود مقرر کړي دي، په هغه کې د یو حد نه علاوه (د بلې یوی ګناه په تعزیراو تنبیه کې) د لس دورو نه زیاته سزا دي نه ورکول کیږي. (بخاري مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله:** «لَا يُجْلَدُ فَوْقَ عَشْرِ جَلَدَاتٍ:

**په تعزیر کښې د زیاتو کوړو په تعداد کښې ۳ مذاهب:**

شریعت په تعزیر کښې څه حد نه دې متعین کړې خو دَ فقهاء کرامو په دې باندې اتفاق دې چه کم نه کم درې کوړې دې وی دَ دریو نه کم کوړې تعزیر نه دې. اوس دا مسئله زیر بحث ده چه په تعزیر کښې دَ زیات نه زیات څومره کوړې او وهلې شی نو په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.

① امام شافعي رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائي دَ لسو نه زیاتې کوړې په تعزیر کښې نه دی وهل پکار.

② دَ امام مالک رحمه الله په نیز دَ زیاتو کوړو وهلو څه حد متعین نه دې. قاضي او امام چه

() اخرجه البخاری فی کتاب الحدود/باب: کم التّعزیر [ص:۱۷۴] والأدب (رقم-۶۸۴۸) ومسلم فی کتاب الحدود/باب قدر أسواط التّعزیر (رقم-۴۰ - (۱۷۰۸) و ابو داود فی کتاب الحدود/باب فی التّعزیر (رقم-۴۴۹۱) والترمذی فی کتاب الحدود عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب ما جاء فی التّعزیر (رقم-۱۴۶۳) و ابن ماجه فی کتاب الحدود/باب التّعزیر (رقم-۲۶۰۱) واحمد فی المسند: ۴۵/۴

خومره مناسب گنړی کوړې دې لګوی دَ صاحبینو هم دغه مسلك دې (کما فی المرقاة)

③ امام ابو حنیفه رحمه الله فرمائی چه دَ ادنی حده پورې تعزیرنه دی رسول پکار بلکه دَ هغې نه کم کیدل پکاردی. لهذا دَ یوغلام حد قذف څلویښت کوړې دی نودَ دغه ادنی حدنه یوه کوړه کمولوسره یو کم څلویښت کوړې لګول پکاردی. خوبیاهم دا تعزیر دَ امام په اختیار باندې موقوف دې لهذا دَ تعزیر په ضمن کښې دَ زیات نه زیاته سزا ورکولې کیدې شی تردې چه دَ قتل پورې هم خبره رسیدې شی.

**داول فریق دلیل:** "لایجلد فوق عشر جلدات" دَ مشکوة دَ زیر بحث حدیث د دوی مستدل دې

**داول فریق د دلیل جواب:** دا حدیث دَ هغه احادیثو دَ وجې نه منسوخ شوې دې په کوموا حادیثو کښې چه دَ لسو کوړونه دَ زیاتو ذکر راغلې دې او صحابه کرامو په دې باندې عمل کړې دې.

**د دویم فریق دلیل:** دَحضرت عمرفاروق رضی الله عنه د تعزیریوه واقعه د دوی مستدل ده په کوم کښې چه متعلقه سړی ته سل کوړې هم وهلې وې اوهغه سړې قیدهم شو. واقعه داسې وه چه معن بن زائده دَ بیت المال نه دَ جعلی مهرپه ذریعه مال واخستو. حضرت عمر رضی الله عنه ته معلومه شوه نوهغه ئی سل کوړې اووهلواو قیدئی هم کړو.

**د دویم فریق د دلیل جواب:** حضرت عمر رضی الله عنه څوجرمونه یوځائی کولو سره سل کوړې وهلې وې په یوجرم کښې په سلوکوړو سره تعزیرنه وو شوې.

**د دریم فریق دلیل:** نبی کریم تعزیر حدته دَ رسولونه منع فرمائیلې ده

**د شیخ فضل محمد مدظله رائې:** دَ فقهاؤدَ مذاهبو په انضباط کښې دَ تعزیر په مسئله کښې ډیر مشکلات دی ډیر اقوال دی. ما په توضیحات مشکاة کښې دَ ملاعلی قاری رحمه الله دَ مرقات نه دَ مذاهبو دَ اختلاف اقوال راجمع کړی دی سره دَدې چه نورو شارحینوپه بل انداز سره اقوال راجمع کړی دی. بهرحال دَ تعزیربنیاد دَ امام رائې او اختیار په بنیاد باندې دې. که چرې هغه مصلحت وینی چه دلته دَ زیاتې سزا ضرورت دې نوزیاته ورکولې شی اوکمولې هم شی لهذا په دې کښې یوخاص تعین دَهغه آزاد حیثیت متاثر کوی

**د تعزیر مختلف صورتونه:**

① عمدة الرعایه کښې لیکلی دی چه کله تعزیر په ستا باندې په کانړی وهلو سره حاصلیږی

② کنځلې کول　　③ دَ وطن نه ویستل

④ د غوږنو تاوهل　　⑤ قید کول　　⑥ سخت ګذار سره

**د تعزير بالقتل مواقع:** مشائخ عظام دَ څو داسې ځايونو ذکرکړې دي چه هلته تعزير بالقتل هم جائز دې

① مثلاً يو سړې هروخت غلا کوی

② يا مسلسل جادو کوی

③ يا مسلسل لواطت کوی

④ يا نبی کريم ﷺ ته کنځلې کوی نو داسې خلق قتل کول په توګه دَتعزير جائز دی. فقهاؤ داهم ليکلی دی چه که يو سړی اوکتل چه څوك سړې دَ هغه ښځې سره زنا کوی نوهغه دې قتل کولې شی (سره دَدې چه اسلامی عدالت دَ هغه نه جواب طلبی هم کولی شی ليکن دَ الله تعالی په نيز داسړې راګيرنه دې). (زجاجه المصابيح ج۳ص ۱۰۲)

خلاصه الفتاوی اوفتاوی ظهير په چاباندې مالی جرمانه لګولو سره دَ مال اخستلو تعزير هم جائز ليکلې دې اودَ کورونو سوزول ئې هم په تعزيرکښې شميرکړی دی (حواله بالا)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۳۶۳۱] په مخ د وهلو ممانعت

۳۶۳۱-[۲] ( ) ①عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ②: «إِذَا ضَرَبَ أَحَدُكُمْ فَلْيَتَّقِ الْوَجْهَ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ①حضرت ابوهريره ﷺ د نبي کريم ﷺ نه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ②هر کله چې په تاسو کې يو سړی (يو مجرم سزاءً) وهي. نو هغه ته پکار دی چې هغه مجرم دی په مخ نه وهي. (ابوداود)

**تسهيلات: قوله:** فَلْيَتَّقِ الْوَجْهَ:

**د حد په تقاذ کښې د مخ د وهلو حرمت:** مطلب دادې چه کله يو مجرم سړې په تعزيرکښې په کوړووهلې کيږی يا په حدکښې وهلې کيږی نودَدې خبرې خيال به ساتلې کيږی چه دَ کوړووهلومقام دې مخ نه وی مخ به بچ کولې شی دَدې يوه وجه خوداده چه سر او مخ هغه نازك اندامونه دی چه په کوړه وهلوسره دَ هلاکت خطره پيداکيدې شی فقهاؤ ليکلی دی چه کوړې دَ بدن په نرم حصوباندې متفرق وهلې کيږی دويمه وجه داکيدې شی چه مخ له الله تعالی يو عزت ورکړې دې او په بدن کښې دَ ټولونه زيات مکرم دې په دې وجه په دې کوړې نه دی لګول پکار. په يوحديث کښې دی چه (ان الله خلق آدم على صورته) په دې وجه هم مخ ته اعزاز حاصل دې.

[1]) اخرجه ابوداودفی السنن کتاب الحدود /باب فی ضرب الوجه فی الحد (رقم -۴۴۹۳) واحمد فی المسند: ۲/ ۲۴۴

[٣٦٢٢] د كنځلو سزا

٣٦٣٢-[٣] (١) ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ٢ «إِذَا قَالَ الرَّجُلُ لِلرَّجُلِ: يَا يَهُودِيُّ فَاضْرِبُوهُ عِشْرِينَ، ٣ وَإِذَا قَالَ: يَا مُخَنَّثُ فَاضْرِبُوهُ عِشْرِينَ، ٤ وَمَنْ وَقَعَ عَلَى ذَاتِ مَحْرَمٍ فَاقْتُلُوهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د نبي كريم ﷺ نه نقل كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ كه يو مسلمان بل مسلمان ته اووائي چې اې يهودي! نو هغه شل دوري ووهي، ٣ كه هغه ته مخنث اووائي نو هم يې شل دوري ووهئ، ٤ او كوم سړى چې د محرمي ښځې سره زنا وكړي هغه قتل كړئ، ترمذي رحمه الله دا روايت نقل كړي دى او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دى.

**حل اللغات:** ① مُخَنَّثُ: هيجړا، هغه سړي چه د زنانو په شان ښكاري.

**تسهيلات: قوله:** يَا مُخَنَّثُ:

**مصنوعي طور د مخنث جوړيدو حكم:** مخنث هغه سړى ته وائى دَ چاندامونه اوخبرې اترې چال چلن طورطريقه چه دَزنانو په شان وى. كه چرې دا كمزورى پيدائشي وى نو څه گناه نشته دې او كه چرې مصنوعي او بناوتي وى نو دا ډير لوئى جرم دې.

**قوله:** فَاضْرِبُوهُ عِشْرِينَ:

**د تعزير بعضي جرائم:** ① دا شل كوړې دَدې خبرې دليل دې دې نه مخكښې چه كوم دَ لــو كوړو ذكراغلي دې په هغې كښې تحديد اوتعين نشتنه بلكه هغه حديث منسوخ دې. كه يوسړې په خپل غلام يا كافرباندې دَ زنا تهمت اولگوى نو په دې باندې حد قذف نشته بلكه تعزيردې

② كه چرې يومسلمان بل مسلمان دَزنا نه علاوه په تكليف وركونكو الفاظوسره ياد كړو نوپه دې كښې به تعزيرراځي مثلاً اې فاسقه اې كافره اې غله اې خبيثه اې منافقه اې لوطي اې يهودي اې ديّوثه اې مخنثه اې دَ بدكاره ښځې ځويه اې دَ رنډئ اولاده اې زنديق اې حرام زاده وغيره.

③ كه يومسلمان ئى دې راتلونكو الفاظوسره يادكړو نوتعزير به نه راځي مثلاً وئى وئيل اې خره، اې سپيه اې بيزوگيه، اې گونگيه اې ماره اې غويه اې دَ ننئ اولاده اې مكاره اې بې وقوفه اې مسخرې وغيره وغيره علماؤ ليكلي دى چه كه يوعيب واقعي په چاكښې وى نوتعزيربه نه كيږى اوكه عالمان اوشريفان ئى دې الفاظوسره يادكړل نو تعزير به كيږى.

(١) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الحدود عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فيمن يقول لآخر يا مخنّث (رقم-١٤٦٢) و ابن ماجه في كتاب الحدود/باب من أتى ذات محرم ومن أتى بهيمة (رقم-٢٥٦٤)

**قوله**: عَلَى ذَاتِ مَحْرَمٍ:

**محرم سره د زنا کولو په سزا کښې ۲ مذاهب:**

یعني خپلو محارمو سره ئې زنا اوکړه نو هغه قتل کړئې.

① دامام احمد په نیز محرم سره زنا کونکې به قتل کولې شي.

② جمهور علماء فرمائي چه دزنا په معامله کښې ضابطه هم یو شان ده که محصن وی نو سنګسارولې به شي او که چرې غیرمحصن دې نو کوړې به ورکولې شي

**د اول فریق دلیل**: حدیث الباب د دوی مستدل دې ځکه چې په دې ښکاره وئیلی شوی دی چه ذات محرم سره زنا کونکې واجب القتل دې که هغه محصن وی او که غیرمحصن

**د دویم فریق دلائل**: هغه ټول احادیث د جمهورو مستدلات دی په کومو کښې چې د محصن سزا رجم خودلې شوې دې.

**داول فریق د لیل درې جوابونه**: ① دا دَ هغه سړی باره کښې دې چه محارم سره زناکول جائز ګڼړی نو بیا به دَ ده قتل دَ ارتداد دَ وجې نه وی.

② دا حدیث په زجر توبیخ تشدید او تغلیظ باندې محمول دې. ١

③ دا حکم دَ سیاست او مصلحت لاندې دې که چرې امام او قاضی مناسب ګڼړی نو قتل دې کړی او دا دَ تعزیر حصه ده. دا جواب دَ تعزیر باب سره زیات موافق دې

**[٣٦٢٢] په مال غنیمت کښې دَخیانت کونکی تعزیر**

٣٦٢٢-[٣] ()١ وَعَنْ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ٢: «إِذَا وَجَدْتُمُ الرَّجُلَ قَدْ غَلَّ فِي سَبِيلِ اللَّهِ٣ فَأَحْرِقُوا مَتَاعَهُ وَاضْرِبُوهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه**: ١ او حضرت عمر فاروق رضي الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ که تاسو یو داسې سړی ونیسی چې هغه د خدای پاك په لار کې خیانت کړي وي (یعني هغه د مال غنیمت د تقسم نه مخکې د هغه نه یې څه پټ کړي وي) ٣ نو د هغه مال او اسباب وسوځي. او هغه ووهي [ابوداؤد ترمذی، ترمذی رحمه الله ویلی دی چې دا حدیث غریب دی ]

**حل اللغات**: ① غَلَّ: خیانت کول، غلا کول.

**تسهیلات:**

**قوله**: قد غَلَّ فِي سَبِيلِ اللَّهِ:

**په مال غنیمت کښې د خیانت کولو سزا**: یعنی په مال غنیمت کښې ئی خیانت اوکړو نو سړی له به دَ تعزیر په توګه کوړې ورکولې شي او دَ هغه مال او متاع دې اوسوزولې شي.

١ ) اخرجه ابوداودفی السنن کتاب الجهاد /باب فی عقوبة الغالّ (رقم-٢٧١٣) والترمذی فی کتاب الحدود عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم /باب ما جاء فی الغالّ ما یصنع به (رقم-١٤٦١)

**په مال غنيمت کښې د خيانت کونکی د مال سوزولو په حکم کښې مذاهب:**

① د امام احمدبن حنبل رحمه الله اوحسن بصری رحمه الله په نيز دَ دې سړی سامان يوځائی کولوسره به سوزولې شی. اوکه په دې سامان کښې ځناور وی يا مصحف شريف وی يا دَ جهاد وسله وی نو هغه به نشی سوزولې.

② جمهورعلماء فرمائی سامان به نشی سوزولې

**د اول فريق دليل:** ظاهر د حديث د دوی مستدل دې

**داول فريق د دليل دوه جوابونه:**

①دَ حديث دا حکم خو دَ اسلام په شروع کښې ووبيا منسوخ شو

② داحکم په تغليظ تشديد اوزجر اوتوبيخ باندې محمول دې يعنی دې اوويره وه مګر عمل مه کوه.

**د دويم فريق دليل:** ① په دې کښې دَ غانمينو حق دې ځکه چه دا سامان دَدې سړی خو خپل نه وو.

# [۶] بَابُ بَيَانِ الْخَمْرِ وَوَعِيدِ شَارِبِهَا]

**دَ خمرتعريف اودَ څکونکی دَپاره وعيد**

**خلاصة الباب:**

**فيه أربعة وعشرون حديثاً مشتملة على سبع مسائل:**

① الأشياء التي يتخد منها الخمر: ۱، ۲، ۳، ۱۳.

② كون كل ماأسكرفكثيره وقليله حرام: ۴، ۵، ۶، ۱۱، ۱۲، ۱۶، ۱۷، ۱۸.

③ ذكروعيد شارب الخمر: ۵، ۶، ۱۰، ۱۹، ۲۰، ۲۱، ۲۲، ۲۳، ۲۴.

④ النهي عما يؤدي إلى الإسكار: ۷.

⑤ الأمر بإهراق الخمر: ۱۴، ۱۵.

⑥ حرمة إتخاذ الخل من الخمر: ۸.

⑦ النهي عن صناعة الخمر: ۹، ۱۷.

**تسهيلات: قوله:** الْخَمْر:

**د خمر په تعريف او حکم کښې مذاهب:**

① «الخمروهی النّیُّ من ماءالعنب–اذاغلاواشتدوقذف بالزبد» [مظاهرحق: ۳/۶۴۵].

يعنی شراب دَ انګورودَهغه کچه شيرې نوم دې کله چه سخته اوتينګه شی او په هغې کښې ځګ پيدا شی.

**د انګورو د تخصیص وجه:**

احناف دَخمرتعریف انګوروسره ځکه خاص کوی چه دَدې قطعی حرام ماده یومتعین حقیقت کیدل پکاردی اهل لغت هم دې ته دَ یوخاص شراب اوخاص شربت نوم ورکړې دې دَدې عارض دَ وجې نه ئې شراب انګوروسره خاص کړل ګنې تخصیص نشته دې

② خمریعنی شراب دَهغه څیز نوم دې دَ کوم په استعمال سره چه نشه اومستی پیدا شی که هغه دَ انګورودَ شیرې په شکل کښې وی اویاکه دَهریوبل څیزدَ شیرې وی (کذافی القاموس)

**دمذکوره تعریف فوره والې:**

دا تعریف ډیر بهتردې ځکه چه دادَ شرابونو ټولو قسمونوته شامل دې صرف دَ انګوروشیرې سره خمرخاص کول مناسب نه دی اودا ضروری ده چه دَ کومې میوې نه شراب جوړکړې شی اوپه هغه شیره کښې سکر اونشه موجودوی که هغه دَ کهجورونه جوړه کړې شی یا دَ شاتونه یادَ جوارونه یادَ بل څه مادې نه واخستې شی (والخمرما خامرالعقل) دَدې عموم فائده به داشی چه په عربوکښې اوخاص کر په مدینه منوره کښې به دَ انګورو شرابو کله ناکله ملاویدل په دې وجه دَ شرابوحکم ټولومیوو ته عام کول پکاردی

**د مسکراتو څلور قسمونه:** کوم څیزونه چه نشه ورکوی دَهغې لوئی قسمونه څلور دی

① دَ انګورو شیره په اوربانډې معمولی شان پخه کړې شی اوبیا محفوظ کړې شی دې ته په عربی کښې "باذق" وائی او فارسی کښې "باده" وای اوکه هم دغه ماده زیاته پخه کړې شی چه په څلوروحصوکښې یوه حصه اوسوزی او څلوروکښې درې حصې پاتې شی نودې ته "طلاء" وائی داهم حرام دی دَدې څکل هم ناجائزدی او په دې کښې دَ حدنافذکولودَپاره دَ نشې ختل شرط دی

② نقیع الزبیب دې دې ته عصیرالزبیب هم وائی دا کشمش یعنی اوسکو کوم ته چه میوه هم وائی هغه شیره ده په کوم کښې چه دَ زیات وخت دَپاره کیخودوسره براس هم راځی او ځګ هم دَدې څکل حرام دی مګر دَ حد لګیدو دَپاره نشه ختل شرط دې دَ نشې نه ختلونه بغیربه حد نه لګی دَامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز په دې څلورو واړو قسمونوکښې "اذااغلاواشتدوقذف بالزبد" شرط دې یعنی دَ ځګ راتلل په هرقسم کښې ضروری دی لیکن صاحبین حضرات دَ ځګ راؤچتیدو شرط صرف په خمرکښې ضروری ګڼړی باقی دریواړو قسمونوکښې ځګ راؤچتیدل ضروری نه دی صرف غلیان او جوش کافی دې.

③ **نقیع التمر** دې کوم ته چه عصیرالرطب هم وائی او سکر هم دَدې نوم دې. دادَ لمدو

کهجورو هغه شیره ده کومه چه ټینګه شي او په هغې کښې ځګ پیداشي دَدې څکل حرام دی مګر دَ حد لګولو دَپاره نشه ختل شرط دی دَ نشې دَ ختلو نه بغیربه پرې حد نه لګی
④ دَ شرابو دې دا دَانګورو غیره نه داسې جوړیږي چه دَ انګورو کچه شیره واخلی په یولوښی کښې کیږدی دَ یوڅو ورځونه پس هغه ټینګه شي بیا دا اوخوټکیږي او هغه نشه ورکونکې جوړشی دې ته خمری وائي.
راجح قول دادې چه په دې کښې دَ ځګ راوچتیدل شرط نه دی. دا شراب دی او په نص قطعی سره حرام دی. دَ دې قلیل هم حرام دی او کثیرهم حرام دی دَ چا هم په دې کښې اختلاف نشته دې. دا دَ نشه ایزڅیزونونو جړه او اصل دې نور نشه ایزڅیزونه دَدې تابع دی. په دې کښې نشه ختل اونه ختلو قید نشته دې بلکه مطلق حرام او موجب حد دی اودا نجس العین دی.
**مزید مشروبات اربعه:** دلته څلورقسم نور مشروبات هم دی.
① اول نبیذ التمر دې دا دَخرما نه جوړشوې دَ هغه مشروب نوم دې کوم ته چه معمولی جوش ورکړې شوې وی او په دې کښې نشه نه وی راغلې
② دوم خلیط دې یعنی کشمش او خرما ملاوولو سره لږشان جوش ورکړی او شربت ئې ترې جوړکړو.
③ دریم بتع ده په باء اوتاء باندې زبردې. دادَهغه نبیذ نوم دې کوم چه دَ غنمو جوارو شاتو او اوربشوو غیره نه په اوبو کښې واچوی معمولی جوش ورکولو سره ترې عرق اوباسی
④ څلورم مثلث دې یعنی چه دَانګورو عرق ئې دومره پوخ کړو چه دوه حصې ئې ختمې شوې او یوه حصه دَ شربت په صورت کښې باقی پاتې شی [مظاهرحق ۳/۶۴۶].
**د مشروبات اربعه حکم:**
① د جمهور په نیزسره د امام محمد .دَدې څلورواړوقسمونو مشروبات حکم دادې که دَدې په زیات مقدار استعمال سره نشه راځی نودَدې قلیل مقدار استعمال هم حرام دې اوکه چرې په کثیر مقدارکښې نشه نه وی نوقلیل او کثیر دواړه حلال دی
② امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی که چرې دَدې څیزونوقلیل مقدار په عبادت باندې دَ قوت کیدودَپاره استعمال کړې شی نو دا جائزدی سره دَدې چه دَدې په کثیر مقدارکښې نشه وی مګر فتوی په دې قول باندې نه ده (مظاهرحق)
**مفتی به قول:** امام محمد رحمه الله هم جمهورو سره دې لهذا دَ محققین احناف دَ تحقیق مطابق فتوی هم په دې قول ده.

خلاصه دا چې اصل څيز نشه او سكر دې. كه چرې نشه په يو مشروب كښې وى يا په څه وابنو كښې وى ياد يوې ونې په شيره كښې وى يا په تمباكو كښې وى يا شراب او بهنګ كښې وى ټول حرام دى. [مظاهرحق ۴۴۲/۳.]

**د بعضې موجوده رائج الوقت نشو حكم:**

نشه وركونكى څيزونو كښې بهنګ، افيم او بعضې بوټى دى. دغه شان تمباكو هم ناجائزدى لكه چه صاحب د درمختار ليكلى او شاه عبد العزيز رحمه الله چيلم څكل مكروه تحريمى ليكلى دى ځكه چه په دې څيزونو سره بدن كښې فتور او سستى پيدا كيږى. او په حديث كښې وراندې دَدې حكم راتلونكې دې چه ((وكل مفتر)) يعنى هرسستى راوستونكې څيزحرام دې. دا تفصيل صاحب مظاهرحق رحمه الله ليكلې دې. ماخودويرې دَ وجې نه څه اوليكل باقى مې پريخودل هلته اوګورئى. [مظاهرحق ۴۴۲/۳.]

شيخ فضل محمد صاحب دام ظله العالى په توضيحات شرح مشكاة كښې ليكلى دى.. پخپله نسوار سګريټ اوتمباكو والا يان قطعًا نه خوښوم اونه دَ يوعالم دين دَپاره دا خوښوم، ليكن زما څه حيثيت دې علماء به ماپورې خنداګانې اوكړى سره دَدې چه دَ سعودى عرب علماء دې څيزونوته حرام وائى اوكله چه صاحب درمختار هم حرام ليكلى دى كه په تفصيل كښې لاړشې نو په نفى كښې به ډير څه ملاؤشى. په مدينه منوره كښې يوعلمى شخصيت حضرت مولانا عبد الوحيد عبد الملك دامت بركاتهم دَسګريټ په حرمت باندې يوه ښكلې رساله ليكلې ده په كوم كښې چه دَتمباكونه جوړشوى څيزونو په حرمت باندې ښه تفصيل سره كلام كړې دې. الله تعالى دَ هغوى په ژوند كښې بركت واچوى سره دَدې چه بعضې علماء تمباكو څكلوته حرام نه وائى مګر دَدې په كراهت باندې خودَټولواتفاق دې كه چرې كراهت تنزيهى اومنلې شى نو په دې باندې اصرار سره بياهم دا مسئله خطرناك حده پورې رسيږى.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[٣٦٣٤] د دوه قسمه ونو څخه د شرابو جوړيدل**

٣٦٣٣-[١] (١) ① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ② «اَلْخَمْرُ مِنْ هَاتَيْنِ الشَّجَرَتَيْنِ ③ النَّخْلَةِ وَالْعِنَبَةِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

[١]) اخرجه مسلم فى كتاب الأشربة/باب بيان أنّ جميع ما ينبذ ممّا يتّخذ من النّخل والعنب يسمّى خمرا (رقم-١٣ - ١٩٨٥) و ابو داود فى كتاب الأشربة/باب الخمر ممّا هو (رقم-٣٦٧٨) والترمذى فى كتاب الأشربة عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فى الحبوب الّتى يتّخذ منها الخمر (رقم-١٨٧٥) والنسائى فى كتاب الأشربة/باب تأويل قول الله تعالى: {ومن ثمرات النّخيل والأعناب تتّخذون منه سكرا ورزقا حسنا} [النحل: ٦٧] (رقم-٥٥٧٢) وابن ماجه فى كتاب الأشربة/باب ما يكون منه الخمر (رقم-٣٣٧٨) واحمد فى المسند: ٢٧٩/٢

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهریره رضي الله عنه د نبي کريم ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] شراب د دی دوو ونو [۳] يعنی د انګورو او کجورو نه جوړيږي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① النَّخْلَةِ: د کجورې ونه. ② الْعِنَبِ: آنګور.

**قوله:** الْخَمْرُ مِنْ هَاتَيْنِ الشَّجَرَتَيْنِ:

**د مذکوره جملې مطلب:** چونکه اکثر شراب دَ انګورو او کهجورونه جوړولې شو په دې وجه نبی کريم دې طرف ته اشاره اوکړه په دې کښې حصر کول مقصود نه دی بلکه صرف دا خودل مقصود دی چه مسکر هم دغه دی.

**[۳۶۳۵] د پنځو څيزونو څخه د شرابو جوړيدل**

۳۶۳۵- [۲] () [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: [۲] خَطَبَ عُمَرُ عَلَى مِنْبَرِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: إِنَّهُ قَدْ نَزَلَ تَحْرِيمُ الْخَمْرِ [۳] وَهِيَ مِنْ خَمْسَةِ أَشْيَاءَ الْعِنَبِ وَالتَّمْرِ وَالْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ وَالْعَسَلِ، [۴] وَالْخَمْرُ مَا خَامَرَ الْعَقْلَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې يوه ورځ عمر فاروق رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په منبر (دريدو سره) خطبه وويله، او ارشاد يي وفرمايلو [۲] چې د شرابو حرمت نازل شوی دی، [۳] او شراب د پنځو څيزونو نه جوړيږي ① د آنګورو نه ② د کجورو نه ③ د غنمو نه ④ د اوربشو نه ⑤ د عسلو (شهد) نه، [۴] او شراب هغه دي چې په عقل راخور شي يعنی بيکاره يي کړي. (بخاري)

**حل اللغات:** ① الْعِنَبِ: انګور. ② التَّمْرِ: اوچې کجورې. ③ الْحِنْطَةِ: غنم. ④ الشَّعِيرِ: وربشې. ⑤ الْعَسَلِ: شهد ⑥ الْخَمْرُ: شراب

**تسهيلات:**

**قوله:** وَهِيَ مِنْ خَمْسَةِ أَشْيَاءَ:

**د پنځو څيزونو د تخصيص وجه:** دا پنځه څيزونه ئی دَ شهرت په توګه ذکر کړل ګنی شراب دَ نورو څيزونو او نورو طريقوسره هم حاصليږي. هم دغه وجه ده چه دَدې حديث په آخری الفاظو کښې حضرت عمر رضي الله عنه دَ ډيرعموم طرف ته اشاره کړې ده چه "والخمر ماخامر العقل" يعنی شراب خو دَهرهغه نشه ورکونکی څيزنوم دې چه عقل خميره جوړولو سره پټ کړی. دا دَ شرابو بهترين تعريف دې اګرچه دَ فقهاؤ غظام اجتهادی مباحث دلته موجود دی.

---

() اخرجه البخاري في كتاب الأشربة /باب ما جاء في أنّ الخمر ما خامر العقل من الشّراب(رقم-۵۵۸۸) ومسلم في كتاب التّفسير /باب في نزول تحريم الخمر (رقم-۳۳ - (۳۰۳۲) و ابو داود في كتاب الأشربة /باب في تحريم الخمر (رقم-۳۶۶۹) والنسائي في كتاب الأشربة /باب ذكر أنواع الأشياء الّتي كانت منها الخمر حين نزل تحريمها (رقم-۵۵۷۸)

## [۳۶۳۶] په عهد رسالت کښې عام شراب

۳۶۳۶-[۳] (١) [١] «وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: لَقَدْ حُرِّمَتِ الْخَمْرُ حِينَ حُرِّمَتْ [٢] وَمَا نَجِدُ خَمْرَ الْأَعْنَابِ إِلَّا قَلِيلًا [٣] وَعَامَّةُ خَمْرِنَا الْبُسْرُ وَالتَّمْرُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت انس ﷺ وايي چې کوم وخت د شرابو حرمت نازل شوی وو، [٢] هغه وخت د دې حرمت نافذ شوی وو، او هغه وخت مونږ ته د آنګورو شراب کم حاصليدل، [٣] مونږ شراب زيات تره د کچه کجورو او وچو کجورو نه جوړيدل. (بخاري)

**حل اللغات:** ① عَامَّةُ: عام طور باندې، اکثر. ② الْبُسْرُ: کچه. شنې کجورې ③ التَّمْرُ: اوچې کجورې.

**تسهيلات:** **قوله:** لَقَدْ حُرِّمَتِ الْخَمْرُ

په دې کښې ئې داشارې په طور اوفرمائيل چې شراب رسول کريم ﷺ نه دی حرام کړی بلکه الله ﷻ حرام کړی دی. دې وجې نه ئې ورته حرم رسول الله اونه فرمائيل

**قوله:** وَعَامَّةُ خَمْرِنَا الْبُسْرُ وَالتَّمْرُ:

**د فصل د پخيدو مختلف ادوار:** د کهجورو دفصل په پخيدو او لګيدو کښې مختلف ادوار وی کله چې ددې شګوفه يعنی ونه تياره شي نو دې ته طلع وائی. او دا د کهجورې ابتدائی حالت وی، بيا دې نه پسې مرحله د ظلال وی، بيا د بسر او بيا د رطب. او دې نه پس ددې آخری شکل تمر وی، حديث پاک کښې هم دې طرفته اشاره شوې ده

## [۳۶۳۷] د هر نشه آور څيز حرمت

۳۶۳۷-[۴] (٢) [١] وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: «سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْبِتْعِ [٢] وَهُوَ نَبِيذُ الْعَسَلِ [٣] فَقَالَ: كُلُّ شَرَابٍ أَسْكَرَ فَهُوَ حَرَامٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او بي بي عائشه ﷺ وايي چې د رسول الله ﷺ نه د بتع په باره کې پوښتنه وشوه. [٢] يعنی د عسلو (شهد) د نبيذ چې آيا د دې شکل جائز دی که نه؟ [٣] نو حضور ﷺ وفرمايل هر هغه مشروب چې نشه راولي حرام دی. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① الْبِتْعِ: د شهدو نبيذ

[١] ) اخرجه البخار ى فى كتاب الأشربة /باب: الخمر من العنب (رقم-٥٥٨٠) ومسلم فى كتاب الأشربة /باب تحريم الخمر. وبيان أنها تكون من عصير العنب، ومن التمر والبسر والزبيب، وغيرها مما يسكر (رقم-٧ - (١٩٨٠) والنسائى فى كتاب الأشربة /باب ذكر الشراب الذى أهريق بتحريم الخمر(رقم-٥٥٤٣)

[٢] ) اخرجه البخارى فى كتاب الأشربة /باب: الخمر من العسل، وهو البتع وقال معن: سألت مالك بن أنس، عن الفقاع، فقال: «إذا لم يسكر فلا بأس» وقال ابن الدراوردي: سألنا عنه فقالوا: «لا يسكر، لا بأس به» (رقم-٥٥٨٦)ومسلم فى كتاب الأشربة /باب بيان أن كل مسكر خمر وأن كل خمر حرام (رقم-٦٧ - (٢٠٠١) و ابو داود فى كتاب الأشربة /باب النهى عن المسكر (رقم-٣٦٨٢) والترمذى فى كتاب الأشربة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء كل مسكر حرام (رقم-١٨٦٣)والنسائى فى كتاب الأشربة /باب تحريم كل شراب أسكر(رقم-٥٥٩٤) وابن ماجه فى كتاب الأشربة /باب كل مسكر، حرام (رقم-٣٣٨٦) ومالك فى الموطا كتاب الأشربة /باب باب تحريم الخمر (رقم-٩) واحمد فى المسند:١٩/٢

**تسهيلات:**

**قوله:** الْبِتْعِ: دلته دَباء زير او تاء په سكون سره دي ليكن دا لفظ دَ باء او تاء زبر سره هم لوستلې شوې دې. په اوبو كښې شهد ملاوولو سبره په اورباندې كيخودلې شي اوځه جوش وركړې شي نو دا بتع ده.

**[۳۶۳۸] دد نيا شراب څښكل دآخرت د شرابو څښكلو څخه د محروميتيا سبب ږ**

۳۶۳۸ — [۵] ()[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كُلُّ مُسْكِرٍ خَمْرٌ، [۲] وَكُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ [۳] وَمَنْ شَرِبَ الْخَمْرَ فِي الدُّنْيَا فَمَاتَ وَهُوَ يُدْمِنُهَا لَمْ يَتُبْ لَمْ يَشْرَبْهَا فِي الْآخِرَةِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر ﷺ راوي دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل كوم څيز چې نشه راولي هغه شراب دى، [۲] او كوم څيز چې نشه راولي، هغه حرام دى (كه په مقدار كې لږ وي يا زيات وي) [۳] او كوم سړى چې په دنيا كې شراب څكي، او هميشه يې څكي ددې پورې چې بغير دتوبې نه مړشي، نو دهغه به په آخرت كې شراب څكل نصيب نشي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① يُدْمِنُهَا: چه هميشوالې كوى په شرابو.

**تسهيلات:**

**قوله:** يُدْمِنُهَا: دَ هميشه دَپاره چه څوك شراب څكى هغه ته مدمن خمر وائى. دادا سې سړى دَپاره لكه چه يو خاص صفت او خصوصى تعارف دې. په احاديثو كښې باربار دا لفظ دَ باب افعال نه راځى.

**قوله:** لَمْ يَشْرَبْهَا:

**د مذكوره جملې په مفهوم كښې درې اقوال:** ① دغه سړى په دنيا كښې شراب څكل حلال ګڼړل اوحرام حلال ګڼړل كفردې په دې وجه دا سړې مرتد كيدو سره هميشه دوزخى جوړشو نو په دوزخ كښې شراب چرته دى؟

② په اول كښې به ده ته شراب نه ملاويږى ليكن دَ سزا خوړلو نه پس چه كله جنت ته لاړشى نو بيا به ده ته ملاويږى.

③ دا سړې به په جنت كښې دَدغه نعمت خواهش نه كوى نو نه به ئى څكى.

---

[1] ) اخرجه مسلم فى كتاب الأشربة/باب بيان أنّ كلّ مسكر خمر وأنّ كلّ خمر حرام (رقم-۷۳ - (۲۰۰۳) والترمذى فى كتاب الأشربة عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فى كراهية أن ينبذ فى الدبّاء والحنتم والنّقير(رقم-۱۸۶۸) و ابن ماجه فى كتاب الأشربة/باب من شرب الخمر فى الدّنيا، لم يشربها فى الآخرة (رقم-۳۳۷۳) ومالک فى الموطا كتاب الأشربة/باب باب تحريم الخمر (رقم-۹)

## [۳۶۳۹] په جهنم کښې د شرابو څکلو سزا

۳۶۳۹-[۲] (۱) ①وَعَنْ جَابِرٍ «أَنَّ رَجُلًا قَدِمَ مِنَ الْيَمَنِ ②فَسَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ شَرَابٍ يَشْرَبُونَهُ بِأَرْضِهِمْ مِنَ الذُّرَةِ يُقَالُ لَهُ: الْمِزْرُ ③فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَوَمُسْكِرٌ هُوَ؟ قَالَ: نَعَمْ. ④قَالَ: كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ ⑤إِنَّ عَلَى اللهِ عَهْدًا لِمَنْ يَشْرَبُ الْمُسْكِرَ أَنْ يَسْقِيَهُ مِنْ طِينَةِ الْخَبَالِ.

**ترجمه:** ①او حضرت جابر ﷺ وايي چې د يمن يو سړی دربارِ نبوي (ﷺ) ته راغلی، ②او د نبي کريم ﷺ نه يې د جوارو د شرابو په باره کې پوښتنه وکړه، چې په يمن کې څکل کيدل. او هغه ته يې مِرز ويل، ③حضور ﷺ پوښتنه ورنه وکړه چې آيا هغه نشه راولي؟ هغه اوويل چې هو، ④حضور ﷺ وفرمايل هر نشه راوستونکی شی حرام دی. ⑤او (ياد لره) د الله ﷻ دا عهد دی، چې کوم سړی نشه راوستونکی کوم څيز وڅکي. په هغه به طينة الخبال څکل کيږي،

**حل اللغات:** ①مِنَ الذُّرَةِ: د جوارو شراب، ②الْمِزْرُ: د جوارو شراب ته مِزر وائي

①قَالُوا: يَارَسُولَ اللهِ وَمَا طِينَةُ الْخَبَالِ؟ ②قَالَ: عَرَقُ أَهْلِ النَّارِ أَوْعُصَارَةُ أَهْلِ النَّارِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ①صحابه وُ ﷺ عرض اوکړو چې يا رسول الله! ﷺ طينة الخبال څه څيز دی؟ ②وي فرمايل چې خبال د دوزخيانو خوله ده، يا وي فرمايل چې خبال هغه نَو او وينه ده کومه چې د دوزخيانو د زخمونو نه بهيږي، (مسلم)

**حل اللغات:** ③طِينَةِ الْخَبَالِ: د دوزخيانو خوله يا پيپ او وينه، ④عَرَقُ أَهْلِ النَّارِ: د دوزخيانو خوله. ⑤عُصَارَةُ أَهْلِ النَّارِ: د دوزخيانو پيپ او وينه

**تسهيلات:**

**قوله:** وَمَا طِينَةُ الْخَبَالِ؟:

**د مذکوره لفظ معنی او مطلب:** خبال دَ دوزخيانو وينې او پيپ دي يادَ هغوی دَ بدن خوله ده دَ طهنة مطلب که چه خيرې واخستې شی نوپه مفهوم باندې به پوهيدل نورهم آسان شي. الذرة جوار ته وائي دې نه به هم شراب جوړيدلو. المزر ميم باندې زير دې او زاء باندې سکون دې

---

[1] ) اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة/باب بيان أنّ کلّ مسکر خمر وأنّ کلّ خمر حرام (رقم-۷۲ - (۲۰۰۲)والنسائی فی کتاب الأشربة/باب ذکر ما أعدّ الله عزّ وجلّ لشارب المسکر، من الذلّ، والهوان، وأليم العذاب (رقم-۵۷۰۹) واحمد فی المسند: ۳۶۱/۳

[٣٦٤٠] د مخلوط نبيذ جوړولو جواز

٣٦٤٠-[٧] (١) وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ خَلِيطِ التَّمْرِ وَالْبُسْرِ [٢] وَعَنْ خَلِيطِ الزَّبِيبِ وَالتَّمْرِ [٣] وَعَنْ خَلِيطِ الزَّهْوِ وَالرُّطَبِ، [٤] وَقَالَ: انْتَبِذُوا كُلَّ وَاحِدٍ عَلَى حِدَةٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابو قتاده رضی الله عنه وايي چې نبي كريم صلی الله علیه وسلم د وچو كجورو او د كچه كجورو يو ځاى كولو سره د نبيذ جوړولو نه منع فرمايلي ده، [٢] د غه شان وچو كجورو او وچ انګور د يو ځاى كولو سره د نبيذ جوړولو نه يې منع فرمايلي ده، [٣] او د اوچو اوتازه انګورو د ګډوډ كولو څخه منع كړې ده [٤] او فرمايلي يې دي (كه نبيذ جوړول وي، نو) په دې كې د هر يوه جدا جدا نبيذ جوړوي، (مسلم)

**حل اللغات:** ① خَلِيط: شريكوال ② الزَّهْو: اوچ انګور ③ عَلَى حِدَةٍ: جدا جدا، ځانله ځانله.

**تسهيلات:** **قوله:** عَنْ خَلِيطِ التَّمْرِ:

**د كچه او پخو كهجورو د ملاوولو د ممانعت وجه:** دَ پخو كهجورو ملاوولو ممانعت دَ دې دَپاره دې چه نبيذ جوړونكي ته اندازه نه شي كيدې او پخه كهجوره به په شرابو كښې بدله شوې وى او هغه به تردغه وخته پورې دَ كچه په انتظار كښې وى ځكه چه پخه كهجوره دَ خپل مزاج په اعتبار سره زر متاثر كيږي. اوس به دَ پخې كهجورې دَ شرابو آميزش دَدغه مخلوط په نبيذ كښې راشي دَ كوم استعمال چه ناجائز دې په دې وجه دَدغه اختلاط نه منع كړې شوې ده.

**د مذكوره اختلاط په حكم كښې مذاهب:**

① دَامام مالك رحمه الله په نيز دَ دې حديث دَ وجې نه محض دا اختلاط منع دې او دَ دې استعمال منع دې سره دَ دې چه په دې كښې سكر نه وى.

② جمهور فقهاء فرمائى چه دا اختلاط او دَ دې نه نچوړ شوې نبيذ به هغه وخت ناجائز وى چه په دې كښې نشه راشى ګنى ناجائز نه دې.

[٣٦٤١] د شرابو څخه د جوړې شوې سركې حلت

٣٦٤١-[٨] (٢) وَعَنْ أَنَسٍ «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ [٢] عَنِ الْخَمْرِ يُتَّخَذُ خَلًّا، فَقَالَ: لَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

[١] ) اخرجه البخارى فى كتاب الأشربة/باب من راى أن لا يخلط البسر والتمر إذا كان مسكرا، وأن لا يجعل إدامين فى إدام(رقم-٥٦٠٢) ومسلم فى كتاب الأشربة/باب كراهة انتباذ التمر والزبيب مخلوطين (رقم-٢٦ - (١٩٨٨)) و ابو داود فى كتاب الأشربة/باب فى الخليطين (رقم-٣٧٠٤) والنسائى فى كتاب الأشربة/باب خليط الزهو والرطب (رقم-٥٥٥١) وابن ماجه فى كتاب الأشربة/باب النهى عن الخليطين (رقم-٣٣٩٧) واحمد فى المسند:٣٠٩/٥

[٢] ) اخرجه مسلم فى كتاب الأشربة/باب تحريم تخليل الخمر (رقم-١١ - (١٩٨٣)) والترمذى فى كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب النهى أن يتخذ الخمر خلا (١٢٩٤) واحمد فى المسند: ٢٦٠/٣

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضی الله عنه راوي دی چې د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وشوه [۲] که په شرابو کې مالګه او پیاز وغیره اچولو سره د هغه سرکه جوړه شي، نو هغه حلال دی که نه؟ وي فرمايل چې نا، [(مسلم) (که چرته شراب په سرکه بدل شي نو هغه د خوراک او څښاک په مصرف کې راوستل جائز دی) ]

**تسهيلات:**

**قوله:** سُئِلَ عَنِ الْخَمْرِ يُتَّخَذُ خَلًّا:

**د شرابو نه جوړې شوی سرکې په حکم کښې ۲ مذاهب:**

① په شرابو کښې مالګه او پیاز وغیره ملاوولو سره سرکه جوړه کړې شی امام شافعي رحمه الله فرمائی که د یوڅیزپه ملاوولو سره سرکه جوړه کړې شی نو د هغې استعمال ناجائز دې دا دې وخت کښې هم سرکه نه ده بلکه د نجس شرابو په حکم کښې ده اوکه چرې پخپله په نمروغیره کښې کیخودو سره سرکه جوړه شی نو دغه وخت کښې دا شراب پاتې نه شو اوس د دې استعمال جائزدې

② احناف فرمائی چه د یوڅیزملاوولو سره د شرابونه سرکه جوړول یو مکروه فعل دې لیکن سرکه جوړیدونه پس هغه شراب پاتې نه شو نو دې وخت دا هم سرکه ده او سرکه حلال ده د دې استعمال جائزدې

**داول فریق دلیل:** مذکوره حدیث د دوی مستدل دې.

**داول فریق د دلیل جواب:** د شرابونه د جوړې شوې سرکې ممانعت د هغه وخت خبره ده کوم وخت چه په شروع کښې د شرابونه نفرت ورکولو د پاره لوښی هم منع کړې شوې وو چه مبادا شیطان د شرابو د خونداو د هغې وسوسې دوباره په زړونو کښې وانچوی په دې وجه د شرابونه بدله شوې سرکه ممانعت کړې شوې وو ګنی چه کله د شرابو اصل بدل شو او سکر اونشه ختمه شوه نو بیا د ممانعت څه وجه نشته دې

**د دویم فریق دلائل:** ① "نعم الادام الخل" حدیث د دوی مستدل دې. ځکه چې اوس دا شراب پاتې نه شو بلکه سرکه ده

② په بیهقی کښې حدیث دې چه "خیرخلکم خل خمرکم"

**[۳٦٤۲] د علاج په طور د شرابو د څکلو جواز**

۳۷۳۲–[۹] ( ) [۱] وَعَنْ وَائِلٍ الْحَضْرَمِيِّ «أَنَّ طَارِقَ بْنَ سُوَيْدٍ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْخَمْرِ فَنَهَاهُ، [۲] فَقَالَ: إِنَّمَا أَصْنَعُهَا لِلدَّوَاءِ، [۳] فَقَالَ: إِنَّهُ لَيْسَ بِدَوَاءٍ وَلَكِنَّهُ دَاءٌ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة/باب تحريم التداوی بالخمر (رقم-۱۲ - (۱۹۸٤)) واحمد فی المسند: ۳۳۱/٤

**ترجمه:** [۱] او حضرت وائل حضرمي روايت كوي چې طارق ابن سويد رضي الله عنه د نبي كريم ﷺ نه د شراب نوشي په باره كې پوښتنه وكړه نو حضور ﷺ تری نه منع كړو [۲] بيا طارق اوويل آيا زمونږ شراب دوايي «دارو» په طور استعمالوو؟ [۳] حضور ﷺ ورته وفرمايل هغه دوايي نه ده بلكه خپله يوه بيماري ده «مسلم»

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّهُ لَيْسَ بِدَوَاءٍ:

**د دوائی په حیثیت د شرابو د استعمالولو حکم:** اکثرعلماؤ دَ دوائی په توګه باندې دَ شرابو استعمالول منع کړې دی بعضې علماء وائی چه که طبیب حاذق اوماهروی اونيك اوصالح وی اوهغه مشوره ورکړی چه دَ دغه مرض علاج دَ شرابونه علاوه په هيڅ څيز کښې نشته دې نو په دغه صورت کښې دَ مجبورئی او اضطرار په درجه دَدې استعمال مباح وی باقی رسول الله ﷺ چه دا فرمائیلی دی چه شراب بیماری ده نو دا حقیقت دې چه شراب هم بیماری ده مګر ه ظاهری توګه په دې کښې عارضی غوندې تکړه والې راخی کوم چه علاج نه دې صرف يوعارضی ګرمائش دې دغه عارضی فائدې ته قرآن کښې ﴿ وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ ﴾ سره ذکرکړې دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۳۶٤۲] دَشرابو څكلو په وجه څلويښت ورځې مونځ نه قبليدل**

۳۶۴۳-[۱۰] (١) [۱] عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ شَرِبَ الْخَمْرَ لَمْ يَقْبَلِ اللهُ لَهُ صَلَاةً أَرْبَعِينَ صَبَاحًا فَإِنْ تَابَ تَابَ اللهُ عَلَيْهِ [۲] فَإِنْ عَادَ لَمْ يَقْبَلِ اللهُ لَهُ صَلَاةً أَرْبَعِينَ صَبَاحًا ; فَإِنْ تَابَ تَابَ اللهُ عَلَيْهِ [۳] فَإِنْ عَادَ لَمْ يَقْبَلِ اللهُ لَهُ صَلَاةً أَرْبَعِينَ صَبَاحًا، فَإِنْ تَابَ تَابَ اللهُ عَلَيْهِ،

**ترجمه:** [۱] عبد الله بن عمر رضي الله عنهما راوي دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل كوم سړی چې اول ځل شراب وڅكي او توبه نه اوباسي نو الله تعالى څلويښت ورځو پورې د هغه مونځونه نه قبلوي بيا كه هغه د زړه خلوص سره توبه اوباسي نو الله تعالى د هغه توبه قبلوي [۲] بيا كه هغه په دويم ځل شراب وڅكي نو الله تعالى څلويښت ورځو پورې د هغه مونځونه نه قبلوي بيا كه هغه توبه اوباسي نو الله تعالى د هغه توبه قبلوي [۳] بيا كه هغه په دريم ځل شراب وڅكي نو الله تعالى څلويښت ورځو پورې د هغه مونځ نه قبلوي بيا كه هغه توبه اوباسي نو الله تعالى د هغه توبه قبلوي

[۱] ) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الأشربة عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فى شارب الخمر(رقم-۱۸۶۲) واحمد فى المسند: ۳۵/۲

۱ فَإِنْ عَادَ فِي الرَّابِعَةِ لَمْ يَقْبَلِ اللّٰهُ لَهُ صَلَاةً أَرْبَعِينَ صَبَاحًا ۲ فَإِنْ تَابَ لَمْ يَتُبِ اللّٰهُ عَلَيْهِ ۳ وَسَقَاهُ مِنْ نَهْرِ الْخَبَالِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ دي پورې چې هغه په څلورم ځل شراب وڅكي نو الله ﷻ نه صرف دانه چې څلويښت ورځو پورې د هغه مونځ نه قبلوي ۲ بلكه كه هغه توبه باسي نو د هغه توبه هم نه قبلوي ۳ او په آخرت كې په هغه د دوزخيانوويني زوي څكول كيږي (ترمذي)

**حل اللغات:** ① الْخَبَالِ: د دوزخيانو وينه، پيپ، نو

۳۶۳۴ ـــ () وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو.

**ترجمه:** نسائي ابن ماجه او دارمي دا روايت د عبد الله ابن عمرو نه نقل كړي دى

**تسهيلات: قوله:** أَرْبَعِينَ صَبَاحًا:

**څلويښتو ورځو پورې د شارب الخمر مونځ نه قبليدل:** دَ شرابو اثردې چه څلويښت ورځې به ئې مونځ نه قبليږي البته مونځ كول ضروري دي. مونځ چونكه ام العبادات دې اوشراب ام الخبائث دى په دې وجه دَ شرابو اثر په مونځ باندې پريوځى اوكله چه دَ مونځ په شان افضل عبادت نه قبليږي نونور عبادتونه به په طريقه اولى نه قبليږي

**قوله:** لَمْ يَتُبِ اللّٰهُ

**په څلورم ځل شرابو څكلو نه پس د توبې د نه قبليدلو مطلب:** يعنى په څلورم ځل به بيا الله تعالى دَهغه توبه نه قبلوى. علماء فرمائي چه دَ رسول الله ﷺ دا فرمان چه دَ هغه توبه به نه شى قبلولې دا په زجرتوبيخ، تغليظ اوتشديدباندې محمول دې ګنى توبه كول دَ دابة الارض دَ خروج او شروق الشمس من المغرب پورې جارى اومقبول ده. خو اصل حقيقت دادې چه كوم سړې بار بار شراب څكى نودَ شرابو په نحوست سره هغه ته دَ توبه توفيق نه نصيب كيږي هم دغه مطلب ئې شو چه دَهغه توبه به نه شى قبلولې

**[۳٦٤٥] د نشه آور څيز د كم او د زيات مقدار حرمت**

۳۶۳۵ ـــ [۱۱] (¹) ۱ وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ۲ مَا أَسْكَرَ كَثِيرُهُ فَقَلِيلُهُ حَرَامٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُودَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

---

¹) اخرجه النسائي في السنن كتاب الأشربة/باب ذكر الآثام المتولّدة عن شرب الخمر. من ترك الصّلوات. ومن قتل النّفس الّتي حرّم اللّه. ومن وقوع على المحارم (رقم-٥٦٦٩) وابن ماجه في كتاب الأشربة/باب من شرب الخمر. لم تقبل له صلاة (رقم-٣٣٧٧) واحمد في المسند: ١٨٩/٢

²) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأشربة/باب النّهي عن المسكر (رقم-٣٦٨١) والترمذي في كتاب الأشربة عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء ما أسكر كثيره فقليله حرام (رقم-١٨٦٥) و ابن ماجه في كتاب الأشربة/باب ما أسكر كثيره. فقليله حرام (رقم-٣٣٩٣)

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] كوم څيز چې نشه راولى د هغه لږ مقدار هم حرام دى. (ترمذي ابوداود ابن ماجه)

**تسهیلات:**

**قوله:** مَا أَسْكَرَ كَثِيرُهُ فَقَلِيلُهُ حَرَامٌ:

هر هغه شراب چې نشه پيدا كوى اگر چې لږ وى حرام دى. څكه چې لږ شراب د زياتو شرابو څكلو عادى جوړوى. په دې وجه د لږ هم بچ كيدل ضرورى دى. ددې مطلب دا بالكل نه دې چې داسې شراب چې هغې كښې نشه كمه وى نو د هغې استعمال جائز دې او چې كومې كښې نشه زياته وى نو هغه حرام دى . دا مطلب درست نه دې بلكه داسې شراب چې نشه په كښې كمه وى او كه زياته حرام دى ، باقى تشريح آسانه ده.

**[۳۶٤٦] د نشه آور څيز د يو كوټ هم حرمت**

۳۶٤٦ - [۱۲] ( ) [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ [۲]: «مَا أَسْكَرَ مِنْهُ الْفَرَقُ فَمِلْءُ الْكَفِّ مِنْهُ حَرَامٌ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او بى بى عائشه رضي الله عنها د رسول كريم ﷺ نه نقل كوي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] د كوم څيز مثلًا د شرابو چې يوفرق. يعنى اته سيره مقدار نشه راولي د هغه يو ډك گوټ هم حرام دى (احمد ترمذي ابوداود)

**حل اللغات:** ① الْفَرَقُ: يو قسم شراب دى.

**تسهیلات:**

**قوله:** مَا أَسْكَرَ مِنْهُ الْفَرَقُ:

**د الفرق د لفظ تحقيق:** مثلاً دَ شرابو يوڅه داسې قسم دې دكوم چه زيات مقدار نشه راولى ليكن كم مقدار نشه نه راولى نودَدې دامطلب نه دې چه دَدې كم مقدار جائز شو بلكه دَدې كم مقداربه هم حرام وى. البته دَ نشې نه كيدو دَ وجې نه به حدنه نافذ كيږى گناه به كيږى. دَانسان دا فطرت دې چه كوم څيز هغه اول كم استعمالوى هم دغه قليل څيز انسان دَ كثرت ظرف ته په رابنكلوسره بوځى. لهذا دَدغه كم مقدار نه هم ځان ساتل ضرورى دى. "فرق" دَ ۱۲ پونډو په يوه پيمانه باندې دَ فرق اطلاق كيږى. "فرق" دَ راء په فتحه اوسكون دواړو جائز دي. دَ اهل مدينه دَ يوې پيمانې نوم دې په كوم كښې چه درې صاع يا ۱۲ رطل غله راځى دلته قليل اوكثير مقدار مراد دي.

[۱] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأشربة/باب النهى عن المسكر (رقم-۳۶۸۷) والترمذى فى كتاب الأشربة عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء ما أسكر كثيره فقليله حرام (رقم-۱۸۶۶) واحمد فى المسند: ۶/۱۳۱

**[۳٦٤٧] د شراب جوړيدو ځيزونه**

۳۶۳۷-[۱۳] (۱) ۱ وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ «إِنَّ مِنَ الْحِنْطَةِ خَمْرًا ۳ وَمِنَ الشَّعِيرِ خَمْرًا ۴ وَمِنَ التَّمْرِ خَمْرًا ۵ وَمِنَ الزَّبِيبِ خَمْرًا ۶ وَمِنَ الْعَسَلِ خَمْرًا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت نعمان ابن بشير رضي الله عنه وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ۲ د غنمو هم شراب وي ۳ د اوربشو هم شراب وي ۴ د کجورو هم شراب وي ۵ د انګورو هم شراب وي ۶ او د عسلو (شهد) هم شراب وي. (احمد ترمذي ابوداود) ترمذي ويلي دي چې دا حديث غريب دی

**تسهيلات:** **قوله:** إِنَّ مِنَ الْحِنْطَةِ خَمْرًا:

علماء کرامو ليکلی دی چې دلته حصر مراد نه دې ګڼی چې هم ددې ځيزونو نه شراب جوړيږی . بلکه دا ځيزونه خاص طور سره په دې وجه ذکر کړې شوی دی چې عام طور شراب ددې ځيزونو نه جوړيږی . په دې ارشاد کښې ددې خبرې دليل دې چې خمر صرف د انګورو شرابو ته نه وائی ، ابن ملک رحمه الله فرمائی چې د لته د انګوری شرابو نه علاوه د نورو ځيزونو شرابو ته هم مجازا خمر وئيلې شوی دی . او په دې کښې مناسبت دادې چې ددې ځيزونوشراب (يا نشه آور نبيذ) هم د انسان عقل زائل کوی .

**[۳٦٤٨] د شرابو مال متقوم نه کيدل**

۳۶۳۸-[۱۴] (۲) ۱ «وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ ۲: كَانَ عِنْدَنَا خَمْرٌ لِيَتِيمٍ ۳ فَلَمَّا نَزَلَتِ الْمَائِدَةُ سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْهُ وَقُلْتُ: إِنَّهُ لِيَتِيمٍ، ۴ فَقَالَ: أَهْرِيقُوهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه وايي ۲ زمونږ سره د يو يتيم شراب پراته وه (يعنی زمونږ په کورکي يو يتيم اوسيدی چې زمونږ په پرورش کې وو د هغه په ملکيت کې چرته چې نور ډير مال او اسباب وو شراب هم وه، ځکه چې په هغه زمانه کې شراب مباح وه) ۳ نو د سورة مائده دا آيت: إِنَّمَا الْخَمْرُ الايه چې کله نازل شو (چې په هغه کې د شرابو د حرمت بيان دی چې د باب حد الخمر په ابتداء کې نقل شوی دی) نو ما د هغه يتيم د شرابو په باره کې رسول کريم ﷺ نه د ريافت اوکړو او عرض مي اوکړو چې هغه د

[۱] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأشربة/باب الخمر ممّا هو (رقم-۳۶۷۶) والترمذی فی کتاب الأشربة عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب ما جاء فی شارب الخمر(رقم-۱۸۶۲) و ابن ماجه فی کتاب الطبّ/باب الحجامة (رقم-۳۴۷۹) واحمد فی المسند: ۴/۲۶۷

[۲] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الأشربة عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب ما جاء کلّ مسکر حرام (رقم-۱۸۶۳) واحمد فی المسند: ۳/۲۶

یو یتیم مال دی او د یتیم مال ضائع کول نه دي پکار نو په دي باره کې څه حکم دی؟ [۲] حضور ﷺ وفرمایل هغه توی کړه (ترمذي)

**حل اللغات:** ① أَهْرِقُوهُ: اونې غورزوئ، توئ ئې کړئ.

**تسهیلات: قوله:** إِنَّهُ لِيَتِيمٍ:

**د ابو سعید د خبرې مطلب:** دَ صحابی مطلب دا ووچه دَ ورو ماشومانو اودَ یتیم مال دې دا څنګه ضائع کولې شی. نبی کریم اوفرمائیل "اهریقوه" خامخا دا اوبهیوه وئی غورزه وه څکه چه دا محفوظ مال نه دې، واجب الحفاظت نه دې بلکه واجب الاهانت دې.

**[٣٦٤٩] دَ شرابو د لوښو د ماتولو حکم**

[۱۵]—۳۶۴۹ () [۱] «وَعَنْ أَنَسِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ أَنَّهُ قَالَ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ إِنِّي اشْتَرَيْتُ خَمْرًا لِأَيْتَامٍ فِي حِجْرِي، [۲] قَالَ: أَهْرِقِ الْخَمْرَ وَاكْسِرِ الدِّنَانَ». [۳] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَضَعَّفَهُ، [۴] وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ أَنَّهُ «سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَيْتَامٍ وَرِثُوا خَمْرًا، قَالَ: أَهْرِقْهَا، [۵] قَالَ: أَفَلَا أَجْعَلُهَا خَلًّا؟ قَالَ: لَا».

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس د حضرت ابوطلحه ﷺ نه نقل کوي هغه عرض اوکړو یا نبي الله ما دي یتیمانو د پاره شراب رانیولي وه کوم چې څما پرورش کې دي [۲] حضور ﷺ ورته وفرمایل شراب توی کړه او د هغه لوښي مات کړه [۳] ترمذي دا روایت نقل کړي دی او ضعیف یې ګرځولی دی [۴] د ابوداود په روایت کې داسې دي چې ابو طلحه ﷺ د هغه یتیمانو په باره کې پوښتنه وکړه کوم چې د هغه پرورش کې وو او هغه ته په میراث کې شراب حاصل شوي وه. نو حضور ﷺ وفرمایل هغه توی کړه [۵] هغه عرض اوکړو آیا د دې سرکه جوړه نه کړم؟ وي فرمایل نه.

**حل اللغات:** ① أَيْتَامٍ: یتیمان. ② حِجْرِي: پرورش. ③ أَهْرِقِ: واروه، توئې کړه. ④ اكْسِرِ: مات کړه. ⑤ الدِّنَانَ: د شرابو لوښي

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنِّي اشْتَرَيْتُ خَمْرًا لِأَيْتَامٍ فِي حِجْرِي:

حضرت ابو طلحه ﷺ د شرابو د حرمت نه وړاندې هغه یتیمانو دپاره شراب اخستي وو کوم چې ددهٔ زیر پرورش وو. کله چې شراب حرام شو نو دې باره کښې ئې نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو چې په دې څه اوکړم آیا دا ضائع کړم که نه ؟ نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې دا توې کړه او دې سره ددې د لوښو د ماتولو حکم ئې هم اوکړو څکه چې په دې کښې د شرابو نجاست سرایت کړې وو. او اوس ددې پاکول ممکن نه دی. یا دا

[۱] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب البیوع عن رسول اللّٰه صلّی اللّٰه علیه وسلّم/باب ما جاء فی بیع الخمر والنّهی عن ذلک (رقم-۱۲۹۳)

چې نبي کريم ﷺ د شرابو د ممانعت دشدت ظاهرولو دپاره دا حکم اوکړو چې کوم لوښي کښې هغه شراب پراته وو نو هغه هم مات کړه ، داشان نبي کريم ﷺ ددې شرابو نه د سرکې جوړولو نه هم منع اوفرمائيله ، ددې تعلق هم د زجر او تنبيه سره دې يا دا ممانعت د نهي تنزيهي په طور دی

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۳۶۵۰] د هرمسکر څيز حرمت

۳۶۵۰-[۱۶] (١) ١ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: ٢ «نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ كُلِّ مُسْكِرٍ وَمُفْتِرٍ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ بي بي ام سلمه رضي الله عنها وايي ٢ چې رسول کريم ﷺ د هرهغه شي د خوړلو څکلو نه منع فرمايلې ده کوم چې نشه راولي او سستي راولي. (ابوداود)

**حل اللغات:** ① مُفْتِرٍ: نشه راوستونکې څيز.

**تسهيلات:** **قوله:** وَمُفْتِرٍ:

**د مفتر په معنی کښې مختلف اقوال:** ① نهايه ابن کثير کښې ليکلي دی چه مفتر هغه څيز ته وائی دکوم په څکلوسره چه په دماغو او زړه باندې ګرمی خوره شی او په اعضاء رئيسه کښې ضعف فتور او کمزوری پيدا شی.

② په قاموس کښې دی "فترجسمه فتوراًلانت مفاصله وضعف" يعنی بدن اوډ بدن جوړونه چه په کوم څيز سره ضعيف کمزورې او سست شی هغه مفتر دې

## [۳۶۵۱] د شرابو څکلو څخه د نه منع کيدونکوسره د قتال حکم

۳۶۵۱-[۱۷] (٢) ١ «وَعَنْ دَيْلَمٍ الْحِمْيَرِيِّ قَالَ: ٢ قُلْتُ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّا بِأَرْضٍ بَارِدَةٍ وَنُعَالِجُ فِيهَا عَمَلًا شَدِيدًا، ٣ وَإِنَّا نَتَّخِذُ شَرَابًا مِنْ هَذَا الْقَمْحِ نَتَقَوَّى بِهِ عَلَى أَعْمَالِنَا وَعَلَى بَرْدِ بِلَادِنَا، ٤ قَالَ: هَلْ يُسْكِرُ؟ قُلْتُ: نَعَمْ. قَالَ: فَاجْتَنِبُوهُ. ٥ قُلْتُ: إِنَّ النَّاسَ غَيْرُ تَارِكِيهِ، ٦ قَالَ: إِنْ لَمْ يَتْرُكُوهُ فَاتِلُوهُمْ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ ديلم حميري رضي الله عنه وايي ٢ ما عرض اوکړو چې يارسول الله! مونږ خلق د يوې يخې علاقې باشندګان يو چې هلته مونږ د سخت محنت کارونه کوو او هغه سخت محنت د ډير زيات جسماني قوت متقاضي وي ٣ څکه مونږ خلق د غنمو شراب تيار وو چې د هغه په ذريعه مونږ خپل محنت د پاره طاقت حاصلوو او د هغه قوت سره د خپلې

---

(١) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأشربة /باب النّهى عن المسكر (رقم-۳۶۸۶) واحمد فى المسند: ۳۰۹/۶

(٢) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأشربة /باب النّهى عن المسكر (رقم-۳۶۸۳) واحمد فى المسند: ۲۳۲/۴

علاقي په يخنئ قابو پيدا كوو [۴] حضور ﷺ راته وفرمايل آيا هغه شراب نشه راولي؟ ما عرض اوكړو چې هو نو حضور ﷺ وفرمايل بيا د هغه نه پرهيز كوى [۵] ما عرض اوكړو خلق د هغه پريښودنكي نه دي [۶] حضور ﷺ وفرمايل كه خلق د هغه څكل بند نه كړي [او هغه حلال وګڼي] نو د هغوى سره قتال جنګ وكړى (ابوداود)

**حل اللغات:** ①بَارِدَةٍ: يخه . ②الْقَمْحِ: غنم

**تسهيلات:**

الحاصل ددې حديث پاك نه معلومه شوه چې دهر نشئ څيز استعمال درست نه دې كه د هر څيز سره جوړ شوې وى

**[۳۶۵۲] د شرابو او د جوارئ حرمت**

۳۶۵۲-[۱۸] (¹) [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۲] «نَهَى عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ وَالْكُوبَةِ وَالْغُبَيْرَاءِ [۳] وَقَالَ: كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او عبد الله ابن عمرو رضي الله عنهما روايت كوي چې رسول كريم ﷺ [۲] د شراب څكلو او جواري كولو نه منع وفرمايله او كوبه او غبيراء نه يې هم منع فرمايلې ده [۳] او وې فرمايل كوم څيز چې هم نشه راولي هغه حرام دى. (ابوداود)

**حل اللغات:** ①الْمَيْسِرِ: جوارى . ②الْكُوبَةِ: نرد . شطرنج (يو قسم لوبه. زمرې) ③الْغُبَيْرَاءِ: يو قسم شراب دى. د جوارو شراب

**تسهيلات: قوله:** وَالْغُبَيْرَاءِ:

**دحبشو شراب:** داحبشوسره د جوړيدونكو شرابو نوم دې افريقى ممالك كښې د جوارو پيداوار ډير زيات وى هغه خلق چه د جوارونه كوم شراب نچوړ كوى هغې تهغبيرا وائى

**[۳۶۵۳] د شرابي جنت ته نه داخليدل**

۳۶۵۳-[۱۹] (²) [۱] وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ [۲]: «لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ عَاقٌّ [۲] وَلَا قَمَّارٌ [۳] وَلَا مَنَّانٌ [۴] وَلَا مُدْمِنُ خَمْرٍ. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ [۵] وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ: وَلَا وَلَدُ زِنْيَةٍ بَدَلَ قَمَّارٍ».

**ترجمه:** [۱] عبد الله ابن عمرو رضي الله عنهما روايت كوي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] كوم بندګان خاص [چې نجات پيدا كولو سره شروع كې په جنت كې داخل شي د هغوئ سره به] جنت كې هغه سرى نه داخليږي چې هغه د مور او پلار ابلا وجه شرعي] نافرماني كوي [۲] نه به جوارګر داخليږي [۳] نه به هغه سړى داخليږي [چې فقراوو ته صدقه وركولو سره] احسان

¹) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأشربة /باب النّهى عن المسكر (رقم-۳۶۸۵)
²) اخرجه النسائى فى السنن كتاب الأشربة /باب الرّواية فى المدمنين فى الخمر (رقم-۵۶۷۲) واحمد فى المسند: ۲۰۱

باندې کوی ۴ او نه به هغه سړی داخلیږي کوم چې همیشه شراب څکي (دارمي) ۵ او د دارمي په یوبل روایت کې نه به جواري کونکی داخلیږي په ځای دادي چې نه به ولد الزنا په جنت کې داخلیږي

1 **حل اللغات:** ①عَـاقٌ: د مور پلار نافرمانی ئې وکړه ②قَمَّارٌ: جوارګر. ③مَنَّانٌ: احسان زباتونکې. نیکی وریادونکې ④مُدْمِنٌ: همیشه شراب څکونکې

**تسهیلات: قوله:** وَلَاقَمَّارٌ:

**په جواری کښې یو ضابطه:** جواری کونکی ته قماروانی د موجوده زمانې په اعتبار سره هرهغه لوبه په کوم کښې چه د طرفین نه د ګټې اوتاوان په شرط تړلې شوې وی هغه ټولې لوبې په جوارئی کښې داخل دی

**قوله:** وَلَاوَلَدُزِنْيَةٍ:

**د ولد زنا د جنت نه د محرومیدو وجه:** ولد زنا چونکه د پلار د تربیت نه محروم وی د منحوس نطفې خراب اثر په هغه کښې وی په عام توګه باندې بدعمله وی د بدکرداره مور په غیر کښې پاللې کیږی لهذا د ظاهری اوباطنی تربیت نه ملاویدو د وجې نه په هرقسم فضولیاتو او بدعملوکښې اخته وی په دې وجه د جنت نه محروم کیږی بعضی علماؤ دې حدیث ته ضعیف وئیلی دی ځکه چه دا د شریعت د قواعدونه په ظاهره متعارض دې ځکه چه د وړوکی ماشوم څه قصوردې بعضې وئیلی دی په دې سره د دغه بچی زناکار پلار باندې تعریض مقصوددې چه د داسې بچی د پیداکیدو سبب جوړشو

**[۳٦٥٤] د شرابو څخه د پرهیز کولو بدله**

۳٦٥٤ - [۲۰] (١) ١ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ «إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى بَعَثَنِي رَحْمَةً لِلْعَالَمِينَ ٣ وَأَمَرَنِي رَبِّي عَزَّوَجَلَّ بِمَحْقِ الْمَعَازِفِ وَالْمَزَامِيرِ وَالْأَوْثَانِ وَالصُّلُبِ. وَأَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ ٤ وَحَلَفَ رَبِّي عَزَّ وَجَلَّ بِعِزَّتِهِ: لَا يَشْرَبُ عَبْدٌ مِنْ عَبِيدِي جُرْعَةً مِنْ خَمْرٍ إِلَّا سَقَيْتُهُ مِنَ الصَّدِيدِ مِثْلَهَا، ٥ وَلَا يَتْرُكُهَا مِنْ مَخَافَتِي إِلَّا سَقَيْتُهُ مِنْ حِيَاضِ الْقُدُسِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ١ او ابو امامه رضي الله عنه وایي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل ٢ الله جل جلاله زه پوره دنیا د پاره رحمت او ټول عالم د پاره هادي هدایت کونکی رالیږلی یم ٣ او خما بزرګ و برتر الله ماته حکم کړي دی چې زه د ①باجو ②مزامیر ③بتانو ④صلیبونو ⑤او د زمانه جاهلیت [یعنی د کفر د حالت ټول رسوم او عادات] وران ختم کړم ٤ او خما بزرګ وبرتر الله په خپل عزت قسم آخستلو دی چې خما بنده ګانو کې کوم بنده هم یو ګوټ شراب وڅکي په هغه به په آخرت کې د هغه په قدر د دوزخیانو نو (پیپ) څکوم ٥ او کوم بنده

(١) اخرجه احمد في المسند: ۵/۲۲۸

چې څما د خوف نه شراب څکل پرېږدي زه به په هغه په آخرت کې، د پاکو حوضونو يعنې د جنت د نهرونو نه شراب طهور څکوم (احمد)

**حل اللغات:** ①يَمْحَقَ: ختمول. ورانول ②الْمَعَازِفَ: د ګانو بجانو. سرود آلات ③الْمَزَامِيرَ: باجې. شپيلئ ④الْأَوْثَانَ: بتان. ⑤الصُّلُبَ: صليب. د عيسايانو مذهبي نښه ⑥جَرْعَةً: ګوټ. ⑦الصَّدِيدِ: وينې زوې. پيپ ⑧حِيَاضِ: جمع د حوض، حوضونه. ⑨الْقُدُسِ: پاک صفا

**تسهيلات: قوله:** الْمَعَازِفَ:

**د معازف نه مراد:** دې نه مراد باجې ډولکې نقاره دوپړئې ستار رباب او سارنګي وغيره اودغه شان نور آلات غنا مراد دي.

**[٣٦٥٥] په درې قسمه خلقو د جنت حرمت**

٣٦٥٥ - [٢١] (١) ①وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ②: «ثَلَاثَةٌ قَدْ حَرَّمَ اللهُ عَلَيْهِمُ الْجَنَّةَ ③مُدْمِنُ الْخَمْرِ وَالْعَاقُّ وَالدَّيُّوثُ الَّذِي يُقِرُّ فِي أَهْلِهِ الْخَبَثَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ①او ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل درې قسم خلقو باندې الله جل جلاله جنت حرام کړې دی [يعنې نجات يافته بنده ګانو سره ابتداء کې په جنت کې داخليدل] په دې دريو سړو حرام کړې دی② ① يو هغه سړی چې هميشه شراب څکې ② دويم هغه سړی چې د خپل مور پلار نافرماني کوي او③ دريم هغه ديوث چې د کور والا نورو خلقو سره په جنسي تعلق ساتلو څه پرواه نه ساتي

**حل اللغات:** ①مُدْمِنٌ: هميشه شراب څکونکې. ②الْعَاقُّ: د مورپلار نافرمانه اولاد ③الدَّيُّوثُ: ديوث چې د کور والا نورو خلقو سره په جنسي تعلق ساتلو څه پرواه نه ساتي ④الْخَبَثَ: پليتي. بدکاري. زنا

**تسهيلات: قوله:** وَالدَّيُّوثُ:

**د ديوث تعريف:** دا هغه سړې دې چه دَ خپلې ښځې باره کښې ښه پوهيږي چه بدچلن ده او هغه منع کوي نه بلکه سترګې پټوي او په خاموشئ سره تماشه ګوري په حديث کښې دَ دې هم دغه تعريف راغلې دې لکه چه دې دا بدی بده نه ګڼړي نو دوزخ ته به ځي

**[٣٦٥٦] د درې کسانو جنت ته د نه داخليدو وعيد**

٣٦٥٦ - [٢٢] (٢) ①وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ②«ثَلَاثَةٌ لَا تَدْخُلُ الْجَنَّةَ مُدْمِنُ الْخَمْرِ وَقَاطِعُ الرَّحِمِ وَمُصَدِّقٌ بِالسِّحْرِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

[1]) اخرجه احمد فی المسند: ٢/١٣٤

[2]) اخرجه احمد فی المسند: ٤/٣٩٩

**ترجمه:** [۱] او د ابوموسی اشعري رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل درې قسمه خلق به په جنت کې [ابتداءً] داخلیدو نه محروم وي [۲] ① همیشه شراب څکونکی ② رشتې ناتې خپلولي قطع کونکی ③ سحر یعنی جادو باندې یقین کونکی (احمد)

**حل اللغات:** ① قَاطِعُ: خپلولی ختمونکې، ② الرَّحِمِ: رشته داری. خپلولی

**تسهیلات:**

**قوله:** وَمُصَدِّقٌ بِالسِّحْرِ: ددې نه مراد هغه کس دې کوم چې سحر لره بالذات مؤثر منی . ګنی سحر باندې په دې معنی کښې یقین کول صحیح دی چې دا هم د الله جل جلاله پیدا کړې دې او د الله جل جلاله په حکم سره ددې اثر واقع کیدل ثابت دی لکه څنګه چې فرمائیلې شوی دی چې السحر حق یعنی سحر یو حقیقت دې.

**[۳۶۵۷] د شرابی د الله تعالی سره د ملاقات کیفیت**

۳۶۵۷-[۲۳] (۱) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «مُدْمِنُ الْخَمْرِ إِنْ مَاتَ لَقِيَ اللّٰهَ تَعَالَى كَعَابِدِ وَثَنٍ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] او ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړی چې همیشه شراب نوشي کې مبتلا وي او بیا مړ شي نو هغه به د الله جل جلاله په حضور کې د بت پرست په شان حاضریږي. (احمد)

**حل اللغات:** ① كَعَابِدِ وَثَنٍ: د بُت عبادت عبادت کونکې، بُت پرست.

۳۶۵۸-(۲) وَرَوَى ابْنُ مَاجَهُ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ.

**ترجمه:** ابن ماجه دا روایت د ابوهریره رضي الله عنه نه

۳۶۵۹- [۱] وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ أَبِيهِ [۲] وَقَالَ: ذَكَرَ الْبُخَارِيُّ فِي التَّارِيخِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ أَبِيهِ.

**ترجمه:** [۱] او بیهقي رحمه الله په شعب الایمان کې محمد ابن عبد الله نه او هغه د خپل پلار نه نقل کړي دی [۲] او بیهقي ویلي دي چې امام بخاري رحمه الله دا روایت خپل تاریخ کې محمد ابن عبید الله نه او هغه د خپل پلار ه نقل کړي دی.

**تسهیلات:**

**قوله:** مُدْمِنُ الْخَمْرِ إِنْ مَاتَ لَقِيَ اللّٰهَ تَعَالَى كَعَابِدِ وَثَنٍ:

**د شرابی د عابدِ صنم سره د تشبیه وجه:** د حدیث مبارک حاصل دادې چې کوم شرابی بغیر

---

[1] ) اخرجه احمد فی المسند: ۲۷۲/۱

[2] ) اخرجه ابن ماجه فی السنن کتاب الأشربة /باب مدمن الخمر (رقم-۳۳۷۵)

د توبې نه مړ شي نو الله ﷻ به دده نه خفه وی لك څنګه چې د بت پرست نه به خفه وی هم په دې وجه قرآن کریم کښې شراب د بتانو سره يو ځائې ذکر شوی دی کما فی القرآن ﴿إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنْصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ﴾

**[۳۶۶۰] د شرابو څکلو او د بت پرستی برابری**

۳۶۶۰ ـــ [۲۴] (¹) [۱] عَنْ أَبِي مُوسَى أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ [۲]: مَا أُبَالِي شَرِبْتُ الْخَمْرَ أَوْ عَبَدْتُ هٰذِهِ السَّارِيَةَ دُونَ اللّٰهِ. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او ابوموسی اشعري رضی الله عنه نه منقول دی هغه به فرمايل [۲] زه په دي کې هيڅ فکر او فرق نه کوم چې زه شراب اوڅکم يا دالله نه ما سوا د دې ستني يعنی د کاني د بت عبادت وکړم. (نسائي)

**حل اللغات:** ① السَّارِيَةَ: د کاڼړی ستن، بُت

**تسهیلات:**

**قوله:** مَا أُبَالِي:

دحضرت ابو موسی اشعری رضی الله عنه ددې فرمان مقصد دادې چې زما په نزد شراب څکل او بت پرستی دواړه په يو حکم کښې دی.

¹) اخرجه النسائي في السنن كتاب الأشربة /باب ذكر الرّوايات المغلّظات في شرب الخمر (رقم-۵۶۶۳)

# [۱۸] كِتَابُ الْإِمَارَةِ وَالْقَضَاءِ]

## دامارت او قضاء بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه ستون حديثاً مشتملة على سبع عشرة مسئلة:**

① الترغيب في إطاعة الأمير: ۱، ۲، ۳، ۱۲، ۱۳، ۱۵، ۳۴.

② إطاعة الأمير في المعروف لا في المعصية والظلم: ۲، ۳، ۵، ۶، ۳۶، ۴۰، ۴۹.

③ تقييد إطاعة الأمير بالاستطاعة: ۷، ۱۹.

④ الزجر على من خرج على الأمير والمنع من الخروج: ۸، ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۴، ۳۴.

⑤ حكم البغاوة على الإمام الثاني عند وجود الأول حرمة طاعة الثاني: ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۱۹.

⑥ شناعة من يسأل الإمارة: ۲۰، ۲۱، ۲۲، ۲۳، ۲۴.

⑦ كون الأمير مسؤلاً يوم القيامة: ۲۵.

⑧ ذكر الإمام الخائن والظالم: ۲۶، ۲۷، ۲۸، ۲۹، ۴۳، ۴۴، ۴۹، ۵۱، ۵۵، ۵۷، ۵۸، ۵۹.

⑨ أوصاف الإمام العادل وجزاءه: ۲۹، ۳۰، ۳۱، ۴۴، ۵۰، ۵۴، ۵۷، ۵۸.

⑩ وجوب الصاحب للأمير ظاهراً أو باطناً: ۳۱، ۳۲، ۳۹، ۴۶.

⑪ قباحة إمارة المرأة: ۳۳.

⑫ المنع عن إهانة الأمير: ۳۵.

⑬ ثقل مسؤلية الإمارة: ۲۲، ۳۷، ۳۸، ۳۹، ۴۱، ۵۲، ۵۳، ۵۴.

⑭ التحذير عن مخالطة الأمراء (أي الفساق): ۴۰، ۴۱.

⑮ كون دعوة الأمير إلى الحق أفضل الجهاد: ۴۵.

⑯ نهي الأمير عن تجسس الرعية: ۴۷، ۴۸.

⑰ كون الأمراء بحسب أعمال الناس: ۵۶، ۶۰.

**د لفظ امارة ضبط او معنى:** إمارة دَهمزه کسره سره دي دَ باب سمع‌یسمع نه امرًا وامارة مضبوط كيدو اودَ اميرجوريدو په معنى كښې دي او امارةدَهمزه زبرسره دَ علامت په معنى كښې دي دلته دا مرادنه دي بلكه امارةبكسرةالهمزه مراددي

**په اسلام کښې دَ اسلامی ریاست تصور:**

اسلام يو كامل اومكمل دين دي حكومت او امارت او نصب امام اودَ اسلامي خلافت قيام دَ اسلام حكم دي ځكه چه دَ اسلام زيات احكاماتو نيغ پـه نيغـه تعلق حكومت او

امارت سره تړلي دي. بل دَ اسلام ټول قواعد او قوانين نظم او ضبط دَ اسلام دَ خاص مزاج مطابق کيدل ضروري دی لهذا هر يو مسلمان دَ اسلامي امارت قيام دَ کوشش نه بې تعلق نه شي پاتې کيدې ځکه چه دَ خصومات لرې کول او دَ سرحداتو حفاظت، دَ عيدين او جمعات قيام، دَ بيت المال قيام او دَ صدقات حاصلول، دَ مجاهدينو تياروال اودَ جهاد مهمات، دَ حجاج کرام دَ لارې امن او امر بالمعروف او نهي عن المنکر، دَ مخلوق خدا ضروري خدمات اودَ تعليم او تعلم شعبه جات اودَ الله تعالى قانون په زمکه کښې په عملي توګه نافذ کول ټول په ټول حکومت سره تړلي دی هم په دې وجه اووئيلې شو "الدين والامارة توأمان" يعني دين او حکومت دوه په يو ځائې پيدا شوی رونړه دی

**د خلافت اسلاميه اهميت:**

نصب امام او دَ خلافت اسلاميه قيام دَمسلمانانو او اهم قواعدونه هغه اهم قاعده ده دَ کوم تذکره چه په خاص توګه زمونږ دَ عقائدو په کتابونو کښې کړې شوې ده. چنانچه په شرح عقائد کښې دَدې متعلق داسې ليکلي شوې دی. "ثم الاجماع على ان نصب الامام واجب لقوله عليه السلام من مات ولم يعرف امام زمانه فقد مات ميتة جاهلية، ولان الامامة قد جعلوا اهم المهمات نصب الامام حتى قدموا على الدفن، ولان كثيرا من الواجبات الشرعية يتوقف عليه"

دَدې ټولو تصريحاتو باوجودنه شي وئيلې کيدې چه دين اسلام ته دَ خليفه ضرورت نشته دې اومسلمانانو له دَ احکاماتو اقامت او اشاعت اسلام دَپاره دَ حاکم اوحکمرانئ ضرورت نشته دې. کله چه دا ثابته شوه چه دَ خلافت قيام يو ضروري او اهمه مسئله ده نو مونږ له دَ حکومت دَتشکيل دَپاره دَ اسلام دَ قواعدو په رنړا کښې خاص اسلامي طريقه پکار ده. مونږ چه کله دَ سلف صالحين تشکيلات مخې ته ايږدو نو مونږ له دَ خلافت دَتشکيل دَپاره درې واضحه طريقې ملاويږی.

**دَ خلافت دَتشکيل څلور طريقې:**

① دَ دين اسلام دَ ټولونه زيات وفادار دَټولونه زيات دَدې په قواعدو ضواطو پوهيدونکې اودَ ټولونه زياته قرباني ورکونکې اودَټولونه زياته همدردی لرونکې عام مسلمانان راوړاندې کړی اودَهغه په لاس باندې بيعت اوکړی دَ امامت په منصب باندې اولګوی. دَحضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه دَ خلافت طريقه دَانتخاب هم دغه شان وه. دَ ټولو په اتفاق سره دَهغوی کمالات قرباني اوخدمات په بنيادباندې انتخاب اوشو او په دې باندې دَصحابه کرامو رضي الله عنهم اجماع اوشوه دَ بعضې علماؤ په نيزدَدې اجماع منکر کافردې.

② دَ مسلمانانو اصحاب الرائې مشرانو يوه شورى جوړه کړې شی اوهغه شورى څوک دَخلافت دَپاره اوټاکی اوبيا دَعامو خلقونه په دې باندې بيعت واخلی. حضرت عثمان

رضي الله عنهم په دې طرز باندې مقررشو اودهغوى خلافت په دې طرزباندې جوړشو ځکه چه حضرت عمر رضي الله عنه د زخمي كيدو نه پس شپږ كسان د خلافت د تشكيل دپاره د شورى په توگه منتخب كړل په دې كښې حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه حضرت على رضي الله عنه حضرت طلحه رضي الله عنه حضرت زبير رضي الله عنه حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه او حضرت سعدبن ابى وقاص رضي الله عنه شامل وو هغوى بهرد حفاظتى گارډ پهره لگولې وه او فرمانيلې وو تركومې چه په دوى كښې څوك خوښ كړې شوې نه وى تاسو خلق به دوى بهراتلوته نه پرېږدئى دا د خلافت د تشكيل درې پاكې نمونې دى د كومې په ذريعه چه خلفاء راشدين رضي الله عنهم د خلافتونو قيام عملى كړې شوې وو

④ موجوده خليفه دخپل وفات په وخت څوك پخپله مقرركړى اويائى خپل ولى عهدجوړكړى چنانچه دحضرت عمر رضي الله عنه د خلافت تشكيل په دې طريقه شوې حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه په خپل صوابديد باندې دغه شان مقرركړو چه په يو بند كاغذ كښې دحضرت عمر رضي الله عنه نوم اوليكلو اوبيائى د ټولو مسلمانانو نه مطالبه اوكړه چه په دې بند كاغذ كښې د كوم سړى نوم دې هغه ستاسو خليفه دې آيا تاسوبه هغه منئى ټولو اقرار اوكړو چه اومنوبه ئى حضرت على رضي الله عنه اوفرمائيل چه منم سره ددې چه په دې كښې دحضرت عمر رضي الله عنه نوم ليكلې شوې وى كله چه نوم ښكاره كړې شو نوهغه هم دحضرت عمر رضي الله عنه نوم وو دغه شان هغه خليفه جوړشو

④ دا طريقه اگرچې منصوص عليه نه ده ليكن ډير زيات خليفه گان د بادشاهت په طريقه باندې منتخب كړې شوى دى په دې وجه دې ته بالكل ناجائزنه شى وئيلى د بنواميه په دوركښې هم په دغه طريقه باندې بادشاهان وو بادشاهت د وراثت په بنياد قائم كړې شوې حكومت وى

**د قاضى د قضاوت وضاحت**: قاضى هم هغه سړې وى كوم چه د وخت حاكم د عاموخلقود قضايااو معاملات فيصله كولودپاره مقرركوى د اسلام په نظر كښې اقتدار اعلى د الله تعالى په لاس كښې دې اود مسلمانانوچه كوم حكومتونه او خلافتونه دى دا صرف هم د هغه اقتدار اعلى د احكامودتنفيذدپاره مقرركولې شى د اسلام په نظركښې په پوره دنياكښې دمسلمانانوهم يوخليفه كيدل پكاردى د امام اوحاكم دپاره ضرورى دى چه په هغه كښې د احكاماتو د تنفيذ كولو قوت اوحوصله وى كه چرې د احكاماتود تنفيذكولو قدرت ئى نه وى نوهغه خليفه پخپله معزول كيږى.

**د فسق اوفجور په وجه د قاضى په تعزيل كښې ٢ مذاهب**:

① امام شافعى رحمه الله فرمائى چه چرته حاكم په فسق اوفجوركښې اخته شى نوهغه معزول كولې شى اوهم دغه مسئله د قاضى هم ده.

④ امام ابوحنیفه ﷫ فرمائي چه دَ فسق اوفجوردَ وجې نه حاکم اوقاضي نه شي معزول کولې اوکه چرې واضحه کفرئي مخې ته راشي يا امام اوقاضي مونځ ترك کړي نوبيامعزول کولې شي اوکه چرې دَ شروع نه امام اوقاضي فاسق وي نو احناف په دې صورت کښې شوافعو سره دي چه داسې فاسق اوفاجر امام اوقاضي مقررکول جائز نه دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[۳۶۶۱] دامیر په تابعدارۍ د رسول د تابعدارۍ اطلاق**

۳۶۶۱-[۱] ([1]) ①عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②«مَنْ أَطَاعَنِي فَقَدْ أَطَاعَ اللهَ وَمَنْ عَصَانِي فَقَدْ عَصَى اللهَ، ③وَمَنْ يُطِعِ الْأَمِيرَ فَقَدْ أَطَاعَنِي وَمَنْ يَعْصِ الْأَمِيرَ فَقَدْ عَصَانِي ④وَإِنَّمَا الْإِمَامُ جُنَّةٌ يُقَاتَلُ مِنْ وَرَائِهِ وَيُتَّقَى بِهِ ⑤فَإِنْ أَمَرَ بِتَقْوَى اللهِ وَعَدَلَ فَإِنَّ لَهُ بِذَلِكَ أَجْرًا ⑥وَإِنْ قَالَ بِغَيْرِهِ فَإِنَّ عَلَيْهِ مِنْهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①حضرت ابوهريره ﵁ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ②کوم سړی چې ځما فرمانبرداري کوي هغه د الله ﷻ فرمانبرداري وکړله او کوم سړي چې ځما نافرماني وکړه هغه د الله ﷻ نافرماني وکړه ③او کوم سړی چې د خپل امير سردار اطاعت وکئ هغه ځما اطاعت اوکړو او کوم سړي چې د خپل امير نافرماني وکړه هغه ځما نافرماني وکړه ④او ياد لرئ امام [يعنی سربراهِ مملکت] دمسلمانانو د پاره د ډهال په شان دی چې د هغه د وروسته نه [يعنی د طاقت په زور] جنګ کيږي او دَ هغه په ذريعه [د دښمنانو د آفاتو او بلياتو نه] حفاظت حاصليږي ⑤نو که هغه امام دالله ﷻ نه ويرېدو سره د دې [قانون مطابق فيصله وکړي او] عدل او انصاف نه کار واخلي نو د دې په وجه هغه امام د لوی اجر او ثواب مستحق کيږي ⑥او که هغه داسې ونه کړه [يعنی د هغه احکام او فيصلي د الله خوف د قانون الهي روح او د عدل او انصاف] نه خالي وي نو په دې وجه به هغه سخت ګنهګار وي

**حل اللغات:** ①جُنَّةٌ: ډهال. ②يُتَّقَى بِهٖ: يريږی د الله نه

**تسهيلات:** **قوله:** وَمَنْ يُطِعِ الْأَمِيرَ:

**د امير نه په مراد کښې دوه اقوال:** ①دَ اميرنه دلته دَ نبی کريم مقررکړي شوي اميرهم مراد اخستې شي "اي اميري"

---

[1] ) اخرجه البخاري في كتاب الجهاد والسير/باب يقاتل من وراء الإمام ويتقى به (رقم-۲۹۵۷) ومسلم في كتاب الإمارة/باب وجوب طاعة الأمراء في غير معصية. وتحريمها في المعصية (رقم-۳۳ - (۱۸۳۵) والنسائي في كتاب البيعة/باب الترغيب في طاعة الإمام (رقم-۴۱۹۳)وابن ماجه في كتاب الجهاد/باب طاعة الإمام (رقم-۲۸۵۹) واحمد في المسند:۲/۲۵۲

② اومطلق امیر یعنی څوك حاكم یا دَ حاكم دَ طرف نه مقرركړې شوې امیرهم مراد اخستې شی لکه چه یوسړې دَ یوعلاقې گورنر یا وزیر وی یاپه بل څه كارباندې مامور وی

**د حدیث پس منظر**: په دې حدیث کښې دَ عرب قبائلو امیر اود امیردَ اطاعت نظام سره متعارف کړې شوې دې په عربو کښې چونکه قبائلی سستم رائج وو نوهغه خلق په ذهنی توگه دَامیر اوحاكم نه غیرمانوس او ویریدل دَدې ویرې ختمولودپاره نبی کریم اوفرمائیل چه دَ سرکاری امیر اطاعت په حقیقت کښې زما اطاعت دې څکه چه هغه ما مقررکړې دې

**قوله**: وَإِنَّمَا الْإِمَامُ جُنَّةٌ:

**د خلیفه تشبیه د ډهال سره د ورکولو وجه**: دَمسلمانانودَ خلیفه تشبیه نبی کریم ډهال سره څکه ورکړې ده چه څنگه په ډهال سره دَ توري گذار رامنع کولې شی اوخپل ځان بچ کولې شی دغه شان دَحاكم په ذریعه سره رعایا دَ دښمن نه بچ کیږی "یُقَاتَلُ او یُتَّقَى" دواړه مجهول صیغې دی.

**[۳٦٦٢] د كمتر امیر داطاعت وجوب**

[۲]( )[۱] وَعَنْ أُمِّ الْحُصَيْنِ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «إِنْ أُمِّرَ عَلَيْكُمْ عَبْدٌ مُجَدَّعٌ يَقُودُكُمْ بِكِتَابِ اللهِ فَاسْمَعُوا لَهُ وَأَطِيعُوا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [۱] بي بي ام حصين رضي الله عنها وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] كه يوه پوزه پريكړي او غوږ پريكړي غلام هم ستاسو حاكم جوړ شي او هغه د الله جل جلاله د قانون مطابق په تاسو حكمراني كوي نو تاسو د هغه حكم واوری او د هغه اطاعت كوی (مسلم)

**حل اللغات**: ① مُجَدَّعٌ: غوږ يا پوزه پريكړې شوې غلام، بوچې غلام. ② يَقُودُكُمْ: حكمرانی كوی په تاسو.

**تسهیلات**:

**قوله**: إِنْ أُمِّرَ عَلَيْكُمْ عَبْدٌ مُجَدَّعٌ يَقُودُكُمْ بِكِتَابِ اللهِ فَاسْمَعُوا لَهُ وَأَطِيعُوا

**د غلام حاكم د اطاعت په مفهوم كښې درې اقوال**:

① دا حبشی غلام په زور په حكومت باندې كیناستو اوقابض شولكه چه په مصر كښې كافور متغلب شوې وو نو په دغه صورت كښې كه هغه دكتاب الله په رڼړاكښې حكومت چلوی نودَ هغه دَ اطاعت نبی كریم حكم وركړې دې

② دلته دَ امیرنه بادشاه مرادنه دې بلكه دَ بادشاه مقرركړې شوې امیراونائب مراد دې

[۱] ) اخرجه مسلم فی كتاب الحج /باب استحباب رمی جمرة العقبة یوم النحر راكبا، وبیان قوله صلّی الله علیه وسلّم «لتأخذوا مناسككم» (رقم-۳۱۱ - (۱۲۹۸)

چه په يو خاص علاقه باندې امير جوړ کړې شوې وی

③ دا کلام دَ فرض او تقدير په توګه دې چه فرض کړه که غلام هم په تاسو باندې بادشاه کړې شی نو بيا هم اطاعت کوئی نو دلته دَ اطاعت ترغيب دې دَ غلام دَ حکومت تسليم کول نه دی

**[۳۶۶۳] دغلام امير د تابعدارۍ وجوب**

۳۶۶۳-[۳] (۱) ①وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ②: «اسْمَعُوا وَأَطِيعُوا③وَإِنِ اسْتُعْمِلَ عَلَيْكُمْ عَبْدٌ حَبَشِيٌّ كَأَنَّ رَأْسَهُ زَبِيبَةٌ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①او حضرت انس رضي الله عنه وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ②د خپل امير او حاکم فرمان واورې او د هغه د اوامرو او نواهي اطاعت وکړې (ترڅو پورې چې د هغه څه حکم او فرمان د الله او د هغه د رسول خلاف نه وي) ③اګر چې په تاسو باندې يو داسې غلام حکمران جوړ شوی وي چې د هغه سر (وړوکوالي او سياهي کې) د انګور په شان وي

**حل اللغات:** ①زَبِيبَةٌ: د انګورو دانه

**تسهيلات:**

**قوله:** كَأَنَّ رَأْسَهُ زَبِيبَةٌ:

**د زبيب معنی اودلته ترې مراد:** دَمیوې او انګور وړې دانې ته وائی مراد ترې نه ذليل حقير او کمتر غلام دې داد اميرد اطاعت تاکيددې دَ جواز اوعدم جواز خبره نه ده اودا شرط ضروری دې چه هغه د کتاب الله په رڼا کښې حکومت چلوی

**[۳۶۶۴] دامير د تابعدارۍ حدود**

۳۶۶۴-[۴] (۲) ①وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②«السَّمْعُ وَالطَّاعَةُ عَلَى الْمَرْءِ فِيمَا أَحَبَّ وَكَرِهَ③مَا لَمْ يُؤْمَرْ بِمَعْصِيَةٍ④فَإِذَا أُمِرَ بِمَعْصِيَةٍ فَلَا سَمْعَ وَلَا طَاعَةَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①او ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ②د خپل امير او حاکم خبره آوريدل او د هغه د احکامو پيروي کول په هر حال کې مرد مسلم باندې واجب دی برابره خبره ده که هغه څه حکم هغه ته خوښ وي يا ناخوښ وي ③ترڅو پورې چې د يو ګناه د

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الأحکام/باب السّمع والطّاعة للإمام ما لم تكن معصية (رقم-۷۱٤۲) وابن ماجه فی کتاب الجهاد/باب طاعة الإمام (رقم-۲۸۶۱) واحمد فی المسند:۴۰۲/۶

(۲) اخرجه البخاری فی کتاب الأحکام/باب السّمع والطّاعة للإمام ما لم تكن معصية (رقم-۷۱٤٤) ومسلم فی کتاب الإمارة/باب وجوب طاعة الأمراء فی غير معصية، وتحريمها فی المعصية (رقم-۳۸ - (۱۸۳۹) و ابو داود فی کتاب الجهاد/باب فی الطّاعة (رقم ۲۶۲۶) والترمذی فی کتاب الجهاد عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء لا طاعة لمخلوق فی معصية الخالق (رقم-۱۷۰۷) والنسائی فی کتاب البيعة/باب جزاء من أمر بمعصية فأطاع(رقم-۴۲۰۶) وابن ماجه فی کتاب الجهاد/باب لا طاعة فی معصية الله (رقم-۲۸۶٤)واحمد فی المسند:۱۷/۲

خبري حكم او نه شي [۴] نو هر کله چې يو حاکم داسې حکم وکړي چې په هغه عمل کولو کې گناه وي نو د هغه اوريدل او اطاعت کول واجب نه دی

**حل اللغات:** ①النَّمَرُ: خبره آوريدل، اطاعت کول

**تسهيلات:**

**قوله:** فِيمَا أَحَبَّ وَكَرِهَ:

**د حاکم د اطاعت حکم:** دَامير او حاکم اطاعت په هرحالت کښې واجب دې که دغه حکم دَ طبيعت موافق وی او که موافق نه وی خو په دې شرط چه دغه حکم دَ شريعت موافق وی او که چرې حاکم دَ شريعت نه خلاف حکم ورکوی نو په هغې کښې اطاعت نشته دې او په دغه صورت کښې هم بغاوت جائز نه دې تردې چه دَهغه کفربنه ښکاره اونه وينی مونځ ترک کول هم دَ بغاوت دَپاره کافی دې "لاطاعة لمخلوق في معصية الخالق".

**[۳۶۶۵] په گناه کښې عدم اطاعت**

۳۶۶۵ — [۵] () [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «لَا طَاعَةَ فِي مَعْصِيَةٍ [۳] إِنَّمَا الطَّاعَةُ فِي الْمَعْرُوفِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت علي ﷺ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] د هيڅ داسې حکم اطاعت او فرمانبرداري جائز نه ده چې د هغه تعلق گناه سره وي (برابره خبره ده که هغه حکم د امير او حاکم د طرف نه وي يا د مور او پلار او استاذ او پير د طرف نه وي) [۳] اطاعت او فرمانبرداري خو صرف بښه نيک حکم کې واجب ده (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ①الْمَعْرُوفِ: نيک عمل، شريعت.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا طَاعَةَ فِي مَعْصِيَةٍ إِنَّمَا الطَّاعَةُ فِي الْمَعْرُوفِ:

**په گناه کښې د حاکمانو عدم اطاعت:**

د نبی کريم ﷺ فرمان چې معصيت کښې اطاعت نشته دې . ددې مطلب دادې چې که امام دنيکۍ حکم کوی نو د هغه خبره منل پکار دی او دهغه ددې خبرې نه انحراف کول نه دی پکار او که امام د يوې گناه حکم اوکړی نو اطاعت ضروری نه دې (کما في قوله عليه السلام لا طاعة لمخلوق في معصية الخالق).

---

[۱] ) اخرجه البخاري في كتاب أخبار الآحاد /باب ما جاء في إجازة خبر الواحد الصدوق في الأذان والصلاة والصوم والفرائض والأحكام (رقم-۷۲۵۷) ومسلم في كتاب الإمارة/باب وجوب طاعة الأمراء في غير معصية، وتحريمها في المعصية (رقم-۳۹ - (۱۸٤۰) و ابو داود في كتاب الجهاد/باب في الطاعة (رقم-۲۶۲۵) والنسائي في كتاب البيعة/باب جزاء من أمر بمعصية فأطاع(رقم-٤۲۰۵) واحمد في المسند: ۸۲/۱

**[۳٦٦٦] رسول الله سره په هر حالت کښې د تابعدارۍ وعده**

۳٦٦٦ -[۲] (١) ۱«وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ: ۲بَايَعْنَا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى السَّمْعِ وَالطَّاعَةِ فِي الْعُسْرِ وَالْيُسْرِ وَالْمَنْشَطِ وَالْمَكْرَهِ، ۳وَعَلٰى أَثَرَةٍ عَلَيْنَا ۴وَعَلٰى أَنْ لَا نُنَازِعَ الْأَمْرَ أَهْلَهُ ۵وَعَلٰى أَنْ نَقُولَ بِالْحَقِّ أَيْنَمَا كُنَّا ٦لَا نَخَافُ فِي اللّٰهِ لَوْمَةَ لَائِمٍ. ۷وَفِي رِوَايَةٍ: وَعَلٰى أَنْ لَا نُنَازِعَ الْأَمْرَ أَهْلَهُ ۸إِلَّا أَنْ تَرَوْا كُفْرًا بَوَاحًا ۹عِنْدَكُمْ مِنَ اللّٰهِ فِيهِ بُرْهَانٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱او عباده بن صامت رضي الله عنه وايي ۲مونږ د رسول کريم ﷺ په لاس مبارك بيعت اوکړو (يعنی د حضور ﷺ مخامخ د هغه امورو مو عهد وکړو) چې مونږ به د حضور ﷺ هدايات توجه سره اورو او هر قسم حالاتو کې به د حضور ﷺ د احکامو اطاعت کوو تنګي او سختو حالاتو کې هم او آساني او خوش آيند زمانه کې هم د خوښی په موقع هم او د ناخوښي په حالت کې هم ۳که مونږ باندې ترجيح ورکول شي نو مونږ به صبر کوو ۴مونږ به امر د هغه د ځای نه نه اوباسو ۵مونږ چې کله د ژبې نه يو خبره کوو نو حق به وايو برابره خبره ده که په هرځای کې يو په هرحال کې يو، ٦او مونږ به د الله جل جلاله معامله کې (يعنی دين رسولو او حق خبره کولو کې) د چا ملامت کونکي سړي د ملامتيا نه به نه ويريږو ۷او په يو روايت کې داسې دي چې مونږ د دې خبرې عهد وکړې چې مونږ به امر د هغه د ځای نه نه اوباسو ۸نو حضور ﷺ وفرمايل چې امر د هغه د ځای نه مه اوکاږئ خو که تاسو څرګند کفر ووينی ۹چې په هغه ستاسو سره د الله د طرف نه (يعنی د قرآن د څه آيت يا حديث په صورت کې) دليل وي او په هغه کې د څه تاويل ګنجائش نه وي) نو په دې صورت کې امر د هغه د ځای نه د ښکلو اجازت دی.

**حل اللغات:** ①بَايَعْنَا: بيعت اوکړل مونږ (دلته په معنی دعهد دې ای عاهدنا). ②الْعُسْرِ: سختی، تنګی ③الْيُسْرِ: خوشحالی. ④الْمَنْشَطِ: دالفظ دَ نشاط نه دې دَخوشحالئ دَپاره استعمالیږی ⑤الْمَكْرَهِ: ناخوښی. ⑥أَثَرَةٍ: ترجيح ورکول. ⑦لَوْمَةَ: ملامتيا. ⑧لَائِمٍ: ملامت کونکې. ⑨بَوَاحٍ: ښکاره. ⑩بُرْهَانٌ: دليل

**تسهيلات:** **قوله:** وَالْمَنْشَطِ وَالْمَكْرَهِ:

**په لفظ المنشط کښې درې احتمالات:** ① داصيغه يا مصدر ميمی په معنی نشاط ده
② ظرف زمان دې يعنی دَ خوشحالئی اونشاط په وخت هم اطاعت اوکړی
③ داصيغه دَظرف مکان دَپاره ده يعنی دَ خوشحالئ اونشاط په مقام کښې هم اطاعت دې.

---

¹) اخرجه البخاری فی کتاب الأحکام/باب: کيف يبايع الإمام النّاس (رقم-۷۲۰۲) ومسلم فی کتاب الإمارة/باب وجوب طاعة الأمراء فی غير معصية. وتحريمها فی المعصية (رقم-٤۲ - (۱۷۰۹) والنسائی فی کتاب البيعة/باب البيعة علی أن لا ننازع الأمر أهله (رقم-٤١٥١) و ابن ماجه فی کتاب الجهاد/باب البيعة (رقم-۲۸٦٦) ومالک فی الموطا کتاب الجهاد/باب التّرغيب فی الجهاد (رقم-٥) واحمد فی المسند:٥/٣١٤

**قوله: وَعَلَى أَثَرَةٍ:**

**د انصارو د نبي ﷺ سره په معاهده باندې وفا:** اثرة همزه او ثاء باندې زبردې دا د ایثار نه دترجیح په معنی کښې دې مطلب دادې چه مونږ نبي کریم سره دا عهد هم اوکړوکه چرې په مونږ انصارو باندې بل څانه په امورخلافت او امارت او اعطاء اموال اومناصب کښې ترجیح ورکړې شوه نومونږ به صبر کو اود صبر اوتحمل لمن به د لاس نه نه پرېږدو نبي کریم انصاروته فرمائیلی وو زمانه پس به تاسو سره ترجیحی سلوك کولې شي تاسو صبرکوئی چنانچه دا پیشنګوئی پوره شوه او په امورخلافت کښې انصار مخې ته رانغلل او هغوی هم چه خپل خوږ پیغمبر سره کومه معاهده کړې وه په ښه شان سره ئې سرته اورسوله "فرضي الله عنهم وعن جميع الصحابة"

**قوله: وَعَلَى أَنْ لَا نُنَازِعَ:**

**د امیر خلاف بغاوت نه کول:** ددې مطلب دادې چه مونږ به په امور خلافت او امارت په خواهش کښې د ځاخلاف د بغاوت جهنډا نه اوچتوو کوم یو حاکم چه په مونږ باندې مقررکړ ي شو مونږ به دهغه اطاعت کوو. چنانچه انصاروپه دغه جګړوکښې قطعاً حصه وانخستله کومې چه هغه وخت راولاړې شوې وې

**قوله: إِلَّا أَنْ تَرَوْا كُفْرًا بَوَاحًا:**

**د کفر بواح مطلب:** دکفربواحا مطلب دادې چه ته کله ښکاره کفراووینې نوبیا دغه کافر د امامت د منصب نه معزول کړه ګنی نه. په احادیثوکښې ترك صلوة هم دکفربواح په درجه کښې شمیرکړې شوې دې لهذا چه کوم حاکم د مونځ اقامت او اهتمام نه کوی او په ملك کښې نظام صلوة نه رائج کوی هغه معزول کول ضروری دی ملاعلی قاری رحمه الله په مرقات کښې لیکی "ولوطرأعليه الكفر انعزل وكذا لوترك اقامة الصلوة والدعاء اليها وكذا البدعة"

**د بدعت نه مراد:** د بدعت نه مراد بدعت مکفره دې په کفربواح کښې داهم راځی چه یو حاکم دالله تعالی احکام اودهغه قرآن معطل کړی اودهغې په ځائی دانسان جوړکړې شوې قانون نافذ کړی لکه څنګه چه نن صبا په دنیاکښې د مسلمانانود حکومتونو دبادشاهانو حال دې قال الله تعالی ﴿وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ﴾ [سورة المائدة ۴۴]

**[۲۶۶۷] د خپل وس مطابق د تابعداری بیعت**

۳۶۶۷-[۷] ()[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: [۲] «كُنَّا إِذَا بَايَعْنَا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى السَّمْعِ وَالطَّاعَةِ

---

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب الأحکام/باب: کیف یبایع الإمام النّاس (رقم-۷۲۰۲) ومسلم فی کتاب الإمارة/باب البیعة علی السّمع والطّاعة فیما استطاع (رقم-۹۰ - (۱۸۶۷) والنسائی فی کتاب البیعة/باب البیعة فیما یستطیع الإنسان (رقم-۴۱۸۷)ومالک فی الموطا کتاب البیعة/باب ما جاء فی البیعة (رقم-۱)

٣ يَقُولُ لَنَا: فِيمَا اسْتَطَعْتُمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابن عمر رضي الله عنه وايي مونږ ٢ چې به د رسول كريم ﷺ په لاس مبارك بيعت كوى ايعنى د دي خبري عهد به كوو! چې مونږ به د حضور ﷺ هدايات په توجه سره اورو او د حضور ﷺ د احكامو به اطاعت كوو، ٣ نو حضور ﷺ به مونږ ته فرمايل د هغه امورو چې د هغه تاسو طاقت لرئ (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله فِيمَا اسْتَطَعْتُمْ:**

الحاصل نبى كريم ﷺ صحابه كرامو ته دا تاكيد اوفرمائيلو چې مطلقا د اطاعت وعده مه كوئى بلكه په قدر د طاقت د اطاعت وعده كوئى چې تاسو كله هم بې وعدې نشئ

**[٣٦٦٨] د امير په تابعدارئ د صبر كولو حكم**

٣٦٦٨-[٨] () ١ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ «مَنْ رَأَى مِنْ أَمِيرِهِ شَيْئًا يَكْرَهُهُ فَلْيَصْبِرْ: ٣ فَإِنَّهُ لَيْسَ أَحَدٌ يُفَارِقُ الْجَمَاعَةَ شِبْرًا فَيَمُوتُ ٤ إِلَّا مَاتَ مِيتَةً جَاهِلِيَّةً». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ او ابن عباس رضي الله عنه راوي دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ٢ كه يو سړى د خپل امير او سردار د طرف نه څه داسې خبره وويني چې د هغه شرعًا ياطبعًا خوښه نه وي نو هغه ته په هغه صبر كول پكار دى او د هغه وجه د امام خلاف د بغاوت جنډه بلند كول نه دي پكار! ٣ ځكه چې كوم سړى د جماعت نه يوه لېشت برابرهم جدا شي او اتوبې نه بغير په دي حالت كې! مړ شي ٤ نو د هغه مرګ به د اهل جاهليت په شان وي (بخاري مسلم)

**حل اللغات** ① شِبْرًا: لويشت.

**تسهيلات: قوله يُفَارِقُ الْجَمَاعَةَ:**

**د مفارقة الجماعة مطلب:** مطلب داچه كوم سړي د امام اواميرد اطاعت نه مخ اړوى اود مسلمانانود منظم جماعت نه جدائى اختياروى اود ټولو مسلمانانو د اتحادخلاف ملاتړى اوبيا د توبه كولونه بغيرهم په دغه حالت مرى نولكه چه دا سړي د جاهليت د زماني د خلقو په شان مړشو چونكه د جاهليت خلق د يوآسماني دين لاندي نه وو په دې وجه هغوى د هريو امير نه آزاد او خودسر وو اود هراتحادى صورت نه به ئې ښه په ښكاره د جدائيئ اعلان كولو اوس كه چرې د اسلامى امير اواسلامى احكاماتو په موجودګئ كښې يوسړې داسې خود سره اود شر مجموعه جوړيږى اوبيا مركيږى نوهغه به د

---

١) اخرجه البخارى فى كتاب الأحكام/باب السّمع والطّاعة للإمام ما لم تكن معصية (رقم-٧١٤٣) ومسلم فى كتاب الإمارة/باب الأمر بلزوم الجماعة عند ظهور الفتن وتحذير الدعاة إلى الكفر(رقم-٥٥ - (١٨٤٩) واحمد فى المسند: ٢٧٥/١

جاهليت په مرګ باندې مري. په دې حديث سره مسلمانانوته د اتفاق اواتحاد سبق ورکولې شي.

**قوله: مَاتَ مِيتَةً جَاهِلِيَّةً:**

**د ميتة ضبط او په حديث کښې ترې مراد:** په ميم باندې زير دې داصيغه د حالت او کيفيت بيانولو دپاره راځي "اي هيئة وحالة جاهلية" مخکښې د "قتلة" لفظ هم دغه شان دې

**[٣٦٦٩] د قوميت دپاره د قتل شوي کس باره کښې وعيد**

٣٦٦٩-[٩] (¹) ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ②«مَنْ خَرَجَ مِنَ الطَّاعَةِ وَفَارَقَ الْجَمَاعَةَ فَمَاتَ مَاتَ مِيتَةً جَاهِلِيَّةً، ③وَمَنْ قَاتَلَ تَحْتَ رَايَةٍ عِمِّيَّةٍ ④يَغْضَبُ لِعَصَبِيَّةٍ ⑤أَوْيَدْعُو لِعَصَبِيَّةٍ ⑥أَوْيَنْصُرُ عَصَبِيَّةً ⑦فَقُتِلَ فَقِتْلَةٌ جَاهِلِيَّةٌ،

**ترجمه:** ①او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي ما د رسول الله ﷺ نه دافرمايل واوريدل ②چې کوم سړی [د امام سربراه مملکت د اطاعت او] فرمانبرداري نه ووزي او د اسلام د جماعت [د ملت اجتماعي هيئت نه جدايي] اختيار کړي او بيا په هغه حالت مړ شي نو د هغه مرګ د جاهليت د مرګ برابر دی ③کوم سړی چې د يوي داسې جنډي لاندې [يعنى ديو داسې مقصد د پاره وجنګيدلو چې د هغه حق او باطل کيدل ظاهر نه وي] ④حالانکه هغه تعصب سره غضبناك شو ⑤او د تعصب په وجه خلق يي ځان طرف ته وبلل ⑥يا د تعصب په وجه د چا مدد يي اوکړو [يعنى د هغه جنګيدل غضبناك کيدل خلق خپل مدد د پاره بلل يا د چامدد کول اعلاء کلمة الحق او د دين د اظهار د پاره نه وو بلکې محض تعصب يعنى د خپل قوم د ظلم حمايت او د هغوى نا روا جانبداري په بنياد ووا ⑦او په دې حالت کې هغه ووژل شو نو د هغه مرګ به د جاهليت د مرګ برابر وي

**حل اللغات:** ①وَفَارَقَ: جدا شو. ②مِيتَةً جَاهِلِيَّةً: دجاهليت مرګ. ③رَايَةٍ: جهنډا. ④عِمِّيَّةٍ: ړوندوالي. (جنګ چه حق اوباطل ئې متردد وی) ⑤لِعَصَبِيَّةٍ: دتعصب په وجه. دخاندانی تعلق په وجه ⑥قِتْلَةٌ جَاهِلِيَّةٌ: دجاهليت مرګ.

①وَمَنْ خَرَجَ عَلَى أُمَّتِي بِسَيْفِهِ يَضْرِبُ بَرَّهَا وَفَاجِرَهَا ②وَلَا يَتَحَاشَى مِنْ مُؤْمِنِهَا ③وَلَا يَفِي لِذِي عَهْدٍ عَهْدَهُ ④فَلَيْسَ مِنِّي وَلَسْتُ مِنْهُ.» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ①او کوم سړی چې ځما د امت خلاف توره پورته کړي او د هغه په ذريعه ځما د امت ښه او خراب سړی يي ووژل ②او ځما د امت د مسلمان پروايي ونه کړه [يعنى د دې

¹ ) اخرجه مسلم فى كتاب الإمارة/باب الأمر بلزوم الجماعة عند ظهور الفتن وتحذير الدعاة إلى الكفر(رقم ٥٣ (١٨٤٨) والنسائى فى كتاب تحريم الدم/باب التغليظ فيمن قاتل تحت راية عمّية (رقم-٤١١٤) وابن ماجه فى كتاب الفتن/باب العصبية (رقم-٣٩٤٨) واحمد فى المسند:٢/١٣٩

خبري هيڅ پروايي ونه کړه چې د يومسلمان وژل څومره لوى جرم دى او د دې وبال او عذاب څومره سخت دى! [۳] او نه هغه د عهد والا عهد پوره کى نو نه هغه څما د امت نه دى يعنى څما په لار دتلونکو نه نه دى [۴] او نه څما د هغه سره څه تعلق شته (مسلم)

**حل اللغات** ⑥لَايَتَحَاشَى: بې پرواهى نه کوى ⑨يَفِي: د وَفَى يَفِي نه. وعده پوره کوى.

**تسهيلات:**

**قوله:** تَحْتَ رَايَةٍ عِمِّيَّةٍ:

**د راية عمية نه مراد:** رايه جهنډې ته وائى او په عميه کښې په عين باندې زيردې او پيش هم جائزدې يعنى دَ تعصب دَپاره دَداسې جهنډې لاندې جنګ کوى دَ کوم حق اوباطل کيدل چه معلوم نه وى.

**[۳٦٧۰] بهترين اوبدترين حاکم**

۳٦٧۰-[۱۰] () [۱] وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ [۲]: «خِيَارُ أَئِمَّتِكُمُ الَّذِينَ تُحِبُّونَهُمْ وَيُحِبُّونَكُمْ وَتُصَلُّونَ عَلَيْهِمْ وَيُصَلُّونَ عَلَيْكُمْ [۳] وَشِرَارُ أَئِمَّتِكُمُ الَّذِينَ تُبْغِضُونَهُمْ وَيُبْغِضُونَكُمْ وَتَلْعَنُونَهُمْ وَيَلْعَنُونَكُمْ» [۴] قَالَ: قُلْنَا: يَارَسُولَ اللهِ أَفَلَا نُنَابِذُهُمْ عِنْدَ ذَلِكَ

**ترجمه:** [۱] او عوف ابن مالك اشجعي رضي الله عنه د رسول کريم ﷺ نه نقل کوي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] ستاسو حاکمانو کې بهترين حاکمان هغه دي چې د هغوى سره تاسو محبت کوئ او هغوى ستاسو سره محبت کوي او تاسو د هغوى د پاره او هغوى ستاسو د پاره دعا غواړي او د دې په وجه خپلو کې ربط تعلق او محبت پيداوي [۳] او ستاسو حاکمانو کې بد ترين حاکمان هغه دي چې د هغوى سره تاسو بغض او عداوت ساتي او هغوى ستاسو سره بغض او عداوت ساتي او تاسو په هغوى لعنت وايئ او هغوى په تاسو [۴] حضرت عوف وايي چې مونږ صحابه ورضي الله عنهم عرض اوکړو چې يا رسول الله! آيا په دې صورت مونږ د هغوى سره کړي عهد او وفاداري ماته نه کړو يعنى آيا هغه بدترين حاکمان معزول نه کړو او د هغوى خلاف د بغاوت جنډه پورته نه کړو

**حل اللغات** ①خِيَارُ: غوره. بهترين. ②أَئِمَّة حاکمان. ③شِرَارُ: بدترين. خراب. ④نُنَابِذُهُمْ: نونږ وعده ماتوو. لوظ ماتوو.

[۱] قَالَ: لَا مَا أَقَامُوا فِيكُمُ الصَّلَاةَ لَا مَا أَقَامُوا فِيكُمُ الصَّلَاةَ [۲] أَلَا مَنْ وَلِيَ عَلَيْهِ وَالٍ فَرَآهُ يَأْتِي شَيْئًا مِنْ مَعْصِيَةِ اللهِ [۳] فَلْيَكْرَهْ مَا يَأْتِي مِنْ مَعْصِيَةِ اللهِ [۴] وَلَا يَنْزِعَنَّ يَدًا مِنْ طَاعَةٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ وفرمايل نه ترڅوپورې چې هغوى ستاسو په مينځ کې مونځ قائموي نه ترڅوپورې چې هغوى ستاسو په مينځ کې مونځ قائموي [۲] خبردار! کوم سړى

[1] ) اخرجه مسلم فى كتاب الإمارة/باب خيار الأئمة وشرارهم (رقم-٦٦ - (١٨٥٥) واحمد فى المسند: ٦/٢٤

چې په تاسو حاکم مقرر شي او تاسو د هغه څه داسې فعل وويني چې د الله ﷻ نافرماني باندې مبني وي ③نو د هغه هغه ګناه بده ګڼل پکارده ليکن د هغه د اطاعت ④او فرمانبرداري نه دست بردار کيدل نه دي پکار (مسلم)

**حل اللغات** ⑤مَنْ وُلِّيَ عَلَيْهِ: چاته چه اوسپارلې شي.⑥ وَالٍ: حاکم يا ولى جوړ کړې شي.⑦وَلَا يَنْزِعَنَّ يَدًا: لاس دې نه اوباسي. دست برداره کيږې دې نه

**تسهيلات:**

**قوله** لَا مَا أَقَامُوا فِيكُمُ الصَّلَاةَ:

**د حاکم نه بغاوت نه کولو دپاره مونځ معيار ګرځول:** يعنى ترکومې چه يوحاکم پخپله مونځ کوى اونورخلق هم په اقامت الصلوة باندې آماده کوى نودنورو ګناهونوپه وجه دهغه خلاف دبغاوت اعلان اووفادارى پرې خودل جائزنه دى. خوکه هغه پخپله نې مونځ کول هم پرې خودل اونظام صلوة ئې هم قائم نه کړو نودداسې حاکم نافرمانى اودهغه د اطاعت نه وتل اودهغه معزول کول ضرورى دى. ځکه چه مونځ د دين ستن ده اوکفر اود ايمان په مينځ کښې د مسلمان يوامتيازى نشان دې. که چرې يوحاکم د مونځ نه بې وفائى کوى اوددې نه ډډه کوى نوداسې حاکم وفادارى هم جائزنه ده نن صبا مسلمانان حکمرانان ټول ددې حديث په زدکښې دى د عواموبغاوت ضرورى دې خود عوامود زړه اودماغ نه هم د مونځ اهميت وتلې دې الاماشاء الله. لهذا "فاستخف قومه فاطاعوه" په درجه کښې ټول په غفلت کښې پراته دى.

**[۲٦۷۱] د بدکرداره حاکمانو سره د وخت تيرولو طريقه**

۳٦۷۱-[۱۱] (¹) ①وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②«يَكُونُ عَلَيْكُمْ أُمَرَاءُ تَعْرِفُونَ وَتُنْكِرُونَ ③فَمَنْ أَنْكَرَ فَقَدْ بَرِءَ ④وَمَنْ كَرِهَ فَقَدْ سَلِمَ ⑤وَلَكِنْ مَنْ رَضِيَ وَتَابَعَ ⑥قَالُوا: أَفَلَا نُقَاتِلُهُمْ قَالَ: لَا مَا صَلَّوْا لَا مَا صَلَّوْا ⑦أَيْ مَنْ كَرِهَ بِقَلْبِهِ وَأَنْكَرَ بِقَلْبِهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ①او بي بي ام سلمه رضي الله عنها وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ②داسې خلق به هم په تاسو حاکم مقرر شي چې ښه او خراب دواړه قسمه کارونه به کوي ③نو کوم سړي چې انکار وکړو ايعنى کوم سړى چې د خپل حاکم مخکې ژبي سره دي ويلو باندې قادر شو چې ستادا فعل خراب دى او هغه داسې اوويل هم نو هغه د نفاق او مداهنت سستي کولو نه[ پاك [او خپلي اهمي ذمه واري نه[ بري شو ④او کوم سړی چې مکروه وګڼی ايعنی

¹) اخرجه مسلم فى كتاب الإمارة/باب وجوب الإنكار على الأمراء فيما يخالف الشّرع. وترك قتالهم ما صلّوا. ونحو ذلك (رقم-٦٣ - (١٨٥٤) و ابو داود فى كتاب السّنة/باب فى قتل الخوارج(رقم-٤٧٦٠) والترمذى فى كتاب الفتن عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/ (رقم-٢٢٦٥)

کوم سړی چې حاکم ته په مخ د هغه څه خراب فعل بیانولو باندې قادر نه وي لیکن په خپل زړه کې د هغه هغه فعل بد گڼي) نو هغه سالم پاتې شو (یعنی د هغه فعل د خرابي او گناه او د هغه وبال کې شریکیدو نه محفوظ شو) ⑤لیکن کوم سړی (چې د حاکم خراب افعال باندې) په زړه سره خوشحاله شو او خپله هم (په هغه کې مبتلاکیدو سره لکه چې د حاکم) اتباع پیروي یې وکړه (نو هغه گناه او د هغه وبال کې شریک شو) ⑥صحابه و ﷺ عرض اوکړو چې یا رسول الله! (په داسې حالت کې چې حاکمان په خرابو کې مبتلا شي او د هغوی د بې لارې اثر په عوامو باندې پریوتل شروع شي نو) آیا مونږ د هغوی خلاف جنگ ونه کړو؟ ⑦حضور ﷺ وفرمایل نه ترڅوپورې چې هغوی مونځ کوي نه ترڅوپورې چې هغوی مونځ کوي یعنی کوم سړی چې په خپل زړه سره بد وگڼی او په زړه سره یې انکاروکړو (مسلم)

**حل اللغات**: ①تَعْرِفُونَ: معروف اوښه کارونه کوی. ②تُنْكِرُونَ: مُنکر او ناروا کارونه به کوی. ③فَمَنْ أَنْكَرَ: چاچه انکار اوکړو. ④فَقَدْ بَرِءَ: یقینا هغه بری شو، نجات ئې بیاموندە

**تسهیلات**:

**قوله**: تَعْرِفُونَ وَتُنْكِرُونَ:

**په حدیث کښې د مختلفو جملو وضاحت**: ① یعنی دَ دغه حکامو بعضې کارونه خو به ښه وی لیکن بعضې به

ښه نه وی نوتاسو دَ خو کارونو په پیژند گلو کولو سره داد ورکوئی او دَ خرابو ناخوښه کولو سره انکارکوئی

②فَمَنْ أَنْكَرَ: یعنی چه څوك دَهغې په نکیراو دَهغې قبائح په منع کولو باندې قادروی اوهغه منع کړو او په ژبه ئی ښه منع کړو

③ فَقَدْ بَرِءَ: یعنی دَ مداهنت او نفاق نه بچ شو

④ وَمَنْ كَرِهَ: یعنی چاچه په ژبه سره یا په لاس سره منع نه کړو لیکن هغه په زړه کښې ده ته بداوؤئیل

⑤فَقَدْ سَلِمَ: یعنی دَهغوی سره دَ شرکت دَ نقصان نه بچ شو

⑥مَنْ رَضِيَ: یعنی دَ زړه نه ئی دَ هغه خراب افعال خوښ کړل.

⑦ وَتَابَعَ: یعنی په دغه گناه کښې هغه سره شو

⑧أَفَلَا نُقَاتِلُهُمْ: یعنی هغوی سره بغیردَ وسلې نه جنگ اونه کړو چه دَهغوی ښه تردید اوکړې شی او جگړه اوکړی. دا یوه توجیه ده دویمه توجیه داده چه آیاهغوی قتل نه کړو.

⑨مَاصَلُّوْا: دلته خو صرف دَ مونځ کولو ذکرهم راغلو اوباقی روایاتو کښې مونځ به قائم کوی الفاظ راغلی دی یعنی پخپله به هم کوی او په نورو باندې به ئې هم کوی.

⑩مَنْ كَرِهَ: داد بعضې راویانود طرف نه دَمجمل کلام تفسیردې اوس هغه مجمل کلمات کوم دی نو شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله فرمائی چه دا تفسیر "ومن انکرفقد سلم" دپاره دی اوملاعلی قاری فرمائیلې دی چه داتفسیرد سابقه دواړو جملودې یعنی فمن انکر اومن کره الخ.

**[٣٦٧٢] حاکمانو ته دهغوی د حقوقو ادا کولو حکم**

٣٦٧٢–[١٣] ( ) ①وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②«إِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ بَعْدِي أَثَرَةً وَأُمُورًا تُنْكِرُونَهَا ③قَالُوا: فَمَا تَأْمُرُنَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ، ④قَالَ: أَدُّوا إِلَيْهِمْ حَقَّهُمْ وَسَلُوا اللّٰهَ حَقَّكُمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①او عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه وايي چې رسول کریم ﷺ مونږ ته وفرمایل ②چې تاسو به زمانه وروسته ځان سره طرفداري او ډیر داسې څیزونه ووینئ چې تاسو به یې بد ګڼئ ③صحابه ؤ رضی الله عنهم عرض اوکړو چې یارسول الله! بیا تاسو مونږ ته څه هدایت کوئ چې هغه وخت دې زمونږ رویه څه وي ④حضور ﷺ وفرمایل تاسو د هغه حاکمانو حق اداکوئ او خپل حق د الله جل جلاله نه غواړئ. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ①أَثَرَةً: ترجيح ورکول ،

**تسهیلات:**

**د حدیث د بعضې جملو وضاحت:**

① اثرة: په امورحکومت کښې به خپل ځان سره ترجیحی سلوک مومې

② وأموراً تنكرونها: یعنی ډیرزیات افعال به اوګورې کوم چه به ته قطعاً خوښ نه کړې

③ حقهم: یعنی دهغوی اطاعت چه په تالازم دې دادهغوی حق دې دا پوره کړه.

"حقکم" یعنی خپل حق دَ الله تعالی نه غواړه چه هغه درته مال دَ غنیمت درکړی ستاحق به په دې صورت کښې تاته ملاؤ شی.

---

( ) اخرجه البخاری فی کتاب الفتن/باب قول النبیّ صلّی الله علیه وسلّم: «سترون بعدی أمورا تنکرونها» (رقم-٧٠٥٢) ومسلم فی کتاب الإمارة/باب الأمر بالوفاء ببیعة الخلفاء، الأول فالأول (رقم-٤٥ - (١٨٤٣) والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب فی الأثرة وما جاء فیه (رقم-٢١٩٠) واحمد فی المسند: ٤٣٣/١

## [۲٦۷۲] ظالمانو حاكمانو ته د هغوى د حق وركولو حكم

۳۶۷۳-[۱۳] (۱) [۱] «وَعَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ قَالَ [۲]: سَأَلَ سَلَمَةُ بْنُ يَزِيدَ الْجُعْفِيُّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۳] فَقَالَ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ أَرَأَيْتَ إِنْ قَامَتْ عَلَيْنَا أُمَرَاءُ يَسْأَلُونَا حَقَّهُمْ وَيَمْنَعُونَا حَقَّنَا فَمَا تَأْمُرُنَا؟ [۴] قَالَ: اسْمَعُوا وَأَطِيعُوا [۵]: فَإِنَّمَا عَلَيْهِمْ مَا حُمِّلُوا [٦] وَعَلَيْكُمْ مَا حُمِّلْتُمْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او وائل بن حجر رضي الله عنه وايي [۲] چې حضرت سلمه ابن جعفي رضي الله عنه جناب رسول الله ﷺ نه سوال وكى [۳] چې يا رسول الله! په دي باره كې زمونږ د پاره څه هدايت دى؟ كه په مونږ باندې داسې حاكم مقرروي چې مونږ نه خو د خپل حق يعنى د اطاعت او فرمانبردارې مطالبه كوې ليكن مونږ ته زمونږ حق يعنى عدل او انصاف او د مال غنيمت حصه نه راكوي [۴] حضور ﷺ وفرمايل تاسو ظاهر كې د هغه خبره اورئ او په باطن كې د هغه فرمانبردارې كوئ يعنى د هغه خبره او د هغه احكام اوريدل ظاهري اطاعت دى او د هغه په احكامو عمل كول باطني فرمانبرداري ده [۵] ياد لرئ په هغه. هغه څيز فرض دى چې د هغه په اوږو اچول شوى دى [يعنى راعاياته عدل او انصاف وركول] [٦] او د هغوى حقوق اداء كول او په تاسو هغه څيز فرض دى چې ستاسو په اوږو اچول شوى دى [يعنى د خپل حاكم او سردار اطاعت او فرمانبرداري كول او كه د حاكمانو د طرف نه ستاسو حق تلفي وي يا څه مصيبت پيښ شي نو په هغه باندې صبر كول] (مسلم)

**حل اللغات:** ①مَا حُمِّلُوا: څه چه په هغه بوج ور اچولې شوې دې (په ماتحتو باندې عدل او انصاف كول. ②مَا حُمِّلْتُمْ: څه چه په تاسو بوج در اچولې شوې دې (اطاعت د امير)

**تسهيلات:**

**قوله: فَإِنَّمَا عَلَيْهِمْ مَا حُمِّلُوا وَعَلَيْكُمْ مَا حُمِّلْتُمْ:**

**دمذكوره جملې مطلب:** يعنى په حكمرانو باندې هم هغه لازم دى د څه چې هغوى مكلف دى كه چرته هغوى په هغې په حقوق الناس كښې كوتاهى كوى نو هغوى به گناهگار وى دغه شان په رعيت باندې په جائزو كارونو كښې د هغوى تابعدارى واجب ده كه رعيت په هغې كښې كوتاهى كوى نو دالله به نيز به هغوى ماخوذاو گناهگار وى

**بهترين اصول:** كه چرته په دنياوى تاريخ باندې نظروا چولې شى نه ټولې جگړې ددې څخه شروع كيږې چې يو كس د بل څخه خپل حق غواړى خو په ده باندې چې كوم حقوق د نورو خلقو وى هغه نه وركوى كه چرته هرسړې هغه حقوق ادا كوى كوم چې په ده باندې د نورو خلقو دى نو نور خلق به هم ده ته دده حقوق وركوى او په دې طريقه به ټوله معاشره د مينې

---

(۱) اخرجه مسلم فى كتاب الإمارة /باب فى طاعة الأمراء وإن منعوا الحقوق (رقم-٤٩ - (١٨٤٦) والترمذى فى كتاب الفتن عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم /باب ما جاء ستكون فتن كقطع الليل المظلم (رقم-٢١٩٩)

محبت څخه ډکه شي نبی علیه السلام په دې دوو جملو کښې د ټولې دنیا د امن ضمانت ورکړې دې که حاکم د رعیت حق ورکړو رعیت به حاکم ته د هغه حقوق ورکوی که ښځې خاوند ته خپل حق ورکړو نو خاوند به ښځې ته د هغې حق ورکوی دغه شان قیاس په ټولو حقوق العباد باندې اوکړه

**[۳٦٧٤] د امام د تابعداری څخه د وتلو وعید**

۳٦٧٤-[۱۴] ()[۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [۲] «مَنْ خَلَعَ يَدًا مِنْ طَاعَةٍ لَقِيَ اللهَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا حُجَّةَ لَهُ، [۳] وَمَنْ مَاتَ وَلَيْسَ فِي عُنُقِهِ بَيْعَةٌ مَاتَ مِيتَةً جَاهِلِيَّةً.» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او عبد الله ابن عمر رضي الله عنه وایي چه ما د رسول الله ﷺ نه دا واوریدل [۲] چه کوم سړی د امام یعنی د اسلامي مملکت سربراه د اطاعت نه لاس را باسي هغه به د قیامت په ورځ بارګاه رب العزت کي داسي حاضریږي چه د هغه سره به د ایمان د لیل نه وي [۳] او کوم سړی چه په دې حال کي مړشي چه د هغه ګردن د امام د بیعت یعنی امام برحق د اطاعت نه آزاد وي یعنی هغه د امام برحق نه باغي کیدو سره مړ شي نو د هغه مرګ به د جاهلیت د مرګ برابر وي (مسلم)

**حل اللغات:** ①مَنْ خَلَعَ يَدًا: چاچه لاس وویستلو، دست برداره شو.

**تسهیلات:**

**قوله:** خَلَعَ يَدًا مِنْ طَاعَةٍ. أي طاعة كانت قليلة أو كثيرة: امام طیبی رحمه الله فرمایی چي وضع ید. دا د چا په لاس د بیعت کولو او وعدې کولو نه کنایه دی او داشان خلع الید او نزع ید دا نقض عهد نه کنایه دی. أي خلع نفسه من بيعة الإمام. مطلب دا شو چي چا وعده مات کړه او ښپل نفس ئې د امام د بیعت نه اوویستلو

**قوله:** لَا حُجَّةَ لَهُ دهغه به هیڅ عذر نه قبلیږی (مرقاة ج/۴ ص/۲۵۹)

**[۳٦٧٥] پیغمبران او د بنی اسرائیلو سیاست**

۳٦٧٥-[۱۵] ()[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ[۲]: «كَانَتْ بَنُو إِسْرَائِيلَ تَسُوسُهُمُ الْأَنْبِيَاءُ[۳] كُلَّمَا هَلَكَ نَبِيٌّ خَلَفَهُ نَبِيٌّ وَإِنَّهُ لَا نَبِيَّ بَعْدِي، [۴] وَسَيَكُونُ خُلَفَاءُ فَيَكْثُرُونَ [۵] قَالُوا: فَمَا تَأْمُرُنَا؟ [٦] قَالَ: فُوا بِبَيْعَةِ الْأَوَّلِ فَالْأَوَّلِ، [۷] أَعْطُوهُمْ حَقَّهُمْ فَإِنَّ اللهَ سَائِلُهُمْ عَمَّا اسْتَرْعَاهُمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او ابوهریره رضي الله عنه د نبي کریم ﷺ نه نقل کوي چه حضور ﷺ وفرمایل [۲] بني

---

() اخرجه مسلم في كتاب الإمارة/باب الأمر بلزوم الجماعة عند ظهور الفتن وتحذير الدعاة إلى الكفر (رقم-۵۸ - (۱۸۵۱) واحمد في المسند: ۲/۱۵۴

() اخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء/باب ما ذكر عن بني إسرائيل (رقم -۳۴۵۵) ومسلم في كتاب الإمارة/باب الأمر بالوفاء ببيعة الخلفاء. الأول فالأول (رقم-۴۴ - (۱۸۴۲) واحمد في المسند: ۲/۲۹۷

اسرائيلو ته به انبياؤ ادب او تهذيب ښودلي [يعنى دهغوي مشري به يي کوله] ②او هرکله چه يو نبي به وفات شو نو د هغه جانشين به دويم نبي شو دغه شان په يو بل پسي انبياء عليهم السلام د خپل قوم تربيت کوى ليکن زما نه وروسته هيڅ نبي راتلونکى نه دى ③البته ځما نه وروسته به امراء او خلفاء وي او ډير به وي چه د هغوى په ذمه به د امت رهنمايي وي ④صحابه عرض اوکړو هرکله چه په يو وخت کښ امراء د ملك او امت د سيادت دعويدار وي او په خپل مينځ کي د يوبل مخالفت کوي نو هغه وخت د پاره تا شو مونږ ته څه هدايت فرمايي؟ ⑤حضور ﷺ وفرمايل اول د امير بيعت پوره کى چه خومره مقدم وي يعنى هرکله چه په يو وخت مثلًا دوه اميران د خپل سيادت دعوى وکړي نو د هغه امير بيعت او طاعت کوئ کوم چه مخکي مقرر شوى وي او د دويم مطلق پيروي مه کوئ ⑦او د هغه حقوق اداء کوئ او الله ﷻ هغه ته د خپل مخلوق د حفاظت او حکومت ذمه واري سپارلي ده د هغه په باره کي ځني هغه په خپله پوښتنه کوي

**حل اللغات**: ①تَسُوسُهُمُ: دَ باب نصر نه تسوس دَ سياست نه دې، سياست کول. حکمرانى کول. ②خُلَفَاءُ: اُمراء، حكمرانان. ③فَيَكْثُرُونَ: ډير زيات به وى، ④فُوا: پوره کړه، ⑤الْأَوَّلِ فَالْأَوَّلِ: اول خليفه د اتباع حقدار دې، بيا وروسته بل ⑥اسْتَرْعَاهُمْ: چه راعى ئې جوړ کړې دې. دحکومت ذمه وارى ئې ورته سپارلې ده.

**تسهيلات**:

**قوله**: تَسُوسُهُمُ الْأَنْبِيَاءُ:

**د سياست تعريف**: مراد حکومت او ولايت دې په کوم کښې چه دَ امورحکومت خيال ساتل دى ملاعلى قارى رحمه الله دَ سياست تعريف داسې کړې دې "والسياسة القيام على الشئ بما يصلحه" يعنى دَ اصلاح په غرض يوشئ سنبالول اودَهغې خيال ساتل دَدې جملې نه معلومه شوه چه دَ دينى سياست دَ تولو نه زيات حقدار په هغه زمانه کښې انبياء کرام عليهم السلام وو اونن صبا زمونږ په زمانه کښې علماء کرام دى ځکه چه دَ يوځيزدينى اودنياوى اصلاح دَ علماؤ نه بغيرخوك کولې شى اوکوم سياست چه په دروغو اونفاق باندې قائم وى دَ هغې ماهرين هم دنيادار خلق دى

**قوله**: وَإِنَّهُ لَا نَبِيَّ بَعْدِي:

**د عيسى عليه السلام د راتګ حيثيت**: دا جمله په واضحه توګه باندې دلالت کوى چه دَ رسول الله ﷺ نه پس بل نبى نشته دې

① باقى چه کله حضرت عيسىٰ عليه السلام راځى نوهغه به دَ يو امتى په حيثيت سره راځى اګرچه هغه به نبى وى ليکن حيثيت به ئى دَ يو امتى وى.

④ نبي كريم دَ روستو نبي نفي فرمائيلي ده او حضرت عيسى عليه السلام خو دَ نبي كريم نه مخكښي نبي جوړ شوي وو

**ه حديث ه بعضي جملو وضاحت:** ① فَيَكْثُرُونَ: ملاعلي قاري رحمه الله فرمائي په دې لفظ كښې په فاء باندې زبر دې او ثاء باندې پيش دې دكثرت دَ وجې نه چه كله غلبه كيږي نو دَ دغه غلبې دپاره دا لفظ استعماليږي مراد كثرت دې فرمائي چه په ثاء باندې زير لوستل غلط دې

② "فَمَا تَأْمُرُنَا؟" دا دَ شرط محذوف جواب دې "اي اذا كثر الخلفاء بعدي ووقع التنازع فيما بينهم فما تامرنا" ③ فُوا: دا دَ امر صيغه ده وفي يفي ضرب يضرب نه دَ وفادارئي په معنى كښې دې يعني پوره كړه

④ أَعْطُوهُمْ حَقَّهُمْ: دا دَ "فوابيعة الاول فالاول" نه بدل دې يعني دَ وفادارئي مطلب دا دې چه دَ هغه حقوق كوم چه دَ اطاعت او خدمت متعلق دى هغه حقوق هغه ته پوره ور كړه

⑤ عَمَّا اسْتَرْعَاهُمْ: يعني په كوم څيز چه الله تعالى هغه راعي ساتندونكي او والي جوړ كړي دې الله تعالى به دَ هغې متعلق دَ هغه نه تپوس كوي

**قوله:** الْأَوَّلِ فَالْأَوَّلِ:

**دالاول فالاول مطلب:** دَ دې مطلب دا دې چه كوم اول خليفه جوړ شوي دې او تا دَ هغه په لاس باندې بيعت كړې دې نو اوس دَ هغه په موجودګئي كښې هم دَ هغه تابعداري كوه دَ بل چا مه كوه

### [۳۶۷۶] دَ اسلامي امارت باغي باره كښې دَ قتل حكم

٣٦٧٦ — [١٦] (¹) ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «إِذَا بُويِعَ لِخَلِيفَتَيْنِ فَاقْتُلُوا الْآخِرَ مِنْهُمَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابو سعيد رضي الله عنه راوي دى ② چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل هر كله چې د دوو خليفه ګانو بيعت وشي نو په هغوى كې چې كوم وروسته وي هغه قتل كړئ (مسلم)

**حل اللغات:** ① بُويِعَ: بيعت او كړې شي

**تسهيلات: قوله:** فَاقْتُلُوا الْآخِرَ مِنْهُمَا

**د اسلامي حكومت خلاف بغاوت كونكي سزا:** مطلب دا دې چه كله يو خليفه موجود وي او دَ مسلمانانو امور په صحيح طريقه باندې دَ اسلام په رڼا كښې روان وي او بل سړې

¹) اخرجه مسلم في كتاب الإمارة/باب إذا بويع لخليفتين (رقم-۶۱ - (۱۸۵۳)

راپاسی اودکرسئی په خواهش کښې دَمسلمانانودا اجتماعی صورت کښې ګډوډ کول غواړی اودَ خلافت اعلان کولوسره دَ هغه بیعت اخستل شروع کړی نو په تاسو باندې لازم ده چه هغه قتل کړئی ځکه چه هغه دَ الله تعالی دَحکم او اسلامی مملکت باغی دې دَهغوی سزا هم دغه ده که چرې هغه دَبغاوت نه منع کیږی نه نوهغه دې قتل کړې شی هر څوك چه وی دَدې نه دَوړاندې حدیث مفهوم هم دغه شان دې اودَدې نه پس راتلونکی حدیث مطلب هم دغه شان دې. په دې حدیث سره جمهوریت کوم چه په حقیقت کښې دَ یهودیت او عیسائیت لعنت دې جرړه کټ شوه. بل دَدې نه دامعلومه شوه چه دَ مسلمانانوپوره دنیاکښې هم یو خلیفه کیدل پکاردی اوکه چرې انتظام کول مشکل وی اوعلاقه دَ یوبل نه ډیره لرې وی نو بیا ګنجائش شته مادَ اسلامی خلافت په نوم کتاب کښې دَدې تفصیل لیکلې دې

## [۳۶۷۷] په امت کښې د اختلاف راوستونکی کس سزا

۳۶۷۷ - [۱۷] () [۱] وَعَنْ عَرْفَجَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [۲] «إِنَّهُ سَيَكُونُ هَنَاتٌ وَهَنَاتٌ [۳] فَمَنْ أَرَادَ أَنْ يُفَرِّقَ أَمْرَ هَذِهِ الْأُمَّةِ وَهِيَ جَمِيعٌ فَاضْرِبُوهُ بِالسَّيْفِ كَائِنًا مَنْ كَانَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عرفجه رضی الله عنه وایي چې ما درسول کریم صلی الله علیه وسلم نه واوریدل [۲] ډیر نزدې تخریب او فساد به ظاهر شي [۳] نو کوم سړی چې په دې امت کې تفریق پیدا کول غواړي په داسې حال کې چې امت په خپل مینځ کې متحد او متفق وي نو هغه سړي توري سره ختم کړي برابره خبره ده که هغه هرڅوك وي (مسلم)

**حل اللغات:** ① هَنَاتٌ وَهَنَاتٌ: وار په وار. پرله پسې. ② جَمِيعٌ: راجمع. متفق. ③ كَائِنًا مَنْ كَانَ: که هرڅوک وی.

**تسهیلات:**

**دحدیث د بعضې جملو وضاحت:** ① انه: ضمیرشان دَپاره دې

② **هنات وهنات:** په هاء باندې زبردې او نون باندې هم زبردې وار په وار او یوشان شراوفسادته وائی یعنی ډیرزر به دَ حکومت دَ حاصلولودَپاره یوشان فتنې ښکاره کیږی.

③ **وهی جمیع:** یعنی حال دادې چه امت متحداومتفق دې اودا سړې په امر اتفاقی کښې ګړبړ پیدا کوی

**قوله: كَائِنًا مَنْ كَانَ:**

**د مذکوره جملې مطلب:** یعنی که دَ عزت مندونه وی یاصاحب تعلیم وی یادَ چانیزدې

---

[۱]) اخرجه مسلم فی کتاب الإمارة/باب حکم من فرّق أمر المسلمین وهو مجتمع (رقم-۵۹ - (۱۸۵۲)) و ابو داود فی کتاب السنّة/باب فی قتل الخوارج(رقم-۴۷۶۲) واحمد فی المسند: ۳۴۱/۴

خپلوان وی هغه په توره داسې اووهلی چه ټکړې ټکړې شی لکه څنګه چه هغه امت ذره ذره کول غوښتل. ځکه چه دَ امت اتحاد دَ ځان له کس په حیثیت او شخصیت باندې مقدم دې

## [۲۶۷۸] په مسلمانانوکښې دبې اتفاقۍ پیدا کونکی سزا

۳۶۷۸–[۱۸] (¹) ①وَعَنْهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ②«مَنْ أَتَاكُمْ وَأَمْرُكُمْ جَمِيعٌ عَلَى رَجُلٍ وَاحِدٍ③ يُرِيدُ أَنْ يَشُقَّ عَصَاكُمْ أَوْ يُفَرِّقَ جَمَاعَتَكُمْ④ فَاقْتُلُوهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ①او حضرت عرفجه ﷛ وايي چه ما د رسول کریم ﷺ نه واوریدل ②کوم سړی چه د امام وخت خلاف بغاوت کولو سره او د خپل خلافت او امارت اعلان کولو سره تاسو ته راشي په داسې حال کې چه تا سو ټول د مخکې نه په یو سړي متفق او یو خلیفه باندې متحد یې ③او هغه سړی ستا شو امسا شلول او اجتماعي تنظیم کې تفرقه پیدا کول غواړي ④نو تا شو هغه قتل کی (مسلم)

**حل اللغات:** ①وَأَمْرُكُمْ جَمِيعٌ: تاسو ټول متفق وئ ②يَشُقَّ: شلوی. څیری کوی ③عَصَا: همسا

**تسهیلات: قوله:** يَشُقَّ عَصَاكُمْ:

**د مذکوره جملې مطلب:** عصاچوکې ته وائی یشق شلولو څیرلوته وائی مراد: مسلمانانو ډله پریخودل اوتلل دی. په چوکه سره د مسلمانانو اجتماعی حیثیت طرف ته اشاره ده او په څیرلوسره دَ دې ګډوډ کیدلو اوتفریق او اختلاف طرف ته اشاره ده

**قوله:** أَوْ يُفَرِّقَ جَمَاعَتَكُمْ:

**د دواړو جملو د قائل تعین:** دَ ظاهری عبارت نه معلومیږی چه راوی ته شک پیدا شوې دې چه نبی کریم کومه یوه جمله ارشاد فرمائیلې وه مګر راجح قول دادې چه دا دواړه جملې دَ نبی کریم دی. رومبې جمله کښې "یشق عصاکم" تعلق دَمسلمانانو دنیاوی امورو سره دې یعنی کوم سړې چه دَ مسلمانانو سیاسی طاقت په خارجه اوداخله پالیسئ کښې مداخلت کوی. او دَ دویمې جملې تعلق دَمسلمانانو دینی احکامو اومذهبی معاملاتو سره دې چه داسړې په دې کښې فتنه پیدا کوی

## [۲۶۷۹] مقررشوی خلیفه څخه دمخالفت کونکی دقتلولوحکم

۳۶۷۹–[۱۹] (²) ①وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②«مَنْ بَايَعَ إِمَامًا

---

¹) اخرجه مسلم فی کتاب الإمارة/باب حکم من فرّق أمر المسلمین وهو مجتمع (رقم-۶۰ - (۱۸۵۲))

²) اخرجه مسلم فی کتاب الإمارة/باب الأمر بالوفاء ببیعة الخلفاء. الأول فالأول (رقم-۴۶ - (۱۸۴۴)) والنسائی فی کتاب البیعة/باب ذکر ما علی من بایع الإمام وأعطاه صفقة یده وثمرة قلبه (رقم-۴۱۹۱) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب ما یکون من الفتن (رقم-۳۹۵۶) واحمد فی المسند:۲/۱۶۱

[٣] فَأَعْطَاهُ صَفْقَةَ يَدِهِ وَثَمَرَةَ قَلْبِهِ فَلْيُطِعْهُ إِنِ اسْتَطَاعَ [٤] فَإِنْ جَاءَ آخَرُ يُنَازِعُهُ [٥] فَاضْرِبُوا عُنُقَ الْآخَرِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت عبد الله ابن عمرو رضي الله عنهما راوي دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [٢] کوم سړی چه د امام نه بیعت اوکړو [٣] په دي طور چه هغه ته يي د خپل لاس صفقه او د خپل زړه ثمره ورکړله يعني په ظاهري طور سره د هغه په لاس کي خپل لاس ورکولو سره د اطاعت او فرمانبرداري عهد يي اوکړو او د زړه خلوص سره يي هم د هغه حاکميت او قيادت قبول کی نو هغه ته پکار دی چه هغه د خپله وسه پوري د هغه امام اطاعت او فرمانبرداري کوي [٤] او که بيا يو دويم سړی د خپل امامت اعلان وکړي او د خپل امام خلاف بغاوت وکړي [٥] نو د هغه څټ پريکړئ. (مسلم)

**حل اللغات:** ① صَفْقَةَ الْيَدِ: لاس په لاس باندې کيخودل. ② ثَمَرَةَ الْقَلْبِ: د زړه ثمره. اخلاص.

**تسهيلات:**

**د حديث د بعضې جملو وضاحت:**

① **صفقة يده:** صفقه لاس په لاس باندې وهل اوکيخودلوته وائی اودَ قسم اوبيعت په وخت لاس په لاس باندې ورکولوسره معاقده اومعاهده کولې شي مراد لاس په لاس کخودل دی

② **وثمرة قلبه:** دَ زړه ثمره نه مراد اخلاص دې بعضې ليکلی دی چه صفقه يدنه مراد مال اوثمره قلب نه مراد خپل اهل وعيال سره ملاويدو سره بيعت کول دی

**[٣٦٨٠] د امارت د طلب کولو ممانعت**

٣٦٨٠ـ[٢٠] (١) [١] وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] «لَا تَسْأَلِ الْإِمَارَةَ [٣] فَإِنَّكَ إِنْ أُعْطِيتَهَا عَنْ مَسْأَلَةٍ وُكِلْتَ إِلَيْهَا [٤] وَإِنْ أُعْطِيتَهَا مِنْ غَيْرِ مَسْأَلَةٍ أُعِنْتَ عَلَيْهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او عبد الرحمن ابن سمره وايي چه رسول کريم صلی الله علیه وسلم ماته وفرمايل [٢] حکومت او سيادت مه طلب کوه [٣] ځکه که ستا خواهش او طلب باندې تاته حکومت او سيادت درکول شي نو ته به هغه ته حواله شي چه ته د هغه منصب ذمه واري انجام کړي په داسي حال کي د منصب او امارت ذمه واري دومره مشکل او مشقت طلب وي چه بغير مدد الهي هيڅ سړی هغه انجام کولي نشي [٤] او ستا د خواهش او طلب نه بغير که تاته حکومت او سيادت د الله د طرف نه درکړی شي نو ستا مدد به کيږي يعنی د حق تعالی د

(١) اخرجه البخاری فی کتاب الأحکام/باب من لم يسأل الإمارة أعانه الله عليها(رقم-٧١٤٦) ومسلم فی کتاب الإمارة/باب النهی عن طلب الإمارة والحرص عليها (رقم-١٣ - (١٦٥٢) و ابو داود فی کتاب الخراج والإمارة والفیء/باب ما جاء فی طلب الإمارة (رقم-٢٩٢٩) والترمذی فی کتاب النذور والأيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فيمن حلف على يمين فرأى غيرها خيرا منها (رقم-١٥٢٩) والنسائی فی کتاب آداب القضاة/باب النهی عن مسألة الإمارة (رقم-٥٣٨٤) واحمد فی المسند: ٦٢/٥

طرف نه به دا توفيق در كول شي چه ته عدل او انصاف او نظم او ضبط سره د هغه ذمه واري پوره كړی شي

**حل اللغات:** ① الإِمَارَةَ: حکمرانی. ② وُكِلْتَ: ته به حواله شې (په مشقت کې به اخته شې) ③ أُعِنْتَ: ستا نصرت او مدد به اوکړې شی

**تسهيلات: قوله:** لَاتَسْأَلِ الْإِمَارَةَ:

**په خلافت او جمهوريت کښې بنيادی فرق:** په اسلامی خلافت اود جمهوريت په مصيبت کښې هم دغه بنيادی فرق دې چه دَ اسلامی خلافت دَعهدو حصول دَخدمت ذريعه وی اوپه جمهوريت کښې دَ دغه عهدو حصول دَ دنيا دَ گټلو اسباب او ذريعة وی اوس چه کوم کار دَ دين دَ ترويج او اشاعت دَپاره وی په هغې کښې به الله تعالی امدادکوی اوچه کله په خپل ځان باندې اعتماد کولوسره داعهدې دَ دنيا دَ گټې ذرائع جوړيږی نو دَالله تعالی امدادبه شامل حال نه وی نودکاميابئ په ځائې به دَناکامئ سره مخ کيږی

**[۳٦٨١] دنياوی امارت او دآخرت ندامت**

۳٦٨ــ[۲۱] () ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ②: «إِنَّكُمْ سَتَحْرِصُونَ عَلَى الْإِمَارَةِ ③ وَسَتَكُونُ نَدَامَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ ④ فَنِعْمَ الْمُرْضِعَةُ وَبِئْسَتِ الْفَاطِمَةُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① او ابوهريره رضی الله عنه د نبي کريم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي چه رسول کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل ② زه وينم چه تا شو به په راتلونکي زمانه کي د حکومت او سيادت حرص کي مبتلا شی ③ حالانکه هغه حکومت او سيادت چه حرص او طلب سره حاصل شي د قيامت په ورځ به د پښيمانی موجب وي ④ ياد ساته حکومت او سيادت ډيرښه پئ ورکونکی هم دی او ډيربد پئ پريکونکی هم دی . (بخاري)

**حل اللغات:** ① سَتَحْرِصُونَ: حرص کونکی به شئ. ② نَدَامَةً: پښيمانی. ③ الْمُرْضِعَةُ: پئ ورکونکي. (مهربانی نې هم ډيره ده) ④ الْفَاطِمَةُ: پئ پريکونکی (نامهربانه مور هم ده)

**تسهيلات: قوله:** فَنِعْمَ الْمُرْضِعَةُ:

**د نعم او بئس د تانيث او تذكير حكم:** علامه مظهر رحمه الله فرمائی چه دَ "نعم او بئس "فاعل کله مؤنث وی نودا دواړه صيغې مؤنث هم راوړلې شی اومذکرهم راوړلې شی دلته "نعم"سره تاء تانيث نه ده او "بئست"سره لگيدلې ده دادې طرف ته اشاره کړې شوې ده چه دا دوه لغت دی اودواړه جائز دی. نو په يوه صيغه کښې يو لغت راوړلې شو او دويمه صيغه کښې دويم لغت راوړلې شو.

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الأحکام/باب ما یکره من الحرص علی الإمارة (رقم-۷۱٤۸) والنسائی فی کتاب آداب القضاة/باب النهی عن مسألة الإمارة(رقم-۵۳۸۵)

**قوله:** وَبِئْسَتِ الْفَاطِمَةُ:

**د حکومت تشبیه:** یعنی حکومت او قیادت چه کله ملاویږی او سړي دَ اقتدار خاوند شی نودا قیادت دَ مهربانه مور په شان په غیږ کښې اخستلو سره دَ بدن پیښی ورکوی اودا پالی لیکن چه کله هم دغه قیادت او حکومت خفه شی نودا دَ نامهربانه مور په شان دَ بچی په خله کښې مرچکې واچوی او پیئونه ئی اړوی نوعقل مند سړی له پکاردی چه دَداسې ناپائیداره څیز په طلب کښې خپل وخت ضائع نه کړی دَ حکومت دَ تلو راتلو دَ دریو مرحلو ذکر وړاندې راروان دې.

**[۳٦٨۲] په آخرت کښې د حاکمانو انجام**

٣٦٨٢–[٢٢] ()[١] «وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ[٢]: قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ: أَلَا تَسْتَعْمِلُنِي؟ [٣] قَالَ: فَضَرَبَ بِيَدِهِ عَلَى مَنْكِبِي: [٤] ثُمَّ قَالَ: يَا أَبَا ذَرٍّ إِنَّكَ ضَعِيفٌ وَإِنَّهَا أَمَانَةٌ[٥]: وَإِنَّهَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ خِزْيٌ وَنَدَامَةٌ: [٦] إِلَّا مَنْ أَخَذَهَا بِحَقِّهَا وَأَدَّى الَّذِي عَلَيْهِ فِيهَا. [٧] وَفِي رِوَايَةٍ; قَالَ لَهُ: يَا أَبَا ذَرٍّ; إِنِّي أَرَاكَ ضَعِيفًا; [٨] وَإِنِّي أُحِبُّ لَكَ مَا أُحِبُّ لِنَفْسِي: [٩] لَا تَأَمَّرَنَّ عَلَى اثْنَيْنِ: [١٠] وَلَا تَوَلَّيَنَّ مَالَ يَتِيمٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوذر رضي الله عنه وايي [٢] چه يوه ورځ ما عرض اوکړو يارسول الله تا شو ما د يوځاى عامل حاکم ولي نه جوړوى [٣] د ابوذر رضي الله عنه بيان دى څما په داخبره آوريدو سره حضور صلى الله عليه وسلم دمهرباني د مخه څما په اوږه خپل لاس مبارك ووهئ [٤] بيايي وفرمايل اى ابوذر رضي الله عنه: ته ناتوانه يي او دا سرداري د الله د طرف نه يو آمانت دى چه په هغه سره: بندګانو حقوق متعلق دي او په دي کي خيانت كول نه دي پکار [٥] او تاته دي معلومه وي چه سرداري به د قيامت په ورځ د رسوايي او پښيماني باعث وي [٦] خو داچي كوم سړى دا سرداري په حق سره حاصله کړه او هغه يي اداء کړه يعنى كوم سړى چه د مستحق كيدو په وجه سردار جوړ شو او بيا هغه خپله زمانه حكومت كي د عدل او انصاف نوم روښانه کړو او رعايا سره يي د احسان او خير خواهي سلوك وکی نو هغه به د هغه د پاره د رسوايي او وبال باعث نه وي. [٧] او په يو روايت كي داسي دي چه رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل اى ابوذر! زه تا نا توان وينم چه ته به د سرداری بوج برداشت نه کړي [٨] او زه ستا د پاره هغه څيز خوښوم كوم چه خپل نفس د پاره خوښوم [٩] ته د دوو سړو هم سردار او حاكم مه جوړيږه [١٠] او د يو يتيم هم د مال نګراني مه قبلوه (مسلم)

**حل اللغات:** ① أَلَا تَسْتَعْمِلُنِي: آيا تاسو ما عامل نه جوړوئ؟ ② مَنْكِبِي: اوږه. ③ خِزْيٌ: شرمندګی. پښيمانتيا ④ لَا تَأَمَّرَنَّ: امير مه جوړيږه. ⑤ وَلَا تَوَلَّيَنَّ: نګران مه جوړيږه.

[1] ) اخرجه مسلم فى كتاب الإمارة/باب كراهة الإمارة بغير ضرورة (رقم-١٦ - (١٨٢٥) واحمد فى المسند:١٧٣/٥

**تسهیلات: قوله:** وَإِنَّهَا أَمَانَةٌ:

**د قومي عهدې امانت کیدل:** یعنی کرسئی اواقتدار قومی امانت دې که چرې په دې کښې نقصان اوکړو نو قومی خیانت به وی.

**قوله:** خِزْيٌ وَنَدَامَةٌ:

**په دنیا او آخرت کښې د خزی او ندامت وجه:** یعنی د قیامت په ورځ به حکومت د رسوائی او خپیمانتیا سبب جوړیږی دغه خپیمانتیا ترتیب به داشان وی کله چه سړې په اقتدارکښې راځی نوخلق پرې قسم قسم الزامات لګوی چه په دهوکه اوفریب راغلی دې په رشوت اود غلا په دروازه راغلي دې بیا چه کله یوځوورځې دغه سړې حکومت کوی اود قسماقسم ذمه وارو پوره کولونه عاجز راشی نوبیا خپیمانه شی دا د حکومت مینځمې دور دې چه افسوس زه په دغه زمانه کښې نه راتلم اوکله چه ترې حکومت په زور واخستې شی نوبیا یا په دنیا کښې رسوا شی یا په آخرت کښې رسواکیږی نو په اول کښې ملامتیا ده مینځ کښې ندامت دې او په آخره کښې رسوائی ده په راتلونکی حدیث نمبر(۳۷۳) کښې دا ترتیب راروان دې.

**[۳۶۸۲] دَ منصب طلبګارته منصب نه ورکول**

۳۶۸۲—[۲۳] ()[۱]«وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ[۲]: دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنَا وَرَجُلَانِ مِنْ بَنِي عَمِّي، [۳]فَقَالَ أَحَدُهُمَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ! أَمِّرْنَا عَلَى بَعْضِ مَا وَلَّاكَ اللَّهُ، [۴]وَقَالَ الْآخَرُ مِثْلَ ذَلِكَ، [۵]فَقَالَ: إِنَّا وَاللَّهِ لَا نُوَلِّي عَلَى هَذَا الْعَمَلِ أَحَدًا سَأَلَهُ وَلَا أَحَدًا حَرَصَ عَلَيْهِ. [۵]وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: لَا نَسْتَعْمِلُ عَلَى عَمَلِنَا مَنْ أَرَادَهُ.» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱]او ابو موسی ﷛ وایي [۲]یوه ورځ زه او ځما د تره د اولاد نه دوه سړي د نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضر شو [۳]په هغوی کي یوه عرض اوکړو چه یارسول الله! الله ﷻ تا شو د تمامو مسلمانانو او د روی زمین حاکم جوړ کړي يئ ماديو ځای یا د څه کار حاکم او والی مقرر کی [۴]دویم هم د دغه شان خواهش اظهار وکړو حضور ﷺ ورته وفرمایل قسم په خدای مونږ د دین او شریعت په دي امورو کي هیڅ داسي سړي والی او ذمه وار نه جوړ وو چه زمونږ نه د ولایت او ذمه واري طالب وي یا د دي حرص لري [۵]او په یوبل روایت کي دا الفاظ دي چه رسول کریم ﷺ وفرمایل مونږ خپل کار باندي هغه سړی عامل نه مقررو و چه د دي اراده یعنی د عامل کیدو خواهش لري (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ①وَلَّاكَ: چه والی. حکمران ئې جوړ کړي دې تا لره. ②حَرَصَ: حرص. لالچ.

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب الأحکام/باب ما یکره من الحرص علی الإمارة (رقم-۷۱٤۹) ومسلم فی کتاب الإمارة/باب النهی عن طلب الإمارة والحرص علیها (رقم-۱٤ - (۱۷۳۳) و ابو داود فی کتاب الأقضیة/باب فی طلب القضاء والتسرع الیه (رقم-۳۵۷۹) واحمد فی المسند: ٤/٤۰۹

**تسهیلات:**

**قوله** لَانُوَلِّي عَلَى هَذَا الْعَمَلِ أَحَدًا سَأَلَهُ:

**د عهدې د غوښتلو ممانعت:** کوم سړي چه د یو منصب طلبګار وی هغه په حقیقت کښې په حب جاه کښې راګیر دي چه دا د حب دنیا یوه اهم شعبه ده په دې وجه نبی کریم دهمیشه دپاره داسې سړي د څه منصب اهل نه دې ګڼرلې اونه ئې هغه ته څه منصب ورکړې اوکوم سړي چه د منصب طالب نه وی اوبیاپه هغې باندې فائز شی نود هغه په زړه کښې دخدمت جذبه غوردنګونه وهی د کوم انجام چه ښه وی په افسوس سره وئیلی کیږی چه نن صباخو د منصبونو په حاصلولو باندې جګړې کیږی او رشوتونه ورکولې کیږی بلکه د دین تول منصبونه د دنیا د حصول ذرائع جوړې شوی دی الاماشاء الله

**[٣٦٨٤] امارت نه خوښونکي حاکمان**

٣٦٨٤—[٢٣] (١) ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②«تَجِدُونَ مِنْ خَيْرِ النَّاسِ أَشَدَّهُمْ كَرَاهِيَةً لِهَذَا الْأَمْرِ ③حَتَّى يَقَعَ فِيهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل ②په خلقو کې به بهتر تاسو هغه سړی پیدا کړو چې د دې څیز یعنی حکومت او سیادت د ناخوښودلو په معامله کې د ټولو نه زیات سخت وي ③تردې چې هغه په دې کې مبتلا شي (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات** ①يَقَعَ: واقع به شی. مبتلا به شی

**تسهیلات:**

**قوله** حَتَّى يَقَعَ فِيهِ:

**د حدیث دوه مفهومه:** ① علامه طیبی رحمه الله فرمائی کوم سړي د سیادت قیادت اومناصب نه متنفر وی تاسو به هم هغه بهترین سړي مومئی لیکن که چرې هم دغه سړې په طلب د مناصب کښې او په حب جاه کښې راګیرشو نوتاسو به هغه بدترین سړې اومومئی

② یو سړې د څه منصب سیادت قیادت او حکومت نه سخت متنفروی تاسو به هم هغه یوبهترین سړې اومومې تردې چه که چرې هغه دص دغه مناصبو نفرت باندې قائم پاتې نه شو او په قیادت اوسیادت کښې راګیر شو نودې سړی انجام به هم هغه وی چه په آخره کښې به خپیمانه وی اود ارمان اوافسوس لاسونه به مروړی

[1]) اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب علامات النبوة في الإسلام (رقم-٣٥٨٨) ومسلم في كتاب فضائل الصحابة رضي الله تعالى عنهم/باب خيار الناس (رقم-١٩٩ - (٢٥٢٦)) واحمد في المسند: ٤١٨/٢

## [۳٦٨٥] د هر چا څخه د ماتحتو تپوس کيدل

۳٦٨٥—[۲۵] (١) ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «أَلَا كُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ، ③ فَالْإِمَامُ الَّذِي عَلَى النَّاسِ رَاعٍ وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ، ④ وَالرَّجُلُ رَاعٍ عَلَى أَهْلِ بَيْتِهِ، وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ، ⑤ وَالْمَرْأَةُ رَاعِيَةٌ عَلَى بَيْتِ زَوْجِهَا وَوَلَدِهِ وَهِيَ مَسْئُولَةٌ عَنْهُمْ،

**ترجمه:** ① او عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ② خبردار په تاسو کې هر سړی د رعيت نګهبان (محافظ) دی او د قيامت په ورځ به په تاسو کې د هر سړی نه د هغه د رعيت په باره کې پوښتنه کيږي ③ نو امام يعنی سربراه مملکت او حکومت چې د کومو خلقو محافظ دی هغه به د خپل رعيت په باره کې جواب ورکوي ④ کوم سړی چې د خپل کور والاوو نګهبان دی هغه نه به د خپل کوروالاوو په باره کې پوښتنه کيږي ⑤ ښځه چې د خپل خاوند د کور او د هغه د بچو نګهبانه ده هغه به د هغوی حقوقو په باره کې جواب ورکوي.

**حل اللغات:** ① رَاعٍ: شپونکې، نګران، ساتونکې. ② رَعِيَّتِ: رعيت. ماتحت. کوم څه چه د راعی ماتحت وی. ③ مَسْئُولَةٌ: تپوس، پوښتنه به کولې شی.

① وَعَبْدُ الرَّجُلِ رَاعٍ عَلَى مَالِ سَيِّدِهِ وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْهُ، ② أَلَا فَكُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او د سړی غلام چې د خپل مالك د مال نهګبان دی هغه به د هغه د مال په باره کې جواب ورکوي ② نو آګاه شئ چې په تاسو کې هر سړی نهګبان دی او په تاسو کې هر سړی به د خپل رعيت په باره کې جواب ورکوي. (بخاري . مسلم)

**تسهيلات: قوله:** أَلَا كُلُّكُمْ رَاعٍ:

**د نګرانئ وضاحت:** په دې حديث کښې چه دَ کومې نګرانئ ذکر دې دَ هغه نګرانئ تعلق هغه خلقو سره دې دَ چاد حکم او قدرت چه ماتحت وی او کوم خلق چه دَ چادَ حکم ماتحت نه وی دَهغوی باره کښې داحديث نه دې "رعيته" کښې چه کوم ضمير راګرځی هغه هم دَدې مقصد دَپاره دې چه دا ذمه واری دَ هغه نګرانانو ده دَچادَ حکم ماتحت چه خلق دی.

**د نګران او ماتحت مثالونه:** ① دَ کور مشر به ذمه وار وی څکه چه په هغوی باندې دَ ده حکم چليږی.

② دَملك دَحاکم په لاس کښې دَ هغه ملك دَ رعيت واګې دی هغه نه به دَ دغه رعيت باره

(١) اخرجه البخاری فی کتاب الأحکام/باب قول الله تعالی و {أطيعوا الله وأطيعوا الرّسول وأولی الأمر منکم} [النساء: ٥٩] (رقم-٧١٣٨) ومسلم فی کتاب الإمارة/باب فضيلة الإمام العادل، وعقوبة الجائر، والحثّ علی الرّفق بالرّعيّة، والنّهی عن إدخال المشقّة عليهم (رقم-٢٠ - (١٨٢٩) کتاب الخراج والإمارة والفیء/باب ما يلزم الإمام من حقّ الرّعيّة (رقم-٢٩٢٨) والترمذی فی کتاب الجهاد عن رسول الله صلّی الله عليه وسلّم/باب ما جاء فی الإمام (رقم-١٧٠٥) واحمد فی المسند: ٥/٢

کښې تپوس کیږی

③ دکور په بچو باندې د کورد ښځې مشری ده

④ د مدرسې مهتمم به د طالبانو ذمه وار وی ځکه چه هغوی د ده د حکم ماتحت دی

⑤ د خادم نګرانی د آقا په مال باندې ده ددې خلقو نه به د قیامت په ورځ ددوی د ذمه وارو باره کښې تپوس کیږی

⑥ بعضې علماؤ وئیلی دی چه د انسان د بدن کوم اندامونه دی هغه ټول اندامونه د ده رعیت دې ددې باره کښې به هم سوال کیږی چه مثلاً د سترګې نګرانی دې ولې نه ده کړې د ژبې د شرمګاه او خپو لاسونو نګرانی اوحفاظت دې ولې نه دې کړې؟

**[۳۶۸۶] د خائن اوظالم حاکم په باره کښې عذاب**

۳۶۸۶—[۲۶] (¹) ①وَعَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَقُولُ: ②«مَا مِنْ وَالٍ يَلِي رَعِيَّةً مِنَ الْمُسْلِمِينَ، ③فَيَمُوتُ وَهُوَ غَاشٌّ لَهُمْ إِلَّا حَرَّمَ اللهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①او معقل ابن یسار ﷺ وایي چې رسول کریم ﷺ نه ما واوریدل ②چې کوم سړی حکومت او سیادت حاصلولو سره په خپل رعیت حکمرانې کوي ③او بیا په دې حالت کې مړشي چې هغه خپل رعیت باندې ظلم او د هغوی حقوقو کې خیانت کوی نو الله ﷻ به په هغه جنت حرام کړي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ①وَالٍ: والی . حکمران. ②يَلِي: چه حکمرانی کوی. ③رَعِيَّةً: ماتحت. ④غَاشٌّ: په شین باندې شددې . خائن . خیانت کونکې.

**تسهیلات: قوله: وَهُوَ غَاشٌّ:**

**د لفظ غاش دوه معانی:** ① ملاعلی قاری ﷫ د غاش یوه معنی ظالم هم کړې ده چه هغه د عوامو حقوق نه اداکوی اود نورو خلقو مال راګیروی

② د خیانت ډیرزیات صورتونه دی دکوم صورت خیانت چه حاکم اوکړو په هغه باندې به دا وعیدلګی

**قوله: إِلَّا حَرَّمَ اللهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ:**

**د تحریم الجنة دوه توجیهات:** ① که هغه سره دمسلمانانو ددغه خیانتونو مرتکب شو نوهغه به جنت ته هغه خلقو سره نه ځی څوك چه به بغیرد سزا جنت ته ځی بلکه دې به خپله سزا تیروی بیابه جنت ته ځی

② یعنی که چرې دغه حاکم داخیانتونه جائز ګنړی نوهغه کافرشو لهذا په هغه باندې جنت حرام دې

---

¹) اخرجه البخاري فی کتاب الأحکام/باب من استرعی رعیّة فلم ینصح (رقم-۷۱۵۱) ومسلم فی کتاب الإیمان/باب استحقاق الوالی الغاشّ لرعیّته النّار (رقم-۲۲۷ - (۱۴۲) واحمد فی المسند:۵/۲۵

## [٣٦٨٧] په حاكم باندې د رعيت د خير خواهئ وجوب

٣٦٨٧-[٢٧] (١) ① وَعَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ② «مَا مِنْ عَبْدٍ يَسْتَرْعِيهِ اللَّهُ رَعِيَّةً، ③ فَلَمْ يَحُطْهَا بِنَصِيحَةٍ، ④ إِلَّا لَمْ يَجِدْ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت معقل ابن يسار رضي الله عنه وايي ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل ② الله تعالىٰ چې په كوم سړي د رعيت نگهباني كوي يعنى كوم سړى چې د رعيت حاكم او نگهبان جوړكړي ③ او هغه خير خواهي سره نگهباني ونه كړي ④ نو هغه به د جنت بوى هم نه ويني (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① يَسْتَرْعِيهِ: چه راعى جوړكړى ده لره. حكمران نې جوړ كړى. ② يَحُطْهَا: نگهبنى او نگرانى كوى د هغې ③ رَائِحَةَ: بوئى. خوشبوئى

**تسهيلات:**

**د حديث د بعضې جملو وضاحت:**

① **فلم يحطها:** په حاء باندې پيش دې دا د احاطه په معنى كښې دې مراد ترې نه نگرانى او ساتل دى په راتلونكى حديث كښې

② "الحطمة" د ظالم په معنى كښې دې. "بنصيحة" دا لفظ د دينى او دنياوى ټولو نيكړو ته شامل دې

**قوله:** إِلَّا لَمْ يَجِدْ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ:

**د مذكوره جملې په مطلب كښې درې اقوال:** ① دا سړې په كفرباندې مړشوې وى

② دخول اولى سره په جنت كښې نه داخليږى

③ دا حديث په تغليظ تشديد اوزجراوتوبيخ باندې محمول دې

## [٣٦٨٨] د بدترين حاكم علامت

٣٦٨٨-[٢٨] (٢) ① وَعَنْ عَائِذِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ② «إِنَّ شَرَّ الرِّعَاءِ الْحُطَمَةُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او عائذ ابن عمرو رضي الله عنه وايي چې ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل ② شرداران او حاكمانو كې د ټولو نه بدترسردار هغه حاكم دى چې خپل رعيت باندې ظلم كوي (مسلم)

**حل اللغات:** ① الْحُطَمَةُ: ظلم كول

[1]) اخرجه البخارى فى كتاب الأحكام/باب من استرعى رعيّة فلم ينصح (رقم-٧١٥٠) ومسلم فى كتاب الإمارة/باب فضيلة الإمام العادل. وعقوبة الجائر. والحثّ على الرّفق بالرّعيّة. والنّهى عن إدخال المشقّة عليهم (رقم-٢١ - (١٤٢))

[2]) اخرجه مسلم فى كتاب الإمارة/باب فضيلة الإمام العادل. وعقوبة الجائر. والحثّ على الرّفق بالرّعيّة. والنّهى عن إدخال المشقّة عليهم (رقم-٢٣ - (١٨٣٠)) واحمد فى المسند: ٦٤/٥

**تسهيلات:**

**د راوى حالات:**

**د حضرت عائذ بن عمرو المزنى ﷺ مختصر پيژندګلو:** نوم: عائذ، كنيت ابوهبيره. دَ پلار نوم عمرو بن بلال بن عبيد بن يزيد بن رواحه وو. په صلح حديبيه كښې حضور ﷺ سره وو او په بيعت رضوان كښې هم ورسره وو. كله چه بصره آباده شوه نو هلته لاړو په كور كښې به وو تلوراتلوبه نه.

**وفات:** د يزيد په عهدكښې بصره كښې وفات شو. د جنازې دَ مونځ دَ پاره ئى ابوهريره ﷺ ته وصيت كړې وو دې دَ پاره چه دَ هغه وخت ګورنر عبيدالله دَ جنازې مونځ اونه كړى هم داسې اوشو.

**مرويات:** دَ هغوى نه اووه احاديث روايت دى يو په بخارى اومسلم دواړو كښې دې

**قوله:** إِنَّ شَرَّ الرِّعَاءِ الْحُطَمَةُ:

**د الحطمة په مراد كښې دوه اقوال:** ① په حاء پيش او طاء باندې زبردې دَ حاطم دَ مبالغه صيغه ده چه الحطم سره دَ ماتولوپه معنى كښې راځى. دادهغه ظالم حاكم متعلق دې چه په ظلم كولو سره خپل رعيت ماتوى او په هريومصيبت كښې په هغوى هيڅ رحم نه كوى ② دَ الحطمة نه مراد داسې خوراك كونكې حريص دې چه هرهغه څيزخورى كوم چه مخې ته راځى الرعا پـه راء باندې زيراوعين باندې مددې دَ جمعې صيغه ده دَ دې مفرد دراع دې كوم چه د نګران او حكمران په معنى كښې دې

**د يو صحابى په حق كښې د ابن زياد ګستاخى:** ملاعلى قارى رحمه الله دَدې حديث په شان دې خائى كښې يوبل حديث نقل كړې دې په هغې كښې يوه افسوسناكه قصه ده فرمائى عائذ بن عمرو ﷺ د حضوراكرم ﷺ صحابى وو يوځل دې دَ كوفې ظالم ګورنر اشدق لطيم الشيطان عبيدالله ابن زياد له لاړو او وئى فرمائيل چه اې ځويه زما دَ نبى كريم نه اوريدلى دى رسول الله ﷺ فرمائيل چه " ان شرالرعاء الحطمة فاياك ان تكون منهم" يعنى بدترين حكمران ظالم حكمران دې بچې ځان ساته چرته ددوى نه نه شې "فقال له اجلس انما انت من نخالة اصحاب محمد صلى الله عليه وسلم فقال هل كانت لهم نخالة؟ انما كانت النخالة بعدهم وفى غيرهم (رواه مسلم)"

يعنى عبيدالله بن زياد اووئيل چه كينه تـه دَ محمد ﷺ دَ صحابه كرامو ﷺ پوستكې اوبوس ئى. صحابى په جواب كښې اوفرمائيل ولې دَنبى كريم پـه صحابه كرامو كښې پوستكى اوبوس هم وو؟ (نه روره) بوس او پوستكى خو دَهغوى نـه پس خلقو كښې وو (هغوى خو ټول لُب او خالص مغزوو)

**[۳۶۸۹] د نرم خويه حاكم دپاره دعا**

۳۶۸۹—[۲۹] (۱) [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «اللّٰهُمَّ مَنْ وَلِيَ مِنْ أَمْرِ أُمَّتِي شَيْئًا فَشَقَّ عَلَيْهِمْ فَاشْقُقْ عَلَيْهِ [۳] وَمَنْ وَلِيَ مِنْ أَمْرِ أُمَّتِي شَيْئًا فَرَفَقَ بِهِمْ فَارْفُقْ بِهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې رسول الله ﷺ بارگاه قاضي الحاجات كې دا عرض اوكړو [۲] اې خما پروردگاره! كوم سړى چې خما د امت دېني او دنياوي امورو كې د څه والي او متصرف جوړ شو او بيا هغه د خپل اختيار ولايت او تصرف په ذريعه خما د امت په خلقو مشقت او سختي مسلط كړي نو هغه سړي باندې ته هم مشقت او سختي مسلط كړې [۳] او كوم سړى چې خما د امت په امورو كې د څه شي والي او متصرف جوړ شو او هغه خما د امت خلقو سره د نرمي سلوك وكى نو هغه سړي سره ته هم د نرمي او مهرباني سلوك وفرمايه (مسلم)

**حل اللغات:** ① وَلِيَ: والى، نگران. ② فَشَقَّ: سختي ئې اوكړه ③ رَفَقَ: نرمي ئې اختيار كړه. شفقت ئې اوكړو.

**تسهيلات:**

**قوله:** مِنْ أَمْرِ أُمَّتِي شَيْئًا

**د امر څخه مراد:** د امر څخه مراد دادې چې يو كس ته دمسلمانانو يوه ذمه واري حواله شي

**قوله:** فَشَقَّ عَلَيْهِ، جزاء وفاقا يعنى دا حاكم به درعيت ددنيا مشقتونو په قدر اخروى مشقتونو سره مخامخ كيږي.

**قوله:** فَرَفَقَ بِهِمْ، فَارْفُقْ بِهِ مهربان حاكم دپاره حديث پاك (ارحموا من فى الأرض يرحمكم من فى السماء) ددې پيش نظر په دين او دنيا دواړو د.كاميابۍ دعا ده امام طيبى رحمه الله فرمائى چې دا ارشاد خپل امت دپاره ډير زيات په شفقت او رحمت باندې مبنى دې

**[۳۶۹۰] عادلان حاكمان د نور په منبرونو**

۳۶۹۰—[۳۰] (۲) [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «إِنَّ الْمُقْسِطِينَ عِنْدَ اللهِ عَلَى مَنَابِرَ مِنْ نُورٍ عَنْ يَمِينِ الرَّحْمٰنِ [۳] - وَكِلْتَا يَدَيْهِ يَمِينٌ - [۴] الَّذِينَ يَعْدِلُونَ فِي حُكْمِهِمْ وَأَهْلِيهِمْ وَمَا وَلُوا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

(۱) اخرجه مسلم فى كتاب الإمارة/باب فضيلة الإمام العادل، وعقوبة الجائر، والحثّ على الرّفق بالرّعيّة، والنّهى عن إدخال المشقّة عليهم (رقم-۱۹ - (۱۸۲۸) واحمد فى المسند: ۶/۹۳

(۲) اخرجه مسلم فى كتاب الإمارة/باب فضيلة الإمام العادل، وعقوبة الجائر، والحثّ على الرّفق بالرّعيّة، والنّهى عن إدخال المشقّة عليهم (رقم-۱۸ - (۱۸۲۷) والنسائى فى كتاب آداب القضاة/باب فضل الحاكم العادل فى حكمه (رقم-۵۳۷۹) واحمد فى المسند: ۲/۱۶۰

**ترجمه:** ① او عبدالله ابن عمرو ابن العاص رضي الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل ② بلا شبه عادل حكمران به د الله ﷻ په نز د نورپه منبرونو باندې ځاى پيدا كړي چې د رحمن ذات ښي طرف ته وي ③ او د الله دواړه لاسونه ښي دي او عادل حكمران ④ هغه دي چې په خپلو احكامو خپل اهل اوخپل زيرتصرف معاملاتوكې عدل او انصاف كوي (مسلم)

**حل اللغات** ① الْمُقْسِطِينَ: المقسط دباب افعال نه. عادل حكمرانان. ② مَنَابِرَ: دمنبر جمع. منبرونه. ③ يَمِين: ښى طرف.

**تسهيلات:**

**قوله:** الْمُقْسِطِينَ:

**د قسط د لفظ دوه معانى:** ① دعدل اوانصاف په معنى كښې دې قرآن كريم كښې راغلى دى چه ﴿إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِيْنَ﴾ [سورة مائدة: ٤٢.]

② كه چرې هم دغه ماده دباب افعال په ځائى مجردكښې دضرب يضرب نه قاسط راشى نوهغه به دظلم اوستم او حق نه تجاوزپه معنى كښې راځى. قرآن كريم كښې دى ﴿وَأَمَّا الْقٰسِطُوْنَ فَكَانُوْا لِجَهَنَّمَ حَطَبًا﴾ [سورة جن: ١٥.]

**قوله:** عَنْ يَمِيْنِ الرَّحْمٰنِ:

**دعادل حكمران د الله تعالى ښي طرف ته په منبر ناسته:** دالله تعالى په نيزد عادل حكمران مرتبه ډيره لويه وى هم ددغه اوچتې مرتبې تعبير اودې طرف ته اشاره كولودپاره فرمائى چه دالله تعالى ښى طرف ته به په منبرونوباندې ناس وى. الغرض كوم خلق چه د لويومرتبو والا وى هغوى ښى طرف ته په نشست باندې كينولې شى اود الله تعالى دواړه د قدرت لاسونه ښى دى كس لاس نسبتًا كمزورې وى په دې وجه دكمزورئى دغه وهم لرې كولودپاره ئى اوفرمائيل چه دالله تعالى دواړه د قدرت لاسونه ښى دى

**قوله:** الَّذِيْنَ يَعْدِلُوْنَ:

**په مختلفو شعبو كښې د عدل كولو مطلب:** په دې عدل سره كه په احكاماتو كښې عدل اوانصاف مراد وى نوبيادې نه امور مملكت مثلاً د انصاف امانت ديانت ټولې تقاضې پوره كول مراددى چه په دې شعبوكښې عدل كوى

**قوله:** وَأَهْلِيْهِمْ: په اهل اوعيال كښې د عدل مطلب دا دې چه د ده لاندې كوم خلق دى دهغوى پوره خيال ساتى

**قوله:** وَمَا وَلُوْا: اود تصرف لاندې څيزونو كښې دعدل اوانصاف مطلب دادې چه دغه څيزونو كښې د حقدارانو دحقوق پوره خيال ساتى. هم دا خلق به د نور په منبرونوباندې وى.

**[۳۶۹۱] هر حاكم سره ښه او بد ملګرى**

۳۶۹۱-[۳۱] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «مَا بَعَثَ اللّٰهُ مِنْ نَبِيٍّ وَلَا اسْتَخْلَفَ مِنْ خَلِيفَةٍ [۳] إِلَّا كَانَتْ لَهُ بِطَانَتَانِ: [۴] بِطَانَةٌ تَأْمُرُهُ بِالْمَعْرُوفِ وَتَحُضُّهُ عَلَيْهِ، [۵] وَبِطَانَةٌ تَأْمُرُهُ بِالشَّرِّ وَتَحُضُّهُ عَلَيْهِ، [۶] وَالْمَعْصُومُ مَنْ عَصَمَهُ اللّٰهُ» . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او ابو سعيد ﷜ روايت كوي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] الله ﷻ هيڅ نبي داسې نه دى راليږلى او داسې هيڅ خليفه يې نه دى مقرر كړي [۳] چې د هغه د پاره دوه پټ ملګري نه وي [۴] يو پټ ملګرى خو د نيك كار حكم وركوي او نيكى طرف ته يې راغب كوي [۵] او دويم پټ ملګرى د بدى حكم وركوي او د بدى طرف ته يې راغب كوي [۶] او معصوم بې ګناه هغه دى چې الله ﷻ يې د ګناهونو نه محفوظ وساتي (بخاري)

**حل اللغات:** ① بِطَانَةٌ: پټ ملګرې. مُشير. ② تَحُضُّهُ: دَ نصرينصر نه. ترغيب وركوى. بيداروى ئې ③ الْمَعْصُومُ: بې ګناه.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِلَّا كَانَتْ لَهُ بِطَانَتَانِ:

**د بطانتان نه مراد:** يعنى دوه وزيران اودوه مشيران كوم چه دَ پټو دوو دوستانو په شان وى چه په يووخت كښې هم نه جدا كيږى. يودَ نيكئى حكم كوى كوم ته چه الهام وائى كوم چه دَ فرښتې دَ طرف نه وى.

**قوله:** وَتَحُضُّهُ:

**د تحض معنى او مطلب:** راپكارونكى ته وائى مراد راپاسول او بيدار ساتل دى هم دَدې مضمون مطابق يوڅو احاديث باب الوسوسه كښې تيرشوى دى په كوم كښې چه انسان سره دَ شيطان او فرښتې لزوم خودلې شوي دي "والمعصوم" يعنى "بطانة الشر" او دَ شيطانى وسوسو نه بچ كونكې صرف يو دَ الله تعالى ذات دي

**[۳۶۹۲] د نبي عليه السلام په دربار كښې د قيس بن سعد مقام**

۳۶۹۲-[۳۲] (۲) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: [۲] كَانَ قَيْسُ بْنُ سَعْدٍ مِنَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِمَنْزِلَةِ صَاحِبِ الشُّرَطِ مِنَ الْأَمِيرِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

[۱] ) اخرجه البخاري في كتاب الأحكام/باب بطانة الإمام وأهل مشورته " البطانة: الدّخلاء "(رقم-۷۱۹۸) والنسائي في كتاب البيعة/باب بطانة الإمام (رقم-۴۲۰۲)واحمد في المسند: ۳۹/۳

[۲] ) اخرجه البخاري في كتاب الأحكام/باب الحاكم يحكم بالقتل على من وجب عليه. دون الإمام الّذي فوقه (رقم-۷۱۵۵) والترمذي في كتاب المناقب عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب مناقب قيس بن سعد بن عبادة رضي الله عنه (رقم-۳۸۵۰)

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضي الله عنه وايي [۲] چې نبي ﷺ سره د حضرت قيس ابن سعد رضي الله عنه په حواله هغه خدمت وو كوم چې د امراوو او سلاطينو سره كوتوال سرانجام كوي (بخاري)

**حل اللغات** ① صَاحِبِ الشُّرَطِ: شُرط دَ شرطي جمع ده كوتوال، پوليس والا.

**تسهيلات:**

**قوله** بِمَنْزِلَةِ صَاحِبِ الشُّرَطِ:

**د شرط د لفظ معنیٰ او وجه تسميه:** علامه توربشتي رحمه الله ليكلي دي چه دا دَ شرطي جمع ده يا هغه سړی ته وائی چه دَ حاكم اوامير مخې مخې ته كيږي او سياسی امور چلونكې وی چونكه داخلق دَ خپلې پيژند ګلو دَپاره په خپل بدن باندې څه نښه لګوی په دې وجه دوی ته شرط اووئيلې شو دلته كوتوال او دَ حكم نافذ كونكې پوليس مراد دي

**[۳٦۹۲] د ښځې د امارت مسئله**

[۳۳] ( ) [۱] وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ [۲]: «لَمَّا بَلَغَ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنَّ أَهْلَ فَارِسَ قَدْ مَلَّكُوا عَلَيْهِمْ بِنْتَ كِسْرَى [۳] قَالَ: لَنْ يُفْلِحَ قَوْمٌ وَلَّوْا أَمْرَهُمُ امْرَأَةً». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوبكره رضي الله عنه وايي [۲] هركله چې رسول كريم ﷺ ته دا خبر ورسيدو چې فارس والاوو د كسرىٰ لور خپله حكمرانه جوړه كړي ده [۳] نو وي فرمايل هغه قوم هيڅ كله خلاصون نشي پيدا كولی چې هغوی د ملك د امورو حاكم او واليه يوه ښځه جوړه كړي وي (بخاري)

**حل اللغات** ① مَلَّكُوا: بادشاه او حكمرانه ئې جوړه كړه.

**تسهيلات:**

**قوله** قَدْ مَلَّكُوا عَلَيْهِمْ بِنْتَ كِسْرَى:

**دحديث پس منظر:** كوم وخت چه شيرويه خپل پلارپرويز قتل كړو اوبيائی دَپلار كيخودې شوې زهر دوائی ګنړلو سره اوڅكل اوهغه هم مړشو نو په شاهی خاندان كښې دَ حكومت چلولودپاره څوك سړې پاتې نه شو نوبيا هغه خلقو دكسری لور "ارميدخت" بادشاه كړه نبی كريم ته چه كله ددې خبراوشو نونبی كريم داحديث ارشاد اوفرمائيلو.

**دمختلفو ملكونو د بادشاهانو لقبونه:**

① كسری به دَ فارس د هريو بادشاه لقب وو　② قيصر دَ روم دَ بادشاه لقب وو

③ دَمصرد بادشاه لقب فرعون وو　④ دَ حبشه د بادشاه لقب نجاشی

[۱]) اخرجه البخاری فی كتاب المغازی/باب كتاب النبیّ صلّی الله عليه وسلّم إلی كسری وقيصر (رقم-۴۴۲۵) والترمذی فی كتاب الفتن عن رسول الله صلّی الله عليه وسلّم(رقم-۲۲٦۲) والنسائی فی كتاب آداب القضاة/باب النّهی عن استعمال النّساء فی الحكم (رقم-۵۳۸۸) واحمد فی المسند: ۳۸/۵

⑤ دَ یمن د بادشاه لقب تبع وو ⑥ دَ هندوستان د بادشاه لقب راجه وو

⑦ دَ ترکی د بادشاه لقب خاقان وو

**قوله**: لَنْ يُفْلِحَ قَوْمٌ وَلَّوْا أَمْرَهُمْ امْرَأَةً:

**د ښځې د حکمرانۍ حکم**: فلاح هغې ته وائی چه په امن وآمان سره دَدنیا معیشت او اقتصادیات هم په کامیابئ سره ترقي اوکړی اودَ ښه انجام سره دَ آخرت ټول امور هم ترقی اوکړی لکه دَ دین اودنیا ښیگړې اونیکنی ته فلاح وائی دَ ښځې په مشرئ سره دا دواړه څیزونه ختمیږی لکه چه په پاکستان او بنگله دیش کښې داسې اوشو په دې حدیث کښې په واضحه توګه سره معلومه شوه چه دَ ښځې مشری نقصان وړکونکې اوتباه کونکې څیز دې کوم چه ناجائز دې ملاعلی قاری رحمه الله لیکی چه ښځه دَ بادشاه جوړیدو حیثیت نه لری اونه قاضی او جج جوړیدې شی ځکه چه دَ دواړو کارونو دَ پوره کولودَپاره ښکاره عام بهرتلل وی دې دَپاره چه دَمسلمانانو اوعوامو معاملات اوګوری اوښځه خویو پټ څیز دې چه دَداسې وتلو صلاحیت نه لری اودویمه خبره داهم ده چه ښځه ناقص العقل ده او قضاء کامل قیادت دې لهذادَغه کامل قیادت دَپاره دَکامل سړو ضرورت دې

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [٣٦٩٤] داجتماعیت څخه د جدائي اختیارولو وعید

٣٦٩٤-[٣٣] (١) [١] عَنِ الْحَارِثِ الْأَشْعَرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «آمُرُكُمْ بِخَمْسٍ: بِالْجَمَاعَةِ وَالسَّمْعِ، وَالطَّاعَةِ، وَالْهِجْرَةِ، وَالْجِهَادِ فِي سَبِيلِ اللهِ، [٣] وَإِنَّهُ مَنْ خَرَجَ مِنَ الْجَمَاعَةِ قِيدَ شِبْرٍ فَقَدْ خَلَعَ رِبْقَةَ الْإِسْلَامِ مِنْ عُنُقِهِ إِلَّا أَنْ يُرَاجِعَ [٤] وَمَنْ دَعَا بِدَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ فَهُوَ مِنْ جُثَى جَهَنَّمَ وَإِنْ صَامَ وَصَلَّى وَزَعَمَ أَنَّهُ مُسْلِمٌ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: [١] حارث اشعري رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل [٢] زه تاسو ته د پنځو څیزونو حکم درکوم ① د مسلمانانو د جماعت قول او عمل او اعتقاد کې اطاعت کوئ یعنی د ملت اجتماعي هیئت په هرصورت کې برقرار ساتئ او د سربراهان ملت د طرف نه چې کوم احکام جاري شي هغه په هرحالت کې تسلیم کړئ او د هغوی اطاعت کوئ ② امراء او علماء د شریعت مطابق چې کوم هدایات ورکړي هغه واورئ او تسلیم کړئ یعنی وي منئ ③ د علماوو او امراوو د احکامو اطاعت او فرمانبرداري کوئ ④ هجرت

[1] ) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الأمثال عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب ما جاء في مثل الصلاة والصيام والصدقة (رقم-٢٨٦٣) واحمد في المسند: ٤/١٣٠

کوئ ⑤ د الله ﷻ په لارکي جهاد کوئ ③ او یاد لرئ کوم سړی چې د ملت اجتماعي هیئت نه یوه لیشت برابر جدا شو هغه ګویا د اسلام رسی د خپل څټ نه اوبنکله څو داچي هغه واپس راشي ④ او کوم سړی چې د جاهلیت په شان عمل وکی هغه ګویا د دوزخیانو د جماعت فرد دی اګر چې هغه روژي نیسي مونځ کوي او دا وایي چې زه مسلمان یم احمد والترمذي .

**حل اللغات:** ①قِيدَ: دَ مثل برابرئی اومقدار په معنی کښې دې. په اندازه. ②شِبْر: یوه لویشت ③خَلَعَ: وئې ویستله. اوبنکله. ④رِبْقَةَ: رسئ. ⑤جُثَى جَهَنَّمَ: د جهنم یو فرد دې.

**تسهیلات:**

**د حدیث د بعضي جملو وضاحت:**

① بِالْجَمَاعَةِ: دَ اهل حق جماعت حقه مراددې چه دَحضرت آدم عليه السلام نه تر محمدرسول الله ﷺ پورې دَ اهل حق جماعت راروان دې

② "وَالْهِجْرَةِ" دَ ځان اوایمان بچ کولوپه غرض سره دَ دارکفرنه داراسلام طرف ته تللو ته هجرت وائی

③ جُثَى: په جیم باندې پیش اوبیا الف مقصوره دې دَجثوة جمع ده په اصل کښې دَ شګې اوخاورې ډیری ته وائی دلته مراد جماعت اوډله ده چه دَ دوزخ دَ ډلونه دا یوه ډله ده

**قوله:** وَمَنْ دَعَا بِدَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ:

**د دعوی الجاهلیه نه مراد:** دَ جاهلیت نعره سره دَدې طریقې خپلول مراد دې دَ غلطوکارونوطرف ته دعوت ورکول مراد دی یا په وخت دَ جنګ دَ قومیت نعره اوچتول مراد دی چه دَ ظالم دَ امداددَپاره یا دَ "للقوم" جاهلانه نعره لګول دی دا کبیره ګناه ده په دې قسم نعروسره لکه چه دا سړې دَ امت اجتماعی حیثیت پانړې پانړې کول غواړی

**[۳٦۹۵] دامیر داهانت څخه ممانعت**

٣٦٩٥—[٣٥] (¹) ①وَعَنْ زِيَادِ بْنِ كُسَيْبٍ الْعَدَوِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ②كُنْتُ مَعَ أَبِي بَكْرَةَ تَحْتَ مِنْبَرِ ابْنِ عَامِرٍ وَهُوَ يَخْطُبُ ③وَعَلَيْهِ ثِيَابٌ رِقَاقٌ، ④فَقَالَ أَبُو بِلَالٍ انْظُرُوا إِلَى أَمِيرِنَا يَلْبَسُ ثِيَابَ الْفُسَّاقِ: ⑤فَقَالَ أَبُو بَكْرَةَ: اسْكُتْ، سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: ⑥«مَنْ أَهَانَ سُلْطَانَ اللَّهِ فِي الْأَرْضِ أَهَانَهُ اللَّهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ①او زیاد ابن کسیب عدوي تابعي رحمه الله وایي ②یوه ورځ زه دابوبکره صحابي رضي الله عنه سره د ابن عامر رضي الله عنه د منبر لاندي ناست وم هرکله چې هغه ابن عامر خطبه ورکوله ③او

¹) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الفتن عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب (رقم-۲۲۲٤) واحمد فی المسند: ٤٢/٥

هغه باريكي كپړي اغوستي وي ④په دي موقع يوتابعي ابوبلال رحمه الله اوويل لږ تاسو زمونږ دي امير ته خو وګورئ ده د فاسقانو په شان كپړي اغوستي دي ⑤حضرت ابوبكره رضي الله عنه ورته اوويل خاموش ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي ⑥كوم سړى چې د بادشاه توهين كوي كوم چې الله د خپل مخلوق د امورو سرته رسولو د پاره په زمكه مقرر كړي دى نو الله ﷻ به هغه سړى ذليل او خوار كړي

**حل اللغات:** ① رِقَـاقٌ: باريكي، نرئ. ② ثِيَـابَ الْفُسَّـاقِ: جامې د فاسقانو. ③ أَهَـانَ: توهين اوكړى. سپكاوې يا بې عزتى اوكړى.

**تسهيلات:**

**قوله:** يَلْبَسُ ثِيَـابَ الْفُسَّـاقِ:

**د ثياب الفساق وئيلو دوه وجوهات:** ① ممكن ده چه دَغه والى لباس دَ ريښم وى كوم چه ممنوع دي اوعموماً ريښمن لباس نرم وى

② ممكن ده چه دَ ريښم نه وى ليكن زيات قيمتى وى كوم چه دَ اصحاب تعيش لباس وى اهل الله وئيلى دى "من رق ثوبه رق دينه".

حضرت ابوبكر رضي الله عنه حضرت ابوبلال رحمه الله دَدې پيغورونونه منع كړو چه ممكن ده په دې سره فتنه اوفساد خورشي. دويمه دا چه هرراتلونكې بادشاه دَمخيكينى نه خراب كيدې شى

**قوله:** مَنْ أَهَانَ سُلْطَـانَ اللّٰهِ:

**په سلطان الله كښې د اضافت حيثيت:** په دې كښې اضافت تشريفيه دې يعنى دَ الله تعالى حكم معلوم شو كوم حاكم چه دَ الله تعالى نه وى نه دَ الله تعالى دين نافذكونكې وى اونه په دې باندې پخپله عمل كوى نوهغه دَ الله تعالى بادشاه نه دې بلكه كيدې شى چه هم دَ شيطان بادشاه وى.

### [۳٦٩٦] په ګناه كښې دامير د حكم نه منل

٣٦٩٦ -[٣٦] (¹) ①وَعَنِ النَّوَّاسِ بْنِ سِمْعَانَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②«لَا طَاعَةَ لِمَخْلُوقٍ فِي مَعْصِيَةِ الْخَالِقِ». رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه:** ①حضرت نواس ابن سمعان رضي الله عنه وايي رسول كريم ﷺ وفرمايل ②د مخلوق د څه داسې حكم هم تابعداري جائز نه ده چې په هغه كې د خالق نافرماني وي (شرح السنه)

**تسهيلات:**

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت نواس بن سمعان رضي الله عنه:** نوم نواس دَ پلار نوم سمعان بن خالد بن عمرو بن قرط وو. ده دَ

¹) اخرجه البغوى فى شرح السنه رقم الحديث ٢٤٥٥

قبیله بنوکلاب سره تعلق لرلو په شام کښې اوسیدلواوپه اهل شام کښې دَ ده شمیر کیدلو دَ هغوی پلار د وفد په شکل کښې حضورﷺ سره حاضرشو او پیغمبرﷺ له هغه دَ خپلو تحفه هم ورکړه حضورﷺ هغه قبوله کړه او دعائی ورته اوکړه.

**مرويات:** دَ هغه نه ۱۷ احادیث نقل دی په دې کښې درې په مسلم شریف کښې دی او باقی اصحاب السنن نقل کړی دی.

**قوله** لَا طَاعَةَ لِمَخْلُوقٍ فِي مَعْصِيَةِ الْخَالِقِ الحاصل که مخلوق ته امیر او حاکم داسې حکم ورکړی چې په هغې باندې عمل کولو کښې د خالق نافرمانی وی نو د حاکم دداسې غیر شرعی حکم اطاعت نه دی کول پکار او که یو کس د غیر شرعی امورو په اطاعت باندې مجبوره کړې شو نو بیا په مکروه باندې هیڅ ګناه نشته دې

**[۲۶۹۷] د حاکم دآخرت انجام**

۳۶۹۷-[۳۷] (¹) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] «مَا مِنْ أَمِيرِ عَشَرَةٍ إِلَّا يُؤْتَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَغْلُولًا [۳] حَتَّى يَفُكَّ عَنْهُ الْعَدْلُ، أَوْ يُوبِقَهُ الْجَوْرُ». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او ابوهریره ﷺ وایي چې رسول کریمﷺ وفرمایل [۲] هر امیر او حاکم برابره خبره ده که هغه د لس سړو امیر او حاکم وي د قیامت په ورځ به داسې راوستل شي چې د هغه په څټ کې به طوق وي [۳] تردې چې هغه ته به هغه طوق نه یاخو د هغه عدل نجات ورکړي یا د هغه ظلم به یې هلاک کړي. (دارمي)

**حل اللغات:** ① مَغْلُولًا: غَلّ نه. د مرئ طوق. ② يَفُكَّ: نصر ينصر نه دې. خلاص به کړی. ③ يُوبِقَهُ: دباب افعال نه ايباق دې. هلاک به ئې کړی. ④ الْجَوْرُ: ظلم

**تسهيلات:**

**د حديث د بعضې جملو وضاحت:**

① أَمِيرِ عَشَرَةٍ: يعنی معمولی شان حکمران وی که په لسو کسانو باندې د هغه حکومت وی

② مَغْلُولًا دمرئی طوق ته وائی دلته ددواړو لاسونو نه تړلې کیدل مراد دی چه دواړه لاسونه به ئی سټ سره تړلې شوې وی

**[۲۶۹۸] د قیامت په ورځ د حاکمانو پښیمانتیا**

۳۶۹۸-[۳۸] (²) [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «وَيْلٌ لِلْأُمَرَاءِ، وَيْلٌ لِلْعُرَفَاءِ، وَيْلٌ لِلْأُمَنَاءِ، [۳] لَيَتَمَنَّيَنَّ أَقْوَامٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَنَّ نَوَاصِيَهُمْ مُعَلَّقَةٌ بِالثُّرَيَّا، [۴] يَتَجَلْجَلُونَ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ، [۵] وَأَنَّهُمْ لَمْ يَلُوا عَمَلًا». رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ

¹) اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحدیث ۲۵۱۵

²) اخرجه البغوی فی شرح السنه رقم الحدیث ۲۴۶۸ واحمد فی المسند ۲/ ۳۵۲

**ترجمه:** [۱] او ابوهریره رضي الله عنه وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] افسوس دی امراوو او حکامو باندې آفسوس دی عرفاء باندې افسوس دی آمينانو باندې [۳] ډير خلق به د قيامت په ورځ آرزوکوي کاشکي چې په دنيا کې د هغوی د تندو وينبته ثريا کې تړلو سره هغوی زوړند شوی وې [۴] او د زمکي او آسمان په مينځ کې جوتي ورکول شوي [۵] ليکن هغوی ته د څه کار ولايت او سرداري نه وي ورکول شوي (شرح السنه)

**حل اللغات** ①وَيْلٌ: هلاکت، د دوزخ يوه کنده ②لِلْعُرَفَاءِ: دا دعريف جمع ده د قبيلې مشر. گورنر ③أُمَنَاء: دَ امين جمع ده. امين امانتدار ته وائي، وزيرمال، خزانچي ④لَيَتَمَنَّيَنَّ: تمنا او آرزو به کوی. ⑤نَوَاصِيْ: تندې، د تندی وينبته. ⑥مُعَلَّقَةٌ: زوړند ⑦الثُّرَيَّا: پرقيدونکی جومپقه ستوری. ⑧يَتَجَلْجَلُونَ: جوتې ورکولې شي، خوزولې به شي ⑨لَمْ يَلُوْا: چه نه وي سپارلې شوې مشری.

[۱] وَرَوَاهُ أَحْمَدُ فِي رِوَايَتِهِ: أَنَّ ذَوَائِبَهُمْ كَانَتْ مُعَلَّقَةً بِالثُّرَيَّا، [۲] يَتَذَبْذَبُونَ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ [۳] وَلَمْ يَكُونُوا عُمِّلُوا عَلَى شَيْءٍ.

**ترجمه:** [۱] دا روايت امام احمد رحمه الله هم نقل کړي دی د هغوی په روايت کې دا سې دي چې هغوی به آرزو کوي کاشکي چې په دنيا کې د هغوی څوڼې ثريا سره تړلو کې [۲] هغوی د زمکي او آسمان په مينځ کې زوړند وي [۳] ليکن هغوی په څه شي عاملان کار کونکي نه وي مقرر شوی

**حل اللغات:** ⑩يَتَذَبْذَبُونَ: د يَتَجَلْجَلُونَ په معنی کښې دې. خوزول او جوتې ورکول

**تسهیلات: قوله:** وَيْلٌ:

**د ويل په معنى کښې دوه اقوال:**

① دالفظ دَ غم هلاکت او عذاب دَ سختوالی دپاره ونيلې شی

② بعضې علماء وائی چه دا په دوزخ کښې دَ يوې کندې نوم دې په کوم کښې چه به ترخلو يښتو کالو پورې سړې پريوځی او بيخ ته به نه رسيږی

**قوله:** وَيْلٌ لِلْعُرَفَاءِ:

**د عرفاء نه مراد:** ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی عريف دَ قبيلې هغه مشر ته وائی چه دَ خپلې قبيلې دَ معاملاتو خيال ساتی دهغوی دمعاملاتو مشری کوی اودَ وخت بادشاه دهغه په ذريعه دَعوامو حالت معلومه وی د کلو او قبيلو سردار او دَ صوبو گورنران هم په دې کښې شامل دی (مرقات ج ۷ ص ۲۱۸)

عرفاء کښې چودهری، نواب. خان. ملك. ليډر او وډيره گان ټول داخل دی

أوكلما وردت عكاظ قبيلة　　　بعثوا الى عريفهم يتوسم

**قوله:** لِلْأُمَنَاءِ:

**د امناء نه مراد:** امين هغه سړی ته وائی کوم چه بادشاه په صدقات او محصولات باندې

مقررکړې وی یا دعاموخلقو د امانتونو امین مراددې په دې عهده کښې د خیانت ډیره لویه خطره ده نن صبا ده ته وزیر مال یا خزانچی ونیلې شی

**قوله**: يَتَجَلْجَلُونَ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ

**د تجلجل معنی:** کوم سړې چه څه ځیزپورې زوړند شی حرکت کوی هغې ته تجلجل وائی په نورو روایتونو کښې يتذبذبون لفظ راغلې دې هغه هم دغه دې

**قوله**: وَأَنَّهُمْ لَمْ يَلُوا عَمَلًا:

**د قیامت په ورځ د ظالمانو حکمرانو ارمان:** داد والی اوحاکم جوړېدو په معنی کښې دې يعني داخلق به په قیامت کښې ارمان اوخپیمانتیاسره خواهش کوی چه افسوس مونږ په دنیاکښې ټول مشقتونه او ذلتونه برداشت کړې وې او په مظلوم رعایاکښې اوسیدلې لیکن د حکمرانئی دغه فانی عیش اوعشرت کښې نه وې پاتې شوي دې دپاره چه نن د عذاب دغه خطرناك مخ نه لیدلې کیدې "الآن قدندمت ولم ينفع الندم"

**[۳۶۹۹] د اکثرو حاکمانو په دوزخ کښې کیدل**

---

—[۳۹] ()[۱]وَعَنْ غَالِبٍ الْقَطَّانِ عَنْ رَجُلٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲]«إِنَّ الْعِرَافَةَ حَقٌّ وَلَابُدَّ لِلنَّاسِ مِنْ عُرَفَاءَ[۳]وَلَكِنَّ الْعُرَفَاءَ فِي النَّارِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

---

**ترجمه**:[۱]او غالب قطان د یوسړي نه او هغه سړی د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه (دادا) نه روایت کوي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲]چودهریتوب یو حقیقت دی او د خلقو د پاره د چودهریانو کیدل ضروري دی [۳]لیکن چودهریان به دوزخ ته ځي (ابوداود)

**حل اللغات**: ①الْعِرَافَةَ: سرداری مشری

**تسهیلات**:

**قوله**: إِنَّ الْعِرَافَةَ حَقٌّ:

**د العرافة حق دوه مطلبونه:** ① دلته حق په معنی د ثابت دې چه عرافه یو حقیقت دې ② یامطلب دا چه عرافه ثابت پاتې کیدل پکاردی

**قوله**: وَلَكِنَّ الْعُرَفَاءَ فِي النَّارِ:

**د عرفاء په اور کښې د کیدو مطلب:** یعنی دخلقو مختلف کارونه اوضروریات وی دا یوحاکم ته رسول ضروری وی اوداکار عرفاء او هم ددغه چودهریانو دې لیکن په دې کښې داخلق خیانت هم کوی اوظلم هم کوی ددې دپاره عرافه یعنی چودهراهټ په دوزخ کښې دې که چرې ددې منکراتونه بچ شی نوبیادا وعیدنه دې

---

[۱] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الخراج والإمارة والفیء /باب فی العرافة (رقم-۲۹۳٤)

### [۳۷۰۰] د ظالم حاکم سره د تعاون حرمت

۳۷۰۰-[۳۰] ()①وَعَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②«أُعِيذُكَ بِاللّٰهِ مِنْ إِمَارَةِ السُّفَهَاءِ، ③قَالَ: وَمَا ذَاكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ؟ ④قَالَ: أُمَرَاءُ سَيَكُونُونَ مِنْ بَعْدِي، ⑤مَنْ دَخَلَ عَلَيْهِمْ فَصَدَّقَهُمْ بِكَذِبِهِمْ وَأَعَانَهُمْ عَلَى ظُلْمِهِمْ، فَلَيْسُوا مِنِّي، وَلَسْتُ مِنْهُمْ، ⑥وَلَنْ يَرِدُوا عَلَيَّ الْحَوْضَ،

**ترجمه:** ①او حضرت كعب رضي الله عنه ابن عجره وايي چې رسول كريم ﷺ ماته وفرمايل ②زه تا د بيوقوفانو خلقو د سرداری د طور وطريقو نه يا د هغوی د مصاحبت او حمايت نه د الله جل جلاله پناه کې ورکوم ③کعب رضي الله عنه فرمايي ما عرض اوکړو يارسول الله ذاخه دی؟ يعنی داسې سرداري به کله وي او څنګه به وي او هغه به کوم خلق وي ④حضور ﷺ وفرمايل خما نه وروسته به په بعضو زمانو کې چې کوم سړی امير او حاکم وي هغوی به احمق او نادان دشريعت دقانون نه نابلده او ظالمان وي ⑤نو کوم خلق [چې دی احمق نادان کذاب او ظالمو اميرانو او حاکمانو ته] ورغلل د هغوی مصاحبت يې اختيار کی او د هغوی دروغو ته يې رېښتيا اوويل او د خپل قول او فعل په ذريعه د هغوی د ظلم امداد او حمايت يې اوکړو نو نه د هغوی زما سره څه تعلق شته او نه زه د هغوی سره څه تعلق لرم بلکه هغوی نه د خپلې بيزاری اظهار کوم ⑥او نه به هغه خلق حوض ته ماته راځي

**حل اللغات:** ①أُعِيذُكَ: زه تا په پناه کې ورکوم ②إِمَارَةِ: مشری. حکمرانی، ③السُّفَهَاءِ: بې وقوفان.

①وَمَنْ لَمْ يَدْخُلْ عَلَيْهِمْ وَيُصَدِّقْهُمْ بِكَذِبِهِمْ وَلَمْ يُعِنْهُمْ عَلَى ظُلْمِهِمْ، فَأُولَئِكَ مِنِّي، وَأَنَا مِنْهُمْ، ②وَأُولَئِكَ يَرِدُونَ عَلَيَّ الْحَوْضَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ①او کوم خلق چې نه خو هغه اميرانو او حاکمانو ته ورغلل او نه د هغوی دروغو ته يې رېښتيا اوويل او نه يې د هغوی د ظلم امداد او حمايت اوکړو نو هغه خلق خما دي او زه د هغوی يم ②او هغوی به حوض ته ماته راځي ترمذی نسائی

**تسهيلات:**

**قوله:** أُعِيذُكَ بِاللّٰهِ مِنْ إِمَارَةِ السُّفَهَاءِ:

يو شعر اوګورئی

لا يصلح الناس فوضى لا سراة لهم ولا سراة اذا جهالهم سادوا

يعنی دَ يو حاکم نه بغير په ګړبړ کښې خلق صحيح کيدې نه شی اوکه جاهل حکمران وی نو هغه خودَ سره دَخلقو حکمران نه دي.

(١) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب السفر/باب ما ذكر فی فضل الصلاة (رقم-٦١٤) والنسائی فی كتاب البيعة/باب ذكر الوعيد لمن أعان أميرا على الظلم (رقم-٤٢٠٧) والنسائی فی ٤/٢٤٣

## [٣٧٠١] د حاکمانو صحبت د فتنې سبب

٣٧٠١-[٣١] (١) ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ٢ «مَنْ سَكَنَ الْبَادِيَةَ جَفَا، ٣ وَمَنِ اتَّبَعَ الصَّيْدَ غَفَلَ، ٤ وَمَنْ أَتَى السُّلْطَانَ افْتُتِنَ». ٥ رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ: ٦ «مَنْ لَزِمَ السُّلْطَانَ افْتُتِنَ، ٧ وَمَا ازْدَادَ عَبْدٌ مِنَ السُّلْطَانِ دُنُوًّا إِلَّا ازْدَادَ مِنَ اللهِ بُعْدًا».

**ترجمه:** ١ او ابن عباس رضي الله عنهما د نبي كريم ﷺ نه روايت كوي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل ٢ كوم سړى چې په ځنګل كې اوسيږي هغه جاهل وي ٣ او كوم سړى چې په ښكار پسې تلى وي هغه غافل وي ٤ او كوم سړى چې بادشاه ته ځي راځي هغه په فتنه كې مبتلا كيږي ٥ (احمد ترمذي نسائي) او د ابوداود په روايت كې داسې دي ٦ چې كوم سړى چې د بادشاه ملازمت كې وي [يعنى هغه سره حاضر باش او حاشيه نشين وي] هغه په فتنه كې مبتلا كيږي ٧ او كوم سړى چې د بادشاه څومره زيات قرب غوښتونكى وي هغومره د الله ﷻ نه لرې وي.

**حل اللغات:** ① الْبَادِيَةَ: كلي. باندې. ② جَفَا: بې وفا. جاهل. ③ غَفَلَ: غافل شو. ④ افْتُتِنَ: په فتنه كښې پريوتل. ⑤ عَبْدٌ: غلام نوكر. ⑥ دُنُوًّا: نزدېكت ⑦ بُعْدًا: لرې والى.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ سَكَنَ الْبَادِيَةَ جَفَا:

**د باندچيانو د سادګۍ وجه:** په ځنګل اوكلوكښې اوسيدونكي چونكه دَعلم علماء او صلحاء دَ مجالسونه لرې اوسيږى اودَ ښاريو دَ تهذيب نه هم ناخبره وى په دې وجه هغه شاړپاړ وى نبى كريم دَ امر واقعى بيان كړې دې په كلوكښې دَ اوسيدونكو تنقيص مقصودنه دې

**قوله:** وَمَنِ اتَّبَعَ الصَّيْدَ غَفَلَ:

**د مذكوره ښكار مصداق:** يعنى يو سړې ښكارپسې داسې لګيدلې وى چه نه ئى دَ خوراك خيال وى نه دَ مونځ فكر وى اونه دَځان پرواه وى اوداهرڅه دَ څه حلال رزق ګټلو په نيت سره نه وى بلكه دَعيش اولهو لعب په توګه داسې كوى نوښكاره خبره ده چه دا غفلت او ګناه ده په دې سره دَ دغه ښكاركولونه ممانعت نه كيږى په كوم كښې چه دامفاسدنه وى ځكه چه نبى كريم سره دَدې چه پخپله ئى ښكار نه دې كړې مګر دَ ښكار غوښه ئى خوړلې ده اوصحابه كرامو ته ئى دَ دې مسائل خودلى دى اودې نه ئى منع نه ده كړې.

---

[١] ) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الصّيد /باب فى اتّباع الصّيد (رقم-٢٨٥٩) والترمذى فى كتاب الفتن عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب (رقم-٢٢٥٦) والنسائى فى كتاب البيعة/باب فضل من تكلّم بالحقّ عند إمام جائر (رقم-٤٢٠٩) واحمد فى المسند: ٣٥٧/١

**قوله**: وَمَنْ أَتَى السُّلْطَانَ افْتُتِنَ:

**د بادشاه دربارته په حاضرېدو کښې د خطري وجوه:** يعنى كوم سړي چه بغيرد څه سخت ضرورت نه دبادشاه دربارته لاړو نوهغه په فتنه کښې پريوتلو ځکه چه که چرې هغه دبادشاه په ناجائز کارونو کښې موافقت کوي نوډ هغه دين به تباه برباد شي اوکه چرې مخالفت کوي نوډ هغه دنيا اوځان به په خطره کښې شي اوکه چرې يو سړی دبادشاه په دربارکښې د حق کلمه اووئيله نودغه خود ډير لوئی اجر خبره ده

**[۳۷۰۲] په ګمنامي کښې سلامتيا**

۳۷۰۲ـ[۳۲] ( ) ۱ «وَعَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِيكَرِبَ: أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ ضَرَبَ عَلَى مَنْكِبَيْهِ، ثُمَّ قَالَ: ۳ أَفْلَحْتَ يَا قُدَيْمُ إِنْ مُتَّ وَلَمْ تَكُنْ أَمِيرًا وَلَا كَاتِبًا وَلَا عَرِيفًا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: ۱ او مقدام رضی الله عنه ابن معديکرب نه روايت دي ۲ چې رسول الله ﷺ د هغه يعنى مقدام رضی الله عنه په اوږه خپل لاس مبارك وهلو سره وفرمايل ۳ اې قُديمه که ستا داسې حالت کې مرګ وي چې نه ته امير او حاکم يې نه منشي يې او نه چودهري نو تا فلاح خلاصون پيدا کړو (ابوداود)

**حل اللغات**: ① أَفْلَحْتَ: کاميابی دې حاصله کړه، کامياب شوې. ② قُدَيْمُ: دمقدام تصغير دی ③ عَرِيفًا: چودهری.

**تسهيلات**:

**قوله**: على منكبيه، إظهار للشفقة: داشان قديم به تصغير سره د محبت دپاره نې اووئيل

**قوله**: وَلَا عَرِيفًا: عريف ګمنام ته وئيلې کيږي، په دې کښې اشاره ده چې ګمنامي کښې راحت او آرام دې اوشهرت کښې آفت او مصيبت دې

**[۳۷۰۳] په ناجائزه ډ ټيکس اخستونکو جنت ته نه داخليدل**

۳۷۰۳ـ[۳۳] ( ) ۱ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ «لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ صَاحِبُ مَكْسٍ يَعْنِي الَّذِي يَعْشُرُ النَّاسَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه**: ۱ او عقبه رضی الله عنه ابن عامر وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ۲ صاحب مکس به په جنت کې نه داخليږي صاحب مکس نه د حضور ﷺ مراد حاکم او کار پردازر دی چې د خلقو نه خلاف شرع محصولات او ټيکس وصولوي (احمد ابوداود دارمي)

**حل اللغات**: ① صَاحِبُ مَكْسٍ: ټيکس اومحصول وصولونکې ② يَعْشُرُ النَّاسَ: چه د خلقو نه عُشر او زکوة راټولوی

[۱] ) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الخراج والإمارة والفىء/باب فى العرافة (رقم-۲۹۳۳)

[۲] ) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الخراج والإمارة والفىء/باب فى السعاية على الصدقة (رقم-۲۹۳۷)واحمد فى المسند: ۱۴۳/۴

**تسهیلات:**

**قوله** لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ صَاحِبُ مَكْسٍ.

**درانه ټيکسونه د حکومت ناکامي:** مکس محصول او ټیکس ته وائی کوم چه په ناجائزه توګه خائی په خائی جوړشوی دی او په ظلم سره دخلقونه ټیکسونه وصولوی که هغه په اثربوړتونو باندې وی یاپه نورو خایونو کښې وی یادځه قسم بلونوپه شکل کښې وی په کوم کښې چه ظلم کړې شوې وی اود شریعت خلاف ټیکس نافذ کړې شوې وی هغه ټول په دې وعید کښې داخل دی شاه ولی الله رحمه الله لیکلی دی د یوحکومت د ناکامئ اوتباهئ دپاره داکافی دی چه هغه په عواموباندې درانه ټیکسونه مقررکړی اوکه د حکومتی ضروریاتو پوره کولودپاره مناسب ټکسنوه مقرر کړې شی نودا جائز دې خوپه دې شرط چې دغه ټکسونه هم د عوامو په مفادو کښې خرچ کولی شی خپل جیبونه ترې نشی ډکولې

**[۳۷۰۴] دعادل امام فضیلت**

٣٧٠٤-[٣٣] (¹) ⑴ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ⑵ «إِنَّ أَحَبَّ النَّاسِ إِلَى اللهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَأَقْرَبَهُمْ مِنْهُ مَجْلِسًا: إِمَامٌ عَادِلٌ ⑶ وَإِنَّ أَبْغَضَ النَّاسِ إِلَى اللهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَأَشَدَّهُمْ عَذَابًا ⑷ وَفِي رِوَايَةٍ وَأَبْعَدَهُمْ مِنْهُ مَجْلِسًا: إِمَامٌ جَائِرٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ⑴ او ابوسعید رضی الله عنه وایي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل ⑵ د قیامت په ورځ به د الله جل جلاله په نز د ټولو نه زیات محبوب او د مرتبې د اعتبار نه زیات نزدې هغه سړی وي کوم چې عادل امام او حاکم وي ⑶ او د قیامت په ورځ به د الله جل جلاله په نز د ټولو نه زیات د نفرت مستحق او د ټولو نه زیات د عذاب سزاوار ⑷ او په یوبل روایت کې دادي چې د الله جل جلاله نه د ټولو نه زیات لرې به هغه سړی وي کوم چې ظالم امام او حاکم وي امام ترمذي رحمه الله دا روایت نقل کړې دی او ویلي یې دي چې دا حدیث حسن غریب دی

**تسهیلات:** **قوله** إِنَّ أَحَبَّ النَّاسِ إِلَى اللهِ...الخ:

ددې حدیث په تشریح کښې دوه شعرونه اوګورئی

| | |
|---|---|
| كم يرفع الله بالسلطان مظلمة | في ديننا رحمة منه دنيانا |
| لولا الخليفة لم تامن لنا سبل | وكان اضعفنا نهبا لاقوانا |

یعنی الله تعالی په خپله مهربانئ سره د عادل بادشاه په ذریعه باندې زمونږ د دین څومره مشکلات لرې کوی که چرې عادل بادشاه نه وې نوزمونږ امن به تباه وو اوطاقتورو خلقو به کمزوری خلق ژوندی تیرولې

(¹) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الجهاد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء من يستعمل على الحرب (رقم-۱۷۰٤) واحمد في المسند: ٥٥/٣

**[٣٧٠٥] د ظالم حاكم مخامخ د حق ګټولو فضيلت**

٣٧٠٥-[٣٥] ( )[١] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] «أَفْضَلُ الْجِهَادِ مَنْ قَالَ كَلِمَةَ حَقٍّ عِنْدَ سُلْطَانٍ جَائِرٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] او ابو سعيد رضي الله عنه وايي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل [٢] د ټولو نه ښه جهاد د هغه سړي دی چې د ظالم بادشاه په مخکې حقه خبره وکړي (ترمذي ابوداود ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① جَائِر: ظالم

**تسهيلات:**

**قوله: أَفْضَلُ الْجِهَادِ مَنْ قَالَ كَلِمَةَ حَقٍّ عِنْدَ سُلْطَانٍ جَائِرٍ:**

**د جهاد باللسان د جهاد بالنفس نه د افضليت وجوهات:** دلته دَ من دکلمې نه مخکښې لفظ جهاد مقدر منل ضروری دی "اي جهادمن قال، يا افضل اهل الجهاد" په محذوف منلې شي

① دَ شيخ مظهر رحمه الله په حواله سره هم ملاعلی قاری رحمه الله نقل کړې دي. دَ هغې خلاصه داده چه دَ ظالم حاکم دَ ظلم دَ وجې نه په زرګونو لاکهونو انسانانوته نقصان رسيږي اوهغه په نيغه لار راوستلو کښې دَ لکهنو مسلمانانو ښيګړه اوفائده ده په دې وجه دَ عموم نفع په رنړا کښې دَ هغه جهاد نه افضل دې دَ کوم جهاد نفع چه دَدې نفع نه محدود ده بهرحال څه خلق صرف زبانی جمع خرچ ته افضل جهاد وائی دادَدې حديث په مفهوم کښې کوتاه نظری ده اودَ جهاد مقدس نه دَ طبعی نفرت نتيجه ده هم مجاهدين خو حکمرانانو سره اينختې وی دادکلمه حق اودعوت حق مهم نه دي نو دَ څه سرمايه اوتجارت جنګ دي

② ملاعلی قاری رحمه الله په مرقات فرمائی کوم چه ګنګوهی رحمه الله په کوکب الدری کښې نقل کړې دې دَهغې خلاصه داده چه دَ ميدان جنګ مجاهد په دې اميدباندې وی چه کيدې شی هغه دَ دښمن دَ لاسه په ميدان کښې شهيد شی او ممکن ده چه بچ شی ليکن دَ ظالم حاکم په مخکښې دَحق کلمه وئيل يقينی مرګ له دعوت ورکول دی ځکه چه که په صحيح معنو کښې ده امر بالمعروف اونهی عن المنکر کړې وی نوچونکه دې دَ ظالم په لاس او قابو کښې دي لهذا دَ ده بچ کيدل ګران دی. اوکوم سړې چه پوهيږی چه دَدې کلام دَ کولودَ وجې نه به هغه ته مرګ ملاويږی اوبيا هغه کوی نودا ډيرلوئی کاردې په دې وجه دا افضل جهاد اوګرځولې شو

[١] ) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب التّرجّل /باب الأمر والنّهى (رقم-٤٣٤٤) والترمذى فى كتاب الفتن عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم /باب ما جاء فى الخسف (رقم-٢١٨٤)و ابن ماجه فى كتاب الفتن /باب الأمر بالمعروف والنّهى عن المنكر (رقم-٤٠١١) واحمد فى المسند: ١٩/٣

۳۷۰۶-(¹) وَرَوَاهُ أَحْمَدُ وَالنَّسَائِيُّ عَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ.

**ترجمه** او احمد او نسائي دا روایت د طارق ابن شهاب رحمه الله نه نقل کړي دی.

**[۳۷۰۷] د حاکم دپاره د صالح وزير فضيلت**

۳۷۰۷-[۳۶] (²) ١ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ٢ «إِذَا أَرَادَ اللهُ بِالأَمِيرِ خَيْرًا جَعَلَ لَهُ وَزِيرَ صِدْقٍ ٣ إِنْ نَسِيَ ذَكَّرَهُ، وَإِنْ ذَكَرَ أَعَانَهُ، ٤ وَإِذَا أَرَادَ بِهِ غَيْرَ ذَلِكَ، جَعَلَ لَهُ وَزِيرَ سُوءٍ. ٥ إِنْ نَسِيَ لَمْ يُذَكِّرْهُ، وَإِنْ ذَكَرَ لَمْ يُعِنْهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه** ١ او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمايل ٢ هرکله چې الله جل جلاله د يو امير حکمران د دين او دنيا د خير اراده لري نو د هغه د پاره رېښتيني يعنې راست گفتار او راست کردار وزير او مشير مقرر وي ٣ هرکله چې هغه امير د الله احکام هير وي نو هغه وزيريي ورته يادوي او که هغه ياد لري نو هغه وزير يي په هغه کې مدد کوي ٤ او هرکله چې د يو امير د خير اراده نه لري نو په هغه باندې بد طينت وزير او مشير مسلط کوي ٥ که امير د خدای جل جلاله احکام هيروي نو هغه وزيريي ورته نه يادوي که هغه يي نه هيروي نو هغه وزير يي مدد نه کوي. (ابوداود ، نسائي)

**حل اللغات:** ① وَزِيرَ صِدْقٍ: رښتوني وزير .مشير. ② أَعَانَ: مدد کوی ③ وَزِيرَ سُوءٍ: خراب او بدنيته وزير

**تسهيلات:**

**نوټ:** د ترجمې څخه د مفهوم ښکاره ده.

**[۳۷۰۸] په قوم دغلط گمانئ نقصان**

۳۷۰۸-[۳۷] (³) ١ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ٢ «إِنَّ الأَمِيرَ إِذَا ابْتَغَى الرِّيبَةَ فِي النَّاسِ أَفْسَدَهُمْ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ او ابو امامه رضي الله عنه د نبي کريم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي ٢ چې رسول کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل حکمران چې په خلقو کې د شك او شبهې خبرې لټوي نو خلق خرابوي (ابوداود)

**حل اللغات:** ① ابْتَغَى: لټوی. ② الرِّيبَةَ: د شک شبهې خبرې

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ الأَمِيرَ إِذَا ابْتَغَى الرِّيبَةَ فِي النَّاسِ أَفْسَدَهُمْ:

---

¹) اخرجه النسائي في السنن كتاب البيعة /باب فضل من تكلّم بالحقّ عند إمام جائر (رقم-٤٢٠٩) واحمد في المسند: ٣١٤/٤

²) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الخراج والإمارة والفيء /باب في اتخاذ الوزير (رقم-٢٩٣٢) والنسائي في كتاب البيعة /باب وزير الإمام (رقم-٤٢٠٤)

³) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب /باب في النّهي عن التجسس (رقم-٤٨٨٩) واحمد في المسند: ٤/٦

**د حاکم او محکوم په مینځ کښې د ښه تعلقاتو طریقه:** په دې ارشاد مبارك سره یوبین الاقوامی قانون طرف ته اشاره کړې شوې ده چه د ملك او ملت سالمیت اود قومونو فلاح اوبهبود اود حاکم او محکوم په مینځ کښې د خو تعلقاتو د پاره ضروری دی چه د حاکم او رعایا په مینځ کښې مکمل اعتماد قائم وی. هرحاکم له پکاردی چه هغه په غورسره په دې خبره سوچ اوکړی چه ده ته د خپل رعایا د پوره تائید ضرورت دې که یو تنګ نظر او کم ظرف حکمران د خپل رعیت باره کښې یو شان شك شبه کښې اخته وی اود رعایا وفادارئی او د هغوی نقل وحرکت باندې بدګمانی کوی او د درغو په الزاماتو باندې هسې هغوی تنګه وی نو په حقیقت کښې هغه هم خپله خپه په تیروهی اود خپل حکومت جرړې پرې کوی اوس ځنګه چه حاکم په کومه طریقه د رعیت یوه طبقه بغیرد څه وجې نه د بدګمانئی نښه جوړولو سره په جیلونو کښې اچوی نو د عوامو مخالف جذبات اود شك شبې رجحانات به زیاتیږی او هم دغه د حکومت تباهی ده

**[٣٧٠٩] د خلقو پټو رازونو معلومولو نقصان**

٣٧٠٩-[٣٨] (١) ① وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ② «إِنَّكَ إِذَا اتَّبَعْتَ عَوْرَاتِ النَّاسِ أَفْسَدْتَهُمْ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ، فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** ① او حضرت معاویه رضی الله عنه وایي ② چې ما د رسول کریم ﷺ نه واوریدل هرکله چې تاسو د خلقو پټ عیبونه تلاش کوئ نو هغوی به په خرابي کې مبتلاء کی (بیهقي)

**حل اللغات:** ① عَوْرَاتِ: پټ عیبونه

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّكَ إِذَا اتَّبَعْتَ عَوْرَاتِ النَّاسِ أَفْسَدْتَهُمْ: عورات الناس، أي عيوبهم الخفية حکمرانانو ته خطاب دې چې تاسو د رعایا عیبونه مه لټوئی . که تاسو دالټوی نو هغوئ به په بدۍ کښې اخته شی واضحه دې وی چې حدیث مبارك کښې بلاوجه بدګمانۍ او شك وشبهې نه منع فرمائیلې شوې ده ګنی د بدمعاشانو او مشکوکو خلقو نګرانی د حاکم په ذمه کښې داخل دی

**[٣٧١٠] د حق تلفي کونکی حاکمانو په ظلم د صبر کولو فضیلت**

٣٧١٠-[٣٩] (٢) ① وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «كَيْفَ أَنْتُمْ وَأَئِمَّةٌ مِنْ بَعْدِي يَسْتَأْثِرُونَ بِهَذَا الْفَيْءِ؟ ③ قُلْتُ أَمَا وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ أَضَعُ سَيْفِي عَلَى عَاتِقِي، ثُمَّ أَضْرِبُ بِهِ حَتَّى أَلْقَاكَ ④ قَالَ، أَوَلَا أَدُلُّكَ عَلَى خَيْرٍ مِنْ ذَلِكَ، تَصْبِرُ حَتَّى تَلْقَانِي». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

(١) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الأدب/باب فی النهی عن التجسس (رقم-٤٨٨٨)
(٢) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب السنّة/باب فی قتل الخوارج(رقم-٤٧٥٩) واحمد فی المسند:٥/١٨٠

**ترجمه:** [۱] او ابوذر رضي الله عنه وايي رسول كريم ﷺ مونږ په مخاطب كولو سره وفرمايل [۲] زمانه وروسته به تاسو د حاكمانو او سردارانو سره هغه وخت څه سلوك كوئ هركله چې هغوى هغه فئ مالِ غنيمت ځان سره ساتي [آيا د صبر لار به اختيار وي يا د هغوى خلاف به توره اوچتوي] [۳] ماعرض اوكړو چې يارسول الله واورئ قسم دى په هغه ذات چې تاسو يې په حق سره پيغمبر راليږلو يئ زه به خپله توره په اوږه كيږدم او بيابه په دي وهل شروع كړم تردي چې په دي سبب ستاسو سره يوځاى شم [۴] حضور ﷺ ورته وفرمايل آيا زه تاته دي توري پورته كولو نه ښه خبره ونه ښايم نو واوره ته هغه وخت د صبر لار اختيار كړه تردي چې ته زماسره يوځاى شي [څكه چې د څه دنياوي حق تلف كيدو په صورت كې توري پورته كولو نه صبر كول او خاموش اوسيدل ښه هم دى او د دنيا د څيزونو نه د بي رغبتى او زهد شايانِ شان هم دى.] (ابوداود)

**حل اللغات:** ① يَسْتَأْثِرُونَ: ترجيح به وركوى، ② الفَيْءِ: مفت مال، مال غنيمت. ③ أَضَعُ: كيبدږدم. سَيْفِي: خپله توره، ④ عَاتِقِي: په اوږه باندې، ⑤ أَلْقَاكَ: چه تاسره ملاؤ شم

**تسهيلات:**

**قوله:** أَضَعُ سَيْفِي عَلَى عَاتِقِي:

**د مذكوره جملې مطلب:** يعنى په غاړه كښې به توره زوړندولوسره دَهغه دَ وهلودَپاره راؤخم اوچه څوك ملاويږى دَهغه سټ به الوزوم.

**د مسلمانانو خپل مينځ كښې د جنګيدو په موقع د صحابؤ درې قسمه كردار:** كله چه مسلمانان په خپل مينځ كښې جنګيږى او دا معلومه نه وى چه هغوى ولې جنګيږى نودَداسې مواقع دَپاره جدا جدا احاديث راغلى دى.

① هغه روايات په كومو كښې چه راغلى دى تاسو په كورونو كښې پټ شئى دننه لارشئى او تورې ماتې كړئى. دَحضرت ابوذر رضي الله عنه هم دغه رائې ده اودَ صحابه كرامو يوه طبقه هم دغه طرف ته تللې ده.

② هغه روايات چې د اهل حق په حمايت كښې د جنګيدو حكم په كښې راغلې دې. دَ صحابه كرامو دَ يوې لوئى طبقې هم دغه نظريه وه.

③ هغه روايات په كومو كښې چې دا هدايت موجود دې كه چرې فتنه كورونوته راشى نو دفاع كوئى. په صحابه كرامو رضي الله عنهم كښې دَحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما هم دغه رائې وه.

نودرې قسم روايات دَ دريو طبقو دَ خپل خپل مزاج مطابق قبول كړل. ليكن دَ حق دَ سرلوړئى دَپاره په ميدان كښې راوتل دَ جمهور صحابه كرامو معمول دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۳۷۱۱] د عادل امام فضيلت

۳۷۱۱-[۵۰] ( ) [۱] عَنْ عَائِشَةَ عَنْ رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] «أَتَدْرُونَ مَنِ السَّابِقُونَ إِلَى ظِلِّ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟ [۳] قَالُوا: اللهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، [۴] قَالَ: الَّذِينَ إِذَا أُعْطُوا الْحَقَّ قَبِلُوهُ، [۵] وَإِذَا سُئِلُوهُ بَذَلُوهُ [۶] وَحَكَمُوا لِلنَّاسِ كَحُكْمِهِمْ لِأَنْفُسِهِمْ».

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه رضي الله عنها د رسول كريم ﷺ نه نقل كوي چي حضور ﷺ صحابه رضي الله عنهم ته وفرمايل [۲] تاسو ته معلومه ده چي د قيامت په ورځ به الله ﷻ د عرش يا د لطف وكرم سايه (سوري) طرف ته سبقت كونكي كوم خلق وي (يعنى د قيامت په ورځ به د ټولو نه مخكي كوم خلق د الله ﷻ عرش يا د هغه د فضل وكرم سايه (سوري) ته خي) [۳] صحابه رضي الله عنهم عرض اوكړو الله او د هغه رسول ښه پوهيږي [۴] حضور ﷺ ورته وفرمايل سبقت وړونكى هغه خلق دي چي حق ورته وركړې شي نو هغه قبلوى [۵] اوكله چي د هغوى څخه د حق مطالبه كولى شي نو هغوى خلقو ته د هغوى حق وركوى [۶] او د خلقو حق كي هغه فيصله كوي كومه چي د خپل ذات په باره كي كوي

**حل اللغات:** ① أَتَدْرُونَ: آيا تاسو ته معلومه ده، ② السَّابِقُونَ: مخكښي كيدونكى. ③ ظِلِّ اللهِ: سيوري د الله (لطف وكرم د الله تعالى) ④ قَبِلُوهُ: قبلوى ئې. ⑤ بَذَلُوهُ: خرچ كوى ئې

**تسهيلات:**

**قوله:** السَّابِقُونَ:

**د عادل حكمرانانو دري صفتونه:** چونكه په دې حديث كښي وړاندي دوه دري خبري ذكردى په هغي كښي د بعضي تعلق بغيرد څه واسطي دَ حكمرانانو سره دي او دَ بعضي تعلق بالواسطه هغوى سره دي په دي وجه دا حديث په باب الاماره كښي راوړلي شو او په عنوان كښي دَ عادل امام فضيلت عنوان اوترلي شو ګنى دَ السابقون په جمله كښي دَ عادل حكمران څه تخصيص نشته دي

① كله چي دهغوى په وړاندي دَ رعايا دَ ښېګړي اوبهترئى دَپاره څه حق خبره پيش كولي شى نو هغه ددې قبلولو سره په دې عمل كوى

② كله چي رعايا خپل حق غواړى نو هغه دوى ته وركوى او دَهغوى په خيرښيګړه او دَ ژوندضروريات پوره كولوكښي خرچ كوى او په هغي كښي بخل نه كوى.

③ چي هغوى دَ عدل انصاف او مساوات په ټول پوره وى. هغه چه دَ خلقو متعلق څه

[۱] ) اخرجه احمد في المسند: ۶۷/۶

فیصله کوی هم هغه فیصله دخپل خان باره کښې هم کوی کوم آرام راحت او سهولت چه د خپل خان دپاره خوښه وی هم هغه اصول د نورو دپاره هم خوښه وی داسې نه وی چه خپل امتیازات او قواعدئی جدا وی او دخلقو دپاره جدا وی بلکه دانصاف په تله کښې دواړه برابر او پوره پوره وی نو دا بهترین حکمرانان دی

**[۳۷۱۲] نبی علیه السلام ته د حاکمانو د ظلم ویره**

۳۷۱۲-[۵۱] (۱) ۱ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَقُولُ: ۲ «ثَلَاثٌ أَخَافُ عَلَى أُمَّتِي: الِاسْتِسْقَاءُ بِالْأَنْوَاءِ وَحَيْفُ السُّلْطَانِ وَتَكْذِيبٌ بِالْقَدَرِ».

**ترجمه**: ۱ او حضرت جابر رضی الله عنه وایي ما د رسول کریم ﷺ نه دا واو ریدل ۲ چې زه د خپل امت په حق کې ددرو خبرو نه ویریږم چې چرته هغه اختیارولو سره ګمراهي کې مبتلا نشي ① یو خو د سپوږمی چاند د منازلو د حساب نه باران غوښتل ② دویم د بادشاه دظلم کولو ③ او دریم تقدیر دروغ کول یعنی دا عقیده ساتل چې تقدیر الهي هیڅ څیز نه دی بلکه انسان څه فعل چې کوي هغه خپله د هغه خالق دی څنګه چې د جمعت قدریه مسلك دی

**حل اللغات** ①الِاسْتِسْقَاءُ: باران غوښتل. ②بِالْأَنْوَاءِ: دادَ نوء جمع ده. ستوري ③حَيْفُ: ظلم وستم ④تَكْذِيبٌ: دروغ ګڼړل. انکار کول ⑤الْقَدَرِ: تقدیر

**تسهیلات**:

**قوله**: الِاسْتِسْقَاءُ بِالْأَنْوَاءِ:

**د الانواء د لفظ تحقیق**: دَ چیتر ستوری ته وئیلې شی کوم چه په موسم دَ سپرلی کښې ښکاره کیږی راخی د کوم د وجې نه چه دَعربو دَ جاهلیت د عقیدې مطابق باران زیاتیږی په نهایه ابن اثیر کښې لیکلی دی چه انواء د سپوږمئی ۲۸ منازل او برجونو نوم دي هره شپه سپوږمئی ددې نه په یو منزل کښې ورکوزیږی او په ۲۸ شپو کښې خپل منازل پوره کوی هم دغه وجه ده چه سپوږمئی په دوو شپو کښې غیبه وی

**د انواء په باره کښې د عربو جاهلانه عقیده**: بهرحال چه کله په مغرب کښې یو منزل او برج ډوبیږی نو هم هغه وخت په مشرق کښې یو منزل او برج راخیژی دَعربو په جاهلیت کښې خیال وو چه ددې سقوط او طلوع په زمانه کښې سخت بارانونه وی اسلام دا منع کړل ځکه چه دَ باران کیدل اونه کیدل دالله تعالی دَ قدرت په لاس کښې دی دَ یو ستوری یا برج مثلاً سهیل ستوري یا سهیلی ستوري طرف ته نسبت کول دَ شرك سبب دي

۱) اخرجه احمد فی المسند: ۹۰/۵

**د حديث د بعضې جملو وضاحت:**

① وَحَيْفُ السُّلْطَانِ: حيف ظلم او ستم ته وائي چنانچه د سلاطين ظلمونو دنيا پريشانه كړې ده

② وَتَكْذِيبٌ بِالْقَدَرِ: يعنى د تقدير انكار دَدې تفصيل باب الايمان بالقدر كښې كتل پكار دى

**د تكذيب بالقدر مطلب:**

مشهوره مقوله ده «تعرف الاشياء بأضدادها» يعنى څيزونه په خپل تضاد سره پيدندلې شى كه تياره نه وه رڼا به چا نه پيژندله كه خوشحالى نه وه غم به چا نه پيژندل، دغه شان دلته مونږ د ايمان بالقدر وضاحت كوو نو ددې څخه به تكذيب بالقدر په خپله معلوم شى

شرح السنه كښې ليكلى دى چه په تقدير باندې ايمان راوړل فرض دى او هغه دا سې چه بنده دا عقيده اوساتى چه الله تعالى دَ بنديګانو دَ افعالو خالق دې كه هغه عمل دَ خير وى اوكه دَ شر وى اودا هرڅه دَ بنديګانو دَ پيدائش نه مخكښې الله تعالى په لوح محفوظ كښې ليكلى دى اوس چه كوم څه ظاهريږى ټول دَ الله تعالى فيصلې او ارادې سره كيږى خو الله تعالى په كفر باندې خفه كيږى. په دې وجه ئى دَ كفر او معصيت دَپاره دَ سزا وعده كړې ده او په ايمان او طاعت باندې ئى دَ ثواب وعده كړې ده

**[۳۷۱۲] ابوذر رضى الله عنه ته د يو څو خبرو وصيت**

[۵۲] (¹) ① وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: «سِتَّةَ أَيَّامٍ ② اعْقِلْ يَا أَبَا ذَرٍّ مَا يُقَالُ لَكَ بَعْدُ ③ فَلَمَّا كَانَ الْيَوْمُ السَّابِعُ قَالَ أُوصِيكَ بِتَقْوَى اللهِ فِي سِرِّ أَمْرِكَ وَعَلَانِيَتِهِ ④ وَإِذَا أَسَأْتَ فَأَحْسِنْ ⑤ وَلَا تَسْأَلَنَّ أَحَدًا شَيْئًا وَإِنْ سَقَطَ سَوْطُكَ ⑥ وَلَا تَقْبِضْ أَمَانَةً ⑦ وَلَا تَقْضِ بَيْنَ اثْنَيْنِ».

**ترجمه:** ① او ابوذر ﷛ وايي چې رسول كريم ﷺ شپږ ورځو پورې ماته دا وئيل ② اې ابوذر! وروسته چې كومه خبره تاته كيدونكې ده د هغه د پاره تيار اوسه [يعنى حضور ﷺ شپږ ورځو پورې زه آګاه كولم چې زه به تاته يوهدايت كوم ته په هغه غور كوه او هغه ياد ساته او په هغه عمل كوه!] ③ هركله چې اومه ورځ شوه نو حضور ﷺ وفرمايل زه تاته وصيت كوم چې ظاهر او باطن كې الله پاك نه ويريږه ④ هركله چې ستا نه بدى وشي نو نيكي هم ورسره وكړه اخكه چې نيكي بدي رژه وي يا دا مقصد دى كه نه د چاسره سراب سلوك وكى نو د هغه سره د نيكي سلوك هم وكړه! ⑤ د چا په مخلوق كې د سوال لاس مه غزوه اګر چې ستا چابک راغورځيدلى وي ايعنى كه په سورلى سور يي اوچابک درنه وغورځيږي نو د هغه د پورته كولو د پاره هم چاته مه وايه په خپله را كوز شه پورته يي

¹) اخرجه احمد في المسند: ۱۷۲/۵

کړه! [٦] د چا امانت د ځان سره مه ایږده [٧] او د دوو سړو په مینځ کې حکم مه جوړیږه.

**حل اللغات:** ① اِعْقِلْ: عقل نه کار واخله. غور اوکړه ② لِي یرَأمْرِكَ: خپل پټ کار. باطن ③ أَسَأتَ: چه ستانه څه بدی اوشي، ګناه اوشي ④ سَقَطَ: اوغورزیږی. ⑤ سَوْطَكَ: چابک.

**تسهیلات:**

**د حدیث د بعضې جملو وضاحت:** ① سِتَّةَ أَيَّامٍ: دا ظرف واقع دې دَ قال دَپاره یعنی دَ شپږو ورځونه یوشان نبی کریم ماته فرمائیل چه اې ابوذر! روستو چه کومه خبره کیږی هغه په غورسره واوُره او ښه ئی یاده کړه او په دې عمل اوکړه.

② اعْقِلْ يَاأَبَاذَرّ داهم دغه قال مقوله ده په مینځ کښې ظرف واقع وو

③ وَلَاتَقْبِضْ أَمَانَةً: یعنی دَ چاامانت ځان سره مه ایږده ځکه چه په نفس باندې یقین نشته دې اودَ حالاتو اندازه نشته دې.

④ وَلَاتَقْضِ بَيْنَ اثْنَيْنِ: یعنی دَ دوو کسانو په مینځ کښې فیصله مه کوه. دَ دوو دَ قضا نه چه کله منع کړې شو نودَ زیاتو نه په طریقه اولی منع ده یعنی په دوو باندې هم قاضی مه جوړیږه دنبی کریم دا حکم دَ ابوذر رضي الله عنه خصوصی معروضی حالت دَ وجې نه وو چه ته دا کار مه کوه نور پریږده.

**ابوذر ته د نبي کریم ﷺ پنځه وصیتونه:** حضرت ابوذرغفاری رضي الله عنه ته ئی دا پنځه خبرې اوخودلې

① تقوی اختیارکړه ② ګناه پسې زر نیکی کوه ③ چانه څه مه غواړه

④ دَ چا امانت ځان سره مه ایږده ⑤ دَدوو کسانو په مینځ کښې قضا مه کوه یعنی دَهغوی قاضی اوحکم مه جوړیږه

**[٣٧١٤] دیو حکمران د حکومت درې تدریجي مرحلې**

[٥٣] (١) [١] عَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنَّهُ قَالَ: [٢] «مَا مِنْ رَجُلٍ يَلِي أَمْرَ عَشَرَةٍ فَمَا فَوْقَ ذَلِكَ [٣] إِلَّا أَتَاهُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ مَغْلُولًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَدُهُ إِلَى عُنُقِهِ [٤] فَكَّهُ بِرُّهُ، [٥] أَوْ أَوْبَقَهُ إِثْمُهُ [٦] أَوَّلُهَا مَلَامَةٌ وَأَوْسَطُهَا نَدَامَةٌ وَآخِرُهَا خِزْيٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ».

**ترجمه:** [١] او ابو امامه رضي الله عنه د نبي کریم ﷺ نه نقل کوي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [٢] کوم سړی چې د لس سړو یا د لسو نه هم د زیاتو خلقو حکمراني قبوله کړه [٣] الله تعالی به هغه دقیامت په ورځ داسې طوق کې نختي حاضر کړي [یعنی میدان حشر کې به راپاڅیږي] چې د هغه لاس به د هغه په څټ کې نختي وي [٤] تردې چې یا خو د هغه نیکي

(١) اخرجه احمد فی المسند: ٢٦٧/٥

هغه خلاص کړي [یعنی که هغه په دنیا کې خپل زیر دستو سره د عدل او انصاف معامله او حسنِ سلوك کړي وي نو دا به د هغه د نجات باعث شي] ⑤یا د هغه گناه [یعنی خپل زیر دستو باندې د هغه شوی ظلم وغیره به هغه هلاکت عذاب کې مبتلا کړي] ⑥یاد لړئ د سرداري او حکمرانی ابتداء ملامت دی د دې مینځ پښیماني او ندامت دی او د دې آخر د قیامت په ورځ ذلت او رسوایي ده

**حل للغات:** ①بَلَى: قبوله ئې کړه. ②مَغْلُولًا: غُلّ نه. د مرئ طوق. ③فَكَّهُ: آزاد او خلاص به ئې کړی. ④بِرُّهُ: نیکی. نیک سلوک دده. ⑤أَوْبَقَهُ: هلاک به ئې کړی. هلاکت ته به ئې اوغورزوی. ⑥إِثْمُهُ: گناه او بدسلوکئ دده. ⑦مَلَامَةٌ: ملامتیا. ⑧نَدَامَةٌ: خپیمانتیا. ⑨خِزْيٌ: شرمندگی. رسوائی

**تسهیلات:**

**قوله: إِلَّا أَتَاهُ اللّٰهُ عَزَّوَجَلَّ مَغْلُولًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ:**

**د دنیاوی بادشاهانو په هتکړو کښې حاضری:** یعنی هرقسم بادشاه به دَ الله تعالی په وړاندې په زنځیرونو کښې تړلې شوې او دَ لاسونو نه تړلې شوې راځی بیا که چرې عدل او انصاف ئی کړې وی نوعدالت به هغه خلاص کړی گنی په تړلولاسونوبه دوزخ کښې اچولي شی

**قوله: أَوَّلُهَا مَلَامَةٌ:**

**د حکومت درې مراحل او د هغې وضاحت:** ① **د خلقو الزامات و اعتراضات:** یعنی دَ حکومت ړومبې مرحله دَ خلقودَ الزاماتو اوریدل دی. دَ اخوا نه اعتراض دیخوانه اعتراض چه په ناجائزه طریقه باندې حکومت کښې راغلې دې په غله دروازه راغلې دې دهوکې اوفریب سره راغلې دې. رشوت ورکولوسره راغلې دې نااهل دې

② **ذمه واریانې:** کله چه دَ الزاماتو مرحله تیره شی نودې پسې دَ حکومت دَ ذمه وارو مرحله راځی. ځکه چه

حاکم عاجزخو محنتونه مشقتونه کوی لیکن دَ رعایا مسئله نه حل کیږی نو زړه ئی موړشی په سوچ کولوشروع شی ځکه چه حکمران جوړشوې وی آخر زه په پخپله دې مصیبت کښې ولې دوب شوم دادَ ملامتیا مینځمې درجه ده دَ کوم طرف ته چه په حدیث کښې واوسطهاندامه سره اشاره کړې شوې ده

③ **رسوائی:** دَ رسوایئی ده په دنیاکښې هم او په آخرت کښې هم رسوائی ده. دَ آخرت دَ رسوایئی منظر خو هم په دې حدیث کښې مغلولاً لفظ نه واضح شوې ده او په دنیاکښې هم کله معزول کولې شی کله وژلې شی کله پهانسی کولې شی کله راگیرولې شی کله دَ ملك نه شړلې شی او دَ سمندرنه پورې غاړه چرته په جزیروکښې سروهلې بروهلې گرځی

## [۳۷۱۵] د حضرت معاویه رضی الله عنه په حق کښې د حضور ﷺ پیشن ګویي

۳۷۱۵-[۵۴] ( ) [۱] وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «يَا مُعَاوِيَةُ إِنْ وُلِّيتَ أَمْرًا فَاتَّقِ اللهَ وَاعْدِلْ [۳] قَالَ: فَمَا زِلْتُ أَظُنُّ أَنِّي مُبْتَلًى بِعَمَلٍ لِقَوْلِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حَتَّى ابْتُلِيتُ».

**ترجمه:** [۱] او امیر معاویه رضی الله عنه وایي یوه ورځ رسول الله ﷺ ماته وفرمایل [۲] اې معاویه که ته څه کار یا څه ځای کې امیر او حاکم جوړ شي نو د امور حکومت پوره کولو کې الله جل جلاله نه ویره کوه او عدل او انصاف د لاس نه مه پریږده [۳] حضرت معاویه رضی الله عنه وایي دا خیال مي برابر کوی چې د حضور ﷺ د فرمان په موجب به زه په څه کار [یعنی امارت او سرداري] کې مبتلا شم تردي چې زه مبتلا شوم [یعنی د حضور ﷺ فرمایل صحیح شو، او امارت او سرداري ځما نصیب شوه]

**حل اللغات** ① وُلِّيتَ: حکمراني درته اوسپارلې شي. حکمران جوړ کړې شي. ② فَمَا زِلْتُ: همیشه به ووم. هر وخت به مې دا خیال وو. ③ مُبْتَلًى: چه مبتلا به شم.

**تسهیلات:**

**قوله** يَا مُعَاوِيَةُ إِنْ وُلِّيتَ أَمْرًا فَاتَّقِ اللهَ وَاعْدِلْ:

**د حدیث نه معلومې شوې فائدې:**

① نبي علیه السلام په خصوصیت سره معاویه رضی الله عنه ته خطاب کړې دې او دا ورته واني که چرته تا ته حکمراني ملاؤ شوه نو د الله تعالی نه ویریږه او انصاف کوه اودا سې اوشوه چې حضرت معاویه رضی الله عنه د اسلامي ریاست د بل چا د شراکت نه بغیر حکمران شو نو دا د نبي علیه السلام پیشن ګوئي شوه

② د معاویه رضی الله عنه د نبي علیه السلام په قول باندې یقین وو چې ماته به الله تعالی حکمراني راکوي اوزه به په امتحان کښې اخته کیږم ما ته به پکار وي چې د نبي علیه السلام په وصیت باندې عمل اوکړم

## [۳۷۱۶] د ماشومانو یعني د بیوقوفانو د حکمرانی نه پناه غوښتل

۳۷۱۶-[۵۵] ( ) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «تَعَوَّذُوا بِاللهِ مِنْ رَأْسِ السَّبْعِينَ وَإِمَارَةِ الصِّبْيَانِ». [۳] رَوَى الأَحَادِيثَ السِّتَّةَ أَحْمَدُ وَرَوَى الْبَيْهَقِيُّ حَدِيثَ مُعَاوِيَةَ فِي دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ.

**ترجمه:** [۱] او ابو هریره رضی الله عنه وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲] د اویا کالو د ابتداء نه او د بچو د حکومت نه د الله پناه غواړئ [۳] مذکوره بالا شپږ حدیثونه امام احمد رحمه الله او د امیر معاویه رضی الله عنه روایت بیهقي هم دلائل النبوة کې نقل کړي دی د اویا ۷۰ کالو د ابتداء

---

) اخرجه البیهقي في دلائل النبوة

[۲]) اخرجه احمد في المسند: ۲/۳۲۶

نه مراد د سنه هجري اووم دهايي اوومه لسيزه ده چې د هغه ابتداء سنه ۶۱ هـ نه كيږي د سنه ۶۰ هـ په آخركې د حضرت معاويه رضي الله عنه دور حكومت د هغوى په وفات ختم شو

**حل اللغات:** ①رَأْسِ السَّبْعِينَ: د اويا كالو ابتداء. ②إِمَارَة: حكومت. الصِّبْيَانِ: جمع د صبي. ماشومان

**تسهيلات:**

**قوله:** تَعَوَّذُوا بِاللَّهِ مِنْ رَأْسِ السَّبْعِينَ:

**د راس السبعين او امارة الصبيان مصداق:** دَ اوياؤكالو شروع دَ ۶۱هجری نه كيږی اودَ ۶۰هجرى په آخره كښې دَ حضرت معاويه رضي الله عنه دور حكومت دهغوى په وفات باندې ختم شو اودَ يزيددَ حكومت شروع اوشوه. او دې سره دَ صحابه كرامو رضي الله عنهم دَ مبارك حكومت سورې دَ دنيا نه اوچت شو اودَ انتشار او فساد دور شروع شو يزيد درې كاله اواته مياشتې حكومت كولوسره دَدنيانه لاړو. دَهغه دَ غټوغټو مكروه كارونه يوه خرابه واقعه دَ كربلا واقعه ده. په كوم كښې چه سيدناحضرت امام حسين رضي الله عنه شهيد كړې شو.

**قوله:** وَإِمَارَةِ الصِّبْيَانِ: دَ يزيدنه پس دَ حكومت واګې دَ بنوسفيان خاندان نه اووتلې دَ مروان په لاس كښې راغلو. په حديث كښې هم دادَ بنومروان حكومت ته دَ ماشومانو حكومت سره تعبيركړې شوې دې. په يو روايت كښې دى چه نبى كريم په خوب كښې اوليدل چه دَنبى كريم په منبرباندې دَ بنومروان ماشومان لوبې كوى دَ حجاج بن يوسف ټول ظلمونه اودَ وليد فاسق حكومت آخركوم يوظلم پريخودو اودَ نه كولوكوم يوكار ئې اونه كړو دَ بنومروان په دورحكومت كښې بيشكه چه دَ دين اسلام ترقى هم اوشوه اوجهاددهم زيات كړې شو خو چه په هغوى كښې كوم يوځو ظالمان راغلل هغوى دَ دنيانقشه ګنده كړه افسوس په دې خبره باندې دې چه د امام حسين رضي الله عنه په موجودګئى كښې يزيد اودَ حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه په موجودګئى كښې حجاج بن يوسف دَ كرسئى دَپاره دوى سره جنګيده

**[۲۷۱۷] د رعاياؤ د اعمالو مطابق حكمران راتلل**

[۵۲] () ①وَعَنْ يَحْيَى بْنِ هَاشِمٍ عَنْ يُونُسَ بْنِ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②«كَمَا تَكُونُونَ كَذَلِكَ يُؤَمَّرُ عَلَيْكُمْ».

**ترجمه:** ①او يحيى بن هاشم د يونس ابن اسحاق نه او هغه د خپل پلار نه نقل كوي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل ②څنګه چې تاسو يئ هغه شان به په تاسو حكمرانان مقرريږي.

**حل اللغات:** ①يُؤَمَّرُ: اميران. حاكمان به درباندې مقرر كولې شي.

) اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۳۷۹۲

**تسهيلات:**

**قوله:** كَذٰلِكَ يُؤَمَّرُ عَلَيْكُمْ:

**داعمالو مطابق د حكمرانو تسلط:** مطلب دادې چه حكمرانان هم دَدې معاشرې پيداواروى كه چرې معاشره خرابه وى نو خراب حكمرانان به راځى اوكه چرې معاشره ښه وى نو ښه حكمرانان به پيدا كيږى دَ اردو محاوره ده (جیسے روح ویسے فرشتے) چه څنګه روح وى هم هغه شان فرښتې به راځى اولكه چه په يوبل حديث كښې راغلى دى "اعمالكم عمالكم".

**[۲۷۱۸] د عادل باشاده دالله د سيورى سره تشبيه**

۳۷۱۸-[۵۷] (¹) [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «إِنَّ السُّلْطَانَ ظِلُّ اللّٰهِ فِي الْأَرْضِ، [۳] يَأْوِي إِلَيْهِ كُلُّ مَظْلُومٍ مِنْ عِبَادِهِ، [۴] فَإِذَا عَدَلَ: كَانَ لَهُ الْأَجْرُ وَعَلَى الرَّعِيَّةِ الشُّكْرُ، [۵] وَإِذَا جَارَ كَانَ عَلَيْهِ الْإِصْرُ وَعَلَى الرَّعِيَّةِ الصَّبْرُ».

**ترجمه:** [۱] او ابن عمر ﷠ وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] بادشاه د زمكي په مخ د الله سورى دى [۳] چې د هغه لاندې د الله ﷻ بنده ګانو كې مظلوم بنده پناه حاصلوي [۴] هركله چې بادشاه عدل او انصاف كوي نو هغه ته ثواب حاصليږي او رعايا باندې د هغه شكر واجب كيږي [۵] او هركله چې هغه ظلم او طغياني كوي نو هغه ګنهګاريږي او رعايا (رعيت) باندې صبر لازميږي.

**حل اللغات:** ① ظِلُّ اللّٰهِ: د الله سيورې، (لطف وكرم). ② يَأْوِي: پناه حاصلوى. ③ الرَّعِيَّةِ: رعايا، ماتحت. ④ جَارَ: چه ظلم اوكړى. ⑤ الْإِصْرُ: وبال، بوج.

**تسهيلات: قوله:** إِنَّ السُّلْطَانَ ظِلُّ اللّٰهِ:

**د ظل الله مفهوم:** لكه څنګه چه دَ يوخيز سورې دَنمر ګرمى رامنع كوى اودَالله تعالى مخلوق دَ تكليف رسيدو نه منع كوى هم دغه شان بادشاه دَخپل رعيت خلق دَمختلف قسم تكليفونو او سختودَ رسيدونه منع كوى. دَ انما الامام جنة چه كوم مفهوم دې هم هغه مفهوم دَدې حديث هم دې "ظل الله" كښې اضافت تشريفيه دې.

**[۳۷۱۹] د نرم خويه امير لويه مرتبه**

۳۷۱۹-[۵۸] (²) [۱] وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «إِنَّ أَفْضَلَ عِبَادِ اللّٰهِ عِنْدَ اللّٰهِ مَنْزِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ: إِمَامٌ عَادِلٌ رَفِيقٌ، [۳] وَإِنَّ شَرَّ النَّاسِ عِنْدَ اللّٰهِ مَنْزِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِمَامٌ جَائِرٌ خَرِقٌ».

¹) اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۷۳۶۹
²) اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۷۳۷۱

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمر ابن خطاب ﷛ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] د قيامت په ورځ به د الله ﷻ په نزد په بنديانو کې د بلندي مرتبې د اعتبار نه د ټولو نه ښه شړی هغه وي کوم چې عادل اونرمي کونکی حاکم وي [۳] او د قيامت په ورځ به د الله ﷻ په نزد بنديانو کې د مرتبې د اعتبار نه د ټولو نه بدتر هغه سړی وي کوم چې ظالم او سختي کونکی حاکم وي

**حل اللغات:** ① رَفِيقٌ :نرمي، مهرباني. ② جَائِرٌ: ظالم. ③ خَرِقٌ: سختی کونکې

**تسهيلات:**

**قوله:** وَإِنَّ شَرَّ النَّاسِ مَنْزِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ :ملا علي قاري ﷫ فرمائی چې د حديث په ړومبی جمله کښې افضل عباد الله ذکر شو ، او په دويمه حصه کښې شرالناس ذکر شو ددې وجه داده چې عبادالله،شرالناس دا د واړاه د مقابلې تقاضا کوی ځکه چې عبادالله خو هغه خلق دی کوم چې د الله ﷻ اطاعت کوی او ددې په مقابله کښې چې کوم شرالناس دی هغوئ د شر په اعتبار سره ډير مخکښې دی يا د شرالناس په ذکر کښې يوه دقيقې نکتې طرفته اشاره کول مقصود دی چې کوم خلق د الله ﷻ اطاعت او فرمان بردارۍ کوی نو هغه د الله ﷻ بهترين بندګان دی ليکن کوم خلق چې بدی کوی نو دوی بدی به د خلقو سره وی نو په دې وجه ئې په بدو معاملاتو کښې د شر نسبت خلقو طرفته اوکړو والله اعلم (مرقاة ج/۷ص/۲۳۰).

**[۳۷۲۰] مسلمان لره په ويره کښې داچولو وعيد**

۳۷۲۰-[۵۹] () [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «مَنْ نَظَرَ إِلَى أَخِيهِ نَظْرَةً يُخِيفُهُ [۳] أَخَافَهُ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». [۴] رَوَى الْأَحَادِيثَ الْأَرْبَعَةَ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ [۵] وَقَالَ فِي حَدِيثِ يَحْيَى: هَذَا مُنْقَطِعٌ وَرِوَايَتُهُ ضَعِيفٌ.

**ترجمه:** [۱] او عبدالله ابن عمر ﷛ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړی چې خپل مسلمان وررورته ويرونکی نظر سره وګوري [۳] نو د قيامت په ورځ به الله ﷻ هغه بيروي [۴] مذکوره څلور روايتونه بيهقي ﷫ شعب الايمان کې نقل کړي دی [۵] او د يحيی ابن هاشم دروايت په باره کې ويلي دي چې دامنقطع قطع دی اوديحيی روايت ضعيف ګڼل کيږي .

**حل اللغات:** ① نَظْرَةً: په داسې نظر سره. ② يُخِيفُهُ: چه اوبروی هغه.

[۱] اخرجه البيهقي فى شعب الايمان رقم الحديث ۷۴۶۸

**تسهيلات:**

**قوله.** يُخِيفُهُ أَخَافَهُ اللهُ:

**د حديث د ترجمه الباب سره مناسبت:** داحديث په دې باب كښې د راوړلو مقصد دا دې چه كله د قتل نه بغير د يو مسلمان ويرول او د ډهكه كول دومره لويه گناه ده نو دې نه تجاوز كولو سره د هغه قتل كول به څومره لوئى جرم وى

**[۳۷۲۱] د الله تعالى تابعدارى د بادشاهانو د نرمى سبب**

۳۷۲۱ـ[۲۰] ()① وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②«إِنَّ اللهَ تَعَالَى يَقُولُ: أَنَا اللهُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنَا ③مَالِكُ الْمُلُوكِ، ④وَمَلِكُ الْمُلُوكِ، ⑤قُلُوبُ الْمُلُوكِ فِي يَدِي، ⑥وَإِنَّ الْعِبَادَ إِذَا أَطَاعُونِي ⑦حَوَّلْتُ قُلُوبَ مُلُوكِهِمْ عَلَيْهِمْ بِالرَّحْمَةِ وَالرَّأْفَةِ،

**ترجمه:** ①او ابو درداء رضي الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل ②الله جل جلاله حديث قدسي كي ارشاد فرمايي زه الله يم ځما نه ماسوا بل معبود نشته ③زه د بادشاهانو مالك ④او د بادشاهانو بادشاه يم ⑤د بادشاهانو زړونه ځما په لاس ايعنى ځما په قبضه قدرت كې دى! ⑥هركله چې ځما اكثره بندگان زما اطاعت او فرمانبردارى كوي ⑦نو زه د هغوى په حق كې د بادشاهانو زړونه رحمت او مهربانى طرفته گرځوم

**حل اللغات:** ①مَالِكُ الْمُلُوكِ: دبادشاهانو مالک، ②مَلِكُ الْمُلُوكِ: دبادشاهانو بادشاه. ③قُلُوبُ الْمُلُوكِ: زړونه د بادشاهانو. ④حَوَّلْتُ: زه راگرځوم. ⑤الرَّأْفَةِ: رحمت. نرمى. مهربانى

①وَإِنَّ الْعِبَادَ إِذَا عَصَوْنِي حَوَّلْتُ قُلُوبَهُمْ بِالسُّخْطَةِ وَالنِّقْمَةِ ②فَسَامُوهُمْ سُوءَ الْعَذَابِ ③فَلَا تَشْغَلُوا أَنْفُسَكُمْ بِالدُّعَاءِ عَلَى الْمُلُوكِ ④وَلَكِنِ اشْغَلُوا أَنْفُسَكُمْ بِالذِّكْرِ وَالتَّضَرُّعِ ⑤كَيْ أَكْفِيَكُمْ مُلُوكَكُمْ». رَوَاهُ أَبُو نُعَيْمٍ فِي الْحِلْيَةِ.

**ترجمه:** ①او چې هركله بندگان زما نافرمانى كوي نو زه د عادل او نرم خويه بادشاهانو زړونه غضبناكي او سخت گيري طرفته گرځوم ②د هغه نتيجه دا شي چې هغه بادشاه هغوى په سختو سزاگانو كې مبتلا كوي ③ځكه په داسې صورت كې تاسو خپل ځانونه دهغه بادشاهانو د پاره بددعاء كولو كې مه مشغولوئ ④بلكه زما بارگاه كې تضرع او زارى كولو سره خپل ځان ځما ذكر كې مشغول كى ⑤چې زه تاسو د هغه بادشاهانو د شر نه وساتم !دا روايت ابو نعيم خپل كتاب حلية الاولياء كې نقل كړې دى !

**حل اللغات:** ⑥السُّخْطَةِ: ناراضگى. غضب. ⑦النِّقْمَةِ: سختى. غصه. ⑧فَسَامُوا: راگيروى. مبتلا كوى. ⑨الدُّعَاءَ عَلَى الْمُلُوكِ: بادشاهانو ته بد دعا او خيرې كول

---

[۱]) ابو فى الحلية ۲/ ۳۸۹

**تسهیلات:**

**قوله:** حَوِّلَتْ قُلُوبَ مُلُوكِهِمْ عَلَيْهِمْ بِالرَّحْمَةِ:

**د حکمران طبقې د پٍه والی فسخه:** یعنی دَ بادشاهانو زړونه زما په لاس کښې دی که چرې تاسو صحیح پاتې شوئی نو زه به دا صحیح کړم اوکه چرې تاسو صحیح نه شوئی نو زه به دَهغوی زړونه سخت کړم بیا به هغوی تاسوته سختې سزاګانې درکوی لهذا تاسو زما اطاعت کوئی او په ذکراوفکرکښې اخته اوسئی زه به ستاسو دَطرف نه دَهغوی دَپاره کافی شم یعنی دَ هغوی دَ شرارت نه به تاسو محفوظ اوساتم

# [۱] بَابُ مَا عَلَى الْوُلَاةِ مِنَ التَّيْسِيرِ

**په حاکمانو باندې دَنرمئ د وجوب بیان**

**خلاصة الباب:**

**فيه تسعة أحاديث مشتملة على ثلاث مسائل:**

① الأمر بالتيسير: ۱، ۲، ۳.

② الزجر للغادر: ۴، ۵، ۶.

③ النهي عن احتجاب الأمير عن الناس: ۷، ۸، ۹.

**د دینِ اسلام مزاج:** دَدین اسلام دا مزاج دې چه هغه دَ انسانانو معاملات او حقوق کښې طرفین یوبل ته نیزدې کوی. اسلام دَ دواړوطرفو خلقو دَ حقوقو دَ ادائیګې احساس ورکوی اسلام که چرې مامورته نصیحت کوی نو هلته امراء ته هم نصیحت کوی چنانچه دې نه وړاندې احادیثوکښې زیات نصیحت رعایانه وو چه دَ خپلوحاکمانو اطاعت کوئی اوس حاکمانوته نصیحت کولې شی چه تاسو نرمی کوئی او به رعایاباندې شفقت کوئی اودَهرقسم آسانئی ورکوئی

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۳۷۲۲] حکمران ته د نرمئ اختیارولو حکم**

۳۷۲۲-[۱] (١) [۱] عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] إِذَا بَعَثَ أَحَدًا مِنْ أَصْحَابِهِ فِي بَعْضِ أَمْرِهِ [۳] قَالَ: «بَشِّرُوا وَلَا تُنَفِّرُوا وَيَسِّرُوا وَلَا تُعَسِّرُوا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابو موسی ﷺ وايي [۲] چې رسول کریم ﷺ چې به کله خپل یوصحابي ﷺ څه

(١) اخرجه مسلم فی کتاب الجهاد والسیر/باب فی الأمر بالتیسیر. وترک التنفیر (رقم ۶ - (۱۷۳۲) و ابو داود فی کتب الأدب/باب فی کراهیة المراء (رقم ۴۸۳۵) واحمد فی المسند: ۳۹۹/۴

کار باندې مامور کولي ایعنی د یوځای حاکم جوړولو سره لیږلو نو هغه ته به یې داهدایت کوی! [۲] چې خلقوته په طاعاتو او عباداتو او نیك کار کولو باندې د اجر او ثواب خوشخبري ورکوي او هغوی په گناهونو د الله ﷻ د عذاب نه دومره زیات مه بیروئ چې هغوی د رحمت خداوندي نه نا امیده شي او د خلقو سره د آساني سلوك کوئ ایعنی هغوی نه د زکوة وغیره وصولولو کې د نرمي او آسانۍ طریقه اختیاروي او د خلقو نه د زکوٰة وغیره مال واجب مقدار نه زیات وصولولو سره هغوی په تکلیف او تنگۍ کې مه مبتلا کوئ ! (بخاري مسلم)

**حل اللغات**: ① بَشِّرُوا: خوشخبری ورکوئ. ② لَاتُنَفِّرُوا: نفرت مه پیدا کوئ. ③ يَسِّرُوا: آسانی پیدا کوئ. ④ لَاتُعَسِّرُوا: سختی، تنگی مه پیدا کوئ.

**تسهیلات**:

**قوله**: فِي بَعْضِ أَمْرِهِ یعنی د حکومت کارونو دپاره به ئې یو مامور لیږلو

**قوله**: بشروا په دې کښې دوه احتماله دی. ① دا خطاب هغه خاص صحابی ته دې کوم چې ئې کار دپاره لیږلو. ② په دې کښې عموم دې ، مطلب دادې چې خلقو ته دهغوئ په سابقه گناهونو د توبې او په نیکو عملونو باندې د الله ﷻ د بخشش او رحمت زیرې ورکړئ علامه طیبی رحمه الله فرمائی چې دا مقابله د معنویه د قبیل نه ده . داسې وئیل پکار وو چې : (بشروا ولا تنذروا استأنسوا ولا تنفروا)

**قوله**: ولا تنفروا، أي لا تخوفهم بالمبالغة في إنذارهم یعنی دوئ دگناهونو په رانیولو باندې دومره مه ویروه چې دوئ د الله ﷻ د رحمت نه مایوسه شی او اسلام نه ئې نفرت پیدا شی د إنذار والا آیتونو او حدیث الباب کښې هیڅ تعارض نشته دې. انذار والا آیتونو کښې خلق ویرولې شی او د الله ﷻ درته کړئی د راباللو حکم ورکړې شوې دې. او په حدیث الباب کښې د مایوسه کولو او متنفر کولو نه منع کړې شوې ده

**قوله**: ویسروا، أي سهلوا عليهم الأمور من أخذ الزكاة باللطف بهم یعنی ډیر په آسانۍ سره مسلمانان د صوم وصلوة پابند جوړ کړئی ، او د زکوة او صدقاتو. په اخستلو کښې ورسره نرمی اختیار کړئی

**قوله**: ولاتعسروا، أي بالصعوبة عليهم بأن تأخذوا أكثر مما يجب عليهم أو أحسن منه أو بتتبع عوراتهم وتجسس حالاتهم دوئ سره سختی مه کوئی چې په دوئ باندې څومره زکوة وغیره واجب دې چې دهغې نه ترینه زیات واخلی. یا ددوئ د مال نه ښه او ښائسته مال مه اخلی. او ددوئ عیبونو مه لټوئ او ددوئ د حالاتو تجسس مه کوئی. (مرقاة: ج/۷ ص/۲۳۲).

### [۳۷۲۳] د سانتیا پیدا کولو ترغیب

۳۷۲۳-[۲] (۱) ۱ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ «يَسِّرُوا وَلَا تُعَسِّرُوا ۳ وَسَكِّنُوا وَلَا تُنَفِّرُوا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت انس ﷛ وایي چې رسول کریم ﷺ حاکمانو او عاملانو د پاره وفرمایل ۲ د خلقو سره د آسانۍ سلوك کوئ هغوی په مشکلاتو او سختو کې مه مبتلا کوئ ۳ هغوی ته د الله ﷻ د نعمتونو د خوش خبرئ په ذریعه تسکین او تسلي ورکوئ او هغوی د الله د عذاب نه [د ډیر زیات بیرولو په ذریعه سره یا هغوی باندې داسې ګران او سخت بوج اچولو سره چې هغوی د الله په نافرمانۍ مجبوره کړي] نفرت او خوف کې مه مبتلا کوئ (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① وَسَكِّنُوا: تسکین، تسلي ورکوئ.

**تسهیلات:**

**قوله:** وسكنوا: دکاف په تشدید سره، (أمر من التسكين، أي سكنوهم بالبشارة والطاعة) یعنی اسلام کښې خلقو ته آسانۍ او فضائل بیانوئ او خلقو ته اطمینان ورکړئ او پخپله هم رېښتوني او مضبوط ایمان والا جوړ شئ. داشان دې حدیث پاك کښې حکمرانانو ته هم خطاب دې چې خپل اعمال درست کړئ (الناس على دين ملوكهم) ددې پیش نظر به رعایا په خپله درست شي.

**قوله:** لاتنفروا: صاحب نهایه ددې معنی لیکی چې دوئ په داسې څیزونو مه مکلف کوئ چې دوئ کښې نفرت پیدا شي.

### [۳۷۲٤] حضرت معاذ ﷛ ته د رسول الله ﷺ نصیحت

۳۷۲٤-[۳] (۲) ۱ وَعَنْ أَبِي بُرْدَةَ قَالَ: ۲ «بَعَثَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - جَدَّهُ أَبَا مُوسَى وَمُعَاذًا إِلَى الْيَمَنِ. ۳ فَقَالَ: يَسِّرَا وَلَا تُعَسِّرَا، ۴ وَبَشِّرَا وَلَا تُنَفِّرَا، ۵ وَتَطَاوَعَا وَلَا تَخْتَلِفَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او ابوبرده ﷛ نه روایت دی ۲ چې رسول کریم ﷺ د هغه نیکه یعنی ابوموسی اشعري ﷛ او معاذ ﷛ یمن ته ولیږل ۳ او هغوی ته یي وفرمایل د خلقوسره د آسانۍ سلوك کوئ مشکلاتو او سختو کې یي مه مبتلا کوئ ۴ خوشخبري ورته اوروئ خوف او نا امیدي کې یي مه مبتلا کوئ ۵ په خپل مینځ کې په اتفاق او اتحاد سره کار کوئ او په خپل مینځ کې اختلاف مه کوئ (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① تَطَاوَعَا: خپل مینځ کښې اتفاق او اتحاد ساتئ. ② لَاتَخْتَلِفَا: اختلاف مه کوئ.

---

[۱] ) اخرجه البخاري في كتاب الأدب/باب قول النبيّ صلّى الله عليه وسلّم: «يسّروا ولا تعسّروا»(رقم-٦١٢٥) ومسلم في كتاب الجهاد والسّير/باب في الأمر بالتّيسير. وترك التّنفير (رقم-٨ - (١٧٣٤))واحمد في المسند:١٣١/٣

[۲] ) اخرجه البخاري في كتاب الأدب/باب قول النبيّ صلّى الله عليه وسلّم: «يسّروا ولا تعسّروا»(رقم-٦١٢٤) ومسلم في كتاب الجهاد والسّير/باب في الأمر بالتّيسير. وترك التّنفير (رقم-٧ - (١٧٣٣))واحمد في المسند: ٤١٢/٤

**تسهیلات: قوله: جَدَّهُ:**

**په حدیث کښې یو اشکال او د هغې حل:** ابوبرده ﷺ دَ حضرت ابوموسی اشعری ﷺ خوئی دې نمسې نه دې نوهغه ځنګه وائی چه زما نیکه نبی کریم روان کړو کیدل خوداسې پکار وو چه دَ ابوبرده ﷺ په ځائې دَ ابن ابی برده ﷺ لفظ وې نودَ ابوبرده دَ خوئی نیکه او دادا ابوموسی اشعری ﷺ وو. دَمشکوة په ټولو نسخوکښې ابوبرده ﷺ لیکلې شوې دې کیدې شی چه دادَ کاتب غلطی وی. بهرحال لوستونکی له ابن ابی برده ﷺ وئیل پکاردی.

**[۳۷۲۵] دَ قیامت په ورځ د غدار رسوائی**

۳۷۲۵-[۴] (۱) ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ②«إِنَّ الْغَادِرَ يُنْصَبُ لَهُ لِوَاءٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ③ فَيُقَالُ هٰذِهِ غَدْرَةُ فُلَانِ بْنِ فُلَانٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او ابن عمر ﷺ وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل ② د قیامت په ورځ د عهد شکن د رسوایي د پاره به یوه نښنه ودرول شي ③ او وبه وئیل شي چې دا د فلان ابن فلان د عهد شکنې علامه ده. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ①الْغَادِرُ: عهد شکنی کونکې، لوظ ماتونکې. ②يُنْصَبُ: اودرولې به شي. ③لِوَاءٌ: جهنډا. نښه. ④غَدْرَةٌ: د عهد شکنئ نښه.

**تسهیلات:**

**قوله:** إن الغادر قاضی عیاض ﷫ فرمائی چې غدر په اصل ترك الوفاء ته وئیلې کیږی او دا عام دی. که یو کس خپله وعده ماته کړی اوکه خپل امان.

**قوله:** فیقال هٰذِهِ غَدْرَةُ فُلَانِ بْنِ فُلَانٍ مطلب دادې چې وعده ماتونکی به چې کوم ځائې ولاړ وی هغه ځائې کښې به د هر یو وعده خلافۍ په قدر بیرغونه ښخ کړې شوی وی د بیرغ اوچتوالی به د وعده خلافۍ برابر وی چې دې رسوائۍ سره مخ شي.

۳۷۲۶-[۵] (۲) ① وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ②«لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَاءٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ③ يُعْرَفُ بِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

[۱] ) اخرجه البخار ی فی کتاب الأدب/باب ما یدعی النّاس بآبائهم (رقم-۶۱۷۸) ومسلم فی کتاب الجهاد والسّیر/باب تحریم الغدر (رقم-۱۰ - (۱۷۳۵) و ابو داود فی کتاب الجهاد/باب فی الوفاء بالعهد (رقم-۲۷۵۶) والترمذی فی کتاب السّیر عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب ما جاء أنّ لکلّ غادر لواء یوم القیامة (رقم-۱۵۸۱) و ابن ماجه فی کتاب الجهاد/باب الوفاء بالبیعة (رقم-۲۸۷۲) واحمد فی المسند:۴۱۱/۱

[۲] ) اخرجه البخاری فی کتاب الجزیة/باب إثم الغادر للبرّ والفاجر (رقم-۳۱۸۶) ومسلم فی کتاب الجهاد والسّیر/باب تحریم الغدر (رقم-۱۴ - (۱۷۳۷) واحمد فی المسند:۲۷۰/۳

**ترجمه:** ۱ او حضرت انس رضي الله عنه د نبي كريم ﷺ نه نقل كوي ۲ چې رسول كريم ﷺ وفرمايل د قيامت په ورځ به هر عهد شكن وعده ماتونكي د پاره يوه نښه مقرره وي ۳ چې د هغه په ذريعه به پيژندل كيږي (بخاري ، مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَاءٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُعْرَفُ بِهِ:

الحاصل هر دهوكې مار دپاره به يو نښه وي چې ددې په ذريعه به دې د قيامت په ورځ پيژندلې كيږي ددې نه معلومه شوه چې د مجرم جرم به دنښې نه معلوميږي د چا نه به د پوښتې ضرورت نه وي او راتلونكى حديث پاك كښې راځى چې د قيامت په ورځ به دهر وعده خلاف دپاره د هغه مقعد سره نزدې يو نښه وي او دا به دهغه د وعده خلافى په قدر اوچته وي

**[۳۷۲۷] په ميدان حشر كښې دَ غدار سزا**

۳۷۲۷-[۲] ( ) ۱ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۲ «لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَاءٌ عِنْدَ اسْتِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. ۳ وَفِي رِوَايَةٍ: لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَاءٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۴ يُرْفَعُ لَهُ بِقَدْرِ غَدْرِهِ ۵ أَلَا وَلَا غَادِرَ أَعْظَمُ غَدْرًا مِنْ أَمِيرِ عَامَّةٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او ابوسعيد رضي الله عنه د نبي كريم ﷺ نه نقل كوي ۲ چې حضور ﷺ وفرمايل د قيامت په ورځ به د هر عهد شكن د رسوايي د تشهير د پاره د هغه د مقعد نزدې يوه نښه وي ۳ او په يوروايت كې داسې دي د قيامت په ورځ به هرعهد شكن د پاره يوه نښه وي ۴ چې د هغه د عهد شكني په قدر به پورته كيږي [يعنى د هغه چې څومره زياته عهد شكني وي د هغه نښه او د هغه تشهير به زيات وي] ۵ خبردار' هيڅ عهد شكني د اعتبار نه د امام عام يعنى حكمران د وخت نه لوى نشته [يعنى د حكمران عهد شكني د ټولو نه لويه عهد شكني ده.] (مسلم)

**حل اللغات:** ① اسْتِهِ: مقعد ،كوناټې ② أَمِيرِ عَامَّةٍ: دعامو خلقو حكمران

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَا غَادِرَ أَعْظَمُ غَدْرًا مِنْ أَمِيرِ عَامَّةٍ:

**د مذكوره جملې درې مطلبونه:** ① يو اميربغاوت اوكړى اودَخليفة المسلمين خلاف عوام راپاسوى او بغاوت كولو سره په حكومت باندې ناجائزه قبضه اوكړى. نه اهل رائې سره مشوره وى، نه دَخير ښيګړې فكر وى صرف په زبردستئى او تغليب سره په ملك باندې قابض شوې وى. په دې صورت كښې "من اميرعامة" پخپله به هم دغه قابض بادشاه وى چه

[1] ) اخرجه مسلم فى صحيحه رقم الحديث (١٧٣٨.١٥)

دَ ده نه لوئی غدار بل څوك نشته دې دَ حديث

④ علامه نووی رحمه الله فرمائی دا هم کیدې شی چه په دې کښې رعیت دَ غدارئی خیانت او بغاوت نه منع کړې وی چه تاسو دخپل خلیفه خلاف بغاوت مه کوئی مه فتنې راوچته وئی علامه نووی رحمه الله فرمائی چه رومبې مطلب صحیح دې دا دویم مطلب صرف یو احتمال دې

⑤ دَ رعایا نه یو سړې دَ مسلمانانو یو متفقه امام او خلیفه خلاف دَ بغاوت جهنډا اوچته کړی او سابقه عهد و پیمان او دَ خلیفه بیعت ماتوی دا لوئی غدار دې په دې صورت کښې "من امیرعامة" نه رعایا او دعوام نه به یو باغی مراد اخستې شی علامه نووی رحمه الله دا حدیث په لږ آسان انداز سره داسې پیش کوی فرمائی چه مشهوره داده چه په دې حدیث کښې هر قسم خیانت او غداری غلط گرځولې شوی دی خاص کر دهغه بادشاه او خلیفه دَ وخت غداری ئی ډیره نقصانی گرځولې ده چه دَ مسلمانانو دَ امانتونو او ذمه وارو محافظ جوړ کړې شوې وی او هغه دَ دغه حفاظت وعده او کړه دَ حکومت اختیارئی قابو کړې وی او بیا خپلو عوامو سره غداری کوی خیانت کوی او په هغوی باندې ترس نه خوری نه اونه شفقت کوی نو دا یو لوئی غدار امام دې چا چه خپلې ذمه وارئی شاته کړې دی

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۳۷۲۸] دَ رعیت حاجتونو لره د نه پوره کولو وعید

۳۷۲۸-[۷] (۱) [۱] عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ أَنَّهُ قَالَ لِمُعَاوِيَةَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [۲] «مَنْ وَلَّاهُ اللّٰهُ شَيْئًا مِنْ أَمْرِ الْمُسْلِمِينَ [۳] فَاحْتَجَبَ دُونَ حَاجَتِهِمْ وَخَلَّتِهِمْ وَفَقْرِهِمْ [۴] احْتَجَبَ اللّٰهُ دُونَ حَاجَتِهِ وَخَلَّتِهِ وَفَقْرِهِ» [۵] فَجَعَلَ مُعَاوِيَةُ رَجُلًا عَلَى حَوَائِجِ النَّاسِ. رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ،

**ترجمه:** [۱] او عمرو بن مره نه روایت دی چې مره رضی الله عنه معاویه رضی الله عنه ته اوویل چې ما د رسول الله نه واوریدل چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲] کوم سری چې الله ﷻ د مسلمانانو د څه کار والی او حکمران جوړ کړي [۳] او هغه د مسلمانانو د حاجت روایي او محتاجی نه حجاب وکی یعنی د هغوی ضرورت او حاجت یي پوره نه کړی [۴] نو الله ﷻ به د هغه والی او حاکم د حاجت روایي او محتاجی نه حجاب وکړي ( یعنی هغه به د هغه د مطلوب نه لري ساتي او د هغه دعا به نه قبلوي ) [۵] امیر معاویه رضی الله عنه ددې حدیث په اوریدو سره ډیر متاثر شو او هغه یو سړی په دي کار مقرر کی چې هغه به د خلقو په ضروریاتو نظر ساتي

[۱] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الخراج والإمارة والفیء/باب فیما یلزم الإمام من أمر الرّعیّة والحجبة عنه (رقم-۲۹۴۸)والترمذی فی کتاب الأحکام عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب ما جاء فی إمام الرّعیّة (رقم-۱۳۳۲) واحمد فی المسند: ۲۳۱/۴

او د هغوی حاجتونه دي پوره کوي (ابوداود ترمذي)

**حل اللغات:** ①وُلَاةُ: چه حکمران ئې جوړکړي، ورته حکمراني اوسپارلې شي. ②فَاحْتَجَبَ: حجاب اوپرده اوکړي (حاجت روائی نه کوی) ③وَخَلَّتِهِمْ: ضرورت، حاجت. هغه حاجت په کوم سره چه خلل پريوځي

[۱] وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ وَلِأَحْمَدَ: [۲] «أَغْلَقَ اللهُ لَهُ أَبْوَابَ السَّمَاءِ دُونَ خَلَّتِهِ وَحَاجَتِهِ وَمَسْكَنَتِهِ».

**ترجمه:** [۱] او د احمد په روایت کې داسې دي [۲] چې الله ﷻ به د هغه والي او حاکم حاجت روايي او محتاجي نه د آسمان دروازي بندي کړي.

**حل اللغات:** ④أَغْلَقَ: بند به کړی، ⑤مَسْكَنَتِهِ: دمحتاجئ او فقيرئ دده نه.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَاحْتَجَبَ دُونَ حَاجَتِهِمْ وَخَلَّتِهِمْ وَفَقْرِهِمْ:

**د مسلمانانو د حقوقو خيال نه ساتونکي حکمران دپاره وعيد:** يعني په غريبانانو اوبي وسه خلقو ته دروازې بندولوسره دَ چا دَ خير بنيگړې تپوس نه کوی دَ مظلوم خبره نه اوری کوتوال اوسنتری حاجب په دروازه کښې کينولو سره څوك دننه نه پرېږدی دَ ضرورت مندو نه پټيږی نوالله تعالی هم دَ داسې والی اوحاکم دَ حاجت او ضرورت نه عارضه پيش کولونه پرده اوحجاب کوی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۲۷۲۹] په رعيت دروازه بندول د الله تعالی د رحمت دزوازه د بندولو سبب**

۳۷۲۹-[۸] ()[۱] عَنْ أَبِي الشَّمَّاخِ الْأَزْدِيِّ عَنِ ابْنِ عَمٍّ لَهُ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] أَنَّهُ أَتَى مُعَاوِيَةَ فَدَخَلَ عَلَيْهِ، فَقَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۳] «مَنْ وَلِيَ مِنْ أَمْرِ النَّاسِ شَيْئًا، [۴] ثُمَّ أَغْلَقَ بَابَهُ دُونَ الْمُسْلِمِينَ، أَوِ الْمَظْلُومِ، أَوْ ذِي الْحَاجَةِ [۵] أَغْلَقَ اللهُ دُونَهُ أَبْوَابَ رَحْمَتِهِ عِنْدَ حَاجَتِهِ وَفَقْرِهِ أَفْقَرَ مَا يَكُونُ إِلَيْهِ».

**ترجمه:** [۱] ابو شماخ ازدي نه روايت دی د هغه د تره زوی چې د نبي کريم ﷺ يو صحابي وو [۲] يوه ورځ امير معاويه ﷺ نه راغلو هرکله چې د هغه په خدمت کې حاضر شو نو هغه اوويل ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي [۳] کوم سړی چې د خلقو د څه کاروالي جوړ شو [۴] او هغه په مسلمانانو يا په يو مظلوم باندې يا په يو حاجتمند باندې خپله دروازه بنده وساتله [يعنی هغه يي د خپل حاجت او ضرورت په وخت ځان ته پرې نه ښودل يا د هغه حاجت يي پوره نه کړی] [۵] نو الله ﷻ به په هغه د هغه د ضرورت حاجت او محتاجي په

[۱]) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ۷۳۸٤

وخت کله چې هغه هغه طرف ته ډير زيات حاجتمند او محتاج وي د خپل رحمت دروازې بندې کړي [يعنی که هغه څه وخت د خپلې دنيا يا عقبی په باره کې د الله ﷻ بارګاه کې د خپل حاجت او ضرورت اظهار وکړو نو الله ﷻ به د هغه هغه حاجت او ضرورت هم پوره نه کړي ]

**حل اللغات**: ①وَلِيَ: والی او مشر جوړشو.

**تسهيلات**:

**قوله**: ثُمَّ أَغْلَقَ بَابَهُ دُونَ الْمُسْلِمِينَ يعنی که چرې هغه په يو وخت کښې دَخپلې دنيا اودَ آخرت باره کښې څه حاجت دَالله تعالی په حضورکښې پيش کوی اودَدې اظهارکوی نو الله تعالی به دَهغه ضرورتونه اوحاجات نه پوره کوی. او حال دادې چه دغه بنده به دې وخت کښې دَتولونه زيات دَ دغه ضرورت طرف ته محتاج وی يا که چرې هغه په دنياکښې دَ يومخلوق ته دَ خپل څه حاجت اظهارکوی نو الله تعالی به دَ هغه دغه حاجت او ضرورت هم نه پوره کوی

**[٢٧٣٠] دعمر فاروق رضی الله عنه خپلو حاکمانو ته هدايات**

٢٧٣٠—[٩] (١) ①وَعَنْ عُمَرَبْنِ الْخَطَّابِ ②أَنَّهُ كَانَ إِذَا بَعَثَ عُمَّالَهُ ③شَرَطَ عَلَيْهِمْ أَنْ لَا تَرْكَبُوا بِرْذَوْنًا ④وَلَا تَأْكُلُوا نَقِيًّا ⑤وَلَا تَلْبَسُوا رَقِيقًا ⑥وَلَا تُغْلِقُوا أَبْوَابَكُمْ دُونَ حَوَائِجِ النَّاسِ ⑦فَإِنْ فَعَلْتُمْ شَيْئًا مِنْ ذَلِكَ فَقَدْ حَلَّتْ بِكُمُ الْعُقُوبَةُ ⑧ثُمَّ يُشَيِّعُهُمْ. رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه**: ①او د حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه په باره کې منقول دی ②هر کله چې عمال حکام به يې چرته ليږل ③نو هغوی سره به يې شرط لګوی [يعنی دا هدايات به يې ورکول] چې ترکي آس باندې مه سوريږئ ④ميده او باريکه د اوړو روټئ وغيره مه خورئ ⑤نرئ کپړې مه آغوندی ⑥او د خلقو د حاجت او ضرورت په وخت د هغوی نه خپله دروازه مه بندوئ ⑦ياد لرئ که تاسو د دې نه څه څيز اختيار کی نو تاسو به دنيا او عاقبت کې د سزا مستحق شئ ⑧د دې نه وروسته حضرت عمر رضی الله عنه به هغوی سره څه لرې پورې د رسولو د پاره تلو [دا دواړه حديثونه بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کې نقل کړي دی.]

**حل اللغات**: ①عُمَّالَهُ: حاکمان. عُشر اوزکوة راټولونکی ②بِرْذَوْن: ترکی آس. ③نَقِيًّا: پاك، ④رَقِيقًا: د اوړو نرئ روټئ. ⑤حَلَّتْ: نازل به شی ⑥الْعُقُوبَةُ: عذاب ⑦يُشَيِّعُ: رخصت کولو دپاره څه ځائې پورې ورسره تلو.

---

(١) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ٧٣٩٤

**تسهيلات: قوله: شَرَطَ عَلَيْهِمْ:**

**په گورنر په برذون اس باندې د سورلۍ نه کولو شرط لګول:** یعنی چه کوم وخت به حضرت عمر فاروق رضي الله عنه یو گورنرد یو علاقې دپاره گورنرمقررکولو او روانولونوهغه سره به ئې دا شرط لګولوچه په برذون باندې به سورلی نه کوې برذون ښکلې ترکی اس ته وائی شارحین حدیث مثلاً علامه طیبی رحمه الله اوملاعلي قاري رحمه الله فرمائی چه د برذون په ممانعت سره په عربی اس باندې سورلئی ممانعت په طریقه اولی سره معلومیږی ځکه چه دبرذون په مقابله کښې عراب یعنی عربی اس ډیر ښکلې وی دا ممانعت ئی ددې دپاره اوکړو چه په گورنرکښې تکبر اولوئی پیدانه شی ځکه چه متکبرحاکم دخادم په ځائی ظالم جوړیږی.

**قوله: وَلَا تَأْكُلُوا نَقِيًّا نَقِيًّا:**

**د میده روټۍ د استعمال د ممانعت وجه:** دا هغه اوړوته وائی چه په دویم ځل چهاڼ کړې شوې وی په نورو الفاظوکښې ددې ترجمه میده او سپین اوړو روټئی یا د نری چهاڼ نه چهاڼ کړې شوې اوړو روټۍ نه هم ممانعت ددې دپاره اوکړو چه گورنرعیش پرست نه شی دحضرت عمر فاروق رضي الله عنه د فرمان خلاصه داشوه چه کبرمه کوئی د عیش اوتنعم ژوندون مه تیره وی اوخلقو ته د انصاف ورکولونه ډډه مه کوئی یعنی پخپله هم ټیک اوسیږئی او نور هم ټیک ساتئی ګنی په خلاف ورزی کولوبه سزا درکوم

# [۲] بَابُ الْعَمَلِ فِي الْقَضَاءِ وَالْخَوْفِ مِنْهُ

**دَقضاء په منصب کار کول اوذهغی نه دَویریدلو بیان**

**خلاصة الباب:**

**فيه ثلاثة عشر حديثاً مشتملة على تسع مسائل:**

① عدم قضاء القاضي وقت الغضب: ۱.

② وجوب الإجتهاد على القاضي عند عدم النص : ۲، ۷.

③ كون المجتهد يخطئ ويصيب: ۲.

④ القضاء سبب الهلاك والحسرة : ۳ ،۴، ۹، ۱۰، ۱۳.

⑤ أنواع القضاة: ۵، ۶.

⑥ القضاء بالكتاب والسنة أولاً : ۷.

⑦ وجوب سماع كلام الفريقين على القاضي: ۸.

⑧ ذكر القاضي الجائر: ۵، ۶، ۱۱.

⑨ إعانة الله تعالى مع القاضي العادل : ۴، ۱۱، ۱۲.

دَباب الامارة په شروع کښې چونکه دَ القضاء لفظ په عنوان کښې راغلې وو په دې وجه دَقضاء سره متعلق مختصر شان بحث هلته ليکلې شوې دې هم هلته اوګورئ

**د باب خلاصه:** دې نه وړاندې دَامام اوامير دَمسائلو او فضائلو بيان اوشو. اوس به په دې باب کښې دوه خبرې په خاص توګه بيانولې شی اول داچه قاضی دَخپلو ټولو فيصلو دَپاره ماخذ اومبدأ صرف کتاب الله او سنت رسول الله ﷺ او اجتهاد جوړکړی او هم دا درې ماخذ دې خپل اصول او راه نماجوړکړی دويم به دا بيان کيږی چه دَقضاء منصب دومره لوئی او لوړ مقام دې اودَدې دومره ذمه وارئی دی چه هرسړی له دَدې منصب نه شاته کيدل پکاردی اوتروسه پورې دا نه دی قبلول پکار

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۲۷۲۱] دغصې په حالت کښې دفيصلې کولو څخه ممانعت**

۳۷۳۱–[۱] (۱) ① عَنْ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ② «لَا يَقْضِيَنَّ حَكَمٌ بَيْنَ اثْنَيْنِ وَهُوَ غَضْبَانُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

[۱]) اخرجه البخارى فى كتاب الأحكام/باب: هل يقضى القاضى او يفتى وهو غضبان (رقم-۷۱۵۸) ومسلم فى كتاب الأقضية/باب كراهة قضاء القاضى وهو غضبان (رقم-۱۶ - (۱۷۱۷) والترمذى فى كتاب الأحكام عن رسول الله صلى الله عليه وسلّم/باب ما جاء لا يقضى القاضى وهو غضبان (رقم-۱۳۳٤) والنسائى فى كتاب آداب القضاة/باب لنهى عن أن يقضى فى قضاء بقضاءين (رقم-۵٤۲۱) وابن ماجه فى كتاب الأحكام / باب لا يحكم الحاكم وهو غضبان (رقم-۲۳۱۶) واحمد فى المسند:۳۶/۵

**ترجمه:** ① حضرت ابوبکره رضي الله عنه وايي چې ما د رسول الله ﷺ نه دا واوريدل ② هرکله چې يو حَکَم او قاضي د غوصي په حالت کې وي نو هغه وخت دې هغه د دوو سړو نزاعي معامله کې فيصله نه کوي. (بخاري، مسلم)

**تسهیلات: قوله: وَهُوَغَضْبَانُ:**

**د غصې په حالت کښې د فيصلې نه کولو تعليم:** دَ غصې په حالت کښې فيصله مه کوه دغه شان دَ سخت خفګان ياسختې ګرمئ يا يخنئ په حالت يا بيمارئ کښې يا په اولږه اوتنده کښې فيصله مه کوه. ځکه چه دَ داسې عوارض په وخت فکرمغلوب کيږي اواجتهادي قوت دا کار نه کوي نو په دې کښې ډيره زيانه خطره ده چه قاضي دَ غيض اوغضب دَ وجې نه دَ صحيح فيصلې په ځائې غلطه فيصله اوکړي اودانصاف تقاضې به پوره نه کړې شي لهذا دغه شان په هنګامي حالت کښې فيصله نه دې کول پکار

**[۳۷۳۲] قاضی ته دَاجتهاد اختيار**

۳۷۳۲-[۲] (¹) ① وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو وَأَبِي هُرَيْرَةَ قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «إِذَا حَكَمَ الْحَاكِمُ فَاجْتَهَدَ فَأَصَابَ فَلَهُ أَجْرَانِ ③ وَإِذَا حَكَمَ فَاجْتَهَدَ فَأَخْطَأَ فَلَهُ أَجْرٌ وَاحِدٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او عبد الله ابن عمرو رضي الله عنه او ابوهريره رضي الله عنه دواړه وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ② هرکله چې يوحاکم د څه حکم يا فيصلېورکولو اراده وکړي او اجتهاد وکړي [يعنی د غور او فکر په ذريعه حکم او فيصله ورکړي] او بيا د هغه هغه حکم او فيصله صحيح [يعنی د کتاب او سنت موافق وي] نو هغه ته به دوچند اجر ورکولي شي يو اجر د اجتهاد کولو ③ او دويم اجر د صحيح فيصلې کولو او که هغه څه داسې حکم او فيصله ورکړه چې په هغه کې هغه اجتهاد وکړو ليکن په نتيجه اخذ کولو کې غلط شو [يعنی صحيح کولو کې خطا شو نو هغه ته به يو اجر ورکول کيږي] (بخاري. مسلم)

**حل اللغات:** ① فَأَصَابَ: صحيح وه، د قرآن اوحديث موافق وه

**تسهیلات: قوله: فَاجْتَهَدَ فَأَصَابَ:**

**د مجتهد دپاره دوه اجرونه:** يعنی که يوقاضي او حاکم څه فيصله کول غواړي ليکن په کتاب اوسنت کښې اودغه شان په فقه اسلامي کښې څه واضح نص موجود نه وي اوداقاضي اوس دَ اجتهادطرف ته مجبوردې اوس قاضي په اضطراري حالت کښې دې چه کتاب اوسنت، اجماع امت او دَ اسلامي عدالتونو دَ فيصلو په رڼا کښې څه فيصله اوکړي. اوس که په دې حالاتو کښې قاضي ښه سوچ اوفکر کولوسره فيصله اوکړه اوهغه

¹) اخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث ۷۳۵۲ ومسلم رقم الحديث (۱۷۱۶.۱۵) والترمذي في السنن رقم الحديث ۱۳۳۶

فیصله صحیح او وتله نو هغه ته به دوه اجرونه ملاویږی یو د صحیح فیصلې ثواب او دویم د هغه د محنت او مشقت ثواب دې که چرې د هغه نه فیصله کولو کښې څه غلطی اوشی نو مسئله او د حکم ثواب خو به په وجه د غلطئی نه ملاویږی خو د هغه د محنت کوشش او جدوجهد به یو اجر ملاویږی لیکن دا هغه وخت ده چه کله حاکم عالم قاضی او مجتهد د اجتهاد اهلیت لری که چرې د اجتهاد اهل نه وی او هغه په فیصله کښې غلطی اوکړه نو د ثواب په ځائې به گناه کیږی د دې حدیث نه یوه ضابطه دا راؤوتله چه د لوئی اجتهاد د پاره د لوئی علم او لوئی سوچ ضرورت دې بل د اجتهاد حق په هغه اجتهادی او فروعی مسائلو کښې دې په کوم کښې چه د مختلف وجوهاتو احتماله گنجائش وی غیرمحتمل نص یا د شریعت په واضحه احکاماتو نه تقلید شته او نه د اجتهاد ضرورت بیا دابحث دې چه آیا حق یو دې یا د هرمجتهد په اجتهاد کښې جدا جدا حق دې نو راجح او صحیح دادی چه حق یو دې کوم چه لاعلی التعیین چاسره هم کیدې شی

**په اسلام کښې د اجتهاد او د مجتهدینو مقام:** د مذکوره حدیث نه چه یو طرف ته دا مسئله ثابتیږی چه قاضی په فروعی مسائلو کښې د اجتهاد حق لری او هغه کله صحیح فیصله کوی او کله غلطی کیږی نو بل طرف ته دا خبره هم ثابتیږی چه په اسلام کښې د مجتهد او اجتهاد یو لوئی مقام دې که چرې هغه په خپل اجتهاد کښې صحیح خبرې ته رسیږی نو هغه ته به دوه ثوابونه ملاویږی کنی یو ثواب خو د هغه د پاره خامخا دې لهذا فقهاء او مجتهدینو ته بد وئیل یا په هغوی باندې تنقید کول بدبختی ده د دې حدیث نه داهم معلومه شوه چه "المجتهد یخطئ ویصیب" یو فیصله شوې حقیقت دې

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۳۷۳۲] د قضاء د منصب ازمانښ

۳۷۳۲-[۳] (۱) ۱ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ «مَنْ جُعِلَ قَاضِيًا بَيْنَ النَّاسِ فَقَدْ ذُبِحَ بِغَيْرِ سِكِّينٍ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوهریره رضي الله عنه وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل ۲ کوم سړی چې د خلقو قاضي مقرر شو گویا هغه بغیر چاړه ذبح شو (احمد ترمذي وابوداود او ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① جُعِلَ: جوړکړې شو . مقررکړې شو . ② بِغَيْرِ سِكِّينٍ: بغیر چاړه .

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأقضیة /باب فی طلب القضاء (رقم-۳۵۷۲) والترمذی فی کتاب الأحکام عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم /باب ما جاء عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم فی القاضی (رقم -۱۳۲۵) و ابن ماجه فی کتاب الأحکام / باب ذکر القضاة (رقم-۲۳۰۸) واحمد فی المسند:۲/۲۳۰

**تسهیلات:**

**قوله: مَنْ جُعِلَ قَاضِيًا:**

**د قاضی جوړیدو بغیرد چاړې ذبحه کیدو سره په تشبیه کښې اقوال:** ① علامه طیبی رحمه الله فرمائی دَ بدنی قتل متعارف طریقه خو په چاقو چاړې سره کیږی نبی کریم دا متعارف طریقه دَ قتل پریخودوسره چه دکوم قتل ذکرکړې دې هغه دَ دین تباهی او روحانی هلاکت مراد کیدې شی دَ ظاهری بدن هلاکت مراد نه شی کیدې

② قاضی عیاض رحمه الله فرمائی نبی کریم ددې کلام نه هغه قتل مراد اخستې دې چه دَ چاړې نه علاوه وی لکه مرئی خفه کول په اوبوکښې ډوبول یا په اور کښې سوزول یا دَ چاخوراك څنباك بندلو سره قتل کول دا هغه صورتونه دی چه په چاړې سره دَ قتل کولو په نسبت زیات سخت دی خکه چه په دې کښې دَ قتل کولو وخت اوږد وی په دې وجه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه قاضی جوړیدل داسې دی لکه چه څوك دَ چاړې نه بغیر ذبح کړې شو

③ صدرالشریعه رحمه الله فرمائی لکه څنګه چه بغیردَ چاړې په ذبح سره په بدن بندې هیڅ ظاهری اثر نه ښکاری مګر دننه نه رګونه پرې کیږی دغه شان په قضاء کښې به تاسو ته په ظاهرکښې هیڅ نقصان نه ښکاری بلکه هم مزې مزې به وی لیکن په روحانی اوباطنی توګه باندې خطرناك اثر کیږی.

④ علامه مظهر رحمه الله فرمائی چه دَ قضاء دَ عهدې خطره ډیره زیاته ده اوددې ضرر ډیر لوئی دې خکه چه قاضی ډیر کم عدل اوانصاف باقی ساتلې شی ددې دپاره چه دَ نفس رجحانات ډیرزیات دی کله یوسړې دَخپلې خوښې طرف ته کله دَ خپل خادم طرف اوکله دَ صاحب منصب طرف ته مائل کیږی اوکله دَ رشوت قبلولو طرف ته مائل کیږی اودَ رشوت معامله خو نه نیك کیدونکې لاعلاج بیماری ده

**په خپل ځان د عدم اعتماد په صورت کښې د قضاء منصب قبلول:** بعضې علماؤ ددې حدیث نه دا مسئله راویستې ده چه دَ کوم سړی په خپل ځان باندې کامل یقین اوکامل اعتماد او باور نه وی هغه دې قاضی نه جوړیږی خکه چه دا خطرناك صورت دې اوکه چرې هغه سړې په خپل ځان باندې ښه مطمئن وی نوهغه دې قضاء قبوله کړی لویو لویو صحابه کرامو او تابعینو حضراتو دَ قضاء عهده نه ده قبوله کړې امام ابوحنیفه رحمه الله دَ قضاء عهدنه قبلولو دَ وجې نه په جیل کښې کوړې اوخوړلې لیکن دَ حکومت دَ قضاء طرف ته تیټ نه شو. الکاشف: ۲۷۵/۷.

**[٣٧٢٤] د قاضي جوړیدو خواهش نه کول**

[۴] () ① وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «مَنِ ابْتَغَى الْقَضَاءَ وَسَأَلَ ③ وُكِلَ إِلَى نَفْسِهِ، ④ وَمَنْ أُكْرِهَ عَلَيْهِ ⑤ أَنْزَلَ اللهُ عَلَيْهِ مَلَكًا يُسَدِّدُهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

**توجمه:** ① او حضرت انس ﷺ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ② کوم سړی چې په خپل زړه کې د منصب او قضاء طلب او خواهش کوي او بيا سربراه مملکت نه د هغه درخواست گذارشي ترديې د هغه په درخواست هغه قاضي جوړ شي ③ نو هغه منصب د هغه نفس ته حواله کولی شي يعنې هغه ته د خپل فرض منصبي آنجامولو کې د الله ﷻ توفيق او مدد حاصل نه وي ④ او کوم سړی چې د هغه د طلب او خواهش نه بغير په زبردستي په هغه منصب فائز شي ⑤ نو الله ﷻ په هغه يوه فرشته مقرره وي چې هغه گفتار او کردار کې راست او درست ساتي (ترمذي ابوداود ابن ماجه)

**حل للغات:** ① وُكِلَ: حواله کړې شو . اوسپارلي شو ② أُكْرِهَ: زور پرې اوکړې شو . په زور مقرر کړې شو . ③ مَلَكًا: فرشته. ④ يُسَدِّدُهُ: نيغه لار به ورته ښائي

**تسهيلات:**

**قوله:** من ابتغى، أي طلب في نفسه: خپل ځان دپاره ئې طلب کړو (القضاء أي الحكومة الشاملة لأمارة) مطلب دا چې هغه خپل ځان دپاره حکومت طلب کړي

**قوله:** وسأل خلقو نه د حکومت طلب کولو مطلب دادې چې هغه خلق تيار کړي چې خلق دې ته ووټ ورکړي او دې اوگټي

**[٣٧٢٥] جنتي او دوزخي قاضي**

[۵] () ① وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «الْقُضَاةُ ثَلَاثَةٌ وَاحِدٌ فِي الْجَنَّةِ وَاثْنَانِ فِي النَّارِ: ③ فَأَمَّا الَّذِي فِي الْجَنَّةِ فَرَجُلٌ عَرَفَ الْحَقَّ فَقَضَى بِهِ، ④ وَرَجُلٌ عَرَفَ الْحَقَّ فَجَارَ فِي الْحُكْمِ فَهُوَ فِي النَّارِ، ⑤ وَرَجُلٌ قَضَى لِلنَّاسِ عَلَى جَهْلٍ فَهُوَ فِي النَّارِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

**توجمه:** ① او حضرت بريده ﷺ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ② قاضي په درې قسمه وي يوقسم خو جنت ته تلونکي او دوه قسمه دوزخ ته تلونکي ③ جنت ته تلونکی قاضي

[1] ) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأقضية/باب في طلب القضاء والتسرع إليه (رقم-٣٥٧٨) والترمذي في كتاب الأحكام عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم في القاضي (رقم-١٣٢٤) وابن ماجه في = كتاب الأحكام / باب ذكر القضاة(رقم-٢٣٠٩)

[2] ) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأقضية/باب في القاضي يخطئ (رقم-٣٥٧٣) والترمذي في كتاب الأحكام عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم في القاضي (رقم-١٣٢٢) وابن ماجه في كتاب الأحكام / باب الحاكم يجتهد فيصيب الحقّ (رقم-٢٣١٥)

هغه سړی دی چې هغه حق وپیژندی یعنی په دې پوهه شي چې حق په دې خبره کې دی او بیا د حق مطابق یې فیصله وکړله [۴] او څوك چې په حق پوهه شو یعنی حق یې وپیژندی خو د دې باوجود خپل حکم او فیصله کې یې ظلم وکی یعنی هغه سره د پوهې قصداً حق پامال کی نو هغه دوزخي دی [۵] دغه شان کوم سړی چې د خپل جهالت په وجه حق ونه پیژندی او په دې حالت کې د خلقو د تنازعاتو فیصله یې وکړله نو هغه دوزخي دی حکه چې هغه حق رسي کې کوتاهي او تقصیروکړو (ابوداود ابن ماجه)

**حل اللغات** ① اَلْقُضَاةُ: جمع د قاضی دہ . قاضیان ② فَجَارَ: ظلم ئې اوکړو

**تسهیلات:**

**قوله: اَلْقُضَاةُ ثَلَاثَةٌ**: الحاصل داشان حدیث پاك په جامع صغیر کښې هم دې (القضاة ثلاثة اثنان في النار وواحد في الجنة رجل علم الحق فقضى به فهو في الجنة ورجل قضى للناس على جهل فهو في النار ورجل عرف الحق فجار في الحكم فهو في النار) د قاضیانو درې قسمه دی دوه قسمه قاضیان به په اور کښې داخلیږی او یو قسم قاضیان به جنت کښې لهذا هغه قاضی چې حق ئې اوپیژندو اود حق مطابق ئې فیصله اوکړه نو هغه به جنت کښې داخلیږی او چا چې د حق پیژندلو نه پس هم حق پرینښودلو او فیصله ئې اوکړه یائې فیصله بغیر دعلم نه اوکړه نو دا دواړه جهنمیان دی

**[۳۷۳٦] د کامیاب او ناکام حکمران معیار**

[۲] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «مَنْ طَلَبَ قَضَاءَ الْمُسْلِمِينَ حَتَّى يَنَالَهُ، [۳] ثُمَّ غَلَبَ عَدْلُهُ جَوْرَهُ فَلَهُ الْجَنَّةُ، [۴] وَمَنْ غَلَبَ جَوْرُهُ عَدْلَهُ فَلَهُ النَّارُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل کوم [۲] سړی چې د مسلمانانو د منصب قضاء طالب او درخواست گذار شو تردې چې هغه هغه حاصل هم کی [۳] او بیا د خپل فرائض منصبي آدائیگی کې د هغه عدل او انصاف په ظلم غالب شو نو هغه به د جنت مستحق وي [۴] او د کوم سړي ظلم چې د هغه په عدل او انصاف غالب شو نو هغه به د دوزخ سزا وار وي (ابوداود)

**حل اللغات** ① عَدْلُهُ: انصاف دده. ② جَوْرَهُ: په ظلم دده

**تسهیلات:**

**قوله: ثم غلب عدله جوره فله الجنة** ظلم باندې د عدل د غلبې نه مراد دادې چې یو د بل نه زیات وی او بل هم وجود لری او چونکه حکم د غالب مطابق وی په دې وجه که عدل

(۱) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الاقضية /باب في القاضي يخطئ (رقم -۳۵۷۵)

وانصاف غالب وی نو جنت به ملاویږی او که ظلم غالب وی نو جهنم به ملاویږی علماء کرامو لیکلی دی چې ددې جملې مطلب دادې چې هغه حاکم داسې وی چې دظلم دپاره زکاوې جوړ شی لکه ددې حا کم عدل وانصاف داشان حاوی وی چې د هیڅا ظلم سر اوچت نه کړی نوداسې حاکم دپاره جنت دې

**قوله:** ومن غلب جوره که د حاکم ظلم په عدل باندې غالب وی نو بیا داسې حاکم دپاره جهنم دې

## [۲۷۳۷] د قیاس او اجتهاد جواز

[۷] ( ) ۱ «وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ لَمَّا بَعَثَهُ إِلَى الْيَمَنِ قَالَ: كَيْفَ تَقْضِي إِذَا عَرَضَ لَكَ قَضَاءٌ؟ ۳ قَالَ: أَقْضِي بِكِتَابِ اللّٰهِ، ۴ قَالَ: فَإِنْ لَمْ تَجِدْ فِي كِتَابِ اللّٰهِ؟ ۵ قَالَ: فَبِسُنَّةِ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۶ قَالَ: فَإِنْ لَمْ تَجِدْ فِي سُنَّةِ رَسُولِ اللّٰهِ؟ ۷ قَالَ: أَجْتَهِدُ رَأْيِي وَلَا آلُو،

**ترجمه:** ۱ او معاذ ابن جبل رضی الله عنه نه روایت دی ۲ چې رسول کریم ﷺ معاذ رضی الله عنه قاضي او حاکم جوړولو سره یمن ته لیږي نو هغه نه یي د امتحان په طور پوښتنه وکړه هرکله چې تاته څه قضیه پیښه شي نو څنګه فیصله به کوي ۳ هغه اوویل زه به د کتاب الله قرآن کریم موافق فیصله کوم ۴ ورته یي وفرمایل که ته هغه مسئله صراحةً کتاب الله کې پیدانه کې ۵ هغه اوویل بیا به زه د سنت رسول الله ﷺ حدیث نبوي موافق فیصله کوم ۶ وي فرمایل که ته هغه مسئله سنت کې پیدانه کې ۷ نو هغه اوویل بیا زه د خپل عقل نه اجتهاد کوم او خپل اجتهاد او حقیقت رسی کې به کوتاهي نه کوم

**حل اللغات:** ① لَا آلُو: کوتاهي به نه کوم

۱ قَالَ: فَضَرَبَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَى صَدْرِهِ، ۲ وَقَالَ: الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي وَفَّقَ رَسُولَ رَسُولِ اللّٰهِ لِمَا يَرْضَى بِهِ رَسُولُ اللّٰهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱ معاذ یا هغه راوي چې هغه داحدیث د معاذ رضی الله عنه نه روایت کړي دی وایي چې حضور ﷺ په دې اوریدو سره خپل لاس مبارك د معاذ رضی الله عنه په سینه راتیرکړو (چې د هغه د برکتنه هغه خپلې خبرې باندې ثابت قدم اوسئ او د هغه په علم کې اضافه وي) ۲ او وي فرمایل ټول تعریفونه د الله د پاره دي چې هغه د رسول الله ﷺ استازي (یعنی معاذ رضی الله عنه ته د دې څیز توفیق ورکړو چې په هغه سره د الله رسول ﷺ راضي شو ) (ترمذي ابوداود دارمي)

**حل اللغات:** ② وَفَّقَ: توفیق ئې ورکړو

---

[۱] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأقضية /باب اجتهاد الرأی فی القضاء (رقم-۳۵۹۲) کتاب الأحکام عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب ما جاء فی القاضی کیف یقضی (رقم-۱۳۲۷) واحمد فی المسند: ۵/ ۲۳۰

**تسهيلات:**

**قوله: أَجْتَهِدُ رَأْيِي:**

**دسنت نه د قياس د حجتيت دليل:** يعنى كه دَ كتاب سنت او اجماع امت واضحه فيصله مخې ته نه وى نوزه به دَ هغه قضيه دِپاره په قرآن اوحديث كښې گورم چه دَدې مسئلې مثال كومه يوه مسئله ده اودَدې مسئلې په شان بيان شوې مسئله كومه يوه ده اودَ دې حكم څه دې؟ نوزه به هغه جزئيه په دې باندې قياس كوم هم ددې نوم اجتهاد دې دلته دَ رائې نه مراد هغه رائې ده چه دَ قرآن اوحديث نه مستنبط او ماخوذ وى اودهغې په رڼاكښې وى گنى صرف دَ خالص خپلې ذاتى رائې اعتبارنشته دې

دَ فقهاء كرامو په نيز هغه قياس هم دَ اصول شرعيه نه يواصل دې كوم چه دَ شرعى نصوص نه مستنبط وى لكه څنگه چه دَدې حديث نه په واضحه توگه ددې قسم قياس اودَدې قسم رائې اواجتهادته شرعى حجت گرځولې شوې دې دَ جمهورو هم دغه مسلك دې او اهل ظواهرغيرمقلدين حضرات قياس شرعى حجت نه منى هغوى وائى چه دَ ټولو نه اول قياس ابليس كړې وو چه مردود اوگرځيدو

**د قرآن نه د قياس د حجتيت دليل:** جمهور فرمائى چه دَ قرآن كريم آيت ﴿لَعَلِمَهُ الَّذِيْنَ يَسْتَنْبِطُوْنَهُ﴾ كښې دَ اجتهاد استنباط او قياس طرف ته اشاره ده اوزير بحث حديث واضح دليل دې څكه چه نبى كريم دَ حضرت معاذ ډير تعريف اوتوثيق اوكړو باقى دَ ابليس قياس قياس نه وو بلكه دَ صريح حكم په مقابله كښې حجت بازى وه دغه د ټولو په نيز ناجائز دى

**[۳۷۲۸] د فريقينو بيان اوريدو څخه روسته فيصله كول**

۳۷۲۸-[۸] (١) ﴿١﴾«وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: بَعَثَنِي رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَى الْيَمَنِ قَاضِيًا. ﴿٢﴾فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ: تُرْسِلُنِي وَأَنَا حَدِيثُ السِّنِّ وَلَا عِلْمَ لِي بِالْقَضَاءِ؟ ﴿٣﴾فَقَالَ: إِنَّ اللهَ سَيَهْدِي قَلْبَكَ وَيُثَبِّتُ لِسَانَكَ: ﴿٤﴾إِذَا تَقَاضَى إِلَيْكَ رَجُلَانِ فَلَا تَقْضِ لِلْأَوَّلِ حَتَّى تَسْمَعَ كَلَامَ الْآخَرِ،

**ترجمه:** ﴿١﴾او حضرت علي كرم الله وجهه فرمايلي دي هركله چې رسول كريم ﷺ ځما قاضي جوړولو سره يمن ته د ليږلو اراده وكړه ﴿٢﴾نو ما عرض اوكړو چې تاسو ما قاضي جوړولو سره ليږلو چې د خپلي كم عمري په وجه ناتجربه كار هم يم او د منصب قضأ د ذمه واريو پوره طور سره علم هم راته نشته ﴿٣﴾نو حضور ﷺ راته وفرمايل ته په دي باره

(١) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأقضية /باب كيف القضاء (رقم-۳۵۸۲) والترمذى فى كتاب الأحكام عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فى القاضى لا يقضى بين الخصمين حتّى يسمع كلامهما (رقم-۱۳۳۱) و ابن ماجه فى كتاب الأحكام / باب ذكر القضاة(رقم-۲۳۱۰) واحمد فى المسند:۸۳/۱

کې فکر مه کوه الله به ستا ژړه ته د فهم او فراست هدایت ورکړي او ستا ژبه به فصیح او برحق حکم او فیصله کولو باندې ثابته لري [۲]بیا حضور ﷺ اد منصب قضاء په ذمه واریو د انجام دې سلسله کې دا تعلیم او هدایت اوکړو چې هرکله تاته دوه سړي خپله قضیه راوړي نو ته د مخکې سړي مدعي په حق کې ترهغه وخته پورې څه حکم او فیصله مه کوه ترڅو پورې چې د دویم سړي یعنی د مدعا علیه بیان وانه وري

**حل اللغات** ①حَدِيثُ السِّنِّ: کم عمره. نو جوان.

[۱]فَإِنَّهُ أَحْرَى أَنْ يَتَبَيَّنَ لَكَ الْقَضَاءُ، [۲]قَالَ: فَمَا شَكَكْتُ فِي قَضَاءٍ بَعْدُ». [۳]رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد وَابْنُ مَاجَهْ. [۴]وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ أُمِّ سَلَمَةَ إِنَّمَا أَقْضِي بَيْنَكُمْ بِرَأْيِي، فِي بَابِ الْأَقْضِيَةِ وَالشَّهَادَاتِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى.

**ترجمه**: [۱]ځکه چې دا یعنی د مدعا علیه بیان به تاته صحیح حکم او فیصله کولو کې به مدد درکړي [۲]حضرت علي رضي الله عنه فرمایي د حضور ﷺ د دې مبارکې دعا دبرکته او د حضور ﷺ په دې هدایت او تعلیم عمل کولو نه وروسته زه د هیڅ قسم قضیي حکم او فیصله کولو کې مذبذب نه شوم [۳]دا دې روایت ترمذي ابوداود او ابن ماجه کړې دې [۴] او حدیث دام سلمه إِنَّمَا أَقْضِي بَيْنَكُمْ بِرَأْيِي، به په باب الْأَقْضِيَةِ وَالشَّهَادَاتِ کښې ذکر کړو ان شاء الله

**حل اللغات**: ②أَحْرَى: ډیره لائق ده. ښه مدد به دې اوکړي ③مَاشَكَكْتُ: شک مې نه دې کړې. مذبذب شوې نه یم

**تسهيلات**:

**قوله** ترسلني الخ تقدیری عبارت داشان دې . أترسلني . آیا ته ما لیږې حالانکه (وأنا حديث السن أي والحال أني صغير العمر قليل التجارب)، او حال دادې چې زما عمر کم دې او دقضا تجربه مې نشته دې

**قوله** ولا علم لي، أي كاملا بالقضاء يعنی څه د کاملې قضا اهل نه یم . ددې مطلب دا نه دې چې ما کښې ددې اهلیت نشته دې او نه د قضاء د علم نفي مراد ده بلکه ددې نه مراد دادې چې فریقین نه کلام آوریدل او ددوی په مینځ کښې فیصله کول مشکل دی . په دې وجه په دې کار کښې ماسره مدد اوکړه په دې باندې نبی کریم ﷺ دا کلمات اوفرمائیل چې (إن الله سيهدي قلبك أي بالفهم ويثبت لسانك أي بالحكم، ملا علی قاری رحمه الله فرمائی چې هم دا مثال د حضرت موسی علیه السلام او حضرت هارون علیه السلام وو ، قال الله تعالى اِذْهَبَآ اِلٰى فِرْعَوْنَ اِنَّهٗ طَغٰى ، تاسو دواړه فرعون ته ورشئ هغه سرکشی اختیار کړې ده . دې دواړو عرض اوکړو (قَالَا رَبَّنَآ اِنَّنَا نَخَافُ اَنْ يَّفْرُطَ عَلَيْنَآ اَوْ اَنْ يَّطْغٰى ۝ قَالَ لَا تَخَافَآ اِنَّنِيْ مَعَكُمَآ اَسْمَعُ وَاَرٰى ۝)

**قوله**: فلا تقض للأول حتى تسمع كلام الآخر دا د قضاء اصول دی چې یك طرفه خبره آؤریدو نه پس فیصله کول جائز نه دی تر کومې پورې چې د دواړو فریقو خبره آؤریدلې شوې نه وی ددې وجه داده چې کیدیشی غائب سره داسې دلیل او حجت وی کوم چې د دې بل فریق دعو باطلوی او دده حجت ختم کړی ددې حدیث پاك په بنیاد علماء کرامو لیکلی دی چې قاضی لره دا جائز نه دی چې د مقدمې یو فریق سره په تنهائی کښې ملاقات اوکړی تر کومې چې دویم فریق موجود نه وی . واضحه دې وی چې د فریقینو په موجودګۍ د هغوئ خبره آؤریدل قاضی لره ضروری دی. مفتی دپاره ضروری نه دی ځکه چې د مفتی کار د صورت مسئوله جواب ورکول وی

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۳۷۳۹] د قیامت په ورځ د ظالم حاکم انجام

۳۷۳۹-[۹] ()[۱] عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«مَا مِنْ حَاكِمٍ يَحْكُمُ بَيْنَ النَّاسِ، [۳] إِلَّا جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَمَلَكٌ آخِذٌ بِقَفَاهُ، [۴] ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهُ إِلَى السَّمَاءِ، [۵] فَإِنْ قَالَ: أَلْقِهْ أَلْقَاهُ فِي مَهْوَاةٍ أَرْبَعِينَ خَرِيفًا»". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَابْنُ مَاجَهْ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه**: [۱] حضرت عبد الله ابن مسعود ؓ وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲] هرهغه حاکم چې په خلقو باندې خپل حکم او فیصله جاري او نافذ کوي [۳] د قیامت په ورځ به داحکم الحاکمین بارګاه کې داسې پیش شي چې یوه فرښته به هغه د څټ نه راونیسي [۴] بیابه هغه فرښته خپل سرآسمان طرف ته پورته کړي ولاړي به وي [۵] تردي که الله ﷻ دا حکم ورکړي چې دی په دوزخ کې واچوئ نو هغه به دی د دوزخ په کنده کې واچوي چې د څلویښت کاله د مسافت په قدر ژوره (ګهرا) ده (احمد ابن ماجه بیهقي په شعب الایمان)

**حل اللغات**: ①قَفَا: څټ. ②أَلْقِهْ: واچوئ. وئې غورزوئ. ③مَهْوَاةٍ: ژوره کنده. ④خَرِيفًا: دخزان موسم ته خریف وائی دې نه مراد کال دې

**تسهیلات**:

**قوله**: ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهُ إِلَى السَّمَاءِ:

**د فرشتو د الله د حکم انتظار**: لکه چه دَ محکمه عدالت قانون دې چه مجرم عدالت ته حاضره وی اوبیادَ فیصلې انتظارکولې شی. دلته به هم دَالله تعالی په حضورکښې فرښته پورته کتوسره انتظارکوی چه دَالله تعالی رب العزت دَ طرف نه به څه حکم کیږی. که چرې حکم اوشو چه دې دوزخ کښې واچوئی نو فرښته دې یوې ژورې کندې ته غورزه وی

---

[۱]) اخرجه ابن ماجه فی السنن کتاب الأحکام / باب التّغلیظ فی الحیف والرّشوة (رقم-۲۳۱۱) واحمد فی المسند:۱/۴۳۰

چه دَ څلويښتو کالو په اندازه ژوره ده دا څه تحديدنه دې بلکه دَ دغه کندې دَ زيات نه زيات ژوروالي بيانول دی.

### [۲۷٤۰] د قيامت په ورځ د قاضي حسرتناکه آرزو

۳۷۳۰-[۱۰] (۱) ① وَعَنْ عَائِشَةَ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② "«لَيَأْتِيَنَّ عَلَى الْقَاضِي الْعَدْلِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ سَاعَةٌ ③ يَتَمَنَّى أَنَّهُ لَمْ يَقْضِ بَيْنَ اثْنَيْنِ فِي تَمْرَةٍ قَطُّ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ① او بي بي عائشه ﷞ د نبي کريم ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمايل ② د قيامت په ورځ هرکله چې دحاکمانو سردارانو او د قانون او انصاف د ذمه وارو نه به سخته مواخذه کيږي نو عادل او منصف قاضي د پاره به هم داسې يوه لمحه راشي ③ چې په هغه کې به هغه داسې آرزو کوي کاش ارمان چې هغه ته د دوو سړو په مينځ کې د يوې خرما د قضيي هم د فيصلي کولو ذمه داري آنجام کول نه راتلی

**تسهيلات:**

**قوله:** لَيَأْتِيَنَّ عَلَى الْقَاضِي الْعَدْلِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:

دامصدر دفاعل په معنی کنبې دې يا دمبالغې په معنی کنبې يا مضاف محذوف (أي ذوالعدل) ، او څينو ليکلی دی چې يوم القيامة داد ليأتين فاعل دې او يتمنى حال مجرور دې . يا دا د فاعل نه حال دې ، (تعليق الصبيح ج/۴ص/۲۸۰).

### [۲۷٤۱] عادل قاضي سره د الله تعالى نصرت

۳۷۳۱-[۱۱] (۲) ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②: «إِنَّ اللّٰهَ مَعَ الْقَاضِي مَا لَمْ يَجُرْ، ③ فَإِذَا جَارَ تَخَلَّى عَنْهُ وَلَزِمَهُ الشَّيْطَانُ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ. ④ وَفِي رِوَايَةٍ: "«فَإِذَا جَارَ وَكَلَهُ إِلَى نَفْسِهِ»".

**ترجمه:** ① او عبد الله ابن ابي اوفى ﷛ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ② قاضي چې ترڅوپوري د ظلم او نا انصافي لار نه اختيار وي نو الله ﷻ هغه سره وي يعنى د حق تعالى توفيق او تائيد د هغه شامل حال وي ③ خو کله چې ظلم او نا انصافي اختيار کړي نو الله ﷻ د هغه نه جدا شي يعنى هغه نه د حق تعالى د تائيد او توفيق سورى تري نه لري شي او شيطان د هغه ملګرى جوړ شي (ترمذي ابن ماجه) ④ او د ابن ماجه په يوروايت کې دا الفاظ دي چې قاضي کله د ظلم او نا انصافي لار اختيار کړي نو الله ﷻ د هغه کار هغه ته حواله کړي يعنى هغه د خپل توفيق او تائيد نه محروم کړي.

[1] ) اخرجه احمد فى المسند: ۵۷/۶

[2] ) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الأحكام عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم /باب ما جاء فى الإمام العادل (رقم-۱۳۳۰) و ابن ماجه فى كتاب الأحكام / باب التّغليظ فى الحيف والرّشوة (رقم-۲۳۱۲)

**حل اللغات:** ①لَمْ يَجُرْ: چه ظلم او ناانصافي ئې نه وي کړې. ②جَارَ: ظلم. نا انصافي اوکړی، ③تَخَلَّى: لرې شي، جدا شي،

**تسهيلات:**

**قوله:** مالم يجر، أي مالم يظلم تر کومې چې قاضي ظلم اونه کړي

**قوله:** تخلى عنه، أي تبرأ الله منه کله چې قاضي ظلم کوي نو الله ﷻ دده نه بری کيږي ، او د الله ﷻ د توفيق اورحمت سيوري دده نه پورته کيږي

**قوله:** لزمه الشيطان، أي ولازمه العصيان. د شيطان د ملګرى جوړيدو مطلب دادې چې هغه نافرماني شروع کړي.

**[۳۷۴۳] د عادل قاضي سره مدد کونکې فرښتې**

۳۷۴۳-[۱۲] () ①وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ: ②أَنَّ مُسْلِمًا وَيَهُودِيًّا اخْتَصَمَا إِلَى عُمَرَ، ③فَرَأَى الْحَقَّ لِلْيَهُودِيِّ، فَقَضَى لَهُ عُمَرُ بِهِ. ④فَقَالَ لَهُ الْيَهُودِيُّ: وَاللهِ لَقَدْ قَضَيْتَ بِالْحَقِّ، ⑤فَضَرَبَهُ عُمَرُ بِالدِّرَّةِ، وَقَالَ: وَمَا يُدْرِيكَ؟ ⑥قَالَ الْيَهُودِيُّ: وَاللهِ إِنَّا نَجِدُ فِي التَّوْرَاةِ أَنَّهُ لَيْسَ قَاضٍ يَقْضِي بِالْحَقِّ إِلَّا كَانَ عَنْ يَمِينِهِ مَلَكٌ، وَعَنْ شِمَالِهِ مَلَكٌ،

**ترجمه:** ①او سعيد ابن مسيب رحمه الله راوي دی ②چې يوه ورځ د حضرت عمر په خدمت کې يو مسلمان او يو يهودي خپله جګړه اخستو سره راغلل ③حضرت عمر رضي الله عنه چې د قضيې د تحقيق نه وروسته وليدل چې يهودي په حقه دی نو د هغه يهودي په حق کې يې فيصله وکړله ④يهودي چې په خپل حق کې فيصله واوريده نو هغه اوويل قسم په خدای تاسو د حق مطابق فيصله وکړله يا داچې تاسو د حق تعالى توفيق او تائيد سره دا منصفانه فيصله وکړه ⑤حضرت عمر رضي الله عنه په دي اوريدو سره هغه يوه دره ووهی او ورته وي وفرمايل تاته دا څنګه معلومه شوه چې ما په حقه فيصله وکړله ⑥يهودي اوويل قسم په خدای مونږ په تورات کې داليکلي پيداکړي دي چې کوم قاضي د حق مطابق فيصله کوي د هغه ښي طرف ته يوه فرښته وي او د هغه چپ طرف ته يوه فرښته وي

**حل اللغات:** ①الدِّرَّةِ: دوره. چابک

①يُسَدِّدَانِهِ وَيُوَفِّقَانِهِ لِلْحَقِّ مَا دَامَ مَعَ الْحَقِّ، ②فَإِذَا تَرَكَ الْحَقَّ عَرَجَا وَتَرَكَاهُ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** ①هغه دواړې فرښتې هغه ته تقويت رسوي او د حق توفيق ورکوي ترڅوپورې چې هغه په حق وي ②او هر کله چې قاضي حق پريږدي نو هغه فرښتې آسمان ته لاړې شي او هغه پريږدي (مالك)

**حل اللغات:** ①يُسَدِّدَانِهِ: هغه ته تقويت ورکوي. نيغه لاره ورته ښائي ②يُوَفِّقَانِهِ: توفيق ورته ورکوي. ③عَرَجَ: اوخيژي. پورته لاړې شي (آسمان ته)

[1] ) اخرجه مالک فی الموطا کتاب الأقضية /باب التّرغيب فی القضاء بالحقّ (رقم-۲)

**تسهیلات: قوله:** أَنَّ مُسْلِمًا وَيَهُودِيًّا اخْتَصَمَا إِلَى عُمَرَ:

**د عمر رضي الله عنه د یهودي په حق کښې فیصله:** دافیصله دَ اسلام دَ انصاف نه ډك نظام شاهکاردې اودَ شیعه ګانو په مخ څپیړه ده چه کوم عمردَ حق داسې پاسباني کوی چه یهودیان دهغه احترام کوی خو ولې رافضي وائي چه هغه په اهل بیت باندې ظلم اوکړو

**قوله:** فَضَرَبَهُ عُمَرُ بِالدِّرَّةِ:

**د یهودي د څپرې دلیل:** حضرت عمر رضي الله عنه هغه یهودي دَ خوش طبعې په توګه په چوکه اووهلو اوکوړه ئې ورنیغه کړه وئې فرمائیل چه تاته څنګه معلومه شوه چه دافیصله په حق باندې شوې ده یهودي اووئیل تورات کښې لیکلی دی چه دَ حق اوانصاف کونکې حاکم نه چاپیره فرښتې وی چه په فیصله کولوکښې دَ هغه امدادکوی اوچونکه تاسو په حق باندې فیصله اوکړه دَ دې نه معلومه شوه فرښتې تاسوسره دی اودَ چانه چاپیره چه فرښتې وی هغه په حق باندې وی لهذا تاسو په حق یئې اوستاسو فیصله هم حق ده

**[۳۷۴۳] د قضاء منصب د قبلولو نه د ابن عمر رضی الله عنهما انکار**

[۱۳] (۱) ١ وَعَنِ ابْنِ مَوْهَبٍ: ٢ أَنَّ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ لِابْنِ عُمَرَ: اقْضِ بَيْنَ النَّاسِ. ٣ قَالَ: أَوَتُعَافِينِي؟ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ! ٤ قَالَ: وَمَا تَكْرَهُ مِنْ ذَلِكَ وَقَدْ كَانَ أَبُوكَ يَقْضِي؟ ٥ قَالَ: لِأَنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: "«مَنْ كَانَ قَاضِيًا فَقَضَى بِالْعَدْلِ; فَبِالْحَرِيِّ أَنْ يَنْقَلِبَ مِنْهُ كَفَافًا» ". ٦ فَمَا رَاجَعَهُ بَعْدُ فِي ذَلِكَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ١ او ابن موهب رضي الله عنه وايي ٢ چې حضرت عثمان ابن عفان رضي الله عنه په خپله زمانه خلافت کې حضرت ابن عمر رضي الله عنه ته اوويل چې د خلقو قاضي جوړ شه يعنى حضرت عثمان رضي الله عنه د حضرت ابن عمر رضي الله عنه په خدمت کې د قضاء منصب پيش کړو ٣ حضرت ابن عمر رضي الله عنه ورته اوويل اې امير المؤمنين ما د دې کار نه معاف کړه ٤ حضرت عثمان رضي الله عنه ورته وفرمايل تاسو دا منصب ولې نه خوښوې حالانکه ستاسو پلار بزرګوار حضرت عمرفاروق رضي الله عنه به د خپل دور خلافت نه علاوه هم د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په زمانه کې د قضاء کار کوی ٥ حضرت ابن عمر رضي الله عنه ورته اوويل ما د رسول کريم صلى الله عليه وسلم نه دا اوريدلي دي کوم سړی چې د قضاء په منصب قائم شو او انصاف باندې مبني فيصلي کوي نو هغه د دې لائق دی چې هغه دي منصب نه برابر سرا برجدا شي يعنى نه نقصان ورسوي نه فائده نه ثواب پيداکړي نه عذاب ٦ د دې نه وروسته حضرت عثمان رضي الله عنه حضرت ابن عمر رضي الله عنه سره په دي باره کې څه خبره ونه کړه (ترمذي)

(١) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الأحکام عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب ما جاء عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم فی القاضی (رقم-۱۳۲۲)

حل اللغات ① أَوَتُعَافِينِي ؟ آيا ته به ما معاف كړې؟ يعنى په دې معامله كښې ما معاف كړه ② فَـالْحَرِيُّ نو هغه ددې لائق دې ③ أَنْ يَنْقَلِبَ چه جدا شى. ④ كَفَافًا: برابر سرابر

٣٧٤٣ - ( ) [۱] وَفِي رِوَايَةِ رَزِينٍ، عَنْ نَافِعٍ، أَنَّ ابْنَ عُمَرَ قَالَ لِعُثْمَانَ: يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ! لَا أَقْضِي بَيْنَ رَجُلَيْنِ، [۲] قَالَ: فَإِنَّ أَبَاكَ كَانَ يَقْضِي. [۳] فَقَالَ: إِنَّ أَبِي لَوْ أُشْكِلَ عَلَيْهِ شَيْءٌ سَأَلَ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، وَلَوْ أُشْكِلَ عَلَى رَسُولِ اللهِ لَهُ شَيْءٌ سَأَلَ جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ، [۴] وَإِنِّي لَا أَجِدُ مَنْ أَسْأَلُهُ،

ترجمه: [۱] او د رزين په روايت کې چې هغه د نافع رحمه الله نه نقل کړي دی دا الفاظ دي چې ابن عمر رضي الله عنهما اوويل اې امير المؤمنين زه خو د دوو سړو په مينځ کې هم څه فيصله نه کوم څه چې د ډيرو خلقو قاضي دي جوړ شم [۲] حضرت عثمان رضي الله عنه ورته وفرمايل ستاسو پلار بزرګوار حضرت عمر فاروق رضي الله عنه خو به فيصلې کولې [۳] نو حضرت ابن عمر په جواب کې وفرمايل چې څما پلار خو دا وه چې هغوی ته به څه مشکل پيښ شو نو د رسول کريم صلی الله عليه وسلم نه به يې پوښتنه کوله او که رسول کريم ته به څه مشکل پيښ شو نو د جبرائيل عليه السلام نه به يې پوښتنه کوله [۴] او زه داسې سړی نه شم پيدا کولې چې د هغه نه پوښتنه وکړم او ما د رسول کريم صلی الله عليه وسلم نه دا اوريدلي دي چې کوم سړی د الله تعالیٰ پناه وغوښتله هغه د لوی ذات پناه وغوښتله

حل اللغات ① أُشْكِلَ: مشکل به پيښ شو.

[۱] وَسَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «مَنْ عَاذَ بِاللهِ، فَقَدْ عَاذَ بِعَظِيمٍ». [۲] وَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: «مَنْ عَاذَ بِاللهِ فَأَعِيذُوهُ». [۳] وَإِنِّي أَعُوذُ بِاللهِ أَنْ تَجْعَلَنِي قَاضِيًا! [۴] فَأَعْفَاهُ، قَالَ: لَا تُخْبِرْ أَحَدًا.

ترجمه: [۱] او ما د حضور صلی الله عليه وسلم نه داهم اوريدلي دي چې کوم سړی د الله تعالیٰ په ذريعه پناه وغواړي نو هغه په لوئې ذات سره پناه اوغوښته (نو پناه ورته ورکړه) [۲] او ما د نبی عليه السلام څخه اوريدلی دی چې فرمائيل ئې څوک چې د الله په ذات سره پناه غواړی نو پناه ورکوئ [۳] او زه د الله په ذات سره پناه غواړم چې تاسو ما قاضي مقرر کړئ [۴] نو حضرت عثمان رضي الله عنه هغه معاف کړو ليکن هغه ته يې وفرمايل بل څوک مه خبروه (چې هغه منصب قضاء قبوله نه کړي ګيني خلق به عام طور سره ددې منصب نه تيښته کوي او نظام حکومت به معطل پاتې شي)

حل اللغات: ② عَاذَ: پناه ئې اوغوښتله. ④ فَأَعْفَاهُ: نو هغه ئې معاف کړو

تسهيلات:

قوله: اقْضِ بَيْنَ النَّاسِ مطلب دادې چې ته منصب د قضاء قبول کړه

[۱] ) اخرجه رزين

**قوله أَوْتُعَافِينِي يَاأَمِيرَالْمُؤْمِنِينَ** اې امير المؤمنين ماته معافي اوکړه زه دا نشم قبلولي او ما ددې په قبلولوباندې مه مجبوروه

**قوله كَفَافًا** كفاف هغه څيز ته وائي چې نه د ضرورت نه کم وي او نه زيات يعنى هغه څيز په قدر دحاجت وي. (التعليق الصبيح ج/۴ ص/۲۸۱)

# [۳] بَابُ رِزْقِ الْوُلَاةِ وَهَدَايَاهُمْ

**دَقاضيانو دوظيفواو دتحفوتحالفوبيان**

**خلاصة الباب:**

**فيه أحد عشر حديثاً مشتملة على أربع مسائل:**

① الإعطاء للولاة والمنع عنهم بأمرالله تعالى : ۱.

② الزجربالتصرف في بيت المال بغيرحق: ۲، ۴، ۶، ۷، ۸.

③ نفقة الولاة في بيت المال ومقدارها: ۲، ۵، ۷، ۹.

④ حرمة أخذ الرشوة: ۹، ۱۱.

**د رزق او هدايا په مينځ کښې فرق:** ① دَ رزق لفظ دَهغه تنخواه دَپاره استعمالولې شي چه هره مياشت په حساب سره ورکولې شي

② عطيه او هديه هغه ده کوم چه په کال کښې يوځل يا دوه ځل دَ حکومت دَ طرف نه فوج ته څه مال ورکولې شي هغې ته عطيه وائى

**د بيت المال نه د قاضيانو وظيفې د تقررۍ جواز:**

په اصولي توګه په دې خبره ځان پوهه کول پکاردي چه قاضي او حاکم چونکه دمسلمانانو په کارونو کښې راګيردي په دې وجه هغوی ته تنخواه ورکول جائزدي ليکن چه دا تنخواه نه دومره زياته وي چه تعيش ژوندون جوړشي اونه دومره کمه وي چه دَ تحقير او فقيرئي نوبت راشي بلکه په اندازه دَ کفاف کيدل پکاردي دَقاضي او حاکم دَتنخواه اخستلو په جوازباندې دا څلوردلائل اوګورئى

**د تنخواه د اخستلو د جواز دلائل:**

① دَحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها هغه روايت دليل دې چه دَ حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه دَ خليفه جوړيدو نه پس دَهغوی خطبه ده په کوم کښې چه دا الفاظ راغلي دي (وشغلت بأمرالمسلمين فسيأكل آل ابي بكرمن هذاالمال ويحترف للمسلمين فيه) (مشکوة ص ۳۲۵)

② دَحضرت بريده رضي الله عنه هغه روايت دليل دې کوم چه دَ مشکوة شريف فصل ثاني ص ۳۲۶ باندې دې. نبی کريم فرمائي (من استعملناه على عمل فرزقناه رزقافما اخذ بعده فهوغلول)

(ابوداؤد) دې روايت سره بالكل متصل دَحضرت عمر ﷺ روايت دې په كوم كښې چه دا الفاظ دی (عملت على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم فعملني) يعنى ما ته تنخواه راكړې شوه دې نه پس حديث نمبر (۳۷۵۱) كښې دَ حضرت مستوردبن شداد ﷺ روايت دې په كوم كښې چه دا الفاظ دی (من كان لنا عاملا فليكتسب زوجةً فان لم يكن له خادم فليكتسب خدما الخ)

③ دَ مستدرك حاكم هغه روايت دليل دې دَ كوم الفاظ چه دا دی (انه عليه السلام استعمل عتاب بن اسيد على مكة فتوفى النبى صلى الله عليه وسلم وهو عامل عليها وفرض النبى صلى الله عليه وسلم له اربعين اوقية فى سنة)

④ ټول خلفاء او قضاة اوعساكر المسلمين تنخواهګاني اخستې دی چه دَ سلف صالحين دَ زمانې نه راروان دی اودَ فقهاؤ په دې اتفاق دې چه "لابأس برزق القاضى"

**دبعضې فقهاؤ قول او دهغې تضعيف:** اودَ بعضې فقهاؤ خيال دې چه دَ شروع نه دې قاضى او حاكم دَ تنخواه او معاوضه شرط نه لګوی بلكه په رضادې كارشروع كړی بيادې حاكم دَهغه دَپاره وظيفه مقرركړی خو په دغه رضاكارانه معامله بندې دا اعتراض راؤچتيږی چه دا يوه معامله ده. يوه معاهده اومعاقده ده نودغه شان مجهول معاقده به څنګه جائزشی بل كه قاضى پخپله فقيروی اودَ حكومت دَ طرف نه وظيفه هم نه وی نو په دې سره به دَ قضاء دَعهدې توهين تذليل اوتحقيركيږی. لهذا دَ پورتنو څلورو واړو دلائلو په رڼا كښې متاخرين فقهاء معاوضه اخستل دَ نه اخستلو نه غوره ګرځولی دی دې دَپاره چه بيا په دې عهده باندې نوړو راتلونكوته پريشانی نه وی.

**د شرعی منصب په نه ختميدو د اجرت عدمِ جواز:** ① كه دَ شريعت يومنصب داسې دې چه دَاجرت اخستلو وركولو نه بغيرنه ختميږی. نو په داسې اطاعت باندې اجرت اخستل جائزنه دی مثلاً دَ تراويح په ختم قرآن باندې اجرت اخستل ناجائزدی.

ختمات فى المحافل وغيره داسې امور دی چه دَدې په ختميدو باندې دَ شريعت هيڅ يومنصب نه ختميږی نو په داسې طاعاتو باندې اجرت اخستل وركول جائزنه دی. تراويح خو دَختم قرآن په ځائې وړو سورتونو سره هم كيدلې شی.

**د شرعی منصب په ختميدو د اجرت د اخستو جواز:** مفتی شفيع رحمه الله ليكلی دی دَ مناصب شريعيه نه يومنصب كه دَ اجرت نه بغيرختميږی نودَ شريعت دَ منصب بچ كولودَپاره اجرت اخستل وركول جائزدی. مثلاً امامت، قضاء، اذان، تدريس اوتعليم كه چرته بغيرد معاوضې پريخودې شی نو ټول مناصب به ختم شی. په دې وجه متاخرين علماء استيجار على الطاعة دَدې مجبورئی دَ وجې جائزګرځولی دی.

**په دینو امورو اجرت اخستونکی ته دوه اجرونه:** علامه شامی رحمه الله لیکلی دی چه د دین په کارباندې معاوضه اخستونکی ته دوه ثوابونه ملاویږی یوثواب په دې چه هغه د خپلو بچود کسب فریضه پوره کوی او بل په دې وجه چه دا سړې د دین دخوزولوپه خدمت کښې لګیادې

**د ناپوهه خلقو اعتراض او د هغې رد:** اوس چه کوم ناپوهه خلق اعتراض کوی چه دا علماء په طاعاتو باندې اجرت اخلی ناجائز دې نو پخپله دا اعتراض غلط دې بلکه دا د هغه خلقو خیال اومنصوبه ده چه د اسلام اودین داخه لړ ډیرکار کیږی داهم بندشی په دې وجه مفتی محمد شفیع رحمه الله لیکلی دی چه کوم خلق دا اعتراض کوی هغه ملحداوبې دینه خلق دی

**د قاضی دپاره د تحفو او ډالو د اخستلو او دعوت د قبلولو د جواز صورتونه:** ① صاحب : هدایه لیکلی دی چې قاضی دخپلو هغه دوستانونه هدیه اخستې شی چه د قضاء منصب ته د راتلونه وړاندې به ئی هغه ته ورکولې ددې نه علاوه جائزنه دی

② دقاضی دخپلوانونه هدیه اخستلې شی ځکه چه دا صله رحمی ده کومه چه ماتولې نه شی

③ قاضی دهغه خلقو د خوراك دعوت قبلولې شی کوم چه دهغه خپلوان وی یا دوستان وی او د اول نه ئی عادت وو

④ که عام دعوت وی که قاضی راځی اوکه نه راځی هغه د دعوت پروګرام کولی شی قاضی سره ئې څه تخصیص نه وی نوقاضی دپاره شرکت جائز دی

**قاضی دپاره د دعوت د نه قبلولو صورتونه:** ① که د دعوت کونکی داخیال وی که قاضی نه راځی نو هغه به دعوت نه کوی نو په داسې دعوت کښې قاضی له تګ صحیح نه دې

② قاضی دداسې سړی دعوت هم نه شی کولې چه عدالت کښې په څه مقدمه کښې پیش کیدونکې وی اودا خبره ده چه دواړه خصمین دعوت کښې راؤغواړی بل قاضی به د خصمین په مینځ کښې کینولو کښې اوړلوراوړلو کښې هم مساوات قائم کوی

**تنبیه:** بهرحال سرکاری حکمرانانوته دډیر احتیاط ضرورت دې ځکه چه په قومی دولت کښې دخیانت کولونه توبه کول هم آسان نه دی چه د چاچاحق په کوم کوم ځائی کښې وهلې وو داحساب ډیرزیات مشکل دې

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۲۷٤٥] د نبی علیه السلام ورکړه او منع**

۳۷٤٥-[۱] (¹) ①عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "②«مَا أُعْطِيكُمْ وَلَا أَمْنَعُكُمْ، أَنَا قَاسِمٌ أَضَعُ حَيْثُ أُمِرْتُ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①حضرت ابوهريره ﷛ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ②زه نه خو تاسو ته درکوم او نه تاسو محروم کوم زه خو صرف تقسيمونکی يم چې کوم ځای ماته د اينودلو حکم شوی دی زه يې هلته اږدم (بخاري)

**حل اللغات** ①قَاسِمٌ: تقسيمونکې. ②أَضَعُ: ايږدم.

**تسهيلات:**

**قوله:** أُعْطِيكُمْ وَلَا أَمْنَعُكُمْ:

**د نبی کريم ﷺ د تقسيم بنياد:** يعنی زه په خپل اختيارسره نه چاته څه ورکوم اونه منع کوم دمال دتقسيم باره کښې چه زه څه کوم هغه دالله تعالی د حکم مطابق وی د الله تعالی چه کوم ځائی حکم وی زه هلته ورکوم اوچرته چه حکم نه وی زه هلته نه ورکوم زه خو صرف ويشونکې اوتقسيم کونکې يم ورکونکې خو د الله تعالی ذات دې

**[۲۷٤٦] په قومی مال کښې د ناجائزه تصرف سزا**

۳۷٤٦-[۲] (²) ①وَعَنْ خَوْلَةَ الْأَنْصَارِيَّةِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "②«إِنَّ رِجَالًا يَتَخَوَّضُونَ فِي مَالِ اللّٰهِ بِغَيْرِ حَقٍّ، ③فَلَهُمُ النَّارُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①او بي بي خوله انصاريه وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ②ډير خلق د الله په مال کې ناحق تصرف کوي يعنی زکوٰة غنيمت او د بيت المال کې د امام او حکمران د اجازت نه بغير تصرف کوي او خپل حق او خپل محنت نه زيات وصول کوي ③هغوی به د قيامت په ورځ د دوزخ د اور سزا وار وي (بخاري)

**حل اللغات:** ①يَتَخَوَّضُونَ: مشغوليږی. تصرف کوی.

**تسهيلات:**

**قوله:** خولة الأنصارية خوله دوه دی ، يو خوله بنت ثامر بله خوله بنت ثعلبه کومه چې د اوس ابن صامت ﷛ زوجه محترمه ده دلته ترې خوله بنت ثامر مراد ده. دا خوله بنت ثامر د قبيله دانصارو قبيلې سره تعلق ساتی ددې احاديث اهل مدينه کښې زيات دی. ددوئ

¹) اخرجه البخاری فی کتاب فرض الخمس/باب قول الله تعالی: {فأنّ لله خمسه وللرّسول} [الأنفال: ٤١] " (رقم-٣١١٧)
²) اخرجه البخاری فی کتاب فرض الخمس/باب قول الله تعالی: {فأنّ لله خمسه وللرّسول} [الأنفال: ٤١] " (رقم-٣١١٨)

نه نعمان بن ابی العیاش زرقی روایت کړې دې. او ځینو وئیلی دی چې دا د خوله قیس بنت بنی المالك بن النجار لور ده او ثامر د قیس لقب دې او صحیح خبره داده چې دا دوه جدا جدا ښځې دی

**قوله**: ان رجالا، ای من العمال وغیرهم یعنی چالره چې دزکوة وغیره وصولی دپاره مختلفو ځایونو ته لیږلې شی

**قوله**: یتخوضون امام راغب رحمه الله فرمائی چې خوض نه مراد «شروع فی الماء والمرور فیه» دی او دا آیت سره مقتبس دی «ذَرْهُمْ فِي خَوْضِهِمْ يَلْعَبُونَ»(انعام: ۹۱).

**قوله**: فی مال الله مال نه مراد بیت المال دې یا د زکوة مال دې یا د خراج یا د جزئې یا د غنیمت مال دې «مرقاة ج/7 ص/۲۴۴».

**قوله**: بغیرحق، أی بغیر إذن من الإمام یعنی د امام د اجازت نه بغیر او د خپل عمل او حق نه زیات اخستل نو د قیامت په ورځ به دسزا حقدار وی ځکه چې په ناحقه د مال اخستلو سزا جهنم ده.

**[۲۷٤۷] د حکمران دپاره د قومی خزانې ځخه د تنخواه اخستلو حق**

۲۷٤٧-[۳] ()[1] [۱]وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲]لَمَّا اسْتُخْلِفَ أَبُوبَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [۳]لَقَدْ عَلِمَ قَوْمِي أَنَّ حِرْفَتِي لَمْ تَكُنْ تَعْجِزُ عَنْ مَئُونَةِ أَهْلِي، [۴]وَشُغِلْتُ بِأَمْرِ الْمُسْلِمِينَ، [۵]فَيَأْكُلُ آلُ أَبِي بَكْرٍ مِنْ هَذَا الْمَالِ، [٦]وَيَحْتَرِفُ لِلْمُسْلِمِينَ فِيهِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: [۱]او بي بي عائشه رضی الله عنها وايي [۲]چې حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه چې خلیفه جوړ شو نو وي فرمایل [۳]ځما د قوم خلق یعنی مسلمانان پوهیږي چې ځما کارو بار ځما د اهل وعیال د اخراجاتو د پاره کافي وو [۴]او س زه د مسلمانانو په امورو کې مشغول شوی یم او د دې په وجه خپل کاروبار جاري نشم ساتلی [۵]نو د ابوبکر اهل وعیال به ددې بیت المال نه خوري [٦]او ابوبکر رضی الله عنه به د دې بیت المال امدني کې اضافه کوله د دې حفاظت کول او دا به د مسلمانانو ضروریات او نورو مصارفو کی د خرچ کولو په ذریعه د مسلمانانو خدمت کوي

**حل اللغات**: ①اسْتُخْلِفَ: چه خلیفه جوړشو. ②حِرْفَة: کاروبار. ③مَئُونَة: اخراجات. ضروریات ④يَحْتَرِفُ: کارکسب کوی

**تسهیلات**:

**د حدیث د بعضې جملو وضاحت**: ① "تَعْجِزُ" د عاجز راتلو په معنی کښې دې یعنی کاروبار عاجزنه وو زما د اهل وعیال د خرچ نه کم نه وو

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب البیوع /باب کسب الرّجل وعمله بیده (رقم-۲۰۷۰)

④ "فَيَأْكُلُ" دا دَ حق الخدمت طرف ته اشاره ده

④ "وَيَحْتَرِفُ" دَدې لفظ نه دلته خدمت مراد دې او فيه د ضمير مال طرف ته راجع دې. ملاعلی قاری رحمه الله دا ضمير "فيأكل" معنی مضمون او مفهوم طرف ته راواپس کړې دې.

**دبعضې صحابو کاروبارونه:** بهرحال حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه به د رېښمو اوکپړې کاروبار کولو او حضرت عمر رضي الله عنه دَ غلې تجارت کولو دَحضرت عثمان تجارت کهجورې او غنم وو او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما تجارت عطريات کښې وو

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۳۷۴۸] د تنخواه څخه د زيات اخستلو حرمت

۳۷۴۸-[۴] (١) [١] عَنْ بُرَيْدَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [٢] «مَنِ اسْتَعْمَلْنَاهُ عَلَى عَمَلٍ، فَرَزَقْنَاهُ رِزْقًا، [٣] فَمَا أَخَذَ بَعْدَ ذٰلِكَ فَهُوَ غُلُولٌ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] حضرت بريده رضي الله عنه د نبي کريم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي چې رسول کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل [٢] کوم سړی چې مونږ په څه کار مامور کی او هغه ته مو رزق ورکړ يعنی د هغه کار اجرت او تنخواه مو مقرره کړه [٣] د دې نه وروسته که هغه د خپلې تنخواه نه زيات څه وصول کړي نو دا مال غنيمت کې خيانت دی. (ابوداود)

**حل اللغات:** ① اِسْتَعْمَلْنَاهُ: عامل ئې جوړ کړو. مامور ئې کړو ② غُلُولٌ: خيانت

**تسهيلات:**

**د حديث د بعضې جملو وضاحت:**

**قوله:** من استعملناه يعنی ده لره د يوې عهدې عامل جوړ کړو

**قوله:** فرزقناه رزقا..... أي مقدارمعينا: معين مقدار کښې هغه وظيفه ورکړې شوه بيا دې نه پس نور مال ئې واخستو . يعنی ده په مال کښې خيانت اوکړو (مرقاة ج ۷ ص ۲۴۶)

## [۳۷۴۹] دَعامل اجرت

۳۷۴۹-[۵] (٢) [١] «وَعَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [٢] عَمِلْتُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٣]- فَعَمَّلَنِي». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] او حضرت عمر رضي الله عنه وايي [٢] د رسول کريم صلی الله علیه وسلم په زمانه کې زه عامل جوړ شوم [٣] او د هغه أجرت تنخواه ماته راکول شوه (ابوداود)

**حل اللغات:** ① عَمِلْتُ: عامل جوړ شوم. ② فَعَمَّلَنِي: نوزه ئې عامل جوړ کړم

[1] ) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الخراج والإمارة والفيء/باب في أرزاق العمّال(رقم-۲۹۴۳)

[2] ) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الخراج والإمارة والفيء/باب في أرزاق العمّال(رقم-۲۹۴۴) والنسائي في كتاب الزكاة/باب من آتاه الله عزّ وجلّ مالا من غير مسألة (رقم-۲۶۰۴)واحمد في المسند: ۵۲/۱

**تسهيلات:**

**قوله:** عملت، أي عملا من أعمال الأمارة يعنى د امارت د عملونو نه ئې يو عمل اوكړې

**قوله:** عهد رسول الله ﷺ، أي في زمانه وبأمره: د نبى كريم ﷺ په زمانه كښې يا د نبى كريم ﷺ په حكم سره.

**قوله:** فعملني، أي عطاني: او كله امام توربشتى رحمه الله فرمائى چې ددې مطلب دادې چې (أي اعطاني عمالتي وأجرة عملي) ماته ئې زما د كار اجرت راكړو (مرقاة ايضا) او كله علمني بمعنى ولاني هم مستعمل كيږي نو دې صورت كښې به مطلب دا وى چې (عملت في أمر المسلمين ومصالحهم عملا فأعطاني عمالتي) ما د امور مسلمين او ددوئ د مصالحو نه يو كار اوكړونو رسول كريم ﷺ ماته زما مزدوورى راكړه . اوله معنى حديث سره زياته مناسبه ده. (التعليق الصبيح ج/٤ ص/٢٨٤)

ددې حديث پاك نه معلومه شوه چې په دينى خدماتو باندې معاوضه اخستل درست دى په دې شرط چې هغه ضرورى وى.

**[٣٧٥٠] په قومى خزانه كښې بې اجازته تصرف باندې د غلول اطلاق**

حديث-[٢] ([1]) ① وَعَنْ مُعَاذٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ ②: «بَعَثَنِي رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَى الْيَمَنِ، ③ فَلَمَّا سِرْتُ، أَرْسَلَ فِي أَثَرِي، فَرُدِدْتُ. ④ فَقَالَ: " أَتَدْرِي لِمَ بَعَثْتُ إِلَيْكَ؟ لَا تُصِيبَنَّ شَيْئًا بِغَيْرِ إِذْنِي، فَإِنَّهُ غُلُولٌ ﴿وَمَنْ يَغْلُلْ يَأْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾ [آل عمران: ١٦١] ⑤ لِهَذَا دَعَوْتُكَ فَامْضِ لِعَمَلِكَ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت معاذ رضي الله عنه وايي ② چې رسول كريم ﷺ زه عامل جوړولو سره يمن ته وليږلم ③ هر كله چې زه يمن تلو د پاره روان شوم او لږ لرې ولاړم نو حضور ﷺ څما بلنې د پاره يو سړى په ماپسې را وليږلو زه واپس راغلم ④ نو حضور ﷺ راته وفرمايل ته پوهيږې چې ما په تاپسې دبللو د پاره سړى ولې درليږلى وو ما ددې اګاه كولو د پاره ته رابللى يې چې ته د خپل ملازمت د مودې په دوران كې څما د اجازت نه بغير څه څيز مه آخله څكه چې دا خيانت دى او كوم سړى چې خيانت وكړي هغه به د قيامت په ورځ هغه شي سره راځي چې په هغه كې هغه خيانت كړي دى ⑤ د دې ويلو د پاره ماته راغوښتې وې اوس ته په خپل كارپسې لاړ شه (ترمذي)

**حل اللغات:** ① سِرْتُ: روان شوم. ② فِي أَثَرِي: په ما پسې. ③ فَرُدِدْتُ: نو زه واپس راغلم ④ لَاتُصِيبَنَّ شَيْئًا: ته څه څيز نه مه رسيږه. مه اخله. ⑤ غُلُولٌ: خيانت ⑥ فَامْضِ: اوس ته لاړشه. ⑦ لِعَمَلِكَ: دخپل كار دپاره

[1] ) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الأحكام عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب ما جاء فى هدايا الأمراء (رقم-١٣٣٥)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَلَمَّا سِرْتُ أُرْسِلَ فِي أَثَرِي امام توربشتی رحمه الله فرمائی چې (أثرالشئ حصول مايدل على وجوده) د يو څيز د اثر حصول ددې په وجود باندې دلالت کوی . لکه په لاره د قدمونو نښې ددې د منزل مقصود دلالت کوی

**قوله:** وَمَنْ يَغْلُلْ يَأْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ امام طیبی رحمه الله فرمائی چې داشان احا دیث نور هم شته دې چې په هغې کښې نبی کریم ﷺ ارشاد فرمائیلې دې (لاألفين أحدكم يجئ يوم القيامة على رقبته بعيرله رغاء) څه چې تاسو کښې د قیامت په ورځ څوک داسې اونه ګورم چې هغه په دې حال کښې راشی چې دده په څټ باندې یو اوښ وی او هغه آوازونه کوی.

**[۳۷۵۱] بې تنخواه حاکم دپاره د بيت المال څخه د اخستلو حد**

۳۷۵۱–[۷] (۱) وَعَنِ الْمُسْتَوْرِدِ بْنِ شَدَّادٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: (۲) «مَنْ كَانَ لَنَا عَامِلًا فَلْيَكْتَسِبْ زَوْجَةً، (۳) فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ خَادِمٌ فَلْيَكْتَسِبْ خَادِمًا، (۴) فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَسْكَنٌ فَلْيَكْتَسِبْ مَسْكَنًا». (۵) وَفِي رِوَايَةٍ: «مَنِ اتَّخَذَ غَيْرَ ذَلِكَ فَهُوَ غَالٌّ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** (۱) او مستورد ابن شداد رضي الله عنه وايي ما د رسول الله ﷺ نه دا واوریدل (۲) کوم سړی چې مونږ عامل د یوځای حاکم جوړ کړي دی که د هغه ښځه نه وي نو هغه ته پکار دی چې هغه یوه ښځه په نکاح کړي (۳) که هغه سره څوک خادم غلام او وینځه نه وي نو هغه ته پکار دی چې هغه یو غلام واخلي (۴) او که د هغه څه کورنه وي نو هغه ته پکار دی چې یو کور جوړکړي یا واخلي (۵) او په یوروایت کې داهم دی که هغه د دې نه علاوه څه واخلي نو هغه به خیانت کونکی وي (ابوداود)

**حل اللغات:** (۱) عَامِل: حاکم. (۲) فَلْيَكْتَسِبْ: نو اودې ګټی (۳) مَسْكَنٌ: د اوسیدو ځائې. کور. (۴) غَالٌّ: خیانت کونکې

**تسهيلات:**

**قوله:** فَلْيَكْتَسِبْ زَوْجَةً:

**د مذکوره جملې مطلب:** مطلب دا چه حاکم دَ خپل زیرتصرف بیت المال نه دَ ښځې مهر اونان نفقه مقدار په اندازه دَ کفاف بغیراسراف روپئی اخستلې شی لیکن دا په هغه صورت کښې دی کله چه دَ دغه حاکم تنخواه دَ بیت المال نه مقررنه وی که چرې دَهغه تنخواه مقرروی نوبیابه دغه ضروریات هم دَهغې نه پوره کولې شی دغه شان دَ خپل

(۱) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الخراج والإمارة والفيء/باب فى أرزاق العمّال(رقم-۲۹۴۵)واحمد فى المسند: ۲۹۹/۴

اوسیدو ضروریات مطابق یوکور اوذخدمت دپاره یوغلام اوکه د غلامانودور نه وی نودهغې د قیمت مقدار د بیت المال نه اخستې شي که د ضرورت نه زیات اخلي نوحرام به وی ځکه چه ضرورتونه خویوه اوږده سلسله ده په دې وجه د ضابطې لاندې تنخواه مقررکول د نن صباد دور مطابق زیات بهتردی د مدارسو دمهتممینو حضراتو د پاره هم تنخواه مقررکول د عافیت سبب دی

**[۳۷۵۲] قومي خزانه کښي د خیانت حرمت**

۳۷۵۲-[۸] ()[۱] وَعَنْ عَدِيِّ بْنِ عَمِيرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-قَالَ: [۲] «يَاأَيُّهَا النَّاسُ! مَنْ عُمِّلَ مِنْكُمْ لَنَا عَلَى عَمَلٍ، [۳] فَكَتَمَنَا مِنْهُ مِخْيَطًا فَمَا فَوْقَهُ فَهُوَ غَالٌّ، [۴] يَأْتِي بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. [۵] فَقَامَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ، قَالَ: يَارَسُولَ اللّٰهِ! اقْبَلْ عَنِّي عَمَلَكَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عدي رضی الله عنه ابن عمیره وایي چې رسول کریم ﷺ یوه ورځ مسلمانانو ته په خطاب کولو سره وفرمایل [۲] اې خلقو! په تاسو کې چې کوم سړی زمونږ د طرف نه دیوکار عامل جوړ شي یعنی چې مونږ یې په څه خدمت مثلا زکوٰة وغیره وصولولو باندې مامور کړو [۳] او هغه د هغه کار آمدني نه د ستنې (سوئي) برابر یا د دې نه زیات زمونږ نه پټ کړي یعنی څه چې وصول کړي په هغه کې زمونږ د اجازت او علم نه بغیر لږ یا ډیر واخلي نو هغه خیانت کونکی دی [۴] او هغه به د قیامت په ورځ هغه خیانت کړي شي سره راځي [۵] په دې اوریدو سره یو انصاري اودریدلو او عرض یې اوکړو چې یارسول الله تاسو چې د وصولي کوم کار ماته حواله کړي دی هغه زما نه واپس واخلئ

**حل اللغات:** ① عُمِّلَ: عامل. حاکم جوړکړې شو. ② فَكَتَمَ: نو پټ ئې کړو. ③ مِخْيَط: دمیم په کسرې سره. ستن یا د ستنې برابر. ④ غَالٌّ: خیانت کونکي.

[۱] قَالَ: وَمَا ذَاكَ؟ قَالَ سَمِعْتُكَ تَقُولُ: كَذَا وَكَذَا [۲] قَالَ: وَأَنَا أَقُولُ ذٰلِكَ، مَنِ اسْتَعْمَلْنَاهُ عَلَى عَمَلٍ ; فَلْيَأْتِ بِقَلِيلِهِ وَكَثِيرِهِ [۳] فَمَا أُوتِيَ مِنْهُ أَخَذَهُ، وَمَا نُهِيَ عَنْهُ انْتَهَى» "رَوَاهُ مُسْلِمٌ، وَأَبُودَاوُدَ، وَاللَّفْظُ لَهُ.

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ وفرمایل ولې؟ هغه عرض اوکړو ما چې ستاسو نه داسې واوریدل یعنی تاسو چې د دې کار په سلسله کې کوم وعید بیان کړي دی د هغه په وجه خو فزده شوی یم ځکه چې دا کار د خطا نه خو خالي نه دی که زه په څه خطا کې مبتلا شم نو د قیامت په ورځ به څه جواب ورکوم [۲] حضور ﷺ وفرمایل هو زه دا وایم چې مونږ کوم سړی عامل مقرر کی هغه ته پکار دی چې هغه څه وصول کړي برابره خبره ده که هغه لږ وي یا زیات ټول دې مونږ ته راوړي [۳] او په هغه کې د اجرت تنخواه په طور چې څه هغه ته

---

[۱] ) اخرجه مسلم فی کتاب الإمارة/باب تحریم هدایا العمّال (رقم) ۳۰ - (۱۸۳۳) و ابو داود فی کتاب الأقضیة/باب فی هدایا العمّال (رقم-۳۵۸۱) واحمد فی المسند: ۱۹۲/٤

ورکول شي هغه دي واخلي او څه چې ورنه کول شي د هغه نه دي منع شي اوس ددي واضحي تنبيه نه وروسته کوم سړی چې هغه کار آنجام کوي هغه دي د دې ذمه واري قبوله کړي او کوم سړی چې دي شرائط سره د دې آنجام دهي کې خان معذوره وګني هغه دي دا ذمه واري نه قبلوي (مسلم ابوداود) الفاظ د ابوداود دي

**تسهیلات:**

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت عدی بن عمیره ﷛**: نوم ئی عدی دې اود پلار نوم ئی عمیرة دې نسب نامه ئی داسې ده عدی بن عمیرة بن فروة بن زرارة ابوزر الکندی دا کندی خضرمی دې.

**وفات**: دَ کوفې اوسیدونکې دې بیا جزیرې طرف ته لاړو او هم هلته وفات شو.

**مرویات**: دَ هغه نه ټول درې احادیث نقل دی یوېه مسلم شریف کښې دې باقی دوه په نورو کتابونو کښې دی.بخاری شریف کښې دَ هغه نه یوروایت هم نشته. (۳)

**قوله**: مخيطا، أي إبرة فما فوقه أي في القلة اوالكثرة اوالصغيرة اوالكبر امام طیبی ﷬ فرمائی چې دې خائې د حقارت پیش نظر مثال ورکول دی لکه څنګه چې الله ﷻ فرمائی چې (إِنَّ اللَّهَ لَا يَسْتَحْيِي أَنْ يَضْرِبَ مَثَلًا مَّا بَعُوضَةً فَمَا فَوْقَهَا) (البقرة: ۲۶)

**قوله**: اخذه وما نهي عنه: د کوم څیز د اخستلونه چې منع کړې شو بدې دهغې نه منع شئ امام طیبی ﷬ فرمائی چې (من استعملنا) دا تکریر په معنی او بیان مزید وضاحت کوی یعنی (أنا أقول ذلك ولا أرجع عنه فمن استطاع أن يعمل فليعمل ومن لم يستطع فليترك) کوم کس چې ددې کار طاقت لری نو هغه دې دا اوکړی ګنی بیا دې پریږدی چې کار کولو طاقت هم نه وی او ددې ذمه په خپل سر باندې اخلی

**[۳۷۵۴] رشوت اخستونکی او ورکونکی باندې لعنت**

۳۷۵۴-[۹] (۱) ①وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ②«لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ الرَّاشِيَ وَالْمُرْتَشِيَ» رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه**: ①او عبد الله ابن عمرو ﷠ وایي ②چې رسول کریم ﷺ په رشوت اخستونکی او رشوت ورکونکي دواړو باندې لعنت ویلی دی (ابوداود ابن ماجه)

**حل اللغات**: ①الرَّاشِيَ: رشوت اخستونکې. ②وَالْمُرْتَشِيَ: رشوت ورکونکې

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الأقضية/باب فی كراهية الرّشوة (رقم-۳۵۸۰) والترمذی فی كتاب الأحكام عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فی الرّاشی والمرتشی فی الحكم (رقم-۱۳۳۷) و ابن ماجه فی كتاب الأحكام /باب التّغليظ فی الحيف والرّشوة (رقم-۲۳۱۳) واحمد فی المسند: ۲/۱۶۴

۳۷۵۴-( ) ورواه الترمذي عنه وعن أبي هريرة.

**ترجمه**: ترمذي دا روايت د عبد الله ابن عمرو رضي الله عنه او ابوهريره رضي الله عنه نه

۳۷۵۵-( ) ورواه أحمد، والبيهقي في "شعب الإيمان" عن ثوبان، وزاد: "والرائش. يعني: الذي يمشي بينهما.

**ترجمه**: او بيهقي شعب الايمان كې د حضرت ثوبان رضي الله عنه نه نقل كړي دى او د بيهقي په روايت كې دا الفاظ هم دي چې حضور ﷺ هغه سړى چې د رشوت وركونكي او رشوت اخستونكي په مينځ كې واسطه جوړه شي په هغه هم لعنت ويلى دى

**حل اللغات**: ①الرَّائِشُ: چه د رشوت په معامله كښې خې راخى. د رشوت واسطه

**تسهيلات**:

**قوله**: لَعَنَ رَسُولُ اللهِ الرَّاشِيَ وَالْمُرْتَشِيَ:

**د رشوت تعريف**: رشوت هغه مال ته وائى چه يو حاكم ته دَ ابطال حق اودَ احقاق باطل دَپاره وركړې شى په كوم سره چه دَ نورو حق اووهلې شى يعنى دَ صاحب حق حق اووهلې شى اودَ رشوت په زور باندې هغه بل چاته وركړې شى كه رشوت دَخپل حق دَحصول او اثبات دَپاره وركړې شى يا دَ ظلم دفع كولو دَپاره وركړې شى نودا په حقيقت كښې يو تاوان دې دَ دې په جوازكښې كلام نشته دې ځكه چه دادَ خپل ځان نه دَ ظلم دفع كول دى

**قوله**: الرَّاشِيَ وَالْمُرْتَشِيَ:

**د خپل حق حاصلولو دپاره د رشوت وركولو حكم**: رشوت وركونكى ته راشى وائى اودَ اردو والا عوام راشى رشوت اخستونكى ته وائى دادَ عوامو غلطى ده ځكه چه رشوت اخستونكى ته عربى كښې مرتشى وائى او وركونكى ته راشى وائى

**[۳۷۵٦] د صالح انسان دپاره د حلال مال ښه والى**

۳۷۵٦-[۱۰] ( )١ «وعن عمرو بن العاص رضي الله عنه، قال أرسل إلي رسول الله - صلى الله عليه وسلم -: ٢ "أن اجمع عليك سلاحك وثيابك، ثم ائتني. ٣ قال: فأتيته وهو يتوضأ. ٤ فقال: يا عمرو! إني أرسلت إليك لأبعثك في وجه يسلمك الله ويغنمك، ٥ وأرغب لك رغبة من المال.

**ترجمه**: ١ او عمرو ابن العاص رضي الله عنه وايي چې يوه ورځ رسول الله ﷺ د يو سړي په ذريعه ماته دا پيغام را وليږلو ٢ چې ته خپل هتيار او كپړې راجمع كړه يعنى د سفر تياري وكړه او بيا ماته راشه ٣ حضرت عمرو رضي الله عنه وايي ما د رسول الله ﷺ د فرمان مطابق د سفر

[۱] ) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الأحكام عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فى الرّاشى والمرتشى فى الحكم (رقم-۱۳۳۶)

[۲] ) اخرجه احمد فى المسند ۵/ ۲۷۹ والبيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۵۵۰۳

[۳] ) اخرجه البغوى فى شرح السنه رقم الحديث ۲٤۹۵،واحمد فى المسند: ۱۹۷/٤

تیاري کولو سره د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شوم حضور ﷺ هغه وخت اودس کوی ۴ خما په لیدو سره یې وفرمایل اې عمرو! ماتاته سړی درلیږلو سره ځکه مې راغوښتی یې چې زه تا یوطرف ته د یوځای حاکم یا عامل جوړولو سره ولیږم الله ﷻ به تاته سلامتي او مالِ غنیمت درکړي ۵ او زه هم تاته څه مال درکړم.

**حل اللغات:** ① بِلَاحَكَ: خپله وسله. ② وَجْهٍ: طرف ③ يُسَلِّمُكَ: سلامتی به درکړي. ④ وَيُغَنِّمُكَ: مال غنیمت به درکړي. ⑤ زَغْبَةً: دَ باب فتح نه دَ لوښی وغیره ډکولو په معنی کښې راځی څه مال.

١ فَقُلْتُ: يَارَسُولَ اللهِ! مَاكَانَتْ هِجْرَتِي لِلْمَالِ، وَمَاكَانَتْ إِلَّا للهِ وَرَسُولِهِ. ٢ قَالَ: نِعِمَّا بِالْمَالِ الصَّالِحِ لِلرَّجُلِ الصَّالِحِ» "٣ رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ. وَرَوَى أَحْمَدُ نَحْوَهُ. ٤ وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَ: "«نِعْمَ الْمَالُ الصَّالِحُ لِلرَّجُلِ الصَّالِحِ»".

**ترجمه:** ١ ما عرض اوکړو یارسول الله خما هجرت کول یعني خما ایمان قبلول خالصةً لله وو او خما هجرت صرف دالله دپاره او دهغه د رسول ﷺ د خوشنودي او رضا د پاره وو ٢ حضور ﷺ وفرمایل نیک بخت سړي د پاره ښه مال ښه څیز دی ٣ شرح السنه، امام احمد رحمه الله هم دغه شان روایت نقل کړي دی ٤ او د هغوی په روایت کې دا الفاظ دي چې نیک سړي د پاره ښه مال ښه څیز دی.

**حل اللغات:** ⑥ نِعِمَّا: ډیر ښه دی.

**تسهیلات: قوله: يُسَلِّمُكَ اللهُ:**

**د حضرت عمرو بن عاص رضی الله عنه بحیثیت ګورنر د مقرر کیدلو قصه:**

یعنی زه تا دَ جهاد دَپاره لیږم یا تا عامل جوړولو سره یوطرف ته روانوم الله تعالی به تاپه حفاظت کښې هم ساتی او تاته به دَ غنیمت مال هم درکوی

**د عمرو بن العاص مختصر تعارف:** حضرت عمرو بن العاص رضی الله عنه په ۵ هجری کښې مسلمان شوې وو او حضرت خالدبن ولید رضی الله عنه په ملګرتیا کښې دَمدینې منورې طرف ته هجرت کړې بعضې وئیلی دی چه ۸ هجری کښې مسلمان شوې وو نبی کریم هغه دَ عمان ګورنرمقررکړې وو کیدې شی چه په دې حدیث کښې هم دَ هغه تقرر قصه ده

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۳۷۵۷] د سفارش کونکی څخه د هدیه د قبلولو حرمت**

۳۷۵۷–[۱۱] (١) ١ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢ «مَنْ شَفَعَ لِأَحَدٍ شَفَاعَةً، ٣ فَأَهْدَى لَهُ هَدِيَّةً عَلَيْهَا، فَقَبِلَهَا; ٤ فَقَدْ أَتَى بَابًا عَظِيمًا مِنْ أَبْوَابِ الرِّبَا». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابو امامه رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول کریم ﷺ وفرمایل ٢ کوم سړی چې یو بادشاه یا حاکم ته د یو سړي مثلًا د زید سفارش کوي ٣ او هغه زید هغه سفارش

(١) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد/باب فی فضل من قتل کافرا (رقم-۲۴۹۵)

کونکي ته د سفارش عوض کې یو څیز بطور هدیه او تحفه راولیږلو. او هغه سفارش کونکي هغه تحفه قبوله کړي ۴ نو هغه د سود دروازو کې په یوه لویه دروازه داخل شو (ابوداود).

**حل اللغات:** ① شَفَاعَةً: سفارش.

**تسهیلات: قوله:** مِنْ أَبْوَابِ الرِّبَا:

**په حدیث کښې په رشوت باندې د ربا د اطلاق وجه:** په دې حدیث سره چه د سفارش کوم صورت بیان کړې شوي دې د هغې په معاوضه کښې چه کوم څه اخستلې شي هغه د رشوت په زمره کښې راځي مګر دې ته د رشوت په ځائې د سود په نوم سره په دې وجه یاد کړې دې چه دا یوه داسې ګټه ده چه سفارش کونکي ته بغیر د معاوضې حاصله شوې ده او د سود تعریف ملاعلی قاری رحمه الله د دې حدیث په ضمن کښې داسې کړې دې "وهو في الشرع فضل خال من عوض شرط لاحد العاقدين" یعنی سود د هغه زیاتی ګټې نوم دې چه د مالی معاوضې نه بغیر معامله کونکونه یو کس ته ملاؤ شوې وی

## [۴] بَابُ الْأَقْضِيَةِ وَالشَّهَادَاتِ

### د فیصلو او شهادتونو بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثمانية وعشرون حديثاً مشتملة على ثلاث عشر مسئلة:**

① البينة على المدعي واليمين على من أنكر: ۱، ۶، ۷، ۱۲، ۱۸.

② قباحة اليمين وشهادة الزور: ۲، ۳، ۷، ۱۰، ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۲۱، ۲۲.

③ عدم تحليل الحرام بحكم الحاكم: ۴، ۱۳.

④ النهي عن الدعوى الكاذبة: ۸.

⑤ الزجر لمن كثر خصامه: ۵.

⑥ فضيلة الشهادة بالحق: ۹.

⑦ القرعة في اليمين: ۱۰، ۱۶.

⑧ حكم المدعين: ۱۳، ۱۴، ۱۵، ۱۶.

⑨ طريق التحليف: ۱۷.

⑩ من لا تقبل شهادتهم: ۲۳، ۲۴، ۲۵.

⑪ وجوب الكيس والتيقظ عند الدعوى: ۲۶.

⑫ جواز الحبس في التهمة: ۲۷.

⑬ طريق قعود الخصمين: ۲۸.

**تسهیلات: قوله: الْأَقْضِيَةِ:**

**د اقضیه مفهوم:**

او قضایا دَ قضیة جمع ده او قضیه هغه نزاعی معامله ته وائی کوم چه حاکم او قاضی سره په دې غرض سره اوړی دې دَ پاره چه دَ فریقینو په مینځ کښې دغه جګړه ختمولو دَپاره څه حکم او فیصله اوکړی

**قوله: وَالشَّهَادَاتِ:**

**د شهادات مفهوم:**

دَ شهادة جمع ده. ګواهی ورکولوته شهادت وائی او په اصطلاح کښې فریقینو نه دَ یو فریق حق دَ بل فریق په مقابله ثابتولو نوم شهادت دې.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۳۷۵۸] بغیر د ګواهانو د دعوې عدم اعتبار**

۳۷۵۸-[۱] ( ) [۱] عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، قَالَ: [۲] " «لَوْ يُعْطَى النَّاسُ بِدَعْوَاهُمْ، [۲] لَادَّعَى نَاسٌ دِمَاءَ رِجَالٍ وَأَمْوَالَهُمْ، [۳] وَلَكِنَّ الْيَمِينَ عَلَى الْمُدَّعَى عَلَيْهِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**توجمه:** [۱] د حضرت ابن عباس ﷺ نه روایت دی چې نبي کریم ﷺ وفرمایل [۲] که خلقو ته خاص د هغوی په دعوی د هغوی مدعا ورکول شي یعنی که مدعي نه نه خو شاهد طلب شي او نه مدعا علیه نه تصدیق وشي بلکه خاص د هغه په دعوی د هغه د مال او جان داقسم نه مدعا ورکول شي [۲] نو خلق به د خپلو سرو خون او د خپل مال او د دروغو دعوی کول شروع کړي [۳] نو یوازي د مدعي بلا شاهدی بیان معتبر نه دی لیکن قسم اخستل په مدعا علیه ضروري دی (مسلم)

**حل اللغات:** ① يُعْطَى: ورکولې شی. ② الْمُدَّعَى عَلَيْهِ: په چا چه دعوی شوې وی.

[۱] وَفِي شَرْحِهِ لِلنَّوَوِيِّ أَنَّهُ قَالَ: وَجَاءَ فِي رِوَايَةِ الْبَيْهَقِيِّ بِإِسْنَادٍ حَسَنٍ، أَوْ صَحِيحٍ، زِيَادَةٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ مَرْفُوعًا: [۲] " «لَكِنَّ الْبَيِّنَةَ عَلَى الْمُدَّعِي وَالْيَمِينَ عَلَى مَنْ أَنْكَرَ» ".

**توجمه:** [۱] او نووي رحمه الله په خپل کتاب شرح مسلم کې لیکلی دی د بیهقي رحمه الله په روایت کې کوم چې حسن یا صحیح اسناد نه منقول دی حضرت ابن عباس ﷺ نه مذکوره بالاحدیث کې بطریق مرفوع د دې الفاظو اضافه هم منقوله ده [۲] یو شاهد پیش کول د

---

( ) اخرجه البخاری فی کتاب تفسیر القرآن/باب {إنّ الّذین یشترون بعهد الله وأیمانهم ثمنا قلیلا. أولئک لا خلاق لهم} [آل عمران: ۷۷] : لا خیر{الیم} [البقرة: ۱۰] : «مؤلم موجع من الألم. وهو فی موضع مفعل» (رقم-۴۵۵۲) ومسلم فی کتاب الأقضیة/باب الیمین علی المدّعی علیه (رقم-۱ - (۱۷۱۱)

مدعي په ذمه دی او قسم اخستل د هغه سړي حق دی چې انکاروکړي يعنی مدعا عليه

**حل اللغات:** ③أَنْكَرَ: چه انکار اوکړی.

**تسهیلات: قوله:** لَوْيُعْطَى النَّاسُ بِدَعْوَاهُمْ:

**د حرف لو وضاحت:** دا لوفرضيه دې او يعطی دَ مجهول صيغه ده يعنی فرض کړه که خلقوته صرف دَهغوی دَ دعوی په بنياد باندې مال ورکول شروع شی اودَ گواهانوضرورت نه وی نوخه خلق به دَ نورو ذاتی مالونه اودهغوی ځانونه اخستل شروع کړی هم دَدې دَپاره دَ اسلام دا قطعی ضابطه ده چه اول دَمدعی نه گواه اوغوښتې شی اوکه گواه موجودنه وی نوبيابه مدعی ته قسم ورکولې شی.

**په حديث کښې د گواهانو د نه ذکر کولو وجه:** په حديث کښې صرف د قسم ذکر دې د گواهانو نشته ځکه مسئله ډيره واضحه اومشهوره وه په دې وجه داذکرنه کړې شو اودَمنکردَپاره دَ قسم ذکراوکړې شو. صاحب مشکوة دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دَ يوروايت اضافه کولوسره دا مفهوم او گواهانو اودَ قسم مضمون مکمل کړو اودَ صاحب مشکوة طرز پوره کتاب کښې عموماًهم دغه دې چه دَ يومجمل حديث تفسير راتلونکی بل حديث سره کوی.

## [۳۷۵۹] په دروغه قسم خوړونکی باندې دالله تعالی غصه

۳۷۵۹–[۲] ()[۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[۲] «مَنْ حَلَفَ عَلَى يَمِينِ صَبْرٍ وَهُوَ فِيهَا فَاجِرٌ يَقْتَطِعُ بِهَا مَالَ امْرِءٍ مُسْلِمٍ، [۳] لَقِيَ اللّٰهَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَهُوَ عَلَيْهِ غَضْبَانُ» [۴]" فَأَنْزَلَ اللّٰهُ تَصْدِيقَ ذٰلِكَ: ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا﴾ [آل عمران: ۷۷] إِلَى آخِرِ الْآيَةِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] و حضرت ابن مسعود رضی الله عنه وايي چې رسول کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل [۲] کوم سړی چې په يوشي باندې مقيد کيدو سره يعنی د حاکم مجلس کې محبوس کيدو سره قسم واخستلو او هغه په خپل قسم کې دروغجن وي چې د هغه مقصد قسم اخستوسره د يو مسلمان سړي مال حاصلول وي [۳] نو هغه به د قيامت په ورځ د الله جل جلاله سره په داسې حال کې ملاقات کوي چې الله جل جلاله به په هغه غضبناک وي [۴] نو د دې ارشاد په تصديق کې الله جل جلاله دا آيت نازل کړو اِنَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَاَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيْلًا الخ.

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب تفسير القرآن/باب {إنّ الّذين يشترون بعهد الله وأيمانهم ثمنا قليلا. أولئک لا خلاق لهم} [آل عمران: ۷۷] : لا خير{أليم} [البقرة: ۱۰] : «مؤلم موجع من الألم. وهو فی موضع مفعل» (رقم-۴۵۴۹) ومسلم فی کتاب الإيمان/باب وعيد من اقتطع حق مسلم بيمين فاجرة بالنّار (رقم-۲۲۰ - (۱۳۸) والترمذی فی کتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب: ومن سورة آل عمران(رقم-۳۰۱۲) و ابن ماجه فی کتاب الأحکام / باب من حلف علی يمين فاجرة ليقتطع بها مالا (رقم-۲۳۲۳)

**حل اللغات:** ①يَمِينِ صَبْرٍ: محبوس کيدو، او راايسارولو سره قسم اخستل. ②فَاجِرٌ: دروغجن. ③يَقْتَطِعُ: قطع کوی. غصب کوی. حاصلوی. ④غَضْبَانُ: غضبناک. غصه

**تسهيلات: قوله:** مَنْ حَلَفَ عَلَى يَمِينِ صَبْرٍ:

**د يمين صبر دريې مطلبونه:** ① دَ يمين صبر نه مراد يمين کاذب دې مثلاً يو سړي دَ بل سړی مال ضائع کولو نيت سره دَ دروغوقسم خوری دا يمين صبر دې دامفهوم آسان هم دې اودَ حديث دَ راتلونکو جملو نه دَدې تائيدهم کيږی ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه دَ حديث مطلب دلته مراد دې او په حديث کښې دَ آيت تکميل داسې دې ﴿ أُولَٰئِكَ لَا خَلَاقَ لَهُمْ فِي الْآخِرَةِ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ وَلَا يَنظُرُ إِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾

② يمين صبر دلته حبس اوقيد کولوپه معنی کښې مستعمل شوې دې لهذا دَ حديث مطلب داشو چه يوسړی ته حاکم په عدالت کښې دَ يوې مقدمې په سلسله کښې دَ قسم خوړلودپاره راحصار کړو. دَعدالت کاروائی په دې قسم باندې موقوف ده دېخواحاکم هغه ته دَ قسم خوړلو حکم ورکړو دَ کوم په وجه چه په هغه باندې قسم خوړل اطاعت دَ امير لازم هم دې په داسې قسم کښې چه کوم سړې دروغ وائی نوهغه به ډير گناهگار شي

③ دَ يوسړی نه دَ قسم خوړلو مطالبه اوکړې شوه اودَ هغه په قسم سره دويم سړې قيد کيدې شی. هغه دَ دروغو قسم اوخوړلودَ کوم په نتيجه کښې بل سړې راګيرشو داقسم خوړل ډيره ګناه ده.

**[۳۷۶۰] دقسم په ذريعه دچا په مال ناحقه قبضه کونکی باندې دجنت حرمت**

**۳۷۶۰–[۳] (¹)** [۱] وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] " «مَنِ اقْتَطَعَ حَقَّ امْرِءٍ مُسْلِمٍ بِيَمِينِهِ: [۳] فَقَدْ أَوْجَبَ اللَّهُ لَهُ النَّارَ، وَحَرَّمَ اللَّهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ. [۴] فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ: وَإِنْ كَانَ شَيْئًا يَسِيرًا يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ [۵] قَالَ: وَإِنْ كَانَ قَضِيبًا مِنْ أَرَاكٍ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**توجمه:** [۱] و حضرت ابو امامه رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] کوم سړی چې د خپل دروغ قسم په ذريعه د يومسلمان سړي حق غصب کی [۳] بلاشبه الله تعالى د هغه د پاره اور واجب کی او په هغه يي جنت حرام کی [۴] يوسړي په دي اوريدو سره حضور صلى الله عليه وسلم ته عرض اوکړو اګر چې هغه حق څه معمولی شی وي؟ [۵] حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل هو اګر چې دمسواك د وني يوه ټکره يعنی مسواك وي (مسلم)

**حل اللغات:** ①اقْتَطَعَ: غصب کوی. حاصلوی. ②قَضِيبًا: څه حصه دمسواک د ووني.

③أَرَاكٍ: يو قسم وونه، د مسواک وونه. دکيکر وونه

---

¹) اخرجه مسلم فی کتاب الإيمان/باب وعيد من اقتطع حقّ مسلم بيمين فاجرة بالنّار (رقم-۲۱۸ - (۱۳۷) والنسائی فی کتاب آداب القضاة/باب القضاء فی قليل المال وکثيره(رقم-۵٤۱۹) ومالک فی الموطا کتاب الأقضية/باب ما جاء فی الحنث علی منبر النّبیّ صلّى الله عليه وسلّم (رقم-۱۱) واحمد فی المسند:۵/۲۶۰

**تسهیلات: قوله:** أَوْجَبَ اللّٰهُ لَهُ النَّارَ:

**د مذکوره جملې دوه مطلبونه:**

① دَ داسې سړی سزا دَ دغه بدعمل په وجه بیشکه هم دغه دوزخ دې لیکن په قیامت کښې فیصله په معجون مرکب باندې کیږی دَ یو عمل په خاصیت سره مجموعی فیصله نه کیږی اود اهم ممکن دی چه الله تعالی دَ دغه سړی مغفرت اوفرمائی

② ددې حدیث تعلق هغه سړی سره دې چه دَ یو مسلمان حق خوړل حلال گنړی دَ ده دپاره دوزخ واجب دې او جنت په ده باندې حرام دې

**قوله:** وَحَرَّمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ:

**په عدمِ دخول جنت کښې تاویل:** یعنی دا سړې به په اول ځل خلاصې بیامونددنکو سره جنت ته نه ځی بلکه دَ سزا خوړلونه پس به ځی. ځکه چه داَهل سنت په نیز مرتکب کبیره مخلد فی النار نه دې. الکاشف: **۷/۲۹۶.**

**[۳۷۶۱] د قاضی په فیصله د بل د حق عدم حلت**

٣٧٦١-[٤]()① وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ② "«إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ، ③ وَإِنَّكُمْ تَخْتَصِمُونَ إِلَيَّ، ④ وَلَعَلَّ بَعْضَكُمْ أَنْ يَكُونَ أَلْحَنَ بِحُجَّتِهِ مِنْ بَعْضٍ، ⑤ فَأَقْضِي لَهُ عَلَى نَحْوِ مَا أَسْمَعُ مِنْهُ، ⑥ فَمَنْ قَضَيْتُ لَهُ بِشَيْءٍ مِنْ أَخِيهِ، فَلَا يَأْخُذَنَّهُ، ⑦ فَإِنَّمَا أَقْطَعُ لَهُ قِطْعَةً مِنَ النَّارِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او بی بی ام سلمه رضی الله عنها وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل ② په دې کې شک نشته چې زه یو انسان یم ③ او تاسو خپلې قضیې جګړې ماته راوړئ ④ ممکنه ده په تاسو کې یو سړی خپل دلائل پیش کولو کې ددویم نه زیات د فصیح او بلیغ بیان حامل وي ⑤ او زه د هغه مدلل بیان اوریدو سره د هغه مطابق فیصله وکړم ⑥ نو هغه سړی چې زه د هغه په حق کې د یو داسې شي فیصله وکړم چې په حقیقت کې د هغه د مسلمان ورور وي نو هغه څیز دې نه اخلي ⑦ ځکه چې په داسې صورت کې ګویا زه د هغه په حق کې د اور د یوې ټکړې فیصله کوم (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① تَخْتَصِمُونَ: تاسو قضیې او جګړې راوړئ. ② أَلْحَنَ: زیات فصاحت او صفایئ سره خبره کوی ③ فَلَا يَأْخُذَنَّهُ: نو نه دې اخلی. ④ قِطْعَةً: حصه. ټکړه

---

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب الحیل/باب إذا غصب جاریة فزعم أنّها ماتت، فقضی بقیمة الجاریة المیّتة، ثمّ وجدها صاحبها فهی له، ویردّ القیمة ولا تکون القیمة ثمنا (رقم-۶۹۶۷) ومسلم فی کتاب الأقضیة/باب الحکم بالظّاهر، واللّحن بالحجّة (رقم-٤ - (۱۷۱۳) و ابو داود فی کتاب الأقضیة/باب کیف القضاء (رقم-۳۵۸۲) والترمذی فی کتاب الأحکام عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب ما جاء فی التّشدید علی من یقضی له بشیء لیس له أن یأخذه (رقم-۱۳۳۹)والنسائی فی کتاب آداب القضاة/باب الحکم بالظّاهر (رقم-۵٤۰۱) وابن ماجه فی کتاب الأحکام / باب قضیّة الحاکم لا تحلّ حراما ولا تحرّم حلالا (رقم-۲۳۱۷)واحمد فی المسند:۶/۲۹۰

**تسهیلات:**

**قوله إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ:** یعنی زه یو انسان یم عالم الغیب نه یم زه ظاهر ته گورم فیصله کوم لهذا سهو او نسیان یعنی هیره بشری تقاضه ده یو انسان عالم الغیب خو وی نه یو سړی به په خپل ظاهری الفاظو سره او په زوردار کلام سره خپله مدعا ثابته کړی او په حقیقت کښې به هغه په دغه خبره کښې په حق باندې نه وی لیکن هغه به د قوت بیان د وجې نه په حق باندې معلومیږی نوزه به د هغه په حق کښې فیصله کوم حالانکه حق به د یوبل سړی وی نو یاد لرئی په داسې غوره ژبه چه زه هغه نه څه هم ورکړم هغه به د دوزخ ټکړه وی

**د قاضی د فیصلې ظاهراً او باطناً نفاذ کښې ۲ مذاهب:**

اوس دلته د فقهاؤ اختلاف دې چه قضاء د قاضی صرف په ظاهری کښې نافذ ده یا په ظاهر او باطن دواړو کښې نافذ ده

① د جمهورو او صاحبینو په نیزقضاء د قاضی ظاهراً نافذ ده باطناً نافذ نه ده

② امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه قضاء د قاضی ظاهراً او باطنًا دواړه شان نافذ ده په ظاهر او باطن کښې د نافذ کیدو مطلب دادې چه په ظاهری شریعت کښې په دنیا کښې څنګه چه هغه فیصله نافذ کیږی په آخرت کښې یعنی د الله تعالی په نیز به هم هغه فیصله صحیح شمیرلې کیږی

**د محل د اختلاف:** اوس د محل اختلاف تعیین ضروری دې چه د فقهاؤ په کوم ځائی کښې اختلاف دې او په کوم ځائی کښې اتفاق دې نو دا ګنړل پکاردی که چرې قضاء د قاضی په املاک مرسله کښې وی نو په اتفاق سره به ظاهراً قضاء نافذ وی او باطن به نافذ نه وی اوکه چرې قضاء د قاضی په املاک غیرمرسله کښې یعنی په املاک مفیده کښې یا په غیر اموال کښې وی مثلاً نکاح طلاق وغیره په عقود او فسوخ کښې وی نو په دې صورت کښې د فقهاؤ اختلاف دې د ائمه ثلاثه او صاحبینو په نیز قضاء د قاضی به صرف ظاهراً نافذ کیږی باطناً به نه نافذ کیږی

د امام ابو حنیفه رحمه الله په نیزقضاء د قاضی ظاهراً هم نافذ ده او باطنًا هم نافذ ده

**صورت د مسئلې:** دمثال په توګه یوې ښځې دعوی اوکړه چه فلانکی سړی ماسره واده کړې دې په دې باندې دغه ښځې دوه د دروغو ګواهان هم پیش کړل او واده ئې ثابت هم کړو حالانکه په حقیقت کښې هیڅ واده بنادی نه ده شوې

**د اول فریق مذهب:** اوس ائمه ثلاثه فرمائی چه دا ښځه به په ظاهر کښې د دغه سړی ښځه وی لیکن په باطن کښې یعنی فیما بینه وبین الله دا د دغه سړی ښځه نه ده. لهذا دا سړې دې ښځې سره جماع نه شی کولې که چرې کوی نو ګناهګاریږی به.

**د دویم فریق مذهب:** دَ امام ابو حنیفه رحمه الله په نیزدا ښځه ظاهراً او باطنًا دَ دغه سړی ښځه شوه دې سره جماع کول جائز دی اوس دَ فریقینو دَ دلائل نه مخکښې په دې خبره باندې خان پوهه کول ضروری دی چه املاك مرسله او املاك مقیده څه ته وائی. نویاد لرئی چه املاك مرسله هغه مالونه دی چه یو سړی په څه څیز کښې دَ ملکیت دعوی اوکړه مګر دَ ملك سبب ئی بیان نه کړو چه په کومه وجه دا مال دَ هغه ملکیت دې دې ته املاك مرسله وائی او املاك غیرمرسله هغې ته وائی چه دعوی ئی دَ ملکیت اوکړه او ورسره ئی دَ ملکیت سبب اوعلت هم بیان کړو چه په میراث کښې دا مال ملاؤ شوې دې یا اخستې دې یا چاهبه کړې دې ګویا دا املاك مقیده دی. نودَ فقهاؤ اختلاف صرف په املاك مقیده اوغیر اموال یعنی عقود اوفسوخ کښې دې اموال مرسله کښې اختلاف نشته دې

**داول فریق دلیل:** ① دام سلمه رضی الله عنها زیر بحث حدیث د دوی مستدل دې ځکه چه نبی کریم دَ خپلې فیصلې نه پس په صفا الفاظو کښې اوفرمائیل چه په حقیقت کښې که دغه سړې دَ دې څیز حقدارنه وی نوهغه دې هیڅ کله هغه نه اخلی ځکه چه دادَ ده دَپاره دَ دوزخ ټکړه ده دَدې نه معلومه شوه چه فیصله صرف په ظاهر کښې نافذ کیږی اوپه باطن کښې نه نافذ کیږی.

**داول فریق د دلیل جوابونه:** ①دا حدیث په املاك مرسله باندې حمل دې

② بل په دې حدیث کښې دَ شهادت تذکره هم نشته دې دلته صرف دَ غوړې ژبې او زور بیان ذکر دې زیر نظر حدیث خو دَ دروغو ګواهئی او دَدې په نتیجه کښې فیصلې سره متعلق دې

**د دویم فریق دلائل:** ① قاضی ته ولایت عامه حاصل دې نوکه اول نکاح نه وی شوې نواوس اوشوه ځکه چه دَ ګواهانو پیش کیدونه پس قاضی فیصله واؤروله نودا په حقیقت کښې انشاء عقد دې دَ نوی سر نه نکاح اوشوه اوس باطنًا هم دا دَ دې سړی ښځه ده

② دَ لعان حکم د دوی مستدل دې نبی کریم په واضحه الفاظو کښې فرمائیلی دی "احدکماکاذب" دَدې واضح اعلان نه باوجود دَ نبی کریم فیصله نافذ شوه اوفریقین یعنی ښځه خاوند دَ یوبل نه جدا شو

③ دَ حضرت علی رضی الله عنه بواثرد دوی مستدل دې کوم چه طحاوی نقل کړې دې. کوم وخت چه حضرت علی رضی الله عنه دغه شان دَ یوې مقدمه فیصله واؤروله نوهغه ښځې عرض اوکړو اې امیرالمؤمنین اوس دې سړی سره زما نکاح اوکړه دې دَپاره چه زنا نه وی. په دې باندې حضرت علی رضی الله عنه اوفرمائیل "شاهداك زوجاك" یعنی ستا دوو ګواهانو ستا نکاح اوکړه لکه چه دا انشاء عقد اوشو نوې نکاح ده.

[٣٧٦٢] الله تعالى ته مبغوض ترين خلق

٣٧٦٢-[٥] () ١ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ "«إِنَّ أَبْغَضَ الرِّجَالِ إِلَى اللّٰهِ الْأَلَدُّ الْخَصِمُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل ٢ د الله تعالىٰ په نزد په خلقو کې بدترين او مبغوض ترين سړی هغه دی چې ډير زيات ناحقه جګړې کونکی وی. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① أَبْغَضَ. زيات ناخوښه. مبغوض. ② الْأَلَدُّ: د لَدَّ يَلَدُّ نه. سخت جګړمار. ③ الْخَصِمُ: جګړالو. جګړې خوښونکې.

**تسهيلات: قوله:** الْأَلَدُّ الْخَصِمُ:

**د مذكوره الفاظو وضاحت:** "توألدّ" سخت جګړمار او "خصم" هغه چه د هغه په طبيعت کښې جګړه پرته وی په کثرت سره جګړې کوی نو په دې دوو لفظونوکښې څه تکرار نشته دې د هرلفظ خپل مطلب دې.

[٣٧٦٣] په قسم او ګواه سره د دعوی د ثبوت حکم

٣٧٦٣-[٦] () ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا: «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٢ "قَضَى بِيَمِينٍ وَشَاهِدٍ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ و حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي ٢ چې رسول كريم ﷺ په يوه قضيه کې يو شاهد او په يوه قسم باندې فيصله وکړله. (مسلم)

**تسهيلات: قوله:** قَضَى بِيَمِينٍ وَشَاهِدٍ:

**د يو ګواه په موجودګۍ کښې د يمين په اعتبار کښې ٢ مذاهب:**

د دې حديث نه معلوميږی که چرې مدعی دعوی اوکړه او هغه سره د دعوی د ثبوت د پاره دوه ګواهان نه وی نو هغه دې يو ګواه پيش کړی او يو خل دې قسم اوخوری نو دعوی به ثابته شی او مال به ورته حاصل شی. په دې مسئله کښې د فقهاؤ اختلاف دې چه آيا مدعی نه يو ګواه سره د دويم ګواه په ځائی قسم اخستې شی که نه؟

---

[1]) اخرجه البخاري في كتاب الإجارة/باب قول الله تعالى: {وهو ألدّ الخصام} [البقرة: ٢٠٤] (رقم-٢٤٥٧) ومسلم في كتاب القدر/باب في الألدّ الخصم (رقم-٥ - (٢٦٦٨) والترمذي في كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب: ومن سورة البقرة (رقم-٢٩٧٦) والنسائي في كتاب آداب القضاة/باب الألدّ الخصم (رقم-٥٤٢٣) واحمد في المسند: ٥٥/٦

[2]) اخرجه مسلم في كتاب الأقضية/باب القضاء باليمين والشاهد (رقم-٣ - (١٧١٢) و ابو داود في كتاب الأقضية/باب القضاء باليمين والشاهد (رقم-٣٦٠٨) وابن ماجه في كتاب الأحكام/باب القضاء بالشاهد واليمين (رقم-٢٣٧٠) واحمد في المسند: ٣١٥/١

① دریو اړه ائمه او جمهور فرمائی که چرې معامله او قضیه د حدود او قصاص نه علاوه په مالونو کښې وی او مدعی سره صرف یو ګواه موجود وی نو مدعی د دویم ګواه د تکمیل دپاره پخپله یو قسم خوړلې شی دې دپاره چه ګواهی مکمل شی او د مدعی مدعا ثابته شی

② ائمه احناف فرمائی چه د یو ګواه د وجې نه مدعانه شی ثابتیدې او په مدعی باندې په یو صورت کښې هم قسم نه راځی. د فیصلې دپاره ضروری دی چه مدعی سره دوه ګواهان وی ګنی د مدعاعلیه نه به قسم اخستې شی

**داول فریق دلیل:** زیربحث حدیث د دوی مستدل دې سره ددې چه په دې کښې دا تصریح نشته دې چه قسم د مدعی نه اخستې شوې دې لیکن ددې په بعضې طرقو کښې دا سې لفظ موجود دې لهذا جمهورو هم په دې فیصله اوکړه.

**د اول فریق د دلیل جوابونه:**

① مذکوره حدیث خبر واحد دې داد قرآن پاك د آیت مقابله نه شی کولې

② په دې حدیث کښې احتمال دې چه ددې مطلب داوی چه کله مدعی سره ګواه نه وی نو د مدعا علیه نه به قسم اخستې شی او احتمال راتلو سره استدلال باقی نه پاتې کیږی

③ په دې حدیث کښې د نبی کریم د مختلف فیصلو ذکر دې چه نبی کریم کله د ګواهانو په بنیاد باندې فیصله فرمائیلې ده او کله د قسم په بنیاد باندې فیصله کړې ده لکه چه په حدیث کښې د یوې فیصلې خبره نه ده بلکه په مختلفو وختونو کښې د مختلفو فیصلو دوه صورتونه خودلی دی

④ د زیربحث حدیث تعلق حفظ دماء سره دې دا ضابطه نه ده بلکه یوه معروضی فیصله وه د کوم په وجه چه دا حکم راغلې دې. واقعه داسې اوشوه چه د بنوعنبر څه کافران په میدان جهاد کښې ګیر کړې شوې وو کله چه هغوی مدینې ته راوستلې شو نو هغوی دعوی اوکړه چه مونږ کوم وخت اونیولې شوې وو هغه وخت مونږ مسلمانان وو په دې باندې هغوی سره یو ګواه وو اود بل ګواه د پاره د هغوی نه قسم واخستې شو نو شبه پیدا شوه په کوم سره چه د هغوی د وینې حفاظت اوشو یا داحدیث د صلح په څه صورت باندې محمول دې ضابطه هم هغه ده کومه چه په مشهور احادیثو کښې ده او احنافو اخستې ده

**د دویم فریق دلائل:**

① د قرآن عظیم آیتونه ﴿ وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ مِنْ رِجَالِكُمْ فَإِنْ لَمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ ﴾ [سورة بقره ۲۸۲]. دویم آیت کښې دی ﴿ وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ مِنْكُمْ ﴾ [سورة طلاق ۲].د دوی مستدل دی

③ هغه مشهور حدیث د دوی مستدل دې د کوم الفاظ چه دادي «البينة على المدعى واليمين على من أنكر» او په حديث كښې د ضابطه په توګه تقسيم كار بيان كړې شوي دې نو د مدعى كار ګواه پيش كول دى او د مدعى عليه كار قسم خوړل دى په دې كښې اشتراك نشته دې

**[۳۷٦٤] د مدعی علیه د قسم اعتبار**

۳۷۶۳ –[۷] (١) ①وَعَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ②: «جَاءَ رَجُلٌ مِنْ حَضْرَمَوْتَ، وَرَجُلٌ مِنْ كِنْدَةَ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ③فَقَالَ الْحَضْرَمِيُّ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! إِنَّ هَذَا غَلَبَنِي عَلَى أَرْضٍ لِي. ④فَقَالَ الْكِنْدِيُّ: هِيَ أَرْضِي وَفِي يَدِي، لَيْسَ لَهُ فِيهَا حَقٌّ. ⑤فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِلْحَضْرَمِيِّ: "أَلَكَ بَيِّنَةٌ؟" قَالَ: لَا،

**توجمه:**①او علقمه ابن وائل ﷺ دخپل پلار نه نقل کوي هغه اوويل ②يوه ورځ د نبي کريم ﷺ په خدمت کې يو سړی د حضر موت اوسيدونکی او يو سړی د کنده دواړه حاضر شوه ③حضرمي يعنی دحضرت موت اوسيدونکی عرض اوکړو يا رسول الله دا سړي ځما زمکه غصب کولو سره په هغه قبضه کړيده ④کندي اوويل هغه ځما زمکه ده او ځما لاس يعنی ځما قبضه کې ده د دې سړي په دې زمکه هيڅ حق نشته ⑤رسول الله ﷺ د دواړو فريقو بيان اوريدو سره حضرمي ته وفرمايل آيا تا سره شاهد شته؟ هغه اوويل نه

**حل اللغات:** ①حَضْرَمَوْتَ: د يمن د يوې علاقې نوم. ②كِنْدَةَ: د يوې قبيلې نوم دې

①قَالَ: "فَلَكَ يَمِينُهُ". ②قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ الرَّجُلَ فَاجِرٌ، لَا يُبَالِي عَلَى مَا حَلَفَ عَلَيْهِ، وَلَيْسَ يَتَوَرَّعُ مِنْ شَيْءٍ. ③قَالَ: "لَيْسَ لَكَ فِيهِ إِلَّا ذَلِكَ". ④فَانْطَلَقَ لِيَحْلِفَ. ⑤فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَمَّا أَدْبَرَ: ⑥"لَئِنْ حَلَفَ عَلَى مَالِهِ لِيَأْكُلَهُ ظُلْمًا، لَيَلْقَيَنَّ اللَّهَ وَهُوَ عَنْهُ مُعْرِضٌ». ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**توجمه:**①حضور ﷺ ورته وفرمايل اوس ستا دي دعوي دار ومدار د دې مدعا عليه په قسم دی که دي دقسم نه انکاروکړي نو ستا دعوی به تسليم شي او که ده قسم واخستلو نو ستا دعوی به باطله شي ②هغه حضرمي اوويل يا رسول الله! دا سړی خو فاجر دروغجن دی ده ته د دې خبري هيڅ پرواه نشته چې ده په کوم څيز قسم آخستلو دی هغه رښتيا دي يا دروغ او دی د هيڅ شي نه پرهيز نه کوي ③حضور ﷺ ورته وفرمايل بهرحال ستا په حقله د دې سړي د طرف نه ماسوا د دې قسم نه نورڅه نشته ④په دې اوريدو سره هغه کندي سړي قسم د پاره روان شو ⑤اوهرکله چې هغه شاګرځوله نو

(١) اخرجه مسلم فی کتاب الإيمان/باب وعيد من اقتطع حقّ مسلم بيمين فاجرة بالنّار (رقم-٢٢٣ - (١٣٩) والترمذی فی کتاب الأحكام عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فی أنّ البيّنة على المدّعى. واليمين على المدّعى عليه (رقم-١٣٤٠)

رسول كريم ﷺ وفرمايل ٦ كه داسړی د حضرمي په مال قسم واخستلو چې د ده مال په زبردستى هضم كړي نو الله ﷻ سره به په داسې حال كې ملاقات وكړي چې الله ﷻ به د هغه نه بيزاره وي (مسلم)

**حل اللغات:** ③فَاجِرٌ: دروغجن. فاسق، ④يَتَوَرَّعُ: پرهيز كوی. ځان ساتی. ⑤أَدْبَرَ: شائې كړه. ⑥مُعْرِضٌ: مخ اړونكې. بيزاره به وی.

**تسهيلات:** **قوله:** إِنَّ الرَّجُلَ فَاجِرٌ:

**د ګواهانو د عدم وجود په وخت قسم المستدل:** يعنی فاسق فاجرسړې دې دَ قسم خوړلوبه څه پرواه اونه كړی اوزما مال به اوخوری. نه دا سړې په قول كښې صحيح دې نه فعل كښې نبی كريم اوفرمائيل هرڅه چه وی كله چه تاسره ګواه نشته دې نوته به د ده نه هم قسم اخلې

**قوله:** فَانْطَلَقَ:

**د روانيدو په غرض كښې دوه اقوال:** ① ممكن ده چه داسړې دَ اودس جوړولودَپاره تلې وی دې دَپاره چه اودس اوكړی اوقسم اوخوری.

② اوداهم ممكن ده چه كولاؤ ميدان كښې مخامخ شوې وی دې دَپاره چه قسم اوخوری شوافعو دَ قسم خوړلودَپاره په اودس كښې كيدلوحكم وركوی

**د قسم خوړلو نه واپس كيدل:** دا سړې دَ قسم خوړلودَپاره تيارشوې وو خوچه كله نبی كريم وعيد واؤرولو نوده اووئيل چه دا زمكه زما نه ده بلكه زمادَدې رور ده لكه څنګه چه په حديث نمبر(۳۷۷٦) كښې راځی.

**د حديث فوائد:** علامه نووی فرمائی چه په دې حديث كښې دَ يوڅو فوائدو بيان دې

① كله چې مدعی سره ګواه نه وی نو په مدعاعليه باندې قسم خوړل لازم دی

② دَ فاسق قسم هم دغه شان مقبول دې څنګه چه دَ يوعادل قسم مقبول وی.

③ صاحب يد او قبضې والا دَ دغه اجنبی نه اولی دې كوم چه صاحب يدنه وی

## [۲۷٦٥] په دروغه دعوی كولو د جهنم وعيد

۳۷٦۵–[۸] (¹) ١ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَقُولُ: ٢ "«مَنِ ادَّعَى مَالَيْسَ لَهُ، ٣ فَلَيْسَ مِنَّا، وَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابوذر ﵁ نه روايت دی هغه د رسول كريم ﷺ نه واوريدل ٢ كوم سړی چې د يوداسې شي دعوی وكړه چې د هغه نه وي ٣ هغه زمونږ نه نه دی او هغه ته پكار دی چې خپل ځای په دوزخ كې تلاش كړي (مسلم)

**حل اللغات:** ①وَلْيَتَبَوَّأْ: تلاش دې كړی. جوړ دې كړی. ②مَقْعَدَهُ: خپل ځائې. استوګنه.

---

¹) اخرجه مسلم فی كتاب الإيمان/باب بيان حال إيمان من رغب عن أبيه وهو يعلم (رقم-١١٢ - (٦١) وابن ماجه فی كتاب الأحكام / باب من ادّعی ما ليس له وخاصم فيه (رقم-٢٣١٩)

**تسهيلات:**

**قوله:** مَالَيْسَ لَهُ:

**په حسب او نسب کښې د دروغو د دعوې کولو حکم:** شيخ عبدالحق رحمه الله په اشعة اللمعات کښې ليکلی دی چه دالفظ په ظاهره دَ املاکو او اموالو دپاره ونيلې شی ليکن دَدې په عموم کښې دَحسب اونسب دعوې اودَ ظاهر اوباطن ټولې دعوې هم راځی يعنی يوسړې دَ بزرګئی دَ دروغو دعوی کوی، دَ علم په دروغه دعويدار دی دَ احوالو او لويو اعمالو اودَ فتوحاتو، کراماتو او کشف الهاماتو دعويدار په دروغه. او په حقيقت کښې هغه په دغه مقام باندې نه وی دَ حديث دا وعيد ټولوته شامل دی [اشعة المعات ۳۴۲ ۳]

**[۳۷٦٦] بهترين ګواه**

۳۷۶۶-[۹] ()[1] ① وَعَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "② «أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِخَيْرِ الشُّهَدَاءِ؟ ③ الَّذِي يَأْتِي بِشَهَادَتِهِ قَبْلَ أَنْ يُسْأَلَهَا»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او زيد ابن خالد رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل ② آيا زه تاته د بهترينو شاهدانو په باره کې ونه ښايم، ③ وي فرمايل واوره چې په شاهدانو کې بهترين شاهد هغه دی چې شاهدي طلب کولو نه مخکې شاهدي ورکړي (مسلم)

**حل اللغات:** ① خَيْر: غوره. بهترين.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِخَيْرِ الشُّهَدَاءِ؟:

**د حديث دوه مطلبونه:** ① دَحقوق الله معامله ده زکوة دې دَ رمضان دَ مياشتې معامله ده دکفارې مسئله ده دَوقف وصايااو صدقات معامله ده دَ وخت حاکم ته معلومه نه ده اودَ بيت المال دا حق ضائع کيږی په دې موقع باندې يوسړې راغلو اوهغه ګواهی ورکړه اوحاکم ئی خبرکړو نوده قومی فريضه اداکړه په دې وجه دا بهترين ګواه دې

② دَ يوسړی دَ چاحق يوځائی کښې ګيرکړې وی اودَدې دپاره هغه سره څه ګواه نشته دې نه هغه ته دَ يوګواه علم شته په دې موقع دوه ګواهان راځی اوګواهی ورکولو سره حقدارته دَهغه حق وررسوی دا بهتريم ګواهان دی

**د احاديثو په مينځ کښې تعارض:** دَدې حديث نه پس دَ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه حديث راروان دې په هغې کښې پخپله وراندې وراندې کيدوسره دَ ګواهئی ورکونکی سخت

[1] ) اخرجه مسلم فی كتاب الأقضية /باب بيان خير الشهود (رقم-۱۹ - (۱۷۱۹) و ابو داود فی كتاب الأقضية /باب فی الشهادات (رقم-۳۵۹۶) والترمذی فی كتاب الشهادات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فی الشهداء أيهم خير (رقم-۲۲۹۵) و مالک فی الموطا كتاب الأقضية /باب ما جاء فی الشهادات (رقم-۳) واحمد فی المسند: ۱۹۳/۵

بدوبللی سوی دی حالانکه په زیربحث حدیث کښې د هغه تعریف کړې شوې دې دا ظاهری تعارض دې

**د تعارض دفع**: مذمت د دروغو په ګواهئی کښې د زور لګولو راغلې دې اوتعریف د رښتونی شهادت راغلې دې یا د مذمت تعلق د نااهل شهادت سره دې اودمدح تعلق اهلیت لرونکی شهادت سره دې

**د فاسق د ګواهی په قبلولو کښې ۲ مذاهب**:

① امام شافعی رحمه الله فرمائی چه د فاسق شهادت په مطلق توګه قابل قبول نه دې

② احناف فرمائی چه قاضی له د فاسق ګواهی ردکول پکاردی لیکن که چرې هغه قبوله کړه نو د فیصلې د پاره دا ګواهی جائزده فقهاء لیکلی دی چه ګواهی ورکول فرض دی ددې پتول په هیڅ شان سره جائزنه دی په دې شرط چه مدعی ګواهی اوغواړی او په حدودو کښې د ګواهئی نه ورکولو ګنجائش دې

**[۲۷٦۷] د دروغو ګواهی ورکولو مذمت**

۳۷٦۷ - [۱۰] () ① وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ -، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " ② «خَيْرُ النَّاسِ قَرْنِي، ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ، ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ، ③ ثُمَّ يَجِيءُ قَوْمٌ تَسْبِقُ شَهَادَةُ أَحَدِهِمْ يَمِينَهُ وَيَمِينُهُ شَهَادَتَهُ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ① او ابن مسعود رضی الله عنه وایي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② د ټولو نه ښه هغه خلق دی چې زما په زمانه کې دي یعنی صحابه رضی الله عنهم بیا هغه چې د دوئ سره متصل دی یعنی تبع تابعین ③ او بیا په آخر کې به داسې خلق پیدا شي چې په هغوی کې به د یو شاهدي د هغه د قسم نه مخکې وي اوقسم به د هغه د شاهدي نه مخکې وي (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات**: ① قَرْنِي: قرن زمانې ته وائی. ② يَلُونَهُمْ: چه نزدې وی دوی ته. ③ تَسْبِقُ: مخکښې کیږی به.

**تسهیلات**:

**قوله**: خَيْرُ النَّاسِ قَرْنِي:

**د قرن په مصداق کښې اته اقوال**: د قرن د لفظ ډیرې معانې دی د هرې یوې معنی احتمال په کښې شته

---

() اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب فضائل أصحاب النبیّ صلّی الله علیه وسلّم ، ومن صحب النبیّ صلّی الله علیه وسلّم. أو رآه من المسلمین، فهو من أصحابه» (رقم-۳۶۵۱) ومسلم فی کتاب فضائل الصّحابة رضی الله تعالی عنهم/باب فضل الصّحابة ثمّ الّذین یلونهم ثمّ الّذین یلونهم (رقم-۲۱۲ - (۲۵۳۳) والترمذی فی کتاب الشّهادات عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب منه (رقم-۲۳۰۳) و ابن ماجه فی کتاب الأحکام/باب کراهیة الشّهادة لمن لم یستشهد (رقم-۲۳۶۲) واحمد فی المسند: ٤٤٢/١

① د صحابه کرامو زمانه ② دیرش کاله
③ دَهرسړی خپله زمانه ④ شپیته کاله
⑤ څلویښت کاله ⑥ اتیا کاله
⑦ اویا کاله ⑧ پوره سل کاله

**قوله**: تَسْبِقُ شَهَادَةُ أَحَدِهِمْ:

**د دروغو گواهی د ورکولو کثرت**: داد بې پرواهئی غفلت او دَدین نه د ویزاره کیدو یوکیفیت طرف ته اشاره کړې شوې ده چه دَ یوبل نه زیات دَ دروغو دَ گواهئی دَپاره رامنډې وهی راځی چنانچه نن صبا دا نقشه بالکل په مکمل توګه باندې موجود ده د عدالتونو په مخکښې دَ دروغوګواهانوپه کرایه باندې مکان اخستې ناست دی چه دَ چاهم ضرورت شی دې فوراً ورټوپ کړی اوګواهی ورکړی اوپیسو اخستوسره خپل عزت غیرت اوخپل دیانت اوامانت اودَخپل دین سودا کوی.

**په مغل دورِ حکومت کښې د دروغژن گواه سزا**: په برصغیرهندوستان باندې کوم وخت د مغل حکمرانانو دور وو نوهغوی به دَ دروغو ګواهی ورکونکی په تندی باندې داغ لګولو دې دَپاره چه دَدې دروغژن سړی ګواهی دَ همیشه دَپاره مردود شی کله چه د انګریز ملعون دور راغلو نو هغوی دَ نورو اسلامی قوانینوسره دا قانون هم معطل کړو اووئیل چه په دې سره دَ انسانیت سپکاوې کیږی لکه چه دهغوی په نیز هریوانسان دروغژن جوړول دَ انسانیت تعظیم دی

**[۳۷۶۸] قسم دپاره خسنړې (قرعه ) اچول**

> ۳۷۶۸–[۱۱] (¹) [۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، [۲]«أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَرَضَ عَلَى قَوْمٍ الْيَمِينَ، فَأَسْرَعُوا، [۳]فَأَمَرَ أَنْ يُسْهَمَ بَيْنَهُمْ فِي الْيَمِينِ، أَيُّهُمْ يَحْلِفُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: [۱]او حضرت ابوهریره ﷺ وایي [۲]رسول کریم ﷺ څنې خلقو ته قسم پیش کړو یعنی هغوی ته یې اوویل قسم واخلئ چې د مدعي دعوٰی صحیح نه ده هغه خلقو قسم اخستو کې تادي وښودله [۳]نو حضور ﷺ وفرمایل قسم اخستلو د پاره د دې خلقو په مینځ کې دې قرعه (پچه) واچول شي چې په هغوی کې دې کوم سړی قسم واخلي (بخاري)

**حل اللغات**: ①عَرَضَ: پیش ئې کړو. ②فَأَسْرَعُوا: جلتی او تادی اوکړه هغوی. ③يُسْهَمَ: قرعه. پچه دې واچولې شي.

¹) اخرجه البخاري في كتاب الشّهادات/باب إذا تسارع قوم في اليمين (رقم ۲۶۷٤)

**تسهيلات:**

**قوله:** عَرَضَ عَلَى قَوْمِ الْيَمِينَ:

**د حديث دوه مفهومه:** ① علامه طيبي رحمه الله او نور محققين فرمائي دوو کسانو دَ يوڅيز دعوىٰ اوکړه اوهغه څيزدَ دريم سړي په لاس کښې دې دواړو مدعيانوسره هيڅ څوك ګواه نشته دې يا دواړو سره ګواه شته خودا دريم سړې دَ چا په لاس کښې چه هغه څيز دې اووائي چه ماته پته نشته دادَ چادې. بل طرف ته هر يومدعي وائي چه دا څيززما دې اودَ دغه بل مدعي نه دې. په دې صورت کښې دا دواړه سړي دَيوبل دَ پاره مدعيان هم دي اومنکر هم دي اودَ منکر دَپاره قسم دې. نودَدې انکار په صورت کښې به خسنړې اچولې شي چه دَ چا خسنړې راؤوتلو هغه به قسم خوري اومال دې اوړي

② عام شارحينو فرمائي يوسړي په يوډله يا يوقوم باندې دَخپل حق دعوىٰ اوکړه دغه سړي سره دوه ګواهان نه وو دَ قوم ټولو خلقو دَدې سړي دعوىٰ رد کولوسره انکار اوکړو. اوس دې خلقوته دَ قانون مطابق قسم پيش کړې شو نوټولو په قسم خوړلوباندې راضي کيدل ښکاره کړل او زر زر دَ قسم خوړلودَپاره رااوړاندې کيدل نبي کريم دَ قسم خوړلودَپاره دَهغوى په مينځ کښې خسنړې واچولو دَ چا خسنړې (پچه) چه راؤځي هم هغه به قسم خوري ټول دې قسم نه خوري دَ حديث ظاهري مفهوم هم دادې

**د متروك له المال په تعين کښې ۲ مذاهب:**

① امام شافعي رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائي مال به دَ دغه دريم سړي په لاس کښې پريخودې شي

② امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي دغه مال به دَ دواړو مدعيانو په مينځ کښې برابر تقسيمولې شي

**داول فريق دليل:** په دې دواړو کښې تعارض راغلو نودَ دواړو دليل ساقط شو

**د دويم فريق دليل:** راتلونکي دَ ام سلمه رضي الله عنها روايت د دوى مستدل دې کوم کښې چې دَدې تصريح موجود ده. مال تقسيم کړئي دَ انصاف خيال اوساتئي اوبيا خسنړې واچوئي اوبيا دَ يوبل دَپاره معافي تلافي اوکړئي.

**نوټ:** ياد لرئ دا نيم نيم تقسيم کول به هغه څيزونوکښې وي کوم څيزونه چه تقسيم قبلوي.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۲۷٦۹] د مدعي او مدعی علیه ذمه واريانې**

۳۷٦۹-[۱۲] (۱) [۱] عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«الْبَيِّنَةُ عَلَى الْمُدَّعِي، وَالْيَمِينُ عَلَى الْمُدَّعَى عَلَيْهِ»" رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] عمروبن شعیب د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه (دادا) نه روایت کوي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲] شاهد دمدعي په ذمه دی او قسم دمدعا علیه په ذمه (ترمذي)

**تسهیلات:**

**قوله:** الْبَيِّنَةُ عَلَى الْمُدَّعِي:

د گواه پیش کولو حق مدعی ته دې که مدعی سره گواه نه وی او مدعی د مدعی علیه د دعوی صحیح منلو نه انکار اوکړی نو په مدعی علیه باندې به قسم وی

**[۲۷۷۰] د دوو مدعیانو په صورت کښې شرعی حکم**

۳۷۷۰-[۱۳] (۲) [۱] وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، [۲] «عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: فِي رَجُلَيْنِ اخْتَصَمَا إِلَيْهِ فِي مَوَارِيثَ لَمْ تَكُنْ لَهُمَا بَيِّنَةٌ إِلَّا دَعْوَاهُمَا. [۳] فَقَالَ: "مَنْ قَضَيْتُ لَهُ بِشَيْءٍ مِنْ أَخِيهِ؛ فَإِنَّمَا أَقْطَعُ لَهُ قِطْعَةً مِنَ النَّارِ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي ام سلمه ﷺ [۲] د نبي کریم ﷺ نه د دوو سړو د قضیې په باره کې نقل کوي چې د خپل یو میراث معامله اختسو سره د حضور ﷺ په خدمت کې راغلی وو او په هغه دواړو کې د یوه هم څوك شاهد نه وو بلکه صرف دعوی او دعوی وه [یعنی په هغوی کې هریوسړی دربارِ رسالت کې دعوی وکړه چې فلانی شی څما دی چې ماته په میراث کې حاصل شوی دی او دویم سړی هم د هغه شي په باره کې دا دعوی وکړه او په دواړو کې هیڅ یو د خپلي دعوی ثبوت کې شاهد نه لرلو] [۳] حضور [د هغه دواړو بیان په اوریدو سره] وفرمایل یاد لرئ زه چې کوم سړي د پاره د څه داسې شي فیصله وکړم چې د هغه د ورور حق وي نو هغه څیز د هغه د پاره د اور د یوي ټکړي نه علاوه نور څه نه دی [مثلًا مدعي د یوڅیز دعوی کړي ده چې د هغه په باره کې هغه نبه پوهیږي چې هغه د هغه نه دی بلکه واقعةً د مدعا علیه دی لیکن هغه د دروغ شاهدانو او دروغ قسمونو په ذریعه خپله دعوی ثابته کړله او ما د ظاهري قانون مطابق د هغه په شاهدی او قسم باندې اعتبار کولو سره د هغه په حق کې فیصله وکړله او هغه څیز مي هغه ته ورکی نو

---

[۱] ) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ۱۳۴۱

[۲] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأقضية /باب فی قضاء القاضی إذا أخطأ (رقم-۳۵۸۴) واحمد فی المسند:۶/۲۳۰

هغه ته ياد ساتل پکار دی چې هغه څيز به د هغه په حق کې د اور يوه ټکړه ثابته شي يعنی هغه به د دوزخ د اور سزا وار جوړکړي ۔

**حل اللغات:** ①اخْتَصَمَا : دوه کسانو جګړه اوکړه. قضيه اوفيصله ئې وړاندې کړه. ②مَوَارِيثَ : ميراث. ③قِطْعَةً: ټکړه. حصه

[۱]فَقَالَ الرَّجُلَانِ: كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! حَقِّي هٰذَا لِصَاحِبِي، [۲]فَقَالَ: لَا، وَلٰكِنِ اذْهَبَا، فَاقْتَسِمَا، وَتَوَخَّيَا الْحَقَّ، ثُمَّ اسْتَهِمَا: ثُمَّ لِيُحَلِّلْ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْكُمَا صَاحِبَهُ». [۳]وَفِي رِوَايَةٍ، قَالَ: "«إِنَّمَا أَقْضِي بَيْنَكُمَا بِرَأْيِي فِيمَا لَمْ يُنْزَلْ عَلَيَّ فِيهِ»" رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:**[۱]په دې دواړو کې هر يوه ددې اوريدو سره عرض اوکړو يا رسول الله خما حق خما دملګری يعنی فريقِ مخالف د پاره دی زه خپله دعوی ترک کوم [۲]حضور ﷺ وفرمايل نه داځنګه ممکنه ده چې شی دې يو وي او د هغه حقداران دوه وي بلکه تاسو دواړه لاړ شئ دا شی نيم په نيمه تقسيم کړئ او خپل خپل حق واخلئ ايعنی تقسيم کې د عدل او ايمانداری لحاظ وساتئ او دا طريقه اختيار کړئ چې مخکې هغه څيز دوه حصې کړئ او که دا تنازعه وي چې هغه په دواړو حصو کې کومه حصه چاته ورکول شي نو هغه دواړو حصو باندې قرعه واچوئ چې دا فيصله شي چې په هغه دواړو حصو کې کومه حصه کوم سړي ته حاصليږي دغه شان تاسو دواړو کې هريودی هغه حصه واخلې چې په هغه د هغه قرعه راختلې ده او بيا په تاسو کې هريوه ته پکار دی چې هغه خپل حق خپل ملګري ته معاف کړو چې د هغه د طرف نه تلې وي [۳]او په يو روايت کې دا الفاظ هم دي حضور ﷺ وفرمايل زه ستاسو د دواړوپه مينځ کې دا فيصله دخپلې رايه او خپل اجتهاد سره کوم په دې معامله کې په ماوحي نه ده نازله شوې (ابوداود)

**حل اللغات:** ④فَاقْتَسِمَا: د شراکت په بنياد برابر تقسيم اوکړئ ⑤تَوَخَّيَا الْحَقَّ: أي اطلبا الحق، يعنی د عدل او انصاف ښه خيال ساتئ

## تسهيلات:

**قوله:** ثُمَّ لِيُحَلِّلْ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْكُمَا صَاحِبَهُ:

**د تحليل مطلب:** دا دَ باب تفعيل نه دې دَ حلال کولو په معنی کښې دې يعنی خپل مينځ کښې دَتقسيم نه پس معافي تلافی کوئی سبحان الله ايثار اوهمدردی اودَمحبت دې ملګرو ښکلې نمونه قائمه کړه

## [۳۷۷۱] د قابض په حق کښې فیصله

۳۷۷۱–[۱۳] (۱) [۱] وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: [۲] «أَنَّ رَجُلَيْنِ تَدَاعَيَا دَابَّةً، فَأَقَامَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْبَيِّنَةَ أَنَّهَا دَابَّتُهُ نَتَجَهَا، [۳] فَقَضَى بِهَا رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لِلَّذِي فِي يَدِهِ» رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** [۱] او جابر ابن عبد الله ﷺ وايي [۲] دوو سړو د يوخاروي په باره کې دربار رسالت کې دعوی وکړه او په هغه دواړو کې هر يو خپل شاهد پيش کړل چې دا خاروي د هغه ايعنی څما) دی ايعنی ماکره دا حيوان پيدا شوی دی ما د ده په مور نر پريښی ووا چې د هغه په نتيجه کې دي پيدا شوی دی ااو دغه شان د ده د پيداکړي دو زه سبب جوړ شوی وم ګويا په هغه دواړو کې هريوه دا دعوی وکړلها [۳] نو رسول کريم ﷺ هغه حيوان د هغه سړي حق اوګرځولو چې د هغه قبضه کې وو. (شرح السنه)

**حل اللغات:** ① تَدَاعَيَا: دواړو دعوی اوکړه. ② نَتَجَهَا: باب ضرب نه. ددې په بچی راوړلو کښې مې خدمت کړي دې

**تسهيلات:**

**قوله:** فَقَضَى بِهَا رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لِلَّذِي فِي يَدِهِ:

**د قابض د ګواهانو د غير قابض په ګواهانو برتري:** ددې حديث نه په ظاهري توګه باندې دا خبره واضحه شوه که دَ دووکسانو په يوخيزکښې تنازعه پيداشي او دواړه بينه پيش کړی نودَ صاحب اليد (قابض) بينه به راجح وی. ملاعلی قاری ﷬ فرمائی چه وئيلی شوی دی چه داحديث په دې باندې دلالت کوی چه دَ صاحب يدقابض بينه په هرحال کښې دَغيرقابض په مقابله کښې راجح ده ملاعلی قاری ﷬ فرمائی چه دَ ظاهری حديث نه هم داسې معلوميږی چه داحکم په څناورو کښې دې

### د حيواناتو نه علاوه په نورو څيزونو کښې په مذکوره مسئله کښې ۲ مذاهب:

① په مذکوره صورت کښې که چرې دعوی په غيرحيوان کښې وی امام شافعی ﷬ فرمائی که هرقسم صورت وی اوهرقسم څيزوی په هرحالت کښې دَ قابض بينه دَ غيرقابض په مقابله کښې راجح دې

② احناف فرمائی په غير حيوان کښې به دواړه مدعيان قسم خوری او دا څيزبه په خپل مينځ کښې نيم نيم تقسيم کوی

**داول فريق دليل:** مذکوره حديث د دوی مستدل دې ځکه چې په دې کښې د غير حيوان نفي نشته.

(۱) اخرجه البغوی فی شرح السنه رقم الحديث ۲۵۰٤. والدارقطنی ٤/ ۲۰۹ رقم الحديث ۲۱

**د اول فریق د دلیل جواب:** حقیقت دادې چه دا حدیث دَ احنافو دلیل دې ځکه چه په دې کښې دَ حیوان او دَهغه دَ بچی پیدا کیدو په واضحه توګه باندې بیان موجود دې.

**د دویم فریق دلیل:** په نورو احادیثو کښې دَدې ذکر دې

**[۲۷۷۲] د دوو مدعیانو په مینځ کښې د متنازعه مال تقسیم**

۳۷۷۲-[۱۵] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: [۲] «أَنَّ رَجُلَيْنِ ادَّعَيَا بَعِيرًا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ- صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] فَبَعَثَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا شَاهِدَيْنِ، [۴] فَقَسَمَهُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ،

**ترجمه:** [۱] او ابو موسی اشعري ﷺ وايي [۲] چې درسول کريم ﷺ په زمانه کې دوو سړو يو اوښ په باره کې دعوی وکړه (يعنی هر يوه اوويل چې دا اوښ ځما دی) [۳] او بيا په هغه دواړو کې هر يو د خپلي خپلي دعوي ثبوت کې دوه دوه شاهدان پيش کړل [۴] نو رسول کريم ﷺ هغه اوښ د دواړو په مینځ کې نیم په نیمه تقسیم کی (ابوداود)

[۱] وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ وَلِلنَّسَائِيِّ، وَابْنِ مَاجَهْ: " [۲] «أَنَّ رَجُلَيْنِ ادَّعَيَا بَعِيرًا لَيْسَتْ لِوَاحِدٍ مِنْهُمَا بَيِّنَةٌ، [۳] فَجَعَلَهُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَيْنَهُمَا».

**ترجمه:** [۱] او د ابوداود په يوبل روايت او د نسائي او ابن ماجه روايت کې داسې دي [۲] چې دوو سړو د يو اوښ په باره کې دعوی وکړه ليکن هغه په دواړو کې هيڅ يو سره شاهد نه وو [۳] نو رسول کريم ﷺ هغه اوښ د دواړو مشترکه حق اوګرځولو (ابوداود)

**تسهیلات:**

**قوله:** فَقَسَمَهُ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-:

**د مذکوره حدیث په توجیه کښې اقوال:** ① يعنی نبی کريم دغه متنازع اوښ دَ دواړو مدعيان په مینځ کښې تقسيم کړو.

② ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه کیدې شی دا اوښ دَ يودريم سړی په قبضه کښې ووځوك چه دَ اوښ دعويدارنه وو نوچه کله دواړو ګواه پيش کړو او چاته ترجيح حاصله نه وه نو اوښ په مینځ تقسيم کړې شو

③ علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه کیدې شی هغه اوښ دَ دواړو په قبضه کښې وی نو په دواړو کښې تقسيم کړې شو

---

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأقضية/باب الرّجلين يدّعيان شيئا وليست لهما بيّنة (رقم-۳۶۱۵) والنسائی فی کتاب آداب القضاة/باب القضاء فيمن لم تکن له بيّنة (رقم-۵۴۲۴) وابن ماجه فی کتاب الأحکام/ باب الرّجلان يدّعيان السّلعة وليس بينهما بيّنة (رقم-۲۳۳۰)

**قوله**: لَيْسَتْ لِوَاحِدٍ مِنْهُمَا بَيِّنَةٌ

**د تعارض اشکال**: په دې روايت کښې دا اوخودلې شو چه يوسره هم بينه نه وه اودَدې نه وړاندې روايت کښې اوخودلې شو چه دواړو سره بينه موجودوه.

**د اشکال جواب**: دَدې تعارض لرې کولودَپاره علماؤ ليکلی دی چه کيدې شي دا دواړه جدا جدا قضيې وې او ممکن ده چه هم يوه قضيه وی ليکن کله چه دَ دواړو ګواهی په وجه دَ تعارض رداوګرځولې شوه نو دواړه بغيردَ ګواه نه پاتې شو يعنی مقبول ګواهی يو سره هم نه وه.

**[۳۷۷۳] د قسم خوړلو دپاره خسنړې اچول**

۳۷۷۳-[۱۶] (١) ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، ٢ «أَنَّ رَجُلَيْنِ اخْتَصَمَا فِي دَابَّةٍ، وَلَيْسَ لَهُمَا بَيِّنَةٌ. ٣ فَقَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- "اسْتَهِمَا الْيَمِينَ"». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه**: ١ او حضرت ابوهريره رضی الله عنه وايي ٢ د دوو سړو د يو حيوان په باره کې جګړه شوه چې په هغه دواړو کې هر يو هغه حيوان ته خپل ملکيت ويلې او هغه دواړو سره شاهد نه وو ٣ نو رسول کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل قسم باندې قرعه واچوئ [د چا په نوم چې قرعه راوخي هغه دې قسم اخستو سره اووائي چې دا حيوان ځما دی نو د هغه په حق کې دې فيصله وشي.] (ابوداود ابن ماجه)

**حل اللغات**: ① اسْتَهِمَا: پچه او خسنړه واچوئ.

**تسهيلات**: **قوله**: "اسْتَهِمَا الْيَمِينَ":

**د قسم دپاره د خسنړې د اچولو حکم**: يعنی تاسو دواړه دَ قسم دَ پاره خسنړې واچوئی دَ چا خسنړې چه راؤوتلو هغه به قسم خوری اومال به اوچتوی دَدې روايت په شان يوروايت وړاندې تيرشوې دې کوم چه دَ ابوهريره رضی الله عنه نه روايت شوې دې او په حديث نمبر(۳۷۶۸) کښې تيرشوې دې هلته دَدې مسئلې تفصيل دې بل په حديث نمبر(۳۷۷۳) کښې هم دَدې وضاحت موجود دې.

**[٣٧٧٤] مدعا عليه ته د قسم ورکولو طريقه**

۳۷۷۴-[۱۷] (٢) ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: ٢ «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ لِرَجُلٍ حَلَّفَهُ: ٣ "احْلِفْ بِاللَّهِ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ، ٤ مَا لَهُ عِنْدَكَ شَيْءٌ. يَعْنِي لِلْمُدَّعِي"». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

---

[1] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأقضية /باب الرّجلين يدّعيان شيئا وليست لهما بيّنة (رقم-٣٦١٨) وابن ماجه فی کتاب الأحکام /باب القضاء بالقرعة (رقم-٢٣٤٦)

[2] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأقضية /باب کيف اليمين (رقم-٣٦٢٠)

**ترجمه:** ۱ او ابن عباس نه روایت دی ۲ یوه قضیه کښې چې کوم سړی یعنی مدعا علیه ته قسم ورکول وو ۳ هغه ته نبي کریم ﷺ وفرمایل ته په دي خبره د الله ﷻ قسم واخله چې د هغه نه ماسوا بل معبود نشته ۴ چې د دې سړي یعنی مدعي په تاهیڅ حق نشته (ابوداود).

**تسهیلات:**

**قوله:** اَحْلِفْ بِاللّٰهِ..الخ:

**دعدم گواه په صورت کښې د مدعی علیه نه قسم اخستل:** داخو واضح دی چه کله مدعی سره گواه نه وی نو د مدعلیه نه به قسم اخستلې شی. نبی کریم دلته هم د دغه اصولو لاندې فیصله اوفرمائیله چه "احلف" ته قسم اوخوره. دَ قسم په سلسله کښې داخبره یاد ساتل ضروری دی چه قسم ورکول په عدالت کښې دَ قاضی حق دې. د مسلمان نه به د هغه دَعقیده توحید مطابق قسم اخستلې شی او عیسائی ته به وئیلې شی چه دَ انجیل نازلونکی رب قسم اوخوره او یهودی ته به وئیلی شی چه دَ تورات دَ نازلونکی رب قسم اوخوره او مجوسی وغیره ته به دَ الله تعالی دَ قسم خوړلو وئیلې شی. داخبره هم دَ یاد ساتلو ده چه دَ مدعلیه دَ قسم به په هرصورت کښې اعتبار کیږی که هغه سړې عادل وی او که عدل په کښې نه وی

## [۳۷۷۵] مدعاعلیه ته د قسم حق ورکول

وعـن ـ[۱۸] (۱) ۱ وَعَنِ الْأَشْعَثِ بْنِ قَيْسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ ۲: «كَانَ بَيْنِي وَبَيْنَ رَجُلٍ مِنَ الْيَهُودِ أَرْضٌ، ۳ فَجَحَدَنِي، فَقَدَّمْتُهُ إِلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ۴ فَقَالَ: "أَلَكَ بَيِّنَةٌ؟" قُلْتُ: لَا.

**ترجمه:** ۱ اشعث ﷺ ابن قیس نه روایت دی هغه اوویل ۲ یوه زمکه زما او د یهودي په مینځ کښې مشترکه وه ۳ لیکن یهودي هغه زمکه باندې زما د حصې تسلیمولو نه انکار وکړو ما هغه د نبي کریم ﷺ په خدمت کښې راوستی او خپله معامله مې ورته پیش کړه ۴ حضور راته وفرمایل آیا تاسره شاهد شته؟ ما عرض اوکړو نه

۱ قَالَ لِلْيَهُودِيِّ: "احْلِفْ" ۲ قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! إِذَنْ يَحْلِفَ وَيَذْهَبَ بِمَالِي، ۳ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالَى: ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا﴾ [آل عمران: ۷۷] الآيَةَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ حضور ﷺ یهودي ته وفرمایل ته قسم واخله ۲ په دې اوریدو سره ما عرض اوکړو چې یارسول الله دی به داوخت قسم واخلي او زما مال به هضم کړي الله ﷻ ۳ د دې قسم د یوې قضیې په سلسله کښې اچې د هغه ذکر د ابن مسعود ﷺ روایت کښې تیر

---

(۱) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأقضية /باب إذا كان المدّعى عليه ذمّيا أيحلف (رقم-۳۶۲۱) والترمذي في كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم /باب: ومن سورة آل عمران(رقم-۲۹۹۶) و ابن ماجه في كتاب الأحكام باب البينة على المدّعى. واليمين على المدّعى عليه (رقم-۲۳۲۲) واحمد في المسند: ۲۱۱/۵

شوی دی! دا آیت نازل کړو إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا (الآیه) ترجمه یقینا کوم خلق چې حقیره معاوضه د هغه عهد په مقابله کې آخلي چې الله ﷻ سره هغوی کړي دی او په مقابله د خپلو قسمونو الخ دا روایت ابوداود او ابن ماجه نقل کړي دی.

**تسهيلات: قوله** فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى:

**اشکال:** په دې روایت باندې دا سوال دې چه کله په یهودی باندې دغه صحابی اعتراض اوکړو نود الله تعالی دَ طرف نه یوآیت نازل شو اوس سوال دادې چه په دغه آیت کښې ددې صحابی دَ اعتراض جواب څنګه راغلو؟

**د اشکال جواب:** کله چې صحابی اووئیل دا یهودی دې قسم به خوری نودقرآن کریم آیت دَ وعید په توګه رانازل شو په کوم کښې چه الله تعالی دَ دروغو په قسمونو او بدعهدئی په وعدوباندې سخت نکیراوفرمائیلو په دې سره لکه چه یهودی ته تنبیه اوشوه که چرې ته غلط قسم خوری نوددې سزا به ډیره خطرناکه وی بل ددې آیت مضمون او په تورات کښې دَ دروغو په قسم باندې سخت وعید هم دَ یوشان قسم احکام دی نو په دې آیت سره یهودی ته یادګیرنه ورکړې شوه چه ګوره که دَ دروغوقسم خورې نوته دَ خپل کتاب تورات دَ حکم مطابق به سزاخوری داځه چه ددې سوال په جواب کښې لیکلی دی د یوحده پورې علامه طیبی رحمه الله هم لیکلی دی اوددې سوال حل صرف هم دغه دې الکاشف **۳۰۶-۳۰۷/۷.**

**[۳۷۷۶] په دروغه قسم خوړلو څخه د یو سړی ویریدل**

٣٧٧٦-[١٩] (١) ① وَعَنْهُ، ② «أَنَّ رَجُلًا مِنْ كِنْدَةَ، وَرَجُلًا مِنْ حَضْرَمَوْتَ، اخْتَصَمَا إِلَى رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي أَرْضٍ مِنَ الْيَمَنِ. ③ فَقَالَ الْحَضْرَمِيُّ: يَا رَسُولَ اللهِ! إِنَّ أَرْضِي اغْتَصَبَهَا أَبُو هَذَا، وَهِيَ فِي يَدِهِ.

**ترجمه:** ① حضرت اشعث رضي الله عنه ابن قیس نه روایت دی ② د قبیله کنده یو سړی او د حضرت موت یو سړی دواړو د یمن د یوې زمکې په باره کې خپله قضیه آخستو سره د رسول کریم ﷺ په خدمت کې حاضر شو ③ حضرمي عرض اوکړو یا رسول الله! د دې سړي پلار زما نه څما زمکه په زور واخستې وه او اوس هغه د ده په قبضه کې ده زه تاسو ته درخواست کوم چې څما هغه زمکه دې ماته واپس راکول شي

① قَالَ: هَلْ لَكَ بَيِّنَةٌ؟ ② قَالَ: لَا، وَلَكِنْ أَحْلِفُهُ، وَاللهِ مَا يَعْلَمُ أَنَّهَا أَرْضِي اغْتَصَبَنِيهَا أَبُوهُ؟ ③ فَتَهَيَّأَ الْكِنْدِيُّ لِلْيَمِينِ. ④ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: لَا يَقْطَعُ أَحَدٌ مَالًا بِيَمِينٍ، إِلَّا لَقِيَ اللهَ وَهُوَ أَجْذَمُ. ⑤ فَقَالَ الْكِنْدِيُّ: هِيَ أَرْضُهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

[١] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأقضیة/باب الرّجل یحلف علی علمه فیما غاب عنه (رقم-٣٦٢٢) واحمد فی المسند:٢١٢/٥

**ترجمه**: [۱] حضور ﷺ حضرمي ته وفرمایل آیا تاسره شاهد شته؟ چې شاهدی ورکړي چې هغه زمکه واقعتا ستا ده [۲] هغه عرض اوکړو نه لیکن زه به ده ته په خدای قسم ورکولو سره دا اقرار په کوم چې ده ته نه ده معلومه چې دا زمکه څما حضرمي ده چې د ده پلار زما نه په زور واخستي وه [۳] نو هغه کندي قسم اخستو د پاره تیار شو خو کوم وخت چې قسم اخستو د پاره تیار شو [۴] نو رسول کریم ﷺ ورته وفرمایل یاد لره کوم سړی هم چې دروغ قسم اخستلو سره د چا مال هضم کړي هغه به د الله ﷻ سره داسې حال کې ملاقات کوي چې د هغه لاس به پریکړي وي [۵] کندي په دي اوریدو سره اوویل زه اقرار کوم چې هغه زمکه د دې سړي ده. (ابوداود)

**حل اللغات**: ① اغْتَصَبَهَا: په زور زبردستئ ئې اخستې ده. ② فَتَهَيَّأَ: نو تیار شو. ③ أَجْذَمُ: پرې شوې. کټ شوې.

**قوله**: وَلَكِنْ أُحَلِّفُهُ...الخ:

یعنی د دې سړی پلار هغه زمکه زمانه په زور اخستې وه او هم هغه زمکه دَدې سړی په قبضه کښې ده چونکه هغه سره گواه نه وو په دې وجه هغه اوویل چه زه به ده له قسم ورکوم لیکن قسم به داسې وی چه داسړې به پخپله وائی چه په الله تعالی قسم چه ماته بالکل معلومه نه ده چه دا زمکه دَدې سړی ده دَ چانه چه زما پلار په زور اخستې ده

**قوله**: إِلَّا لَقِيَ اللّٰهَ وَهُوَ أَجْذَمُ:

**د اجذم د لفظ تحقیق**: هغه سړې دَداسې قسم خوړلو دَپاره تیارشو خو کله چه نبی کریم وعید واؤرولو نوهغه اقرار اوکړو چه دا زمکه واقعی هم دَدې حضرمی سړی ده "اجذم" جذام یومشهوره او خطرناکه بیماری ده په کوم سره چه دَ بدن اندامونه دَ حدنه زیات چاقیدو سره پړسیږی او بیا پرې کیدو سره ټکړې ټکړې کیږی.

په لغت کښې هم جذم، ضرب یضرب نه په تیزئی سره دَ پرې کیدو په معنی کښې دې اودَ پوره لاس په پرې کیدو باندې هم ونیلې شی

**[۲۷۷۷] په دروغو قسم خوړل اوګناه کبیره**

۳۷۷۷–[۲۰] (۱) [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أُنَيْسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«إِنَّ مِنْ أَكْبَرِ الْكَبَائِرِ الشِّرْكَ بِاللّٰهِ، وَعُقُوقَ الْوَالِدَيْنِ، وَالْيَمِينَ الْغَمُوسَ، [۳] وَمَا حَلَفَ حَالِفٌ بِاللّٰهِ يَمِينَ صَبْرٍ، [۴] فَأَدْخَلَ فِيهَا مِثْلَ جَنَاحِ بَعُوضَةٍ، [۵] إِلَّا جُعِلَتْ نُكْتَةً فِي قَلْبِهِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

[۱] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة النساء (رقم- ۳۰۲۰) واحمد فی المسند: ۴۶۵/۳

**ترجمه:** [١] او عبد الله بن أنيس رضي الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [٢] په لويو ګناهونو كې د ټولو نه لوى ګناهونه دادي ① الله تعالى سره څوك شريكول ② د مور پلار نافرماني كول ③ او په دروغو باندې قسم اخستل [٣] ياد لرئ كوم قسم اخستونكى چې د مجبورى او د قيد په حالت كې هم په خداى قسم واخستلو [۴] او هغه په قسم كې د ماشي د وزر برابر ايعنى لږ شان هم دروغ شامل كړل [۵] نو د هغه په زړه كې قيامته پورې يوه نكته پيدا كيږي چې د هغه وبال به په آخرت كې ظاهر شي [دا روايت ترمذي نقل كړي دى او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دى.]

**حل اللغات:** ①الْغَمُوسَ: دروغ قسم. ②يَمِينَ صَبْرٍ: محبوس كيدو. او راايسارولو سره قسم اخستل. دروغ قسم خوړل ③جَنَاحِ: وزر. ④بَعُوضَةٍ: ماشي. ⑤نُكْتَةً: داغ

**تسهيلات:**

**قوله:** وَمَا حَلَفَ حَالِفٌ بِاللَّهِ يَمِينَ صَبْرٍ:

**يمين صبر نه مراد:** دلته دَ يمين صبرنه په عدالت كښې دننه قسم خوړل مراد دي يعنى دَعدالت په كمره كښې كه يوسړې په خپل قسم كښې لږ شان هم دروغ وائى نودَدې سړى په زړه باندې دَ ګناه يوه نكته يعنى داغ جوړيږى اودا داغ دَ رين اثر دې لكه چه دا دَمهر جباريت يوه حصه ده دا اثر به دَدې سړى دَزړه نه ترقيامته پورې نه ختميږى.

**[٣٧٧٨] دَمكان اوزمان په وجې دَ قسم حيثيت زياتيدل**

> ٣٧٧٨-[٢١] ([1]) [١] وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «لَا يَحْلِفُ أَحَدٌ عِنْدَ مِنْبَرِي هَذَا عَلَى يَمِينٍ آثِمَةٍ، [٣] وَلَوْ عَلَى سِوَاكٍ أَخْضَرَ إِلَّا تَبَوَّأَ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ، [۴] أَوْ وَجَبَتْ لَهُ النَّارُ». رَوَاهُ مَالِكٌ، وَأَبُودَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] او حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [٢] كوم سړى چې څما دي منبر سره قسم واخستلو او د هغه قسم دروغ وي [٣] اګر چې د يوشين مسواك د پاره وي نو هغه د دوزخ په اور كې ځان ته ټيكانه تياروي [۴] يا دايي وفرمايل چې د هغه د پاره د دوزخ اور واجب كيږي (مالك ابوداود ابن ماجه)

**حل اللغات:** ①يَمِينٍ آثِمَةٍ: ګناهګار قسم. دروغ قسم. ②سِوَاكٍ: مسواک. ③أَخْضَرَ: شين. ④تَبَوَّأَ: تياركړي دې. ⑤مَقْعَدَهُ: ځاني دكيناستلو خپل. استوګنه

[1] ) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأيمان والنذور/باب ما جاء فى تعظيم اليمين عند منبر النبيّ (رقم-٣٢٤٦) و ابن ماجه فى كتاب الأحكام / باب اليمين عند مقاطع الحقوق (رقم-٢٣٢٥) ومالک فى الموطا كتاب الأقضية/باب ما جاء فى الحنث على منبر النبيّ صلّى الله عليه وسلّم (رقم-١٠)

**تسهیلات:**

**قوله لَا يَحْلِفُ أَحَدٌ عِنْدَ مِنْبَرِي هَذَا:**

**په مبارک او مقدس مقام کښې د قسم خوړلو وعید:** په جمات کښې منبر اومحراب هسې هم یومقدس مقام دې اوبیا دَ مسجد نبوی دَ منبر شان خو څه بل څه دې اوبیا دَ منبر نسبت دَحضور ﷺ طرف ته کولوسره خودَدغه منبر شان بې مثال شو

اوس دَ دروغو قسم خوړل خو هسې هم ډیره لویه ګناه ده که هغه هرځائی کښې وی لیکن که یو سړې دَداسې مقدس مقام سره دَدروغو قسم اوخوری نودا دَالله تعالی غضب ته دعوت ورکول دی دغه شان دَمقدس مقام د وجې نه دَ قسم حیثیت اوعظمت زیاتیږی دغه شان دَ جمعې په ورځ دَمازیګیر نه پس قسم خوړل دَ زمانې دَعظمت دَ وجې نه دَ قسم حیثیت زیاتیږی او په دې کښې تغلیظ راځی دَ یومقام اومکان دَ وجې نه دَتغلیظ مثال علماء کرامو لیکلې دې که یوسړې په مکه کښې وی نو دَ حجراسود اومقام ابراهیم په مینځ کښې ځائی دَ ټولونه معظم دې په دې کښې دَ قسم حیثیت زیاتیږی

اوکه یو سړې په مدینه کښې وی نودَنبې کریم قبرسره ځائی ډیرمعظم دې اوکه یو سړې په بیت المقدس کښې وی نودَ قسم دَپاره دَ ټولونه معظم ځائی ګنبدصخرا سره ځائی دې او په عام دنیاکښې جامع مسجد او بیا عام جمات مقدس مقامات دی شوافعو حضرات: قسم تغلیظ مکان اوزمان په ذریعه سره جائزمنی لیکن احناف وائی چه قسم صرف قسم دې دَ یوزمان اومکان دَ وجې نه دَدې په حیثیت باندې اثر نه پریوځی ظاهری نصوص شوافعو سره دی

**قوله وَلَوْ عَلَى سِوَاكٍ أَخْضَرَ:**

**د سواکِ اخضر نه مراد:** د شین مسواك نه کم څیز مراد دې که هغه شین مسواك وی اوکه اوچ وی دمسلم شریف په یو روایت کښې قضيبامن أراك الفاظ راغلی دی یعنی دَمسواك ونه اودَ کیکرښاخ دې نه هم مراد قلیل یعنی کم څیز دې

**[۲۷۷۹] د دروغو ګواهۍ او د شرک برابری**

۳۷۷۹ - [۲۲] ( ) [۱] وَعَنْ خُرَيْمِ بْنِ فَاتِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ [۲]: «صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - صَلَاةَ الصُّبْحِ، فَلَمَّا انْصَرَفَ، قَامَ قَائِمًا، [۳] فَقَالَ: "عُدِلَتْ شَهَادَةُ الزُّورِ بِالْإِشْرَاكِ بِاللَّهِ. ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، [۴] ثُمَّ قَرَأَ: ﴿فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزُّورِ - حُنَفَاءَ لِلَّهِ غَيْرَ مُشْرِكِينَ بِهِ﴾ [الحج: ۳۰-۳۱]». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأقضیة /باب فی شهادة الزّور (رقم -۳۵۹۹) وابن ماجه فی کتاب الأحکام /باب شهادة الزّور (رقم-۲۳۷۲)

**ترجمه:** [۱] او خريم ابن فاتك رضي الله عنه وايي [۲] چې يوه ورځ رسول کريم ﷺ چې د سحر د مونځ نه فارغه شو نو صحابه رضي الله عنهم ته خطاب کولو د پاره اودريدلو [۳] او دري ځله يي دا الفاظ وفرمايل چې د دروغو شاهدي د شرك بالله برابره ده [۴] د دې نه وروسته حضور ﷺ بطور دليل دا آيت تلاوت کړو فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزُّوْرِ حُنَفَاءَ لِلّٰهِ غَيْرَ مُشْرِكِيْنَ بِهٖ پليتي ، د بتانو د پرستش، نه ځان اوساتئ او دروغ ويلو نه پرهيز کوئ. اوشئ تاسو د باطل نه حق طرف ته رجوع کونکي نه شرك کونکي دالله سره دا روايت ابوداود او ابن ماجه نقل کړي دی

**حل اللغات:** ①انْصَرَفَ: اوګرځيدو. ②شَهَادَةُ: ګواهی. ③الزُّوْر: دروغ. ④الرِّجْسَ: پليتی. ⑤الْأَوْثَانِ: جمع د وثن. بُتان. ⑥قَوْلَ الزُّوْرِ: دروغ وينا. ⑦حُنَفَاءَ: حق طرف ته رجوع کونکی

۳۷۸۰ -( ) [۱] وَرَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ عَنْ أَيْمَنَ بْنِ خُرَيْمٍ، [۲] إِلَّا أَنَّ ابْنَ مَاجَهْ لَمْ يَذْكُرِ الْقِرَاءَةَ.

**ترجمه:** [۱] او دا روايت احمد او ترمذي هم ايمن ابن خريم نه نقل کړي دی [۲] او د ابن ماجه نقل کرده روايت کې د آيت شريف تلاوت کول مذکور نه دی

**تسهيلات:**

**دراوي مختصر تعارف:**

**حضرت خريم بن فاتک رضي الله عنه مختصر حالات:** نوم خريم دَ پلارنوم فاتك الاسدی دې اوابويحيی دَ هغه کنيت دې. په صلحه حديبيه کښې شرکت کونکې صحابی دې. دَ هغه تعلق شام سره وو اوبعضو هغه په اهل کوفه کښې شميرلې دې.

**مرويات:** دَ هغوی نه لس روايتونه نقل دی کوم چه په سنن کښې موجود دی. بخاری اومسلم دَ هغه نه يو روايت هم نه دې نقل کړې.

**قوله:** عُدِلَتْ شَهَادَةُ الزُّوْرِ بِالْإِشْرَاكِ بِاللّٰهِ:

د حديث پاك حاصل دادې چې په دروغه قسم خوړل اوشرك کول دواړه ګناه کبيره دی لکه څنګه چې ظاهری پليتی په بدن يا کپړا باندې اولګی نو داشان بت پرستی زړۀ ګنده کوی لکه څنګه تاسو د ظاهری پليتی نه نفرت کوئی نو هم دغه شان نفرت د باطنی ګندګی نه هم اوکړئی. او د بدن نه زيات نه د زړۀ او روح فکر اوکړه

**قوله:** ثلاث مرات: نبی کريم ﷺ دا خبرې درې ځل اوکړې. دا تکرار د وعيد او د مبالغې تاکيد دپاره دې.

---

[۱] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الشّهادات عن رسول الله صلّی الله عليه وسلّم/باب ما جاء فی شهادة الزّور (رقم ۲۳۰۰) واحمد فی المسند: ۴/۳۲۶

**[۳۷۸۱] غیر معتبر گواهي**

۳۷۸۱-[۲۳] ( ) [۱] وَعَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «لَا تَجُوزُ شَهَادَةُ خَائِنٍ، وَلَا خَائِنَةٍ، وَلَا مَجْلُودٍ حَدًّا، وَلَا ذِي غِمْرٍ عَلَى أَخِيهِ، وَلَا ظَنِينٍ فِي وَلَاءٍ وَلَا قَرَابَةٍ، وَلَا الْقَانِعِ مَعَ أَهْلِ الْبَيْتِ» . [۳] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. وَيَزِيدُ ابْنُ زِيَادٍ الدِّمَشْقِيُّ الرَّاوِي مُنْكَرُ الْحَدِيثِ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] د دي (شپږ قسمه) خلقو شاهدي جائز او معتبره نه وه ① د خيانت کونکي سړي او خيانت کونکي ښځي ② په کوم سړي چې د تهمت حد جاري شوی دی ③ دښمن چې د خپل مسلمان ورور برخلاف وي ④ هغه سړی چې د ولاء په باره کې متهم وي ⑤ هغه سړی چې د قرابت په باره کې متهم وي ⑥ هغه سړی چې په يوکور قانع وي [۳] امام ترمذي دا روايت نقل کړي دی او ويلي يي دي چې دا حديث غريب دی او د دې حديث يو راوي يزيد ابن زياد دمشقي منکر الحديث دی

**حل اللغات:** ① خَائِنٍ: خيانت کونکې. ② مَجْلُودٍ: چه کوړې (شرعی سزا) ورکړې شوې وی. ③ حَدًّا: شرعی سزا او جرم. ④ ذِي غِمْرٍ: بُغض او کينه لرونکې، حسد ساتونکې. ⑤ ظَنِينٍ: چه تهمت پرې لګيدلې وی. ⑥ وَلَاءٍ: د آزاد کړی غلام ميراث. ⑦ قَرَابَةٍ: رشته داری. ⑧ الْقَانِعِ: ګذاره کونکې.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا تَجُوزُ شَهَادَةُ خَائِنٍ، وَلَا خَائِنَةٍ:

**د ګواه د عدالت ضرورت:** په دې حديث کښې اودې نه پس راتلونکې دوو احاديثو کښې د داسې خلقو بيان دې دچا ګواهی چه نه قبليږی. د اسلام په نظر کښې چه څومره د حاکم عادل کيدل ضروری دی هم دومره د ګواه عادل کيدل هم ضروری دی دې دپاره چه د فيصلې پورې د رسيدو واسطه اووسيله هم صحيح وی. په دې حديث کښې هم د داسې خلقو ګواهی غيرمعتبرګرځولې شوې ده چه څوك د عدل اوانصاف په معيارباندې نه پوره کيږی لکه خائن سړې اوخائنه ښځه. د خيانت مفهوم عام کيدې شی څوك چه په دنيا اودين دواړو کښې خيانت کونکې وی. چونکه دخيانت د وجې نه داخلق فاسقان شوی دی اود شهادت دپاره عادل کيدل ضروری دی په دې وجه ددوی ګواهی معتبر نه ده. په عرف عام کښې خائن هم هغه دې چه دخلقو په مالونو کښې اوامانتونو کښې خيانت کوی ددې حديث په رڼاکښې هم دغه مفهوم زيات واضح دې. بعضې مطلق فاسق مراد اخستې دې

---

[1] ) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الشهادات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فيمن لا تجوز شهادته (رقم-۲۲۹۸)

**قوله: وَلَا مَجْلُودٍ حَدًّا:**

**د مجلود تعریف:** مجلود دَ جلد نه دي اوجلدکوړي ته وائي یعنی چاته چه په حدقذف کښې کوړې لګیدلې وی په

**دَ توبی نه ورسته د محدود فی حد القذف د ګواهی په قبلولو کښې ۲ مذاهب:**

① داسې قاذف باندې چه کله حدنافذ کیدوسره په کوړو باندې اووهلې شی نودې نه پس که دامحدود توبه اوکړی نوبیا دَ شوافعو په نیز دَ هغه ګواهی معتبر ده

② دَ احنافو په نیز که توبه هم اوباسی نو بیا ئې هم توبه نه ده قبول

**د اول فریق دلیل:** ځکه چه ﴿إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِنْ بَعْدِ ذَٰلِكَ﴾ استثناء ﴿وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا﴾ نه ده نوچه کله قاذف توبه اوکړی نودَ ده ګواهی به معتبره شی سره دَدې چه قذف ورته لګیدلې وی بلکه دَ ټولو حدودو هم دغه حکم دې

**داول فریق د دلیل جواب:** او آیت ﴿ إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا ﴾ استثناء ﴿ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ﴾ سره ده ځکه چه دا قریب هم ده او شهادةً نکره راوړلوسره دَعموم طرف ته اشاره هم ده چه دَځه قسم ګواهی منظوره نه ده اودَ ابداً په الفاظو سره نور تاکید هم پیداکړې شوې دې اوزیر نظرواضح حدیث هم دې لهذا محدودفی القذف چه کله خپله ژبه دَ یوپاکدامنې ښځې په بهتان کښې ککړه کړه نودَ ده سزا هم دغه ده چه دَهمیشه همیشه دَپاره دَ ده په خله باندې اعتبار اونه کړې شی.

**د دویم فریق دلیل:** دَ نورو حدودو حکم هم دغه شان دې لیکن حد قذف لګیدونه پس سړې دَهمیشه دَپاره مردودالشهادت جوړیږی په دې وجه په توبه کولوسره دَ هغه ګواهی معتبرکیدې نه شی

**د حدیث د بعضې جملو وضاحت:** ① وَلَا ذِي غِمْرٍ: غمر دښمنئی بغض اوعداوت اوحسدته وائی نودَ داسې قسم کینه حسد اودښمنئی جذبه لرونکی سړی ګواهی په یومسلمان رور باندې جائز نه ده که هغه دَ ده سکه رور وی اوکه عام مسلمان وی ځکه چه دَ دښمنئی او عداوت داجذبه به دې په عدالت باندې قائم پاتې کیدو ته پرینږدی

② **قوله:** وَلَا ظَنِينٍ فِي وَلَاءٍ: ظنین متهم ته وائی لکه ﴿وَمَا هُوَ عَلَى الْغَيْبِ بِضَنِينٍ﴾ آیت هم په دې معنی کښې دې

**د متهم في الولاء فسق او د عدم قبول شهادت وجه:** میراث ته وئیلې شی یعنی یوغلام چه کله آزاد شی اوبیامړشی نودَ دغه آزاد کړې شوی غلام میراث به دَ آزادونکی آقا وی اوس که چرته غلام په خپل نسبت کښې دروغ وائی چه مثلاً زه حارث آزاد کړې یم حالانکه خلقوته ښه پته ده چه دې حارث نه بلکه زید آزاد کړې دې نوداغلام په دې نسبت

کښې "متهم فى الولاء" دې دې دَ اصل مالك حق وهل غواړی په دې سره دا فاسق شو اودَ فاسق ګواهی معتبر نه ده لهذا دَ ظنين فى الولاء ګواهی مردود ده

⑤قوله. وَلَاقَرَابَةٍ:

**د ظنين فى القرابة ه مردود الشهادت کيدو وجه:** هم دغه شان معامله دَ ظنين فى القرابة هم ده چه مثلاً يو سړې وائى زه دَ عمر خوئى يم حالانكه خلقوته ښه پته ده چه دې دروغ وائى داخودَ عمر خوئى نه دې بلكه دَ بكر خوئى دې نو په دې دَ دروغو نسبت سره دا سړې مردود الشهادة شو لهذا دَده ګواهی معتبر نه ده

⑥قوله: وَلَاالْقَـانِعِ مَعَ أَهْلِ الْبَيْتِ:

**د قانع مصداق:** القانع نه مراد هرهغه سړې دې چه دَ چا په نان اونفقه اوخرچه باندې ګذاره کوی لكه خادم چه دې نو کردې شاګرددې مريد دې

**د ګواهى دعدم قبوليت وجه:** دَدوی ګواهی ځكه معتبر نه چه ددې دواړو په مفادات کښې اشتراك دې نوکيدې شى چه دا سړې دَ دغه مفاداتو په رنړاکښې په ګواهئى کښې دَ طرفدارئى نه کارواخلى اوغلطه ګواهی ورکړی احناف فرمائى چه هم دَدې مفاداتو په رنړا کښې دَ ښځې ګواهی دَخاوند په حق کښې معتبر نه ده نه دَ خاوند ګواهی دَ ښځې په حق کښې صحيح ده شوافعو حضرات دا صحيح منى

**[۳۷۸۲] مردود الشهادة كسان**

۳۷۸۲ـ[۲۴] (١) ⓵وَعَنْ عَمْرِوبْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ⓶ «لَا تَجُوزُ شَهَادَةُ خَائِنٍ، وَلَا خَائِنَةٍ، وَلَا زَانٍ، وَلَا زَانِيَةٍ، وَلَا ذِي غِمْرٍ عَلَى أَخِيهِ. ⓷وَرَدَّ شَهَادَةَ الْقَانِعِ لِأَهْلِ الْبَيْتِ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ⓵او عمرو ابن شعيب رحمه الله خپل پلار نه او د هغه پلار د خپل نيكه (دادا) نه او هغه د نبي كريم ﷺ نه نقل كوي حضور ﷺ وفرمايل ⓶ ①نه خو د خيانت كونكي سړي ②او خيانت كونكي ښځي شاهدي درسته ده ③نه د زنا كونكي سړي ④او زنا كونكي ښځي شاهدي درسته ده ⑤دغه شان د دښمن شاهدي د خپل دښمن خلاف به مقبول نه وي ⓷او حضور ﷺ په يوه مقدمه كې د هغه سړي شاهدي رد كړله چې د يو كور په كفالت او پرورش كې وي او هغه شاهدي د هغه كور والا وو په حق كې وركړي (ابوداود)

**حل اللغات:** ①ذِي غِمْرٍ: بُغض او كينه لرونكې. حسد ساتونكې. ②الْقَانِع: ګذاره كونكې.

[1] ) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأقضية/باب من تردّ شهادته (رقم-۳۶۰۰) وابن ماجه فى كتاب الأحكام/باب من لا تجوز شهادته (رقم-۲۳۶۶) واحمد فى المسند:۱۸۱/۲

**تسهيلات:**

**قوله:** وَرَدَّ شَهَادَةَ الْقَانِعِ لِأَهْلِ الْبَيْتِ هغه خادم چې د هغه خرچ د بل چا په ذمه وی نو دهغه گواهی معتبره نه ده خکه چې دې گواهی ورکوی خو د خپل ذات دپاره فائده لټوی ،التعليق الصبيح ج۴ص۲۹۷،

**[۳۷۸۳] د کلی والی د گواهی حیثیت په مقابله د ښهری کښې د شهادت حیثیت**

۳۷۸۳—[۲۵] ( )[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «لَا تَجُوزُ شَهَادَةُ بَدَوِيٍّ عَلَى صَاحِبِ قَرْيَةٍ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابو هريره رضي الله عنه د رسول كريم نه نقل كوي حضور وفرمايل [۲] په ښار كې د وسيدونكي په حق كې يا د هغه خلاف په ځنګل كې د اوسيدونكي شاهدي به درسته نه وي ،ابوداود ابن ماجه،

**حل اللغات** ① بَدَوِيٍّ: كلى وال. باندې والا. ② صَاحِبِ قَرْيَةٍ: دښار اوسيدونكې

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا تَجُوزُ شَهَادَةُ بَدَوِيٍّ:

**د بدوی نه مراد:** بدوی دَ بداوه طرف ته منسوب دې اوبداوه كلى اوصحرا ته وائى دا دَ حضاره په مقابله كښې راځى. دَ بدوى نه مراد هغه كلى وال دې كوم چه جټ ځنګلى او جاهل وى

**د کلی وال د گواهي د نه قبلولو دوه وجوهات:** ① كله چه كلى وال داسې وى نوهغه سره به علم نه وى تميزبه ئى نه وى اوڅه طريقه به ئى نه وى. دَ ښكته پورته نه به خبرنه وى د ګواهئى وركولو دَ شرطونونه به خبرنه وى دَ غفلت او نسيان يعنى هيرې به په هغه باندې غلبه وى

② ملاعلى قارى رحمه الله يوه وجه دا هم بيان كړې ده چه عمومًا په كلو اوښاريو كښې دښمنئى وى نودَ عداوت په وجه به دَ دوى ګواهى غيرمقبول وى

**په حدیث الباب کښې توجیه:** بهرحال كه چرې بدوى كښې سليقه وى پوهه وى اوتميزپه كښې وى نود جمهورو په نيزدَ هغه ګواهى دَ عام‌وانسانانو په شان به مقبول وى او امام مالك رحمه الله فرمائى چه په مطلق توګه باندې دَ يوكلى وال ګواهى به په يوښارى باندې مقبول نه وى جمهورو دا زيربحث حديث په غالبى او اكثرى احوال باندې محمول كړې دې

[۱]) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأقضية /باب شهادة البدوىّ على أهل الأمصار (رقم-۳۶۰۲) وابن ماجه فى كتاب الأحكام /باب من لا تجوز شهادته (رقم-۲۳۶۷)

**[۳۷۸٤] مدعی ته د مدعا په ښه طريقه د بيا نولو ترغيب**

۳۷۸۴—[۲۶] (۱) ۱ وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، ۲ «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَضَى بَيْنَ رَجُلَيْنِ، ۳ فَقَالَ الْمَقْضِيُّ عَلَيْهِ لَمَّا أَدْبَرَ: حَسْبِيَ اللَّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ. ۴ فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى يَلُومُ عَلَى الْعَجْزِ وَلَكِنْ عَلَيْكَ بِالْكَيْسِ، ۵ فَإِذَا غَلَبَكَ أَمْرٌ فَقُلْ: حَسْبِيَ اللَّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ او عوف رضی الله عنه ابن مالک وايي ۲ يو وخت رسول کريم ﷺ د دوو سړو په مينځ کې د يوي مقدمي فصيله وکړله چې د يوسړي خلاف او د دويم په حق کې وه د مقدمي فيصله وکړله چې د يوسړي خلاف او د دويم په حق کې وه ۳ د مقدمي فيصله چې د کوم سړي خلاف شوي وه هغه د مجلسِ نبوي نه پاڅيدو سره واپس تلوکي اوويل چې حَسْبِيَ اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ يعنی ماته ځما الله کافي دی او هغه بهترين کار ساز دی ۴ نبي کريم ﷺ په دي اوريدو سره وفرمايل: الله جل جلاله ناداني او لاپرواهي باندې ملامت کوي تاته دانايي او هوښياري ضروري ده ۵ که په دي هم په تا څه مصيبت راشي نو حَسْبِيَ اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ وايه (ابوداود)

**حل اللغات:** ①الْمَقْضِيُّ عَلَيْهِ: دچا په خلاف چه فيصله اوشی، ②أَدْبَرَ: شاتې کړه. روان شو. ③يَلُومُ: ملامت کوی. ④الْعَجْزِ: عاجز پاتې کيدل. ⑤الْكَيْسِ: هوښيار

**تسهيلات:**

**قوله:** حَسْبِيَ اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ:

**د روايت پس منظر:** دملاعلی قاری رحمه الله دَ بيان نه معلوميږی چه دغه سړی غالبًا دَچانه قرض اخستې وو اورسيدئی ليکلې وو بياهغه قرض واپس کړو مگر داغفلت ترې اوشو چه دَ قرض واپس کولو وخت کښې ئی څه رسيد اوثبوت جوړنه کړو قرض ورکونکی په هغه باندې دعوی اوکړه چه زما قرضه اداکړه په تاباندې دومره قرض دې اودا رسيد دې دې عاجز په جواب کښې اووئيل چه ماخوقرض اداکړې دې هغه ورته اووئيل تاسره څه ثبوت دې چه تا واپس کړې دې په دې باندې مدعی مقدمه اوگټله اودغه عاجز دَ غم ارمان او افسوس اظهاراوکړو او وئی ونيل چه حسبی الله ونعم الوکيل

**قوله:** إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى يَلُومُ عَلَى الْعَجْزِ:

**د لين دين بهترينه ضابطه:** کله چه دغه سړی حسبی الله ونعم الوکيل اولوستلو نولکه چه په ضمنی توگه باندې هغه دَ نبی کريم په فيصله باندې مطمئن نه شو سره دَدې چه هغه په

۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأقضية باب الرّجل يحلف على حقّه (رقم-۳۶۲۷) واحمد فی المسند: ۲۵/۶

الفاظ کښې دَدې اظهاراونه کړو لیکن معامله په الله تعالی باندې پرېخودوسره ئې په اشاره دَخپلو جذباتو اظهاراوکړو. نبی کریم هغه ته په واضحه توګه اوفرمائیل چه په تا باندې خودا لازم وو چه ته خپله مقدمه او دَهغې په دلائل کښې هوښیار اوسیدې. که ستا دعویٰ صفا وه تاسره ګواه وې یا بل څه ثبوت وې. اوس چه نه تا بیان صفا ورکړونه دې ثبوت اوخودلو او دَمدعی مخامخ عاجز پاتې شوې نو اوس حسبی الله ونعم الوکیل لولې؟

**د تدبیر کولو نه ورستو په الله تعالی باندې بهروسه کول:** دااېت خوهغه وخت وئیل ېکاردی چه کله انسان خپل ټول تدبیرونه او ټول احتیاط په کار کښې راولی اوبیا عاجز پاتې شی او په هغه باندې دَ بچ کیدو ټولې لارې بندې شی نوهغه وخت دې حسبی الله ونعم الوکیل لولی. الله تعالی انسان دَ انسان په نادانئی اوعجز اولاپرواهئی باندې ملامت کوی لهذا دَ ملامتیاذمه وار ته پخپله ئی الکیس: هوښیاری بیداری تیزئی اوچالاکئی ته وئیلې شی.

**[۳۷۸۵] د ملزم د قید کولو ثبوت**

۳۷۸۵–[۲۷] ([۱]) [۱] وَعَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حَبَسَ رَجُلًا فِي تُهْمَةٍ». [۳] رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَزَادَ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ: «ثُمَّ خَلَّى عَنْهُ».

**ترجمه:** [۱] او بهز ابن حکیم د خپل پلار نه او هغه د خپل د نیکه (دادا) نه نقل کوي [۲] چې رسول کریم ﷺ یو سړی د تهمت په بناء قید کړي وو. [۳] (ابوداود) او ترمذي او نسائي دا الفاظ هم نقل کړي دي چې بیا حضور ﷺ هغه پرېښودی (رها کړلو)

**حل اللغات:** ① حَبَسَ: قید کړې وو. ② تُهْمَةٍ: په تهمت، دروغ الزام کښې. ③ خَلَّى عَنْهُ: پرې ئې خودو

**تسهیلات:**

**قوله:** حَبَسَ رَجُلًا فِي تُهْمَةٍ:

**د تهمت په وجه د قید کولو حکم:** یعنی دَتهمت په بنیادباندې نبی کریم دغه سړې قید کړې وو. داسې معلومیږی چه یوسړی په هغه باندې دَ قرض دعویٰ کړې وه یا په دې سړی باندې بل څه الزام وو او په دې وجه نبی کریم دغه سړې په قید حوالات کښې ساتلې وو دې دَپاره چه مدعی خپله دعویٰ صحیح ثابتولودَپاره څه ثبوت پیش کړی. لیکن چه کله مدعی خپله دعویٰ ثابته نه کړې شوه نونبی کریم هغه سړې هم په هغه ورځ روستو دَ الزام نه بری کولو سره پرېخودو. دَدې حدیث نه معلومیږی چه ملزم په قید کښې ساتل دَ

[۱]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأقضیة/باب فی الحبس فی الدّین وغیره (رقم-۳۶۳۰) والترمذی فی کتاب الدّیات عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب ما جاء فی الحبس فی التّهمة (رقم-۱۴۱۷) والنسائی فی کتاب قطع السّارق/باب امتحان السّارق بالضّرب والحبس (رقم-۴۸۷۶)

شرعي حكم مطابق دی. هسې علماؤ ليکلي دی دنبی کریم په زمانه کښې دَ مجرمانو دپاره باقاعده جيل نه وو ځکه چه په مسلمانانو کښې جرائم نه وو. البته کافران نبی کریم په قيد کښې ساتلي دی ليکن دَهغوی دپاره هم باقاعده څه جيل نه وو. هغوی به دَ جنګی قيديانو په شان په صحابه کرامو باندې تقسيم کولې شو اوصحابه کرامو به دَ هغوی نګرانی کوله.

**د قيد دوه قسمونه:** علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه ددې حديث نه معلومه شوه چه قيد کول په دوه قسمه باندې دی ① حبس عقوبت: حبس عقوبت خودَ څه واجب حکم دَ وجې نه کيږی ② حبس تهمت دې. حبس تهمت صرف دَ انکشاف حقيقت پورې وی په دې وجه هغه سړې نبی کريم څه ساعت پس خلاص کړو.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۳۷۸٦] د فريقينو د قاضي په مخکې د حاضريدو وجوب

۳۷۸٦–[۲۸] ([1]) ① عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الزُّبَيْرِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «قَضَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنَّ الْخَصْمَيْنِ يَقْعُدَانِ بَيْنَ يَدَيِ الْحَاكِمِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① عبد الله ابن زبير رضي الله عنه وايي ② چې رسول کريم ﷺ دا عدالتي فرمان ضابطه جاري کړله چې مدعي او مدعا عليه دواړه دي دَ حاکم روبرو مخکې کيني (احمد ابوداود).

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه:** نوم عبدالله ابوحبيب. ابوبکر او خبيب کنيت دې. دَ پلار نوم ئې زبير دَ مور بی بی نوم ئې اسماء وو دَ هغه لقب ذات النطاقين وو. په سن ۱ھ کښې دَ مهاجرينو په کور روميې هم دوی پيدا شو. رسول الله ﷺ تبرکًا کهجوره اوچيچله او دَ هغه په خُله کښې واچوله دَ اووه کالو په عمر کښې دَ رسول الله ﷺ سره بيعت شو.

دَ تولونه اول په جنګ يرموك کښې شريك شو. (۴) بيا چه په دغه جنګ کښې کومه توره په لاس کښې واخستله هغه ئې ترمرګه پورې دَ لاس نه پرينوتله. حضرت ابن زبير رضي الله عنه دَ ډيرو ژبو ماهر وو. دَ هغه ډير زيات غلامان وو چه مختلف ژبې به ئې وئيلې. حضرت ابن زبير رضي الله عنه به دغه تولو نه سره دَ هغوی په مورنئ ژبه کښې خبرې کولې.

**وفات:** ۷۲ ھ ذيقعده کښې عبدالملك حجاج بن يوسف دَحضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه دَ مقابلې دَ پاره روان کړو دغه وخت هغه په حرم شريف کښې پناه اخستې وه خومياشتو پورې په حرم شريف کښې راګير وو او دَ خومياشتو پورې داسې اُور اوکاڼړی وريدل چه ښکاريده لکه چه آسمان به په زمکه باندې راشي (۶) آخر جمادی الثانی ۷۳ ھ کښې حواری رسول دَ خيګر ټکړه او ذات النطاقين نور نظر خپل رب له اورسيدو.

[1] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأقضية /باب کيف يجلس الخصمان بين يدی القاضی (رقم-۳۵۸۸)

**روايات:** دَ هغوی نه ۳۳ روايتونه نقل دی په کوموکښې چه دوه په مسلم او بخاری کښې دی په ۶ بخاری او په ۲ کښې مسلم منفرد دې.

**حل اللغات:** - ① قضى دلته دا قضى دَ حکم او فيصله کولو په معنی کښې نه بلکه "اوجب" په معنی کښې دې چه دا حکم واجب دې

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنَّ الْخَصْمَيْنِ يَقْعُدَانِ بَيْنَ يَدَيِ الْحَاكِمِ:

**د خصمينو په مينځ کښې برابری کول:** يعنی دَ عدل انصاف او مساوات دَ اصولو په رنړاکښې په قاضی اوحاکم باندې واجب دی چه هغه دې دَ عدالت په کمره کښې مدعی اومدعاعليه برابر اويوشان کينه وی سره دَدې که دَ دواړو په مينځ کښې دَ رتبو په اعتبار سره هرڅومره فرق ولې نه وی. که يوغريب سره چرته دَ وخت دَ حاکم هم تنازعه وی نوقاضی له پکاردی چه هغه دې داحاکم هغه غريب سره برابر کينه وی هم دغه هغه ګرانه مرحله ده دکوم باره کښې چه علامه طيبی رحمه الله فرمائی: "وليس على القاضى امراشق والااخوف من التسوية بين الخصمين" يعنی دَ قاضی دَپاره دَدې نه زيات ګران او خطرناکه مرحله هيڅ يوه نه ده چه کله دَعدالت په کمره کښې مدعی اومدعليه پيش وی نو چه په هغه ددواړو کښې برابری اوکړی. واقعی علامه طيبی رحمه الله دَ رښتياؤ او حقيقت طرف ته نشان دهی کړې ده. نن صباخو په عدالتونوکښې دَ انصاف دَتقاضو نام اونشان هم نشته صرف دَ پيسو سوداګرئی په بنياد باندې اصول جوړيږی اوماتيږی. دَ انګريزانوعدالتونوته دَ عدالت نوم ورکول دَ عدالت توهين دې.

**د اسلام د ترقئ راز او انصاف** : دَ اسلام دَ ترقئی په وختونوکښې په اسلامی عدالتونوکښې په حاکم اومحکوم کښې دَ مساوات کښې دَ ښکلی واقعاتوهيڅ کمې نشته دې چه دَ پوره دنيا دَپاره معيار او قابل تقليد نمونه ده په دې تيرهيروخت کښې هم کوم وخت دَ اسلام دَ ښکلی اصولو په بنيادباندې په افغانستان کښې دَ طالبانو اسلامی عدالتونه قائم شو نودَ انصاف او مساوات نهرونه روان شو چه هرانصاف خوښونکی او شرافت غوښتونکی انسان دَپاره قابل تقليدنمونه وه ليکن دهشت خوښونکی تخريبی عناصر اودَ انسانيت دشمن قوتونو دا برداشت نه کړې شو ليکن په دنياباندې داخبره واضحه شوه که اسلام يونيم زرکاله وړاندې يوژوندې اوکلک مذهب وو نوهغه نن هم هغه شان مؤثر او ژندې دې اوراتلونکی وخت کښې به هم ترکومې چه دنياقائمه وی ان شاء الله ژوندې او آباد وی. الله تعالى دې دَخپل دين حفاظت اوکړی آمين يارب العالمين.

# [١٩] كِتَابُ الْجِهَادِ

## د جهاد بيان

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**خلاصة الباب:**

**فيه اثنان وسبعون حديثاً مشتملة على ثمانى عشرة مسئلة:**

① فضيلة جهاد المجاهدين: ١، ٢، ٣، ٩، ٢٣، ٢٦، ٣٥، ٣٧، ٤٢، ٥٨، ٦٣، ٦٤، ٦٦، ٦٩.

② فضيلة القتل والخروج في سبيل الله: ٤، ١٦، ١٧، ١٨، ١٩، ٢٠، ٢١، ٢٢، ٢٣، ٢٤، ٢٦، ٣٧، ٤٤، ٤٥، ٤٨، ٤٩، ٦٥، ٦٧، ٦٨، ٧٠، ٧١.

③ فضيلة الرباط والمرابط: ٥، ٧، ٢٦، ٤٠، ٥٢، ٥٣، ٦١.

⑤ فضيلة الإعانة مع الغزاة وقباحة عدمها: ١١، ١٢، ٥٤.

⑥ فضيلة الانفاق في سبيل الله: ١٣، ٣٨، ٣٩، ٦٩.

⑧ فضيلة تمنى الشهادة وأقسامها: ٢٢، ٢٥.

⑨ كون الجهاد فرض كفاية في بعض الأحيان: ١، ١٤، ٣٠.

⑩ كون إقامة الدين بالجهاد: ١٥، ٣٢.

⑪ الزجر على ترك الجهاد: ٢٧، ٣٣، ٤٧.

⑫ الجهاد في سبيل الله وفي غير سبيل الله: ٢٨، ٥٧، ٥٨، ٥٩، ٦٢.

⑬ ثواب المعذورين: ٢٩.

⑭ وجوب نية الجهاد: ٢٧، ٣١.

⑮ أقسام الجهاد: ٣٤، ٣٥.

⑯ جواز ركوب البحر للجهاد: ٥٠، ٥١.

⑰ حكم أخذ الأجرة على الجهاد: ٥٤، ٥٥، ٥٦.

⑱ وجوب إمضاء أمر الرسول الله ﷺ: ٦٠.

**دَ نسخو اختلاف:** دَ بخارى شريف په اكثرو نسخو كښې عنوان كښې "كتاب" مذكور نه دي، صرف ابن شبويه او نسفى داسې عنوان ذكر كړيدي.

بيا بسمله په ټولو نسخوكښې دَ مذكوره بالا عنوان نه روستوده، البته دَ نسفى په نسخه كښې بسمله دَ عنوان نه وړاندې ده. (١)

١) (عمدة القارى (ج ١٤ص٧٨)-

**دَ جهاد لغوی معنی:** دا دَباب مفاعله مصدر دې دَ دې معنی محنت مشقت او کوشش کول دی. په دې معنی کښې دَ جیم په کسره سره مستعمل دې. دَ جیم په فتحه سره په وزن دَ سحاب یعنی سخته شاړه زمکې ته وائی.(۱)

**اصطلاحی تعریف:** دَ جهاد اصطلاحی تعریف دې "القتال مع الکفار لتقویة الدین" (۲) یعنی دَ دین دَ مضبوطیا او استحکام دَ پاره کافرانو سره جنګیدل.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی "وشرعا بذل الجهد فی قتال الکفار" (۳) او علامه عینی رحمه الله "لاعلاء کلمة الله تعالیٰ" اضافه کړیده.(۴) یعنی دَ الله تعالیٰ دَ دین دَ سرلوړنی دَ پاره کافرانوسره دَ جنګیدو کوشش کول.

**دَ جهاد صورتونه:** علماو دَ جهاد مختلف صورتونه بیان کړی دی.

① جهادمع الکفار　② جهادمع الفساق
③ جهاد مع الشیطان　④ جهاد مع النفس.

دَ دې تفصیل دا دې چه جهاد مع الکفار په لاس، مال، ژبه او زړه سره کیږی اوجهاد مع الفساق لاس، بیا ژبه او بیا زړه سره کیږی.

او دَ جهاد مع الشیطان مطلب دا دې چه هغه په زړه کښې شك شبهې پیدا کوی یا بد عملونه ښائسته کوی او پیش کوی نو چه دَ دې نه خان اوساتی.

جهاد مع النفس دا دې چه دَ دینی امورو ذده کړه اوپه دې عمل کولوکښې سرې خپل خان مشغول اوساتی او بیا دَ دې په خودلوکښې لګیا شی. (۵)

دغه شان علماؤ لیکلی دی چه یو ظاهری جهاد وی او بل باطنی. ظاهری جهاد خو همدغه وی چه کافرانو وغیره سره وی او جهاد باطنی دَ خپل نفس ناجائزو امورو کښې مخالفت اودَ شریعت دَ تابعدارئی نوم دې.

دې نه پس تاسو دا اوګنړئی چه په بعض روایاتوکښې دې جهاد ته چه نفس اوباطن سره وی هغه ئی جهاد اکبر ګرخولې دې خکه چه کافرانو سره جهاد خو کله کله وی خودَ نفس سره دَ سړی مقابله هر وخت او هره ګهړئی وی نو په دې وجه دا اهم او اکبر دې.(۶) دغه

۱ ) (تاج العروس (۲/مادۂ جهد. ص۳۲۹) وعمدۃ القاری (ج ۱۴ص۷۸) دَ جهاد مشروعیت او مقصد او دَ دې ضرورت پیژندلودپاره کشف الباری کتاب المغازی (ص۱۲-۳۶) اوګوری.
۲ ) (شرح الکرمانی(ج۱۲ص۹۲)-
۳ ) (فتح الباری(ج۶ص۳)-
۴ ) (عمدۃ القاری (ج ۱۴ص۷۸)-
۵ ) (فتح الباری (ج۶ ص۷۸)-
۶ ) (تعلیقات لامع الدراری (ج۷ ص۲۰۷-۲۰۸)-

شان بيهقي په كتاب الزهد (۱) كښې دَ حضرت جابر رضي الله عنه روايت نقل كړيدې چه رسول الله ﷺ دَ غزوه نه واپس تشريف راوړو اوونې فرمائيل "رجعنا من الجهاد الاصغر الى الجهاد الاكبر" (۲)
**جهاد فرض كفايه دې كه فرض عين؟:** دې نه پس په دې خبره پوهه شئې چه دَ امت دَ علماؤ دَ جهاد په حكم كښې اختلاف دې. جمهور علماء جهاد ته فرض كفايه وائې يعنې هغه جهاد چه كافرانو سره وې هغه فرض كفايه دې چه دَ څه خلقو په ادائيګئې سره دَ ټول امت نه ساقطيږې اوكه څوك هم دَ كافرانو سره دَ جهاد دَ پاره اونه ځې نو ټول امت به ګناهګار وې.
ليكن الله دې نكړې كه كافرانو په دارالاسلام باندې حمله اوكړه نو په هغه صورت كښې دَ هغه ځائ په خلقو باندې جهاد فرض عين دې. ترهغې چه دَ هغوى حمله زياته شي نو بيا چه په كوم كوم ځائ كښې دَ هغوى رخ وى نودَ هغه ځائ دَ خلقو دپاره جهاد فرض عين دې. (۳)
او يو وخت داسې هم راتلې شي چه جهاد به په ټولو مسلمانانو باندې فرض عين شي.
علامه عينى رحمه الله "بنايه" كښې عمرو بن دينار، عطاء بن ابى رباح، ابن شبرمة او سفيان ثورى رحمهم الله نه نقل كړې دى چه جهاد مطلقًا واجب نه دې (۴) او دَ ابن المسيب رحمه الله مسلك دا دې چه جهاد په هر حال كښې فرض عين دې. (۵)
دَ نبى كريم ﷺ په زمانه كښې دَ جهاد څه حكم وو دَ دې متعلق تفصيل "باب وجوب النفير" كښې راځى، انشاء الله په دې به هم هلته خبرې كيږى.
**مشروعيت جهاد:** دَ جهاد مشروعيت په مدينه منوره كښې شويدې. په شروع كښې نبى كريم ﷺ ته همدغه حكم وركړيشوې وو چه په تاباندې كوم احكام نازليږى هغه ته په

---

۱) (اتحاف السادة المتقين(ج۸ص۶۵۷) وتعليقات لامع الدرارى(ج۷ص۲۰۸)-
۲) (انظر كشف الخفاء للعجلونى (ج۱ص۴۲۴) علامه عجلونى رحمه الله په دې حديث باندې كلام كولو سره فرمائى "قال الحافظ ابن حجر فى تسديدالقوس: هو مشهور على الالسنة وهو من كلام ابراهيم بن ابى عبلة"- محمد بن زياد المقدسى فرمائى "سمعت ابن ابى عبلة وهو يقول لمن جاء من الغزو: قد رجعتم من الجهاد الاصغر فما فعلتم بالجهاد الاكبرجهاد القلب؟" (سير اعلام النبلاء ج۶ ص۳۲۵) او شيخ السلام علامه تيميه رحمه الله فرمايى "لااصل لهو ولم يروه احد من اهل المعرفة باقوال النبى صلى الله عليه وسلم" مقدمة مشارق الاشواق الى مصارع العشاق (ج۱ص۳۱). حضرت شيخ الاسلام مدنى رحمه الله په خپل يو مكتوب نمبر ۱۰۵ كښې ليكى: "صوفياء په كتابونوكښې "رجعنا من الجهاد الاصغر الى الجهاد الاكبر" ته صحيح حديث ونيلې شويدې. ليكن دِ عسقلانى (كشف الخفاء ج۱ص۴۲۴) قول دې چه امام نسانى دَ ابراهيم بن عبله كلام خودلې دې دَ الفاظو ركاكت يو زبردست قرينه ده چه دا دَ حضور ﷺ قول نه شي كيدې او نه دَ حديث متداول كتابونوكښې شاه عبدالعزيز رحمه الله غوندې متبحر محدث كتلې دې...... (مكتوب شيخ الاسلام ج۱ص۳۰۷-۳۰۸)-
۳) (بدائع الصنائع (ج۲ص۹۸) فصل واما بيان كيفية فرق الجهاد...... والهداية (ج۲ص۵۵۸)-
۴) (البناية (ج۲ص۷۸۹)-
۵) (اوجز المسالك (ج۸ص۱۹۹) وتنظيم الاشتات لحل عويصات المشكوة(ج۳ص۹۰)-

ښکاره اعلان کوه او بیانوه. دَ الله تعالی ارشاد مبارك دې ﴿ فَاصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ ﴾ (۱) نو واوروه په کولاؤ وینا سره دوی ته څه چه تاته حکم وی او دَ مشرکانو پرواه مه کوه.

دې نه پس حضور اکرم ﷺ ته دَ مجادله حسنه اجازت ورکړیشو اوفرمائیلې شو ﴿ أُدْعُ إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ وَجَادِلْهُمْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ ﴾ (۲) یعنی راغوارئی دَ خپل رب لارې ته ښخو خبرو باندې ئی پوهه کړه او نصیحت ورته په ښه شان سره واوروه. او الزام ورته ورکړه څنګه چه بهتر وی.

بیا دَ هغې نه پس مدینې طرف ته هجرت اوشونو په شروع کښې مدافعانه جهاد اجازت ورکړیشو. یعنی چه کله په تاسو باندې حمله اوشی یا په مسلمانانو باندې حمله اوشی نو دا حمله بندول او دَ دې دَ مقابلې کولو اجازت ورکړیشو. ارشاد اوفرمائیلې شو ﴿ أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا ۚ وَإِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ ﴾ چه حکم شویدې هغه خلقو ته چا سره چه کافران جنګیږی، په دې وجه چه په هغوی باندې ظلم اوشو او الله تعالی دَ هغوی په امداد کولو قادر دې.

بیا دې نه پس ارشاد اوشو ﴿ فَإِذَا انْسَلَخَ الْأَشْهُرُ الْحُرُمُ فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدْتُمُوهُمْ وَخُذُوهُمْ وَاحْصُرُوهُمْ وَاقْعُدُوا لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ ﴾ (۳) بیا چه کله تیرې شی میاشتې دَ پناه نومشرکان وژنئی، چرته چه مومئی اودَ هغوی دَ نیولو راګیرولو دَ پاره هر ځائ کښې په لټون کښې کینئی. دلته مطلقًا دَ اقدامی او دفاعی جهاد حکم نازل شو. (۴)

## [۳۷۸۷] افضل جهاد

۳۷۸۷-[۱](۵) [۱]عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «مَنْ آمَنَ بِاللهِ وَرَسُولِهِ، [۳]وَأَقَامَ الصَّلَاةَ، [۴]وَصَامَ رَمَضَانَ; [۵]كَانَ حَقًّا عَلَى اللهِ أَنْ يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ، [۶]جَاهَدَ فِي سَبِيلِ اللهِ، أَوْجَلَسَ فِي أَرْضِهِ الَّتِي وُلِدَ فِيهَا. [۷]قَالُوا: أَفَلَا نُبَشِّرُ بِهِ النَّاسَ؟

**ترجمه**: [۱]حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲]کوم سړی چې د الله جل جلاله او د هغه د رسول په ذریعه دنیاته رالیږلی شریعت باندې ایمان راوړي [۳]او مونځ يي قائم کی [۴]او د رمضان روژې يي ونیولي [۵]نو الله جل جلاله باندې د هغه د فضل وکرم او د

---

۱ ) (الحجر: ۹۴)-

۲ ) (النحل:۱۲۵)-

۳ ) (التوبة:۵)-

۴ ) (انظر البناية (ج۲ص ۷۸۹) وزادالمعاد فی هدی خیر العباد (ج۳ ص۶۹-۷۲)-

۵ ) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسیر/باب درجات المجاهدین فی سبیل الله. یقال: هذه سبیلی وهذا سبیلی (رقم-۲۷۹۰) واحمد فی المسند:۲/۳۳۵

خپلي وعدي د مخه واجب دی چې هغه سړی په جنت کې داخل کړي ⑥برابره خبره ده که هغه د الله په لار کې جهاد وکړي او په یوروایت کې دا الفاظ هم دي برابره خبره ده که هغه هجرت وکړي او که په خپل کور او وطن کې چرته چې پیداشوی دی ناست وي یعنی نه جهاد وکړي او نه هجرت وکړي صحابه په دي اوریدو سره ⑦عرض اوکړو آیا مونږ خلقوته دا خوشخبري وانه ړوو

①قَالَ: إِنَّ فِي الْجَنَّةِ مِائَةَ دَرَجَةٍ أَعَدَّهَا اللهُ لِلْمُجَاهِدِينَ فِي سَبِيلِ اللهِ، ②مَا بَيْنَ الدَّرَجَتَيْنِ كَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ، ③فَإِذَا سَأَلْتُمُ اللهَ فَاسْأَلُوهُ الْفِرْدَوْسَ ④فَإِنَّهُ أَوْسَطُ الْجَنَّةِ وَأَعْلَى الْجَنَّةِ، ⑤وَفَوْقَهُ عَرْشُ الرَّحْمٰنِ، وَمِنْهُ تَفَجَّرُ أَنْهَارُ الْجَنَّةِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①حضور ﷺ ورته وفرمايل ليکن د جهاد کونکو دا فضيلت هم واورئ چې په جنت کې سل درجي دي چې الله ﷻ د دې خلقو د پاره تياري کړي دي چې د الله په لار کې جهاد کوي ②او د هغه د دوو درجو درمياني فاصله دومره ده څومره چې د آسمان او زمکي په مينځ کې فاصله ده ③نوهرکله چې تاسو د الله څخه جهاد باندې درجه عالي غواړئ نو جنت فردوس څني غواړئ ④ځکه چې هغه فردوس اوسط جنت دی يعنی د جنت تولو درجاتو کې د تولو څخه ښه او افضل دی او د تولو څخه بلند جنت دی ⑤او د هغه اوچت د الله ﷻ عرش دی ګويا هغه د عرش الهي په سوري کې دی او دهغه څخه د جنت نهرونه بهيږي يعنی کوم څلورځيزونه چې د جنت د نهرونو اصل دی لکه اوبه پئ شراب او عسل (شهد) هغه د جنت فردوس څخه جاري کيږي (بخاري)

**حل اللغات:** ①الْفِرْدَوْسَ: په جنتونو کښې د يو اعلى جنت نوم دې. د عرش د سورى لاندې دې. د نورو جنتونو نهرونه ددې نه رابهيږي. ②تَفَجَّرُ: راجاری دی، رابهيږي

**تسهيلات:**

**قوله:** وَأَقَامَ الصَّلَاةَ، وَصَامَ رَمَضَانَ:

**دحج په عدم ذکر باندې اشکال:** دلته په حديث کښې دَ صلاة او صوم ذکر خو شته ليکن دَ حج او زکوة ذکر نشته. سره دَ دې چه څنګه مونځ او روژه دَ اسلام بنيادی ارکانونه دی دغه شان زکوة او حج هم بنيادی ارکان دی.

**جوابونه:** ① علامه کرمانی رحمه الله او ابن بطال رحمه الله دا توجيه بيان کړيده چه دَ باب په حديث کښې زکوة او حج نه ذکرکيدو وجه دَ دې دواړو دَ هغه وخت پورې نه فرض کيدل دی. (۱)

② حافظ صاحب جواب ورکړيدې چه دلته دَ زکوة او حج ذکر دَ يو راوی نه حذف

۱) (انظر شرح الکرمانی (ج۱۲ص۹۸-۹۹)وشرح ابن بطال (ج۵ص۱۳)-

شويدې خکه چه د ترمذی په روايت کوم چه حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه نه مروی دې په هغې کښې د حج ذکر موجود دې (۱)

او هم په دې کښې حضرت معاذ رضي الله عنه فرمائی (لاادری اذکر الزکاة امر لا؟) (۲)

③ حافظ صاحب دوئم جواب دا ورکړيدې چه د حديث مقصد د ارکان اسلام استيعاب نه دې په دې وجه په مونځ او روژه اکتفاء اوکړيشوه. (۳)

**قوله: ((كَانَ حَقًّا عَلَى اللّٰهِ أَنْ يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ)):**

**په الله باندې د حق کيدو مطلب:** په دې کښې حق په طريقه د فضل وکرم دې. دا مطلب نه دې چه الله تعالی باندې د هغه سړي جنت کښې داخلول واجب دی. بلکه مطلب دا دې چه الله تعالی به په خپل فضل او کرم سره هغه په جنت کښې داخل کړی. (۴)

**قوله: جَاهَدَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ، أَوْجَلَسَ فِي أَرْضِهِ الَّتِي وُلِدَ فِيهَا:**

**د جهاد څخه معذورو خلقو ته تسلی:** په دې عبارت کښې حضور صلی الله علیه وسلم هغه سړی ته چه څوك جهاد نشی کولې تسلی ورکوی چه هغه هم د اجرنه محروم نه دې خکه چه په ايمان باندې استقامت او نور فرائضو ادا کولو التزام به هغه جنت ته رسوی. خير دې که د هغه درجه د مجاهدينو د درجې نه کمه وی.(۵)

**د في سبيل الله مطلب:** اوس په دې ځان پوهه کړئی چه د سبيل الله لفظ په دوو معنو کښې استعماليږی:

① يوه معنی د دې عام ده، د خير هغه کار دکوم مقصد چه د الله تعالی رضا او تقرب الی الله وی په هغې د سبيل الله اطلاق کيږی لکه د فرائضو ادا کول. نوافل او د نورو عباداتو او طاعاتو اهتمام وغيره، دا اطلاق فی سبيل الله عام دې. امام بخاری رحمه الله هم په (كتاب الجمعة) کښې ((عباية بن رفاعة)) په طريق يو حديث نقل کوی، په دې کښې دی:

**((ادركني ابوعبس وانا اذهب الى الجمعة فقال: سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: من اغبرت قدماه في سبيل الله حرمه الله على النار))** (۶)

حضرت عبايه بن رفاعة فرمائی چه زه د جمعه د ادا کولوډپاره جمات ته روان ووم. ماته حضرت ابوعبس رضي الله عنه ملاؤ شو او وئی فرمائيل ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوريدلی دی چه د

۱) (انظر الجامع للترمذی (ج۲ص۷۹) ابواب صفة الجنة باب ماجاء في صفة درجات الجنة رقم(۲۵۳۰)-
۲) (انظرفتح الباری (ج۶ص۱۲)-
۳) (انظرفتح الباری (ج۶ص۱۲)-
۴) (حواله بالا -
۵) (انظر فتح الباری(ج۶ص۱۲) وشرح ابن بطال (ج۵ص۱۳)-
۶) (انظرصحيح البخاری(ج۱ص۱۲۴)كتاب الجمعة باب المشی الی الجمعة رقم(۹۰۷)-

کوم سړی قدمونه چه دَ الله تعالی په لارکښې په دوړوککړ شی نو الله تعالی به په هغه باندې دَ دوزخ اُور حرام کړی، یعنی دَ دوزخ اُور به هغه ته نه رسی.

دلته **ذهاب الی الجمعة** باندې حضرت ابوعبس رضی الله عنه دَ حضور اکرم ﷺ حدیث واورولو او هغه **ذهاب الی الجمعة سبیل الله** سره تعبیر کړه، دا اطلاق عام دې.

② دوئمه معنی دَ فی سبیل الله خاص ده، هغه جهاد او قتال دې، نو چه کله فی سبیل الله مطلق ذکر شی نو دینه مراد قتال وی. (۱)

**قوله: أَفَلَا نُبَشِّرُ بِهِ النَّاسَ؟**: صحابه کرامو رضوان الله علیهم اجمعین عرض اوکړو یارسول الله! آیا مونږ خلقو ته دَدې زیرې ورکړو. حضور ﷺ ته مخاطب کونکې صحابی حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه وو. لکه چه دَ ترمذی په روایت کښې دی ((**قال معاذ: الا اخبر بهذا الناس؟**)) (۲)

یا حضرت ابوالدرداء رضی الله عنه وو لکه چه دَ طبرانی په روایت کښې دی. (۳)

**قوله: إِنَّ فِي الْجَنَّةِ مِائَةَ دَرَجَةٍ**

**دَ جنت د درجو په شمار باندې اشکال:** دَ جنت څومره درجې دی په دې کښې اختلاف دې. دَ حدیث باب نه خو دا معلومیږی چه دَ جنت ټولې درجې سل دی . اودَ عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په روایت کښې فرمائیلې شوی دی ((**يقال يعنی لصاحب القران: اقرا وارق ورتل كما كنت ترتل فی الدنیا، فان منزلتك عند اخر اية تقرؤبها**))(۴)

ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه په حدیث کښې راغلی دی چه دَ جنت درجې دَ قرآن کریم دَ آیاتونو برابر دی. دَ پورتنی حدیث نه هم دې طرف ته اشاره کیږی چه دَ جنت درجې دَ قرآن کریم دَ آیاتونو دَ شمیر مطابق دی او دَ قرآن مجید آیاتونه (۶۶۶۶) خو معروف دی، نو صرف سل درجات په جنت کښې کیدل څنګه قبول کړیشی؟

**جوابونه:** ①دَ دې اشکال جواب حضرت شیخ الحدیث صاحب دا ورکړیدې چه ((**ان فی الجنة مائة درجة**)) روایت نه لوئ درجات مراد دی او دَ درجاتِ صغائرتذکره دلته نه ده شوې.اودَ جنت ټول منازل دَ قرآن پاك دآیاتونو برابر دی.(۵)

۱) (انظر النهاية لابن الاثير الجزری (ج۲ص۳۳۸-۳۳۹) مادة سبل وشرح القسطلانی (ج۵ص۴۹)-
۲) (انظرالجامع للترمذی (ج۲ص۷۹)ابواب صفة الجنة باب ماجاء فی صفة درجات الجنة رقم (۲۵۳۰)-
۳) (فتح الباری (ج۲ص۱۲)-
۴) (انظر الجامع للترمذی (ج۲ص۱۱۹) ابواب فضائل القران باب (ان الذی ليس فی جوفه من القران كالبيت الخرب) رقم (۲۹۱۴) وسنن ابی داؤد (ج۱ص۲۰۶) كتاب الصلاة باب استحباب الترتيل فی القراءة رقم (۱۴۶۴)-
۵) (تعليقات الشيخ الكاندهلی علی الكوكب الدری (ج۳ص۳۱۰)-

② حافظ ابن حجر فرمائی چه دَ حدیث دَ سیاق نه دا معنی نه لازمیږی چه دَ جنت درجې هم سل دی بلکه نورې هم دی. لیکن ذکر دَ مجاهدینو کیږی نو صرف هم دَ دوی دَ درجو تعیین شویدې. (۱)

**قوله: مَا بَيْنَ الدَّرَجَتَيْنِ كَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ:**

**دَ جنت دَ دوؤ درجو په مینځ کښې فاصله ؟:** دَباب په حدیث کښې راغلی دی ((**مابین الدرجتین کما بین السماء والارض**)) چه دَ جنت دَ دوو درجو په مینځ کښې به څومره فاصله وی څومره چه دَ آسمان او زمکې په منیځ کښې ده.

**دزمکې او آسمان په مینځ کښې په فاصله باندې اشکال:** اوس دَ زمکې او آسمان په مینځ کښې څومره فاصله ده؟ په دې سلسله کښې مختلف روایات دی. دَ ترمذی شریف په روایت کښې دی چه دَ زمکې او آسمان په مینځ کښې دَ پنځوسوو کالو فاصله ده.

((**...ثم قال: هل تدرون کم بینکم وبینها؟ قالوا: الله ورسوله اعلم، قال: بینکم وبینها (مسیرة) خمس مائة سنة**))(۲) دَ ابن ماجه، سنن ابی داؤد او هم ترمذی یو روایت کوم چه حضرت عباس بن عبدالمطلب رضی الله عنه نه مروی دې:

((**قال: فان بعد ما بینهما اما واحدة واما اثنتان اوثلاث وسبعون سنة...**))(۳) دَ زمکې او آسمان په مینځ کښې ۷۱، ۷۲یا ۷۳کالو فاصله ده.

**دَاشکال جوابونه:** ① علامه انورشاه کشمیری رحمه الله دَ حضرت عباس بن عبدالمطلب رضی الله عنه دَ روایت باره کښې فرمائی چه دا روایت وهم دې، چه یو راوی دَ روایت نه ۴۲۰ نه زیات کالونه ساقط کړی دی. صحیح دا دی چه دَ دې دواړو په مینځ کښې دَ پنځو سوو کالو فاصله ده. (۴)

② حافظ ابن حجر رحمه الله په دواړو روایتونوکښې جمع او تطبیق لار اختیارولوسره فرمائی چه په کوم روایت کښې ۷۱، ۷۲ یا ۷۳ کالوذکر دې هلته سرعت سیر مراد دې او چه کوم ځائې کښې پنځه سووکالوذکر دې هلته بطوء سیر مراد دې. یعنی دَ سرعت سیر په اعتبار سره ۷۱، ۷۲ یا ۷۳ کالوفاصله جوړیږی او دَ بطوء سیر په اعتبار سره پنځه سوو کالو فاصله جوړیږی. (۵)

---

۱) (فتح الباری (ج۶ص۱۲)-

۲) (انظر الجامع للترمذی (ج۶ص ۱۶۵) ابواب تفسیرالقران (باب ومن) سورة الحدید رقم (۳۲۹۸)-

۳) (انظر سنن ابن ماجه باب فی الجهمیة رقم (۴۷۲۳) والجامع للترمذی (ج۲ص۱۶۹) ابواب تفسیرالقران (باب) ومن سورة الحاقة رقم (۳۳۲۰)-

۴) (انظر فیض الباری (ج۳ص۴۲۰)-

۵) (انظر فتح الباری (ج۱۳ص۴۱۳-۴۱۴)-

③ علامه خلیل احمد سهارنپوری رحمه الله دا جواب ورکړیدې چه دَ روایتونو په مینځ کښې دا تفاوت دَ سائر(تلونکې) په اعتبار سره دې. ځکه چه دَ انسان او اس په چال کښې خو ښکاره خبره ده چه فرق دې.(۱)

**قوله:** فَإِذَا سَأَلْتُمُ اللّٰهَ فَاسْأَلُوهُ الْفِرْدَوْسَ.

**د جنت الفردوس تعارف:** "فردوس" هغه باغ ته وائی په کوم کښې چه هر څيز وی، ګلونه او میوې په دې کښې وی، دَ خوارک څښاك سامان هم په دې کښې وی او نهرونه هم په دې کښې وی.(۲) دَ دې جمع فرادیس راځی.(۳)

**قوله:** فَإِنَّهُ أَوْسَطُ الْجَنَّةِ وَأَعْلَى الْجَنَّةِ.

**د اوسط معنی:** علامه ابن بطال فرمائی چه اوسط نه مراد متوسط وی یعنی فردوس دَ جنت په مینځ کښې واقع دې او جنت دا دَ څلورو واړو طرفونونه راګیرکړیدې.(۴)

**قوله:** وَمِنْهُ تَفَجَّرُ أَنْهَارُ الْجَنَّةِ.

**د منه د ضمیر په مرجع کښې دوه اقوال:** هم دَ فردوس نه دَ جنت نهرونه جاری شوی دی.

①بعضې حضراتو "منه" ضمیر عرش ته راګرځولې دې. په دې صورت کښې به مطلب دا وی چه د عرش نه دَ جنت نهرونه راوځی.(۵)

②لیکن ابن حجر رحمه الله فرمائی چه "منه" ضمیر دَ عرش طرف ته ګرځول وهم دې بلکه دا ضمیر دَ فردوس طرف ته راګرځی او په دې صورت کښې به معنی وی چه دَ فردوس نه دَ جنت نهرونه راوځی.(۶)

**[۳۷۸۸] دَ ایمان څخه روسته افضل عمل**

۳۷۸۸-[۲](۷) ①وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: «مَثَلُ الْمُجَاهِدِ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ كَمَثَلِ الصَّائِمِ الْقَائِمِ الْقَانِتِ بِآيَاتِ اللّٰهِ، ②لَا يَفْتُرُ مِنْ صِيَامٍ وَلَا صَلَاةٍ حَتَّى يَرْجِعَ الْمُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

۱) (بذل المجهود (ج۱۸ص۲۵۷)-
۲) (عمدة القاری(ج۱٤ص۹۰)-
۳) (مجمع بحارالانوار (ج٤ص۱۱۵) ((مادة فردس-
٤) (انظرشرح ابن بطال(ج۵ص۱۲)-
۵) (انظرفتح الباری (ج٦ص۱۳)-
٦) (انظر فتح الباری(ج٦ص۱۳)-
۷) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسیر/باب: أفضل الناس مؤمن مجاهد بنفسه وماله فی سبيل الله (رقم-۲۷۸۷) ومسلم فی کتاب الإمارة/باب فضل الشهادة فی سبيل الله تعالى (رقم-۱۱۰-(۱۸۷۸) ومالک فی الموطا کتاب الجهاد/باب الترغيب فی الجهاد (رقم-۱)

**ترجمه:** [۱] ابوهریره ﷺ وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲] د الله ﷻ په لار کې جهاد کونکی داسې دی څنګه چې روژه نیونکي مونځ طاعت او عباداتو کې مشغول اوسیدونکی او د الله ﷻ د آیتونو یعنی د قرآن کریم تلاوت کونکی [۳] چې روژې نیولو او مونځ کولو یعنی عباداتو کې مشغولیدو څخه هیڅ کله نه ستړی کیږي تردې چې د الله په لار کې جهاد کونکی خپل کورته واپس راشي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① الْقَانِتِ: مشغول اوسیدونکې، عبادت کونکې ② لَايَفْتُرُ: نه ستړې کیږي.

**تسهیلات:**

**قوله:** مَثَلُ الْمُجَاهِدِ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ

**دحدیث پس منظر:** حضورپاك دا حدیث دَ یوصحابی دَ سوال په جواب کښې ارشاد فرمائیلي دې هغه دَ مجاهد فی سبیل الله دَدرجاتو حاصلولو درخواست کړې وو یو حدیث کښې راغلی دی چه یوې ښځې هم درخواست کړې وو زما خاوند جهاد ته تلې دې زه داسې عمل کول غوارم چه دَهغه دَ درجاتو برابر درجه حاصله کړم نوحضورپاك اوفرمائیل دا ممکن نه دی اوکه یوسړې داسې کولې شی چه ټوله شپه مونځونه کوی او ټوله ورځ روژه ساتی اودَهغه یوساعت اولمحه دَعبادت نه خالی تیره نه شی نوهغه دَ مجاهد مرتبه حاصلولې شی څکه چه دَ مجاهدهم ټول لمحات په عبادت کښې شمیر کیږی او داسې عمل څوك نه شی کولې لهذا دَ مجاهد مرتبه څوك نه شی حاصلولې دا تعلیق بالمحال دې

**د جهاداومونځ په افضلیت کښې ۲ مذهبین:**

① بعضې علماؤ جهاد دَمونځ نه پس افضل ګرځولې دې

② اکثرعلماؤ مونځ دَ جهاد نه افضل ګرځولې دې

**داول فریق دلیل:** زیربحث حدیث د دوی مستدل دې په دې کښې جهاد ته افضل عمل ونیلې شوې دې دغه شان بعضې نورو احادیثو څخه هم جهاد افضل الاعمال معلومیږی

**د دویم فریق دلائل:** هغه احادیث د دوی مستدلات دی په کومو کښې چې مونځ افضل عمل خودلې شوې دې

**په روایاتو کښې تطبیق:** بعضې علماؤ داسې بهتر تطبیق کړې دې چه کله جهاد فرض عین وی نودا مطلقًا دَ ټولو اعمالونه افضل دې لیکن چه کله جهاد فرض کفایه وی نومونځ مطلقًا افضل دې

**د خلوت او جلوت په افضلیت کښې ۲ مذاهب:**

① یوه ډله دې طرف ته تلې ده چه خلوت نشینی افضل ده

② حافظ ابن حجر او علامه نووی ﷫ دامت د جمهور علماؤ مذهب دا نقل کړیدې چه خلقو سره یو ځائ اوسیدل افضل دی خو په دې شرط چه په فتنه کښې د پریوتلوویره نه وی ګنې نو نه.

**داول فریق دلائل:** حدیث الباب د دوی مستدل دې په دې کښې نبی کریم ﷺ د جهاد ځخه روسته د ټولونه افضل خلوت نشینی ګرځولې ده.

**داول فریق د دلیل دوه جوابونه:** ① دا حدیث د سختو فتنو او جنګونو زمانه باندې محمول دې چه کله د سړی خپل ایمان هم محفوظ نه شی.

② د دې حدیث محمل هغه سړې دې د چا د تکلیفونونه چه نور خلق محفوظ نه وی اوهغه د خلقو د تکلیف رسولونه صبر کیدې نشی.

**د دویم فریق دلائل:** ① ((المؤمن الذی یخالط الناس، ویصبر علی اذاهم، اعظم اجرا من المؤمن الذی لایخالط الناس، ولایصبر علی اذاهم))

② علامه نووی ﷫ دا ذکر کوی چه ټول انبیاء کرام صلوات الله وسلامه علیهم.

جمهور صحابه کرام، تابعین او علماء او زاهدان خلقو سره هم په جلوت کښې اوسیدل او د اختلاط او جلوت فائدې به ئی حاصلولې لکه د جُمعې د مانځه حاضری، د جمع مونځ، د جنازې مونځ، د بیمار تپوس اود الله تعالی د ذکر حلقې وغیره.(۱)

**نوټ:** داخبره په ذهن کښې ساتل پکار دی چه دا ټول اختلاف هغه وخت دې چه کله فتنه عام نه وی او که چرې فتنه عام وی نو هم خلوت افضل دې ځکه چه د عامو فتنو محظورا توکښې پریوتلو قوی اندیښنه وی. خوداسې هم کیږی چه د الله تعالی عذاب هم د فتنویه خلقو باندې راځی ولې د هغې اثر په غیر اصحاب فتن باندې هم واقع کیږی لکه چه ارشاد ربانی دې ﴿وَاتَّقُوْا فِتْنَةً لَّا تُصِیْبَنَّ الَّذِیْنَ ظَلَمُوْا مِنْكُمْ خَآصَّةً﴾ (۲) یعنی ویریږئی د هغه فتنې نه چه په تاسوکښې به صرف ظالمانوخلقوته نه رسی بلکه غیرظالمانوته به هم هغه عذاب راځی.(۳)

## [۲۷۸۹] په هر حال کښې د مجاهد کامیابی

۲۷۸۹—[۳](۱) وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: «انْتَدَبَ اللّٰهُ لِمَنْ خَرَجَ فِي سَبِيْلِهِ لَا يُخْرِجُهُ إِلَّا إِيْمَانٌ بِيْ وَتَصْدِيْقٌ بِرُسُلِيْ، أَنْ أُرْجِعَهُ بِمَا نَالَ مِنْ أَجْرٍ وَغَنِيْمَةٍ، أَوْ أُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

۱) (حواله بالا-

۲) (الانفال(۲۵)-

۳) (انظرفتح الباری(ج۱۳ص۴۳) مزید اوګوری کشف الباری (ج۲یص۸۵-۸۸)-

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الایمان/باب الجهاد من الایمان (رقم-۳۶) ومسلم فی کتاب الامارة/باب فضل الجهاد والخروج فی سبیل الله (رقم-۱۰۳ - (۱۸۷۶) والنسائی فی کتاب الایمان وشرائعه/باب الجهاد (رقم-۵۰۲۹) ومالک فی الموطا کتاب الجهاد/باب الترغیب فی الجهاد (رقم-۲)واحمد فی المسند:۱۱۷/۲

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضي الله عنه وايي چې رسول کریم ﷺ وفرمايل [۲] الله ﷻ فرمايي کوم سړی چې د الله په لار کې جهاد د پاره ووزی الله ﷻ د هغه ضامن شو هغه جهاد د پاره په ما د هغه ايمان او ځما د رسولانو د تصديق څخه علاوه بل چا ونه ايستي يعنی د هغه په جهاد کې تلل دځان ښودلو او رياکاري د پاره يا د دنيا څه طلب او خواهش پيش نظر نه وو [۳] بلکه هغه خو خاص د رضا او خوشنودي د طلب د پاره وتلی دی نو زه به هغه يا خو بغير غنيمت محض د آخرت اجر اوثواب سره يامال غنيمت سره واپس کړم ياکه شهيد شو نو زه به هغه بغير حساب او عذاب د ټولو څخه مخکې جنت ته تلونکو سره په جنت کې داخل کړم يا د هغه د مرګ څخه وروسته به د قيامت د ورځي څخه هم مخکې په جنت کې داخل کړم څنګه چې يي په قرآن کې فرمايلي دي چې کوم خلق د الله په لار کې شهيدان شويدي هغوی مړه مه ګڼی بلکه هغوی دخپل رب سره ژوندي دي (بخاري . مسلم)

**حل اللغات:** ① انتدب" ددې معنی ضامن کيدل اوذمه واری اخستل دی ② نال: چه حاصل کړي ئې دی

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْ أُرْجِعَهُ بِمَا نَالَ مِنْ أَجْرٍ أَوْ غَنِيمَةٍ أَوْ أُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ:

**مجاهد ته ځامخا يوه ګټه ملاويدل:** «أرجع» مجرد دې. د باب ضرب نه استعماليږی کله چه ددې مصدر يعنی رجوع وی.نودا لازم وی.اوکله چه ددې مصدر رجع وی نودا متعدی وی (۱) دلته متعدی دې.

ددې جملې حاصل دا دي.چه کوم کس صرف دالله تعالی د رضا دپاره دايمان بالله او تصديق بالرسل سره ميدان جهاد ته لاړشي.نوياخو به شهيد شي.اوجنت ته به لاړ شي.اويا به ژوندې پاتې شي.او واپس به راشي.په دې صورت کښې به ورسره يا اجر وی.اويا به مال غنيمت وی.

**د ...أو... کلمې د معنی په تحقيق کښې درې اقوال:** ① کرمانی رحمه الله دا ارشاد فرمائيلې دې چه دا «أو» د مانعة الخلو دپاره دې.يعنی په دواړو کښې به يو ځامخا وی.اودواړه جمع کيدې شی.(۲)

② حافظ ابن عبدالبر .اوعلامه قرطبی رحمهما الله رائې دا دې چه دا «أو» په معنی د «واو» دې.

③ دحافظ ابن حجر رحمه الله رائې دا ده.چه په اصل کښې د غنيمت سره کوم اجر وی.هغه لږ وی.ددې وجې ددې تذکره نه ده شوې.امام مسلم د حضرت عبدالله بن عمرو بن

(۱) تاج العروس (۵\۳٤۸)_
(۲) شرح کرمانی (۱۱\۱۵٦)_

العاص رضي الله عنهما نه مرفوعاً یو روایت دا نقل کړي دي.«ما من غازية تغزو في سبيل الله فيصيبون الغنيمة إلا تعجلوا ثلثي أجرهم من الآخرة ويبقى لهم الثلث، وإن لم يصيبوا غنيمة تم لهم أجرهم»[1] یعنی که د مجاهدینو لښکر د جهاد دپاره لاړ شي. اودغنیمت سره واپس راشي. نودوی ته دوه حصې اجرپه دنیا کښې ملاویږی. اویوه حصه ئې آخرت ته باقي پاتې شي. اوکه جهاد اوکړی. د غنیمت نه بغیر راواپس شي. نود دوی ټول اجر آخرت دپاره ذخیره شي.[2]

**[۳۷۹۰] د حضور ﷺ د جهاد جذبه او د شهادت شوق**

[۳] ۳۷۹۰ [3] ۱ وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "۲ «وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَوْلَا أَنَّ رِجَالًا مِنَ الْمُسْلِمِينَ لَا تَطِيبُ أَنْفُسُهُمْ أَنْ يَتَخَلَّفُوا عَنِّي، ۳ وَلَا أَجِدُ مَا أَحْمِلُهُمْ عَلَيْهِ ; مَا تَخَلَّفْتُ عَنْ سَرِيَّةٍ تَغْزُو فِي سَبِيلِ اللَّهِ. وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، لَوَدِدْتُ أَنْ أُقْتَلَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، ثُمَّ أُحْيَا، ثُمَّ أُقْتَلَ، ثُمَّ أُحْيَا، ثُمَّ أُقْتَلَ، ثُمَّ أُحْيَا، ثُمَّ أُقْتَلَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ ابوهریره وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل ۲ قسم دی په هغه ذات چې د هغه په لاس کې څما ساه ده که ماته دا خوف او لحاظ نه وی چې ډیر هغه مسلمانان چې مفلس او نادار دي خپل باره کې ددي خبري څخه خوشحاله نه دي چې هغوی زما څخه وروسته او زما څخه جدا وي ۳ او ماته څه داسې سورلی حاصله نه ده چې په هغه هغوی ټول سواره کړم نو زه به د الله په لار کې جهاد کونکی هیڅ لښکر څخه وروسته نه پاتې کیدم ۴ قسم دی په هغه ذات چې د هغه په لاس کې څما ساه ده څما خواهش او آرزو خو داده چې زه د الله په لار کې ووژل شم بیا ژوندی شم بیا ووژل شم بیا ژوندی شم بیا ووژل شم بیا ژوندی شم بیا ووژل شم بیا ژوندی شم یعنی بار بار ژوندی شم او بار بار ووژل شم چې هر ځل نوی ثواب حاصلوم. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① سَرِيَّةٍ: سرية په جهاد کښې تلونکی لښکر ته وائی جمع ئې سرایا راځی. ② لَوَدِدْتُ: زما ارمان دي. زړه مې غواړی.

[1]) صحیح مسلم (۱۴۰۰\۲) کتاب الإمارة باب بیان قدر ثواب من غزا فغنم ومن لم یغنم وسنن النسائی (۵۶\۲) کتاب الجهاد باب ثواب السرية التي تحقيق وسنن أبي داود كتاب الجهاد باب في السرية تحقيق رقم ۲۴۹۷ وسنن ابن ماجه كتاب الجهاد باب النية في القتال رقم ۲۷۸۵ وأحمد في مسنده (۱۶۹\۱۱)_

[2]) فتح الباری(۱۶۹\۶)_

[3]) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسّیر /باب تمنّی الشّهادة(رقم-۲۷۹۷) ومسلم فی کتاب الإمارة /باب فضل الجهاد والخروج فی سبیل الله (رقم-۱۰۶ - (۱۸۷۶) والنسائی فی کتاب الجهاد /باب: تمنّی القتل فی سبیل اللّه تعالی (رقم-۳۱۵۲) وابن ماجه فی کتاب الجهاد /باب فضل الجهاد فی سبیل اللّه (رقم-۲۷۵۳) واحمد فی المسند: ۲۷۳/۲

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَوْلَاأَنْ أَشُقَّ عَلٰى أُمَّتِي مَاقَعَدْتُ خَلْفَ سَرِيَّةٍ:

که ما سره دا ویره نه وه.چه زما امت به په مشقت کښې اخته شی.نوزه به د یولښکرنه هم بغیرګډونه نه ووم پاتې شوې.په هره سریه کښې به مې شرکت کولو.خود مشقت د ویرې د وجې زه په هره سریه کښې شرکت نه کوم.

**ه مشقت وجوه:** ① که نبی ﷺ د جهاد دپاره تلو.نود مدینې منورې په انتظامی امورو اومعاملاتوکښې به تعطل پیدا شوې وو.څکه چه نبی ﷺ په خپله موجود نه وو.نو روسته چه کوم واقعات راتلل.اوکوم حالات واقع کیدل.دهغې فیصله اوتصفیه به څنګه کیده؟نود معاملاتوددې تعطل په وجه به خلق په مشکل اوپریشانۍ کښې وو.

② که نبی ﷺ په خپله جهاد ته تشریف اوړلو.نوددې مطلب به دا وو.چه د امیر دپاره په جهاد کښې شرکت ضروری دې.نو روسته چه کوم خلفاء راتلل. دهغوی دپاره به ګرانه وه.چه هغوی به په هرجهاد کښې وتل.اوښکاره خبره ده.چه په دې کښې مشقت دې.

③ نبی ﷺ به کله جهاد ته تشریف اوړلو.نوپه اهل ایمان کښې به څوك هم په مدینه منوره کښې ایساریدو باندې راضی نه وو.په هغوی کښې به د هریو دا خواهش وو.چه هغه د نبی ﷺ سره په جهاد کښې شریك شی.اوچه ټولو د تلو خواهش کولو. نو د ټولو دپاره به په سورلۍ انتظام کول ګران وو.اوتکلیف اومشقت به په پیش کیدلو.

**قوله:** وَلَوَدِدْتُ أَنِّي أُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ ثُمَّ أُحْيَا:

زما ارمان دې.چه زه د الله تعالی په لارکښې قتل کړې شم.اوبیا راژوندې کړې شم.بیا قتل کړې شم.او بیا راژوندې کړې شم.ا،بیا زه دالله تعالی په لارکښې شهید کړې شم.

**اشکال:** دلته کښې اشکال دې.هغه دا چه د نبی ﷺ مرتبه خو د شهیدانو د مرتبې نه زیاته اوچته ده. نو بیا نبی ﷺ د شهادت ارمان ولې کولو.

خودا څه عجیبه خبره نه ده.څکه چه په بعضې وختونوکښې لوئې سړی ته د معمولی معمولی څیزونو خواهش هم وی.ګورئ یوکس ته مخامخ بریانی (په روژو کښې مالګه مصالحه مرچکۍ وغیره واچوی.اوګډ وډ ئې کړی) قورمه اومتنجن (یوقسم خوږ پولاؤ) اونبه نبه څیزونه موجود وی.ددې باوجود هغه وائی.اچار اوچټنی راوړئ.نوددې ښه قسم خوراکونو په مقابله کښې د اچار اوچټنۍ څه حیثیت دې؟ خوهغه بیا هم د اچار اوچټنۍ مطالبه کوی.

نبی ﷺ ته چه الله تعالی کوم مقام اومرتبه ورکړې ده.هغه په څوڅوچنده د شهادت د مرتبې نه اعلی او اوچت دې.خوشهادت هم اګرچه ددوی دمقام نه کم دې.هم د فضیلت

ميوخيز ضرور دي.نوځکه نبي ﷺ ددې تمنا کړې ده.(۱)
ددې نه علاوه د نبي ﷺ ددې تمنا کولو مقصود د شهداؤ اجر اوثواب حاصلول نه دی.ځکه چه اجراوثواب خو نبي ﷺ ته د شهادت نه بغيرهم ددې نه زيات ملاؤ شوې ده.بلکه حقيقت حال دا دې.چه نبي ﷺ د شهادت تمنا ددې دپاره اوکړله.چه په دې کښې يوخاص لذت دې.

وہ کم ہیں تڑپنے میں جنہیں ملتی ہے لذت
یوں آپ کی شمشیر کے بسمل تو بہت ہیں

که د شهادت مرتبه حاصلول ئې مقصود وو.نويوځل شهيد کيدل به کافي وو.خونبي ﷺ چه باربار د شهادت تمنا کوی.نودا په دې خبره دال دې.چه په شهادت کښې يوخاص خوند دې.کوم چه نبي ﷺ يوځل نه بلکه باربارحاصلول غواړی.(۲)

**[۳۷۹۱] دالله په لارکښې د څوکۍ فضيلت**

۳۷۹۱-[۵] ( ) ①وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②" «رِبَاطُ يَوْمٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا عَلَيْهَا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①سهل ابن سعد ﷺ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ②د الله په لار کې د يوې ورځې چوکيداري ددنيا او د دنيا د ټولو څيزونو څخه ښه ده . (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① رباط. څوکيداری کول،هغه ځائې چرته چې لښکر د ملکی سرحد د حفاظت دپاره قيام کوی.

**تسهيلات:**

**قوله:** رِبَاطُ يَوْمٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ" دادَ ارتباط نه دې چه دَ تړلو په معنی کښې راځی ځکه چه په اسلامی سرحداتو باندې څوکئی کونکې سرې هم خپل اس اوخپل ځان په سرحدباندې تړلو سره پهره ورکوی. دَ قرآن پاك دَ آيت ﴿وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ وَمِنْ رِبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدُوَّ اللَّهِ وَعَدُوَّكُمْ ﴾ [سورت انفال، ۶۰] او دَ يوبل آيت ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اصْبِرُوا وَصَابِرُوا وَرَابِطُوا﴾ [سورت آل عمران، ۲۰۰] نه رباط ماخوذ دې. په احاديثوکښې دَ رباط ډير فضيلتونه ذکر دی

**په رباط او حراسة کښې فرق:** په احاديثوکښې يولفظ "حراسة" هم راغلې دې چه دَ څوکيدارنی په معنی کښې دې. حراسه او رباط کښې دومره فرق دې چه حراسه هغه

(۱) فضل الباری (۱۱/۴۵۰)_
(۲) المصدر السابق)_
(۳) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسّير/باب الغدوة والرّوحة فی سبيل الله. وقاب قوس احدکم من الجنّة (رقم-۲۷۹۲)

ځوکی دارئی ته وائی چه دننه ملك کښې وی اورباط هغه پهره دارئی ته وائی چه دکافر ملك په سرحداتو باندې نظر ساتلو اودَاسلامی ملك دَحفاظت دَپاره وی. لهذا دَ دوو مسلمانانو ملکونو په مینځ کښې په سرحداتو باندې چه کومه پهره ورکولې شی دَ رباط فضیلت هغوی ته حاصل نه دې. دغه شان تبلیغی اجتماعاتو باندې ځوکی داری کونکی باندې دَ رباط احادیث ورلګول جائز نه دی. دَدې دَپاره دَ حراسه دَ احادیثو فضیلت حاصلیدې شی. په لغوی توګه باندې دَ رباط اطلاق کله کله په نورو اعمالو باندې هم شوې دې مګر هغه اصطلاحی رباط نه دې.

**قوله: خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا عَلَيْهَا:** دَدې جملې دوه مفهومه دی. اول دا چه دَدنیا دَ ټولو نعمتونو اودَدې ټول سازو سامان نه په رباط کښې یوه ورځ پهره ورکول بهتر دې ځکه چه دَ آخرت ثواب باقی دې اودَ دنیا نعمتونه فانی دی. دویم مفهوم دادې که دَ دنیا ټول دولت دَ الله تعالی په لارکښې خرچ کړې شی اولوئی ثواب ورته ملاؤ شی په رباط کښې یوه ورځ تیرولو ثواب دَدې نه ډیر زیات دې. داقسم جمله چه چرته هم استعمال شوې وی دَهغې هم دغه دوه مفهومه بیانولې شی. لکه څنګه چه په راتلونکی حدیث کښې هم دغه جمله راغلې ده.

**فائده: دَ اسلامی سرحدونو دَ حفاظت په فضیلت کښې یو څو نور احادیث:** دَ اسلامی سرحدونو ساتنه اوحفاظت (یعنی رباط) فضیلت کښې خو ډیر احادیث وارد شوی دی(۱) نو استیعاب خو مقصد نه دې په دې وجه یو څو احادیث مونږ لیکو:

① حضرت سلمان فارسی رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی:

**((رباط يوم وليلة خيرمن صيام شهروقيامه، وإن مات جرى عليه عمله الذى كان يعمله، وأجرى عليه رزقه، وأمن الفتّان))(اللفظ لمسلم) (۲)**

دَ یوې شپې ورځې پهره ورکول دَ یوې میاشت دَ قیام او صیام نه بهتر دی او که چرې (په دې دوران) کښې هغه مړشو نودَهغه اعمال چه په دنیاکښې هغه کول، دَ هغه دَ پاره جاری وی او په هغه باندې به دَ هغه رزق جاری کولې شی اوهغه به دَ شیطان نه محفوظ وی.

② حضرت عثمان رضی الله عنه نه مرفوعا مروی دی:

**((رباط يوم فى سبيل الله خيرمن ألف يوم فيما سواه من المنازل))(۳)**

---

۱) (راجع لتلک الأحاديث الواردة فى فضل الرباط فى سبيل الله: الجامع الأحكام القرآن (ج ٤ص ٣٢٤)-

۲) (الحديث أخرجه مسلم فى كتاب الإمارة باب فضل الربات فى سبيل الله عزوجل رقم (٤٩٣٨) والترمذى فى فضائل الجهاد باب ماجاء فى فضل المرابط رقم (١٦٦٥) والنسائى فى كتاب الجهاد فضل الرباط رقم (٣١٦٩-٣١٧٠)-

۳) (الحديث أخرجه الترمذى أبواب فضائل الجهاد باب ماجاء فى فضل المرابطة. رقم (١٦٦٧) والنسائى فى سننه الصغرى كتاب الجهاد فضل الرباط رقم (٣١٧١-٣١٧٢) وابن ماجه أبواب الجاهد باب فضلةالرباط فى سبيل الله رقم (٢٧٦٦)

دَ الله تعالى په لاركښې دَ يوې ورځې څوكيدار كول په نورو ځايونوكښې تيرو شوو زرو كالونه بهتر دى.

③ حضرت فضاله بن عبيد رضي الله عنه نه روايت دې چه نبى كريم ﷺ فرمائيلى: ((كل الميت يختم على عمله، إلا المرابط، فإنه ينمو له عمله إلى يوم القيامة، ويؤمن من فتّان القبر)). (اللفظ لأبي داؤد)(۱)

دَ هر مړى په اعمالو باندې مهر لګولې شى (بندولې شى) سوا دَ مرابط نه. دَ هغه عمل دَ هغه دَ پاره دَ قيامته پورې زياتولې شى او هغه دَ قبر دَ فتنې نه په امن او محفوظ كيږى.

**[۳۷۹۲] دَ سبيل الله مصداق**

۳۷۹۲-[۲] ( ) ①وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②«لَغَدْوَةٌ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ، أَوْرَوْحَةٌ ③خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①او حضرت انس رضي الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل ②يو سحر د پاره يا د يومابنام د پاره د الله په لاركې د جهاد د شركت په غرض تلل ③د دنيا او د دنيا دخيزونو څخه بنه دى. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ①لَغَدْوَةٌ: بالفتح- معنى ده، دَ سحر وخت يوځل راوتل او "غدو" لفظ دَ سحر نه تر زوال پورې وخت شامل دې. ②رَوْحَةٌ: بالفتح- معنى ده يو ځل مابنام راوتل او "رواح" لفظ دَ زوال نه پس تر شپې پورې وخت شامل دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَغَدْوَةٌ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ، أَوْرَوْحَةٌ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا:

**دَ حديث په مطلب كښې اقوال:** ① ابن المهلب رحمه الله فرمائى چه ((خير من الدنيا)) مطلب دا دې چه دَ دې لږې غونډې زمانې ثواب او بدله په جنت كښې دَ دنيا دَ ټولوزمانونه بهتر ده. (۳)

② ابن دقيق العيد رحمه الله فرمائى چه دَ حديث مطلب دا دې چه "غدوة" او "روحة" په ذريعه به كوم ثواب حاصليږى هغه بهتر دې دَ هغه ثواب نه كوم چه دنيا او مافيها دَ الله تعالى دَ طاعت دَ پاره خرڅ كولوسره حاصليږى(۴)

۱ ) (الحديث رواه أبوداؤد أبواب الجهاد فى فضل الرباط رقم (۲۵۰۰) والترمذى أبواب فضائل الجهاد باب ماجاءفى فضل من مات مرابطا رقم (۱۶۲۱)-

۲ ) اخرجه البخارى فى كتاب الرّقاق/باب مثل الدّنيا فى الآخرة (رقم-۶۴۱۵) ومسلم فى كتاب الإمارة/باب فضل الغدوة والرّوحة فى سبيل الله (رقم-۱۱۳ - (۱۸۸۱) واحمد فى المسند:۳۳۹/۵

۳ ) (شرح ابن بطال (ج۵ص۱۳)-

۴ ) (انظر فتح البارى(ج۶ص۱۴)-

حافظ رحمه الله دَ ابن دقیق العید رحمه الله قول ذکر کولونه پس فرمائی چه دَ دې قول تائید دَ دې حدیث نه هم کیږی کوم چه عبدالله بن المبارک رحمه الله کتاب الجهاد کښې دَ حضرت حسن بصری رحمه الله نه مرسلاً نقل کړیدې.

((قال: بعث رسول الله صلی الله علیه وسلم جیشًا فیهم عبدالله بن رواحة، فتاخر لیشهد الصلاة مع النبی صلی الله علیه وسلم، فقال له النبی صلی الله علیه وسلم: والذی نفس بیده لو انفقت ما فی الارض ما ادرکت فضل غدوتهم)) (۱)

نبی کریم ﷺ یو لښکر اولیګلو، په دې کښې عبدالله بن رواحه رضی الله عنه هم وو، هغه روستو دَ رسول الله ﷺ سره په مانځه کښې دَ شریکیدودَ پاره حصار شو (کله چه هغوی ﷺ ته معلومه شوه) نوونی فرمائیل، دَ الله قسم! ته چه څه په زمکه کښې دی هغه صدقه کړې نو بیا هم دَ هغوی دَ غدوې فضیلت نشې حاصلولې.

**دَ سحراومابنام دتخصیص وجه:** دلته دَ سحر اومابنام ذکر غالبًا صرف دَ دې دَپاره شویدې چه هم دَسحراومابنام په سفرباندې دَ تلو رواج وو،ګنی که سرې دَ ورځې په مینځینئی حصه کښې دَ دین دَخدمت په سلسله کښې لاړشی نو یقینًا دَ هغه دَ تګ هم هغه فضیلت دې.(۲)

**قوله: فِي سَبِيلِ اللهِ**

**د في سبيل الله مصداقات:** ① دَ الله تعالی دَ لارې نه دَ جهاد لار او په جهادکښې شرکت مراد دې. علامه ابن حجر رحمه الله فتح الباری کښې دَ سبیل الله په شرح کښې لیکی "ای الجهاد". قرآن عظیم کښې دا لفظ باربار راغلې دې دَ قرآن په لوستلوسره معلومیږی چه دَ سبیل الله لفظ په دریوطریقو سره استعمال کړې شوې دې. دَدې اولنې اطلاق او استعمال دَ جهاد دَپاره شوې دې اوجهاد فی سبیل الله سره دا لفظ خاص دې لکه ﴿يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللهِ يُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللهِ﴾ اودَدې په شان نور آیاتونه دی دا جهاد سره خاص دې او په صریح توګه په قرآن کښې دَ سبیل الله لفظ ۳۶ ځل ذکرشوې دې

② دَدې لفظ دویم اطلاق اواستعمال دَعموم په توګه دَ مطلق دین دَپاره شوې دې چه دَ دین دَ ټولو شعبودَپاره عام دې هیڅ یوشعبې سره خاص نه دې لکه ﴿يَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللهِ﴾ آیت شو. اودَدې نه علاوه نور آیاتونه دی په صریح توګه باندې په قرآن عظیم کښې دالفظ ۲۵ مقاماتوکښې ذکر دې.

۱) (انظر فتح الباری (ج۶ص۱٤)-
۲) (معارف الحدیث (ج۱ص۱۶۱)-

③ دَدې لفظ دريم اطلاق په مشترکه توګه باندې شوې دې کله په انفاق في سبيل الله کښې استعمال شوې کله په جهاد کښې استعمال شوې دې او کله دَ مطلق دين دَپاره استعمال شوې دې لکه ﴿ وَأَنفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلَا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ ﴾ والا آيت دې. په صريح توګه باندې دا لفظ ۷ مقاماتو کښې استعمال شوې دې.

④ امام احمد بن حنبل رحمه الله دَ سبيل الله په مفهوم کښې دَ يو حديث دَ وجې نه حاجيان او دَ علم دين طالبان هم داخل منلى دى. صاحب هدايه په کتاب الزكوة کښې اودَ في سبيل الله په تشريح کښې ليکلى دى "اي المنقطع الغزاة لانه المتفاهم عند الاطلاق" يعنى چه کله في سبيل الله مطلق استعمال شي نو دَدې رومبى مصداق مجاهدين دى. دَ مشکوة شريف کتاب الجهاد کښې دا لفظ تقريباً ۹۰ ځل راغلې دې کوم چه دَجهاد دَپاره استعمال شوې دې.

⑤ په عموميت کښې د تبليغ لار هم په في سبيل الله کښې داخله ده. اوخوک چې په تبليغ کښې وتلى وى هغه ته هم في سبيل الله وئيلى شى خو في سبيل الله په تبليغ پورې خاص کول لويه غلطى ده. ددې ځخه ځان راويستل ضرورى دى.

## [۳۷۹۲] دالله په لار کښې د يوې ورځې شپې د څوکۍ فضيلت

۳۷۹۳-[۷] (۱) ۞ وَعَنْ سَلْمَانَ الْفَارِسِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: ۞ "«رِبَاطُ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، ۞ خَيْرٌ مِنْ صِيَامِ شَهْرٍ وَقِيَامِهِ، ۞ وَإِنْ مَاتَ جَرَى عَلَيْهِ عَمَلُهُ الَّذِي كَانَ يَعْمَلُهُ ۞ وَأُجْرِيَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ، وَأَمِنَ الْفَتَّانَ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او سلمان فارسي رضي الله عنه وايي چې ما درسول کريم صلى الله عليه وسلم څخه واوريدل ۲ په جهاد کې د يوې ورځي او يوې شپې خدمت انجام کول ۳ د يوې مياشتې روژې او شب بيدارى څخه ښه دى ۴ او که هغه چوکيدار د دې خدمت آنجامولو په دوران کې مړ شي نو د هغه د دې عمل ثواب چې په هغه هغه خپل ژوند کې عامل وو جاري به وي يعنى خپل ژوند کي چې په کوم نيك عمل عامل وو د هغه ثواب به هغه ته د مرګ څخه وروسته هم هميشه رسيږي ۵ او د هغه د پاره د جنت طعام او شراب څخه د هغه رزق جاري کول کيږي او هغه د شيطان يادجال د مکر او دهوکه څخه يا په قبر کې د عذاب د فرښتي د فتني څخه محفوظ وي (مسلم)

**حل اللغات:** ① رِبَاطُ: پهره ورکول ② جَرَى: جارى وى ③ الفَتَّانَ: د مبالغې صيغه ده، د ډيرې فتنې اچونکې (يعنى عذاب ورکونکې)

[1] ) اخرجه مسلم في كتاب الإمارة/باب فضل الرّباط في سبيل الله عزّ وجلّ (رقم-۱۶۳ - (۱۹۱۳)) والنسائي في كتاب الجهاد/باب فضل الرّباط (رقم-۳۱۶۷) واحمد في المسند: ۵/ ٤٤٠

**تسهيلات:**

**قوله:** رِبَاطُ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ فِي سَبِيلِ اللهِ

**د مرابط في سبيل الله ثواب:** ① دَ يوې ورځې او يوې شپې پهره دَالله تعالى په لارې دَ جهاد كښې دَ يوې مياشتې تولې ورځ روژه او تولې شپې تهجدنه افضل ده.

② دَ مرابط نيك عمل كوم چه هغه په دنياكښې كولو دَمرګ نه پس به دَهغه ثواب بنديږي نه بلكه جاري به وي. دغه شان دَهغه دَمرګ نه پس به په قبركښې دَ جنت دَنعمتونو په صورت كښې رزق جاري شي

③ مرابط في سبيل الله به دَعذاب قبر دَ فتنې نه محفوظ وي

**قوله:** وَأَمِنَ الْفَتَّانَ:

**د فتنې څخه مراد:** ① دَ فتان په لفظ كښې فاء باندې فتحه اوضمه دواړه دي اوپه تاء باندې شد دې. دې نه دَعذاب قبرفتنه هم مراد اخستې شي

② دَ دجال فتنه هم اخستې شي اودَ شيطان فتنه هم اخستې شي بعضې شارحينو دالفظ دَ جمع صيغه ګرځولې ده دكوم مفردچه فاتن دې

③ ددې نه ئې دَ دوزخ دَ داروغه فتنه مراد اخستې ده بهرحال كله چه مرابط دَدومره لويو فتنونه محفوظ پاتې كيږي نوورې فتنې به هيڅ هم نه وي.

**[۳۷۹٤] دالله تعالى د لارې ګرد د جهنم څخه حفاظت**

**۳۷۹٤-[۸] ()** [۱] وَعَنْ أَبِي عَبْسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «مَا اغْبَرَّتْ قَدَمَا عَبْدٍ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ فَتَمَسَّهُ النَّارُ» " رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او ابوعبس رضي الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] د كوم بنده پښې چې د الله په لار كې په جهاد كې په خاورو ككړې شي نو بيا هغه د دوزخ اور نه مسه كوي (بخاري)

**دراوي مختصر تعارف:**

**حضرت ابو عبس عبدالرحمن بن جبر رضي الله عنه:** نوم عبدالرحمن كنيت ابوعبس دَ هغه كنيت دَ هغه دَ نوم نه ډير مشهوردې. پوره نوم عبدالرحمن بن جبر بن عمرو بن زيد بن جشم بن مجدد انصاري دې. بدري صحابي دې دَ لوئ فضيلت والا دې.

**وفات:** دَ هغه وفات ۳۴هـ كښې مدينه منوره كښې دَ حضرت عثمان رضي الله عنه په دورخلافت

[1]) اخرجه البخارى فى كتاب الجهاد والسّير/باب من اغبرّت قدماه فى سبيل الله (رقم-۲۸۱۱) والترمذى فى كتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/ ما جاء فى فضل من اغبرّت قدماه فى سبيل الله (رقم-۱۶۳۲) والنسائى فى كتاب الجهاد/باب: ثواب من اغبرّت قدماه فى سبيل الله (رقم-۳۱۱۶)

کښې شوې وو او هم هغوی دَ ده دَ جنازې مونځ کړې ووا و په جنت البقيع کښې خښ شوې دې.

**مرويات:** دَ هغه نه پنځه روايتونه نقل دی يو بخاری کښې دې باقی ترمذی نسائی وغيره کښې دی.

**حل اللغات:** ①اغْبَرَّتْ: د لار په دوړه اوخاوره باندې ککړ کيدل

**قوله:** مَا اغْبَرَّتْ قَدَمَا عَبْدٍ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ:

**دَ الله تعالى په لار کښې دَ حرکاتو او تصرفاتو عظمت:** دَ حديث مطلب دا دې چه دَ دوړو په موجودګئی سره به نی دَ دوزخ أور نه سوزوی او په دې کښې دَ الله تعالى په لارکښې تصرفاتو او حرکاتو ته اشاره ده. لړه شان اندازه اولګوئی چه صرف په قدمونو باندې دَ دوړو لګيدو په وجه دَ دوزخ أور حراميږی نو دَ هغه سړی به څه مرتبه او فضيلت وی چا چه خپل پوره طاقت، قوت او کوشش دَ الله تعالى په لارکښې لګولې وی.(١)

**دَ حديث باب هَم معنی يو څو نور احاديث:** ①ابن حبان رحمه الله دَ حضرت جابر رضي الله عنه نه دَ روايت باَب دَ معنی په شان روايت نقل کړيدې. چه حضرت جابر رضي الله عنه فرمائی چه هغه په غزوه کښې وو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل: ((من اغبرت قدماه في سبيل الله حرمه الله على النار)). حضرت جابر رضي الله عنه فرمائی چه کله خلقو دَ نبی کريم ﷺ ارشاد مبارك واوريدو نو هغوی دَ خپلو خپلو سورلونه راؤدانګل او دَ دغه ورځ نه وړاندې مونږ خلق دومره پيدل تلونکی نه دی ليدلی. (٢)

②دغه شان علامه طبرانی رحمه الله هم دَ حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه نه مرفوعاً نقل کړی دی چه نبی کريم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو ((من اغبرت قدمه في سبيل الله باعد الله منه النار مسيرة ألف عام للراكب مستعجل))(٣)

يعنی دَ چا قدم چه دَ الله تعالى په لار کښې دَ دوړو شو نو الله تعالى به دَ هغه نه دَ دوزخ أور دومره لرې کړی څومره چه دَ يو تيز سور دَ زرو کالو مسافت وی.

مطلب دا چه يو تيز رفتار سور په زرکاله کښې څومره فاصله کوی دَ هغې په اندازه به الله تعالى دَ دغه سړی نه دَ دوزخ أور لرې کړی دَ چا قدمونه چه دَ الله تعالى په لارکښې دَ دوړوشوې وی.

---

١ ) (فتح البارى (ج۶ص٣٠)-
٢ ) (الإحسان بترتيب صحيح ابن حبان (ج٨ص٦٢)-
٣ ) (مجمع الزوائد للهيثمى (ج٥ص٢٨٥)-

**[۳۷۹۵] د کافر او دهغه د مسلمان قاتل په جهنم کښې عدم اجتماع**

۳۷۹۵-[۹] (¹) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «لَا يَجْتَمِعُ كَافِرٌ وَقَاتِلُهُ فِي النَّارِ أَبَدًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او ابوهریره ﷛ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] کافر او د هغه وژونکی مسلمان هيڅ کله هم په دوزخ کې يوځای کيدی نشي (مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله:** لَا يَجْتَمِعُ كَافِرٌ وَقَاتِلُهُ فِي النَّارِ أَبَدًا

**دعدم اجتماع فی النار په مفهوم کښې ځلور اقوال:** په دې حديث کښې د هغه مسلمان دپاره ډير زيرې دې چه د هغه په لاس سره يو کافر قتل شی. هغه دا چه د هميشه دپاره د جهنم نه محفوظ شو، دا ډير فضيلت دې، خو شارحين حديث دا په خپل عموم باندې نه دې پريخودلې، په نورو ايتونو او احاديثو باندې نظر ساتلو سره. په دې کښې ځلور اقوال دی

① د دې ځخه هغه مراد دې چې باقاعده جهاد ته ځی او کافران قتلوی

② د اور د عذاب نه به محفوظ شی که د ګناهونو د وجې په عذاب شو هم نو بغير د اور نه به وی، مثلاً په اعراف کښې پاتې کيدل په جنت کښې د دخول اولی نه

③ که د ځه وجې د اور عذاب اوشی نو بيا هم هغه طبقه نار کښې به نه داخليږی کومه چه د کفارو دپاره ده

④ خاص د دې کافر مقتول طبقه مراد ده چه دواړه به په يو طبقه کښې جمع نه شی

والحديث اخرجه مسلم قاله المنذری.

**[۳۷۹۶] د بهترين ژوند مالک**

۳۷۹۶-[۱۰] (²) [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «مِنْ خَيْرِ مَعَاشِ النَّاسِ لَهُمْ، [۳] رَجُلٌ مُمْسِكٌ عِنَانَ فَرَسِهِ فِي سَبِيلِ اللهِ، يَطِيرُ عَلَى مَتْنِهِ، كُلَّمَا سَمِعَ هَيْعَةً، أَوْ فَزْعَةً، طَارَ عَلَيْهِ يَبْتَغِي الْقَتْلَ وَالْمَوْتَ مَظَانَّهُ، أَوْ رَجُلٌ فِي غُنَيْمَةٍ فِي رَأْسِ شَعَفَةٍ مِنْ هَذِهِ الشَّعَفِ، أَوْ بَطْنِ وَادٍ مِنْ هَذِهِ الْأَوْدِيَةِ، يُقِيمُ الصَّلَاةَ وَيُؤْتِي الزَّكَاةَ وَيَعْبُدُ رَبَّهُ حَتَّى يَأْتِيَهُ الْيَقِينُ، لَيْسَ مِنَ النَّاسِ إِلَّا فِي خَيْرٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] ابوهريره ﷛ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] دانسانانو په ژوند کې

---

¹) اخرجه مسلم فی کتاب الإمارة/باب من قتل کافرا ثمّ أسلم (رقم-۱۳۰ - (۱۸۹۱)) و ابو داود فی کتاب الجهاد/باب فی فضل من قتل کافرا (رقم-۲۴۹۵)

²) اخرجه مسلم فی کتاب الإمارة/باب فضل الجهاد والرّباط (رقم-۱۲۵ - (۱۸۸۹)) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب العزلة (رقم-۳۹۷۷)

بهترين ژوند د هغه سړي دی ۞ چې د الله په لار کې د خپل آس واګې ونيسي او هرکله چې د چا خوف زده آواز يا د چا فرياد کولو آواز واوري نو تادي سره د آس په شا سور شي او د هغه خوفزده يا فريادرس اواز طرف ته په منډه ورشي او خپل مرګ يا هغه ځای تلاش کوي چرته چې د مرګ ګمان وي يعنی هغه چې د يوخوفزده ژړا فرياد يا د مدد غوښتونکي اواز واوري نو تادي سره روان شي او هغه آواز تلاش کولو سره موقع ته رسيدو سره د فرياد کونکي مدد کوي او د دې خبرې څخه نه ويرېږي چې ځما په ځان جوړه نشي او ماته دخپل ژوند څخه لاس وينځل راشي يا بهترين ژوند د هغه سړي دی چې دځو بزو سره هغه غرونو څخه د يو غر په څوکو يا هغه وادېوڅخه يوي وادي کې اقامت ګزين دی او مونځ کوي او که هغه بزي (چيلۍ) حد نصاب ته رسيږي نو د هغه زکوٰة اداکوي او د خپل پروردګار عبادت او بندګي کې مشغول وي تردي چې د هغه مرګ راشي او داسړی د انسانانو شر نه دی بلکه صرف د خير په مينځ کې ژوند تيروي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① مَعَاش: دادَ عيش نه دې يعنی دَ انسان بهترين ژوندون ② مُمْسِكٌ: نيونکې وی. ③ عِنَانَ: واګې، ④ يَطِيرُ: الوتوته وائی دلته مراد تيزې منډې وهل دی لکه چه الوزی. ⑤ مَتْنِهِ: متن شا (ملا) ته وائی. ⑥ هَيْعَةً: په ويرې سره دَفرياد آوازته هيعة وائی. ⑦ فَزْعَةً: دَويرې زياتې ويرې په وخت دَامداد اونصرت دَپاره رابللوته فزعه وائی. "أو" دَتنويع دَپاره دې دَدواړو معنی نيزدې نيزدې ده ويريدلي فرياد کونکې سړې مراددې. ⑧ مَظَانَّهُ: دَمظنة جمع ده ګمان کونکې، او ضميرمفرد ځکه راوړلې شوې دې چه دهريوطرف ته راجع دې يا دَاقرب طرف ته ضميرراګرځی کوم چه مرګ دې. ⑨ غُنَيْمَةٍ: دادَ غنم تصغيردې دَتقليل دَپاره دې. يعنی دَ چيلوپه يوه ټکړه کښې دې. ⑩ شَعَفَةٍ: شين عين اوفاء باندې فتحه ده دَغر څوکې ته وائی.

**قوله:** لَيْسَ مِنَ النَّاسِ إِلَّافِي خَيْرٍ. يعنی نه خلقوته پخپله تکليف ورکوی اونه دَخلقو په شرکښې خپل ځان مبتلا کوی.

**د خلوت حکم:** دَ شرفساد اوفتن ومحن په وخت سړی له پکاردی چه دَ خپل دين دَحفاظت دَپاره دَ آسانئی والا ژوند پرېږدی دَ خلقو نه ځان له شی ورك ژوند او په يوګوټ کښې ژوند تيرول اودَفقر وفاقې اومشقت والا ژوندون اختيارکړی. په ګوټ کښې وخت تيرول اودَخلقونه ځان له ژوند تيرول هغه وخت کښې افضل دې کله چه دَدين اوايمان خطره وی ګنی په عاموحالاتوکښې دَخلقو په مينځ کښې اوسيدل اودَهغوی دَاصلاح فکرکول اودَهغوی مشقتونه برداشت کول افضل دی. دَ ټولو انبياؤ اولياؤ اوعلماؤ هم دغه معمول وو.

**[۳۷۹۷] د مجاهد دپاره د سامان تیارولو فضیلت**

۳۷۹۷—[۱۱] () [۱] وَعَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«مَنْ جَهَّزَ غَازِيًا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ، فَقَدْ غَزَا، [۳] وَمَنْ خَلَفَ غَازِيًا فِي أَهْلِهِ، فَقَدْ غَزَا» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او زید ﷛ ابن خالد وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړی چې د الله په لار کې د جهاد کونکي سامان درست کی هغه گویا جهاد وکړو یعنی هغه هم د جهاد کونکو په حکم کې داخل دی او د جهاد په ثواب کې شریك دی [۳] او کوم سړی چې د یوغازي او مجاهد د هغه اهل وعیال د پاره نائب او خلیفه جوړ شی یعنی کوم سړی چې د یوغازي او مجاهد جهاد ته دتلو څخه وروسته د هغه د اهل وعیال خدمت گذار او نگهبان جوړ شی هغه هم گویاجهادوکړو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① جَهَّزَ: سامان، اسباب تیار کړی.

**تسهیلات:**

**قوله:** مَنْ جَهَّزَ غَازِيًا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ:

**دَ تجهیز نه څه مراد دی؟:** دَ تجهیز معنی چاته دَ سفر اسباب او سامان ورکولو ده.که زیات وی اوکه کم، تر دې چه چاته تار او ستن ورکول هم په دې کښې داخل دی. طبرانی (۲) دَ حضرت واثله بن اسقع ﷛ نه روایت نقل کړیدې،

((قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: ما من أهل بيت لايغزو منهم غاز أو يجهز غازيا بسلك أوإبرة أو ما يعدلها من الورق أويخلفه فى أهل بخير إلا أصابهم الله بقارعة قبل يوم القيامة)) (۳)

که دَ یوې کورنۍ نه یو کس هم غزوه کښې شرکت اونکړی یا دَ یوغازی دَ ستنې تار یا دَ دې برابر چاندئی سره تیاری اونکړی یا دَ هغه دَ بال بچ تپوس پوښتنه اونکړی نو دَ قیامت نه وړاندې وړاندې به الله تعالی هغه په څه مصیبت کښې اخته کړی.

**یو اشکال:** لیکن دلته یو اشکال پیدا کیږی او هغه دا چه امام بن ماجه ﷬ دَ حضرت عمر بن خطاب ﷛ نه یو روایت نقل کړیدې دَ هغې الفاظ دا دی ((سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: من جهز غازيا حتى يستقل كان له مثل أجره حتى يموت أو يرجع)) (۴)

---

[۱] ) اخرجه البخار ی فی کتاب الجهاد والسِّیر/باب فضل من جهّز غازیا أو خلفه بخیر(رقم-۲۸۴۳) ومسلم فی کتاب الإمارة/باب فضل إعانة الغازی فی سبیل الله بمرکوب وغیره، وخلافته فی أهله بخیر(رقم-۱۳۵ - (۱۸۹۵) و ابو داود فی کتاب الجهاد . باب ما یجزئ من الغزو (رقم-۲۵۰۹) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب فضل من جهّز غازیا (رقم-۳۱۸۰)وابن ماجه فی کتاب الجهاد/باب من جهّز غازیا (رقم-۲۷۵۹) واحمد فی المسند: ۱۱۵/٤

۲ ) (مجمع الزوائد (ج۵ص ۲۸٤) وقال العینی (ج ۱٤ص۱۳۷) وإسناده ضعیف-

۳ ) (عمدةالقاری (۱٤ص۱۳۷)-

٤ ) (أخرجه امام ماجه أبواب الجهادباب من جهز غازیا رقم (۱۸۵۸)-

ماد رسول الله ﷺ نه اوریدلی دی که چا یو غازی ته دَ سفر مکمل سامان او اسباب ورکړل نودَ هغه دَپاره به هم دَ دغه غازی په شان ثواب وی تر دې چه هغه غازی به یا شهید شی یا به واپس راشی.

په حدیث شریف کښې دَ ((یستقل)) الفاظ دی او دَ استقلال معنی خو پوره تیاری کول دی، دَ دې دَ پاره دا وئیل چه صرف ستن او تار ورکول هم تجهیز دې صحیح نه دی.

**دوه جوابونه:** علامه عینی رحمه الله دَ دې دوه جوابونه ارشاد فرمائیلی:

① حدیث واثله بن الاسقع ضعیف دې په دې وجه دَ احتجاج قابل نه دې.

② اوکه دَ دې صحت اومنلې شی نو بیا هم دَ هغه سړی په حق کښې وعید دې چه دَ سره دَ هیڅ قسمه سامان دَ مجاهد سره امداد اونکړی په دې وجه هیڅ تعارض نشته. (۱)

**قوله:** فَقَدْ غَزَا:

**د غزا کولو دوه مطلبه:** ① ابوحاتم ابن حبان رحمه الله فرمائی چه مطلب دا دې چه ده ته به هم دَ غازی اجر ورکولې شی، سره دَ دې چه هغه په جهاد کښې شرکت نه دې کړې.(۲) بیا دَ یو بل طریق نه بسرین سعید رحمه الله نه دا روایت نقل کړې: ((...**کتب له مثل أجره، غیر أنه لاینقص من أجره شئ...**))(۳)

② علامه کشمیری صاحب رحمه الله فرمائی چه یوکارخو یا یو سړې پوره کوی یا دَ هغې دَ پوره کولو دَ پاره دَ یوپوره ډلې ضرورت وی، اوس که هغه کار دَ یو ډلې په کار کولوسره پوره کیږی نو په هغې کښې به هر یو کس ته دَ فاعل اجر حاصل وی که هغه په دې کار کښې پخپله شریك وی یا په څه طریقه ئې هم په دې کښې معاونت کړی لکه جهادچه دې. دا یو داسې امر دې دَ څه دَپاره چه دَ مجاهدینو دَ جماعت هم ضرورت دې چه اوجنګیږی. دغه شان دَ هغوی دَپاره دَ داسې سړو هم ضرورت وی چه دَ دې مجاهدینو معاونت اوکړی او دَ هغوی شاته دَ هغوی په غیرموجودګئی کښې دَ هغوی دَ کور مال حال خبرواخلی او دَ هغوی دَ پالنې خیال اوساتی. په دې وجه معاونت کونکې اودَ مجاهدینو شاته دَ هغوی دَ کور مال حال خبراخستونکې هم دَ الله تعالی په لارکښې دَ جهاد کونکی په شان دې.

خلاصه دا شوه چه چا په جنګ کښې پخپله حصه واخستله او چا چه په څه طریقه سره هم

---

۱ ) (عمدة القاری (ج ۱٤ ص ۱۳۷) وقد وردت أحادیث کثیرة فی تجهیز الغازی وخلفه بخیر. فمن أراد الاطلاع علیها فلینظر عمدة القاری (ج ۱٤ ص ۱۳۷)-

۲ ) (الإحسان بترتیب صحیح ابن حبان (ج ۸ ص ۷۱)-

۳ ) (حواله سابقه (ج ۸ ص ۷۲) کتاب السیر ذکر البیان بأن المجهز إنما یأخذ کحسنات الغازی... رقم (٤٦١٤)

دَ هغه مجاهد معاونت اوکړو دا ټول په جهاد کښې مشترك دی، دا صحیح ده چه دَ اخلاص، سخاوت نفس، مال دَ خرج کولو او ځان قربانی کولو په وجه به دَ هغه په اجرکښې کمی زیاتی اعتبارکښې به اختلاف وی.(۱)

**فائده:** امام طبری رحمه الله فرمائی:

((وفيه من الفقه أن كل من أعان مؤمنًا على عمل بر فللمعين عليه أجر مثل العامل، وإذا أخبر الرسول أن من جهز غازيا فقد غاز، فكذلك من فطر صائما أوقواه على صومه، وكذلك من أعان حاجاً(۲) أومعتمرا بما يتقوى به على حجه أوعمرته حتى يأتي ذلك على تمامه فله مثل أجره))(۳)

یعنی دَ مذکوره حدیث نه دا فائده مستنبط شوه چه یو سړی دَ یو مؤمن په نیك کار کښې امداد اوکړی نو هغه معاون او ناصر ته به هم دَ هغې په شان اجر حاصل وی. او چه کله نبی کریم ﷺ دَ دې خبرې خبر ورکړوکه چا مجاهد له دَ جهاد سامان ورکړو نو لکه چه هغه پخپله هم جهاد اوکړ و، دغه شان که چا په یو روژه دار باندې روژې ماتې اوکړو یا دَ روژې په سلسله کښې ئې هغه له تقویت ورکړو، دغه شان چا چه دَ یو حاجی معتمر په څه داسې څیز سره امداد اوکړو چه هغه دَ حج یا عمرې سر ته رسولو دَ پاره په هغې قادرشو نودې امداد کونکی ته به دَجهاد ،روژې، حج اویا عمرې برابر اجر ورکولې شی.

## [۳۷۹۸] د مجاهدینو د ښځو د احترام حکم

۳۷۹۸-[۱۲] (۴) [۱] وَعَنْ بُرَيْدَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[۲] «حُرْمَةُ نِسَاءِ الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ كَحُرْمَةِ أُمَّهَاتِهِمْ، وَمَا مِنْ رَجُلٍ مِنَ الْقَاعِدِينَ يَخْلُفُ رَجُلًا مِنَ الْمُجَاهِدِينَ فِي أَهْلِهِ فَيَخُونُهُ فِيهِمْ: [۳] إِلَّا وُقِفَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، فَيَأْخُذُ مِنْ عَمَلِهِ مَا شَاءَ، فَمَا ظَنُّكُمْ؟»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت بریده رضی الله عنه وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲] د مجاهدینو د بیبیانو عزت او حرمت په کورونوکي په ناستو یعنی جهاد ته نه تلونکو والاوو باندې داسې لازم دی څنګه چې د هغوئ دخپلو میندو عزت او حرمت په هغوی لازم دی یعنی کوم خلق چې په څه وجه جهاد ته نشي تلی او په خپلو کورونو کې پاتې شوي دي هغوی ته پکار دی چې کوم خلق جهاد ته تللي دي د هغه مسلمانانو د بیبیانو عزت او آبروکي خیانت ونه کې او هغوی ته په بدنظر ونه ګوري بلکه هغوی په خپل حق کې داسې حرامي وګني ګویا

---

۱) (فیض الباری (ج۳ص۴۲۷)-

۲) (إشارة إلی ماروواه الرافعي. انظر تلخیص الجبیر(ج ٤ص ۱۰۱)-

۳) (شرح ابن بطال(ج۵ص۵۱)-

۴) اخرجه مسلم فی کتاب الإمارة/باب حرمة نساء المجاهدین. وإثم من خانهم فیهنّ (رقم-۱۳۹ - (۱۸۹۷) و ابو داود فی کتاب الجهاد/باب فی حرمة نساء المجاهدین علی القاعدین (رقم-۲٤۹٦) والنسائی فی کتاب الزکاة/باب المعدن(رقم-۲٤۹۵) واحمد فی المسند: ۳۵۵/۵

چې هغوئ يې ميندي دي [۳]نو ياد لړئ ناستو يعنی جهاد ته نه تلونكو كې چې كوم سړی د يو مجاهد د اهل وعيال يعنی د هغه د ښځې او منيځو او نورو خپلوانو د پاره نائب او خليفه جوړ شو يعنی د هغوی نګران جوړ شو او بيا د هغه مجاهد د اهل وعيال عزت او آبرو كې خيانت اوكړو نو هغه به د قيامت په ورځ د هغه مجاهد مخكې ودرول شي او مجاهد چې د هغه د نيكو اعمالو څخه څومره غواړي وابه خلي په داسې حالت كې ستاسو څه فكر دی؟

**حل اللغات:** ①حُرْمَةُ: عزت، د عزت حفاظت ②الْقَاعِدِينَ: ناست خلق، جهاد ته نه تلونكی خلق. ③يَخْلُفُ: خليفه او نائب جوړشی، ④فَيَخُونُهُ: نو خيانت پكښې اوكړی

**تسهيلات:**

**قوله: إِلَّاوُقِفَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، فَأَخَذَ مِنْ عَمَلِهِ مَا شَاءَ:**

**مجاهدته د خائن د نيكو اخستلو اختيار:** يعنی دغه خيانت كونكې به دَمجاهد مخې ته اودرولې شی اوهغه چه دَده نه څومره نيكيانې اخستل غواړی اخستلې به شی

**قوله: فَمَا ظَنُّكُمْ؟:**

**د مذكوره جملې مفهوم:** خائن نه به الله تعالى دَقيامت په ورځ دَهغه ټولې نيكئی مجاهدته وركوی آيادَالله تعالى باره كښې ستاسوڅه شك شته دې؟ داسې خيال اوشك مه كوئی يعنی ستاسو څه خيال دې چه دَ قيامت په ورځ دَدې ضرورت په موقع باندې به مجاهد دَهغه څه نيكی پريږدی؟ نه بلكه هرڅه به اخلی

**دمجاهد حق وهلودګناه عظمت:** بهرحال په دې حديث كښې دَمجاهد ډير لوئی فضيلت بيان كړې شوې دې دكوم دائره چه دَ هغه خاندان او قبيلې پورې خوريږی چه دَ مجاهد دَ بيبيانو احترام په عام مسلمانانو داسې لازم دی لكه څنګه چه دَخپلو مئيندو احترام لا زم دې

**[۳۷۹۹]په جهاد كښې د مالي مدد فضيلت**

۳۷۹۹-[۱۳]([۱]) [۱]وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، [۲]قَالَ: «جَاءَ رَجُلٌ بِنَاقَةٍ مَخْطُومَةٍ [۳]فَقَالَ: هَذِهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، [۴]فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "لَكَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ سَبْعُمِائَةِ نَاقَةٍ كُلُّهَا مَخْطُومَةٌ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱]ابو مسعود انصاري ﷺ وايي [۲]چې يوه ورځ دربار نبوت كې يوسړی مهار نيولی د اوښې سره حاضر شو [۳]او عرض يې اوكړو چې دا د الله د لار د پاره ده يعنی زه

[۱] اخرجه مسلم فی كتاب الإمارة/باب فضل الصدقة فی سبيل الله وتضعيفها (رقم-۱۳۲ - (۱۸۹۲) والنسائی فی كتاب الجهاد/باب: فضل الصدقة فی سبيل الله عزّ وجلّ (رقم-۳۱۸۷) واحمد فی المسند:۲۷٤/۵

دا اوښه د الله د رضا د پاره په جهاد کې پیش کوم ۲ رسول کریم ﷺ ورته وفرمایل زه ستا دا پیشکش تحسین سره قبلوم او تاته دا بشارت درکوم چې د دې په بدله کې به تاته دقیامت په ورځ اوه سوه ۷۰۰ اوښې درکول کیږي اوټولوته به مهار لګیدلی وي (مسلم)

**حل اللغات** ① مَخْطُومَةٌ: دخطام نه دې چه د واګې اوجلب په معنی کښې دې یعنی واګه اوجلب اچولي شوي اوښه

**تسهیلات:**

**قوله** لَكَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ سَبْعُمِائَةِ نَاقَةٍ كُلُّهَا مَخْطُومَةٌ

**یو په اووه سوه ثواب ملاویدل:** یعنی دَ دغه یوې اوښې په بدله کښې به الله تعالی اووه سوه اوښې ورکوی داحدیث دَهغه حدیث په شان دې په کوم کښې چه راغلی دی چه کوم سړې په کورکښې ناست وی مګر هغه دَ جهاددَ میدان دَپاره یوه روپیئی اولیږله نو الله تعالٰی به هغه ته دَ اووه سوو روپوثواب ورکوی.

## [۲۸۰۰] د مجاهد دِ کاروبارد نګرانئ کولو فضیلت

[۱۳] (۱) ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② بَعَثَ بَعْثًا إِلَى بَنِي لَحْيَانَ مِنْ هُذَيْلٍ. ③ فَقَالَ: "لِيَنْبَعِثْ مِنْ كُلِّ رَجُلَيْنِ أَحَدُهُمَا، وَالْأَجْرُ بَيْنَهُمَا» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① ابو سعید خدري رضي الله عنه وایي چې رسول کریم ﷺ ② د قبیله هذیل د یوښاخ بنولحیان په مقابله کې د جهاد د پاره د یولښکر د لیږلو اراده وکړله ③ نو حکم یې اوکړو چې په دوو سړو کې دي یوسړی جهاد ته د تلو د پاره اُوځی یعنی د هري قبیلي څخه دي نیم په نیمه سړی جهاد ته ولاړ شي او نیم دي پاتې شي چې په جهاد کړې د تلونکو د اهل وعیال خبر ګیري کوي او د جهاد ثواب به دواړو ته برابرملاویږی. (مسلم)

**حل اللغات:** ① بَعْثًا: بعث په اصل کښې لیګلو ته وائی دلته ترې د بعث فعل په قرینه لښکر مراد دې.

**تسهیلات:**

**قوله** لِيَنْبَعِثْ مِنْ كُلِّ رَجُلَيْنِ أَحَدُهُمَا

**په هردوو کسانو کښې دویم ته د جهاد د پاره د تلو حکم:** دا دَ جهاددَپاره لیږلودَ تشکیل یوصورت دې یعنی دَهرکورنه دې یوسړې جهادله لاړشی اودویم دې دَهغه دکوردَخیال ساتلودَپاره شاته پاتې کیږی ثواب به دَدواړو یوشان برابروی مجاهدته به دَ جهاد دَتللوثواب ملاویږی بل طرف ته به دَهغه دکور بال بچ خیال ساتونکی ته به په دغه نګرانئی کښې دَ جهاد پوره ثواب ملاویږی.

---

[۱] ) اخرجه مسلم فی کتاب الإمارة/باب فضل إعانة الغازی فی سبیل الله بمرکوب وغیره، وخلافته فی أهله بخیر(رقم-۱۳۷ - (۱۸۹۶) واحمد فی المسند: ۴۹/۳

**[۲۸۰۱] د قیامته پورې د جهاد باقي باتې کیدل**

۲۸۰۱ـ[۱۵] (۱) ۞ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۞ "«لَنْ يَبْرَحَ هٰذَا الدِّينُ قَائِمًا، ۞ يُقَاتِلُ عَلَيْهِ عِصَابَةٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ حَتّٰى تَقُومَ السَّاعَةُ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۞ او جابر ابن سمره ﷜ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ۞ دا دين به هميشه قائم وي ۞ او په مسلمانانو کې به يو نه يو جماعت د دې دين د حفاظت د پاره ترقيامته پورې جنګيږي يعنى د زمکي مخ به د جهاد څخه خالي نه وي چرى نه چرى او څه نه څه صورت کې به هميشه جهاد کيږي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① لَنْ يَبْرَحَ: هميشه به وى. ② عِصَابَةٌ: د سړو يو جماعت، جمع ئې عصائب راځى

**تسهيلات:**

**قوله:** لَنْ يَبْرَحَ هٰذَا الدِّينُ قَائِمًا:

**په دنيا کښې د مجاهدينو وجود:** يعنى ترکومې چه په زمکه باندې يو داسې جماعت وى چه جهاد کوى نو دادين به قائم اودائم وى. دَ مجاهدينو داجماعت به کله دَ دنياپه يوګوټ کښې وى نوکله به په بل ګوټ کښې وى. ليکن زمکه به دَدوى نه خالى نه پاتې کيږى البته داخبره ده چه قرب قيامت کښې به دا ډله ختمه شى.

علامه طيبى ﷫ فرمائى چه نن صبا په روم کښې دا ډله مشغوله ده. بيافرمائى چه تحقيقى خبره داده چه دَدې جماعت نه دَمجاهدينوهغه جماعت مراد دې چه يوزمان اومکان سره خاص نه دې. (يعنى دَ دنياپه مختلفوعلاقوکښې به وى)

**[۲۸۰۲] د شهيد د وينو بوى او مشک**

۲۸۰۲ـ[۱۶] (۲) ۞ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۞ "«لَا يُكْلَمُ أَحَدٌ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ، ۞ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ بِمَنْ يُكْلَمُ فِي سَبِيلِهِ إِلَّا جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۞ وَجُرْحُهُ يَثْعَبُ دَمًا، اللَّوْنُ لَوْنُ الدَّمِ، وَالرِّيحُ رِيحُ الْمِسْكِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ابوهريره ﷜ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ۞ کوم سړى چې د الله په لار يعنى په جهاد کې زخمي شي ۞ او الله هغه سړى ښه پيژني چې د هغه په لار کې زخمي

---

[۱]) اخرجه مسلم فى كتاب الإمارة/باب قوله صلّى الله عليه وسلّم: «لا تزال طائفة من أمّتى ظاهرين على الحقّ لا يضرّهم من خالفهم» (رقم-۱۷۲ - (۱۹۲۲)

[۲]) اخرجه البخارى فى كتاب الجهاد والسّير/باب من يجرح فى سبيل الله عزّ وجلّ (رقم-۲۸۰۳) ومسلم فى كتاب الإمارة/باب فضل الجهاد والخروج فى سبيل الله (رقم-۱۰۵ - (۱۸۷۶) والترمذى فى كتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/ ما جاء فيمن يكلم فى سبيل الله (رقم-۱۶۵۶) والنسائى فى كتاب قسم الفىء (رقم-٤۱٤۷) وابن ماجه فى كتاب الجهاد/باب القتال فى سبيل الله سبحانه وتعالى (رقم-۲۷۹۵) ومالک فى الموطا كتاب الجهاد/باب الشّهداء فى سبيل الله (رقم-۲۹)

كيږي نو هغه مجاهد به د قيامت په ورځ په داسې حال کې راځي ③چې د هغه د زخم څخه بهويني بهيږي او د هغه رنګ خو به د ويني خون په شان وي ليکن د هغه خوشبويي به د مشکو په شان وي (بخاري مسلم)

**حل اللغات** ①يُكْلَمُ: د باب نصر اوضرب نه د مجهول صيغه ده د زخم لګيدو په معنی کښې دې ②جُرْحٌ: زخم ③يَثْعَبُ: دا فتح يفتح نه دې د زخم نه د فوارې په شان وينه بهيدو ته وائي

**تسهيلات:**

**قوله.** لَايُكْلَمُ أَحَدٌ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ:

**په في سبيل الله کښې د زخمی کيدو فضيلت:** په حديث شريف کښې د الله تعالی په لارکښې د زخمی کيدونکی سړی فضيلت بيانيږی چه د الله تعالی په لارکښې زخمی کيدونکې به د قيامت په ورځ په دې داسې حال کښې د الله تعالی په دربارکښې حاضريږی چه د الله تعالی د پاره ورکړيشوې قربانی به د هغه په بدن باندې وی او هغه به د وينو رنګ بدن واخلی او د الله تعالی په دربارکښې به حاضريږی او د هغه وينې نه به د وينې بوئ نه د مشک خوشبو روانه وی.

**د زخم په مراد کښې دوه اقوال:** ①«في سبيل الله»: نه مراد خو هم جهاد دې چه زخمی شوې خو په جهاد کښې وی ليکن لفظ هر هغه زخم ته شامل دې چه د الله تعالی د پاره لګيدلې وی او هغه ته هم کوم کښې چه سړې د خپل حق دفاع کولو سره زخمی شی (۱)

② د دې خبرې هم احتمال دې چه د زخم نه مراد هغه زخم وی د کوم د وجه نه چه د زخم جوړيدونه وړاندې سړې مړ شی. نه هغه زخم چه په دنياکښې جوړ شوې وی ځکه چه د زخم جوړيدونه زخم اود وينې بهيدلو اثر آخر ختم شی ليکن دا د دې خبرې نفی نه کوی چه د زخم د جوړيدو په صورت کښې هغه ته هيڅ فضيلت نه حاصليږی خو ظاهر خو هم دغه دی چه دلته هغه سړې مراد دې چه د قيامت په ورځ په داسې حالت کښې حاضر شی چه د هغه د زخم نه وينه بهيږی او دا په هغه وخت کښې ممکن دی چه کله د دنيا نه د رخصت کيدو په وخت زخم په خپل حالت باندې وی.(۲)

د دې مضمون تائيد د دې حديث شريف نه هم کيږی کوم چه علامه هيثمی رحمه الله د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت کړيدې. دې کښې دی: ((عليه طابع الشهداء))(۳) په دې به د شهداؤ مهر وی او مهر دا زخم دې کوم نه چه وينه بهيږی.

۱) (عمدة القاری(۱٤ج۱۰۰) وشرح ابن بطال (ج۵ص۲۰)-

۲) (فتح الباری (ج۶ص۲۰)-

۳) (مجمع الزوائدللهيثمی(ج۵ص۲۹۷)-

**قوله**: وَاللّٰهُ أَعْلَمُ بِمَنْ يُكْلَمُ فِي سَبِيلِهِ: او هم الله تعالى ته معلومه ده چه څوك په دې لاركښې زخمي كيږي.

دا په حديث كښې جمله معترضه ده، دينه مقصود دا دې چه دَ نيت اخلاص هم وى، زخمي كيدل صرف دَ الله تعالى دَ پاره وى رياكارئى دَ پاره نه وى نو ده ته به داثواب ملاويږى ګنى نو نه به ملاويږى. (۱)

علماء ليكى دى چه شهيد به په هم دغه حالت كښې كوم كښې چه شهيد شوې وى دَ اوچتولو حكمت دا دې چه دَ هغه سره دَ خپل فضيلت ګواهى او سند هم وى چه هغه خپل ځان دَ الله تعالى په تابعدارئى كښې قربان كړې وو. (۲)

**[۲۸۰۳] د شهيد د نيا ته د واپس تلو او بيا د شهيد كيدو خواهش**

۳۸۰۳-[۱۷] ( ) ① وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② "«مَا مِنْ أَحَدٍ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ، يُحِبُّ أَنْ يُرْجَعَ إِلَى الدُّنْيَا وَلَهُ مَا فِي الْأَرْضِ مِنْ شَيْءٍ، ③ إِلَّا الشَّهِيدُ يَتَمَنَّى أَنْ يُرْجَعَ إِلَى الدُّنْيَا، فَيُقْتَلَ عَشْرَ مَرَّاتٍ، لِمَا يَرَى مِنَ الْكَرَامَةِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ① او حضرت انس رضی الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل ② په جنت كې داخليدونكى هيڅ سړى به دانه خوښوي چې هغه دنياته واپس ولاړ شي او د جنت د نعمتونو په عوض كې د دنيا ټول څيزونه قبول كړي ③ خو شهيد به دا آرزوكوي چې هغه دنيا ته واپس ولاړ شي او لس ځله د الله په لار كې شهيد شي ځكه چې هغه د شهادت د عظمت او د هغه په ثواب پوهيږي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات**: ① يَتَمَنَّى: آرزو كوى، خواهش كوى.

**تسهيلات**:

**نوټ**: د شهيدانو دنيا ته د واپس تلو تمنا كولو تفصيل د حديث نمبر (۲۸۰۴) په شرح كښې راځى.

**[۲۸۰٤] د شهيد دپاره د حيات برزخى ثبوت**

۳۸۰۳-[۱۸] ( ) ① وَعَنْ مَسْرُوقٍ، قَالَ: «سَأَلْنَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنْ هٰذِهِ الْآيَةِ: ﴿وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ﴾ [آل عمران: ۱۶۹] الْآيَةَ. ② قَالَ: إِنَّا قَدْ سَأَلْنَا

---

۱) (عمدة القارى (۱٤ص۱۰۰)-
۲) (فتح البارى (ج۶ ص۲۰)-
[3]) اخرجه البخار ى فى كتاب الجهاد والسير/باب تمنّى المجاهد أن يرجع إلى الدّنيا(رقم-۲۸۱۷) ومسلم فى كتاب الإمارة/باب فضل الشّهادة فى سبيل الله تعالى (رقم-۱۰۹ - (۱۸۷۷) واحمد فى المسند:۳/۱۳۱
[4]) اخرجه مسلم فى كتاب الإمارة/باب بيان أنّ أرواح الشّهداء فى الجنّة. وأنّهم أحياء عند ربّهم يرزقون (رقم-۱۲۱ - (۱۸۸۷) والترمذى فى كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب: ومن سورة آل عمران(رقم-۳۰۱۱)

عَنْ ذٰلِكَ. ③فَقَالَ: أَرْوَاحُهُمْ فِي أَجْوَافِ طَيْرٍ خُضْرٍ، لَهَا قَنَادِيلُ مُعَلَّقَةٌ بِالْعَرْشِ، تَسْرَحُ مِنَ الْجَنَّةِ حَيْثُ شَاءَتْ، ④ثُمَّ تَأْوِي إِلَى تِلْكَ الْقَنَادِيلِ، فَاطَّلَعَ إِلَيْهِمْ رَبُّهُمُ اطِّلَاعَةً،

**ترجمه:** ①او مسروق تابعي رحمه الله وايي مونږ د عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه څخه د دې آيت كريمه تفسير پوښتنه وكړه «وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ» ترجمه. كوم خلق چې د الله په لار كې جهاد كې وژل شوي دي تاسو په هغوى د مرده خيال مه كوئ بلكه هغوى خپل پروردگار سره ژوندي دي او هغوى ته رزق وركول كيږي. الخ ②نو هغوى اوويل مونږ درسول كريم صلى الله عليه وسلم څخه د دې آيت كريمه دتفسير پوښتنه وكړله ③حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل د دې شهداؤ روحونه د شين رنګ د مرغانو په قالب كې وي د هغوى د اوسيدو د پاره د عرش الهي لاندې په منزله د خالو قنديلونه زوړند شوي دي هغه روحونه په جنت كې چرته چې د هغوى زړه غواړي ميوې خوري ④بيا هغه قنديلونو ته په ورتلو سره په هغه كې اوسيږي بيا پروردگار هغه شهيدانو طرف ته تاكوي

**حل اللغات:** ①أَجْوَافِ طَيْرٍ: اجواف دَ جوف جمع ده دَمرغنى ججوري ته وائى چرته چه ابتدائى توګه خوراك جمع كيږى كوم چه دَمرغئى دَ مخوكې دَلاندې پرسيدلې حصه وى دكوم دَپاره چه په نورو رواياتوكښې دَ حواصل لفظ راغلې دې ②قَنَادِيلُ: د قنديل جمع ده . فانوس ته وائى. ③تَسْرَحُ: خوراك څكاك كوى. ④فَاطَّلَعَ: دَ نظر اوتجلى په معنى كښې دې يعنى الله تعالى په كتلو سره داسې اوكتل كوم چه دَالله تعالى شان سره لائق وى.

①فَقَالَ: هَلْ تَشْتَهُونَ شَيْئًا؟ ②قَالُوا: أَيَّ شَيْءٍ نَشْتَهِي وَنَحْنُ نَسْرَحُ مِنَ الْجَنَّةِ حَيْثُ شِئْنَا؟ ③فَفَعَلَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ④فَلَمَّا رَأَوْا أَنَّهُمْ لَنْ يُتْرَكُوا مِنْ أَنْ يَسْأَلُوا ⑤قَالُوا: يَا رَبِّ! نُرِيدُ أَنْ تَرُدَّ أَرْوَاحَنَا فِي أَجْسَادِنَا حَتَّى نُقْتَلَ ⑥فَلَمَّا رَأَى أَنْ لَيْسَ لَهُمْ حَاجَةٌ تُرِكُوا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ①او فرمايي آيا تاسو ته د څه شي خواهش شته ②هغوى عرض كوي مونږ د څه شي خواهش وكو حالانكه په جنت كې چې چرته زمونږ زړه غواړي ميوې خورو ③الله تعالى د هغوى سره درې ځله معامله كوي يعنى درې ځله دهغوى څخه دا پوښتنه كوي ④او هركله چې هغوى ته يقين اوشى چې بغير د سوال كولو څخه هغوى نشى پريخودې ⑤ نو هغوى به عرض اوكړى اې ربه مونږ خواهش لرو چې زمونږ روحونه زمونږ بدنونو ته واپس شى چې مونږ (دوباره) شهيدان شو ⑥هركله چې الله تعالى په علم ظاهرى سره اوګورى چې د دوى څخه حاجت نشته نوداسې به پرخودې شى

**حل اللغات:** ⑤رَأَوْا: يعنى شهداؤ چه كله اوكتل ⑥لَنْ يُتْرَكُوا: دَمجهول صيغه ده يعنى شهداء اوكتل چه دوى به دَ سوال كولونه بغيرنه شى پريخودې.

**دراوي مختصر تعارف:**
**حضرت مسروق** رحمه الله: نوم مسروق، ، كنيت ابوعائشه، دپلار نوم د جاهليت زمانه كښې ئې دپلار نوم اجدع او اسلامي نوم ئې عبدالرحمان وو ددوی تعلق ديمن خاندان همدان سره وو
**اسلام**: دومره معلوميږی چه دحضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه زمانه كښې مسلمان شوې وو پخپله وائي چه ماحضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه پسې مونځ كړې دې [۱]
هركله چه د عمرفاروق رضي الله عنه په زمانه كښې مدينې ته راغلو نو حضرت عمرفاروق رضي الله عنه ترينه دنوم تپوس اوكړو نودوی ورته اووئيل مسروق بن اجدع نوحضرت عمرفاروق رضي الله عنه ورته اوئيل چه نه ته مسروق بن عبدالرحمان ئې
علامه شعبی رحمه الله فرمائي چه ما دمسروق پشان طالب علم كله هم نه دې ليدلې حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها به دې خپل خوئي گنړلو او دۀ ته به ئې خوئې وئيلو دهغې رضي الله عنها نه هم دوی پخپله علم حاصل كړې وو حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي چه مسروق فقيه وو علامه نووی رحمه الله فرمائي چه دهغوئ جلالت شان، توثيق او فضيلت او امامت باندې ټول متفق دی دې سره سره هغه الله جل جلاله نه ډير ويريدونكئ او ښه عابد، توبه استغفار كولو والا وو او دنيا نه ډير لاتعلقه وو اود الله جل جلاله په ذات ډير اعتماد كولووالا وو
وفات په كال ۶۳ هجرئي كښې وفات شو.
نورو معلوماتو دپاره اوگورئي ① طبقات ابن سعد ۳۸۴/۵ ② تهذيب الاسماء ۱ ۸۸. تذكرة الحفاظ ۱ ۴۲ ③ تهذيب التهذيب ۱۰/ ۱۱۰).

**تسهيلات:**
**قوله** أَرْوَاحُهُمْ فِي أَجْوَافِ طَيْرٍ خُضْرٍ:
**اعتراض يعنی د تناسخ د عقيدې اثبات**: ددې حديث نه دَ هندوانو اوچينيانو څه خلق عقيده د تناسخ (آواگون) ثابتوی د تناسخ مطلب دَهغوی په نيز دادې چه په دې دنياكښې كله سړې مړكيږی نودهغه روح په يوبل حيوان كښې منتقل كيږی كه مړكيدونكې نيك او ښه سړې وی نودهغه روح د بادشاه يا يوحاكم په بدن كښې ورمنتقل كيږی دكوم په ذريعه چه دا روح مزې كوی اوهم دغه دَده جنت دې اوكه چرې مړكيدونكې سړې خراب وونودهغه روح په خر يا سپی يا بل څه ذليل حيوان كښې ورځی خلق هغه وهی او تنگوی ئې په كوم سره چه دا روح ذليل كيږی هم دغه دَ ده جهنم اودوزخ دې سوال دادې چه آيا دې حديث نه دا عقيده ثابتيږی كه نه؟

[۱] طبقات ابن سعد ۳۸٤/۵).

**جواب ولہ:** ① دَدې حدیث تعلق آخرت سره دې په آخرت کښې به دا روحونه دَ مرغو په ججوروکښې وی اوکوم خلق چه دَ تناسخ قائل دی اوهغوی په دنیاکښې دَمړکیدونکی روح په بل څه کښې دَ داخلیدلوقائل دی آخرت خودغه خلق منی نه نوبیادآخرت دَحدیث نه څنګه استدلال کوی؟

②دَ تفهیم اوتسهیل دَپاره دویم جواب داسې اوګڼړئی چه دلته دَ شنې مرغئی کوم تعبیر دې دادَ جنت دَ سورلونه دَ یوې سورلئی طرف ته اشاره ده مثلاً هیلی کاپټر دې په دې کښې په دنیاکښې سړې سوریدوسره دَدنیا مختلف اطرافو کښې الوزی بیا واپس خپل ځائی ته راځی دَهیلی کاپټر دَ مخې والا حصه بالکل دمرغئی د ججورې په شان ده په شیشه کښې هرقسم سیل اوتفریح کیږی نودلته هم دَ طیرخضر مرغو نه دَ جنت شنه هیلی کاپټر مراد کیدې شی

③ دادې چه دا شنې مرغئی دَ شهداؤ دَ روحونودَپاره په توګه دَ ظروف اوصندوق دی نه دا چه دغه روحونو دَ مرغو په قالب اوبدن کښې حلول کړې دې ددې مثال داسې دې چه یو سړی مرغلره په صندوق کښې کیخودله نودا صندوق دَمرغلرې د پاره ظرف دې نه چه دې مرغلرې په صندوق کښې حلول کړې دې

**قوله:** يَارَبِّ! نُرِيدُأَنْ تُرَدَّأَرْوَاحُنَافِي أَجْسَادِنَا:

**دشهیدانو دنیا ته د دوباره تلو مطالبه :** یعنی هرکله چې هغوی په دې پوهیږي چې د پروردګار مراد دادی چې مونږ د څه خواهش اظهار وکو نو هغوی عرض کوي اې زمونږ پروردګاره! زمونږ بس دا خواهش دی چې زمونږ روحونه دنیا ته واپس ولیږلو چې مونږ یو ځل بیا ستا په لار کې قتل شو هرکله چې الله ﷻ دا ویني چې د هغوی څه مقرر خواهش او حاجت نشته ځکه چې هغوی د کوم خواهش اظهار کړي دی د هغه پوره کول د الله د ارادي او مصلحت خلاف دی دویم داچې هغوی ته په مخکښې ځل کوم عظیم ثواب او اجر ورکول شوی دی او په دې وجه هغوی ته څه حاجت او خواهش نشته که هغوی دوباره هم دنیا ته ولیږل شي نو هغه اجر او ثواب به دوباره هم هغوی ته ورکولي شي او د دې هغوی ته هیڅ حاجت نشته ځکه چې دشهید اجر او ثواب یو دی کوم چې هغه ته حاصل دی نو هغوی پریښودل شي یعنی الله ﷻ د هغوی څخه پوښتنه کول پریږدي (مسلم)

## [۳۸۰۵] په شهادت سره د حقوق العباد څخه علاوه ټول ګناهونه معاف کیدل

۳۸۰۵-[۱۹] (١) ١وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَامَ فِيهِمْ، فَذَكَرَ لَهُمْ "أَنَّ الْجِهَادَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ، وَالْإِيمَانَ بِاللّٰهِ أَفْضَلُ الْأَعْمَالِ، ٢فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! ٣أَرَأَيْتَ أَنْ قُتِلْتُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ، يُكَفَّرُ عَنِّي خَطَايَايَ؟ ٤فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: نَعَمْ، إِنْ قُتِلْتَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَأَنْتَ صَابِرٌ مُحْتَسِبٌ، مُقْبِلٌ غَيْرُ مُدْبِرٍ،

**ترجمه:** ١ابو قتاده ﷜ وايي يوه ورځ رسول کريم ﷺ د صحابه ؤ ﷡ په مخکې خطبه ارشاد وفرمايله او په خطبه کې يي هغوی آګاه کړل چې د الله په لار کې جهاد کول او په الله باندې ايمان راوړل د ټولو څخه بهتر اعمال دي ٢په دي اوريدو سره يو سړی اودريدلو او عرض يي اوکړو يا رسول الله ٣ماته دا وښايي که زه د الله په لار کې ووژل شم نو آيا ځما ګناهونه به معاف شي؟ ٤رسول کريم ﷺ هغه ته وفرمايل هو په شرط د دې چې ته د الله په لار کې په داسې حال کې ووژل شي چې ته سختيو باندې صبر کونکی يي د ثواب طالب يي او شابنودلو سره تښتيدونکی نه يي بلکه د دښمن په مقابله کې جم کيدونکی يي

١ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: كَيْفَ قُلْتَ؟ ٢فَقَالَ: أَرَأَيْتَ إِنْ قُتِلْتُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ: أَيُكَفَّرُ عَنِّي خَطَايَايَ؟ ٣فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ: نَعَمْ، وَأَنْتَ صَابِرٌ مُحْتَسِبٌ، مُقْبِلٌ غَيْرُ مُدْبِرٍ، ٤إِلَّا الدَّيْنَ فَإِنَّ جِبْرِيلَ قَالَ لِي ذَٰلِكَ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١بيا رسول کريم ﷺ د هغه څخه پوښتنه وکړه تاڅه ويلي وه؟ ٢هغه عرض اوکړو ماته دا وښايي که زه د الله په لار کې ووژل شم نو آيا ځما ګناه به معاف شي ٣رسول کريم ﷺ ورته وفرمايل په شرط د دې چې ته صبر کونکی يي د ثواب طالب يي او شابنودلو سره تښتيدونکی نه يي بلکه د دښمن په مقابله کې جم کيدونکی يي ٤خو دين يعنی هغه قرضه نه معاف کيږي چې د هغه د آدائيګی نيت نه وي او ماته جبرائيل ﷺ دا فرمايلي دي د ايمان د ټولو د ښه عمل کيدل خو ظاهر دی (مسلم)

**حل اللغات:** ① مُحْتَسِبٌ: دثواب اميد ل ساتونکې ② مُقْبِلٌ: دشمن سره مخامخ مقابله کونکې. ③ غَيْرُ مُدْبِرٍ: د دشمن څخه تيښته کونکې نه وی.

[1] ) اخرجه مسلم فی کتاب الإمارة/باب من قتل فی سبیل الله کفرت خطایاه إلا الدین (رقم-۱۱۷ - (۱۸۸۵) والترمذی فی کتاب الجهاد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فیمن یستشهد وعلیه دین (رقم-۱۷۱۲) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب من قاتل فی سبیل الله تعالی وعلیه دین (رقم-۳۱۵۶) ومالک فی الموطا کتاب الجهاد/باب الشهداء فی سبیل الله (رقم-۳۱) واحمد فی المسند: ۴۰۵/۵

تسهیلات: قوله: وَأَنْتَ صَابِرٌ مُحْتَسِبٌ

**د صابر څخه مراد:** دَصابرنه مراد په میدان جنګ کښې دَ کافرانو په مقابله کښې صبرکول مراددی چه بزدلی دې نه ښائی جزع فزع دې نه کوی اودَمحتسب نه دَ ثواب امیدکول مراددی. چه جهاد خالص دَالله تعالی دَ رضادَپاره وی دَ آخرت ثواب مطلوب وی دَ دنیاڅه غرض په کښې نه وی اوځان خودل او ریاکاری په کښې نه وی بل دَ څه قومی تعصب او حمایت جذبه هم نه وی.

**قوله:** كَيْفَ قُلْتَ؟ حضورپاك ته دَدغه سړی سوال معلوم وومګردوباره سوال ئې څکه اوکړو چه هغه سړې ښه په غورسره جواب واؤری او په جواب کښې چه کومه اضافه ده په هغې باندې پوهه شی.

**قوله:** إِلَّا الدَّيْنَ

**د قرض د نه معاف کیدو وجه:** دې نه مراد څه خاص قرض نه دې بلکه حقوق العباد مراددی هغه په جهاداوشهادت سره معاف کیدې نه شی دې نه علاوه ټول حقوق الله معاف کیدې شی ملاعلی قاری‌رحمه الله په مرقات کښې لیکلی دی چه په سمندری جنګ کښې کوم سړې شهید شی هغه نه حقوق العباد هم معاف کیږی بعضې روایاتوکښې دی چه په شروع کښې حکم هم دغه شان وو بیا الله تعالی داآسانی اوفرمائیله چه شهیدته به حقوق العباد هم داسې معاف کولې شی چه دَ حق خاوندته به په قیامت کښې دَدې په عوض ثواب ورکوی هغه به راضی شی اوشهیدبه معاف شی. بهرحال مجاهد سره میدان جهادته دَ تللونه وړاندې وصیت کولوسره دَ قرض انتظام کول پکاردی. په مسلم شریف کښې دَدې روایت الفاظ داسې دی "يغفر للشهيد كل ذنب إلا الدين" معلومه شوه چه جهاد اوشهادت دَ ګناهونو دَ وینځلو دَ ټولو نه لویه ذریعه ده. دَ راتلونکی روایت تشریح اوتوضیح هم دغه شان ده

**[۳۸۰۶] د جهاد په وجه د ګناهونو معاف کیدل**

۳۸۰۶–[۲۰] (¹) [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] «الْقَتْلُ فِي سَبِيلِ اللهِ يُكَفِّرُ كُلَّ شَيْءٍ إِلَّا الدَّيْنَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] عبد الله ابن عمرو بن العاص څخه روایت دی چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲] د الله په لار کې یعنی په جهاد کې قتلیدل دین حقوق العباد څخه علاوه ټول ګناهونه رژوي (مسلم)

**حل اللغات:** ① يُكَفِّرُ: معاف کوی.رژوی.

¹) اخرجه مسلم فی کتاب الإمارة/باب من قتل فی سبیل الله کفرت خطایاه إلّا الدّین (رقم-۱۲۰ - (۱۸۸۶)

**تسهیلات:**

**قوله:** الْقَتْلُ فِي سَبِيلِ اللهِ يُكَفِّرُ كُلَّ شَيْءٍ: د ابن مسعود رضي الله عنه روایت ابونعیم په حلیة الأولياء کښې نقل کړې دې چه القتل في سبيل الله يكفر الذنوب كلها إلا الأمانة في الصلوة والأمانة في الصوم والأمانة في الحديث او دا په ټول امانتونو کښې غټ او سخت امانتونه دي

**قوله:** إِلَّا الدَّيْنَ: مستثنى متصل ده یعنی هغه دین دکوم چه د ادا کولو نیت نه وی علامه توربشتی رحمه الله فرمائی چه دلته د دین نه مراد هغه حقوق دی کوم چه مسلمانانو سره تعلق لری علامه سندهی رحمه الله د نسائی په حاشیه کښې د إلاالدين دا معنى ذکر کړې ده چه دین پوره کولو وصیت کول نفس دین مذموم دی او دهغې د ادا کولو کوشش نه کول هم مذموم دی (التعليق الصبيح ج۴، ص۳۰۷)

**[۲۸۰۷] قاتل او مقتول دواړه په جنت کښې**

۲۸۰۷—[۲۱] (۱) [۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ- صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] «يَضْحَكُ اللهُ تَعَالَى إِلَى رَجُلَيْنِ [۳]يَقْتُلُ أَحَدُهُمَا الآخَرَ، يَدْخُلَانِ الْجَنَّةَ: [۴]يُقَاتِلُ هَذَا فِي سَبِيلِ اللهِ فَيُقْتَلُ، ثُمَّ يَتُوبُ اللهُ عَلَى الْقَاتِلِ فَيُسْتَشْهَدُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱]حضرت ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲]الله تعالى هغه دوو سړو باندې خاندي یعنی د هغوی څخه راضي کیږي او خپل رحمت سره هغوی ته متوجه کیږي [۳]چې یو په هغوئ کې هغه بل قتل کړي او بیا دواړه جنت ته داخل شي [۴]په هغوی کې یو خو هغه دی چې د الله په لار کې جهاد کوي او شهید شي تردې چې هغه په جنت کې داخل شي بیا الله تعالى د هغه قاتل ته د توبې توفیق ورکوي او هغه د کفر څخه تائب کیدو سره ایمان راوړي او بیا د الله په لار کې جهاد کولو سره شهید کیږي نو هغه هم په جنت کې داخلول کیږي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① يَضْحَكُ: خاندی.

**تسهیلات:**

**قوله:** يَضْحَكُ اللهُ تَعَالَى:

**الله تعالى ته دَ ضحک په نسبت باندې اشکال:** دلته په حدیث باب کښې دَ الله تعالى دَ طرف د ضحك نسبت کړیشویدې او ضحك دَ مخلوق صفت دې. نود دې نه دَ خالق

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسیر/باب الکافر یقتل المسلم. ثمّ یسلم. فیسدّد بعد ویقتل (رقم-۲۸۲۶) ومسلم فی کتاب الإمارة/باب بیان الرّجلین یقتل أحدهما الآخر یدخلان الجنّة (رقم-۱۲۸ - (۱۸۹۰))والنسائی فی کتاب الجهاد/باب تفسیر ذلک (رقم-۳۱۶۶) ومالک فی الموطا کتاب الجهاد/باب الشّهداء فی سبیل الله (رقم-۲۸) واحمد فی المسند:۲/۴۶۴

مخلوق سره تشبیه لازم راځی؟

**جوابونه:** ① علامه کرمانی فرمائی چه ضحك او دا قسم نور مثالونو اطلاق که په الله تعالی باندې وی نو دَ دې نه مجازاً دَ دې لوازم مراد کیږی او لازم الضحك دَ الله تعالی رضا ده. دلته به دَ ضحك نه مراد دَ الله تعالی رضاوی. (۱)

② علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه هغه ضحك کوم چه دَ انسانی صفاتو نه دی اودَ سړی دَ خه خوشحالئی او فرحت دَ اظهار دَ پاره کیږی، دَ دې اطلاق الله تعالی دَ پاره ناجائز دې. دَ دې ذکرکولو وجه دلته دا ده چه دا دَ بشر په تعجب باندې دلالت کوی. دَ خه تعجب وغیره دَ وجه او دَ الله تعالی په صفت کښې که چرې دا لفظ اووئیلې شی نو دا د رومبنی سړی په حق کښې اخبار عن الرضااودَ دوئم سړی په حق کښې اخبار عن القبول دې. یعنی الله تعالی دَ رومبی په فعل راضی شو اودَ دوئم فعل ئی قبول کړلو اودَ دې دواړو حضراتوبدله جنت دې سره دَدې چه دَدواړو حالتونه مختلف او مقاصد جدا جدا دی. (۲)

امام بخاری رحمه الله (کتاب التفسیر)(۳) په روایت کښې دَ ضحك تفسیر ((الرحمة)) سره کړیدې. نو علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه دا تفسیر قریب دې خو ضحك د رضا په معنی محمول کول اقرب واشبه دې. (۴)

③ امام خطابی رحمه الله نور فرمائی چه دَ دې جملې معنی داهم کیدیشی چه الله تعالی فرښتې دَ دې دواړو حضراتو په فعل باندې په تعجب کښې اچوی او هغوی خندوی. (۵)

④ ابن فورك رحمه الله فرمائی مطلب دا دې چه الله تعالی دَ خپل فضل اظهار فرمائی لکه چه اهل عرب وائی ((ضحك الأرض من النبات)) کله چه زمکه خپل شینکې(بوټی) ښکاره کړی. (۶)

⑤ علامه ابن الجوزی رحمه الله فرمائی چه په دې قسم جملوکښې دَ اکثرو سلفو صالحینو عمل دا پاتې شویدې چه هغه په خپل ظاهرباندې پریخودې شی اوعقیده صرف دَدې خبرې اوساتلې شی چه الله تعالی دَ مخلوق دَ صفاتونه بری دې او په ظاهر باندې دَ پریخودلو مطلب دا دې مونږ ته دَ دې باره کښې څه علم نشته او الله تعالی دَ مخلوق دَ

۱ ) (شرح الکرمانی (۱۲ص۱۲۳)-
۲ ) (أعلام الحدیث للخطابی (ج۲ص۱۳۲۵) وأیضًا انظر شرح ابن بطال (ج۵ص۳۸)-
۳ ) (هذاکما قال العلامة الخطابی فی أعلام الحدیث (ج۲ص۱۳۶۷) فی روایة الفربری ولیس عن ابن معقل. قال الحافظ فی الفتح: لم أرذلک فی النسخ التی وقعت لنا من البخاری انظر فتح الباری (ج۸ص۶۳۲)-
۴ ) (أعلام الحدیث للخطابی (ج۲ص۱۳۶۷)-
۵ ) ( أعلام الحدیث للخطابی (ج۲ص۱۳۶۷)-
۶ ) (عمدةالقاری (ج۱۴ص۱۲۳)-

صفاتونه منزه دي (۱)
**قوله يُقَاتِلُ هَذَا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ فَيُقْتَلُ:** دې اول دَ الله تعالی په لارکښې جنګ کوی او شهید کیږی
دَصحیح مسلم په روایت کښې دَدې نه وړاندې داهم مذکوردی چه صحابه کرامورضوان الله علیهم اجمعین په حیرانتیا سره سوال اوکړو((قالوا:کیف یارسول الله؟))(۲) چه یا رسول الله! دا به څنګه وی چه مقتول به هم جنت ته خی او ورسره قاتل هم.
**دَ قاتل نه مراد مسلمان یا کافر؟:** علامه ابن عبدالبر او ابن بطال رحمه الله فرمائی چه دَ اهل علم په نزد دَدې حدیث مطلب دادې چه اول قاتل کافروویعنی مسلمان دَ کافردَلاسه مړشوې وو(۳)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی دا هم کیدې شی چې دَ اول قاتل نه مراد مسلمان وی ځکه چه په حدیث کښې دَ قاتل لفظ عام دې. ((ثم یتوب الله علی القاتل)) که چرې یو مسلمان بل مسلمان عمداً او بلاشبهه قتل کړی بیا توبه اوکړی اودَ الله تعالی په لارکښې جنګ کولو سره شهید شی نو ښکاره خبره ده چه دې هم قاتل دې لیکن جنت ته به خی.
لیکن دا دوئم مطلب به دَ دې حضراتو په نزد صحیح او درست کیدیشی څوك چه دَ قاتل دَ توبې قبلیدو قائل دی، لکه حضرت ابن عباس، زیدبن ثابت، ابن عمر او حضرت ابوهریره رضی الله عنهم. خو چه کوم حضرات دَ قاتل دَ توبې دَ قبولیت قائل نه دی دَ هغوی په نزد هم ړومبنی معنی صحیح ده. (۴)
**قوله: ثُمَّ يَتُوبُ اللّٰهُ عَلَى الْقَاتِلِ:**

**د توبې څخه مراد:** شهادت په مرتبه باندې سرفراز کیږی. د((تاب الله علی)) معنی داده چه الله تعالی دتوبې توفیق ورکوی او قبلوی (۵)
علامه ابن بطال او علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دَ توبې نه مراد دلته اسلام دې. یعنی الله تعالی هغه ته د اسلام قبلولو توفیق ورکوی.(۶)
د دې دلیل د مسلم شریف د روایت داالفاظ دی:((فیهدیه إلى الإسلام))(۷)

۱) (فتح الباری (ج۶ص۴۰)
۲) (صحیح مسلم کتاب الإمارة باب بیان الرجلین یقتل أحدهما الآخر یدخلان الجنة رقم (٤٨٩٤)-
۳) (عمدةالقاری (ج١٤ص١٢٣) وشرح ابن بطال (ج٢ص٣٨)
٤) (فتح الباری (ج۶ص۴۰) وانظر لمزید من التفصیل فی قبولیة توبة القاتل عمدا وعدمها کشف الباری کتاب التفسیر(ص١٥٨)-
۵) (مختار الصحاح مادة توب -
۶) (شرح ابن بطال (ج۵ص۳۸) وعمدةالقاری (ج١٤ص١٢٣)-
۷) (صحیح مسلم کتاب الإمارة باب الرجلین یقتل أحدهما الآخر یدخلان الجنة رقم(٤٨٩٤)-

## [۳۸۰۸] په اخلاص سره د شهادت آرزو كولو باندې د شهادت درجه ملاويدل

۳۸۰۸-[۲۲]()[۱] وَعَنْ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] «مَنْ سَأَلَ اللّٰهَ الشَّهَادَةَ بِصِدْقٍ، [۳] بَلَّغَهُ اللّٰهُ مَنَازِلَ الشُّهَدَاءِ، [۴] وَإِنْ مَاتَ عَلَى فِرَاشِهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] سهل ابن حنيف رضي الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] كوم سړى چې رښتينى زړه يعنى د طلب صادق جذبي سره د الله تعالى څخه د شهادت طالب وي [۳] نو الله تعالى هغه د شهيدانو درجي ته رسوي [۴] اگر چې هغه خپله بستره باندې مړ شي يعنى هغه د صدق نيت او طلب صادق په وجه د شهيدانو په شان ثواب پيدا كړي (مسلم)

**د راوى مختصر تعارف: سهل بن حنيف:** د حديث د راوى نوم حضرت سهل د پلار نوم ئې حنيف كنيت ئې ابو سعيد او ابوثالث وو د بدر سره ئې د په نوور ټولو غزگانو كښې شركت كړې دې په احدكښې چه كوم صحابه كرام په ميدان جنگ كښې ثابت قدم پاتې شوى وى په هغوى كښې دې هم وو د جنگ جمل نه پس د بصرې والى جوړ كړې شو په جنگ صفين كښې ئې د حضرت على په ملگرتيا كښې شركت كړې وو (۲)

د دوى په باره كښې راځى چه ډير زيات ښكلې وو يو ځل ئې غسل كول چه يو انصارى صحابى اوليدو هغه اووئيل دا څنگه ښكلې بدن دې! ما خو داسې بدن نه دې ليدلې د دې نه پس دوى بيمار شو نبى كريم ته قصه بيان شوه نو وې فرمائيل خلق د خپل ورور بدن ي مال اووينى او دعا نه كوى د دې وجې نظر لگى

**وفات:** په ۳۸ هجرى كښې په كوفه كښې وفات شوې وو حضرت على ئې د جنازې مونځ كړې وو او د دوى په جنازه كښې ئې د څلورو تكبيرونو په ځائې شپږ تكبيرونه وئيلى وو او دا ئې اوفرمائيل چه دا بدرى صحابى دې

**مرويات:** د دوى نه ۴۰ احاديث نقل دى په هغې كښې بخارى او مسلم په څلور باندې متفق دى او په مسلم كښې دوه زياتى موجود دى

**حل اللغات:** ① بَلَّغَهُ: اوبه رسوى هغه. ② مَنَازِلَ: جمع د منزل ده. درجه. اومرتبه.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ سَأَلَ اللّٰهَ الشَّهَادَةَ بِصِدْقٍ، بَلَّغَهُ اللّٰهُ مَنَازِلَ الشُّهَدَاءِ:

**د شهادت په سوال حكمى شهادت ملاويدل:**

چونكه دَاعمالو مدار په نيتونو باندې دې په دې وجه په رښتونى او پوخ نيت سره چه

---

[۱] اخرجه مسلم فى كتاب الإمارة/باب استحباب طلب الشّهادة فى سبيل الله تعالى (رقم-۱۵۷ - (۱۹۰۹)) و ابو داود فى كتاب الصّلاة،باب فى الاستغفار (رقم- ۱۵۲۰) والترمذى فى كتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/ ما جاء فيمن سأل الشّهادة (رقم-۱۶۵۳) والنسائى فى كتاب الجهاد/باب مسألة الشّهادة (رقم-۳۱۶۲) وابن ماجه فى كتاب الجهاد/باب القتال فى سبيل الله سبحانه وتعالى (رقم-۲۷۹۷)

کوم مسلمان په جهادفي سبيل الله کښې شهادت غواړی اوبيادالله تعالی نه دغه دعاهم غواړی نوالله تعالی هغه دَ شهادت مقام ته رسوی سره ددې چه هغه په خپل کورکښې په خپل کټ پوزی وفات شی

**دمسلمان په زړه کښې د شهادت جذبه:**

په دې حديث سره مسلمانانو ته يوه اوچته جذبه اوحوصله ورکول مقصوددی چه دهرمسلمان په زړه اودماغوکښې دَ جهاد جذبه اودَ شهادت شوق هروخت موجودکيدل پکاردی دَ شهادت غوښتلومطلب دانه دې چه مرګ دَ وخت نه وړاندې راشی بلکه مطلب دادې چه کوم مرګ په خپل وخت باندې راتلونکې دې هغه په شهادت کښې بدل شی

**[۲۸۰۹] دشهادت په وجه جنت الفردوس ملاويدل**

۳۸۰۹-[۲۳] (۱) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، «أَنَّ الرُّبَيِّعَ بِنْتَ الْبَرَاءِ، وَهِيَ أُمُّ حَارِثَةَ بْنِ سُرَاقَةَ، أَتَتِ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! أَلَا تُحَدِّثُنِي عَنْ حَارِثَةَ، [۳] وَكَانَ قُتِلَ يَوْمَ بَدْرٍ، [۴] أَصَابَهُ سَهْمٌ غَرْبٌ، [۵] فَإِنْ كَانَ فِي الْجَنَّةِ صَبَرْتُ، [۶] وَإِنْ كَانَ غَيْرَ ذٰلِكَ اجْتَهَدْتُ عَلَيْهِ فِي الْبُكَاءِ. [۷] فَقَالَ: يَا أُمَّ حَارِثَةَ إِنَّهَا جِنَانٌ فِي الْجَنَّةِ، وَإِنَّ ابْنَكِ أَصَابَ الْفِرْدَوْسَ الْأَعْلَى» . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت انس رضي الله عنه وايي چه د پلار خور بي بي ربيع بنت براء چې د حضرت حارثه رضي الله عنه ابن سراقه مور ده يوه ورځ د نبي کريم صلی الله عليه وسلم په خدمت کې حاضره شوه [۲] او هغه اوويل يا نبي الله آيا تاسو به ماته څما د څوی حارثه رضي الله عنه حال بيان نه کړی [۳] او حارثه د بدر په ورځ د بدر غزا کې شهيد شوی وو [۴] او هغه ته يوداسي تير لګيدلی وو چې د هغه چلوونکی معلوم نه شو چې څوك وو [۵] که هغه په جنت کې وي نو زه به صبر کوم [۶] او که څه بل ځای کې وي نو زه به د ژړا کوشش کوم يعنی ښه به وژاړم څنګه چې د ښځو عادت دی [۷] حضور ورته وفرمايل اې دحارثه رضي الله عنه مور! حقيقت دادی چې په جنت کې ډير باغونه دي او ستا څوی فردوس اعلی ته رسيدلی دی چې د جنت د ټولو څخه اعلی درجه ده (بخاري)

**حل اللغات** ① أَصَابَهُ: چه رسيدلې وی هغه ته. ② سَهْمٌ: غشي. ③ غَرْبٌ: هغه غشي چې د نامعلومه طرف څخه راخوشې شوې وی ④ جِنَانٌ: د جنة جمع ده. ډير جنتونه

**تسهيلات:**

**قوله:** وَهِيَ أُمُّ حَارِثَةَ بْنِ سُرَاقَةَ: په جنګ بدرکښې حضرت حارثه بن سراقه رضي الله عنه يوکوهی سره دَ اوبوحاصلولودپاره ناست وو چه ناڅاپی دَ يوطرف نه غشې راغلو اولګيدو په کوم

۱) اخرجه البخاري في كتاب الجهاد والسير/باب من أتاه سهم غرب فقتله (رقم-۲۸۰۹) والترمذي في كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة المؤمنون (رقم-۳۱۷۳) واحمد في المسند: ۱۲٤/۳

سره چه هغه شهید شو دامعلومه نه شوه چه غشي دَ کوم طرف نه راغلو او اولګیدو احتمال وو چه دَ یومسلمان غشي لګیدلي وي په کوم سره چه دَهغه شهادت ته نقصان رسیدلي وي بل هغه وخت دَ جنګ دَ میدان نه باهرهم وو اومرګ ئې واقع شوي وو هم دې دوو خبرو دَحضرت حارثه ﷺ مور پریشانه کړې وه چه نه ده معلومه چه دَ حارثه ﷺ انجام به ښه وي هم دَدې پریشانئي دَ لرې کولودپاره ئې دَحضور پاك نه سوال اوکړو که دَ حارثه ﷺ انجام ښه وي نو زه به دَهغه په مرګ صبراوکړم ګنې په دويم صورت کښې به جزع فزع کولوسره ښه ژړا وينا شروع کړم حضورپاك هغې ته تسلی ورکړه اوزيرې ئې ورکړې چه جنت یونه دې بلکه مختلف درجاتو باندې مشتمل مختلف جنتونه دي اوستا خوئې خو په ډیر ښکلي او اوچت جنت الفردوس کښې دې دَدې حدیث نه معلومه شوه چه دَ جهاد په میدان کښې دَ چا په ګولئی لګیدوسره هم الله تعالی شهادت ورکوی نن صبا په جهاد کښې غلطئې سره داسې واقعات کیږی

## [۲۸۱۰] شهادت ته مرکلې

۲۸۱۰–[۲۴] (¹) [۱] وَعَنْهُ قَالَ: «انْطَلَقَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَأَصْحَابُهُ [۲] حَتَّى سَبَقُوا الْمُشْرِكِينَ إِلَى بَدْرٍ، [۳] وَجَاءَ الْمُشْرِكُونَ. [۴] فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "قُومُوا إِلَى جَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ" [۵] قَالَ عُمَيْرُ بْنُ الْحُمَامِ: بَخٍ بَخٍ! [۶] فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "مَا يَحْمِلُكَ عَلَى قَوْلِكَ: بَخٍ بَخٍ؟"

**ترجمه:** [۱] او انس ﷺ وايي د بدر د غزا په موقع رسول کريم ﷺ او د حضور ﷺ صحابه ﷺ مديني څخه روان شول [۲] او د مشرکانو څخه مخکې د بدر و ميدان جنګ ته ورسيدل [۳] بيا [د اسلامي مجاهدينو رسيدو څخه وروسته] چې د مشرکينو لښکر راغلو [او د مقابلې تياري شروع شوه] [۴] نو حضور ﷺ وفرمايل د جنت لاروته ولاړ شي هغه جنت چې د هغه عرض د آسمان او زمکې د عرض برابردی [۵] يوصحابي عمير ﷺ ابن حمام دا ارشاد اوريدو سره اوويل ډير ښه ډيرښه [۶] رسول کريم ﷺ څنې پوښتنه وکړه تا ډير ښه ډيرښه ولې اوويل

**حل اللغات:** ① عُمَيْرٌ: دا ورکې مجاهد په جنګ بدرکښې دَ ټولو نه اول شهيد شوي وو ② بَخٍ بَخٍ: باء مفتوح اوخاء ساکن ده دَ مبالغې په توګه دا لفظ مکررد ي عرب په خوشحالئ او حيرانتياکښې اوډ مدح په وخت داکلمه استعمالوی دَدې ترجمه ده ډير ښه. ډيرښه او واه واه

[۱] قَالَ: لَا وَاللهِ يَا رَسُولَ اللهِ! إِلَّا رَجَاءَ أَنْ أَكُونَ مِنْ أَهْلِهَا. [۲] قَالَ: "فَإِنَّكَ مِنْ أَهْلِهَا". [۳] قَالَ: فَأَخْرَجَ تَمَرَاتٍ مِنْ قَرْنِهِ، فَجَعَلَ يَأْكُلُ مِنْهُنَّ. [۴] ثُمَّ قَالَ: لَئِنْ أَنَا حَيِيتُ حَتَّى آكُلَ تَمَرَاتِي إِنَّهَا لَحَيَاةٌ طَوِيلَةٌ [۵] قَالَ: فَرَمَى بِمَا كَانَ

(¹) اخرجه مسلم فى كتاب الإمارة/باب ثبوت الجنّة للشّهيد (رقم-١٤٥ - (١٩٠١) واحمد فى المسند: ١٣٧/٣

مَعَهُ مِنَ التَّمْرِ، ٦ ثُمَّ قَاتَلَهُمْ حَتَّى قُتِلَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ عمیر ﷺ اوویل یا رسول الله! ما دا الفاظ داظهار تعجب یا دځه بل مطلب سره نه وه ویلي بلکه ما په حقیقت کې د دې الفاظو په ذریعه د خپل هغه ارزو اظهار کړي دي چې زه هم جنتي جوړ شم ٢ حضور ﷺ ورته وفرمایل په دې کې څه شك نشته چې ته جنتي یي ٣ راوي وایي حضرت عمیر ﷺ د سرکار دوعالم ﷺ د ژبې مبارکي څخه دا خوشخبري بشارت اوریدو سره د خپل ترکش څخه څه کجوري راوښکلي او د هغه خوړل یي شروع کړل ٤ او بیا یي اوویل که زه دې تولو کجورو خوړلو پورې ژوندی پاتې شوم نو ژوند به اوږد وي ٥ نو هغه هغه کجوري چې د هغه سره وي وغورځولي ٦ او کفارو سره په جنګ شو تردې چې شهید شو. (مسلم)

**حل اللغات:** ٣ قَرَن: ترکش، تیکه په کوم کښې چې غشي کیخودې شي

**تسهیلات:**

**قوله:** "مَا يَحْمِلُكَ عَلَى قَوْلِكَ: بَخٍ بَخٍ؟":

**د نبی کریم په زیری ځان قربانی کول:** حضورپاك دَحضرت عمیر ﷺ دا معلومول اوغوښتل چه آیا ده دا کلمه په ارادې سره په ژبه راوړلې ده یا داسې اتفاقي توګه باندې ئې وئیلې ده. حضرت عمیر ﷺ جواب ورکړو بغیردَ ارادې نه نه بلکه رښتوني اراده مې ده چه دا جنت ماته ملاؤشي اوزما ځان قربان شي. کله چه دَ حضورپاك دَ طرف نه ورته زیرې ملاؤشو نودَ څه تاخیرنه بغیر هغه خپل سر په تلی کښې کیخودو اودَ کهجورې ژولو او خوړلوپورې وخت ئې هم برداشت نه کړو او اوجنګیدو

**قوله:** ثُمَّ قَاتَلَهُمْ حَتَّى قُتِلَ:

**د خود کشۍ حکم:** علماء کرامودَې حدیث او دَحضرت عمیر ﷺ دا اقدام دَ "خودکش بمبار" دَ کاروائی دَپاره دَ دلیل په توګه پیش کړې دې یادلرئی په کافرانوباندې بمبارحمله کول خودکشي نه ده بلکه دا په حقیقت کښې نورو لره وژونکې حمله ده خلق دې ته خودکش حمله وائی. البته په ملك کښې دننه داسې کړبړ پیداکول ښه خبره نه ده.

**[۳۸۱۱] دشهیدانو قسمونه**

۳۸۱۱ - [۲۵] (۱) ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ "«مَا تَعُدُّونَ الشَّهِيدَ فِيكُمْ؟» ٣ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ! مَنْ قُتِلَ فِي سَبِيلِ اللهِ فَهُوَ شَهِيدٌ. ٤ قَالَ: إِنَّ شُهَدَاءَ أُمَّتِي إِذًا لَقَلِيلٌ: ٥ مَنْ قُتِلَ فِي سَبِيلِ اللهِ فَهُوَ شَهِيدٌ، ٦ وَمَنْ مَاتَ فِي سَبِيلِ اللهِ فَهُوَ شَهِيدٌ، ٧ وَمَنْ مَاتَ فِي الطَّاعُونِ فَهُوَ شَهِيدٌ، ٨ وَمَنْ مَاتَ فِي الْبَطْنِ فَهُوَ شَهِيدٌ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الإمارة/باب بیان الشهداء (رقم) ۱۶۵ - (۱۹۱۵)

**ترجمه**: ① حضرت ابوهریره رضي الله عنه وايي چې رسول کریم ﷺ د صحابه رضي الله عنهم څخه پوښتنه وکړه ② تاسو په خپل ځان کې څوك شهيد شمیرئ ③ صحابه رضي الله عنهم عرض اوکړو يا رسول الله: کوم سړی چې د الله په لار کې ووژل شي هغه شهید دی ④ حضور ﷺ وفرمایل په دي صورت کې به ځما په امت کې د شهیدانو تعداد ډیرکم شی ⑤ کوم سړی چې د الله په لار کې ووژل شي هغه خو حقيقي شهيد دی ⑦ لیکن کوم سړی چې د وبا په مرض کې مړ شي هغه هم شهید دی ⑧ او کوم سړی چې د خيټې په ناجوړی کې یعنی اسهال وغيره کې مړ شي هغه هم شهيد دی > یعنی داټول هم د حقيقي شهداوو درجات او ثواب کې دي نه داچې د هغوی جمیع احکامو کې

**حل اللغات**: ① الْبَطْن: خيټې ته وائی دلته ترې د خيټې بيماری (اسهال) مراد دی.

**تسهيلات**: **قوله**: مَا تَعُدُّونَ الشَّهِيدَ فِيكُمْ؟:

**د شهید په مطلب کښې مختلف اقوال** – ① الشهيد: شهيد د فعيل په باندې دې اوفعیل وزن کله دَ اسم مفعول په معنی کښې راځی نوکه چرې دلته شهيد دَ مشهود اسم مفعول په معنی کښې واخستې شی نومطلب به داشی چه دَاعزازاواکرام دَپاره هغه ته فرښتې حاضریږی

② کله دَاسم فاعل په معنی کښې راځی نو شاهد اسم فاعل په معنی کښې واخستې شی نوددې معنی به داشی چه شهيد پخپله دَ الله تعالی دَنعمتونو دَ مشاهدې دَپاره اود الله تعالی دَ دیدار دَپاره حاضریږی یادَمرګ په وخت په جنت کښې دَخپلو درجاتو مشاهده کوی

③ دَ شهيد لفظ دَ شهادت په معنی کښې دې یعنی شهید پخپله په خپل عمل سره دَخپل اخلاص ګواهی ورکوی

④ شهيد ته ځکه شهیدوائی چه ټول مسلمانان او فرښتې دهغه دَپاره دَ جنت ګواهی ورکوی

**د شهید تعریف**: په اسلام کښې شهید په حقیقت کښې هغه سړې وی چه دکافرانودَمقابلې په وخت کښې اووژلې شی یاپه ظلم سره په تیره آله باندې قتل کړې شی اوهغه دَ دنیاوی څیزونونه دَ نفع اوچتولونه بغیرمړشی داحقیقی شهید دې

**حکمی شهیدان**: ددې نه علاوه د یو څوشهیدانو ذکر په زیربحث حدیث کښې راغلې دې دا دَ ثواب په اعتبارسره شهداء دی دَ نورو احکامو په اعتبار سره شهداء نه دی

① یعنی کوم سړې چه دَ جهاد په لارکښې په خپل مرګ مړ شی

② یاکوم سړې چه په طاعون سره مړشی

③ یا دَ هیضې نه مړشی یا دَ غرنه راپریوتلو سره مړشی
④ یا په اور کښې اوسوزی او مړ شی
⑤ یا په اوبو کښې ډوب شی او مړشی
⑥ یا دَ بچی پیدا کیدو کښې ښځه مړه شی
⑦ یا دَ علم په حاصلولو کښې طالب علم مړشی داټول شهداء داسې دی چه صرف دَ ثواب په اعتبارسره شهداء شمیردی. ځکه چه دَ شهید یو اصل ثواب دې او یو فضل ثواب دې داخلق په اصل ثواب کښې شریك دی او فضل ثواب کښې شریك نه دی

علامه طیبی رحمه الله لیکی ومن مات بالطاعون أو بوجع في البطن ملحق بمن قتل في سبيل الله لمشاركته إياه في بعض ماينال من الكرامة بسبب ماكابده من الشدة لافي جملة الأحكام والفضائل (طیبی ج۷ص۲۸۲) [الكاشف: ۷/۲۳۸] یعنی کوم سړی چه دَ طاعون یا هیضې نه مړشی هغه مقتول فی سبیل الله سره په بعضې فضائلو اوکراماتو کښې شریك اوملحق دې ځکه چه هغه مشقت اوچت کړې دې لیکن په ټولو احکامو او ټولو فضائلو کښې شریك نه دې

**د حقیقی او حکمی شهید په مینځ کښې فرق:** دَشهید حقیقی او شهید حکمی په مینځ کښې فرق باره کښې ملاعلی قاری رحمه الله لیکی والمعنى أنهم يشاركون في نوع من أنواع المثوبات التي يستحقها الشهداء لاالمساوات في جميع أنواعها یعنی مطلب دادې چه شهید حکمی دَ شهید حقیقی په بعضې فضائلو کښې شریك دې په پوره ثواب کښې مساوات نشته دې

**د احکامو په اعتبار سره د شهیدانو قسمونه:** دلته داخبره هم په ذهن کښې یادساتل پکاردی چه دَاحکاماتو په اعتبارسره شهداء درې قسمه دی ① رومبې هغه شهید دې چه دَدنیاپه اعتبارسره هم شهید دې اودآخرت په اعتبارسره هم شهید دې په ده باندې به دَ شهیددنیاوی احکام نافذ کیږی چه غسل نه بغیربه په خپلو کپړوکښې دَ وینوسره خښولې شی داکامل مؤمن شهید دې کوم ته چه به په آخرت کښې درجات ملاویږی

② دویم هغه شهید دې چه دَ آخرت په اعتبارسره شهیدنه دې صرف دَدنیاپه اعتبارسره شهید دې داهغه بدعقیده مقتول دې یا منافق دې یا قادیانې یا رافضی دې یا ذکری. بهائی وغیره دې داسې خلق شهیدان کیږی نه البته په دوی به دَ شهداؤ دنیاوی احکام نافذ کیږی

③ دریم هغه شهید دې چه دَ آخرت شهید دې مګر دَدنیاشهیدنه دې داهغه سړې دې چه دَطاعون وغیره نه مړشوې دې ده ته به په آخرت کښې دَ شهیدثواب ملاویږی لیکن دَ شهیددنیاوی احکام به په ده باندې نه نافذ کیږی. نور تفصیل زما کتاب دعوت جهادکښې اوګورئی

**[٣٨١٢] دَمجاهد دَ اجر تقسيم**

٣٨١٢-[٢٦] ()[١] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[٢] «مَا مِنْ غَازِيَةٍ، أَوْ سَرِيَّةٍ، تَغْزُو وَتَسْلَمُ،[٣] إِلَّا كَانُوا قَدْ تَعَجَّلُوا ثُلُثَيْ أُجُورِهِمْ.[٤] وَمَا مِنْ غَازِيَةٍ، أَوْ سَرِيَّةٍ، تُخْفِقُ وَتُصَابُ إِلَّا تَمَّ أُجُورُهُمْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[١] حضرت عبدالله ابن عمرو رضي الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [٢] جهاد كونكې كوم جماعت يا جهاد كونكې كوم لښكر چې جهاد وكړو او مالِ غنيمت اخستو سره صحيح او سالم واپس راغلو [٣] هغه ته د هغه دوتهايي ٣-٢ اجر زر يعنی دي دنيا کې حاصل شو [٤] او جهاد كونكې كوم جماعت يا جهاد كونكې كوم لښكر چې جهاد وكړو او نه صرف داچې هغه ته مالِ غنيمت حاصل نه شو بلكه د هغه جماعت او لښكر خلق زخميان شوه يا شهيدان شوه نو د هغوی اجر پوره باقي پاتې شو. (مسلم)

**حل اللغات:** ①غَازِيَةٍ: په غزوه چې نبی كريم په كښې په خپله شريک شوې وی دَدې موصوف قطعة يا جماعة محذوف دې. ②سَرِيَّةٍ: هغه جنګی لښكر. ③تُخْفِقُ: دَ إخفاق نه دې چه دَناكامئی اومحرومتيا په معنی كښې دې يعنی جهادئی اوكړو خو مال غنيمت ورته حاصل نه شو. ④ تُصَابُ: دادَمصيبت رسيدو په معنی كښې دې يعنی يازخمی شويا شهيد شو يا بل څه مصيبت سره مخامخ شو.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِلَّا كَانُوا قَدْ تَعَجَّلُوا ثُلُثَيْ أُجُورِهِمْ:

**د مجاهد دوو اجرونو په مفهوم كښې دوه اقوال:**

علامه ابن ملك رحمه الله په دې حديث باندې دَ پوهيدلو دَپاره دَدې مطلب داسې بيان كړې دې چه غازی ته كله دَ غنيمت مال حاصل شو اوصحيح سالم هم راواپس شو نوهغه دَ خپل جهاد ثمراتو نه دوه ثمرات حاصل كړل اودريم ثمردخول جنت دې كوم چه لاتراوسه باقی دې اوكه چرې غازی نه غنيمت حاصل كړو اونه صحيح سالم راواپس شو نودَهغه كامل او پوره ثواب محفوظ كړې شو الغرض يومجاهد هغه دې چه صحيح سالم مال دَغنيمت سره واپس شو دويم هغه دې چه صحيح سالم خو راواپس شو ليكن مال دَغنيمت ئی په لاس رانغلو اودريم هغه چه زخمی شو يا شهيد شو مال هم ورته حاصل نه شو

② په دې حديث كښې دَمجاهد اجراوثواب په دې اثلاثو باندې تقسيم كړې شوې دې. غنيمت حاصلول يوثلث دې اوصحيح سالم راواپس كيدل دويم ثلث دې اودَ جهاد اخروی

[1] ) اخرجه مسلم فی كتاب الإمارة/باب بيان قدر ثواب من غزا فغنم. ومن لم يغنم (رقم-١٥٤ - (١٩٠٦)) و ابو داود فی كتاب الجهاد/باب فی السّرِيّة تخفق (رقم-٢٤٩٧)

ثواب دريم ثلث دي. نو چه كوم سړى غنيمت هم حاصل كړو او صحيح سالم هم راواپس شو ده ته دوه ثلث اجر صرف د آخرت حصه يو ثلث ئې باقي شو او چاچه دلته دواړه ثلث حاصل نه كړه نو ده ته اجر كامل او مكمل باقي شو كوم چه دريم ثلث دي

**خلاصه** ① يو مجاهد هغه دي چه صحيح سالم مال د غنيمت سره واپس شو

② دويم هغه دي چه صحيح سالم خو راواپس شو ليكن مال د غنيمت ئې په لاس رانغلو

③ دريم هغه چه زخمي شو يا شهيد شو مال هم ورنه حاصل نه شو

**[۳۸۱۲] په زړه كښې د جهاد جذبه نه ساتلو يا لدي وعيد**

٣٨١٣—[٢٧] ( ) [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] "«مَنْ مَاتَ وَلَمْ يَغْزُ وَلَمْ يُحَدِّثْ بِهِ نَفْسَهُ [٣] مَاتَ عَلَى شُعْبَةٍ مِنْ نِفَاقٍ» "رَوَاهُ مُسْلِمٌ

**ترجمه:** [١] ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل[٢] كوم سړى چې مؤمن مړ شي او جهاد ونه كړي او نه د هغه په زړه كې د جهاد خيال تير شي [٣] نو د هغه مرګ به يو قسم په نفاق وي (مسلم)

**حل اللغات** ① يُحَدِّث: خبرداري وركړى. ② نَفْسَهُ: دا منصوب بنزع الخافض دي معنى في نفسه

**تسهيلات:**

**قوله مَنْ مَاتَ وَلَمْ يَغْزُ الخ**

**دهر مسلمان په زړه كښې د جهاد جذبه ساتل :** يعنى كوم سړى چه نه جهاد او كړو او نه ئې د جهاد څه جذبه لرله چه افسوس زه هم چرته په جهاد كښې شريك وې نه هغه د جهاد تيارې او كړو نه ئې چرته وسله او ساتله او نه ئې زړ كړه او كړه نو د داسې سړى چه كله مرګ راځي نو په نفاق باندې به راځي

**د جهاد په حكم كښې مذهبين :**

① عبد الله بن مبارك رحمه الله حضرت حسن بصرى رحمه الله او سعيد بن مسيب رحمه الله فرمائى چې جهاد فرض عين دې فرض كفايه په كښې نشته

② جمهور امت په نيز جهاد په دوه قسمه دي فرض عين او فرض كفايه

**داول فريق دليل** څكه چې په دې كښې د هغه كس باره كښې د نفاق په مرګ باندې د مر كيدو ذكر دې څوک چې په زړه كښې د جهاد جذبه او اراده نه ساتي

( ) اخرجه مسلم في كتاب الإمارة/باب ذم من مات، ولم يغز، ولم يحدث نفسه بالغزو (رقم ١٥٨ (١٩١٠) و ابو داود في كتاب الجهاد . باب كراهية ترک الغزو (رقم ٢٥٠٢) والنسائي في كتاب الجهاد/باب التشديد في ترک الجهاد (رقم ٣٠٩٧)

**د دويم فريق دليل:**

دَ قرآن پاك دَ آياتونودَ وجې نه قبول كړې دى ارشاد دې ﴿ وَفَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ أَجْرًا عَظِيمًا ﴾ [سورة النساء الايه: ۹۵]

**[۲۸۱٤] حقيقي مجاهد**

۳۸۱۳-[۲۸] (1) ① وَعَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: ③ الرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِلْمَغْنَمِ، ④ وَالرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِلذِّكْرِ، ⑤ وَالرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِيُرَى مَكَانُهُ، فَمَنْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ؟ ⑥ قَالَ: "مَنْ قَاتَلَ لِتَكُونَ كَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا فَهُوَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابو موسى اشعري رضي الله عنه وايي ② چې يوسړى د نبي كريم ﷺ په خدمت كې حاضر شو او عرض يي اوكړو ③ چې يو خو هغه سړى دى چې د غنيمت مال حاصلولو د پاره جنګ كوي ④ يو هغه سړى دى چې د ذكر يعنى ګونګسو او شهرت د پاره چې هغه ته سمع وايي جنګ كوي يو هغه سړى دى چې د هغه مرتبه وكتل شي يعنى خپل شجاعت او بهادري د پاره جنګ كوي ⑤ چې هغه ته ريا وايي نو په دې دواړو كې څوك د الله په لار كې جهاد كونكى دى ⑥ حضور ﷺ ورته وفرمايل كوم سړى چې د دې د پاره جنګ كوي چې د الله دين سربلند شى په حقيقت كې هغه سړى د الله په لار كې جهاد كونكى دى (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① لِلْمَغْنَمِ: دا مصدر ميمى دې. مال غنيمت. ② لِلذِّكْرِ: ذكر په ډيرو معانيوراغلي دې دلته تري مراد شهرت دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَالرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِيُرَى مَكَانُهُ:

**د ليرى په تركيب كښې دوه احتمالات:** ① بعضو حضراتو فرمائيلى دى چه دا د باب افعال نه دې خو كه دا معروف اولوستلې شى نو ددى فاعل به هغه ضمير شى كوم چه الرجل طرف ته راجع دى اومفعول ثانى محذوف دى او عبارت به دا شان وي يقاتل ذلك الرجل ليرى هومكانه نو معنى به داشى چه هغه جنګ دې دپاره كولو چه خپله بهادرى او شجاعت ښكاره كړى په دى صورت كښې يقاتل للذكر كښې فرق به دا وى چه اول كس د شهرت دپاره جنګ كوى او دويم كس د رياكارى دپاره جنګ كوى

(1) اخرجه البخارى فى كتاب الجهاد والسّير /باب من قاتل لتكون كلمة الله هى العليا(رقم-۲۸۱۰) ومسلم فى كتاب الإمارة/باب من قاتل لتكون كلمة الله هى العليا فهو فى سبيل الله (رقم-۱٤۹ - (۱۹۰٤) و ابو داود فى كتاب الجهاد . باب من قاتل لتكون كلمة الله هى العليا(رقم-۲۵۱۷)والنسائى فى كتاب الجهاد/باب من قاتل لتكون كلمة الله هى العليا (رقم-۳۱۳۶)وابن ماجه فى كتاب الجهاد /باب النّية فى القتال (رقم-۲۷۸۳) واحمد فى المسند: ٤/٤۵۲

⑦ كه ليرى مجهول اولوستلې شي نو په دې صورت كښې الرجل طرف ته ضمير به دفاعل قائم مقام شي او مكانه به مفعول ثانى شي نو په دى صورت كښې به معنى دا شي چه هغه ددى دپاره جنګ كوى چه هغه ته د جنت مقام وخودلى شي نو ګويا چه هغه د إعلاء كلمة الله دپاره جنګ نه كوى بلكه د جنت مقام ليدولو دپاره جنګ كوى او ددى تائيد مذكوره حديث د راتلونكى جملى نه كيږى

**قوله: لِتَكُونَ كَلِمَةُ اللّٰهِ هِيَ الْعُلْيَا:**

**د كلمې څخه په مراد كښې دوه احتمالات:**

① دكلمې نه مراد د اسلام طرف ته دعوت وركول دى

② يوكس تر هغه پورى د الله تعالى په لار كښې نه شمارل كيږى تر كومې پورى چه هغه د إعلاء كلمة الله نيت نه وى كړى. (التعليق الصبيح ج۴، ص۳۱۱)

**دقتال پنځه اسباب:** دَ حديث باب مختلف طرق وراندې كيخودو سره دا خبره حاصليږى چه دَ قتال پنځه اسباب كيديشى.

① دَ غنيمت طلب

② دَ بهادرئى څرګندونه

③ ځان خودل

④ حميت

⑤ غضب.

**د نبى عليه السلام د تفصيلى جواب په ورکولو كښې نكته:** په دې كښې هر يو سبب دَ مدح او ذم اړخ لرى. دَ دې دَ پاره نبى كريم ﷺ دَ سوال كونكى دَ سوال جواب په او يا نه كښې ورنه كړو بلكه دا ئې اوفرمائيل ((من قاتل لتكون كلمة الله هى العليا فهو فى سبيل الله)) (۱) دَچا جنګ چه دَ الله تعالى دَ كلمې دَ سرلوړئى دَ پاره وى هم هغه قتال في سبيل الله دې.

**فائده: دَحضور ﷺ جواب جوامع الكلم دې:** دَ حضور ﷺ پورته ذكر شوې جواب دَ بلاغت او ايجاز دَ اعلى پيمانې حامل دې او دا جمله دَ جوامع الكلم څخه ده. ځكه چه كه هغوى ﷺ دَ سوال كونكى دَ ذكر شوى امورو جواب وركولو چه هغه په في سبيل الله كښې داخل نه دى نود دې خبرې احتمال وو چه دَ هغوى نه علاوه قتال كه دَ څه بل څه دَ سبب نه وى نو هغه فى سبيل الله دې خو داسې څه خبره نشته. دَ دې دَپاره هغوى ﷺ جامع او مانع جمله اختيار اوفرمائيله او په جواب كښې ئې دَ ماهيت قتال نه دَ مقاتل دَ حال طرف ته عدول اوكړو.

۱) (فتح البارى (ج۶ص۲۸)-

## [۲۸۱۵] د عذر په وجه په جهاد كښې د عدم شركت حكم

۳۸۱۵—[۲۹] () وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَجَعَ مِنْ غَزْوَةِ تَبُوكَ، ۲ فَدَنَا مِنَ الْمَدِينَةِ، فَقَالَ: "إِنَّ بِالْمَدِينَةِ أَقْوَامًا، ۳ مَا سِرْتُمْ مَسِيرًا، ۴ وَلَا قَطَعْتُمْ وَادِيًا إِلَّا كَانُوا مَعَكُمْ". ۵ وَفِي رِوَايَةٍ: "إِلَّا شَرِكُوكُمْ فِي الْأَجْرِ. ۶ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ! وَهُمْ بِالْمَدِينَةِ؟ ۷ قَالَ: وَهُمْ بِالْمَدِينَةِ حَبَسَهُمُ الْعُذْرُ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او انس رضي الله عنه وايي هركله چې نبي كريم ﷺ غزوه تبوك څخه واپس راتلی ۲ او مديني ته نږدې ورسيدو نو وي فرمايل په مدينه كې ځني خلق داسې دي اچې په سفر جهاد كې په ظاهره ستاسو سره نه وه! ۳ ليكن تاسو داسې هيڅ لار نه ده قطع كړې ۴ او هيڅ داسې وادي او ځنګل څخه نه يئ تير شوي چې په هغه كې هغوى ستاسو سره نه وه ايعنى د هغوى جسم خو د هغوى په كورونو كې وو ليكن د هغوى دعاګاني د هغوى زړونه او د هغوى همتونه ستاسو سره وه ۵ او په يوروايت كې دى مګر هغوى تاسو سره په ثواب كښې شريک دى. ۶ صحابه رضي الله عنهم په دي اوريدو سره عرض اوكړو چې يارسول الله! او هغه خلق په مدينه كې دي ايعنى هركله چې هغوى زمونږ سره جهاد ته نه دي تللي او په خپلو كورونو كې موجود دي بيا هغوى زمونږ سره څنګه وه! ۷ حضور ﷺ ورته وفرمايل هغوى په مدينه كې دي ليكن د دې باوجود هغوى په اجر او ثواب كې ستاسو سره شريك دي ځكه چې د هغوى عذر هغوى منع كړي وه يعنى هغوى د خپلو عذرونو په سبب ستاسو سره جهاد ته ولانه ړه (بخاري)

**حل اللغات:** ① مَسِيرًا: دا صيغه د اسم آله ده. لارې ته وائي. ② وَلَا قَطَعْتُمْ: او تاسو نه تيريږئ. ③ وَادِيًا: خوړ. ځنګل. ميدان. ④ حَبَسَهُمْ: ګير كړي وى هغوى لره.

**تسهيلات:**

**قوله:** مِنْ غَزْوَةِ تَبُوكَ، وهي أرض بين الشام والمدينة.

فَدَنَا: أي قاربهم

**قوله:** إِنَّ بِالْمَدِينَةِ أَقْوَامًا، أي جماعات ممن يتمنون الغزو ويحدثون أنفسهم بالخروج: يعنى هغه جماعتونه كومو چه د جنګ كولو تمنى لرله او يو بل سره به يئ جهاد ته د تللو خبرى كولې ليكن دوى څه معذورى منع كړى وو.

**قوله:** إِلَّا كَانُوا مَعَكُمْ، أي بالقلب والهمة والدعاء والنية. امام نووى رحمه الله فرمائى چه د خير په كارونو كښې د نيت فضيلت طرف ته اشاره مقصود ده

---

[1] اخرجه البخارى فى كتاب المغازى/باب نزول النبىّ صلّى الله عليه وسلّم الحجر(رقم-۴۴۲۳) وابن ماجه فى كتاب الجهاد/باب من حبسه العذر عن الجهاد (رقم-۲۷۶۴)

**دَ عذر تعريف:** دَ بخاري شريف شارحينو دَ عذر تعريف دا ليکلي دي: ((هوالوصف الطارئ على المكلف المناسب للتسهيل عليه))(١)

يعنى عذرمكلف ته پيښيدونکې هغه صف دي دَ څه په وجه چه په شرعى احكامو كښې هغه سره دَ آسانئى معامله كولې شي.

٣٨٣٦-(٢) [١] وَرَوَاهُ مُسْلِمٌ عَنْ جَابِرٍ.

**ترجمه:** [١] او مسلم دا روايت دحضرت جابر رضي الله عنه څخه نقل كړي دى (بخاري)

**[٢٨١٧] دمورپلارپه خدمت دجهاد اطلاق**

٣٨٣٧-[٣٠](٣) [١] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [٢] «جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَاسْتَأْذَنَهُ فِي الْجِهَادِ. [٣] فَقَالَ: أَحَيٌّ وَالِدَاكَ؟. قَالَ: نَعَمْ. [٤] قَالَ: فَفِيهِمَا فَجَاهِدْ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [٥] وَفِي رِوَايَةٍ: "فَارْجِعْ إِلَى وَالِدَيْكَ فَأَحْسِنْ صُحْبَتَهُمَا"».

**ترجمه:** [١] عبد الله رضي الله عنه ابن عمرو وايي [٢] يو سړى د رسول كريم ﷺ په خدمت كې حاضريدو سره جهاد ته د تلو اجازت اوغوښتلو [٣] حضور ﷺ ځني پوښتنه وكړه آيا ستا مور پلار ژوندي دي؟ هغه عرض اوكړو چې هو [٤] نو حضور ﷺ ورته وفرمايل بيا ته د هغوى په مينځ كې په اوسيدو سره جهاد كوه [يعنى پوره محنت او تندي سره د هغوى خدمت كوه چې ستا په حق كې دا جهاد دى] [٥] او د مسلم په يو روايت كې دا الفاظ دي حضور ﷺ هغه سړي ته وفرمايل بياته خپل مور پلارته ورشه او د هغوى صحبت بهتر جوړكړه يعنى د هغوى خدمت او د هغوى د حقوقو آدائيگى په ښه شان كوه

**حل اللغات:** ① فَجَاهِدْ: دلته د جهاد اصطلاحي معنى نه ده مراد بلكه لغوى مراد ده يعنى د دوى په خدمت كښې كوشش كوه

**تسهيلات:**

**قوله:** جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَاسْتَأْذَنَهُ فِي الْجِهَادِ:

**دَرجل نه څوک مراددي؟:** دَ باب په روايت كښې دَ نوم تصريح نشته چه داڅوك وو البته

١) (حواله بالاو شرح الكرماني (ج١٢ص ١٢٩)-

٢) اخرجه مسلم فى كتاب الإمارة/باب ثواب من حبسه عن الغزو مرض أو عذر آخر (رقم-١٥٩ - (١٩١١) و ابن ماجه في كتاب الجهاد/باب من حبسه العذر عن الجهاد (رقم-٢٧٦٥) واحمد فى المسند:٣/٣٠٠

٣) اخرجه البخارى في كتاب الجهاد والسير/باب [ص:٥٩] الجهاد بإذن الأبوين (رقم-٣٠٠٤) ومسلم فى كتاب البرّ والصّلة والآداب/باب برّ الوالدين وأنّهما أحقّ به (رقم-٥ - (٢٥٤٩) و ابو داود فىّ كتاب الجهاد/باب فى الرّجل يغزو، وأبواه كارهان (رقم-٢٥٢٩) والترمذى فى كتاب الجهاد عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فيمن خرج فى الغزو وترك أبويه (رقم-١٦٧١) والنسائى فى كتاب الجهاد/باب: الرّخصة فى التّخلّف لمن له والدان (رقم-٣١٠٣)واحمد في المسند: ٢/٨٠٨

د نورو روایانونه ثابتیږي چه دا جاهمه بن عباس وو چه په جهاد کښې د شرکت د اجازت د پاره د رسول الله ﷺ خدمت کښې حاضرشوي وو چنانچه امام احمد او امام نسائی رحمهم الله د معاویه بن جاهمه په طریق یوروایت نقل کړې دې په هغې کښې دی أن **جاهمة جاء إلى النبي صلى الله تعالى عليه وسلم فقال يارسول الله ! أردت الغزو وجئت لاستشيرك، فقال: هل لك من أم؟ قال: نعم: قال: الزمها.**[1] یعنی جاهمه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضرشو عرض ئې اوکړو یارسول الله ! زماجهاد ته د تللو خواهش دې تاسو سره د مشورې دپاره حاضرشوې یم حضورپاك اوفرمائیل آیا ستا مورژوندئې ده؟ هغه وئیل اوجی حضورپاك اوفرمائیل هم هغې سره اوسیږه

**قوله** فَفِيهِمَا فَجَاهِدْ

**د تخصیص وجه:** دَ مفهوم دَ ادائیګئی دپاره خو فجاهد فیهما تعبیرهم صحیح وو خو ففیهما جارمجرور دَ اختصاص دَپاره دَ امر نه مقدم کړو د کوم نه چه د مورپلار اهمیت اودهغوی خدمت مقدم کولوتاکیدمقصوددې

**د جهاد په ځائې د والدینو خدمت پاره کښې بل حدیث:** دغه شان نور واقعات هم نقل دی چه دَ جهاد اجازت دَپاره څوك راغلل نوحضورپاك هغوی ته د جهاد په ځائې د مورپلار د خدمت حکم ورکړو

صحیح مسلم کښې **عن ناعم مولى ام سلمة عن عبدالله بن عمرو** په طریق سره روایت مروی دې چه یوسړی د رسول الله ﷺ په لاس مبارك باندې د هجرت او جهاد بیعت کولوخواهش ښکاره کړو حضورپاك دهغه نه تپوس اوکړو **فهل من والديك أحد حي؟** آیا ستاوالدین کښې څوك ژوندی شته؟ هغه عرض اوکړو اوجی دواړه ژوندی دی حضور پاك اوفرمائیل **ارجع إلى والديك فاحسن صحبتها**[2] خپل مورپلارله لاړشه اوهغوی سره اوسیدوکښې ښه سلوك کوه

**په عام حالت کښې دجهاددپاره دَمورپلاردَ اجازت حکم:** جمهورفقهاء امام ابوحنیفه. امام مالك امام شافعي امام احمد او سفیان ثوری رحمهم الله فرمائی که نفیرعام نه وی اوجهادفرض کفایه وی نودمورپلارد اجازت نه بغیرجهاد ته تلل جائز نه دی د والدین

---

[1] ) رواه النسائي في سننه:۵۳/۲ في كتاب الجهاد باب الرخصة في التخلف لمن له والدة. وأحمد في مسنده:۴۲۹/۳ وفتح الباري:۱۷۳/۶.

[2] ) صحيح مسلم:۳۱۳/۲كتاب البر والصلة باب برالوالدين وأيهما أحق به رقم:۲۵۴۹.

خدمت فرض عين او جهاد فرض كفايه دي. فرض عين پريخودل او فرض كفايه اداكول گناه ده (۱) دَدوی استدلال دَ حديث باب صحيح مسلم اوسنن ابوداؤد مذكوره رواياتونه دي چه رسول الله ﷺ سائل ته دَ جهاد په ځائې دَ والدين دَ خدمت حكم وركړو.

**د نفيرِ عام په وخت كښې د والدينو د اجازت حكم:** البته كه نفيرعام وی اوجهاد فرض عين وی نو په دغه صورت كښې په ټولو مسلمانانو باندې وتل واجب دی دَ والدين اختيارباقی نه پاتې كيږی دَ هغوی دَ اجازت نه بغيرتلل واجب دی. (۲) علامه ابن حزم مراتب الاجماع كښې فرمائی كه په جهادكښې دَ شركت په وجه دَ والدين دَ هلاكت يا ضياع انديښنه وی نوبالاجماع دَ جهادفرضيت ساقط كيږی خوكه دَ ځان دَهلاكت انديښنه نه وی نوبياهم وتل دَ جمهورو په نيز دَ والدين په اجازت باندې موقوف دی. (۳) علامه ابن حزم رحمه الله چه دَ جمهوروطرف ته دَ كوم مذهب نسبت كړې دې په هغې كښې دَ ده نه تسامح شوې ده. صحيح دادی چه دَ جمهورو په نيز كه دَ والدين دَ ضياع انديښنه وی نودَ جهاد فرضيت نه ساقطيږی دَهغوی دَ اجازت نه بغيرجهادته تلل جائزدی مسنداحمد اومستدرك حاكم كښې دَعمرو الغفاری مرفوع روايت دې لاطاعة لمخلوق في معصية خالق (۴) علامه ظفراحمد عثمانی رحمه الله دَدې نه استدلال كولوسره فرمائی فيه دلالة على أنه لاحاجة إلى إذن الوالدين، إذا كان الجهاد فرض عين، وإن منعاه عنه فلا طاعة لهما. (۵) يعنی دا روايت په دې باندې استدلال كوی چه كله جهاد فرض عين وی نودَ والدين اجازت ضروری نه دې كه چرې هغوی دَ وتلو نه منع كوی نودَهغوی اطاعت جائزنه دې.

**د نيا نيكه ځخه د جهاد د پاره تلو د اجازت اخستلو حكم:** دَ احنافو او شوافع په نيز جد او جده يعنی نيااونيكه دواړه دَوالدين په حكم كښې دی (۶) يعنی دَ جهادفرض كفايه كيدو په صورت كښې دهغوی خدمت به واجب وی اوكه فرض عين وی نو خروج به واجب وی اودَ هغوی اطاعت به جائزنه وی.

**د كافرانو والدينو ځخه د جهاد تلو د پاره اجازت غوښتلو كښې ۲ مذاهب:**

① دَ جمهورفقهاؤ په نيز كه چرې والدين غيرمسلم وی نوهغوی نه دَ فرض كفايه جهاد په

---

(۱) فتح الباري:۱۷۳/۶ وعمدة القاري: ۲۴۸/۱۴ وفتح القدير:۱۹۱/۵ وتكملة فتح الملهم:۳۲۰/۵.
(۲) فتح الباري:۱۷۳/۶ وعمدة القاري: ۲۴۷/۱۴.
(۳) عمدة القاري: ۲۴۷/۱۴.
(۴) مسندأحمد ۶۶/۵ ومستدرک حاکم:۴۴۳/۳ مناقب الحکم بن عمر الغفاري.
(۵) إعلاء السنن: ۱۳/۱۲.
(۶) فتح الباري:۱۷۳/۶ وإعلاء السنن: ۱۱/۱۲.

صورت کښې هم د اجازت اخستلوضرورت نشته (١)

② سفیان ثوری رحمه الله فرمائی چه دغیرمسلم والدین هم هغه حکم دې کوم چه د مسلمان والدین حکم دې لهذا د غیر مسلم والدین نه هم اجازت اخستل ضروری دی

**د اول مذهب دليل:** د جمهورو استدلال دادې چه د صحابه کرام رضي الله عنهم یولوئی تعداد په جهاد کښې شرکت کړې دې دکومو والدین چه کافران اومشرکان وو لکه ابوبکر صدیق، ابوحذیفه بن عتبه او ابوعبیده رضي الله عنه ابوحذیفه بن عتبه د رسول الله ﷺ سره په جنګ بدرکښې شریك وو. ددوی پلار رئیس المشرکین وو دغه شان د ابوعبید رضي الله عنه د پلارهم دهغه دتورې په وار باندې مرګ واقع شو (٢)

**د دويم مذهب دليل:** دهغوی دلیل دادې چه په کومورواياتوکښې رسول الله ﷺ سائل ته د جهادپه ځائی د والدین د خدمت حکم ورکړې په دې کښې عموم دې چه والدین کافروی یا مسلمان دهغوی د خدمت مطلقًا حکم دې په کوم کښې چه کافراومسلمان والدین دواړه شامل دی لهذا چه څنګه د مسلمان والدین نه اجازت اخستې شی هغه شان به د کافر والدین نه اجازت هم اخستل ضروری وی (٣)

**جواب:** د دې څخه جواب دا دې چه دکوم رواياتو سره د عموم حکم ثابتيږی د مذکوره واقعاتو د وجه نه هغه عموم باقی پاتې نه شو په دې وجه فرض کفایه د جهاد په صورت کښې د مشرك والدين د اجازت څه حیثیت پاتې نه شو (٤)

**[٢٨١٨] د مکې په فتح د مکې څخه د هجرت ختميدل**

٢٨١٨—[٣١] (٥) ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ، قَالَ يَوْمَ الْفَتْحِ: ② "«لَا هِجْرَةَ بَعْدَ الْفَتْحِ، وَلٰكِنْ جِهَادٌ وَنِيَّةٌ، ③ وَإِذَا اسْتُنْفِرْتُمْ فَانْفِرُوا»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چې رسول کريم ﷺ د مکي د فتح په ورځ وفرمايل ② اوس د مکي د فتح څخه وروسته هجرت نشته ليکن جهاد او نيت باقي دی ③ هرکله چې تاسو د جهاد د پاره وبلل شئ نو ټول سمدستي ځئ ځکه چې د نفير عام په موقع جهاد ته تلل فرض دي اودې فرض آدائيگی هريوه باندې ضروري ده «بخاري مسلم»

١) المغنى لابن قدامة: ١/ ٣٧٨ والمجموع شرح المهذب: ٢٧/٢١.

٢) المغنى لابن قدامة: ٣٧٨/١.

٣) المغنى لابن قدامة: ٣٧٨/١٠.

٤) المغنى لابن قدامة: ٣٧٨/١.

٥) اخرجه مسلم فى كتاب الحجّ /باب تحريم مكّة وصيدها وخلاها وشجرها ولقطتها. إلّا لمنشد على الدّوام (رقم-٤٤٥ - (١٣٥٣) و ابو داود فى كتاب الجهاد/باب فى الهجرة هل انقطعت؟(رقم-٢٤٨٠) والترمذى فى كتاب السّير عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فى الهجرة (رقم-١٥٩٠) والنسائى فى كتاب البيعة/باب ذكر الاختلاف فى انقطاع الهجرة (رقم-٤١٧٠)وابن ماجه فى كتاب الجهاد/باب الخروج فى النّفير (رقم-٢٧٧٣) واحمد فى المسند:٣٥٥/١

**حل اللغات** ① اُسْتُنْفِرْتُمْ "استنفر" د ماضي مجهول صيغه ده په جهاد کښې د وتلو مطالبه ② فَانْفِرُوْا: نفر ع م نه و نی کله د وخت حاکم یا دَ جهاد امیر په جهاد کښې د وتلو دپاره تاسو راؤغواړي

**تسهيلات**

**قوله** لَا هِجْرَةَ بَعْدَ الْفَتْحِ:

**هجرت تعريف:** هجرت دَ الله تعالی اود هغه د رسول ﷺ درضادپاره اودخپل ځان ومال دحفاظت دپاره خپل وطن مالوف ترك كولونوم هجرت دې

**د هجرت نه كولو مصداق:** يعنی دَمكې مكرمې نه چه مدينې منورې ته كوم خاص هجرت فرض وو دَهغې فرضيت ختم شو ځكه چه اوس مكه مكرمه دارالاسلام جوړشو اوس دهغه ځائی نه دَ هجرت ضرورت پاتې نه شو

**دهجرت دحكم دوام:** دَ نورې دنيا نه دَ هجرت فريضه اوس هم باقي ده يادلرئی هجرت د سختې نوم نه دې بلكه بنځه اوبچی په محفوظ ځائی كښې پريخودوسره بيا دَ راوا پس كيدونوم هجرت دې ﴿وَاَخْرِجُوْهُمْ مِّنْ حَيْثُ اَخْرَجُوْكُمْ﴾ [سورت بقره: ١٩١] دَالله تعالی حكم دې چه

**دهجرت قسمونه:** ① دَهجرت يوقسم دادې چه دَ داركفرنه دارامن ته سړې هجرت اوكړی لكه چه دَ مكې نه حبشې ته شوې وو

② دويم قسم دَ داركفرنه دار اسلام طرف ته هجرت كول دی لكه دَ مكې نه مدينې منورې ته هجرت شوې

③ د هجرت دريم قسم دادې چه سړې دَ دارالفتن نه دارالتقوىٰ طرف ته هجرت اوكړی لكه دَ پاكستان نه به خلقو دَ طالبانو دَ اسلامی خلافت طرف ته هجرت كولو نن صبا هلته افغانستان كښې امريكه قابض ده دكوم په وجه چه اوس هغه دارحرب كښې بدل شوې دې

④ دهجرت څلورم قسم هغه دې چه خلق به دَ مدينې دَ اطرافو او قبائلو نه دَعلم زده كولو په غرض مدينې ته راتلل اوقيام ئې كولو دې ته به دَ هجرت القبائل نوم وركولې شو زيربحث حديث كښې صرف دمكې نه مدينې طرف ته دَهجرت نفی كړې شوې ده

**قوله** وَلٰكِنْ جِهَادٌ وَنِيَّةٌ:

**د جهاد د ذكر كولو نكته:** چونكه هجرت دَ جهاد دپاره پيش خيمه وی نودَدې په نفی سره وهم كيدې شو چه كله هجرت ختم شو نوجهاد هم ختميدل پكاردی دَدې وهم دَ لرې كولودپاره حضورپاك دَ "لكن" سره دَ جهاد استدراك اوفرمائيلو چه جهاد اودَدې نيت اوس هم باقی دې

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۲۸۱۹] د اسلام د غلبې دپاره د مجاهدینو د ډلې وجود

۲۸۱۹—[۳۲] (١) [١] عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " [٢] «لَا يَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي يُقَاتِلُونَ عَلَى الْحَقِّ [٣] ظَاهِرِينَ عَلَى مَنْ نَاوَأَهُمْ [٤] حَتَّى يُقَاتِلَ آخِرُهُمُ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] عمران ﷺ ابن حصین وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [٢] خما د امت څه نه څه جماعت به همیشه د حق حمایت او حفاظت د پاره برسر جنګ وي [٣] او کوم سړی چې دي جماعت سره دښمني کوي په هغه به غالب وي [٤] تردي چې د دې امت آخري خلق به مسیح دجال سره جنګ کوي (ابوداود)

**حل اللغات:** ① نَاوَأَهُمْ: د ماضی معروف صیغه ده چې مسلمانانو سره دشمنی کوی

**تسهیلات:**

**قوله:** ظَاهِرِينَ أي غالبين اومعروفين مشهورين. يعنى دوى سره چه څوك دښمنى كوى دوى به په هغوى باندې غالب راځى دَدې جملې مطلب اومفهوم داسې شو چه په دې امت كښې به يو طائفه منصوره دَمجاهدينوهميشه دَپاره قائم وى دابه هيڅوك ختمه نه كړې شى هغوى به كله دَمتو په زور په دنياغالب راځى اوكله به صرف دَ معرفت او شهرت په اعتبارسره قائم وى

**د مجاهدینو عموم:** ملاعلى قارى ﷺ ليكلى دى چه دَ مجاهدينودا ډله يوعلاقې سره خاص نه ده بلكه ددنياپه مختلفو حصوكښې به وى او په آخره كښې به دَحضرت مهدى او حضرت عيسى ﷺ په صورت كښې دا ډله راښكاره كيږى دجال به اوژلې شى او غټې جنګونه به وى د قرب قيامت پورې به دغه ډله قائمه وى

## [۲۸۲۰] مطلقاً په جهاد کښې دعدم شرکت وعید

۲۸۲۰—[۳۳] (٢) [١] وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] «مَنْ لَمْ يَغْزُ، [٣] وَلَمْ يُجَهِّزْ غَازِيًا، [٤] أَوْ يَخْلُفْ غَازِيًا فِي أَهْلِهِ بِخَيْرٍ، [٥] أَصَابَهُ اللّٰهُ بِقَارِعَةٍ قَبْلَ يَوْمِ الْقِيَامَةِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ابو امامه د نبي کريم ﷺ څخه نقل کوي حضور ﷺ وفرمايل [٢] کوم سړی چې نه خو په خپله جهاد وکړو [٣] او نه د چا مجاهد سامان يې درست کی [٤] او نه د يو غازي د

---

(١) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجهاد/باب فى دوام الجهاد (رقم-٢٤٨٤)واحمد فى المسند: ٤٢٩/٤
(٢) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجهاد ، باب كراهية ترک الغزو (رقم-٢٥٠٣) وابن ماجه فى كتاب الجهاد/باب التغليظ فى ترک الجهاد (رقم-٢٧٦٢)

جهاد په دوران کې د هغه د اهل وعيال په حق کې خير ښيګړي سره د هغه نائب جوړ شو ⑤ نو الله ﷻ به هغه د قيامت څخه مخکې په څه ناڅه مصيبت کې مبتلا کړي (ابوداود)

**حل اللغات:** ①بِقَارِعَةٍ: دا بلا اومصيبت ته وائي جمع ئې قوارع. راځي

**د جهاد نه کولو باندې وعيد:** په دې حديث مبارک کښې د جهاد درې صورتونه ذکرشوي دي چې هرمسلمان لره په دې درې صورتونوکښې په يوکښې شرکت کول پکار دي اوکه يوکس په يوکښې هم شرکت اونکړو نود مرګ څخه وړاندې به خامخا ده ته دالله تعالی عذاب رسيږي

**دجهاد درې صورتونه:**

① په خپله په جهاد کښې شرکت کول.

② بل غازی د جهاد دپاره ليږل

③ د بل غازی د بال بچ خسمانه او حفاظت کول.

**[۲۸۲۱] دَ ځان مال اوژبې په ذريعه دَجهادحکم**

[۳۴] ()①وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ② «جَاهِدُوا الْمُشْرِكِينَ بِأَمْوَالِكُمْ، وَأَنْفُسِكُمْ، وَأَلْسِنَتِكُمْ.» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت انس ؓ د نبي کريم ﷺ څخه نقل کوي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ② مشرکينو يعنی د اسلام دښمنانو سره تاسو په خپل ځان ومال او د خپلي ژبې په ذريعه جهاد کوئ

**تسهيلات: قوله:** جَاهِدُوا الْمُشْرِكِينَ بِأَمْوَالِكُمْ الخ

**دجهاد درې قسمونه:** ① **جهادبالمال:** دَمال په ذريعه ئې دَ جهادکولوحکم مقدم کړو ځکه چه مال سره جهادعام دې چه ټولو انواعو دَ بشر ته شامل دې ځکه چه دَمال سره جهاد بوداګان خلق ماشومان ښځې اوسرې جوړناجوړه ټول کولې شی بل دَ مال نه بغير يو مجاهدد جنګ ميدان ته رسيدې هم نه شی اوجنګيدې هم نه شی ځکه چه کرايه خرچه اووسله ترکومې نه وی نو جهادبه څنګه اوشی

② **جهاد بالنفس:** دغه شان دَ ځان په ذريعه جهادهغه دې چه دا ځان دَ جهاد په ميدان کښې په کارراشی او جهادته دَ ده نه فائده اورسی صرف په کورکښې محنت او عبادت ته جهادبالنفس نه شی وئيلې کيدې دغه شان جهادباللسان هغه وی چه دَ چا تحرير او تقرير اوترغيب اوترهيب سره جهادته فائده اورسی صرف ټکی سره متعلق يوه ګهنټه

---

[۱] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد . باب کراهية ترک الغزو (رقم-۲۵۰۴) والنسائی فی کتاب الصوم/ذکر الاختلاف علی موسی بن طلحة فی الخبر فی صيام ثلاثة أيّام من الشّهر(رقم-۲۴۳۱) واحمد فی المسند: ۱۲۴/۳

تقریرته جهاد نه شي وئیلې کیدي

۳ **جهاد باللسان**: په ژبه سره جهادداهم دې چه ددې فضائل اومسائل بیان کړې شي اوهروخت د مجاهدینو دپاره دعاګانې کوی په ژبه سره جهادداهم دې چه په دښمن باندې رعب واچولې شي هغه ته سختې خبرې اوکړې شي او د جهادمتعلق اشعار اوئیلې شي اودترغیب دپاره نظمونه اوئیلې شي حضرت حسان رضی الله عنه او نورو شاعرانو صحابه کرامو هم دغه شان کړی دی تبلیغ والا چه کوم بیان کوی دا جهادنه دې بلکه وعظ او بیان دې

**[۲۸۲۲] د جنت حاصلولو عملونه**

٢٨٢٣ـ[٣٥] ()[١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ـ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ـ: "[٢] «أَفْشُوا السَّلَامَ، وَأَطْعِمُوا الطَّعَامَ، [٣] وَاضْرِبُوا الْهَامَ، تُوَرَّثُوا الْجِنَانَ». [٤] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه**: [١] او ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل [٢] سلام عام کړئ یعنی هرآشنا او نا آشنا ته سلام کوئ او غریب او محتاجو خلقو باندې طعام خورئ [٣] او د کفارو د فتنې او فساد بیخ کنې کوئ د جنت وارث به جوړ شئ [٤] داروایت ترمذي نقل کړي دی او ویلي يي دي چې دا حدیث غریب دی

**حل اللغات**: ①أَفْشُوا : دامرصیغه ده.عام کول ②الْهَامَ : دهام معنی سر.ده دکافرانو سرونه اوونبئ یعنی هغوی قتل کړئ. ③تُوَرَّثُوا: وارثان به جوړکړې شئ تاسو ,د جنت، ④الْجِنَانَ: جنان د جنت جمع ده.

**تسهیلات**:

**قوله**: أَفْشُوا السَّلَامَ: أي أشيعوا وعموا. یعنی په مسلمانانو کښې د اسلامی سلام رواج خور کړئ امر استحباب دپاره دې او ملا علی قاری رحمه الله فرمائی چه سلام کښې ابتدا کول یو داسی سنت دې کوم چه د فرضو نه هم افضل دې. ځکه چه سلام کول سنت دی او مخکې والې کول افضل دی او جواب ورکول فرض دی کوم چه مفضول دی ددی وجهې نه قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه بأن تسليم على من تراه عرفته أولم تعرفه.

**قوله**: وَأَطْعِمُوا الطَّعَامَ: دا دعزت او اکرام دشعائرو نه دې. فقیر مسکین هر یو باندې د خوراک کولو دا حکم دې

**قوله**: وَاضْرِبُوا الْهَامَ: أي الرأس أي اقطعو روس الكفار وهو كناية عن الجهاد. یعنی په جهاد کښې د حربی کافر سر قلم کوئ.

[١] ) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الأطعمة عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فى فضل إطعام الطعام(رقم-١٨٥٤)

**قوله: تُوَرِّثُوا**: مطلب دا دی چه سخاوت او شجاعت د جنت حاصلولو ذریعه ده

**قوله: الْجِنَانَ**: أی جنات النعیم فی دار السلام لقوله تعالیٰ وتلك الجنة التی أورثتموها بما كنتم تعملون۔ په دې کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چه کله انسان مشکلات او مجاهدات برداشت کوی او دخپلې خوښې څیزونه ترک کوی او خپل ژوند د شریعت مطابق تیروی اګر که مصائب برداشت کولو په کښې هم راشی نو دا مصائب د هغه دپاره درجات عالیه سبب جوړیږی بهر حال هر جنتی به په جنت کښې خپل ځائی هم واخلی او د کافر په حصه کښې چه کوم ځائی دې هغه به هم واخلی، ددی وجهې نه وراثت فرمایلې شوې دې

هم دغه شان چونکه جنتونه هم ډیر دی، ددې وجهې نه جنان جمع صیغه یې ذکر کړی ده

باقی د سلام متعلق نور هم ډیر احادیث دی مثلاً أفشوا السلام او په دویم روایت کښې دی چه أفشوا السلام تسلموا وفی روایة أفشوا السلام بینکم تحابوا، وفی روایة أفشوا السلام کی تعلوا۔ تاسو سلام کوئ۔ دیو بل د طرف نه به سلامتی مومی او په یو بل روایت کښې دی چه تاسو سلام کوئ ځکه چه سلام کولو سره به ستاسو محبت زیاتیږی

**دسلام حکمت**: په ابتدا داسلام کښې کله چه به مسلمانان په دین اسلام کښې به داخلیدل نو دیو بل نه به یریدل، ځکه چه معلومات به نه وؤ چه څوک څنګه انسان دې نو ددی وجهې نه د سلام حکم راغلو، چه تاسو یو بل ته سلام کوئ ځکه چه ستاسو هغه ویره او وحشت ختم شی او ستاسو په مینځ کښې محبت زیات شی

**قوله: وَاضْرِبُوا الْهَامَ**: یعنی کافرانو سره جهاد کوئی اوډ هغوی سرونه مات کړئی د ضرورت په وخت کښې جهاد فرض دې او اهل سنت والجماعة د دې خبرې قائل دی چه جهاد به ترقیامته پورې جاری وی دې د پاره چه د الله تعالیٰ حکم اوچت وی او کافران د دنیانه ختم شی اود شعائر اسلام نوم اوچت شی

**قوله: تُوَرَّثُوا الْجِنَانَ**: یعنی چه کله تاسو داکارونه کوئی نو جنت به لکه د وراثت په شان په مضبوطه قبضه سره تاسو ته حاصل شی د کومې وعده چه الله تعالیٰ متقیانوسره فرمائیلې ده

## [۲۸۲۲] په جهاد کښې د څوکۍ فضیلت

۲۸۲۲—[۳٦] (۱) [۱] وَعَنْ فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] «كُلُّ مَيِّتٍ يُخْتَمُ عَلَى عَمَلِهِ [۳] إِلَّا الَّذِي مَاتَ مُرَابِطًا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ، [۴] فَإِنَّهُ يُنَمّٰى لَهُ عَمَلُهُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ، [۵] وَيَأْمَنُ فِتْنَةَ الْقَبْرِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

[۱]) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الجهاد/باب فی فضل الرباط (رقم-۲۵۰۰) والترمذی فی كتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فی فضل من مات مرابطا (رقم-۱۶۲۱) واحمد فی المسند: ۶/۲۰

**ترجمه:** [١] او فضاله ابن عبید د رسول کریم ﷺ څخه نقل کوي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [٢] هر سړی په خپل عمل باندې اختتام پذیر کیږي (یعنی د هر سړي عمل د هغه د ژوند پورې وي مرګ څخه وروسته د هغه عمل په دي طور باقي نه پاتې کیږي چې هغه ته دي نوی ثواب حاصلیږي) [٣] لیکن کوم سړی چې د الله په لار کې یعنی په جهاد کې پاسباني کولو سره مړ شي [٤] نو د هغه د پاره د هغه عمل به ترقیامته پورې زیاتیږي [٥] او هغه به د قبر د فتنې او عذاب څخه په آمان وي ترمذي ابوداود

**حل اللغات:** ① يُخْتَمُ: خاتمه کولې شی، اختتام پذیر کیږی، ② مُرَابِطًا: پهره ورکونکې وی. ③ يَنْمِي: داد نما څخه دمجهول صیغه ده اضافه اوزیادت ④ فِتْنَةَ الْقَبْرِ: فتنه په مختلفو معانیو راغلې ده دلته ترې عذاب قبر مراد دی.

٣٨٢٣—(١)[١] وَرَوَاهُ الدَّارِمِيُّ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ.

**ترجمه:** [١] او دارمي دا روایت د عقبه رضي الله عنه ابن عامر څخه نقل کړي دی

**قوله:** كُلُّ مَيِّتٍ يُخْتَمُ عَلَى عَمَلِهِ: ځکه چه د فاعل مرګ افعال ختموی. ددی وجهې نه کله چه انسان مړ شي نو هغه د خپل اهل وعیال نه جدا شي او دهغه اعمال نامه بند کړی شي او مهر پرې اولګولی شی، نو بیا دهغه په اعمال نامه کښې څه هم نشي لیکل کیدی مګر هغه انسان کوم چه د إعلاء كلمة الله دپاره جنګ وکړو او اسلامی سرحد باندی هر وخت د جنګ دپاره تیار وؤ اوهم پدې حالت کښې مړ شو نو قیامت پورې به ددې افعالو ثواب ددې په اعمال نامه کښې لیکلې کیږي.

**[٣٨٢٥] لږ وخت په جهاد کښې د شرکت فضیلت**

٣٨٢٥—[٣٧] (٢)[١] وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [٢] «مَنْ قَاتَلَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ فَوَاقَ نَاقَةٍ [٣] فَقَدْ وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ [٤] وَمَنْ جُرِحَ جُرْحًا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ [٥] أَوْ نُكِبَ نَكْبَةً [٦] فَإِنَّهَا تَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ كَأَغْزَرِ مَا كَانَتْ، [٧] لَوْنُهَا الزَّعْفَرَانُ، وَرِيحُهَا الْمِسْكُ. [٨] وَمَنْ خَرَجَ بِهِ خُرَاجٌ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ [٩] فَإِنَّ عَلَيْهِ طَابَعَ الشُّهَدَاءِ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [١] معاذ رضي الله عنه ابن جبل څخه روایت دی چې هغه د رسول کریم ﷺ څخه واوریدل [٢] کوم سړی چې د الله په لار کې د اوښې د فواق په قدر (یعنی لږ وخت د پاره هم وجنګیدلو) هغه د پاره ابتداء څخه جنت واجب شو [٣] او کوم سړی چې د الله په لار

---

(١) اخرجه الدارمي في السنن رقم الحديث ٢٤٢٥

(٢) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الجهاد /باب فيمن سأل الله تعالى الشهادة (رقم-٢٥٤١) والترمذي في كتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فيمن يكلم في سبيل الله (رقم-١٦٥٧) والنسائي في كتاب الجهاد /باب: ثواب من قاتل في سبيل الله فواق ناقة (رقم-٣١٤١) وابن ماجه في كتاب الجهاد /باب القتال في سبيل الله سبحانه وتعالى (رقم-٢٧٩٢) واحمد في المسند:٥/٢٣٠

(جهاد) کې د دښمنانو دهتیارونو څخه زخمي شو⑤ یا هغه څه زخم تکلیف کې مبتلا شو⑥ نو هغه زخم به د قیامت په ورځ په داسې حالت کې راشي څنګه چې هغه په دنیا کې وو (یعنی هغه سړی به د قیامت په ورځ داسې حالت کې راشي چې د هغه هغه زخم به زیات تازه حالت کې وي)⑦ او د هغه رنګ به د زعفران په شان او د هغه خوشبویي به د مشك په شان وي ⑧ او د کوم سړي په بدن کې چې د الله په لار (جهاد) کې ننکی راوخته ⑨ نو د قیامت په روځ به هغه ننکی یا ننکی والا باندې د شهیدانو مهر وي (یعنی هغه سړي سره به د شهیدانو علامه وي چې وپیژندل شي چې هغه د دین د سربلندي او حفاظت د پاره جد وجهد یعنی کوشش کړي وو هغه ته به هغه اجر او انعام ورکول شي کوم چې مجاهدین اسلام ته حاصلیږي) . (ترمذي ابوداود نسائي)

**حل اللغات:** ①فَوَاقَ :د پئ لوشلو په منځ منځ کې معموله وقفه. لږ ساعت. ②جُرحَ: دَ دښمن اوکافرانو دَ طرف نه زخم لګیدل③نَكْبَةً: عام مصیبت چه لاره کښې په څه حادثاتی توګه باندې پیښیږی. ④كَأَغْزَرِ: په شان د تازه زخم، ⑤خُرَاجٌ: د خاء باندې ضمه او راء باندې شد دې په بدن باندې دانه او پولئی ته وائی. ⑥طَابَعُ الشُّهَدَاءِ: طابع مهرته وائی مګر دلته مطلق علامت مراد دې

**تسهيلات:**

**قوله: مَنْ قَاتَلَ فِي سَبِيلِ اللهِ فَوَاقَ نَاقَةٍ:**

**د فواق په تفسیر کښې دوه اقوال:** ①دَاوښې پیئی چه کله راولشلې شی نودَهغې بچې غلانځې ته ورپریخودې شی. اوښه دَ خپل بچی دَپاره پیئی راپریږدی. سړې راځی بچې اخواکوی اوپیئی پخپله اوباسی. په دې باندې اوښه نور پیئی بند کړی. سړې چالاك وی هغه دَ اوښې بچې دوباره لاندې راولی او غلانځې پورې اولګوی. اوښه ګنړی چه بچې راغلو هغه بیا پیئی لاندې غلانځې ته راپریږدی. سړې بیا راشی بچې اخواکړی او پیئی پخپله راؤلشی. دغه شان معامله دوه درې ځل کیږی. دَ یوځل پیئی لشلو اودوباره لشلوپه مینځ کښې چه کومه وقفه وی هغې ته فواق ناقه وائی. دکوم نه مراد چه لږه شان وقفه ده

② بعضې شارحینو دَ فواق مطلب دا بیان کړې دې چه دَپیئولشونکې چه کله دَ اوښې په غلانځه زور لګوی اودَپیئورالشلودپاره لاس لاندې طرف ته اوړی بیائی پورته اوړی دَدې په مینځ کښې چه کومه لږه شان وقفه ده هغې ته فواق ناقه وائی یعنی دَ دومره دَپاره به جنت واجب وی.

**[۲۸۲۶] د جهاد بالمال فضيلت**

۳۸۲۶—[۳۸] ( )[۱] ۱ وَعَنْ خُرَيْمِ بْنِ فَاتِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ «مَنْ أَنْفَقَ نَفَقَةً فِي سَبِيلِ اللَّهِ: ۳ كُتِبَ لَهُ سَبْعُمِائَةِ ضِعْفٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ.

**توجمه:** ۱ خريم رضي الله عنه ابن فاتك وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل ۲ كوم سړی چې د الله په لار كې يعنى جهاد كې د خپل مال څخه څه هم خرڅ كړي ۳ هغه د پاره اووه سوه ۷۰۰ چنده ثواب ليكل كيږي (ترمذي)

**حل اللغات:** ①ضِعْفٍ: څو چنده زيات، ډير زيات

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ أَنْفَقَ نَفَقَةً فِي سَبِيلِ اللَّهِ:

د الله په لار كښې دخرچ كولو چه كوم ثواب دې نو ددی ادنی درجه يې دلته ذكر كړی ده چه په جهاد كښې خرچ شوې مال به خپل مالک لره اوه سوه چنده زيات ثواب حقدار جوړ كړی نو دا دالله په رضا باندی موقوف ده چه چا لره الله وغواړی ددی نه به هم زيات وركړی والله يضاعف لمن يشاء او دا خبره دی واضح وی چه دثواب مختلف درجات د اخلاص د درجو په لحاظ سره هم دی او مال چه كوم ځايونو كښې خرچ شو دهغې داهميت په اعتبار سره هم چه داسې خرچ سره چه دين ته څومره فائده زياته وی نو ثواب به يې هم هغه هومره زيات وی

**[۲۸۲۷] غوره صدقه**

۳۸۲۷—[۳۹] ( )[۲] ۱ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ «أَفْضَلُ الصَّدَقَاتِ ظِلُّ فُسْطَاطٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، ۳ وَمِنْحَةُ خَادِمٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، ۴ أَوْ طَرُوقَةُ فَحْلٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**توجمه:** ۱ ابو امامه رضي الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل ۲ بهترينه صدقه د هغه خيمي د سوري ده چې د الله په لار كې ايعنى يو مجاهد يا حاجي يا د علم دين طالب وغيرها ته وركول شي ۳ او بهترينه صدقه هغه خادم دی چې د الله په لار كې (كليةً يا عاريةً، وركول شي ۴ او بهترينه صدقه د الله په لار كې داسې اوښه وركول دي چې د نر جفتي قابله وي ايعنى د الله په لار كې داسې اوښه وركول افضل دی چې نرسره د جفتي عمرته رسيدلی وي چې د سورو په كار راشي ا

[۱] ) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/ ما جاء فی فضل النّفقة فی سبيل الله (رقم-۱۶۲۵) والنسائی فی كتاب الجهاد/باب فضل النّفقة فی سبيل الله تعالى(رقم-۳۱۸۶) واحمد فی المسند: ۳۴۵/۴

[۲] ) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/ ما جاء فی فضل الخدمة فی سبيل الله (رقم-۱۶۲۷) واحمد فی المسند: ۲۷۰/۵

**حل اللغات** ① فُسْطَاطٌ: غټه خيمه ② مِنْحَةٌ: په ډالۍ يا په عاريت سره غلاء ورکول ③ طَرُوقَةٌ: طروقة هغه اوښې ته وائي چه د نراوښ د جماع کولو قابله وي يعنې خوانه اوښه ④ فَحْلٌ: فحل نراوښ

**[۲۸۲۸] د الله د لار ګرد او جهنم د لوګي عدم اجتماع**

۲۸۲۸–[۳۰] ( ) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «لَا يَلِجُ النَّارَ مَنْ بَكَى مِنْ خَشْيَةِ اللّٰهِ ③ حَتَّى يَعُودَ اللَّبَنُ فِي الضَّرْعِ ④ وَلَا يَجْتَمِعُ عَلَى عَبْدٍ غُبَارٌ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَدُخَانُ جَهَنَّمَ». ⑤ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَزَادَ النَّسَائِيُّ فِي أُخْرَى: (فِي مَنْخِرَيْ مُسْلِمٍ أَبَدًا. ⑥ وَفِي أُخْرَى: ( «فِي جَوْفِ عَبْدٍ أَبَدًا، ⑦ وَلَا يَجْتَمِعُ الشُّحُّ وَالْإِيمَانُ فِي قَلْبِ عَبْدٍ أَبَدًا» ).

**ترجمه:** ① او ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل ② هغه سړی به دوزخ ته نه ځي چې د الله د خوف څخه يي ژړلي وي ③ تردې چې پئ غولانځوته واپس لاړې نشي ④ او هيڅ بنده کې د الله د لاري غبار او د دوزخ لوګی يوځای کيدی نشي [يعنی د کوم مسلمان جسم چې د الله په لار يعنی جهاد کې غبارآلود شي هغه د دوزخ لوګی نشي مسه کولی حاصل داچي مجاهد به دوزخ ته نه ځي. ⑤ (ترمذي) او نسائي يو دويم روايت کې دا الفاظ هم نقل کړي دي او د هيڅ مسلمان د پوزي دواړو سپيږموکي د الله د لاري غبار او د دوزخ لوګی هيڅ کله هم يوځای کيدی نشي ⑥ او د نسائي په يوروايت کې دا الفاظ دي د بنده په خيټه کې د الله د لاري غبار او د دوزخ لوګی هيڅ کله يوځای کيدی نشي ⑦ او د هيڅ بنده په زړه کې کامل ايمان او بخل هيڅ کله يوځای کيدی نشي

**حل اللغات** ① لَا يَلِجُ: نه به ځي. نه به داخليږي. ② الضَّرْعِ: غلانځه. په کومه کښې چې پئ جمع کيږي ③ الشُّحُّ: بخل. بخيل توب. ④ مَنْخِرَيْ: منخر د پوزي سوري يعنی سپيږمه. ⑤ الشح: شح يوخاص قسم کنجوسئ ته وائي په کوم کښې چه سړي حرام خوري او واجب الاداء حق زکوة منع کړي او د نورو خلقو مال په ظلم سره اوخوري

**تسهيلات:**

**قوله:** حَتَّى يَعُودَ اللَّبَنُ فِي الضَّرْعِ:

**غلانځې ته د پيو د واپس کيدو مطلب:** دا د تعليق بالمحال يومثال دې ځکه چه د تينونه وتلي پيئ دوباره تينوکښې نه شی ورتلي

**قوله:** وَلَا يَجْتَمِعُ الشُّحُّ وَالْإِيمَانُ فِي قَلْبِ عَبْدٍ أَبَدًا:

**په يو زړه کښې د کنجوسئ او ايمان د نه جمع کيدو وضاحت:** علامه طيبي رحمه الله فرمائي چه په انسان کښې دري څيزونه دی د کوم نه چه انسان مرکب دې روح. نفس او زړه په لغوی

---

( ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلّی الله عليه وسلّم/ ما جاء فی فضل الغبار فی سبيل الله (رقم-۱۶۳۳) واحمد فی المسند: ٥/٢٧٠

اعتبار سره قلب (زړه) ته قلب ځکه وائي چه په دې کښې دَحرکت او انقلاب معنی پرته ده اوس کيږي دا چه کله دا زړه حرکت کوی نودَ روح په صفاتو باندې متصف کيږي کوم سره چه زړه روښانه اومنور کيږي اوکله دا قلب حرکت کوی نودَ نفس په صفاتو سره متصف کيدوسره بيږي دَ نفس دَ صفاتونه يو شح او بخل دې. کله چه زړه دَ شح او بخل په ککړوالی سره خراب شي نودا تياره شي. کله چه زړه تياره شو نودَ ايمان رڼا ختمه شوه په دې وجې اوفرمائيل چه شح اوايمان يوځائی کيدې نه شي [الكاشف: ۷-۲۵۰۷-۲۵۱]

## [۲۸۲۹] په دوو سترګو د جهنم د اور حراموالې

۳۸۲۹—[۳۱] ()[۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[۲] «عَيْنَانِ لَا تَمَسُّهُمَا النَّارُ: عَيْنٌ بَكَتْ مِنْ خَشْيَةِ اللهِ، [۳] وَعَيْنٌ بَاتَتْ تَحْرُسُ فِي سَبِيلِ اللهِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] دوه سترګې داسې دي چې د دوزخ اور يې نشي مس کولی يوه هغه سترګه چې د الله د خوف څخه ژړيدلې وي [۳] او دويمه هغه سترګه چې د الله په لار [يعنی جهاد کې د کفارو څخه د مجاهدينو نګهباني کولو سره] يې شپه تيره کړې وي. (ترمذي)

**حل اللغات:** ① عَيْنَانِ: دعين جمع ده، سترګه، ② بَكَتْ: چه جاری. ③ بَاتَتْ: شپه ئې تيره کړه. ④ تَحْرُسُ: نګهبانی او نګرانی کوی.

**تسهيلات:**

**قوله:** عَيْنَانِ لَا تَمَسُّهُمَا النَّارُ:

**په دوه قسمه سترګو د جهنم د اور حراموالې:** په دې حديث کښې دَ دوو قسم سترګو فضيلت بيان شوې دې يودَ عالم اوعابد دَ سترګو چه په عبادتونو اوعلم کښې مشقتونه برداشت کوی اودويم دَ مجاهد سترګه ده چه په څوکئی کښې بيداره وی په دواړو باندې دَ دوزخ اور حرام دې

## [۲۸۳۰] د جهادی عبادت په کورنی عبادت فضيلت

۳۸۳۰—[۳۲] ()[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «مَرَّ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِشِعْبٍ [۳] فِيهِ عُيَيْنَةٌ مِنْ مَاءٍ عَذْبَةٌ، فَأَعْجَبَتْهُ، [۴] فَقَالَ: لَوِ اعْتَزَلْتُ النَّاسَ فَأَقَمْتُ فِي هَذَا الشِّعْبِ. [۵] فَذَكَرَ ذَلِكَ لِرَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -

---

[۱]) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/ ما جاء في فضل الحرس في سبيل الله (رقم-۱۶۳۹)

[۲]) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/ ما جاء في فضل الغدوّ والرّواح في سبيل الله (رقم-۱۶۵۰) واحمد فی المسند: ۲/۵۲۴

**ترجمه:** [۱] ابو هريره رضي الله عنه وايي [۲] د يو سفر په دوران كې د رسول كريم ﷺ يو صحابي رضي الله عنه د يو غره په دره تير شو [۳] چې په هغه كې د خوږو اوبو يوه چينه وه نو هغه چينه په هغوى ډيره ښه ولګيده [۴] هغه اوويل كاشكي ارمان چې زه دي خلقو څخه جدايي اختيار كړم او دي درې ته راشم [۵] هركله چې د رسول كريم ﷺ په مخكې ددې خبرې ذكر وشو

**حل اللغات:** ① شِعْب: د غر دره. ② عُيَيْنَةٌ: چينه. ③ مَاءٌعَذْبَةٌ: خوږې اوبه. ④ اعْتَزَلْتُ: جدا شم.

[۱] فَقَالَ: لَا تَفْعَلْ، فَإِنَّ مَقَامَ أَحَدِكُمْ فِي سَبِيلِ اللهِ أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهِ فِي بَيْتِهِ سَبْعِينَ عَامًا، [۲] أَلَا تُحِبُّونَ أَنْ يَغْفِرَ اللهُ لَكُمْ وَيُدْخِلَكُمُ الْجَنَّةَ؟ [۳] اغْزُوا فِي سَبِيلِ اللهِ، مَنْ قَاتَلَ فِي سَبِيلِ اللهِ فَوَاقَ نَاقَةٍ وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] نو هغه صحابي رضي الله عنه ته يې وفرمايل ته داسې مه كوه څكه چې په تاسو كې د يو سړي د الله په لار يعنى په جهاد كې قيام كول د هغه په كوركي د اويا كاله مونځ كولو څخه ښه دى [۲] آيا ته دانه خوښوې چې الله ﷻ تا كامل طور سره وبخښي او تا د ابتداء څخه په جنت كې داخل كړي [۳] د الله په لار كې جهاد كوه څكه چا چې د الله په لار كې د اوښې د فواق په قدر يعنى لږ شان هم جهاد وكړو د هغه د پاره جنت واجب شو (ترمذي)

**حل اللغات:** ⑤ فَوَاقَ: د پۍ لوشلو په منځ منځ كې معموله وقفه. لږ ساعت.

**تسهيلات:**

**قوله: فَقَالَ: لَاتَفْعَلْ:**

**د عزلت نشنى څخه په منع كولو دوه اقوال:** ① مذكوره صحابى ددې وجهې نه منع كړې شو چه ددوى په غزوه كښې شامليدل واجب وو.

② امام طيبى رحمه الله فرمائى ممكنه ده چه مذكوره صحابى دجهاد د فراغت نه پس عليحدګې اختيارول غوښتل. څنګه چه د زاهدانو او عابدانو عادت دې

**قوله: أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهِ فِي بَيْتِهِ سَبْعِينَ عَامًا:**

اشكال په دې حديث كښې د جهاد فضيلت په عبادت باندې يو په اويا كاله دې اوپه بل حديث كښې يو په شپيته كاله دې ظاهره په دواړو احاديثو كښې تعارض دې

د اشكال جواب ① ددى نه مراد كثرت (زيادت) دې تحديد نه دې باقى د حديث حاصل دا شو چه ګوشه نشيني (يو طرف ته كيدلو) سره بخشش او معفرت نه حاصليږى ددې وجهې نه دا تاويل كوى چه په هغه زمانه كښې جهاد واجب وو او نفل دپاره واجب ترك كول ګناه ده. ددې وجهې نه نبى كريم ﷺ دا خبره صحابى ته واضح كړه چه كه تاسو داسې وكړئ نو تاسو به د ډير فضيلتونو نه محروم شى او په دې كې يو فضيلت په مذكوره حديث كښې هم بيان شو

**د عزلت او جلوت افضليت:** ① دا حديث په دې خبره دلالت کوي چه خلقو سره يوځې اوسيدل ده د گوشه نشيني نه افضل دی او خصوصاً د نبی کريم ﷺ په زمانه کښې دا افضليت زيات وؤ البته د نبی کريم ﷺ د زمانې نه بعد په خلقو کښې د اوسيدلو د وجهې که د فساد ويره وی نو بيا هم گوشه نشينی افضل ده

**په اسلام کښې د رهبانيت عدم جواز:** په دې حديث کښې نبی عليه السلام د دغه صحابی دا خواهش رد کړلو چه هغه دخلقو نه ځان له شی او په يوه دره کښې کينی اوالله الله کوی ځکه چه د شريعت تقاضا دا ده چه انسان هم په دې دنيا کښې اوسی اود خلقو سره ملاويږی دهغوی حقوق ادا کوی اوورسره دالله په لار کښې جهاد کوی کله چه موقع اوضرورت پيښ شی نوددې ټولو اعمالو نه ځان له کيناستل په شريعت کښې مطلوب نه دی ځکه چه په اسلام کښې رهبانيت نشته ځکه چه د رهبانيت تقاضا دا وه چه ټول کارونه پريږدی اود ټولو خلقو نه ځان له شی اود الله تعالى عبادت کوی ددې نه بغير به جنت نشو ملاويدې ليکن د اسلامی شريعت تقاضا دا ده چه تاسو هم په دې دنيا کښې اوسيږئ دا بهادری نه ده چه سړې دنيا پريږدی اويو طرف ته کينی بهادری دا ده چه په دې دنيا کښې اوسيږی اودا دنيا دې خراب نکړی بلکه هم په دې دنيا کښې اوسيږی او د دين مطابق ژوند تيروی په زړه کښې د گناه تقاضا پيدا کيږی اوانسان ترې ځان بچ ساتی نو دا د ده کمال دې دنيا پريخودل اويو طرف ته کيناستل کمال نه دې

**[٣٨٣١] په جهاد کښې د څوکۍ فضيلت**

٣٨٣١-[٣٣] (١) ① وَعَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: ② «رِبَاطُ يَوْمٍ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ يَوْمٍ فِيمَا سِوَاهُ مِنَ الْمَنَازِلِ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت عثمان رضی الله عنه د رسول کريم ﷺ څخه نقل کوي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ② د الله په لار [يعنی جهاد کې د کفر سرحدونو باندې] ديوي ورځي د پاره هم د پاسباني خدمت ددی [پاسباني دمنصب او خدمت] څخه علاوه په نورو عبادتو نو کې دزرو ورځو پورې دمشغوليدو څخه ښه دی (ترمذي نسائي)

**تسهيلات:**

**قوله:** رِبَاطُ يَوْمٍ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ:

ددی حديث تعلق هغه کس سره دې کوم چه د اسلامی سرحداتو دحفاظت او نگهبانی دپاره منتخب شوې وی نو دی ته رباط وئيلې شی او دغه شان په مسجد کښې د يو مونځ نه تر بل مونځ پوری انتظار کولو ته هم رباط وئيلې شی

[1] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فی فضل المرابط (رقم-١٦٦٧) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب فضل الرباط (رقم-٣١٦٩) واحمد فی المسند: ٦٥/١

**[۲۸۲۲] د شهيدانو په اول كښې جنت ته داخليدل**

۲۸۲۲—[۳۴] (۱) ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ۲ «عُرِضَ عَلَيَّ أَوَّلُ ثَلَاثَةٍ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ: ۳ شَهِيدٌ، وَعَفِيفٌ مُتَعَفِّفٌ، ۴ وَعَبْدٌ أَحْسَنَ عِبَادَةَ اللهِ ۵ وَنَصَحَ لِمَوَالِيهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل ۲ خما مخكې هغه مخكني درې سړي پيش شوه چې په شروع كې به په جنت كې داخليږي ۳ په هغوی كې يوسړی خو شهيد دی دويم هغه سړی دی چې حرامو څخه ځان اوساتي اوسوال نه كوي [يعنی فسق وفجور څخه بچ كيدونكی او د چا څخه سوال نه كونكی] ۴ او دريم سړی هغه غلام دی چې هغه د خپل الله هم ښه اطاعت او عبادت كوي ۵ او د خپلو مالكانو هم خير خواه پاتې شي

**حل اللغات:** ① وَعَفِيفٌ: دحرامو څخه ځان ساتونكې ② مُتَعَفِّفٌ: د سوال كولو پرهيز كونكې

**تسهيلات:**

**قوله:** عُرِضَ عَلَيَّ أَوَّلُ ثَلَاثَةٍ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ:

**دَ ټولونه مخكښې جنت كښې داخليدونكی:** داخلق به دَ انبياء كرامو نه پس دَ ټولونه مخكښې جنت كښې داخليدونكې وی اودا صرف درې كسان نه دی لكه درې قسمه خلق به وی په كوم كښې چه به په اول نمبر باندې شهدا وی بيا به پاكباز اوپاكدامن خلق وی چه دَ فسق اوفجور او سوال نه ئې ځان محفوظ ساتلې وو او په دريم نمبر باندې حكم منونكی غلام وی چاچه اسلام قبول كړې وی اودَ مولی اطاعت ئې كړې وی

**[۲۸۲۳] افضل مجاهد او افضل شهيد**

۲۸۲۳—[۳۵] (۲) ۱ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ حُبْشِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: ۲ أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- «سُئِلَ أَيُّ الْأَعْمَالِ أَفْضَلُ؟ ۳ قَالَ: طُولُ الْقِيَامِ ۴ قِيلَ: فَأَيُّ الصَّدَقَةِ أَفْضَلُ؟ ۵ قَالَ: جُهْدُ الْمُقِلِّ. ۶ قِيلَ: فَأَيُّ الْهِجْرَةِ أَفْضَلُ؟ ۷ قَالَ: مَنْ هَجَرَ مَا حَرَّمَ اللهُ عَلَيْهِ. ۸ قِيلَ: فَأَيُّ الْجِهَادِ أَفْضَلُ؟ ۹ قَالَ: مَنْ جَاهَدَ الْمُشْرِكِينَ بِمَالِهِ وَنَفْسِهِ، ۱۰ قِيلَ: فَأَيُّ الْقَتْلِ أَشْرَفُ؟ ۱۱ قَالَ: مَنْ أُهْرِيقَ دَمُهُ وَعُقِرَ جَوَادُهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ او عبد الله ابن حبشي څخه روايت دی ۲ چې د نبي كريم ﷺ څخه پوښتنه وشوه د مونځ اعمال اركان څخه كوم عمل ركن افضل دی ۳ حضور ﷺ وفرمايل طويل

[1] ) اخرجه الترمذي في السنن كتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم / ما جاء في ثواب الشهداء (رقم-۱۶۴۲) واحمد في المسند: ۴۲۵/۲

[2] ) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الصلاة/كتاب الصلاة،باب طول القيام (رقم-۱۴۴۹) والنسائي في كتاب الزكاة/باب جهد المقلّ (رقم-۲۵۲۶) واحمد في المسند: ۴۱۱/۳

اوږد قیام کول [۴] بیا څني پوښتنه وشوه کومه صدقه افضله ده [۵] وي فرمایل د مفلس او محتاج جد وجهد کول ایعنی هغه خیرات افضل دی چې څوك مفلس او محتاج د خپل فقر او افلاس باوجود محنت او مشقت کولو سره ورکړي [۶] پوښتنه وشوه کوم هجرت ښه دی [۷] وي فرمایل د هغه سړي هجرت چې هغه څیز پریږدي کوم چې الله حرام کړي دی ایعنی اګر چې د هجرت معنی دار الکفر پریښودلو سره دار الاسلام ته تلل دي لیکن حرام څیزونه پریښودلو سره حلال څیزونه اختیارولو ته هم هجرت وایي بلکه دا هجرت ښه دی [۸] پوښتنه وشوه کوم جهاد ښه دی؟ [۹] وي فرمایل د هغه سړي جهاد چې د خپل مال او خپل جان په ذریعه مشرکینو سره جهاد کوي [۱۰] پوښتنه وشوه په جهاد کې څنګه قتلیدل ښه دي ایعنی کوم شهید افضل دی] وي فرمایل د هغه سړي قتلیدل چې د هغه وینه وبهیول شي او د هغه د آس پښې پریشي [ایعنی هغه شهید افضل دی چې خپله هم ووژل شي او د هغه آس هم ووژل شي] (ابوداود)

**حل اللغات:** ① طُولُ الْقِيَامِ: اوږد قیام. (مونځ کښې اوږده اوږده رکعتونه کول) ② جُهْدُ الْمُقِلِّ: د محتاج محنت اومشقت. ③ هَجَرَ: پریږدی. ④ أَشْرَفُ: افضل. بهتر. ⑤ أُهْرِيقَ: اوبهیولې شی. ⑥ وَعُقِرَ: پرې شی. کټ کړې شی. ⑦ جَوَادُ: ښه او قیمتی.

> [۱] وَفِي رِوَايَةِ النَّسَائِيِّ: «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- سُئِلَ: [۲] أَيُّ الْأَعْمَالِ أَفْضَلُ؟ [۳] قَالَ: إِيمَانٌ لَا شَكَّ فِيهِ، [۴] وَجِهَادٌ لَا غُلُولَ فِيهِ، [۵] وَحَجَّةٌ مَبْرُورَةٌ. [۶] قِيلَ: فَأَيُّ الصَّلَاةِ أَفْضَلُ؟ [۷] قَالَ: طُولُ الْقُنُوتِ» [۸] ثُمَّ اتَّفَقَا فِي الْبَاقِي.

**ترجمه:** [۱] او د نسائي په روایت کې داسې دي چې د نبي کریم ﷺ څخه پوښتنه وشوه [۲] په اعمالو کې کوم عمل افضل دی؟ [۳] حضور ﷺ وفرمایل هغه ایمان چې په هغه کې د هیڅ قسم څه شك نه وي [۴] هغه جهاد چې په هغه کې د حاصل شده مال غنیمت په باره کې څه قسم خیانت نه وي شوی [۵] او حج مقبول [۶] بیا څني پوښتنه وشوه په مونځ کې کوم څیز افضل دی [۷] وي فرمایل اوږد قیام کول [۸] د دې څخه وروسته د حدیث الفاظ (ابوداود او نسائي) یوشان نقل کړي دي

**حل اللغات:** ⑧ غُلُولَ: شک شبه. دهوکه. ⑨ مَبْرُورَةٌ: مقبول. ⑩ طُولُ الْقُنُوتِ: اوږد قیام. (مونځ کښې اوږده اوږده رکعتونه کول)

**تسهیلات:**

**نوټ:** په حل اللغات کښې د ګرانوټکو وضاحت اوشو باقی د حدیث مطلب آسان دی.

## [٢٨٣٤] شهيدانو باندې د الله تعالى انعامات

٣٨٣٤-[٣٦] ()١ وَعَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ٢ «لِلشَّهِيدِ عِنْدَ اللهِ سِتُّ خِصَالٍ: ٣ يُغْفَرُ لَهُ فِي أَوَّلِ دَفْعَةٍ ٤ وَيَرَى مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ ٥ وَيُجَارُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ ٦ وَيَأْمَنُ مِنَ الْفَزَعِ الْأَكْبَرِ ٧ وَيُوضَعُ عَلَى رَأْسِهِ تَاجُ الْوَقَارِ ٨ الْيَاقُوتَةُ مِنْهَا خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا ٩ وَيُزَوَّجُ اثْنَتَيْنِ وَسَبْعِينَ زَوْجَةً مِنَ الْحُورِ الْعِينِ ١٠ وَيُشَفَّعُ فِي سَبْعِينَ مِنْ أَقْرِبَائِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ١ او مقدام ابن معدي کرب رضی الله عنه وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ٢ د حق تعالى په نز د شهيد د پاره شپږ خصلتونه يعنى شپږ امتيازي انعامات دي ٣ ① د هغه مخکنى ځل کې يعنى د هغه دويني مخکنى قطره غورځيدو سره بخښنه کيږي ٤ ② د هغه د ساه وتلو په وخت ورته په جنت کې خپله ټيکانه ښودل کيږي ٥ ③ هغه د قبر د عذاب څخه محفوظ وي ٦ ④ هغه د لوی ويرې يعنى د اور د عذاب څخه مامون وي ٧ ⑤ د هغه په سر به د عظمت او وقار تاج اېښودل کيږي ٨ چې د هغه يو ياقوت به د دنيا او د دنيا د ټولو څيزونو څخه ښه او قيمتي وي ٩ ⑥ د هغه ښځولي (زوجيت) کې به دغټو خوبصورت سترګو والا دوه اويا ٧٢ حوري ورکولي شي ١٠ او د هغه د عزيز او اقرباوو څخه به د اويا سړو په حق کې د هغه شفاعت قبلول کيږي

**حل اللغات:** ①دَفْعَةٍ: ساعت، ②مَقْعَدَهُ: ټکانه او ځاني دهغه، ③يُجَارُ: محفوظ کولي شی. ④الْفَزَعِ: لويه ويره، عذاب. ⑤الْحُورِ الْعِينِ: غټو سترګو والا حورې.

**تسهيلات:**

**قوله:** يُغْفَرُ لَهُ فِي أَوَّلِ دَفْعَةٍ:

**داول دفعة څخه مراد:** په دال باندې زبر اوپيش دواړه راتلې شي. دَ شهيددَ بدن نه دَ وينې رومبې څاڅکې چه په زمکه باندې پريوځى هغه مراد دې مطلب دا چه دغه دَ وينې رومبى څاڅکى په پريوتو سره شهيد معاف کيږى

**قوله:** وَيَرَى مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ:

**يو خصلت شمارل:** يعنى دَ ساه وتلو په وخت شيهدته په جنت کښې دَ هغه مقام خودلې شى. دا دواړه خصلتونه هم په يو خصلت کښې شميرل پکاردى دې دَپاره چه په حديث کښې دَ شپږ شمير په ځائى پاتې شى ګنى اووه خصلتونه به شى

---

١ ) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب فى ثواب الشهيد (رقم-١٦٦٣) و ابن ماجه فى كتاب الجهاد /باب فضل الشهادة فى سبيل الله (رقم-٢٧٩٩)

**قوله**: وَيَأْمَنُ مِنَ الْفَزَعِ الْأَكْبَرِ:

**د فزع اکبر په مصداق کښې مختلف اقوال**: دَ لوئې یرې سره دَ قرآن پاك دې آیت طرف ته اشاره ده ﴿لَا يَحْزُنُهُمُ الْفَزَعُ الْأَكْبَرُ﴾

① دې څخه دَ قیامت نفخه آخره مراد ده

② دې څخه دَ جهنم عذاب مراد دې

③ دې څخه په اور باندې پیش کیدل مرا دې

④ دې څخه قبر عذاب مراد دې خودا قول کمزورې دې خکه چې هم په دې حدیث کښې د عذاب قبرد عذاب څخه د حفاظت خپله مستقل ذکر موجود دې نوکه مونږ د فزع اکبر څخه عذاب قبر واخلو، نودا به تکرار شي.

**قوله**: وَيُشَفَّعُ فِي سَبْعِينَ مِنْ أَقْرِبَائِهِ:

**د اویا جهنمیانو شفاعت کول**: یعنی دَ خپلو رشته دارانونه به دَ اویاؤ داسې خلقو سفارش کوی دَ چا دَ پاره چه دَ دوزخ فیصله شوې وی.

**[۳۸۲۵] په جهاد کښې په عدم شرکت باندې عذاب**

> ۳۸۲۵—[۴۷] ( )[1] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ② «مَنْ لَقِيَ اللَّهَ بِغَيْرِ أَثَرٍ مِنْ جِهَادٍ ③ لَقِيَ اللَّهَ وَفِيهِ ثُلْمَةٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه**: ① او ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل ② کوم سړی چې د الله جل جلاله په حضور کې په داسې حال کې حاضر شي چې په هغه د جهاد څه اثر نه وي ③ نو هغه به ګویا الله جل جلاله سره په داسې حال کې یوځای شي چې د هغه دین به ناقص وي (ترمذي ابن ماجه)

**حل اللغات**: ① ثُلْمَةٌ: په ثاء باندې ضمه او لام ساکن دې نقصان او خلل ته وائی

**تسهیلات**:

**قوله**: مَنْ لَقِيَ اللَّهَ بِغَيْرِ أَثَرٍ مِنْ جِهَادٍ: دَ اثر نه مراد بدنی زخم هم کیدې شی چه ظاهری اثر وی او ښکاری دغه شان دَدې نه معنوی اثر هم مراد کیدې شی چه دَ جهاد په لاره کښې دَ خاورو دوړو لګیدو سره جوړیږی یا په جهاد کښې دَمال خرچ کولو سره اویا دَ نورو مشقتونو برداشت کولوسره حاصل شی بهرحال په یومسلمان باندې لازم دی چه دَ جهاد په وجه هغه ته دَ جهاد ظاهری اومعنوی علامت حاصل شی چه دَهغه دَ ایمان دَ تکمیل سندجوړشی.

[1] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فی فضل المرابط (رقم-۱۶۶۶) و ابن ماجه فی کتاب الجهاد/باب فضل الشهادة فی سبیل الله (رقم-۲۷۶۳)

**قوله** لَقِيَ اللّٰهَ وَفِيهِ ثُلْمَةٌ يعني د قيامت په ورځ كه د يوسړي په بدن باندې د جهاد معنوي يا ظاهري علامت نه وي نود دغه سړي ايمان به ناقص پاتې وي. بعضې خلق وائي اول ايمان جوړكړئي بيا جهاد كوئي حالانكه داحديث ښائي چه د جهاد نه بغيرايمان نه جوړيږي

**[٢٨٣٦] د شهيد د شهادت په وخت تكليف نه محسوسول**

٢٨٣٦–[٣٨] ()[١] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «الشَّهِيدُ لَا يَجِدُ أَلَمَ الْقَتْلِ [٣] إِلَّا كَمَا يَجِدُ أَحَدُكُمْ أَلَمَ الْقَرْصَةِ». [٤] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] او ابوهريره ﷺ وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [٢] شهيد د خپل قتل څخه وروسته دومره تكليف محسوسوي [٣] څومره تكليف چې تاسو كې يوسړى د ميږي چيچلو باندې محسوسوي [٤] (ترمذي نسائي دارمي) او ترمذي ويلي دي چې دا حديث حسن غريب دى

**حل اللغات:** ① أَلَمَ: تكليف. ② الْقَرْصَةِ: د ميږي چيچل. د ميږي چک

**تسهيلات:**

**قوله:** إِلَّا كَمَا يَجِدُ أَحَدُكُمْ أَلَمَ الْقَرْصَةِ: الم درد ته وائي اوقرصه د ميږي چك لګولو ته وائي يا په دوو ګوتو سره څكوندئي لګولوته وائي. مطلب دادې چه شهيد د شهادت د خوند د وجې نه د مرګ تكليف نه محسوسوي دا احتمال هم شته چه د آخرت د نعمتونو د مشاهدې د وجې نه هغه ته د مرګ تكليف لكه د ميږي د چك لګولو برابر معلوميږي. د ميږي په چك لګولوسره په بدن كښې خوږ خوږ درد محسوسيږي

**[٢٨٣٧] الله تعالى ته خوښې دوه قطرې**

٢٨٣٧–[٣٩] ()[١] وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] «لَيْسَ شَيْءٌ أَحَبَّ إِلَى اللّٰهِ مِنْ قَطْرَتَيْنِ، وَأَثَرَيْنِ: [٣] قَطْرَةِ دُمُوعٍ مِنْ خَشْيَةِ اللّٰهِ، [٤] وَقَطْرَةِ دَمٍ يُهْرَاقُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ، [٥] وَأَمَّا الْأَثَرَانِ: فَأَثَرٌ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ، [٦] وَأَثَرٌ فِي فَرِيضَةٍ مِنْ فَرَائِضِ اللّٰهِ تَعَالَى». [٧] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

---

) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/ ما جاء فى فضل المرابط (رقم-١٦٦٨) والنسائى فى كتاب الجهاد/باب ما يجد الشهيد من الألم (رقم-٣١٦١) وابن ماجه فى كتاب الجهاد/باب التغليظ فى ترک الجهاد (رقم-٢٨٠٢)

) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/ ما جاء فى فضل المرابط (رقم-١٦٦٩)

**ترجمه**: [١] ابو امامه رضی الله عنه د نبي کريم ﷺ څخه روايت کوي [٢] د الله په نزد دوو قطرو او دوو نښو څخه زيات محبوب هيڅ څيزنشته [٣] ① يوخو د الله دخوف څخه د څڅيدلو اوښکو قطره ده [٤] ② او دويمه قطره دويني ده چې د الله په لار کې بهيدل شوي وي [٥] او دوو نښو څخه يوه نښه خو داده چې د الله په لارکي جوړه شوي وي [٦] او دويمه نښه هغه ده چې د الله ﷻ د طرف څخه فرض شوى څيزونو کې د يوفرض شي په سلسله کې پيدا شوى وي [٧] امام ترمذي دا روايت نقل کړي دى او ويلي يي دي چې داحديث حسن غريب دى

**تسهيلات**:

**قوله**: وَأَمَّا الْأَثَرَانِ:يو اثرخودَ جهادد عمل دي دَ کوم تفصيل چه تيرشوي دي. دويم اثر دَعبادت فرضيه دې چه په يخنئى کښې په عبادت سره خپې لاسونه چوى يا دَ سجدې په اندامونو باندې نښې جوړيږى يا دَ روژه دار دَخلې دَ خوشبوئى اثر ښکاره کيږى يا دَ حاجى په بدن دَ حج په دوران کښې دَ خاورو دوړو لګيدو اثر ښکاري دا دَ فرائضو اثر دې

**[٢٨٣٨] د شرعى ضرورت نه بغير د بحري سفر ممانعت**

٢٨٣٨-[٥٠] (١) [١] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «لَا تَرْكَبِ الْبَحْرَ إِلَّا حَاجًّا، أَوْ مُعْتَمِرًا، أَوْ غَازِيًا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ ; [٣] فَإِنَّ تَحْتَ الْبَحْرِ نَارًا، وَتَحْتَ النَّارِ بَحْرًا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [١] عبد الله ابن عمرو رضی الله عنه وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [٢] تاسو په اراده د حج يا عمري يا د الله په لار کې جهاد د پاره تلو څخه علاوه په سمندر کې سفر مه کوئ [٣] ځکه چې د سمندر لاندي اور دى او د اور لاندي سمندر دى

**تسهيلات**:

**قوله**: لَا تَرْكَبِ الْبَحْرَ: يعنى دَ حج عمرې اوجهاد په غرض سره دَ سمندرسفرکوئى دې نه علاوه په سمندرکښې دَ سفرکوشش مه کوئى ځکه چه دَ سمندرلاندې اور دې. داکلام يا خو په حقيقت باندې محمول دې چه واقعى دَ سمندر لاندې اوردې دکوم طرف ته چه په والبحرالمسجورکښې اشاره موجودده دَدغه اورلاندې بيا اوبه دى اوبياهواده دا ټول دَالله تعالى په قدرت باندې قائم دى يادا په کلام په مجازباندې محمول دى يعنى په سمندرکښې سختې خطرې موجوددى دَغرقيدو قوى امکانات دى لهذا دَ ضرورى سفرنه علاوه دَدې سفرنه دى کول پکار

بدریائے منافع بیشمار است | اگر خواہی سلامت بر کنار است

(١) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجهاد/باب فى ركوب البحر فى الغزو (رقم-٢٤٨٩)

## [۳۸۳۹] په بحري سفر كښې د مړې دپاره د شهيد درجه

۳۸۳۹—[۵۱] (¹)[۱] وَعَنْ أُمِّ حَرَامٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «الْمَائِدُ فِي الْبَحْرِ الَّذِي يُصِيبُهُ الْقَيْءُ لَهُ أَجْرُ شَهِيدٍ، [۳] وَالْغَرِيقُ لَهُ أَجْرُ شَهِيدَيْنِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] بي بي ام حرام رضي الله عنها څخه روايت دى چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] سمندر او سمندر كې چې د كوم سړي په سرچكر راځي او د هغه په وجه هغه قى ووهي نو هغه ته به ديو شهيد ثواب حاصليږي [۳] او كوم سړى چې د سفر په دوران كې سمندر كې غرق شي نو هغه ته به د دوو شهيدانو ثواب حاصليږي.

**حل اللغات:** ① الْمَائِدُ: مَادَ يَمِيْدُ نه اسم فاعل دې دَ سر چكر او سرتاويدل ② الْغَرِيْقُ: چه غرق شي. ډوب شي.

**تسهيلات:**

**قوله:** الْمَائِدُ فِي الْبَحْرِ الَّذِي يُصِيبُهُ الْقَيْءُ لَهُ أَجْرُ شَهِيدٍ:

**په ديني غرض په سمندري سفر كښې د سر چكر راتلو ثواب:** دَ سر چكر او سرتاويدو په معنى كښې دې په سمندركښې داسې كيږي. دَ سمندردَ چپو او طوفانونودَ وجې داسې كيږي. بيا اولتېئى كيږي دَ قى چه كوم قيد دې دا اتفاقى دې كه اولتېئى وى اوكه نه وى مجاهدته دَ سمندرپه دې سفركښې دا ثواب ملاويږي.

دَ حج اوعلم په سفركښې هم داسې ثواب ملاويږي. ليكن دَتجارت په غرض چه كوم سفر وى په هغې كښې دا ثواب نشته دې.

## [۳۸۴۰] په جهاد كښې هر مرګ موجب شهادت

۳۸۴۰—[۵۲] (²)[۱] وَعَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۲] «مَنْ فَصَلَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ، فَمَاتَ، أَوْ قُتِلَ، [۳] أَوْ وَقَصَهُ فَرَسُهُ، أَوْ بَعِيرُهُ، [۴] أَوْ لَدَغَتْهُ هَامَّةٌ، [۵] أَوْ مَاتَ عَلَى فِرَاشِهِ بِأَيِّ حَتْفٍ شَاءَ اللّٰهُ، [۶] فَإِنَّهُ شَهِيدٌ، وَإِنَّ لَهُ الْجَنَّةَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] ابو مالك اشعري رضي الله عنه وايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه واوريدل [۲] چې كوم سړى چې د الله ﷻ په لار كې يعنى دجهاد په شان مقاصدو د پاره د كور څخه ووزى او د زخمي كيدو په وجه مړ شي يا هغه قتل شي [۳] يا د هغه آس يا د هغه اوښ هغه پښنو كې ميده كري [۴] يا څه زهريلا حيوان لكه مار وغيره يې وچيچى [۵] يا د څه بيمارى په وجه ناځاپه د الله مرضى سره په خپله بستره باندې مړ شي [۶] نو هغه په هرصورت كې شهيد دى [يعنى يا خو هغه حقيقي شهيد دى يا د شهيد په حكم كې دى] او د هغه د پاره جنت

¹) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجهاد، باب فضل الغزو فى البحر (رقم-۲۴۹۳)

²) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجهاد /باب فيمن مات غازيا (رقم-۲۴۹۹)

دی [یعنی هغه به د ابتداء څخه شهیدانو او صالحانو سره په جنت کې داخليږي]
(ابو داؤد)

**حل اللغات:** ①فَصَلَ : جدا شي، اوځي، ②وَقَصَهُ: چه اس راګذارکړو سټ ئي ورله مات کړو. ③لَدَغَتْهُ: ټك ورکړو هغه ته، ④هَامَّةٌ: زهريلا ځناور . لکه مار لړم وغيره حشرات الارض. ⑤حَتْفِ: قدرتي مرګ ته حتف وائي.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَمَاتَ، أَوْقُتِلَ، أَوْوَقَصَهُ فَرَسُهُ، أَوْبَعِيرُهُ...الخ:

**د شهادت صورتونه:**

په دې حديث کښې د شهادت مختلف صورتونه خودلی شوی دی.

① په جهاد کښې وتلی وی او په خپل مرګ مړشي.

② په جهاد کښې د کافر د لاسه شهيد شي.

③ اس يا اوښ ئې راغورځوی او مړشي.

④ په حشرات الارض کښې ئې څخه ضرری څيزاوچيچي.

⑤ يا په سفرکښې بيمارشي او خپله بستره مړ شي.

نو په دې ټولو صورتونو کښې دې شهيد دې او جنت ته به داخليږي.

**[۲۸۴۱] جهاد څخه کورته په واپس هم ثواب**

۳۸۴۱-[۵۳] ()[۱] وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ:[۲] قَفْلَةٌ كَغَزْوَةٍ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] عبد الله ابن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول کريم ﷺ وفرمايل[۲] د جهاد څخه وروسته راتلل هم د جهاد په شان دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** قَفْلَةٌ كَغَزْوَةٍ

**دجهاد نه واپس راتلل جهاد ته د تګ پشان:** دَجهادنه په واپسئی ب . ې چه کوم سړې کورته واپس کيږی هغه واپس کيدوته قفلة ونيلې شوی ده لکه چه دَ جهاددَميدان نه اوځی ترکومې پورې چه کورته نه وی رسيدلې هغه وخته پورې هغه په جهادکښې شميرلې کيږی او ثواب ورته ملاويږی.

[1] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد/باب فی فضل القفل فی سبيل الله تعالی (رقم-۲۴۸۷) واحمد فی المسند: ۱۷۴/۲

**[۲۸۴۲] مجاهد سره مالي معاون ته د دوو اجرونو ملاویدل**

۳۸۴۲-[۵۴] (¹) [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «لِلْغَازِي أَجْرُهُ، [۳] وَلِلْجَاعِلِ أَجْرُهُ وَأَجْرُ الْغَازِي». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] عبد الله ابن عمرو ﷛ وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] جهاد كونكي ته د هغه خپل اجر حاصليږي [يعنى مجاهد د پاره چې د جهاد كوم مخصوص اجر دى هغه ورته پوره وركولي شي [۳] او جاعل يعنى مال وركونكي ته د هغه خپل اجر هم وركولي شي او د جهاد كونكى هم.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلِلْجَاعِلِ أَجْرُهُ وَأَجْرُ الْغَازِي:

**د جاعل په تفسير كښې دوه اقوال:**

① جاعل هغه سړى ته وائى چه څوك يو غازى ته مال وركړى او جهاد له ئى روان كړى

② ليكن ابن ملك ﷫ فرمائى چه د دې جاعل نه هغه سړې مراد دې چه مزدور په مزدورى سره جهاد باندې روان كړى او معاوضه وركوى او پخپله د جهاد نه شاته پاتې كيږى

د دوه اجرونو ملاويدلو مطلب: د غه مذكوره كس ته دوچنده ثواب ملاويږى. يو د مال خرچ كولو او بل د غازى د جهاد كولو. خو دلته دا خبره ياد ساتل پكار دى چې د غازى يو اجر به د دې كس د دوو اجرونو څخه د عزاز په اعتبار سره زيات وى دا دوچنده اجر دا سې دې لكه څنګه چې نبى عليه السلام د هغه كس د پاره دوه اجرونه بيان كړى دې څوک چې قرآن پاک په سختى او تكليف وائى او د ماهر بالقرآن د پاره ئې يو اجر بيان كړې دې هلته هم محدثين فرمائى چې د ماهر بالقرآن يو اجر به په سختى سره قرآن ويونكى څخه زيات وى

**[۲۸۴۳] د اجرتى مجاهد حكم**

۳۸۴۳-[۵۵] (²) [۱] وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، سَمِعَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۲] «سَتُفْتَحُ عَلَيْكُمُ الْأَمْصَارُ، [۳] وَسَتَكُونُ جُنُودٌ مُجَنَّدَةٌ، [۴] يُقْطَعُ عَلَيْكُمْ فِيهَا بُعُوثٌ، [۵] فَيَكْرَهُ الرَّجُلُ الْبَعْثَ، فَيَتَخَلَّصُ مِنْ قَوْمِهِ، [۶] ثُمَّ يَتَصَفَّحُ الْقَبَائِلَ يَعْرِضُ نَفْسَهُ عَلَيْهِمْ، [۷] مَنْ أَكْفِيهِ بَعْثَ كَذَا [۸] أَلَا وَذَلِكَ الْأَجِيرُ إِلَى آخِرِ قَطْرَةٍ مِنْ دَمِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] ابو ايوب ﷛ څخه روايت دى هغه د نبي كريم ﷺ څخه واوريدل [۲] چې دير نزدې ستاسو د پاره به لوى لوى ښارونه فتح شي [۳] او د لښكر به جدا جدا جنډې وي [۴] چې په هغه كې به ستاسو د پاره فوجونه متعين شي [۵] نو كوم سړى چې امام [يعنى د

¹) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجهاد /باب الرخصة فى أخذ الجعائل (رقم-۲۵۲۶) واحمد فى المسند: ۲/۱۷۴

²) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجهاد /باب فى الجعائل فى الغزو (رقم-۲۵۲۵) واحمد فى المسند: ۵/۴۱۳

مملکت د سربراه] د طرف څخه خپل ځان بلا معاوضه فوج سره ملګري په جهاد کې تلل ناخوښه کړي نو هغه به د خپل قوم څخه وتښتي چې په جهاد کې د تلو څخه بچ شي [۶] او بیا نوري قبیلي تلاش کولو سره به ګرځي او د هغوی په مخکې خپل خدمات پیش کوي [۷] او وایي به کوم سړی دی چې هغه زه داسې لښکر سره کفایت کړم [یعني هغه څوك دی چې خما خدمات په اجرت سره حاصل کړي او مانوکر وساتي چې زه د هغه د طرف څخه لښکرته تلو سره د جنګ محنت او مشقت په خپله ذمه واخلم حاصل داچې هغه سړی به بغیر اجرت څخه خاص د الله ﷻ د خوشنودي د پاره جهاد کې تلو د پاره تیار نه وي حضور ﷺ د داسې سړي مذمت فرمایي] چې خبردار هغه سړی به د خپلي وینې آخري قطري پوري مزدور وي [یعني داسې سړی غازي یا مجاهد ګڼل غلط دي بلکه هغه به د کیرایي ټټوي چې د نورو د طرف څخه میدان جنګ کې جنګ کوي تردي چې قتل شي]

**حل اللغات:** ①الْأَمْصَارُ: د مصر جمع ده. ښارونه. ②مُجَنَّدَةٌ: ډلې ډلې کړې شوي. جدا جدا جنډې. ③بُعُوثٌ: فوځونه. ④يَتَصَفَّحُ: تلاش کړي، اولټوي. ⑤الْقَبَائِلَ: نوري قبیلي. مختلفې قبیلي

**تسهیلات:**

**قوله:** فَيَكْرَهُ الرَّجُلُ الْبَعْثَ:

**د یو مجاهد دعدم اجر بیان:** یعني دلښکر امیر چه کله تاسو نه یو ډله جدا کړی او د دښمن طرف ته ئې روانه کړی نو یو سړي به دغه تلل نه خوښوی بلکه د اجرت او مزدورئی د پاره به جدا شی اوبیا به خپل ځان قبائلو ته پیش کړی چه ما لره به په مزدورئی او معاوضه باندې د لیږلو د پاره څوك تیاروی چه زه دهغه د طرف نه کافی شم اوهغه زما دکورخرچې برداشت کړی اوزه دهغه د طرف نه جهادله لاړشم فرمائی چه دې به د آخری قطرې د وینې پورې هم مزدوروی د جهاد ثواب به ورته نه ملاویږی

**په اجرت باندې د جهاد کولو حکم:** د مالکیه او احنافو په نیزباندې په اجرت باندې جهاد کول جائزدی مګر د شوافع په نیزبالکل منع دی زیر بحث حدیث د شوافع په حق کښې دې

**[۳۸۴۴] په اجرت باندې جهاد ته د تلو مسئله**

۳۸۴۳ - [۵۶] (۱) [۱] وَعَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «آذَنَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِالْغَزْوِ [۳] وَأَنَا شَيْخٌ كَبِيرٌ لَيْسَ لِي خَادِمٌ، [۴] فَالْتَمَسْتُ أَجِيرًا يَكْفِينِي، [۵] فَوَجَدْتُ رَجُلًا سَمَّيْتُ لَهُ ثَلَاثَةَ دَنَانِيرَ [۶] فَلَمَّا حَضَرَتْ غَنِيمَةٌ، [۷] أَرَدْتُ أَنْ أُجْرِيَ لَهُ سَهْمَهُ، [۸] فَجِئْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَذَكَرْتُ لَهُ. [۹] فَقَالَ: "مَا أَجِدُ لَهُ فِي غَزْوَتِهِ هَذِهِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ إِلَّا دَنَانِيرَهُ الَّتِي تُسَمَّى» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

[۱] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد /باب فی الرّجل یغزو بأجر الخدمة (رقم-۲۵۲۷) واحمد فی المسند: ۲۲۳/۴

**ترجمه:** ① او يعلى رضي الله عنه ابن اميه وايي ② په يوه موقع رسول كريم ﷺ خلق جهاد ته د تلو د پاره اگاه كړل ③ زه بوډا وم او زماسره څوك خادم نه وو ④ څكه ماڅوك داسې مزدور تلاش كى چې د جهاد په دوران كې څما خدمت وشي ⑤ نو ماته يوسړى حاصل شو چې د هغه اجرت دري ديناره ما مقرر كړه ⑥ بيا [د جهاد څخه فراغت څخه وروسته] هركله چې مال غنيمت راغلو ⑦ نو ما اراده وكړه چې د مال غنيمت څخه د هغه سړي هم حصه وركړم ⑧ او [په دي باره كې مسئله معلومولو د پاره] د نبي كريم ﷺ په خدمت كې حاضر شوم او صورت حال مي ورته بيان كى ⑨ حضور ﷺ وفرمايل ماته د شريعت په حكم كې د دې سړي د پاره د دې جهاد د تعلق څخه په دنيا او آخرت كې علاوه د دې دينارو څخه چې متعين شوي دي بل هيڅ څيز نه حاصليږي. (ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله:** إِلَّادَنَانِيرَهُ يعنى دغه أجرتى مجاهدته به دَمتعين دنانيرو نه سوا هيڅ هم نه ملاويږى

**اجرتى غازى ته په مال غنيمت كښې د حصې په ملاويدو كښې ۳ مذاهب:**

① امام اوزاعى رحمه الله او اسحاق بن راهويه رحمه الله او په يوقول كښې امام شافعى رحمه الله فرمائى چه دا سړې مزدور دې كه په ميدان جهاد كښې اوجنگيږى اوكه اونه جنگيږى ده ته به دَ مال غنيمت نه هيڅ نه ملاويږى.

② امام مالك رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائى چه دې سړى ته به په هرحال كښې حصه وركولې شى. دَ احنافو دَ اصول او قواعدوهم دغه تقاضاده

③ بعضې علماؤ دا لار اختيار كړې ده چه دې سړى ته اختياردې چه دَمزدورئى پيسې اخلى اوكه دا پريږدى په مال غنيمت كښې حصه اخلى

**دلائل:** ظاهرى احاديث دَ شوافع په حق كښې دى

**[٢٨٤٥] په د نياوى غرض سره په جهاد عدم ثواب**

٣٨٤٥ - [٥٤] (١) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، «أَنَّ رَجُلًا قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! ② رَجُلٌ يُرِيدُ الْجِهَادَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَهُوَ يَبْتَغِي عَرَضًا مِنَ الدُّنْيَا ③ فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "لَا أَجْرَ لَهُ"». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ① ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دى يوسړي عرض اوكړو يا رسول الله ② يوسړى د الله په لار كې د جهاد كولو اراده لري حالانكه هغه د دې جهاد په ذريعه د مال او اسباب خواهشمند دى ③ رسول كريم ﷺ وفرمايل د هغه په نصيب كې ثواب نشته (ابوداود)

**حل اللغات:** ① عَرَضًا: مال او اسباب.

---

[١] ) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجهاد/باب فى من يغزو ويلتمس الدنيا (رقم-٢٥١٦) واحمد فى المسند:٢/٢٩٠

تسهيلات:

**قوله**: وَهُوَ يَبْتَغِي عَرَضًا دنياوی سازوسامان ته عرض وئيلې شوې دې يعنی چه کوم سړې په خالص نيت او دَ اعلاء کلمة الله په غرض نه بلکه دَدنياوی مال او اسباب دَپاره جهاد کوی نوهغه دَ آخرت دَ ثواب نه محرومېږی. ښکاره خبره ده چه کله يوسړې دومره لوئی جهاد دومره دَ سپکې دنيادَپاره کوی او پخپله هم په زړه کښې دَثواب نيت نه کوی نوولې خپل په خپله به هغه پورې ثواب اونخلی؟ داسې به هيڅ کله نه کېږی. دَدې حديث په رڼا کښې دَمسلمانانو ملکونو فوجونه که صرف دَ مزدورئی په غرض سره په فوج کښې بهرتی کيږی نو هغوی ته به هم څه ثواب نه ملاويږی.

## [٢٨٤٦] دحقيقي جهاد تعريف

٢٨٤٦ – [٥٨] ()[١] وَعَنْ مُعَاذٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] " «الْغَزْوُ غَزْوَانِ، [٣] فَأَمَّا مَنِ ابْتَغَى وَجْهَ اللّٰهِ، وَأَطَاعَ الْإِمَامَ، [٤] وَأَنْفَقَ الْكَرِيمَةَ، وَيَاسَرَ الشَّرِيكَ، [٥] وَاجْتَنَبَ الْفَسَادَ ; [٦] فَإِنَّ نَوْمَهُ وَنَبْهَهُ أَجْرٌ كُلُّهُ. [٧] وَأَمَّا مَنْ غَزَا فَخْرًا، وَرِيَاءً، وَسُمْعَةً، [٨] وَعَصَى الْإِمَامَ، وَأَفْسَدَ فِي الْأَرْضِ، [٩] فَإِنَّهُ لَمْ يَرْجِعْ بِالْكَفَافِ» ". رَوَاهُ مَالِكٌ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه**: [١] حضرت معاذ رضی الله عنه وايي چې رسول کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل [٢] جهاد په دوه قسمه دی [٣] کوم سړی چې د مولی رضاطلب کولو د پاره په جهاد کې شرکت اوکړو د امام [يعنی سربراهِ مملکت او قانون حکومت اسلامي] اطاعت يي اوکړو [٤] خپل پاك مال او پاك ځان يي د الله په لار کې صرف کی او دخپل شريك کار سره يي ښه معامله وساتله [٥] او فتنه او فساد څخه بچ کيدلو [يعنی لوټ مار کولو فساد خورولو او د خيانت کولو په ذريعه حدود شريعت څخه تجاوز اونکړی] [٦] نو د هغه خوب او د هغه ويښه ټول د اجر او ثواب موجب دی [٧] او کوم سړی چې بطريق فخر يعنی ناموري او ښودني او آورولو د پاره جهاد وکړو [٨] او د امام نافرماني يي وکړه او د زمکي په مخ يي فتنه او فساد خورکړو [٩] نو هغه به څه بدله اخستو سره واپس نه راځي يعنی داسې جهادونه، نه خو د هغه ګناه بخښل کيږي او نه هغه ته څه ثواب حاصليږي (مالك ابوداود نسائي)

**حل اللغات**: ① يَاسَرَ: ښه معامله او نرمی ئې اوساتله. ② الشَّرِيكَ: شريکوال. شريک کار. ③ نَبْهَهُ: بيدار. ويښه دهغه. ④ سُمْعَةً: آورولو او شهرت دپاره، ⑤ الْكَفَافِ: برابری،

[١] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد/باب فی من يغزو ويلتمس الدنيا (رقم-٢٥١٥) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: فضل الصدقة فی سبيل الله عز وجل (رقم-٣١٨٨) ومالک فی الموطا کتاب الجهاد/باب الترغيب فی الجهاد (رقم-٤٣) واحمد فی المسند:٥/٢٣٤

**تسهيلات:**

**قوله: وَأَنْفَقَ الْكَرِيمَةَ** يعني په جهاد كښې ئې خپل ښه قيمتي مال خرچ كړو

**قوله: وَعَصَى الْإِمَامَ** يعني دَ وخت دَاميرالمؤمنين نافرماني هم كوي اودَخپل جهادي اميرهم نافرماني كوي هروخت فسادكوي او پروپيګنډې كوي

**قوله: فَإِنَّهُ لَمْ يَرْجِعْ بِالْكَفَافِ** يعني داسړي به برابر اوسالم نه واپس كيږي چه نه ګناه وي اونه ثواب وي بلكه دې به ګناه سره راواپس كيږي اوكه چرې دَ كفاف نه ثواب مرادواخستې شي نومطلب به داشي چه دا سړي به ثواب ګټلو سره نه واپس كيږي

**[۳۸٤۷]دشهرت په غرض مجاهد دپاره عذاب**

٣٨٤٧–[٥٩] ()[١] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّهُ قَالَ: [٢] «يَا رَسُولَ اللَّهِ! أَخْبِرْنِي عَنِ الْجِهَادِ، [٣] فَقَالَ: " يَا عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو! إِنْ قَاتَلْتَ صَابِرًا مُحْتَسِبًا ; [٤] بَعَثَكَ اللَّهُ صَابِرًا مُحْتَسِبًا. [٥] وَإِنْ قَاتَلْتَ مُرَائِيًا مُكَاثِرًا ; [٦] بَعَثَكَ اللَّهُ مُرَائِيًا مُكَاثِرًا. [٧] يَا عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو! عَلَى أَيِّ حَالٍ قَاتَلْتَ، أَوْ قُتِلْتَ ; [٨] بَعَثَكَ اللَّهُ عَلَى تِلْكَ الْحَالِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] عبدالله رضي الله عنه ابن عمرو ابن عاص څخه روايت دى هغه عرض اوكړو [٢] يا رسول الله ما ته د جهاد په باره كښې وښايه (په كوم قسم جهاد د ثواب موجب دى) [٣] حضور ﷺ وفرمائيل عبدالله ابن عمرو! كه ته داسې حال كښې جنګ وكړې چې صبر كونكى او ثواب غوښتونكى يې [٤] نو الله تعالى به تا د قيامت په ورځ صبر كونكى او ثواب غوښتونكى راپورته كوي (يعنى ته چې څنګه دې صفات سره جهاد كوياو په دې صفاتو مړ شې دغه شان الله تعالى به تادې صفات سره ولاړ وي او تاته به د هغه ثواب دركړي څنګه چې په يو روايت كښې دى كَمَا تَعِيشُوْنَ تَمُوْتُوْنَ وَكَمَا تَمُوْتُوْنَ تُحْشَرُوْنَ يعنى تاسو چې په كوم حالت كښې ژوند تيروي په هغه حالت به مړه كيږي او په كوم حالت چې مري په هغه به راپاڅې) [٥] او كه تاسو د نمائش نيت سره او خپل زور ښودلو د پاره جنګ كوئ (يعنى كه تاسو په خلقو كښې د فخر كولو د پاره جنګ كوي چې زه مال طاقت او د لښكرو په اعتبار سره ستاسو څخه زيات يم او د جهاد د حكم اتباع كښې ستاسو څخه زيات كونكى يم) [٦] نو الله تعالى به تا د قيامت په ورځ نمائش كونكى او زور ښونكى ولاړ وي (يعنى په ميدان حشر كښې به ستا په باره كښې اعلان كيږي چې داسړى هغه څوك دى چې د نمائش په نيت او فخر كولو او زيات مال ومنال حاصلولو د پاره جنګيدلى وو) [٧] اې عبدالله ابن عمرو ياد لره ته چې په كوم حال كښې جنګ كوي يا كوم حال كښې وژل كيږي [٨] الله تعالى به تا په هغه حال كښې اوچتوي (ابوداود)

[١] ) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجهاد /باب فى الرّجل يموت بسلاحه (رقم-٢٥٣٩)

**حل اللغات:** ① مُحْتَسِبًا: ثواب غوښتونکي، ② مُرَائِيًا: ريا کونکې. ③ مُكَاثِرًا: زور او طاقت ښودل. لوئي او بهادري ذباتل.

**تسهيلات:**

**قوله:** مُحْتَسِبًا دَ ثواب په نيت کارکولوته وائي.

**قوله:** بَعَثَكَ اللّٰهُ په قيامت کښې دَ اوچتولوپه معنی کښې دي.

**قوله:** مُرَائِيًا رياکارئي اوخان خودلوته وائي.

**قوله:** مُكَاثِرًا خپل صفتونه کولواو ضباتلوپه غرض چه يوکار اوکړې شي اودَ خپل لوئي والی دَ ښکاره کولودَپاره چه کوم کار اوکړې شي دَهغې دَپاره مکاثر لفظ وئيلې شي شارحينو حديث دَمکاثرمطلب دَمال زياتول هم اخستی دی چه صرف دَمال دَ جمع کولو دَپاره جنګيږی. دا مطلب زيات واضح دې.

**[۳۸٤۸] د سرکشه امير د معزول کولو جواز**

۳۸۴۸—[۲۰] (¹) ① وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② "«أَعَجَزْتُمْ إِذَا بَعَثْتُ رَجُلًا فَلَمْ يَمْضِ لِأَمْرِي ③ أَنْ تَجْعَلُوا مَكَانَهُ مَنْ يَمْضِي لِأَمْرِي»؟". ④ رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. وَذَكَرَ حَدِيثَ فَضَالَةَ: "«وَالْمُجَاهِدُ مَنْ جَاهَدَ نَفْسَهُ»". فِي كِتَابِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** ① عقبه رضي الله عنه ابن مالك د نبي کريم ﷺ څخه نقل کوي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ② آيا تاسو د دې څخه عاجزه يئ چې هرکله زه يوسړی ستاسو حاکم او امير جوړولو سره وليږم او هغه ځما د حکم فرمانبر داري نه کوي [يعنی هغه ځما د څه حکم مخالفت وکړي نو تاسو هغه معزول (لري) کی؟ ③ او د هغه په ځای څوك دويم داسې سړی مقرر کړی چې ځما مفوضه کار آنجام کړي. ④ (ابوداود)

**حل اللغات:** ① فَلَمْ يَمْضِ: زما حکم نه منی، تابعداری نه کوی.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَلَمْ يَمْضِ لِأَمْرِي

**د مذکوره جملې مطلب:** يعنی چه زما حکم نه منی نوته دغه امير معزول کړه او داسې امير مقررکړه چه زما حکم نافذ کوی لکه چه حضورپاك فرمائی مثلاً ما يو امير مقرر کړو مګر هغه وړاندې تلوسره خودسره شو اودَ شر مجموعه شوه. زمادَ خودلې شوو قوانين په ځائی خپله لار متعين کوی اوخپل قانون جوړولوسره تګ کوی نوته هغه معزول کړه.

¹) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد /باب فيمن يسلم ويقتل مکانه فی سبيل الله عزّ وجلّ (رقم-۲۵۳۷)واحمد فی المسند: ٤/ ۱۱۰.

**د نا اهل حاكم د معزوله كولو صورتونه:** ① ملاعلي قاري رحمه الله ليكي چه كه يوحاكم دَ رعيت په مال باندې تجاوزكوى اودَهغه په اخوا كولو سره جنگ اوجدل او فتنې خوريدو خطره وى نوداسې حاكم مه چيړئى بلكه پريږدئى ئى
② خوكه يوحاكم خلقو لره وژنى عوام اوخواص قتل كوى نوكه دَهغه معزول كولواو قتلولو كښې دَ ډير جنگ جګړې خطره ده نوهغه دې پريخودې شى اوكه په معزول كولواو قتلولو كښې دَ خونريزئى كمه خطره اوباقى ساتلوكښې دَ زياتې تباهئى خطره ده نوبيا هغه اودَ هغه دَ پارټئى خلق قتلول جائزدى.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۲۸٤۹] په اسلام كښې د رهبانيت عدم جواز

٢٨٣٩-[٦١] (١) ① عَنْ أَبِى أُمَامَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي سَرِيَّةٍ، ③ فَمَرَّ رَجُلٌ بِغَارٍ فِيهِ شَيْءٌ مِنْ مَاءٍ وَبَقْلٍ، ④ فَحَدَّثَ نَفْسَهُ بِأَنْ يُقِيمَ فِيهِ وَيَتَخَلَّى مِنَ الدُّنْيَا، ⑤ فَاسْتَأْذَنَ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي ذٰلِكَ. ⑥ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " إِنِّي لَمْ أُبْعَثْ بِالْيَهُودِيَّةِ، وَلَا بِالنَّصْرَانِيَّةِ،

**ترجمه:** ① ابو امامه رضي الله عنه وايي ② يو وخت مونږ د نبي كريم ﷺ سره په يولښكر كې ووتو ③ د سفر په دوران كې هركله چې په مونږ كې يوسړى د يو داسې غار وادي په مينځ كې تير شو چې په هغه كې څه اوبه او سبزه وه ④ نو هغه په خپل زړه كې سوچ وكړو چې هغه په خپله دي غاركي پاتې شي او د دنيا څخه كناره كشي وكړي ⑤ هغه په دي باره كې د رسول كريم ﷺ څخه اجازت وغوښتله ⑥ حضور ﷺ ورته وفرمايل ياد لره نه خو زه دين يهوديت وركولو سره دي دنياته راليږل شوى يم او نه دين عيسائيت وركولو سره چې زه تاسو خلقوته د رهبانيت تعليم دركړم بي ځايه مشقت او تكليف كې مو مبتلا كړم او د خلقو سره د اوسيدو او د دنيا د لذتونو څخه مطلقًا د كناره كشي اجازت دركوم

**حل اللغات:** ① بَقْل: سبزه. شنه گيا وابنه.

① وَلَكِنِّي بُعِثْتُ بِالْحَنِيفِيَّةِ السَّمْحَةِ، ② وَالَّذِى نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ ③ لَغَدْوَةٌ، أَوْ رَوْحَةٌ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ، خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا، ④ وَلَمَقَامُ أَحَدِكُمْ فِي الصَّفِّ ⑤ خَيْرٌ مِنْ صَلَاتِهِ سِتِّينَ سَنَةً». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ① بلكه زه خو دين حنيفيه دركولو د پاره راليږل شوى يم چې يو آسانه دين دى [چې په هغه كې نه د انسانيت عامه د پاره بي ځايه تكليف او حرج دى او نه د ضرورت څخه زيات مشقت او محنت دى قسم دى ② په هغه ذات پاك چې د هغه په قبضه كې د

(١) اخرجه احمد فى المسند: ٥/٢٦٦

محمد ﷺ ساه ده [۳] د ورځې صرف ابتدايي يا آخري حصه کې يعنى سحر او مابنام د الله لار يعنى جهاد کې تلل ددنيا او مافيها د ټول څيزونو ښه دى [۴] او په تاسو کې د چا په ميدانِ جنگ کې د جماعت د مونځ په صف کې دريدل [۵] د هغه د شپيته کاله ځان ته کولو مونځ ښه دى.

**حل اللغات:** ① بِالْحَنِيفِيَّةِ : داد حنفاء طرف ته منسوب دې دين توحيدمراددې ② السَّمْحَةِ: داد آسان اوواضح په معنى کښې دې ③ لَغَدْوَةٌ: بالفتح- معنى ده، دَ سحر وخت يوځل راوتل او "غدو" لفظ دَ سحر نه تر زوال پورې وخت شامل دې. ④ رَوْحَةٌ : بالفتح- معنى ده يو ځل مابنام راوتل او "رواح" لفظ دَ زوال نه پس تر شپې پورې وخت شامل دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنِّي لَمْ أُبْعَثْ بِالْيَهُودِيَّةِ، وَلَا بِالنَّصْرَانِيَّةِ: يعنى جهاد پريخودل او په غارونو کښې کيناستل او رهبانيت اختيارولوسره په عبادت کښې لګيا کيدل او دَ عامې معاشرې نه ځان له جدا کيدوسره دَدرويش جوړيدو په اسلام کښې ګنجائش نشته دې بلکه دَدې دين لوئى عبادت دَ جنګ ميدان دې دَ دې منونکې دَ شپې راهبان او دَ ورځې شهسواران وى

سکھایا ہے ہمیں اے دوست طیبہ کے والی ﷺ نے کہ بوجہلوں سے ٹکرا کر ابھرنا عین ایمان ہے
جہاں باطل مقابل ہو وہاں نوک سناں سے بھی برائے دین اسلام رقص کرنا عین ایمان ہے

**قوله:** وَلَكِنِّي بُعِثْتُ بِالْحَنِيفِيَّةِ السَّمْحَةِ:

يعنى زما رب زه په دين توحيدباندې رالیږلې يم چه دټولو نه آسان دين دې په کوم کښې چه دَ يهودو اونصارى په شان بې ځايه تشدد نشته دې اونه څه داسې مشقت دې چه ناقابل برداشت وى.

## [۳۸۵۰] په جهاد کښې د نيت د اخلاص آخري درجه

۳۸۵۰-[۱۲] ()[۱] وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[۲] «مَنْ غَزَا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَلَمْ يَنْوِ إِلَّا عِقَالًا فَلَهُ مَا نَوَى» ". رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] عباده ابن صامت ﷺ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] چا چې د يوې رسى دحاصلولو په نيت هم دالله په لارکې جهاد وکړو نو هغه ته به هغه څيز حاصليږي د څه چې يې نيت کړي دى. (نسائي)

**حل اللغات:** ① عِقَالًا: رسئ، پړې،

---

() اخرجه النسائی فی السنن كتاب الجهاد/باب: من غزا فی سبيل الله ولم ينو من غزاته إلّا عقالا (رقم-۳۱۳۸) واحمد فی المسند: ۳۱۵/۵

**تسهيلات:**

**قوله**: مَنْ غَزَا فِي سَبِيلِ اللهِ وَلَمْ يَنْوِ إِلَّا عِقَالًا فَلَهُ مَا نَوَى، اي تحصيله هو حبل صغير يشد به ركبة البعير لئلا يفر.
يعنى هغه وړوكې پړې كوم سره چه اوښ تړلې شى ددې دپاره چه اوښ اونه تښتى او د حديث حاصل دا شو چه د يو كس نيت دا وى چه ماته به په مال غنيمت كښې كم نه كم د اوښ تړولو پړې ملاوشى نو دا نيت يى اگرچه ډير معمولى دې چونكه نيت ئى خالص نه دې نو ددى وجهې نه به ده ته دجهاد ثواب نه ملاويږى او دغه شان كه شهرت ئى مقصود وى نو بيا به هم هغه ثواب نه ملاويږى

**قوله**: عِقَالًا رسئ ته په عربى كښې عقال وائى يعنى كه په جهاد كښې يو سړى دَ يوې رسئ هم نيت اوكړو نو هم هغه رسئى به ورته ملاويږى ثواب به ورته نه ملاويږى علماء كرام فرمائى چه دا په جهاد كښې دَ اخلاص آخرى حد او دَ تقوىٰ آخرى مقام اوخودلې شو چه د معمولى نه معمولى څيز نيت هم په جهاد كښې پاكيزه عمل سره شامل نه وى خوكه يو سړې جهاد سره سره دَ مال نيت هم لرى نو په دې سره به دَ جهاد ثواب نه باطل كيږى اوشرعًا داسې نيت كول جائزدى. بلكه علماء كرامو ليكلى دى چه كه يو سړې رياكارئى سره جهاد كوى په دې كښې به هم دَ جهادټول عمل نه ضائع كيږى سره دَدې چه رياكارى بې كاره ده بهرحال يودَتقوىٰ مقام دې او بل دَ فتوىٰ مقام دې فرق ذهن كښې ساتل پكاردى

## [٢٨٥١] په جهاد سره د درجاتو پورته كيدل

[٢٣] (١) [١] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] "مَنْ رَضِيَ بِاللهِ رَبًّا، وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا، [٣] وَبِمُحَمَّدٍ رَسُولًا، وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ". [٤] فَعَجِبَ لَهَا أَبُو سَعِيدٍ. فَقَالَ: [٥] أَعِدْهَا عَلَيَّ يَا رَسُولَ اللهِ! فَأَعَادَهَا عَلَيْهِ، [٦] ثُمَّ قَالَ: " وَأُخْرَى يَرْفَعُ اللهُ بِهَا الْعَبْدَ مِائَةَ دَرَجَةٍ فِي الْجَنَّةِ، [٧] مَا بَيْنَ كُلِّ دَرَجَتَيْنِ كَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ".

**ترجمه**: [١] ابو سعيد ﵁ څخه روايت دى چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [٢] كوم سړى چې دالله رب كيدو باندې د اسلام دين حق كيدو باندې [٣] او د محمد ﷺ رسول كيدو باندې راضي شو ايعنى په زړه سره يي داټول ومنل) نو د هغه د پاره جنت واجب شو [٤] ابوسعيد ﵁ چې دا ارشاد واوريدى نو هغه ته ډېر تعجب وشو هغه عرض اوكړو [٥] يارسول الله! دا كلمات يو ځل بيا ځما په مخكې ارشاد وفرمايه حضور ﷺ د هغه په مخكې دا كلمات بيا ارشاد كړلې بيا يي وفرمايل يوشى بل دى چې د هغه په سبب

[١] ) اخرجه مسلم فى كتاب الإمارة/باب بيان ما أعدّه الله تعالى للمجاهد فى الجنّة من الدّرجات (رقم-١١٦ - (١٨٨٤) والنسائى فى كتاب الجهاد/باب: درجة المجاهد فى سبيل الله عزّ وجلّ (رقم-٣١٣١)

الله ﷻ په جنت کې بنده د سل درجې په بلندۍ رسوي [۷] او په هغه کې د هر دواړو درجو په مينځ کې دومره فاصله ده څومره چې د آسمان او زمکې په مينځ کې ده

[۱] قَالَ: وَمَا هِيَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ؟ [۲] قَالَ: "الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ، الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ، الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] ابوسعيد رضی الله عنه عرض اوکړو [۲] يارسول الله! هغه څه څيز دی وي فرمايل هغه د الله په لار کې جهاد کول دي هغه د الله په لار کې جهاد کول دي هغه د الله په لار کې جهاد کول دي (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله** وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ:

**په وجبت له الجنة کښې د ماضی په راوړلو کښې دوه وجوهات:**

① په وجبت کښې ئې د ماضی صيغه ددې دپاره راوړله چې دده جنت ته داخليدل داسې يقينی دی لکه څنګه چې په ماضی کښې يو کارشوې وی اوخلقوته د هغې علم وی

② په وجبت کښې ئې د ماضی صيغه دې دپاره راوړله چې دنيا به هم ده دپاره دالله تعالی سره د تعلق اومحبت په وجه جنت اوګرځی اود عقبی جنت کيدل خوښکاره خبره ده

**قوله** وَأُخْرَى يَرْفَعُ اللّٰهُ بِهَا الْعَبْدَ:

**د اخرى کلمې په موصوف کښې درې احتمالات:**

① يعنی اوبله کلمه دا ده

② يعنی اوبله فائده دا ده.

③ يعنی او بله د تعجب خبره دا ده

**[۲۸۵۲] جنت د تورو د سيورې د لاندې**

۳۸۵۲-[۱۶] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] " «إِنَّ أَبْوَابَ الْجَنَّةِ تَحْتَ ظِلَالِ السُّيُوفِ ". [۳] فَقَامَ رَجُلٌ رَثُّ الْهَيْئَةِ [۴] فَقَالَ: يَا أَبَا مُوسَى! أَنْتَ سَمِعْتَ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ هَذَا؟ قَالَ: نَعَمْ. [۵] فَرَجَعَ إِلَى أَصْحَابِهِ، فَقَالَ: أَقْرَأُ عَلَيْكُمُ السَّلَامَ [۶] ثُمَّ كَسَرَ جَفْنَ سَيْفِهِ، فَأَلْقَاهُ، [۷] ثُمَّ مَشَى بِسَيْفِهِ إِلَى الْعَدُوِّ فَضَرَبَ بِهِ حَتَّى قُتِلَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوموسی رضی الله عنه څخه روايت دی هغه په يومجلس کې دابيان وکړو چې رسول کريم ﷺ فرمايلي دي [۲] د جنت دروازې د تورو په سورې کې دي [۳] په دې اوريدو سره يوخسته حال سړی اودريدلو [۴] او هغه اوويل اې ابوموسی! آيا تا د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي يعنی د رسول الله ﷺ څخه ستا دا اوريدل د يقين په طور دی هغه

(۱) اخرجه مسلم فی صحيح رقم الحديث ۱۹۰۲، ۱۴۶ والترمذی رقم الحديث ۱۶۵۹، واحمد فی المسند ۴/ ۳۹۶

اوويل هو[۵] په دي اوريدو سره هغه سړي خپلو ملګرو طرف ته تاؤ شو او هغه اوويل زه تاسو ته آخري سلام کوم [۶] بیا هغه د خپلې تورې تیکی ماتولو سره او غورځولې [یعنی د دې په ذریعه هغه د خپلې ارادې اظهار وکړو چې اوس به زه واپس نه راځم [۷] یعنی خپله توره آخستو سره دښمنانو طرف ته روان شو او د هغوی سره وجنګیدلو تردې چې شهید شو. (مسلم)

**حل اللغات:** ①ظِلَالِ: سیورې، ②رَثُّ الْهَيْئَةِ: شلیدلې زړې جامې او خیرن ګډوډ وینښته اودَخراب حال صورت ③كَسَرَ: مات کړی ④جَفْنَ سَيْفِهِ: دَتورې تیکی (قاش) ته وائی

**تسهيلات:**

**قوله:** تَحْتَ ظِلَالِ السُّيُوفِ

**د تحت ظلال السيوف په مفهوم کښې دوه اقوال:** دَدې جملې دوه مفهوم دی

① مجاهد کله دَ یو کافر په سرباندې دَ وهلودَپاره توره اوچتوی او سورې په کافرباندې پریوځی نودَهغې لاندې جنت دې ځکه چه دَ کافرپه وژلوبه ثواب حاصلیږی کوم چه به موجب جنت جوړیږی.

② چه کله یو کافردَمسلمان په سرباندې دَ وهلودَپاره توره اوچتوی اودَتورې سورې په مسلمان باندې راځی نودَ دغه سوری لاندې جنت دې ځکه چه مسلمان ته به شهادت ملاویږی کوم چه دَجنت سبب دې. دلته دَابواب په لفظ سره اشاره کیږی چه مجاهد چرته هم وی هم دَ جنت په لار به وی.

**[۳۸۵۲] داحد دشهیدانو په باره کښې زیری**

۳۸۵۲—[۶۵] (۱) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ لِأَصْحَابِهِ: [۲] " إِنَّهُ لَمَّا أُصِيبَ إِخْوَانُكُمْ يَوْمَ أُحُدٍ، [۳] جَعَلَ اللَّهُ أَرْوَاحَهُمْ فِي جَوْفِ طَيْرٍ خُضْرٍ، [۴] تَرِدُ أَنْهَارَ الْجَنَّةِ تَأْكُلُ مِنْ ثِمَارِهَا، [۵] وَتَأْوِي إِلَى قَنَادِيلَ مِنْ ذَهَبٍ مُعَلَّقَةٍ فِي ظِلِّ الْعَرْشِ، [۶] فَلَمَّا وَجَدُوا مَأْكَلَهُمْ وَمَشْرَبَهُمْ، وَمَقِيلَهُمْ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې رسول کریم ﷺ خپلو صحابه رضي الله عنهم ته وفرمایل [۲] هرکله چې ستاسوورونه په احد غزاکی شهیدان شول [۳] نو الله تعالیٰ د هغوی روحونه دشین رنګ د مرغانو قالب کې منتقل کړل [۴] نو هغه روحونه د هغه مرغانو په قالب کې د جنت نهرونو ته راځي چې د هغه میوې خوري [۵] او بیا د هغه سوني قندیلونو کې اوسیږي کوم چې د عرش په سورې کې زوړند دي [۶] هرکله چې هغه روحونو د خپل خوراك څښاك او استوګنې لطف اندوزي پیدا کړه

---

[۱] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد /باب فی فضل الشهادة (رقم-۲۵۲۰) واحمد فی المسند: ۱/۲۶۶

**حل اللغات:** ① جَوْفِ: خيټه (قالب)، ② تَرِدُ: واردېږي، څي راځي، ③ قَنَادِيلَ: فانوسونه، ④ مَأْكَلِهِمْ: خوراكونه ځپل، ⑤ مَأْبِرِهِمْ: د استوګنې ځايونه خپل، ⑥ وَمَقِيلِهِمْ: د اوده كيدو او څملاستلو ځايونه خپل

۱ قَالُوا: مَنْ يُبَلِّغُ إِخْوَانَنَا عَنَّا أَنَّا أَحْيَاءٌ فِي الْجَنَّةِ ۲ لِئَلَّا يَزْهَدُوا فِي الْجَنَّةِ ۳ وَلَا يَنْكُلُوا عِنْدَ الْحَرْبِ. ۴ قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: أَنَا أُبَلِّغُهُمْ عَنْكُمْ ۵ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: ﴿وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاءٌ﴾ [آل عمران: ۱۶۹] إِلَى آخِرِ الْآيَاتِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ نو هغوی اوويل څوك شته چې زمونږ د طرف څخه زمونږ ورونړو ته داپيغام ورسوي چې مونږ په جنت كې ژوندي شو [او د حق تعالى د داسې داسې نعمتونو څخه لطف اندوز يو] ۲ چې هغوی جنت حاصلولو كې بې رغبتي او كوتاهي ونه كړي ابلكه د جنت دي درجاتو حاصلولو ته راغب شي] ۳ او د جهاد په وخت سستي ونه كړي ۴ الله ﷻ د هغوی داخبره اوريدو سره وفرمايل خوف مه كوئ ستاسو د طرف څخه به زه هغوی ته دا پيغام اورسوم ۵ نو الله ﷻ دا آيت نازل كړو وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ قُتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتًا بَلْ اَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُوْنَ آخر د آيت پورې (ابوداود)

**حل اللغات:** ⑦ لِئَلَّا يَزْهَدُوا: چه بې رغبتي اونكړي، كوتاهي اونكړي. ⑧ لَا يَنْكُلُوا: سستي اونكړي

**تسهيلات:**

**قوله:** جَعَلَ اللّٰهُ أَرْوَاحَهُمْ فِي جَوْفِ طَيْرٍ خُضْرٍ

**د نيكانوخلقو روحونه د شنو مرغو په شكل كښې:** مطلب دا دې چه څنګه په دنيا كښې د انسان په جسم كښې روحونه موجود وؤ او د انساني جسم

تربيت يې كولو نو هم دغه شان الله پاک دا روحونه د شنه مرغانو په جسمونو كښې د امانت په توګه اينبودلى دى.

**د روحونو د مرغانوپه صورتونو كښې د ګرځيدومثال:** ددې روحونو دپاره دشنو مرغانو جسمونه دغه شان دى څنګه چه مونږ دپاره په دنيا كښې لباس يا مكان دې ددى وجهې نه په حديث كښې في جوف لفظ راغلې دې او جنتي غذاګانې ددى روحونو دپاره به وى او ددې روحونو په جنت كښې سير كول دغه شان دى څنګه چه مونږ په هوائى جهاز كښې سفر كوو.

**د روح د بدن سره تعلق نه ختميدل:** او دا خبره ياد ساتل پكاره دى چه د شهيد روح په جنت كښې سيل كول او دهغه جسم په قبر كښې خالي وى نو دا خبره صحيح نه ده بلكه د شهيدانو ارواح د شهيدانو جسمونو سره تعلق ساتلو باوجود هم دجنت سيل كوى او جنت د نعمتونو نه خوند او مذې اخلى.

كما في القرآن: ويستبشرون بالذين لم يلحقوا بهم، او د قرآن پاک بل مقام کښې ذکر دی ولا تقولوا لمن يقتل في سبيل الله أموات، او شهيدانو ته مړی مه وائې او بل ځائی کښې يو آيت ذکر دې کوم چه په حديث الباب کښې هم مذکور دې چه تاسو شهيدانو ته مړې مه ګڼړئ

**[۲۸۵٤] په دنيا کښې د مؤمنانو درې قسمونه**

۳۸۵۳-[۲٦] (١)[١] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " [٢] «الْمُؤْمِنُونَ فِي الدُّنْيَا عَلَى ثَلَاثَةِ أَجْزَاءٍ: [٣] الَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ، ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوا، [٤] وَجَاهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، [٥] وَالَّذِي يَأْمَنُهُ النَّاسُ عَلَى أَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ، [٦] ثُمَّ الَّذِي إِذَا أَشْرَفَ عَلَى طَمَعٍ تَرَكَهُ لِلَّهِ عَزَّ وَجَلَّ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [٢] په دنيا کې درې قسمه مومنان دي [٣] يو خو هغه دي چې الله او د هغه رسول باندې ايمان راوړي او بيا هيڅ شك او شبهه کې مبتلا نه شی [٤] او هغوی د خپلو ځانونو او د خپلو مالونو په ذريعه د الله په لار کې جهاد وکړو (يعنی د مؤمنينو داهغه جماعت دی چې خپل ايمان يې کامل او خپل نفس يې مهذب پاکيزه جوړکی او په دې سره د مخلوق خدا فلاح او بهبودي او د هغوی پاکيزګی د پاره هم جد وجهد وکړو او دا هغه جماعت دی چې د مرتبې د اعتبار څخه د ټولو څخه اعلی او اشرف دی) [٥] دويم قسم مومن هغه سړی دی چې د هغه څخه دخلقو مال وجان محفوظ وي (يعنی اګر چې هغه د مخلوق خدا د فلاح د بهبودي د پاره جد وجهد اونکړی ليکن د دې په ذريعه خلقوته يې هيڅ قسم نقصان او ضرر هم ونه رسوی او نه خو هغه اختلاط وکی او نه طمع او په حرص کې مبتلا شی) [٦] او بيا دريم قسم مومن هغه دی چې هرکله د هغه په زړه کې طمع پيدا شي نو د الله د خوف څخه هغه طمع پريږدي (احمد)

**حل اللغات:** ① لَمْ يَرْتَابُوا: شک شبه اونه کړی ② أَشْرَفَ: پيدا شی. ③ طَمَعٍ: طمع. حرص

**تسهيلات: قوله:** ثُمَّ الَّذِي إِذَا أَشْرَفَ عَلَى طَمَعٍ تَرَكَهُ لِلَّهِ عَزَّ وَجَلَّ:

**د مذکوره جملې مفهوم:** د مومنانو ددې اخری جماعت وصف دا بيان کړې شوې دې چه که چرې ددوي په زړه کښې د دنيا د څه څيز طمع اوحرص پيدا کيږی نو دوی په هغې عمل نه کوی بلکه د الله تعالی رضا حاصلولو دپاره دا طمع او حرص پريږدی. نو ګويا چه دا هغه جماعت دې کوم چه د دنيادارو سره تعلق او اختلاط لرلو او ددی تعلق په وجه ددوی په زړه کښې طمع اوحرص پيدا شو ليکن په عين موقع باندې الله تعالی دوی په طمع او حرص باندې د عمل کولو نه اوساتل او دا جماعت د مرتبې په اعتبار سره د

---

(١) اخرجه احمد في المسند: ٨/٣

اولنی دوه جماعتونو نه ادنی دي بیا ددې دریم جماعت نه ورستو د مومنانو نور هم قسمونه دي، لیکن هغه ټول د مرتبې په اعتبار سره ساقط دی

**[۲۸۵۵] د شهید آرزو او آرمان**

۳۸۵۵-[۶۷] (۱) [۱] وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي عَمِيرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «مَا مِنْ نَفْسٍ مُسْلِمَةٍ يَقْبِضُهَا رَبُّهَا [۳] تُحِبُّ أَنْ تَرْجِعَ إِلَيْكُمْ [۴] وَأَنَّ لَهَا الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا، غَيْرُ الشَّهِيدِ». [۵] قَالَ ابْنُ أَبِي عَمِيرَةَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۶] وَلَأَنْ أُقْتَلَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ: أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ يَكُونَ لِي أَهْلُ الْوَبَرِ وَالْمَدَرِ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت عبدالرحمن رضی الله عنه بن ابي عميره څخه روايت دی چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] د شهيد څخه علاوه بل هيڅ داسې مسلمان سړی نشته چې د خپل پروردګار د طرف څخه خپل روح قبض کړی [۳] ددې څخه وروسته داخبره خوښه کړي چې هغه واپس راتلو سره تاسو ته راشي [۴] او د دنيا او مافيها څيزونه حاصل کړي مګر صرف شهيد. ايعني شهيد حق تعالی ته درسيدو څخه وروسته چې د شهادت د عظيمې مرتبې سعادتونه او عظمتونه ويني نو پروردګار ته د دې خواهش اظهار کوي چې هغه روح واپس ورکولو سره دوباره دنياته راشي او د الله په لار کې بيا ووژل شي [۵] عبد الرحمن بن ابي عميره رضی الله عنه وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۶] په الله قسم څما د الله په لار کې قتليدل څما په نز د دې څيز څخه زيات ښه دی چې خيمو والا او حويلو والا څما مملوک او محکوم وي. (نسائي)

**حل اللغات:** ① أَهْلُ الْوَبَرِ: وَبَر دَ اوښ ويښتو اوپښم ته وائی. مراد خيمې اودَخيمووالاخلق. خانه بدوش ② الْمَدَرِ، دې نه مراد دَخاورو او پخو کورونوخلق دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ يَكُونَ لِي أَهْلُ الْوَبَرِ وَالْمَدَرِ

**د مذکوره جملې مطلب:** مطلب دادې چه زما جهاد دَدې نه زيات خوښ دې چه زه دَ دغه ټولو خلقو حاکم جوړشم اوحکومت اوکړم [ الکاشف: ۷/۳۷۱]

**[۲۸۵۶] جنتيان کسان**

۳۸۵۶-[۶۸] (۲) [۱] وَعَنْ حَسْنَاءَ بِنْتِ مُعَاوِيَةَ، قَالَتْ - حَدَّثَنَا عَمِّي، قَالَ: [۲] «قُلْتُ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: مَنْ فِي الْجَنَّةِ؟ [۳] قَالَ: "النَّبِيُّ فِي الْجَنَّةِ، وَالشَّهِيدُ فِي الْجَنَّةِ، [۴] وَالْمَوْلُودُ فِي الْجَنَّةِ، وَالْوَئِيدُ فِي الْجَنَّةِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

---

[۱] ) اخرجه النسائي في السنن كتاب الجهاد/باب: تمنّي القتل في سبيل الله تعالى (رقم-۳۱۵۳) واحمد في المسند: ۲۱۶/۴

[۲] ) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الجهاد/باب في فضل الشهادة (رقم-۲۵۲۱) واحمد في المسند: ۵۸/۵

**ترجمه:** [١] او بي بي حسناء بنت معاويه (ابن سليم) وايي ماته خما تره حضرت اسلم ﷺ ابن سليم بيان وکړو [٢] چې يوه ورځ ما د نبي کريم ﷺ څخه د ريافت اوکړو چې په جنت کې به کوم خلق وي؟ [٣] نو حضور ﷺ وفرمايل په جنت کې به نبيان وي شهيدان وي [٤] په جنت کې به بچي وي او په جنت کې به هغه وي چې هغه ژوندي ښخ شوي وي (ابوداود)

**حل اللغات:** ① الْمَوْلُودُ: وړوکی بچی ته مولودوائی. ② الْوَئِيدُ: ژوندې خښ شوې بچې ونيد په معنى د موؤد دي.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَالْمَوْلُودُ فِي الْجَنَّةِ:

**د مولود په مصداق کښې دوه اقوال:** ① امام طيبى رحمه الله فرمائى چه د مولود نه مراد هغه ماشوم دې کوم چه پيدا کيدو ته نزدی وی، خواه هغه دکفارو اولاد وی او که دمسلمانانو اولاد وی هغه ټول جنتيان دی، اګر که د اهل ايمان والا ماشومان به د جنت په اعلى مقام کښې وی او د کفارو ماشومان به دجنت په ادنى مرتبه کښې وی او يا د اهل جنت خادمين به وی.

② امام خطابى رحمه الله فرمائى چه مولود نه مراد ناپوهه ماشوم دې يا کچه (بې موده) ماشوم دې کوم چه ضائع شي.

**قوله:** فِي الْجَنَّةِ:

**د څلور قسمه خلقو په جنت کښې د کيدو وجه:** باقى حديث کښې خاص کر د څلور قسمه خلقو ذکر شوې دې نو کيدې شی چه د اول الذکر دواړو تخصيص د فضل او شرف په اعتبار سره وې او د آخر الذکر دواړو تخصيص په دې سبب نه دې چه دوی به د څه سبب او عمل نه بغير جنت ته داخليږى.

**[٢٨٥٧] په مال او جان سره د جهاد کونکی مجاهد فضيلت**

> ٢٨٥٧ـ[٢٩] (¹) [١] وَعَنْ عَلِيٍّ وَأَبِي الدَّرْدَاءِ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي أُمَامَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ أَجْمَعِينَ، كُلُّهُمْ يُحَدِّثُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنَّهُ قَالَ: [٢] «مَنْ أَرْسَلَ نَفَقَةً فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَأَقَامَ فِي بَيْتِهِ، [٣] فَلَهُ بِكُلِّ دِرْهَمٍ سَبْعُمِائَةِ دِرْهَمٍ.

**ترجمه:** [١] حضرت علي ﷺ ابودرداء ﷺ ابوهريره ﷺ ابو امامه ﷺ عبد الله ابن عمر ﷺ عبدالله ابن عمر ﷺ جابر ابن عبد الله ﷺ او عمران ابن حصين ﷺ داټول د رسول کريم ﷺ څخه داحديث بيانوي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [٢] کوم سړی چې د الله په لار جهاد کې روپۍ پيسي او اسباب او سامان وليږلو اوپه خپله په خپل کورکي

---

¹) اخرجه ابن ما جه فى السنن کتاب الجهاد/باب فضل النفقة فى سبيل الله تعالى (رقم-٢٧٦١)

ناست وي [یعنی په جهاد کې په خپله شریك نه شو بلکه په روپو او پیسو او سامان سره یي په جهاد کې مدد وکړو] ③ نو هغه ته به د هر درهم په بدله کې داووه سوه درهمه ثواب حاصلیږي

**حل اللغات:** ① أَرْسَلَ،چا چې د جهاد دپاره اولیږله یعنی خرچ ئې کړه

> ① وَمَنْ غَزَا بِنَفْسِهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَأَنْفَقَ فِي وَجْهِهِ ذَلِكَ ;② فَلَهُ بِكُلِّ دِرْهَمٍ سَبْعُمِائَةِ أَلْفِ دِرْهَمٍ "،③ ثُمَّ تَلَا هَذِهِ الْآيَةَ: ﴿وَاللَّهُ يُضَاعِفُ لِمَنْ يَشَاءُ﴾ [البقرة: ۲۶۱]». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① او کوم سړی چې بنفسِ خود هم جهاد وکړو او په جهاد کې روپۍ پیسي او مال هم خرڅ کی [یعنی جنګ کې خپله هم شریك شو او مالي مدد یي هم وکړو] ② نو هغه ته به د هر درهم په بدله کې د اووه لاک درهم ثواب حاصلیږي [ځکه چې هغه خپل نفس هم مشقت کې مبتلا کی او خپل مال یي هم خرڅ کی] ③ بیا حضورﷺ دا آیت تلاوت کړو وَاللَّهُ يُضَاعِفُ لِمَنْ يَشَاءُ یعنی الله ﷻ چې چاته غواړي د هغه ثواب کې نوره اضافه کوي

**تسهیلات:**

**قوله:** فَلَهُ بِكُلِّ دِرْهَمٍ سَبْعُمِائَةِ دِرْهَمٍ:

**في سبیل الله کښې یو په اووه سوه ثواب ملاویدل:** دې نه وړاندې حدیث نمبر (۳۷۹۹) اوحدیث نمبر (۳۸۳۶) کښې داخبره ذکر ده چه جهادفی سبیل الله کښې دَ یوې اوښې بدله کښې به اووه سوه اوښې ملاویږی او په دنیاکښې دَ یودرهم خرچ کولوپه بدله کښې په قیامت کښې اووه سوه درهم ملاویږی په زیربحث حدیث کښې هم دَدې تذکره ده

**د شرکت په اعتبار سره مجاهدینو دوه قسمونه:**

① هغه سړې دې چه مجاهدینو ته پیسې لیږی مګر پخپله په کورکښې ناست دې په جهادکښې شریك نه دې ده ته به دَ یودرهم په بدله کښې اووه سوه ملاویږی

② هغه سړې دې چه پخپله هم په جهادکښې شریك دې او په دغه لار کښې پیسه هم خرچ کوی نو په زیربحث حدیث کښې دی چه ده ته به دَ یودرهم په عوض اووه لاکهه درهم ملاویږی. اوس دلته هم دواړه کسان جدا جدادی. دَ دواړو په عمل کښې هم فرق دې اود دواړو اجر اوثواب کښې هم فرق دې لهذا دواړه جدا جدا کیخودل پکاردی

**[۲۸۵۸] د شهیدانو اوو قسمونه**

> ۳۸۵۸—[۴۰] ([1]) ① وَعَنْ فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ② " «الشُّهَدَاءُ أَرْبَعَةٌ: رَجُلٌ مُؤْمِنٌ جَيِّدُ الْإِيمَانِ، ③ لَقِيَ

---

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/ ما جاء فی فضل الشّهداء عند الله (رقم- ١٦٤٤)

الْعَدُوَّ فَصَدَقَ اللّٰهَ حَتّٰى قُتِلَ ;[۴] فَذٰلِكَ الَّذِي يَرْفَعُ النَّاسُ إِلَيْهِ أَعْيُنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ هٰكَذَا" [۵] وَرَفَعَ رَأْسَهُ حَتّٰى سَقَطَتْ قَلَنْسُوَتُهُ، [٦] فَمَا أَدْرِي أَقَلَنْسُوَةَ عُمَرَ أَرَادَ، أَمْ قَلَنْسُوَةَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-

**ترجمه:** [۱] او فضاله ابن عبيد وايي ما د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه څخه واوريدل وايي ما د رسول كريم ﷺ څخه واوريدل [۲] چې شهيد په څلور قسمه وي يو خو هغه سړی چې كامل الايمان مسلمان وو[۳] او هركله چې د دښمن سره مقابله وشوه نو هغه الله تعالیٰ ته په رښتيا وښودل تردي چې جنګ كولو كې قتل شو[۴] نو دا هغه سړی دی چې هغه طرف ته به د قيامت په ورځ خلق داسې سر پورته كولو سره ګوري [۵] په دې ويلو هغه خپل سر پورته كې تردي چې د هغه خولۍ ولويده [٦] د حديث راوي اچې روايت يې حضرت فضاله رضي الله عنه څخه نقل كړي دی] وايي ماته معلومه نه ده چې د حضرت فضاله مراد د چا ټوپي وه [يعنی هغه دا واضحه نه كړه چې حضرت عمر رضي الله عنه حديث بيانولو وخت د حضور ﷺ په شان سر پورته كولو سره وښودل نو] د هغوی ټوپي ولويده يا [هغوی د روايت حديث په وخت دا وښودل چې] د نبي كريم ﷺ ټوپي مباركه ولويده [بهرحال حاصل داچې د قيامت په ورځ به داسړی دومره عالي مرتبه وي چې خلق به هغه طرف ته سرپورته كولو سره ګوري]

**حل اللغات:** ①جَيِّدُ: ډيرښه، بهترين. ②قَلَنْسُوَةٌ: ټوپۍ

[۱] قَالَ: " وَرَجُلٌ مُؤْمِنٌ جَيِّدُ الْإِيمَانِ، لَقِيَ الْعَدُوَّ، [۲] كَأَنَّمَا ضُرِبَ جِلْدُهُ بِشَوْكِ طَلْحٍ، مِنَ الْجُبْنِ، [۳] أَتَاهُ سَهْمٌ غَرْبٌ فَقَتَلَهُ، فَهُوَ فِي الدَّرَجَةِ الثَّانِيَةِ. [۴] وَرَجُلٌ مُؤْمِنٌ خَلَطَ عَمَلًا صَالِحًا وَآخَرَ سَيِّئًا، [۵] لَقِيَ الْعَدُوَّ فَصَدَقَ اللّٰهَ حَتّٰى قُتِلَ ;[٦] فَذٰلِكَ فِي الدَّرَجَةِ الثَّالِثَةِ. [۷] وَرَجُلٌ مُؤْمِنٌ أَسْرَفَ عَلٰى نَفْسِهِ، لَقِيَ الْعَدُوَّ، [۸] فَصَدَقَ اللّٰهَ حَتّٰى قُتِلَ: فَذَاكَ فِي الدَّرَجَةِ الرَّابِعَةِ» ". [۹] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] بيا حضور ﷺ وفرمايل او دويم هغه سړی چې جيد الايمان مومن وو او كوم وخت چې دښمن سره مقابله وشوه [۲] نو هغه د خپل بزدلی په وجه داسې په نظر راغلو لكه چې د هغه په بدن كې د آزغني وني ازغی وي ايعنی دی د هغه سړي د خوف د وجې څخه په رپيدو شو او ددهشت څخه په بدن د ويښتو د اودريدلو كيفيت يې كنايةً بيان كړي دی] [۳] او بيا يوتير راتلو سره باندې هغه ولګيدلو چې د هغه چلونكی نامعلوم وو او هغه تير هغه د مرګ په ګودر خكته كې نو داسړی د مخكښي په نسب د دويمي درجې دی [۴] او دريم سړی هغه مومن وو چې هغه ښه ښه او څه خراب اعمال كړي وه [۵] هركله چې دښمن سره مقابله وشوه نو هغه الله تعالیٰ په رښتيا وښودلو تردې چې په جنګ كولو كې قتل شو[٦] نو داسړی د دريمي درجې دی [۷] او څلورم سړی هغه مسلمان دی چې هغه په خپل ځان ډېر اسراف كړي وو يعنی هغه ډير ګناهونه كړي وه او كله چې د دښمن سره مقابله وشوه[۸] نو هغه الله تعالیٰ په رښتيا وښودلو تردې چې جنګ كولو كې ووژل شو نو

داسې د څلورمې درجې دی⑨ امام ترمذي دا روايت نقل کړي دی او ويلي يې دي چې داحديث حسن غريب دی

**حل اللغات:** ③جِلْدَ: څرمن. ④بِشَوْكِ طَلْحٍ: دکيکروغيره ازغی داره ونه. ⑤الْجُبْنِ: بزدلی. ⑥أَتَاهُ: چه راشی يا اولگی په هغه باندې ⑦ سَهْمٌ: غشې. ⑧غَرْبٌ: هغه غشې چې د نامعلومه طرف څخه راخوشې شوې وی

**تسهيلات: قوله: فَصَدَقَ اللهَ:**

**د جملې دوه مطلبه:** ①داصيغه دَ تخفيف سره لوستلې شوې ده کومه چه مشهوره ده په دې صورت کښې به دَدې مطلب دا وی چه دې مجاهد په خپله بهادرئی اوتکړه توب سره هغه وعده پوره کړه کومه وعده چه هغه الله تعالی سره کړې وه تردې چه هغه شهيد کړې شو. قال الله تعالى ﴿ رِجَالٌ صَدَقُوْا مَا عَاهَدُوا اللهَ عَلَيْهِ ﴾ [سورت احزاب: ٢٣].

② علامه طيبی رحمه الله دَدې جملې مطلب داسې بيان کړې دې چه الله تعالی دَ مجاهدين فی سبيل الله صفت داسې بيان کړې دې چه هغوی صبرکونکی وی اوپه اخلاص سره دَ ثواب په نيت جنگيدونکی وی کله چه دغه سړی په خپل فعل سره په خپله ثابت قدمئی اواخلاص سره جنگيدل ثابت کړل نولکه چه هغه په خپل کردار سره دَ الله تعالی قول ربنتيا ثابت کړو "صدق الله حتى قتل" هم دغه مطلب دې [الکاشف: ٧/٣٧٣]

**قوله: وَرَفَعَ رَأْسَهُ حَتَّى سَقَطَتْ قَلَنْسُوَتُهُ:**

**دحديث څخه د دوو خبرو معلوميدل:** ①حضرت عمر رضی الله عنه يا حضورپاک دَ سهيد اوچت درجات خودلو دَپاره دَ آسمان طرف ته دومره سر اوچت کړو چه دَ هغوی ټوپئی شاته پريوتله دَدې حديث نه دَ شهيد دَ اوچتو درجاتو چه يوطرف ته ثبوت ملاويږی

② بل طرف ته دَحضورپاک ټوپئی مبارکه په سرکول هم ثابتيږی

**قوله: أَفَمَا أَدْرِي أَقَلَنْسُوَةَ عُمَرَ أَرَادَ**

**په قلنسوة کښې دوه احتمالات:** ① حضرت فضاله دَحضرت عمر رضی الله عنه دَ ټوپئی پريوتل اووئيل

② دَ نبی کريم صلی الله عليه وسلم دَ ټوپئی پريوتلو خبره ئی اوکړه په ظاهره دکلام نه معلوميږی چه دَ حضورپاک ټوپئی مراد ده ځکه چه هم دغه متبادر ده

**قوله: کَأَنَّمَا ضُرِبَ جِلْدُهُ بِشَوْكِ طَلْحٍ، مِنَ الْجُبْنِ:**

**د بزدلۍ تشبيه:** شوك ازغی ته وائی اوطلح کيکر وغيره ازغې داره ونې ته وائی په کوم کښې چه لوئی لوئی ازغی وی. يعنی دَ بزدلئی دَ وجې نه دَهغوی غونې زيږ شی لکه چه په هغه کښې ازغی ننوځی

**په جهاد کښې د شرکت په اعتبار سره څلور قسمه مسلمانان:**

① جيد الايمان بهادر دې ② جيد الايمان بزدل دې

③ لږ ګناهګار دی ④ مکمل ګناهګار دی

تول شهيدان دی معلومه شوه چه ګناهګار سړې هم جهاد کښې حصه اخستې شی

**[٢٨٥٩] په جهاد کښې د منافق د قتل حکم**

٢٨٥٩—[٤٧] ()[١] عَنْ عُتْبَةَ بْنِ عَبْدٍ السُّلَمِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[٢] «الْقَتْلَى ثَلَاثَةٌ: مُؤْمِنٌ جَاهَدَ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ،[٣] فَإِذَا لَقِيَ الْعَدُوَّ قَاتَلَ حَتَّى يُقْتَلَ ". [٤] قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِيهِ: [٥] " فَذَلِكَ الشَّهِيدُ الْمُمْتَحَنُ فِي خَيْمَةِ اللَّهِ تَحْتَ عَرْشِهِ،[٦] لَا يَفْضُلُهُ النَّبِيُّونَ إِلَّا بِدَرَجَةِ النُّبُوَّةِ. [٧] وَمُؤْمِنٌ خَلَطَ عَمَلًا صَالِحًا وَآخَرَ سَيِّئًا، [٨] جَاهَدَ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، إِذَا لَقِيَ الْعَدُوَّ قَاتَلَ حَتَّى يُقْتَلَ "

**ترجمه:** [١] حضرت عتبه ﷛ ابن عبد السلمي وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [٢] کوم خلق چې په جهاد کې ووژل شي هغه په دري قسمه وي ① يو خو هغه کامل مؤمن چې هغه د الله په لار کې خپل ځان او د خپل مال په ذريعه جهاد وکړو[٣] د دښمن سره چې د هغه مقابله شوه نو هغه پوره شجاعت او بهادري سره جهادوکی تردي چې ووژل شو[٤] نبي کريم ﷺ د دي سړي په باره کې وفرمايل [٥] دا هغه شهيد دی چې د جهاد مشقتونو او مصيبتونو باندې د صبر کولو آزمائش کې مبتلا شو دا شهيد به په آخرت کې دالله په خيمه کې دالله ترعرش لاندي وي [٦] نو هغه ته به د حق تعالی کمال قُرب او د هغه په حضور کې خاص درجه حاصله وي او انبياء به ځني صرف درجه په نبوت کې زيات وي [٧] او ② دويم هغه مؤمن دی چې د هغه اعمال ګډوډ وي هغه څه نيك عمل کړي وي او څه بد عمل [٨] هغه د خپل ځان او مال په ذريعه د الله په لار کې جهاد وکړو او هرکله چې دښمن سره مقابله وشوه نو پوره بهادري او شجاعت سره وجنګيدلو تردي چې قتل شو

**حل اللغات:** ① الْمُمْتَحَنُ: دَاسم مفعول صيغه ده په ازميښت او امتحان کښې دَ اچولو په معنی کښې دې ② خَيْمَةِ اللَّهِ: دالله خيمه ،کمال قرب الهی ته اشاره ده،

[١] قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِيهِ: " مُمَصْمِصَةٌ مَحَتْ ذُنُوبَهُ وَخَطَايَاهُ،[٢] إِنَّ السَّيْفَ مَحَّاءٌ لِلْخَطَايَا،[٣] وَأُدْخِلَ مِنْ أَيِّ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ شَاءَ. [٤] وَمُنَافِقٌ جَاهَدَ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ،[٥] فَإِذَا لَقِيَ الْعَدُوَّ قَاتَلَ حَتَّى يُقْتَلَ ; [٦] فَذَاكَ فِي النَّارِ، إِنَّ السَّيْفَ لَا يَمْحُو النِّفَاقَ» ". رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] نبي کريم ﷺ د دي سړي په باره کې وفرمايل چې شهادت يا خصلت پاکونکی دی چې د هغه ګناهونه او خطاګاني رژوي [٢] او په دي کې شك نشته چې توره خطاګاني

[١]) اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحديث ٢٤١١

ډیري زیاتي رژوي ۳ دا هغه شهید دی چې کومي دروازي څخه تلل غواړي په جنت کې به داخلیږي ۴ او ۳ دریم سړی منافق دی اګر چې هغه د خپل ځان او مال په ذریعه جهاد وکړو ۵ او هرکله چې د دښمن سره مقابل شو نو ښه وجنګیدلو تردي چې قتل شو ۶ لیکن دا سړی به دوزخ ته ځي ځکه چې توره نفاق نه رژوي. (دارمي)

**حل اللغات:** ۳ مُمَصْمِصَةٌ: د مدحرجة په وزن باندي دې، صفائی. طهارت او پاکوالی. ۴ مَحَتْ ذُنُوبَهُ: چه رژوي ګناهونه دهغه. ۵ مَحَّاءٌ: رژونکې او ورانونکې

**تسهیلات:**

**قوله:** فَذَلِكَ الشَّهِيدُ الْمُمْتَحَنُ فِي خَيْمَةِ اللهِ تَحْتَ عَرْشِهِ

**د مذکوره لفظ مفهوم:** دَدې دامعنی هم کیدې شي چه الله تعالی دَدې عظیم شهید زړه دَ ایمان اوتقوی دَپاره کولاؤکړو او ایمان اوتقوی باندې دَهغه شرح صدر اوشو لکه چه په آیت کښې دی ﴿أُولَئِكَ الَّذِينَ امْتَحَنَ اللَّهُ قُلُوبَهُمْ لِلتَّقْوَىٰ﴾ [سورة الحجرات:۳] داخلق به دَ عرش لاندې دَالله تعالی په ورکړې شوې خیمه کښې وی

**قوله:** مُمَصْمِصَةٌ مَحَتْ ذُنُوبَهُ وَخَطَايَاهُ

**د ممصمصة معنی:** په وزن باندې دَ صفائی طهارت اودَ پاکوالی په معنی کښې دې یعنی دا شهادت دَ ګناهونونه سړې پاك اوصفاکونکې دې

**د ممصمصة په موصوف کښې دوه احتمالات:** ۱ دا صفت دې اودَدې موصوف لفظ "شهادة" دې أی شهادة ممصمصة

۲ دا صفت دې اودَدې موصوف لفظ خصلة دې خصلة ممصمصة،

**قوله:** فَذَاكَ فِي النَّارِ

**د منافق مجاهد جنت ته عدم دخول:** یعنی منافق سره دَدې چه جهاد اوکړی ښه اوجنګیږی اودنیاوی شهید هم جوړشی په خپلو کپړو کښې دَ شهید په شان بغیردَ غسل نه دفن هم شی بیابه هم دَجنت په ځائی دوزخ ته ځي ځکه چه توره ګناهونه وینځی مګر غلطه عقیده بدلولې نه شی

**[۲۸۶۰] په یوه شپه څوکی باندي د جنت حکم**

۲۸۶۰-[۴۲] (۱) ۱ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: «خَرَجَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي جِنَازَةِ رَجُلٍ، ۲ فَلَمَّا وُضِعَ قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: لَا تُصَلِّ عَلَيْهَا يَا رَسُولَ اللهِ! ۳ فَإِنَّهُ رَجُلٌ فَاجِرٌ، ۴ فَالْتَفَتَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِلَى النَّاسِ، ۵ فَقَالَ: هَلْ رَآهُ أَحَدٌ مِنْكُمْ عَلَى عَمَلِ الْإِسْلَامِ؟"

(۱) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۲۴۹۷

**ترجمه:**[۱] ابن عائذ رضي الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ د يو سړي جنازي سره لاړل چې د هغه د جنازي مونځ وكړى[۲] كوم وخت چې جنازه كيښودل شوه نو حضرت عمر ابن خطاب رضي الله عنه عرض اوكړو يا رسول الله![۳] [تاسو د دې جنازي مونځ مه كوئ! ځكه چې دى يوفاسق سړى وو[۴] په دې اوريدو سره حضور ﷺ خلقو طرف ته متوجه شو او وې فرمايل [۵] آيا په تاسو كې يوه داسې د اسلام په څه كاركولو باندې ليدلى دى [يعنى كه په تاسو كې چا دى په خپل ژوند كې څه داسې عمل كولو باندې ليدلى وي چې حقيقي اسلام باندې دلالت كوي نو هغه دې مونږ ته وښايي]

**حل اللغات:** ①فَالْتَفَتَ: نو متوجه شو.

[۱] فَقَالَ رَجُلٌ: نَعَمْ، يَارَسُولَ اللّٰهِ! حَرَسَ لَيْلَةً فِي سَبِيلِ اللّٰهِ،[۲] فَصَلَّى عَلَيْهِ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَحَثَا عَلَيْهِ التُّرَابَ،[۳] وَقَالَ: " أَصْحَابُكَ يَظُنُّونَ أَنَّكَ مِنْ أَهْلِ النَّارِ،[۴] وَأَنَا أَشْهَدُ أَنَّكَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ " [۵] وَقَالَ: " يَا عُمَرُ! إِنَّكَ لَا تُسْأَلُ عَنْ أَعْمَالِ النَّاسِ ; وَلَكِنْ تُسْأَلُ عَنِ الْفِطْرَةِ» ".[۶] رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:**[۱] يو سړي عرض اوكړو هو يا رسول الله! دې سړي يوه شپه د الله په لار [يعنى جهاد] كې د پاسباني خدمت انجام كړي دى[۲] په دې اوريدو سره حضور د هغه د جنازي مونځ وكړ او دفن كولو څخه وروسته د هغه په قبر يې خاوري واچولي[۳] او ګويا مړي مخاطب كولو سره يې وفرمايل ستا د ملګرو خو دا ګمان دى چې ته دوزخي يې [۴] او زه ددې خبرې شاهدي وركوم چې ته جنتي يې[۵] اوبيا يې حضرت عمر رضي الله عنه ته وفرمايل اې عمر رضي الله عنه! ستا څخه به دخلقو د اعمالوپه باره كې پوښتنه كيږي بلكه ستا څخه به د اسلام د دين په باره كې پوښتنه كيږي.[۶] (دا روايت بيهقي په شعب الايمان كې نقل كړي دى)

**حل اللغات:** ②حَرَسَ: نګهباني او نګراني ئې كړې وه. ③وَحَثَا: وائې چولې (خاورې). ④الْفِطْرَةِ: فطرت (اسلام).

**تسهيلات:**

**قوله:** هَلْ رَآهُ أَحَدٌ مِنْكُمْ عَلَى عَمَلِ الْإِسْلَامِ؟

**په دنياوي احكامو كښې په ظاهره فيصله كول:** يعنى چادغه سړې په داسې عمل باندې ليدلې دې چه دهغه په حقيقى اسلام باندې دلالت كوى يوسړى اووئيل چه ما دې جهادفى سبيل الله كښې يوځل په څوكيدارئى ليدلې وو دې اوريدوسره حضورپاك د جنازې مونځ وركړو ځكه چه په ايمان اواسلام باندې دجهاديوعمل دلالت اوكړو د غيب معامله الله تعالى سره ده. مړې د مرګ نه پس په خو الفاظوسره يادول پكاردى حكم لګول دبنده كارنه دې. په دې وجه حضورپاك حضرت عمر رضي الله عنه ته تنبيه وركړه اودغيب په معامله باندې دحكم لګولونه ئى منع كړو چه نفس اسلام ته ګوره. په قيامت كښې به د

فطرت اسلام سوال کيږی دَ پتو اعمالوپه لتونکي مه پريوځه. بياحضورپاك دا سړي مخاطب کړو او ورته ئی اوفرمائيل چه خلق ستاد‌َدوزخی کيدو خيال کوی ليکن زه ګواهي ورکوم چه ته جنتی ئی. يوخوداَسلام وجه ده چه ته مسلمان ئی بل دَ جهادعمل دي چه يوعظيم عمل دي. سبحان الله جهادخومره لوئی عمل دي چه بې عمل هم دلته باعمل دي.

# [۱] بَابُ إِعْدَادِ آلَةِ الْجِهَادِ

## دَ جهاد دَ سامان دَ تيارلی بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه أحد وثلاثون حديثاً مشتملة على ثمانی مسائل:**

① كون الرمي من آلات الجهاد والترغيب فيه: ۱، ۲، ۳، ۴، ۵، ۱۲، ۱۳.

② كون الخيل من آلات الجهاد وأقسامها وفضيلتها: ۶، ۷، ۸، ۹، ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۲۱، ۳۰.

③ المسابقة فى الخيل والإبل و البغل: ۱۰، ۱۱، ۱۴، ۱۵، ۱۶.

④ النهى عن توليد البغال: ۲۲، ۲۳.

⑤ حكم لمع السيف بالذهب والفضة: ۲۴، ۲۵.

⑥ كون الدروع من آلات الجهاد: ۲۶.

⑦ كون القوس والرماح من آلات الجهاد: ۳۱.

⑧ لون الراية في الجهاد: ۲۷، ۲۸، ۲۹.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [۳۸٦۱] د جهاد د تيارى حکم

۳۸٦۱-[۱] ([1]) [۱] عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ يَقُولُ: [۳] " ﴿وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ﴾ [الأنفال: ٦٠] [۴] أَلَا إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ، أَلَا إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ، أَلَا إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت عقبه ابن عامر ﷺ وايي [۲] ما د رسول کريم ﷺ څخه په منبر دا واوريدل [۳] او تاسو کافرو سره جنګ کولو د پاره د خپل طاقت او قوت کوم څيز هم چې

[1] ) اخرجه مسلم فى كتاب الإمارة/باب فضل الرّمى والحثّ عليه، وذمّ من علمه ثمّ نسيه (رقم-١٦٧ - (١٩١٧) والترمذى فى كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ومن سورة الأنفال (رقم-٣٠٨٣)و ابن ماجه فى كتاب الجهاد/باب الرّمى فى سبيل الله (رقم-٢٨١٣) واحمد فى المسند: ١٥٧/٤

تیارولی او فراهم کولی شي وکړي۞ یادلرئ تیر اندازي قوت دی یاد لرئ تیر اندازي قوت دی یادلرئ تیر اندازي قوت دی (مسلم)

**حل اللغات:** ①الرَّمْيُ: غشی ویشتل،

**تسهیلات:**

**قوله:** وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ

**هرمسلمان د جهاد په تیارۍ مکلف کیدل:** إعداد دَ سامان وغیره دَتیاری په معنی کښې دې صاحب مشکوة داعنوان هم دَدې آیت په رڼاکښې قائم کړې دې شاه اسماعیل شهید رحمه الله دَدې آیت په تفسیرکښې لیکلی دی چه په وأعدوا کښې دَامرچه کومه صیغه ده ټول مسلمانان دَدې مخاطب دی اوپه هرمسلمان باندې فرض اولا زم دی چه هغه دې په ذاتي توګه باندې دَ جهاد تیاری اوکړی اوخپل یوقوت دې پیدا کړی اودا قوت سره دَدې چه دَ پوره دنیا دَ قوت برابرنه وی بیاهم دَخپل طاقت مطابق قوت پیدا کول ضروری دی

**په نوئ ټیکنالوجۍ کښې د ترقۍ کولو ضرورت:** دَ حضورپاك په زمانه کښې په اسونو سورلی، شمشیرزنی، نیزه بازی او غشی ویشتل وغیره سامان دَجهاد او مروج وسله وه. نن ټوپك توپ راکټ لانچر هوائی جهاز جیټ جهاز ټینکونه توپونه بکتربند ګاډی کشتئی بمونه ایټم بم اودکروز میزائل وغیره زمانه ده لهذا په مسلمانانو باندې لا زم دی چه دا ټولې مروج وسلې دَښه نه ښه تیارکړی. فتح اوظفرخودَ الله تعالی په لاس کښې دې لیکن الله تعالی پخپله مسلمانانوته دَدې اسبابو دَاستعمال حکم ورکړې دې په اسبابو باندې توکل ناجائزدې دَ اسبابو استعمال خودَ اسلام حکم دې ګنی اسباب یکسر مسترد کولو سره سړې په فرقه ضاله جبریه کښې داخلیږی.

**قوله:** أَلَا إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ

**هرې زمانې سره مناسب وسله حاصلول:** داس لفظ عجیبه جامع لفظ دې په دې کښې دتورې وار هم داخل دې په کاڼړی ویشتل په غشی ویشتل دَ توپ ګوله ویشتل بم غورزول راکټ فائرکول ټول دَرمی په مفهوم کښې داخل دی. [الکاشف: ۷/۳۷۶]

**[۳۸٦۲] د روم د فتحې زیرې**

٣٨٦٢—[٢] (١)① وَعَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ②«سَتُفْتَحُ عَلَيْكُمُ الرُّومُ وَيَكْفِيكُمُ اللهُ ;③فَلَا يَعْجِزُ أَحَدُكُمْ أَنْ يَلْهُوَ بِأَسْهُمِهِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

(١) اخرجه مسلم فی کتاب الإمارة/باب فضل الرّمی والحثّ علیه. وذمّ من علمه ثمّ نسیه (رقم-١٦٨ - (١٩١٨) والترمذی فی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب ومن سورة الأنفال (رقم-٣٠٨٣) واحمد فی المسند: ٤/١٥٧

**ترجمه:** [۱] حضرت عقبه رضي الله عنه وايي چې ما درسول كريم ﷺ څخه واوريدل [۲] ډير نزدې ستاسو د پاره به روم فتح شي او الله تعالى به ستاسو د اهل روم د شر انگيزو څخه كفايت وكړي [۳] نو خبردار! چې په تاسو كې هيڅ سړى خپل تيرونو سره لوبو كولو كې سستي ونه كړي (مسلم)

**حل اللغات:** ① أَنْ يَلْهُوَ: چه لوبې كوى، ② بِأَسْهُمِهِ: خپلو غشو سره

**تسهيلات:**

**قوله:** سَتُفْتَحُ عَلَيْكُمُ الرُّومُ:

**د ايتم بم اومزائيلومقابله كښې ځان وړاندې كول:** يعنې دَ شام اوروم خلق په غشو ويشتلو كښې ډيرماهر دى تاسو به دَهغوى مقابله په غشو ويشتلوسره كوئى لهذا د غشو ويشتلو هنربنه زده كړئ اوكله چه الله تعالى تاسوته په دغه خلقوباندې فتح دركړي نوداسې مه كوئى چه دَ وسلې شغل دَدې وجې نه پريږدئى چه اوس خوشام فتح شوې دې اوس دَ وسلې څه ضرورت دې بلكه دَ وسلې شغل دَهميشه دَپاره داسې جارى اوساتئى لكه چه داستاسو دَ لوبوڅه حصه ده. ځكه چه كوم يووخت هم دَدې ضرورت پېښيدې شى مسلمانانوله سوچ كول پكاردى چه هغوى نن صبادَجهاد په حوالې سره څنگه په غفلت كښې پريوتى دى. توره ئې غيبه كړې شوه او په لاس كښې دَ ذلت بيټ واخستلو

**[۲۸۶۴] د تيرا ندازئ اهميت**

> ۳۸۴۳ـ[۳] ()[۱] وَعَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۲] «مَنْ عَلِمَ الرَّمْيَ، ثُمَّ تَرَكَهُ، [۳] فَلَيْسَ مِنَّا، أَوْقَدْ عَصَى». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت عقبه رضي الله عنه وايي چې ما د رسول كريم ﷺ څخه دا واوريدل [۲] چې كوم سړى تير آندازي زده كړه او بيايي پريښودله [۳] نو هغه زمونږ څخه نه دى يعنى زمونږ په طريقو تلونكو كې شامل نه دى يا داچي هغه نافرماني وكړه (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَلَيْسَ مِنَّا:

**د ليس منا په مفهوم كښې اقوال:** ① هغه زمونږنه نه دې ددې مطلب دا دې چه هغه مونږ ته نزدې نه دې او دا د يو داسې كس په شان دې د كوم شمار چه زمونږ په جماعت كښې نه كيږى

② مطلب ئې دې چه دا دهغه جماعت نه نه دې كوم نه چه مونږ راضې نه يو.

[۱] اخرجه مسلم فى كتاب الإمارة/باب فضل الرّمى والحثّ عليه، وذمّ من علمه ثمّ نسيه (رقم-۱۶۹ - (۱۹۱۹)) وابن ماجه فى كتاب الجهاد/باب الرّمى فى سبيل الله (رقم-۲۸۱۴)

**دجنگی مهارت زده کول او بیا د هغې د هیرولوحکم:** ددې نه معلومه شوه چه کوم کس تیراندازی ازدکړی او بیا یې پریږدی نو دا ډیر بدکار دې او کوم کس چه تیراندازی نه وه ازدکړې نو هغه د دې حدیث په زمره کښې شامل نه دې.لیکن د کوم کس په زړه کښې چه د جهاد جزبه هم پیدا نه شی نو دا کس ددې حدیث مصداق جوړیږی چه د کوم کس په زړه کښې د جهاد جذبه هم پیدا نه شی نو هغه د منافقت په مرګ مړشو ، البته کوم کس چه تیراندازی ازدکړه او بیا د سستی دوجهې نه پریښودله نو ددې مطلب دا شو چه ده د استهزا په توګه دا کار وکړو نو دا د کفران نعمت مترادف دې.

**[۲۸٦٤] د تیر اندازئ عملی ترغیب**

۳۸۶۳-[۳] ()① وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «خَرَجَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَى قَوْمٍ مِنْ أَسْلَمَ ③ يَتَنَاضَلُونَ بِالسُّوقِ. فَقَالَ: ④ "ارْمُوا بَنِي إِسْمَاعِيلَ! فَإِنَّ أَبَاكُمْ كَانَ رَامِيًا ⑤ وَأَنَا مَعَ بَنِي فُلَانٍ" لِأَحَدِ الْفَرِيقَيْنِ. ⑥ فَأَمْسَكُوا بِأَيْدِيهِمْ، فَقَالَ: "مَا لَكُمْ؟" ⑦ قَالُوا: وَكَيْفَ نَرْمِي وَأَنْتَ مَعَ بَنِي فُلَانٍ؟ ⑧ قَالَ: "ارْمُوا وَأَنَا مَعَكُمْ كُلِّكُمْ"». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① او سلمه ﷛ بن اکوع وایي ② یوه ورځ رسول کریم ﷺ د بني اسلم یوی قبیلي ته تشریف راوړو③ او هغه خلقو هغه وخت بازار کې په خپل مینځ د تیر آندازي مشق کوی حضور ﷺ [چې په دي حالت کې هغوی ولیدل نو ډیر خوشحاله شو او] وي فرمایل④ اې د اسماعیل اولاده یعنی اې عربو تیر اندازي کوئ ځکه چې ستاسو پلار حضرت اسماعیل ﵇ تیر انداز وو⑤ او زه هم فلاني قبیلي سره یم یعنی هغه وخت چې د بني اسلم دوو فریقو په خپل مینځ کې د تیر آندازي مشق کوی حضور ﷺ په هغوی کې د یونوم اخستو سره وفرمایل چې دي مشق کې د دې فریق په طرف یم⑥ لیکن دویم فریق خپل لاس اونیولو [یعنی حضور ﷺ چې د یوفریق طرف ته شو نو مقابل فریق تیر اندازی ځنه خپل لاس رابنکي] حضور ﷺ ورته وفرمایل تاسو ته څه وشو [یعنی تاسو تیرویشتل ولي بند کړل] ⑦ هغوی اوویل مونږ په دي صورت کې تیر آندازي څنګه کولی شو هرکله چې تاسو فلانی فریق سره یي [یعنی مونږ دا نه شوبرداشت کولي چې تاسو مونږ پریښودلو سره دویم فریق طرف ته شي]⑧ حضور ﷺ وفرمایل ښه ده تاسو تیر آندازي کوئ زه تاسو ټولو سره یم (بخاري)

**حل اللغات:** ①يَتَنَاضَلُونَ: د تیراندازئ مشق ئې کولو ، په غشو ئې نښه ویشتله ②بِالسُّوقِ.بعضې حضراتو فرمائیلی دی چه سوق‌په مدینه منوره کښې د یو خاص ځائی نوم دې.

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب نسبة الیمن إلى إسماعیل ، منهم أسلم بن أفصی بن حارثة بن عمرو بن عامر من خزاعة، (رقم-۳۵۰۷)

**تسهيلات: قوله:** "ارْمُوا":

**د رمې د حکم کولو مقصد:** یعنی په تیراندازی باندې همیشه والې وکړی.

**قوله:** فَإِنَّ أَبَاكُمْ:

**د اب څخه مراد:** ددې نه مراد حضرت اسماعیل علیه السلام دې، چه ستاسو پلار په تیراندازی کښې کمال لرلو، تاسو دهغه اولا د ئي، ددې وجهې نه تاسو دخپل پلار په میراث کښې کمال حاصل کړئ.

**[۲۸٦۵] د حضرت ابوطلحه ﷺ تیر اندازي**

۳۸٦۵-[۵] (¹) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «كَانَ أَبُو طَلْحَةَ يَتَتَرَّسُ مَعَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِتُرْسٍ وَاحِدٍ، [۳] وَكَانَ أَبُو طَلْحَةَ حَسَنَ الرَّمْيِ، [۴] فَكَانَ إِذَا رَمَى تَشَرَّفَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَيَنْظُرُ إِلَى مَوْضِعِ نَبْلِهِ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت انس ﷺ وایي [۲] ابوطلحه ﷺ به په میدان جنګ کې د یوډهال په ذریعه د حضور ﷺ بچاو کوی [۳] ابوطلحه ﷺ یو ښه تیر آنداز وو [۴] هغه به دښمنانو باندې لوی مهارت او چابکدستي سره تیر اندازي هم کوله او د حضور ﷺ حفاظت به یې هم کوی هغه چې به تیر ویشتلي نو نبي کریم ﷺ به کتل چې تیر کوم ځای ولویدی او چرته لګیدلی دی. (بخاري)

**حل اللغات:** ① يَتَتَرَّسُ: په ډهال سره ئې حفاظت کولو، ② حَسَنَ الرَّمْيِ: ښه غشی ویشتونکې. ماهر تیر انداز. ③ تَشَرَّفَ: غور سره به ئې کتل، وراوچتیدو سره کتل. ④ نَبْلِهِ: د غشی د لګیدلو او پریوتلو ځائې.

**تسهيلات:**

**قوله:** بِتُرْسٍ وَاحِدٍ"

**په یو ډال سره د حفاظت کولو مقصود:** یعنی دَ یوډهال په ذریعه به ئی دَحضورپاک بچاوَ کولو دوه ډهالونه نه وو. دا دَ ډیر نیزدیکت طرف ته اشاره ده چه ورسره ورسره وو.

**[۲۸٦٦] د آسونو فضیلت**

۳۸٦٦-[٦] (²) [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] " «الْبَرَكَةُ فِي نَوَاصِي الْخَيْلِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

¹) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسیر/باب المجنّ ومن يتّرس بترس صاحبه (رقم-۲۹۰٤)واحمد فی المسند:۳/۲۸٦

²) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسیر/باب: الخیل معقود فی نواصیها الخیر إلی یوم القیامة (رقم-۲۸۵۱) ومسلم فی کتاب الإمارة/باب الخیل فی نواصیها الخیر إلی یوم القیامة (رقم-۱۰۰ - (۱۸۷٤) والنسائی فی کتاب الخیل/باب: برکة الخیل (رقم-۳۵۷۱) واحمد فی المسند: ۳/۱۱٤

**ترجمه:** ① حضرت انس ﷺ وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل ② د آسونو په تندوكې بركت دى (بخاري مسلم)

**تسهيلات: قوله:** اَلْبَرَكَةُ فِي نَوَاصِي الْخَيْلِ:

**په جهاد كښې د اسونود كردار عظمت:** أي في ذواتهم. يعنى تنندى نه مراد ذات دې. مطلب دا دې چه الله تعالى د جهادى اسونو په وښتو كښې يو خاص قسم بركت اچولې دې خكه چه د اسونو په ذريعه جهاد كولې شي، په كوم كښې چه د دنيا او آخرت گټه ده. ددې وجهې نه الله تعالى خاص طور باندې د اسونو ذكر كړې دې كما في القرآن، وأعدوا لهم ما استطعتم من قوة ومن رباط الخيل. اګرچه په قوت كښې اس هم شامل وؤ مګر بيا ئې هم په خصوصى طور باندې ددې ذكر د عظمت په وجه اوكړو.

**[۲۸٦۷] اسونو سره د خير رفاقت**

٣٨٦٧ - [٤] (١) ① وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَلْوِي نَاصِيَةَ فَرَسٍ بِإِصْبَعِهِ، يَقُولُ: ③ "الْخَيْلُ مَعْقُودٌ بِنَوَاصِيهَا الْخَيْرُ إِلَى الْقِيَامَةِ: ④ الْأَجْرُ وَالْغَنِيمَةُ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت جرير ابن عبد الله بجلي ﷺ وايي ② چې رسول كريم ﷺ د يو اس د تندي وېښتو څخه خپلې ګوتې سره ول وركولو او فرمايل يې ③ آسونه هغه ځاروي دى چې د هغوى تندو كې ترقيامته پورې خير او ښېګړه تړل شويده څكه چې د اسونو په ذريعه د جهاد كولو سعادت حاصليږي چې په هغه كې د دنيا او آخرت خير ښېګړه ده ④ اځنګه چې يوه موقع كې وفرمايل شوا چې په جهاد كې د آخرت ثواب حاصليږي او د دنيا مال غنيمت حاصليږي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① يَلْوِي: ول به ئې وركولو. تاوول ئې. ② نَاصِيَةَ: تندې. ③ مَعْقُودٌ: تړلې شوې دې

**تسهيلات:**

**قوله:** اَلْخَيْلُ مَعْقُودٌ بِنَوَاصِيهَا الْخَيْرُ إِلَى الْقِيَامَةِ:

**په اسونو كښې د بركت كيفوهو وجه:** دا دَناصية جمع ده دَ تندى وېښتوته وائى مګرمرادد اسونو ذات دې دَ اسونو په تندوكښې خيراوبركت دَقيامته پورې څكه تړلې شوې دې چه جهادبه دَقيامته پورې قائم وى اودَ جهاد لويه ذريعه اسونه دى نو په اسونوكښې جهاددې او په جهادكښې دَ قيامته پورې دَدين او دَ دنيا ښېګړه ده لهذا په اسونوكښې دا ښېګړه ده

---

(١) اخرجه مسلم في كتاب الإمارة/باب الخيل في نواصيها الخير إلى يوم القيامة (رقم-٩٧ - (١٨٧٢) والنسائي في كتاب الخيل/باب: فتل ناصية الفرس (رقم-٣٥٧٢)

**[۳۸٦۸] دَ جهادی اسونو هر څه تللې کیدل**

۳۸٦۸-[۸] (۱) ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②" «مَنِ احْتَبَسَ فَرَسًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ; ③إِيمَانًا بِاللَّهِ وَتَصْدِيقًا بِوَعْدِهِ; ④فَإِنَّ شِبَعَهُ وَرِيَّهُ، وَرَوْثَهُ، وَبَوْلَهُ فِي مِيزَانِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل ② کوم سړی چې د الله په لار کې کار اخستو د پاره خپل کور کې اس وتړی③ چې په الله ﷻ باندې ایمان راوړي او د هغه وعدې لره رښتني ګڼي ④ نو د هغه آس سیری او سیرابي [یعنی هغه آس چې په دنیا کې څه وخوړل او وڅکل] او د هغه خاشنړه او د هغه متیازې د قیامت د ورځې پورې د هغه سړي د اعمالو ترازو په تله کې تلل کیږي. (بخاري)

**حل اللغات:** ① اِحْتَبَسَ: اوساتی. اوتړی. ② شِبَعَهُ: مړیدل ددې. ③ رِیَّهُ: خړوب کیدل او سیراب کیدل داسونو. ④ رَوْثَهُ: خاشنړه د اسونو ⑤ بَوْلَهُ: متیازې د اسونو.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَإِنَّ شِبَعَهُ وَرِيَّهُ:

دَ خوراك څیزونه "ریَه" دَ څکلوڅیزونه. لکه څنګه چه دَ جهادی اسونو په ساتنه کښې دومره ثواب دې هم دغه شان نن صبا دَ جهاد دَپاره په وسله ساتلو کښې هم ثواب ملاویږی اوکله چه دَ اس دا شان دې نو په دې باندې دَ سوریدونکی جهاد کونکی مجاهد به څه شان وی؟

**[۳۸٦۹] داشکال آس ناخوښي**

۳۸٦۹-[۹] (۲) ①وَعَنْهُ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَكْرَهُ الشِّكَالَ فِي الْخَيْلِ. ②وَالشِّكَالُ: أَنْ يَكُونَ الْفَرَسُ فِي رِجْلِهِ الْيُمْنَى بَيَاضٌ وَفِي يَدِهِ الْيُسْرَى، ③أَوْ فِي يَدِهِ الْيُمْنَى وَرِجْلِهِ الْيُسْرَى. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول کریم ﷺ به آس کې شکال نه خوښولو② او شکال دادې چې د آس ښنه او چپ لاس باندې سفیدي وي③ یا ښي لاس او چپه ښنه باندې سفیدي وي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① الشِّكَالُ: د اس روستنۍ ښی خپه او مخکنۍ ګسه خپه کښې سپینوالی ته وائی، ② الْخَيْلِ: آس.

---

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسّیر/باب من احتبس فرسا " فی سبیل الله لقوله تعالی: {ومن رباط الخیل} [الأنفال: ٦٠](رقم-۲۸۵۳)والنسائی فی کتاب الخیل/باب علف الخیل (رقم-۳۵۸۲) واحمد فی المسند: ۲/ ۳۷٤

(۲) والترمذی فی کتاب الجهاد عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب ما جاء ما یکره من الخیل (رقم-۱٦۹۸) والنسائی فی کتاب الخیل/باب الشّکال فی الخیل (رقم-۳۵٦۷) وابن ماجه فی کتاب الجهاد/باب ارتباط الخیل فی سبیل الله (رقم-۲۷۹۰) واحمد فی المسند:۲/ ۳۸٤

**تسهيلات: قوله: وَالشِّكَالُ**

**د شكال اس په تعريف كښې دوه اقوال:** ① راوى په حديث كښې دَ شكال اس مكمل تعارف كړې دې

② عام اهل لغت دې سره اتفاق نه كوى. صاحب قاموس وغيره اهل لغت ليكلى دى چه شكال اس هغه وى دَكوم چه درې خپې سپينې وى اويوه خپه ئې دَ باقى بدن په شان وى يادَدې عكس اوګڼرئى چه يوه خپه سپينه وى اوباقى درې خپې دَ بدن په رنګ وى.

**[۲۸۷۰] داسونو دزغل ذكر**

۳۸۷۰-[۱۰] ()[۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا: [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سَابَقَ بَيْنَ الْخَيْلِ الَّتِي أُضْمِرَتْ [۳] مِنَ الْحَيْفَاءِ، وَأَمَدُهَا ثَنِيَّةُ الْوَدَاعِ، [۴] وَبَيْنَهُمَا سِتَّةُ أَمْيَالٍ، [۵] وَسَابَقَ بَيْنَ الْخَيْلِ الَّتِي لَمْ تُضْمَرْ مِنَ الثَّنِيَّةِ إِلَى مَسْجِدِ بَنِي زُرَيْقٍ، [۶] وَبَيْنَهُمَا مِيلٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او عبد الله ابن عمر ﷺ څخه روايت دى [۲] چې يوه ورځ رسول كريم ﷺ د هغه دوو اسونو په مينځ كې مسابقه (ګهوړ دوړ) وكړه چې اضمار شوى وو [۳] او دا مسابقت د حيفاء څخه شروع شو او ثنيه الوداع باندې ختم شو [۴] او هغه دواړو مقاماتو [يعنى حيفاء او ثنية الوداع] په مينځ كې د شپږ ميله فاصله وه [۵] او د كومو اسونو چې اضمار نه وه شوى د هغوى په مينځ كې د ثنية الوداع څخه د مسجد بني زريق پورې مسابقت ګهوړ دوړ وكړو [۶] او د هغه دواړوو مقاماتو يعنى ثنية الوداع او مسجد بني زريق درمياني فاصله يو ميل وه. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① سَابَقَ: دمنډې مقابله ئې كړې وه. ② أُضْمِرَتْ: چه زغلولو دپاره اموخته كړې شوى وى ③ الْحَيْفَاء: د يو مقام نوم دې. ④ أَمَدُهَا: آخرى حد دهغې. ⑤ ثَنِيَّةُ الْوَدَاعِ: د يو مقام نوم دې. ⑥ أَمْيَالٍ: د ميلَ جمع ده. د مسافت يوخاص مقدار. ⑦ لَمْ تُضْمَرْ: چه زغلولو دپاره اموخته كړې شوى نه وو

**تسهيلات:**

**قوله: سَابَقَ بَيْنَ الْخَيْلِ:**

**د نبى عليه السلام داسونو په دوه قسمه مقابله كښې حصه اخستل:**

① نبى عليه السلام په خپله زمانه كښې دَ دوو قسمه اسونو په مسابقت كښې حصه

[۱] ) اخرجه البخارى فى كتاب الجهاد والسّير/باب السّبق بين الخيل (رقم-۲۸۶۸) ومسلم فى كتاب الإمارة/باب المسابقة بين الخيل وتضميرها (رقم-۹۵ - (۱۸۷۰) و ابو داود فى كتاب الجهاد/باب فى السّبق (رقم-۲۵۷۵)والنسائى فى كتاب الخيل/باب: إضمار الخيل للسّبق (رقم-۳۵۸٤) ومالک فى الموطا كتاب الجهاد/باب ما جاء فى الخيل والمسابقة بينها. والنّفقة فى الغزو (رقم-٤٥)

اخستې ده یو قسم تربیت یافته ټریننګ شوی اسونه وو د هغوی مسابقت د شپږ میله فاصلې پورې په منډه کښې وو

② دویم قسم هغه اسونه وو چه اموخته کړې شوې نه وو تربیت یافته کړې شوې نه وو دهغوی دمسابقت فاصله درې میلو پورې وه حضورپاك پخپله هم ټریننګ کړې دې او په نورو باندې ئې هم کړې دې په اسونو زغلولوکښې ئې پخپله هم حصه اخستې ده او نور ئې هم تیارکړی دی لکه چه په حدیث نمبر(۳۸۶۸) کښې راځی

**قوله**: اَلَّتِي أُضْمِرَتْ مِنَ الْحَيْفَاءِ:

**د اسونو تربیت طریقه**: اسونه دَ اموخته کولو په غرض سره زغلولې شی دې عمل ته تضمیر وائی دَدې طریقه دا وی چه اول په اس باندې ښه خوراك څښاك اوکړې شی او چاق کړې شی بیا څلوېښتو ورځو پورې سحر وختې په نهره باندې زغلولې شی او ډیر کم خوراك ورکولې شی تردې چه په مزه مزه څلویښتو ورځوکښې دَ اس خیټه ملا پورې اولګی دا تضمیر شوې اس وی چه دَ هوا په شان زغلی

**[۳۸۷۱] د هرعروج څخه روسته زوال**

۳۸۷۱—[۱۱] (۱) ① وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «كَانَتْ نَاقَةٌ لِرَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - تُسَمَّى الْعَضْبَاءَ، وَكَانَتْ لَا تُسْبَقُ، ③ فَجَاءَ أَعْرَابِيٌّ عَلَى قَعُودٍ لَهُ، فَسَبَقَهَا، ④ فَاشْتَدَّ ذَلِكَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ. فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ⑤ "إِنَّ حَقًّا عَلَى اللّٰهِ أَنْ لَا يَرْتَفِعَ شَيْءٌ مِنَ الدُّنْيَا إِلَّا وَضَعَهُ"». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: ① حضرت انس ﷺ وایي ② چې رسول کریم ﷺ سره یوه اوښه وه د هغه نوم عضباء وو او هغه هیڅ کله وروسته نه پاتې کیدله [یعنی د هغه چې به کوم اوښ سره زغلیدوکي مقابله وشوه نو هغه به یې وروسته پریښودله او خپل به خنې مخکې کیدله] ③ لیکن یوه ورځ یو دیهاتی باندچي خپل اوښ باندې راغلو او هرکله چې هغه خپل اوښ عضباء سره وزغلوی نو د هغه اوښ خنې مخکې شو ④ داخبره په مسلمانانو سخته تیره شوه نو رسول کریم ﷺ ورته وفرمایل ⑤ د حق تعالی دا ثابت شده فیصله ده چې د دنیا کوم څیز هم سربلند کیږي الله هغه پست کوي (بخاري)

**حل اللغات**: ① الْعَضْبَاءَ: دَ حضورپاك (ص) دَ یوې اوښې نوم عضباء وو ② لَا تُسْبَقُ: روسته به نه پاتې کیدله (یو اوښ به هم ددې نه مخکښې کیدې نه شو) ③ قَعُودٍ: دَدوو کالونه واخله تر شپږو کالو عمر کښې اوښ ته قعود وائی ④ فَسَبَقَهَا: نوهغه ترې مخکښې شوه (په زغلولو کښې)

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسیر/باب ناقة النبیّ صلّی الله علیه وسلّم(رقم-۲۸۷۲) و ابو داود فی کتاب الأدب/باب فی کراهیة الرّفعة فی الأمور(رقم-۴۸۰۲) والنسائی فی کتاب الخیل/باب الجنب (رقم-۳۵۹۲) واحمد فی المسند: ۱۰۳/۳

**تسهيلات:** **قوله:** تُسَمَّى الْعَضْبَاءَ:

**دعضباء اوښې وجه تسميه:** په اصل كښې چه دكومې اوښې غوږونه په پيدائشي توګه باندې نه وى يا غوږ پرې شوې وى هغې ته عضباء وائى. دلته دَدغه اوښې غوږونه موجود وو خو واړه وو. په دې وجه دې ته دَ عضباء نوم ورکړې شوې وو

**قوله:** وَكَانَتْ لَا تُسْبَقُ:

**د عضباء په منډه كښې سبقت:** يعنى يو اوښ دَ دې نه مخکښې تلې نه شو اودا روستو کولې نه شو دَ مجهول صيغه ده. عضباء به په عام توګه باندې دَ مقابلې دَپاره تيار ساتلې شوې وه. هغې دَ ټولو اوښانو نه په منډه كښې يو ريكارډ قائم كړې وو

**قوله:** فَاشْتَدَّ ذَلِكَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ:

**دنيلوى ترقى، لره زوال:** يعنى دَ صحابه كرامو باندې د هغه كلى وال اوښ وړاندې كيدل اودَ حضورپاك دَ اوښې ريكاډ ماتيدل سخت بد اولګيدل ځكه چه دَ عربو په معاشره كښې په مسابقت كښې شاته پاتې كيدل دَ شرم سبب وو. په دې باندې حضورپاك صحابه كرامو ته تسلى وركړه چه دَ دنيا په معامله كښې ځوك سر اوچتوى او وړاندې كيږى او نومورې كيږى نو يووخت كښې الله تعالى هغه شاته راغورزوى دې دَپاره چه دَ دنيا فخر ختم شى لهذا دې اوښې سره هم الله تعالى هم دغه معامله اوكړه دَ پريشانه كيدو ضرورت نشته دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [٢٨٧٢] د جهادى وسلې جوړونكى جنت ته تلل

٣٨٧٢ـ[١٢] (١) ١ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: "٢ «إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى يُدْخِلُ بِالسَّهْمِ الْوَاحِدِ ثَلَاثَةَ نَفَرٍ الْجَنَّةَ: ٣ صَانِعَهُ يَحْتَسِبُ فِي صَنْعَتِهِ الْخَيْرَ ٤ وَالرَّامِيَ بِهِ، وَمُنْبِلَهُ. ٥ فَارْمُوا، وَارْكَبُوا، ٦ وَأَنْ تَرْمُوا أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ تَرْكَبُوا. ٧ كُلُّ شَيْءٍ يَلْهُو بِهِ الرَّجُلُ بَاطِلٌ، ٨ إِلَّا رَمْيَهُ بِقَوْسِهِ، ٩ وَتَأْدِيبَهُ فَرَسَهُ، وَمُلَاعَبَتَهُ امْرَأَتَهُ، فَإِنَّهُنَّ مِنَ الْحَقِّ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ،

**ترجمه:** ١ عقبه ابن عامر رضي الله عنه وايي چې ما درسول كريم ﷺ ځخه واوريدل ٢ الله تعالى په كفارو د چلونكي يوتير بدله كې درې سرې په جنت كې داخلوي ٣ يو خو د هغه تير جوړونكى هركله چې هغه خپل روز ګار سره د ثواب هم اميد لري ايعنى هركله چې هغه تير جوړوي نو خپل روزګار سره دانيت هم كوي چې زه دا تير په جهاد كې په كار راتلو دپاره جوړوم ٤ دويم په جهاد كې تير چلونكى او دريم تير وركونكى ايعنى هغه سرى

(١) اخرجه ابوداود فى السنن رقم الحديث ٢٥١٣ والترمذى فى السنن رقم الحديث ١٦٣٧، والنسائى رقم الحديث ٣٥٧٨

چې د تیر اندازۍ په لاس کې خپل یا د هغه تیر ورکړي او برابره خبره ده که هغه مخکې یې ورکړي یا نبتي پورته کولو سره یې ورکړي۵ نو تاسو تیر اندازي کوئ او آسونو باندې سورلی کوئ ایعنی د تیر اندازی او د اس د سورلی مشق کوئ۱٦ او ستاسو تیر اندازی خما په نزد سورلی کولو څخه زیاته ښه ده۷ او یاد لرئ چې انسان چې کوم څیز د لهو ولعب ایعنی محض د لوبي او تفریح په طور اختیار کړي۱ هغه باطل او ناروا دی ۸ خوخپلي لیندی سره تیر آندازي کول۹ خپل اس ته تربیت ورکول او خپلي ښځي سره لوبي او تفریح کول دا ټول څیزونه حق دي (ترمذي ابن ماجه)

۱ وَزَادَ أَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ: " «وَمَنْ تَرَكَ الرَّمْيَ بَعْدَمَا عَلِمَهُ رَغْبَةً عَنْهُ، فَإِنَّهُ نِعْمَةٌ تَرَكَهَا» ". ۲، أَوْ قَالَ: " كَفَرَهَا".

**ترجمه:**۱ ابوداود او دارمي خپل روایت کې دا الفاظ هم نقل کړي دي او کوم سړی چې تیر آندازی زده کولو څخه وروسته هغه د بي نیازی اود بیزاری جذبي سره پریږدي نو هغه تیر آندازي یو نعمت دی چې هغه پرېښی دي۲ یا دایي وفرمایل چې هغه د هغه نعمت ناشکري وکړله.

**حل اللغات:** ①صَانِعَهُ: جوړونکې دهغې، ②وَمُنَبِّلَهُ: غشی ویشتونکې مجاهد ته چه غشې ورکوی هغه ته مُنبل وائی، ③يَلْهُو: چه لوبې ورسره کوی. ④کفرها" یدلته کفرد ناشکری په معنی کښې دې

**تسهيلات:**

**قوله:** يُدْخِلُ بِالسَّهْمِ الْوَاحِدِ ثَلَاثَةَ نَفَرٍ الْجَنَّةَ:

**د یو غشی په ذریعه درسې کسان جنت ته داخلیدل:** یعنی په جهاد کښې استعمالیدونکې دَ یو غشی په ذریعه دَ ښه نیت دَ وجې نه درې کسان جنت کښې داخلیږی

①صانع ② رامی ③ منبل

**قوله:** فَارْمُوا، وَارْكَبُوا:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① غشی ویشتل هم زده کړئ او په اسونو سوریدل هم زده کړئ دَدواړه کارونه دَ جهادی تربیت حصه ده

② غشی ویشتل هم کوئ او په اسونو سوریدوسره نیزه هم استعمالوئ حضورپاک اوفرمائیل چه زما د نیزه بازئ نه غشی ویشتل ډیر خوښ دی

**دغشوویشتلوضرورت:** ځکه چه په غشو ویشتو کښې خوداعتمادی زیاته ده اوخالص دَ زمکې جنګ دې په کوم سره چه دَ جنګ نتیجه په لاس راځی خلاصه دا چه هرقسم مشق کول ښه دی لیکن دَ غشو ویشتو مشق دَ نورو مشقونونه زما زیات خوښ دی چنانچه په احادیثو کښې غشی ویشتل مقدم ساتلې شوی دی بهرحال مشق کول اوهیرول ګناه ده.

**[٢٨٧٢] تیراندازي جنت ته د تللو سبب**

٣٨٧٣-[١٣] (١) [١] وَعَنْ أَبِي نَجِيحٍ السُّلَمِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [٢] "«مَنْ بَلَغَ بِسَهْمٍ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ، فَهُوَ لَهُ دَرَجَةٌ فِي الْجَنَّةِ، [٣] وَمَنْ رَمَى بِسَهْمٍ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ فَهُوَ لَهُ عِدْلُ مُحَرَّرٍ، [٤] وَمَنْ شَابَ شَيْبَةً فِي الْإِسْلَامِ، كَانَتْ لَهُ نُورًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ» ". [٥] رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي " شُعَبِ الْإِيمَانِ ". وَرَوَى أَبُو دَاوُدَ الْفَصْلَ الْأَوَّلَ، [٦] وَالنَّسَائِيُّ الْأَوَّلَ وَالثَّانِيَ، وَالتِّرْمِذِيُّ الثَّانِيَ وَالثَّالِثَ، [٧] وَفِي رِوَايَتِهِمَا: " مَنْ شَابَ شَيْبَةً فِي سَبِيلِ اللّٰهِ " بَدَلَ: " فِي الْإِسْلَامِ ".

**ترجمه:** [١] او ابو نجيح سلمي رضي الله عنه وايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه واوريدل [٢] کوم سړی چې د الله په لار يعنی جهاد کې يوتير نښي باندې ورسوی [يعنی هغه تير چلولو سره کافر يي ووژی] نو د هغه د پاره په جنت کې يوه ډيره لويه درجه ده [٣] او کوم سړی چې د الله لار يعني جهاد کې تير وويشتلو [برابره خبره ده که هغه کافر ته ولګيدلو يا ونه لګيدی] نو دهغه د پاره د يوبرده غلام يا وينځې آزادولو برابر دی [٤] او کوم سړی چې د اسلام په حالت کې بوډا شو او مړ شو [يعنی الله هغه د اسلام په حالت کې بر قرار وساتی تردې چې هغه بوډا شو او مړ شو] نو هغه بوډاتوب به هغه د پاره د قيامت په ورځ نور وي [٥] دا روايت بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کې نقل کړي دی ابوداود دا روايت صرف مخکنی جزء [يعنی من بلغ بسهم في سبيل الله فهوله درجة في الجنة] نقل کړي دی [٦] نسائي مخکنی او دويم جزء چې په هغه کې د تير آندازي فضيلت بيان شوی دی نقل کړي دی او ترمذي دويم او دريم جزء نقل کړي دی [٧] او د بيهقي او ترمذي په روايت کې (في الاسلام) يعنی د اسلام په حالت کې په ځای في سبيل الله يعنی د الله په لار کې درج دی

**حل اللغات:** ① عِدْلُ مُحَرَّرٍ: دغلام آزادولو برابر دی. ② شَابَ شَيْبَةً: ځوانی ئې زړه کړه، بوډا شو.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ بَلَغَ بِسَهْمٍ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ:

**دبلغ مفهوم:** يعنی چه يوغشي په نښه باندې اولګيدو يا چه کوم باندې کافر اولګيدو "ومن رمى" يعنی د کافرانو طرف ته غشي اوويشتلې شو که اولګيدو اوکه اونه لګيدو.

**قوله:** وَرَوَى أَبُو دَاوُدَ الْفَصْلَ الْأَوَّلَ:

**د حديث درې حصې:** ددې حديث درې حصې دی دغه حصوته فصل اول ثانی او ثالث وئيلې شوې دې

① د من بلغ نه د ومن رمى پورې يوه حصه ده دې ته فصل اول اوونيلې شو ابوداؤد هم دومره نقل کړې دې،

(١) اخرجه ابوداود فی السنن رقم الحديث ٢٥١٣ والترمذی فی السنن رقم الحديث ١٦٣٨ . والنسائی رقم الحديث ٣١٤٣

② دَ ومن رمى نه دَومن شاب پورې دويمه حصه ده امام نسائی رحمه الله اول او دويمه حصه نقل کړې ده او ترمذی دويمه اودريمه حصه نقل کړې ده.

③ دريمه حصه دَ ومن شاب نه آخر پورې ده دَ فصل نه مراد حصه اوجزء دې.

**قوله: وَفِي رِوَايَتِهِمَا:**

**د مذکوره جملې وضاحت:** په ظاهره دَ تثنيې دا ضمير دَنسائی اوترمذی طرف ته راګرځی ځکه چه دواړه خوا خواکې دی ليکن داسې نه ده ځکه چه نسائی دريم جزء نه دې نقل کړې لهذا دَ تثنيې دا ضمير دَ ترمذی او بيهقی طرف ته راګرځی ځکه چه بيهقی پوره حديث نقل کړې دې.

**اشکال:** بيهقی "شيبة في الإسلام" لفظ استعمال کړې دې لکه چه پورته په حديث کښې دی نودَ بيهقی باره کښې وئيلی کيدې شی چه هغه فی سبيل الله لفظ نه دې استعمال کړې بيا دلته صاحب مشکوة څنګه اووئيل چه "وفی روايتهما فی سبيل الله الخ".؟

**داشکال جواب:** بيهقی نه دوه روايتونه نقل دی يوکښې دَ فی الإسلام لفظ دې کوم چه په ترمذی کښې نشته دې. او په دويم روايت کښې فی سبيل الله لفظ دې کوم چه په ترمذی کښې هم شته اوبيهقی کښې هم دې. لهذا "وفی روايتهما" جمله صحيح شوه. (تدبروتشکر)

**[۲۸۷٤] په جهادی مقابله کښې د شرط لګولو جواز**

٣٨٧٤ — [۱۳] (۱) ⓵ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ⓶ "«لَا سَبَقَ إِلَّا فِي نَصْلٍ، أَوْ خُفٍّ، أَوْ حَافِرٍ»". ⓷ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ⓵ حضرت ابوهريره رضی الله عنه وايي چې رسول کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل ⓶ د مسابقت د شرط د مال اخستل صرف [دريو څيزونو يعنی] تير چلولو اوښ زغلولو او (ګهوړ دوړ کي) جائز دی ⓷ (ترمذي ابوداود نسائي)

**حل اللغات:** ①سَبَق: په وړاندې کيدلو کښې شرط لګول. ②نَصْل: اى ذونصل "نصل تيره څوکې ته وائی کوم چه په نيزه او غشی کښې وی. ③ خُف: "ای ذوخف" اوښ ته وائی، ④ حَافِر: "ای ذوحافر" اس ته وائی.

**تسهيلات: قوله: لَا سَبَقَ إِلَّا فِي نَصْلٍ:**

**د شرط لګولو دوه صورتونه:**

① په عامو معاملاتو او امورو کښې شرط لګول ناجائز دی او د عدم جواز وجه يې دا ده

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد/باب فی الرّمی (رقم-٢٥٦٤) والترمذی فی کتاب الجهاد عن رسول الله صلّی الله عليه وسلّم/باب ما جاء فی الرّهان والسّبق (رقم-١٧٠٠) والنسائی فی کتاب الخيل/باب: السّبق (رقم-٣٥٨٥) وابن ماجه فی کتاب الجهاد/باب السّبق، والرّهان (رقم-٢٨٧٨) واحمد فی المسند: ٤٧٤/٢

چې دا جواري ده

② دَانعام شرط لګول په جهادي تربيت کښې جائز دی دې کوم ځيزونه چه دَ جهاد په وسائلو او ذرائعو کښې شامل دی

**په جهاد کښې د شرط لګولو د جواز وجه:** دَ هغې په مسابقت کښې شرط لګول اودَ شرط پيسې اخستل په اصل کښې په جهاد کښې ترغيب ورکولودَوجې نه وی او اعداد الهٔ جهاد اوددې دَ تشويق او ترغيب په حکم کښې راځی په دې وجه دا جائز ګرځولې شوی دی

**د جواز په باب کښې د جهاد بعضې خصوصيات:** جهاد عجيبه عبادت دې اوددې عجيبه اوځان له احکام دی ډير ځيزونه په نورو ځايونو کښې ناجائز وی ليکن په جهاد کښې جائز وی

① د تکبرتګ او مشی به عامو حالاتو کښې ناجائز په جهاد کښې جائز دې

② دروغ وئيل په عامو حالاتو کښې ناجائز په جهاد کښې جائز دی

③ د بريتانو اوږدول په عامو حالاتو کښې ناجائز په جهاد کښې جائز دی

**قوله:** فِي نَصْلٍ، أَوْ خُفٍّ، أَوْ حَافِرٍ:

**په بعضې ځيزونوکښې د شرط لګولوجواز:** په حديث کښې دا درې ځيزونه خاص کړې شوی دی دَ کوم نه چه معلوميږی چه دَدې نه علاوه په بل ځيزکښې شرط لګول اورقم حاصلول ناجائز دی.

ليکن فقهاؤ دَدې دريو ځيزونو په حکم کښې هغه ځيزونه هم شامل کړی دی چه په اعداد الهٔ جهاد کښې استعماليږی مثلاً

① قچر خر اوهاتهی يا پيدل منډه وهلوسره مقابله کول شو

② يا دَ ټوپك وغيره نښنه ټيك کول شو

**دجواز وجه:** کله چه دا ځيزونه صرف دَ تربيت په غرض سره وی نوپه دې کښې هم شرط لګولوسره رقم وصول کولې شی ځکه چه علت مشترك دې مادَ فقهاؤ داخبره نقل کړې ده.

**[٢٨٧٥] داسونوپه جهادی مقابله کښې د شرط جواز**

٢٨٧٥-[١٥](١) ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«مَنْ أَدْخَلَ فَرَسًا بَيْنَ فَرَسَيْنِ، ③ فَإِنْ كَانَ يُؤْمَنُ أَنْ يَسْبِقَ، فَلَا خَيْرَ فِيهِ، ④ وَإِنْ كَانَ لَا يُؤْمَنُ أَنْ يَسْبِقَ، فَلَا بَأْسَ بِهِ» ". ⑤ رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ". وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ، قَالَ: " «مَنْ أَدْخَلَ فَرَسًا بَيْنَ فَرَسَيْنِ، ⑥ يَعْنِي وَهُوَ لَا يَأْمَنُ أَنْ يَسْبِقَ، فَلَيْسَ بِقِمَارٍ. ⑦ وَمَنْ أَدْخَلَ فَرَسًا بَيْنَ فَرَسَيْنِ، وَقَدْ أَمِنَ أَنْ يَسْبِقَ، فَهُوَ قِمَارٌ» ".

(١) اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحديث ٢٦٥٤. وابوداود فی السنن رقم الحديث ٢٥٧٩. واحمد فی المسند ٢/ ٥٠٥

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] كوم سړى چې د دوو آسونو په مينځ كې خپل آس شامل كى [۳] كه هغه اس داسې وي چې د هغه د تيز رو كيدو په وجه د هغه په باره كې دايقين دى چې هغه به دي دواړو آسونو څخه مخكې شي نو په دي كې خير نشته [۴] او كه دايقين نشته چې هغه به مخكې شي نو بيا په دي كې هيڅ حرج نشته [۵] (شرح السنة) او د ابوداود په روايت كې دا الفاظ دي چې حضور ﷺ وفرمايل كه يو سړى د دوو اسونو په مينځ كې خپل آس شامل كړي [۶] يعنى چې د هغه په باره كې دايقين نشته چې هغه به مخكې وځي نو دا جواري جواري نه ده [۷] او كه يو سړى د دوو اسونو په مينځ كې خپل داسې أس شامل كړي چې د هغه په باره كې دايقين دى چې هغه به مخكې شي نو دا جواري ده.

**حل اللغات:** ①قِمَار: جواري.

**تسهيلات: قوله:** وَمَنْ أَدْخَلَ فَرَسًا بَيْنَ فَرَسَيْنِ:

**د اسونو د مقابلې دوه صورتونه:** ① هغه صورت چې په هغې كښې دريم ګړې محلل نه وى.
② هغه صورت چې په هغې كښې دريم ګړې يعنى محلل وى.

**داول صورت درې صورتونه:** ① دَ دوو سړو په مينځ كښې دَ اسونو منډې مقابله ده كه يو كمپنئى ياحاكم په دوى كښې دَ وړاندې كيدودپاره دَ انعام په توګه څه شرط كيخودې وى نو دا جائز دې.
② دَ دواړو اسونو دَمالكانو نه يوخپل ملګرى ته اووئيل كه چرې ته وړاندې لاړې نوزه به دومره رقم دركوم اوكه چرې زه وړاندې لاړم نو هيڅ به هم نه اخلم دا صورت هم جائز دې
③ كه دَ دواړو طرفونه دواړو شرط كيخودو نو دا معامله جوارى ده كوم چه ناجائز ده

**د دويم صورت درې صورتونه:** ① كه په دې كښې دريم ګړې محلل راغلو نو بيا به دَ طرفين معامله جائزوى محلل هغه دريم سړى ته وائى چه خپل اس راولى او شرط لګونكو سره نى شامل كړه او وائى چه كه زه تاسو دواړو نه وړاندې اووتلم نو تاسو دواړو نه به دومره رقم اخلم اوكه چرې زه شاته پاتې شوم نوزه به تاسو ته هيڅ نه دركوم اوزما نه به هيڅ هم نه اخلئى نو دَغه محلل داخليدوسره دَ اسونودَمنډې رومبې شرط تړونكودواړو سړودپاره دَ شرط رقم حلال شو هم په دې وجه ده ته محلل وائى
② كه چرې محلل وړاندې اونه وتلو اودې دواړو كښې څوك وړاندې شو نو هغه به دَخپل مقرر ملګرى نه مقرر شرط وصول كړى اوكه چرې دواړه په يوځائى اورسيدل نو چاته به هم رقم نه ملاويږى. نو كه دَ محلل اس دَ دغه دواړو دَ اسونو نه وړاندې كيدل يقينى نه وى بلكه دا احتمال وى چه وړاندې به اوځى يا به شاته پاتې شى.

③ اوکه تولو خلقوته په يقيني توګه باندې معلومه وي چه هم دمحلل اس به وړاندې اوځي نوبيا د اسړې محلل نه شي جوړيدې بلکه پوره معامله به ناجائزشي.

**[٢٨٧٦] د اسونو په زغل کښې د جلب او جنب ممانعت**

٣٨٧٦-[١٦] (١) ١ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ " «لَا جَلَبَ وَلَا جَنَبَ» ". زَادَ يَحْيَى فِي حَدِيثِهِ: " فِي الرِّهَانِ ". ٣ رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَرَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ مَعَ زِيَادَةٍ فِي بَابِ "الْغَصْبِ".

**ترجمه:** ١ عمران ابن حصين رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل ٢ چې نه جلب جائز دی او نه جنب او يو راوي يحيی په خپل روايت کې لفظ في الرهان هم نقل کړي دی [يعنی د هغه په روايت کې دادی چې رهان يعنی د اسونو شرط او مسابقت کې نه جلب جائز دی نه جنب] ٣ دا روايت ابوداود او نسائي نقل کړي دی او ترمذي هم دا روايت څه زائد الفاظو او معاني سره باب الغصب کې نقل کړي دی

**حل اللغات:** ① جَلَبَ: رابنکل. ② جَنَبَ: اړخ. ③ الرِّهَان: د اسونو د منډې مقابله، مسابقت.

**تسهيلات: قوله:** لَا جَلَبَ وَلَا جَنَبَ:

**دجلب اوجنب په درې بابونو کښې استعمال:** ① **جلب** او "**جنب**" دا اصطلاح په کتاب الزکوة کښې هم استعمال کړې شوې ده ② په کتاب الجهاد کښې هم استعمال کړې شوې ده ③ کتاب البيوع کښې دَدې صرف يولفظ "جلب" استعمال کړې شوې دې. کتاب الزکوة او بيوع کښې ددې تفصيل تيرشوې دې هلته کتل پکاردی.

**په جهاد کښې د جلب مفهوم:** دلته په کتاب الجهاد کښې دَدې اصطلاح مفهوم دادې چه دَ اسونو زغلولوپه مقابله کښې يوسړې په خپل اس پسې شاته يو بل سړې سور ساتی اوهغه په خپل اس باندې سور دې مګر دَ مقابلې سړی اس دَ شانه شړی آوازونه ورکولوسره هغه تيزوی دا ناجائز دی

**د جلب مثالونه:** ① دَ اوښانو په مقابله کښې ظالمان عرب معصوم بچی سوروی. ماشوم دَ ويرې دَ وجې چغې وهی نواوښ ويريږی اوتيزې منډې وهی. الله تعالی داسې ظالمان خپل ځائی ته اورسوی.

② دَ خر زغلولودَپاره په هغې سور په تين وغيره کښې کانړې واچوی اوهغه شړنګوی اوخر منډه وهی.

(١) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الجهاد/باب في الجلب على الخيل في السباق (رقم-٢٥٨١) والترمذي في كتاب النكاح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء في النهي عن نكاح الشغار (رقم-١١٢٣) والنسائي في كتاب الخيل/باب الجنب (رقم-٣٥٩١) واحمد في المسند: ٤٣٩/٤

**قوله: وَلَاجَنَبَ:**

**په جهاد کښې د جنب مفهوم:** جنب دادې چه مقابله کونکي خان سره يوفارغ اس په اړخ کښې ساتلې دې. دې دپاره چه کله خپله سورلی ستړې شی نوچه په دې تازه دم اس باندې سورشی کوم چه په اړخ کښې دې داهم ناجائز دی.

**[۲۸۷۷] د بهترين آس نښې**

٢٨٧٧–[١٧] ( ) [١] وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] " «خَيْرُ الْخَيْلِ الْأَدْهَمُ الْأَقْرَحُ الْأَرْثَمُ، [٣] ثُمَّ الْأَقْرَحُ الْمُحَجَّلُ طَلْقُ الْيَمِينِ، [٤] فَإِنْ لَمْ يَكُنْ أَدْهَمَ، فَكُمَيْتٌ عَلَى هَذِهِ الشِّيَةِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] ابو قتاده رضي الله عنه د نبي کريم ﷺ څخه نقل کوي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [٢] بهترين آس تور آس دی چې د هغه په تندي لږ شان سپين ټکی وي او پوزي جانب ته يې سپينوالی وی [٣] بيا هغه ښه دی چې د هغه په تندي لږ شان سفيدی وي او لاس پښې يې سپين وي [٤] ليکن ښه لاس يې سپين نه وي او که تور اس نه وي بيا د دې قسم کميت هم بهتر اس دی. (ترمذي دارمي)

**حل اللغات:** ① الْأَدْهَمُ: تك تور اس. ② الْأَقْرَحُ: تور اس چه په تندی ئې سپين داغ وی چه د غرۀ نه کم وی. ③ الْأَرْثَمُ: توراس چه دشو ن د پې نه اوچت پوزې طرف ته ئې سپينوالې وی. ④ الْمُحَجَّلُ: تور اس چه لاس خپې ئې سپين وی. ⑤ طَلْقُ الْيَمِينِ: هغه اس چه ښي خپه ئې سپينه نه وی، ⑥ فَكُمَيْتٌ: هغه اس چه د سټ بره حصه او د لکئی ويښته ئې تور وی. ⑦ الشِّيَةِ: د شية جمع شيات ده داس هغه داغ ته وائی چه د بدن د عام رنګ مخالف وی.

**تسهيلات:**

**قوله: ثُمَّ الْأَقْرَحُ الْمُحَجَّلُ:**

**داسونو درې قسمونه:** په دې حديث کښې د ښه والی په اعتبار د اسونو درې قسمونه بيان شوی دی

① اهم د هغه په تندي لږ شان سپين ټکی وي او پوزي جانب ته يې سپينوالی وی

② هغه هغه چې د هغه په تندي لږ شان سفيدی وي او لاس پښې يې سپين وي ليکن ښه لاس يې سپين نه وي

③ که تور اس نه وي بيا د دې قسم کميت هم بهتر اس دی.

باقی د هريو وضاحت په حل اللغات کښې شوې دې

---

( ) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ١٦٩٦. وابن ماجة رقم الحديث ٢٧٨٩

**[۲۸۷۸] د درې قسمه اسونو د حاصلولو ترغيب**

۳۸۲۸–[۱۸] (¹) [۱] وَعَنْ أَبِي وَهْبٍ الْجُشَمِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «عَلَيْكُمْ بِكُلِّ كُمَيْتٍ أَغَرَّ مُحَجَّلٍ، [۳] أَوْ أَشْقَرَ أَغَرَّ مُحَجَّلٍ، [۴] أَوْ أَدْهَمَ أَغَرَّ مُحَجَّلٍ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابو وهب جشمي رضي الله عنه وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] ستاسو د پاره سپين تندی او سپين لاس پښو والا کميت آس ضروري دی يعنی که تاسو آس ساتئ نو داسې آس ساتئ [۳] يا اشقر آس کېدل پکار دي چې د هغه تندی هم سپين وي او لاس پښې يې هم سپينې وي [۴] يا تور سپين تندی وي او سپين لاس پښې وي (ابوداود نسائي)

**حل اللغات:** ① كُمَيْتٍ: هغه اس چه د ستې بره حصه اوده لکئ وينښته ئې تور وی. ② أَغَرَّ: د غرة نه دې هغه اس چه په تندی ئې سپينوالې وی. ③ مُحَجَّلٍ: چه لاس خپې ئې سپين وی. ④ أَشْقَرَ: سور رنګ والا آس.

**تسهيلات:**

**قوله:** عَلَيْكُمْ كُمَيْتٍ أَغَرَّ مُحَجَّلٍ:

**په کميت اواشقر کښې فرق:** کيمت او أشقر کښې دا فرق دې چه د کيمت لکې او د ځټ رنګ تور وی او د أشقر سور وی، په حديث مبارک کښې د عمده (ښه) قسمه اسونو د ترتيب بيان دې

**[۲۸۷۹] سره اسونه او د برکت سبب**

۳۸۲۹–[۱۹] (²) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[۲] «يُمْنُ الْخَيْلِ فِي الشُّقْرِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] د آسونو برکت د سور رنګ آسونو کې وي (ترمذي ابوداود)

**حل اللغات:** ① يُمْنُ: خير او برکت. ② الشُّقْرِ: سور رنګ والا اس

**تسهيلات:**

**نوټ:** د دې حديث وضاحت د حديث نمبر (۳۸۲۸) په تسهيل کښې تيرشوې دې

¹) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد/باب فيما يستحب من ألوان الخيل (رقم-۲۵۴۳) والنسائی فی کتاب الخيل/باب ما يستحب من شية الخيل (رقم-۳۵۶۵)واحمد فی المسند: ۳۴۵/۴

²) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد/باب فيما يستحب من ألوان الخيل (رقم-۲۵۴۵) والترمذی فی کتاب الجهاد عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء ما يستحب من الخيل (رقم-۱۶۹۵)واحمد فی المسند: ۲۷۲/۱

**[۲۸۸۰] دآسونو د بعضو ويښتو د کټ کولو ممانعت**

۳۸۸۰ –[۲۰] (¹) [۱] وَعَنْ عُتْبَةَ بْنِ عَبْدٍ السُّلَمِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۲] "«لَا تَقُصُّوا نَوَاصِيَ الْخَيْلِ، وَلَا مَعَارِفَهَا، وَلَا أَذْنَابَهَا [۳] فَإِنَّ أَذْنَابَهَا مَذَابُّهَا، وَمَعَارِفَهَا دِفَاؤُهَا، وَنَوَاصِيهَا مَعْقُودٌ فِيهَا الْخَيْرُ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] عتبه رضي الله عنه ابن عبد السلمي څخه روایت دی هغه د رسول الله ﷺ څخه واوریدل [۲] د آسونو ① د تندي ويښته ② د هغوی د څټ ويښته ③ او د هغوی د لکيانو ويښته مه پريکوئ [۳] ځکه چې ① د هغوی لکۍ د هغوئ مچ بڼکي (مچان وغيره شړونکي) دی چې د هغه ښوررولو سره مچان او چينجي الوځوي ② او د هغوی ايال هغوی ته د ګرمي رسولو څيزونه دي ③ او دهغوی د تندي ويښتو سره خيرښيګړه تړل شويده (ابوداود).

**حل اللغات:** ① لَا تَقُصُّوا: قص د پرې کولو په معنی کښې دې ② نَوَاصِيَ: د ناصية جمع ده د تندی ويښتوته وائی ③ مَعَارِفَهَا: دَدې مفرد عرف دې يامعرفة دې دَ اس په سټ باندې چه کوم ويښته اوچت ولاړ وی هغه مراد دی کوم ته چه ايال وائی ④ أَذْنَابَهَا: دَدې مفردذنب دې لکئی ته وائی مراد دَ لکئی ويښته دی دَحديث په باقی حصه کښې دَدې ممانعت علت طرف ته اشاره کړې شوې ده ⑤ مَذَابُّهَا: داد ذب نه دې دَ دفع کولو په معنی کښې دې يعنی دَ لکئی په ويښتوسره اس مچان وغيره دفع کوی داد ده پکې دې ⑥ مَعْقُودٌ: يعنی دَ تندی په ويښتوکښې الله تعالی برکت کيخودې دې ⑦ دِفَاؤُهَا: دفاء ګرمئی ته وائی يعنی دَ ايال په ويښتوسره اس ګرمی حاصلوی دې دَپاره چه سټ ئی دَ يخوالی وغيره نه محفوظ وی.

**تسهيلات:**

**نوټ:** په حديث کښې اهم د ګرانو لغاتو حل دې هغه په حل اللغات کښې شوې دې باقی مطلب د ترجمې څخه واضح دې.

**[۲۸۸۱] دآسونو په باره کښې څو هدايات**

۳۸۸۱ –[۲۱] (²) [۱] وَعَنْ أَبِي وَهْبٍ الْجُشَمِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " [۲] «ارْتَبِطُوا الْخَيْلَ، وَامْسَحُوا بِنَوَاصِيهَا وَأَعْجَازِهَا - أَوْ قَالَ: أَكْفَالِهَا - [۳] وَقَلِّدُوهَا، وَلَا تُقَلِّدُوهَا الْأَوْتَارَ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او وهب جشمي رضي الله عنه وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] اسونه تړلي ساتئ د

¹) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد/باب فی کراهية جز نواصی الخيل وأذنابها (رقم-۲۵٤۲)واحمد فی المسند: ٤/ ۱۸٤

²) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد . باب إكرام الخيل وارتباطها والمسح على أكفالها (رقم-۲۵۵۳) والنسائی فی کتاب الخيل/باب ما يستحب من شية الخيل (رقم -۳۵۶۵)واحمد فی المسند: ٤/ ۱٤۵

هغوی په تندو او شا لاس تیروئ یا د اعجازها په ځای اکفالهایي وفرمایل او د دې دوارو لفظونو یوه معنی ده یعني شا [۳] او د هغوی په څټ کې پټی واچوي لیکن د هغوی په څټ کې د لیندی جئی مه ترئ. (ابوداود نسائي)

**حل اللغات:** ① اِرْتَبِطُوا: ترلې ساتئ. پالنه کوئ. ② وَأَعْجَازِهَا: اعجاز دَ عجز جمع ده کوناتی ③ أَكْفَالِهَا: اکفال: دکفل جمع ده دَ دوارو ترجمه شاتنئی حصه ده یعني دَ انس و محبت او دَ صفائی په غرض دَاس په ملا او شاته حصه باندې لاس وهئ. ④ وَقَلِّدُوهَا: دَ اس په مرئی کښې پرې اچوئی دې دَپاره چه دَاسلام دَ دښمنانو او دَ دین دَ سرلوړئی دَپاره هروخت تیار وی. ⑤ الْأَوْتَارَ: دادَ وتر جمع ده دَ لیندې لرګی او تسمې ته وائی.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَلَا تُقَلِّدُوهَا الْأَوْتَارَ:

**داوتار په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① مطلب داچه دا تسمه دَاس په غاړه کښې مه اچوئی دې سره به اس اونخلی زوړند به شی

② دَ وترنه مراد هغه شرکیه تاراوتسمه ده کوم چه به عربو دَ ضرردَدفع کولو دَپاره دَ څناورو په غاړوکښې تړله او دَ شرك عقیده به ئې لرله اسلام دا ردکړه

**[۳۸۸۲] د اهل بیت رسول ﷺ دري مخصوص احکام**

۳۸۸۲ - [۲۲] (¹) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ [۲]: «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَبْدًا مَأْمُورًا، مَا اخْتَصَّنَا دُونَ النَّاسِ بِشَيْءٍ [۳] إِلَّا بِثَلَاثٍ: أَمَرَنَا أَنْ نُسْبِغَ الْوُضُوءَ، وَأَنْ لَا نَأْكُلَ الصَّدَقَةَ، وَأَنْ لَا نُنْزِيَ حِمَارًا عَلَى فَرَسٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او ابن عباس ﷺ وایي [۲] چې رسول کریم ﷺ یو مامور بنده وو حضور ﷺ مونږ ته یعني خپل اهل بیت ته نورو خلقو څخه جدا کولو سره دریو خبرو څخه علاوه د څه بلې خبري مخصوص طور سره حکم نه دی کړي [۳] او هغه دري خبري چې د هغه خاص طور سره اهل بیت ته حکم ورکول شوی وو دادي ① چې مونږ اودس پوره کوو ② مونږ د صدقي مال نه خورو ③ مونږ په آسپو خرونه نه اچوو (ترمذي نسائي)

**حل اللغات:** ① مَا اخْتَصَّنَا: نه یو خاص کړی مونږ لره ② نُسْبِغَ: پوره کوو مونږ. ③ لَا نُنْزِيَ: مونږ نه خیجو .نه اچوو.

---

¹) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الصلاة،باب قدر القراءة في صلاة الظهر والعصر (رقم-۸۰۸) والترمذي في كتاب الجهاد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في كراهية أن تنزى الحمر على الخيل (رقم-۱۷۰۱) والنسائي في كتاب الخيل/باب التشديد في حمل الحمير على الخيل (رقم-۳۵۸۱) واحمد في المسند: ۲۲۵/۱

**تسهيلات:**

**قوله:** كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَبْدًا مَأْمُورًا:

**نبی علیه السلام د شریعت د احکامو پابند جوړول:**

یعنی حضورپاك د الله تعالی د حکم پابند بنده وو کوم حکم چه به د الله تعالی د طرف نه ملاویدلو هغه به ئی په عاموخلقو کښې یوشان جاری ساتلو داسې نه ده چه خپل خپلوان ئی په خصوصی حکم سره خاص کړل اونورخلق ئی هیرول هم دغه شان احکامو کښې حضورپاك به هیڅ قسم فرق او خصوصیت روا نه ساتلو

**قوله:** مَا اخْتَصَّنَا دُونَ النَّاسِ بِشَيْءٍ إِلَّا بِثَلَاثٍ:

**د اهل بیتو تخصیص کول:** هم دغه وجه ده چه حضرت ابن عباس رضي الله عنه دا وضاحت فرمائی چه حضورپاك مونږ اهل بیتو ته هم د یوځیز خصوصی حکم نه دې راکړې اود دریو ځیزونو ئی په خاص توګه تاکیدی حکم کړې دې سره د دې چه امت په دې کښې مونږ سره بیاهم په دوو ځیزونو کښې شریك دې مګر مونږ ته په خاص توګه حکم راکړې شوې دې

**په دې دریو ځیزونو کښې د اهل بیتو تخصیص کول:**

① مکمل اودس کول دی اګرچې عبدالله بن عباس د اهل بیتو ته خصوصیاتو کښې شامل کړې دې خو په کامل اومکمل اودس جوړولو کښې باقی امت هم شریك دې

② صدقه نه خوړل دی صدقه نه خوړل د اهل بیتو خصوصیت دی لکه څنګه چې یو حدیث کښې راغلی دی چې حضرت حسن یا حسین په خوله کښې قجوره واچوله نو نبی علیه السلام دهغوی د خولې څخه هغه قجوره راویستله او وې فرمائل کیدې شی دا قجوره دصدقې وی

③ خر په اسپې باندې نه ځیژول دی خر په اسپه باندې ځیژولو سره د اسپې نسل خرابیږی اود اعلی ځیز په ځائی کم تر ځیز په لاس راځی څکه چه قچر د اس نه ادنی دې

**[۲۸۸۲] په اسپې د خر اچولو ممانعت**

۳۸۸۳–[۲۳] (۱) [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ [۲]: «أُهْدِيَتْ لِرَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَغْلَةٌ، فَرَكِبَهَا، [۳] فَقَالَ عَلِيٌّ: لَوْ حَمَلْنَا الْحِمَارَ عَلَى الْخَيْلِ فَكَانَتْ لَنَا مِثْلُ هَذِهِ ; [۴] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "إِنَّمَا يَفْعَلُ ذَلِكَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ"». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت علي رضي الله عنه څخه روایت دی [۲] په یوه موقع د رسول الله ﷺ په خدمت یو قچر بطور هدیه پیش شو نو حضور ﷺ په هغه سور شو [۳] حضرت علي رضي الله عنه عرض اوکړو

---

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد . باب فی کراهیة الحمر تنزی علی الخیل (رقم-۲۵۶۵) والنسائی فی کتاب الخیل/باب التشدید فی حمل الحمیر علی الخیل (رقم-۳۵۸۰) واحمد فی المسند: ۱/۱۰۰

كه مونږ په اَسپو خرونه واچوو نو مونږ ته به هم داسې خچر حاصل شي [۴]په دي اوريدو سره رسول كريم ﷺ وفرمايل دا كار هغه خلق كوي چې ناواقف وي (ابوداود نسائي)

**حل اللغات:** ①بَغْلَةٌ: قچر

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّمَا يَفْعَلُ ذَٰلِكَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ:

**په اس باندې د خر اچولو مذمت:** يعنى خراسپې ته پريخودل دَنامعقول خلقو كاردې كه چرې داخلق هوښياروې نو په اسپه باندې به ئې اس پريخودې وى دې دپاره چه دَ نبه نسل اسونه پيداشي دَخرد نسل نه به بيكاره قچر پيداكيږى داخلق دَ صحيح فيصلې نه اخوا شوى دى اودَ صحيح لارې نه اوُختى دى چه په دې مكروه كاركښې مشغول شوى دى

**[۲۸۸٤] په توره مزين كولو كښې د لړو سپينو زرو خلط كولو جواز**

---

۳۸۸۳-[۲۴] ( ) [۱]وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ [۲]«كَانَتْ قَبِيعَةُ سَيْفِ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنْ فِضَّةٍ.» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

---

**ترجمه:** [۱]حضرت انس ﷺ وايي [۲]چې د رسول الله ﷺ د توري د قبضې توپى د سپينو زرو وه (ترمذي ابوداود نسائي دارمي)

**حل اللغات:** ①قَبِيعَةٌ: دَ توري توپئ ته وائى كوم چه دَ لاسكى نه شاته وى موټې هم ورته وائى

**تسهيلات:**

**قوله:** كَانَتْ قَبِيعَةُ سَيْفِ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنْ فِضَّةٍ:

**د ښائست دپاره په توره كښې د سپينوزوو د استعمال جواز:** په شرح السنه كښې ليكل شوى دى چه دا حديث په دې خبره دلالت كوى چه توره وغيره په چاندى باندى خائسته كول جائز دى البته په دې كښې سونا استعمالول جائز نه دى. هم دغه شان په جنګ كښې د استعماليدونكى چارې، خنجر، برچې وغيره هم دا حكم دې چه چاندى سره (مزين) خائسته كول جائز دى

**[۲۸۸۵] د نبى عليه السلام په توره كښې سره او سپين زر**

---

۳۸۸۵-[۲۵] ( ) [۱]وَعَنْ هُودِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ جَدِّهِ مَزِيدَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ [۲]: دَخَلَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمَ الْفَتْحِ [۳]وَعَلَى سَيْفِهِ ذَهَبٌ وَفِضَّةٌ، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

---

**ترجمه:** [۱]او هود ابن عبدالله ابن سعد دخپل نيكه دادا څخه چې د هغه نوم مزيده وو نقل

---

[۱] ) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجهاد ، باب فى كراهية الحمر تنزى على الخيل (رقم-۲۵۸۳) والترمذى فى السنن رقم الحديث ۱۶۹۱

[۲] ) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الجهاد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى السيوف وحليتها (رقم-۱۶۹۰)

کوي [۲] چې رسول الله ﷺ د مکې د فتح په ورځ په مکه کې داخل شو [۳] نو هغه وخت د حضور لاس مبارك کې چې کومه توره وه په هغه د سوني او سپین زرو کار شوی وو امام ترمذي دا روایت نقل کړي دی او ویلي یې دي چې دا حدیث غریب دی.

**تسهیلات:**

**قوله: وَعَلَى سَيْفِهِ ذَهَبٌ وَفِضَّةٌ:**

**په توره کښې د سرو زرو د لګولو حکم:** الحاصل ددې حدیث په بنیاد باندې دسونے استعمال جائز ګرځول صحیح نه دی ځکه چه ددې حدیث سند قوی نه دې بلکه ضعیف دې

**[۲۸۸٦] د نبی علیه السلام دوه زرغي اچول**

٣٨٨٦—[٢٦] (١) [١] وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] كَانَ عَلَيْهِ يَوْمَ أُحُدٍ دِرْعَانِ [٣] قَدْ ظَاهَرَ بَيْنَهُمَا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] سائب رضی الله عنه ابن یزید څخه روایت دی [۲] چې د غزوه اُحُد په ورځ د نبي کریم ﷺ په جسم مبارك دوه زغري وې [۳] حضور ﷺ یوه په بلې اغوستې وه (ابوداود ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① دِرْعَانِ: د دِرْعٌ جمع ده، دِرْعٌ زغرې ته وائی. ② قَدْ ظَاهَرَ: یودَ بل دَپاسه اغوستل.

**تسهیلات:**

**قوله: قَدْ ظَاهَرَ بَيْنَهُمَا:**

**دحدیث څخه معلومې شوې دوه مسئلې:** ① معلومه شوه دَ زیات نه زیات وسله استعمالول دَتوکل منافی نه دی. ② اوداهم معلومه شوه چه حضورپاك پخپله جنګ کړې دې او په ښه مکمل انداز کښې ئی کړې دې کوم خلق چه دا عیب یا شرم ګڼړی یادَدې نه انکارکوی هغوی دې دَخپل ایمان خیراوغواړی

**[۲۸۸۷] د نبی علیه السلام په جنډه کښې دوه رنګونه**

٣٨٨٧—[٢٧] (٢) [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ [٢]: «كَانَتْ رَايَةُ نَبِيِّ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سَوْدَاءَ، [٣] وَلِوَاؤُهُ أَبْيَضَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] ابن عباس رضی الله عنهما وایي [۲] د نبي کریم ﷺ لویه جنډه د تور رنګ وه [۳] او وړه جنډه د سپین رنګ (ترمذي ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① رَايَةٌ: قومی لویه جهنډه. ② سَوْدَاءَ: تور رنګې. ③ لِوَاءٌ: وړه جهنډا.

(١) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد/باب فی لبس الدّروع (رقم-٢٥٩٠) کتاب الجهاد عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب ما جاء فی السّیوف وحلیتها (رقم-١٦٩٠) و ابن ماجه فی کتاب الجهاد/باب السّلاح (رقم-٢٨٠٦) واحمد فی المسند: ٢٩٣/٣

(٢) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحدیث ١٦٨١ وابن ماجة رقم الحدیث ٢٨١٨

**تسهيلات:**

**قوله:** كَانَتْ رَايَةُ نَبِيِّ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- سَوْدَاءَ:

**د نبي عليه السلام د جنډې رنګ:** دا جهنډا توره وه اودَ توري مطلب دانه دې چه بالكل توره وه بلكه دَ لرې نه به توره ښكاريده اوكه دَ نيزدې نه به چا دې ته كتل نو په دې كښې به سپينې پټئي ښكاريدې اوهم دې ته نمره برګه وائي

**قوله:** -وَلِوَاؤُهُ أَبْيَضَ:

**سپينه جنډه دامن اشاره:** يعنى دَ حضورپاك جنګى وړه جهنډا به سپينه وه چه دَ امن طرف ته اشاره ده.

**[۲۸۸۸] د نبي عليه السلام د تورېټكي ذكر**

۲۸۸۸-[۲۸] ( ) ۱ وَعَنْ مُوسَى بْنِ عُبَيْدَةَ مَوْلَى مُحَمَّدِ بْنِ الْقَاسِمِ، قَالَ ۲: «بَعَثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْقَاسِمِ إِلَى الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، يَسْأَلُهُ عَنْ رَايَةِ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- . ۳ فَقَالَ: كَانَتْ سَوْدَاءَ مُرَبَّعَةً مِنْ نَمِرَةٍ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ موسى ابن عبيده رحمه الله چې د محمد ابن قاسم تابعي آزاد كرده غلام وو وايي ۲ يوه ورځ محمد ابن قاسم زه د حضرت براء رضي الله عنه ابن عازب صحابي ته وليږلم چې دا معلوم كړم چې د حضور ﷺ جنډه څنګه وه ۳ نو حضرت براء رضي الله عنه وفرمايل د حضور جنډه د تور رنګ وه ، د هغه كپړه چوكور او د نمره په شان وه، ,احمد ترمذي ابوداود,

**حل اللغات:** ① مُرَبَّعَةً: يعنى دَدې اوږدوالي او پلنوالي څلورګوټى وو ② مِنْ نَمِرَةٍ: دَ پړانګ په رنګ كپړې څخه جوړ شوې څادر

**تسهيلات:**

**قوله:** كَانَتْ سَوْدَاءَ مُرَبَّعَةً مِنْ نَمِرَةٍ:

**د نبي عليه السلام د جنډې رنګ:** هغه كمبل يا څادر ته وائي كوم كښې چه تورې او سپينې كرخې وى. او په لغت كښې نمر مشهور ځناور يعنى پړانګ ته وائي. نو ددې وجهې نه د كپړې تشبيه ئې داسې پړانګ سره وركړى ده دكوم په څرمنه باندې چه تورې او سپينې كرخې وى، نو ددې نه دا معلومه شو چه د نبى كريم ﷺ جهنډا بلكل توره نه وه بلكه تورې او سپينې كرخې په كښې موجود وې.

[1] ) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجهاد رقم الحديث ۲۵۹۱ والترمذى فى السنن رقم الحديث ۱۶۸۰

[۳۸۸۹] د نبوي جنډې سپين رنګ

۳۸۸۹ -[۲۹] () [۱] وَعَنْ جَابِرٍ: [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - دَخَلَ مَكَّةَ وَلِوَاؤُهُ أَبْيَضُ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] حضرت جابر ﷺ وايي [۲] نبي كريم ﷺ د مكي د فتح په ورځ په مكه كې داخل شو نو هغه وخت د حضور ﷺ لاس مبارك كې سپينه جنډه وه (ترمذي ابوداود ابن ماجه)

**تسهيلات: قوله:** وَلِوَاؤُهُ أَبْيَضُ:

**دنبی علیه السلام د جنډې سپين رنګ:** ددې حديث نه معلومه شوه چه دنبی كريم ﷺ جهنډا سپينه وه لهذا څرنګه چه توره جهنډا وه هم دهغه شان سپينه جهنډا هم وه

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

[۳۸۹۰] د نبی علیه السلام په نظر كښې د اسونو قدر او قيمت

۳۸۹۰- [۳۰] [۱] عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ [۲]: «لَمْ يَكُنْ شَيْءٌ أَحَبَّ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَعْدَ النِّسَاءِ مِنَ الْخَيْلِ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت انس ﷺ وايي [۲] د رسول كريم ﷺ په نظر مبارك كې د ښځو څخه وروسته (د جهاد مقاصدو د پاره) د آسونو څخه زيات محبوب او خوښ بل هيڅ څيز نه وو. (نسائي)

**تسهيلات:**

**قوله:** بَعْدَ النِّسَاءِ مِنَ الْخَيْلِ:

**د نبی علیه السلام د اسونوسره محبت:** امام طيبى رحمه الله فرمائى چه د اسونو ذكر د جهاد څخه كنايه ده يعنى د نبى عليه السلام ښځو سره د مينې څخه پس په جهاد كښې د اسونو سره مينه وه په دې كښې دې طرف ته اشاره ده چې جهاد ته پوره توجه وركول پكار دى

**د نبی علیه السلام د ښځو سره محبت:** په يو حديث كښې نبى كريم ﷺ فرمايلى دى حبب إلي الطيب والنساء دلته نساء سره ئي خوشبو محبوبه ګرځولې ده ښځې هم محبوب دى او ددې نه پس محبوب ترين څيز په جهاد كښې استعماليدونكى اسونه دى كله چه ددې احاديثو نه معلومه شو چه نبى كريم ﷺ ته ښځې او اسونه محبوب وۆ نو ددې وجهې نه دا وهم ذهن ته راځى چه نبى كريم ﷺ ازدواجى ژوند طرف ته ډير مائل وۆ،

---

[۱]) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجهاد /باب فى الرّايات والألوية (رقم-۲۵۹۲) والترمذى فى كتاب الجهاد عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم /باب ما جاء فى الألوية (رقم-۱۶۷۹) و ابن ماجه فى كتاب الجهاد /باب الرّايات والألوية (رقم-۲۸۱۷)

**د نبی علیه السلام د ښځو سره د محبت وجه،** ملا علی قاری رحمه الله فرمائی چې نبی کریم ﷺ په یو وخت کښې د څلور زره کسانو طاقت لرلو، او هر یو کس له څلور ښځو سره واده کول جائز دی نو ګویا چه دا ټول تعداد شپاړس زره جوړیږی او بنی کریم ﷺ په یو وخت کښې د دومره زنانو سره د واده کولو طاقت لرلو مګر نبی کریم ﷺ دومره طاقت باوجود هم نهه ښځې کړې وې او دا د نبی کریم ﷺ یو کمال هم دې (مرقاة،ج۷،ص۳۲۵)

**دحدیث څخه دوه خبرې معلومیدل:** ① ددې حدیث نه معلومه شوه چه خپلو ښځو سره محبت کول دا د کمال تقوی دلیل دې ځکه چه کوم کس چه د خپلې ښځې سره محبت کوی نو هغه به د پردو ښځو طرف ته نه مائل کیږی

② جهاد سره محبت کول دا د کمال ایمان دلیل دې کوم کس چه جهاد سره محبت لرې نو هغه به دا غواړی چه اسلام ته طرقی ملاو شی.

**[۳۸۹۱] دعربي لیندو د ساتلو ترغیب**

٣٨٩١ـ[٣١] (١) ① وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ ②: «كَانَتْ بِيَدِ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَوْسٌ عَرَبِيَّةٌ ③ فَرَأَى رَجُلًا بِيَدِهِ قَوْسٌ فَارِسِيَّةٌ، ④ قَالَ: "مَا هَذِهِ؟ أَلْقِهَا، وَعَلَيْكُمْ بِهَذِهِ وَأَشْبَاهِهَا وَرِمَاحِ الْقَنَا ⑤ فَإِنَّهَا يُؤَيِّدُ اللّٰهُ لَكُمْ بِهَا فِي الدِّينِ وَيُمَكِّنُ لَكُمْ فِي الْبِلَادِ» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① او حضرت علي رضي الله عنه وايي ② په [یو میدان کې یا هسې په یوه موقع] د رسول کریم ﷺ په لاس مبارك کې عربي لینده وه ③ هرکله چې حضور ﷺ د یو صحابي سړي په لاس کې فارسي ایرانئ لینده ولیدله ④ نو وي فرمایل دا څه دي؟ دا وغورځوه تاسو ته داسې یعنې عربي لینده ساتل پکار دی او تاسو ته کاملي نیزی ساتل پکار دی ⑤ یقیناً د دې په ذریعه به الله ﷻ دین سربلند کولو کې ستاسو مدد وکړو او د دښمنانو ښارونو کې به تاسو جم کړي. (ابن جامه)

**حل اللغات:** ① قَوْسٌ: لینده. ② رِمَاحٌ: نیزه. ③ الْقَنَا: نیزه. ④ يُؤَيِّدُ: مدد کوی. ⑤ يُمَكِّنُ: قوت ورکوی

**تسهیلات:**

**قوله: فَرَأَى رَجُلًا بِيَدِهِ قَوْسٌ فَارِسِيَّةٌ:**

**د کمان دوه قسمونه:** ① یو عربی کمان وی دَحضورپاك په لاس مبارك کښې عربی کمان وو ② دویم فارسی کمان وی دَ یو صحابی په لاس کښې فارسی ایرانی کمان وو. حضورپاك دا خوښ نه کړو اووئی فرمائیل دا اوغورزوه اوعربی کمان په لاس کښې واخله او استعمال ئی کره

---

[۱] ) اخرجه ابن ما جه في السنن كتاب الجهاد/باب السّلاح (رقم-۲۸۱۰)

**د فارسی لیندې نه ځوښولو دوه وجوهات:** ① ملاعلی علی قاری رحمه الله علامه طیبی رحمه الله او نورو شارحینو حضرات فرمائی چه دَدغه صحابی خیال وو چه فارسی کمان مضبوط وی دې سره مونږ ته دَ زیات نه زیات فتوحات حاصلیږی په دې باندې حضورپاك اوفرمائیل ستا خیال صحیح نه دې آلات حرب اوضرب سره فتوحات نه حاصلیږی بلکه دادَ الله تعالی په نصرت او امداد سره حاصلیږی دا نصیحت په خپل ځائی بالکل صحیح دې

② حضورپاك په فارسی کمان باندې عربی کمان ته ولې ترجیح ورکړه؟ ما دَ بعضې علماؤ نه اوریدلی دی چه عربی کمان دَ ماتیدونه پس هم په جنګ کښې په کار راتللو مګر فارسی کمان کښې دا صفت نه وو په دې وجه حضورپاك دَ عربی کمان دَ ښکلې کیدو دَ وجې نه دَ دې دَ اختیارولو حکم ورکړو دا یوه ډیره ښه توجیه ده افسوس چه چرته په کتاب کښې لیکلې وې

③ حضورپاك دَخپلې علاقې او قومی وسلې حوصله افزائی کړې ده چه عربی کمان زمونږ جوړکړې شوې دې مونږ له په دې باندې اِعتماد کول پکاردی اودَ بل په جوړه شوې وسله باندې خپل قومی بنیاد نه دی کیخودل پکار حضرت خالد رضی الله عنه به هم په عام جنګونو کښې خپلې قومی وسلې ته ترجیح ورکوله که دَ غیرو وسله به هرڅومره ښکلې ولې نه وه دَ حدیث سیاق اوسباق دې دواړو توجیهاتو سره بالکل موافق دې ځکه چه حضورپاك فرمائیلی دی چه هم دَدې وسلې اوجهادپه برکت باندې الله تعالی په دین کښې ستاسو امدادفرمائی او په ملکونو کښې تاسو کلکوی

# [۲] بَابُ آدَابِ السَّفَرِ

## دَ سفر دَ آدابو بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه أربعة وثلاثون حديثاً مشتملة على سبع عشرة مسئلة:**

① الوقت المناسب للسفر: ١، ١٧، ١٨، ٣١.

② المنع عن الوحدة في السفر وفضيلة الجماعة: ٢، ١٩، ٢٠.

③ المنع عن مصاحبة بعض الأشياء في السفر: ٣، ٤، ٥، ٣٣.

④ الإحسان مع دواب السفر: ٦، ٢٥، ٢٦.

⑤ الإحسان مع من عجزت دابته عن السفر: ٧، ٢٨.

⑥ المنع عن السفر بلا ضرورة: ٨.

⑦ استحباب استقبال المسافر: ٩.

⑧ جواز الإرداف على الدابة: ٩، ١٠.

⑨ وقت القدوم على الأهل: ١١، ١٢، ١٣، ١٥، ٣٠.

⑩ إعطاء الصدقة بعد القدوم من السفر: ١٤.

⑪ سنية دخول المسجد بعد القدوم من السفر: ١٥، ١٦.

⑫ حكم التأمير في السفر: ٢٠.

⑬ تعقيب الأمير والإعانة مع الرفقاء: ٢٢، ٣٤.

⑭ آداب النزول في الطريق: ٦، ٢٣، ٢٩.

⑮ التناوب على الدآبة: ٢٤.

⑯ الركوب على مقدم دابة الغير بإذنه: ٢٧.

⑰ طريق الاستراحة في التعريس: ٣١.

**حل اللغات:** ①آداب: دَدې مفرد ادب دې احترام كول. د حق خيال ساتل. ②لَايَطْلُبُونَ: اونه رِدى دوى قدمونه. ③مَوْطِئًا: په داسې لار. ④وَلَايَنَالُونَ: اونه حاصلوى دوى. قابو كوى نه. ⑤نَيْلًا: په حاصلولو سره. په قابول كولوسره.

**تسهيلات: قوله:** آدَابِ السَّفَرِ:

**د ادب تعريف:** خصائل حميده خپلول او خصائل رذيله نه دَبچ كيدلونوم ادب دې يعنى هرخيزته دَ هغه جائزمقام اومناسب حق وركولونوم ادب دې.

**د نبي كريم ﷺ غير جهادي سفرونه**: دَ سفرنه مراد عام اومطلق سفردي مگردلته زيات تر دَحضورپاك دَ جهادي سفرونو او دَ هغې دَ آدابوبيان كړې شوې دې.
① حضورپاك دَ نبوت ملاويدونه وړ اندې دَ ديارلسوكالوپه عمركښې دَ شام طرف ته يو سفركړې وو كوم چه نامكمل پاتې شوې وو اوحضورپاك مكې مكرمې ته واپس راغلې وو.
② بياحضورپاك دَ ۲۵ كالوپه عمركښې دَشام طرف ته دَتجارت په غرض دويم سفركړې وو.
③ دَ نبوت ملاويدونه پس دَحضورپاك يوسفردَمكې نه طائف طرف ته شوې وو دَدې مقصد دَطائف والوته دَاسلام دعوت هم وركول وو اودَخپلو ملگرودَپاره دَ امن اوپناه ځائې لټول هم مقصود وو.
④ بيا دَمكې نه مدينې طرف ته حضورپاك ۵۳ كالوپه عمركښې دَ هجرت يوعظيم الشان سفر كړې وو
⑤ دَ مدينې منورې نه په ۶هجرى كښې دَحضورپاك يوسفردَ عمرې دَپاره اوشو چه په حديبيه باندې ختم شو اوحضورپاك بغيردَ عمرې نه مدينې ته لاړو.
⑥ بيا راتلونكى كال كښې دَ عمرة القضاء يوسفرشوې وو.
⑦ بيا په لسم هجرى كښې حضورپاك دَ حج په اراده دَ يولاك پينځه ويشت كم وزيات صحابه كراموسره دَحجة الوداع سفر اوكړو.
**دنبى كريم ﷺ جهادى سفرونه**: دَ حضورپاك دَ دغه اووه سفرونو نه علاوه باقى ټول سفرونه دَجهاد دَپاره شوى دى چه په جزيرة العرب كښې دننه وو دَ جزيره عرب نه بهردَ حضور پاك يوجهادى سفرشوې وو چه دَ غزوه تبوك دَپاره دَ شام دَ زمكې طرف ته شوې وو
**د جهادى سفر آداب**: بهرحال دَجهاددَ سفريوڅو آداب هم ليكلې كيږى اوګورئى
① په عدد او عُدد باندې نظرلاړنه شى بلكه چه صرف په الله تعالى باندې يقين وى اوتعلق مع الله ښه مضبوط وى.
② چه دَاعلاء كلمة الله خالص نيت وى
③ دَ فتح نه پس دې نه تكبركوى نه ظلم بلكه عاجزى دې كوى
④ اوچت ځائى اوښكته ځائى ته دَ تللوراتللو په وخت ژبه دَالله تعالى په ذكراو الله اكبر په نعروسره ګويا وى
⑤ چه سفردَحضوراكرم دَ طريقې مطابق وى
⑥ بغيردَ څه تكبر نه ډير په عاجزئى سره لاړشى او راشى
⑦ په خپل مينځ كښې جګړه او اختلاف نه وى بلكه تعاون وى
⑧ دښمن سره دَ جنګ خواهش اونه كړې شى خوچه كله جنګ وى نو په ثابت قدم اوسيدوسره دې ښه صبركوى.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۲۸۹۲] د زيات په ورځ د سفر خوښول

۳۸۹۲—[۱] (¹) [۱] عَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ [۲]: أَنَّ النَّبِيَّ خَرَجَ يَوْمَ الْخَمِيسِ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ، [۳] وَكَانَ يُحِبُّ أَنْ يَخْرُجَ يَوْمَ الْخَمِيسِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] كعب ﷺ ابن مالك راوي دى [۲] چې نبي كريم ﷺ غزوه تبوك د پاره د زيارت جمعرات په ورځ روان شوى وو [۳] او حضور ﷺ داخوښوله چې د جهاد د سفر ابتداء د جمعرات زيارت د ورځې شخه وكړي (بخاري)

**حل اللغات:** ① يَوْمَ الْخَمِيسِ: دَ زيارت ورځ ته خميس وائي.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَكَانَ يُحِبُّ أَنْ يَخْرُجَ يَوْمَ الْخَمِيسِ:

**د نبي عليه السلام د زيات په ورځ سفر كول:** دَ رسول الله ﷺ به اكثر سفرونه هم دَخميس په ورځ كيدل اوكله كله دَ دې خلاف هم شوى دى.

د زيارت په ورځ د سفر كولو درې وجوهات:

① په خميس خُمس كښې مناسبت لفظى دې خمس دَ مال غنيمت حصې ته وائى

② دَ ټولې هفتې اعمال دَخميس په ورځ الله تعالى ته وړاندې كولې شى دَ جهادلوئى عمل هم په دې ورځ وى نوځه ښه به وى.

③ دَ رسول الله ﷺ دَ لښكرنوم الخميس وو دكوم چه به پنځه حصې وې يعنى "مقدمة الجيش، ساقة الجيش، ميمنة الجيش، ميسرة الجيش او قلب الجيش" هم دَدې په مناسبت سره به حضورپاك دَخميس په ورځ سفركولو

يهوديانو په خيبركښې دَ حضورپاك لښكر اوليدلو نوهغوى په دې موقع باندې اووئيل "محمد والخميس والله" په دې وجه د تفاول په توګه حضورپاك دَخميس ورځ عموماً دَ سفرد پاره خوښه كړې ده

### [۲۸۹۳] يواځې د سفر كولو ممانعت

۳۸۹۳—[۲] (²) [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: " [۲] «لَوْ يَعْلَمُ النَّاسُ مَا فِي الْوَحْدَةِ مَا أَعْلَمُ، [۳] مَا سَارَ رَاكِبٌ بِلَيْلٍ وَحْدَهُ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

¹) اخرجه البخاري في كتاب الجهاد والسّير /باب من أراد غزوة فورّى بغيرها. ومن أحبّ الخروج يوم الخميس (رقم-۲۹۵۰) و ابو داود في كتاب الجهاد /باب في أيّ يوم يستحبّ السّفر (رقم-۲۶۰۵) واحمد في المسند: ۴۵۵/۳-۴۵۶

²) اخرجه البخاري في كتاب الجهاد والسّير /باب السّير وحده (رقم-۲۹۹۸) وابن ماجه في كتاب الأدب /باب فضل لا إله إلّا الله (رقم-۳۷۹۸) واحمد في المسند: ۲۳/۲

**ترجمه:** [۱]حضرت عبدالله ابن عمر ﷺ وايي رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲]كه خلق داخيز كوم چې تنها يوازي سفر كولو څخه پيښيږي دومره پوهه شي څومره چې زه پوهه يم [۳]نو هيڅ سوار به د شپي هيڅ كله د سفر كولو همت اونكړی (بخاري)

**حل اللغات:** ①سَارَ: سفر كول

**تسهيلات:** **قوله:** مَاسَارَرَاكِبٌ بِلَيْلٍ وَحْدَهُ:

**د ځانله سفركولو ممانعت:** يعنی دَ ځان له سفركولوچه كوم دنياوی اواخروی نقصانات ماته معلوم دی كه هغه چاته معلوم شی نوهيڅ يوسور به ځان له سفر اونه كړی.

**د ځانله سفر كولو دنياوی اواخروی نقصانات:** ① دنياوی نقصان دادې چه دَحادثې په وخت يا دَ سامان دَ حفاظت په وخت دَهغه دَ امداددَپاره به څوك هم نه وی اوخاص كر چه كله دَجهاد زمانه وی نودَ ځان له سړی دَپاره به دَ ځان څومره خطره وی.

② دينی نقصان خودادې چه په جمع سره مونځ ځان له سړی ته نه نصيب كيږی

**په موجوده زمانه كښې د ځانله سفر كولوحكم:** ①نن صبا دَ اجتماعی اسفارو ترتيب وی څوك هم چرته يواځې نه وی. كيدې شی په دې سفر كښې او دَ پخوانی زمانې په سفركښې فرق وی پخوا زمانه كښې آبادی كمه وه خلق كم وو نو ځانله سفر كول به ډيرو خطراتو سره مخ وو. په موجوده زمانه كښې آسانتيا زياته ده او آبادی هم ډيرې دی ددې وجې هغه خطر نشته كوم چې په پخوانی زمانه كښې وو

② په هغه وخت كښې كښې خلق فارغ او اوزګار وو د دنيا محبت نه وو نن صبا هر سړې د دنيا په كارونو كښې مشغول دې. كه يو ملګرې بل ته اووائی چې ما سره فلانی ځائې ته لاړ شه هغه په مشكله تياريږی.

③ پخوا مينه محبت زيات وو او نن صبا خود غرضی ده د دې وجې يوبل سره سفرونه او دهغې مشكلات نشی برداشت كولې

خوددې هرڅه باوجود فائده اوګټه په اجتماعی سفر كښ ده ځانله سفر په هيڅ صورت كښې د اجتماعی سفر مرتبې ته نشی رسيدې

**[۳۸۹٤] د قافلې سره د سپی او جرس په موجودګۍ كښې د فرشتو عدم مرافقت**

٣٨٩٣-[٣]()[۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲]" «لَا تَصْحَبُ الْمَلَائِكَةُ رُفْقَةً فِيهَا كَلْبٌ وَلَا جَرَسٌ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

[1] ) اخرجه مسلم فی كتاب الأشربة/باب كراهة الكلب والجرس فی السفر(رقم-١٠٣ - (٢١١٣) و ابو داود فی كتاب الجهاد/باب فی تعليق الأجراس (رقم-٢٥٥٥) والترمذی فی كتاب الجهاد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی كراهية الأجراس علی الخيل (رقم-١٧٠٣) واحمد فی المسند: ٢٦٢/٢

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوهريره رضی الله عنه وایي ۲ چې رسول کریم ﷺ وفرمایل هغه قافلي سره فربنتي نه وي کومي کې چې سپی او جرس وي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① رُفْقَةٌ: قافله ② جَرَسٌ: ګنګرو، ټلئ.

**تسهیلات:**

**قوله:** لَا تَصْحَبُ الْمَلَائِكَةُ رُفْقَةً:

**د فرشتو څخه مراد:** دَرحمت فربنتي مراددی هغه به نه وی دَرحمت فربنتي اوکراما کاتبین خو ورسره وی دَ جرس نه مراد ګهنګرو او ټلئی مراد دی کومې چه غربیږی په دې سره دَ موسیقئی حرمت په آسانئی سره معلومیږی

**قوله:** فِيهَا كَلْبٌ:

**د سپی څخه مراد:** دَ سپی نه شوقیه سپې مراددې کلب صید یا کلب حراسه یعنی ښکاری اودَ څوکئی سپې مراد نه دې.

**[۳۸۹۵] جرس باندې د شیطانی باجې اطلاق**

۳۸۹۵ - [۳] (۱) ۱ وَعَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۲ «الْجَرَسُ مَزَامِيرُ الشَّيْطَانِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوهريره رضی الله عنه څخه روایت دی ۲ چې رسول کریم ﷺ وفرمایل جرس یعنی (ګنګرو او ګنټی) مزامیر شیطان یعنی شیطاني باجی دی (مسلم)

**حل اللغات:** ① مَزَامِيرُ: د مزمار جمع ده، باجې. سرود

**تسهیلات:**

**قوله:** الْجَرَسُ مَزَامِيرُ الشَّيْطَانِ:

**د مزامير لفظ جمع راوړلو وجه:** مزامیر لفظ ئی دجمع څکه ذکر کړو چه ددې په آواز کښې داسې تسلسل وی کوم چه نه منقطع کیږی.

**جرس ته د مزامير الشيطان ویلووجه:** او جرس ته مزامیر شیطان ددې وجهې نه وئیلې شوی دی چه دا انسان د ذکر واستغراق او د عبادت د مشغولیت نه وباسی

(۱) اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة/باب کراهة الکلب والجرس فی السفر(رقم-۱۰٤ - (۲۱۱٤) و ابو داود فی کتاب الجهاد/باب فی تعلیق الأجراس (رقم-۲۵۵٦) واحمد فی المسند:۲/۳۸۲

**[٢٨٩٦] د اوښ په غاړه کښې د ليندې نه پريښودلو اعلان**

٣٨٩٠-[٥] ()① وَعَنْ أَبِي بَشِيرٍ الْأَنْصَارِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: أَنَّهُ ②«كَانَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي بَعْضِ أَسْفَارِهِ، فَأَرْسَلَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- رَسُولًا: ③لَا تُبْقَيَنَّ فِي رَقَبَةِ بَعِيرٍ قِلَادَةٌ مِنْ وَتَرٍ، أَوْ قِلَادَةٌ إِلَّا قُطِعَتْ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابو بشير انصاري ﷺ څخه روايت دی ② هغه په يو سفر کې د رسول کريم ﷺ سره ملګری وو نو هغه بيان کوي چې د هغه سفر په موقع رسول کريم ﷺ يو سړی قافلې ته د دې حکم اعلان کولو د پاره وليږلو ③ چې د اوښ په څټ کې دې د ليندی د جی پټې باقي نشي ساتلی يا دايي وفرمايل چې پټې دې باقي نشي ساتلی بلکه پرې دې کړی شي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① لَا تُبْقَيَنَّ: باقی دې نه شی ساتلې کيدې. پاتې دې نه پريږدی. ② رَقَبَة: څټ. مرۍ. ③ بَعِير: اوښ. ④ قِلَادَةٌ: غاړکۍ. ⑤ وَتَر: د ليندې غاړه.

**تسهيلات: قوله:** لَا تُبْقَيَنَّ فِي رَقَبَةِ بَعِيرٍ قِلَادَةٌ مِنْ وَتَرٍ:

**د ممنوع قلاده څخه مراد:** دَ قلاده ممانعت څکه راغلي دې چه په دې کښې کړنګيدونکی ګونګروګان وی اوکه چرې ګونګرو نه وی اوڅه شرکيه پټئی نه وی نوصرف دَ قلادې يعنی غاړکئی ممانعت نه دې

**قوله:** إِلَّا قُطِعَتْ:

**د قلادې د کټ کولو درې وجوهات:** ① نبی کريم ﷺ د قلاده کټ کولو حکم ددې وجهې وفرمائيلو چه خلقو به دې سره ګنګرې تړلو او دا څيزونه دمزامير الشيطان څخه دی او درحمت د فرښتو دپاره مانع دی.

② په قلاده کښې باجه او آواز والا څيزونه شامل دی دَ دومو په آواز سره چه دښمن ته مونږ کونکو او دمجاهدينو د نقل وحرکت پته لګيدله.او دا د جنګی تدابير خلاف دې

③ بعضو خلقو به يو غلط رسم هم کولو او د هغې طريقه دا وه چه خلقو به د ځناورو په مرې کښې يو پټې اچوله اوداګمان به ئې کولو چه په دې بټې سره به ځناوردآفتونو وغيره نه محفوظ وی لهذا نبی کريم ﷺ ددې نه منع وفرمايه څکه چه هيڅ يو څيز هم د الله تعالی فيصله نشی بدلولې. نن صبا هم خلق داسی غلط حرکتونه کوی نو دا ټول منع دی.

---

() اخرجه البخاری فی كتاب الجهاد والسّير/باب ما قيل فی الجرس ونحوه فی أعناق الإبل (رقم-٣٠٠٥) ومسلم فی كتاب الأشربة/باب كراهة قلادة الوتر فی رقبة البعير (رقم-١٠٥ - (٢١١٥) و ابو داود فی كتاب الجهاد/باب فی تقليد الخيل بالأوتار (رقم-٢٥٥٢) ومالک فی الموطا كتاب صفة النّبيّ صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فی نزع المعاليق والجرس من العنق (رقم-٣٩) واحمد فی المسند:٥/٢١٦

**[۲۸۹۷] په اوښانو د سفر کولو څو اداب**

۲۸۹۷—[۲] (¹) [۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲]" «إِذَا سَافَرْتُمْ فِي الْخِصْبِ فَأَعْطُوا الْإِبِلَ حَقَّهَا مِنَ الْأَرْضِ، [۳]وَإِذَا سَافَرْتُمْ فِي السَّنَةِ فَأَسْرِعُوا عَلَيْهَا السَّيْرَ، [۴]وَإِذَا عَرَّسْتُمْ بِاللَّيْلِ فَاجْتَنِبُوا الطَّرِيقَ فَإِنَّهَا طُرُقُ الدَّوَابِّ، وَمَأْوَى الْهَوَامِّ بِاللَّيْلِ» ". [۵]وَفِي رِوَايَةٍ: " «إِذَا سَافَرْتُمْ فِي السَّنَةِ فَبَادِرُوا بِهَا نِقْيَهَا» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[۱]او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲]هرکله چې تاسو دآبادکالي زمانه کې په اوښانو سفر کوئ نو هغه او ښانو ته د هغوی د زمکې څخه د خوارك حق ورکوئ يعنی هغوی ته د وابښو خوړلو موقع ورکوئ په دي طور چې د سفر په دوران کې لږ لږ ساعت وروسته څريدو د پاره پريږدي چې هغوی په ډکه خيټه څري او تيزځي [۳]او هرکله چې تاسو د قحط سالی په زمانه کې سفر کوئ نو په هغوئ تادي سره سفر کوئ يعنی د سفر په دوران کې په لاره کې تاخير مه کوئ چې اوښان د پوره خوراك نه پيدا کري دو په وجه کمزوري کې مبتلا کيدو څخه مخکې تاسو منزل مقصود ته ورسوي [۴]او هرکله چې تاسو په شپه کې چرته پړاؤ کوئ نو په لار کې پړاؤ مه کوئ ځکه چې په هغه چوپايه ګرځي او هغه د موذي زهريلا حيوان لکه مار لړم وغيره مسکن او د هغوی ګذرګار وي [۵]او په يو روايت کې دادي چې هرکله تاسو د قحط سالي په زمانه کې په اوښانو سفر کوئ نو په تيزی سره سفر قطع کوئ هرکله چې په اوښانو کې ګودا يعنی د بدن طاقت موجود وي. (مسلم)

**حل اللغات:** ①الْخِصْبِ: دَ آبادنی ارزانئی او آسانئی په زمانه کښې سفرته الخصب وائی ② السَّنَةِ: خشک سالی. اوچ کالی . قحط ③عَرَّسْتُمْ: تعريس دَ شپې په آخری حصه کښې ډيره اچول ④طُرُقُ الدَّوَابِّ: د خناور لاره. ⑤وَمَأْوَى: تيکاونره. د اوسيدو ځائ ⑥الْهَوَامِّ: حشرات الارض. موذی ځناور ⑦فَبَادِرُوا: جلتی اوکرئ. تيزی کوئ. ⑧نِقْيَهَا: قوت او طاقت دهغې.

**تسهيلات:**

**قوله: فَاجْتَنِبُوا الطَّرِيقَ:**

**په لاره کښې د شپې تيرولو ممانعت**: يعنی په لارکښې قيام مه کوئی بلکه دَ لارې نه اخوا شپه تيره کرئی دې دپاره چه ځناور او حشرات الارض او جناتو نه بچ شئی ځکه چه دَ شپې دا ځيزونه په لارو باندې راځی

¹) اخرجه مسلم فی کتاب الإمارة/باب مراعاة مصلحة الدّوابّ فی السّیر، والنّهی عن التّعریس فی الطّریق (رقم-۱۷۸-۱۹۲۶) و ابو داود فی کتاب الجهاد/باب فی سرعة السّیر والنّهی عن التّعریس فی الطّریق(رقم-۲۵۶۹) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب (رقم-۲۸۵۸) واحمد فی المسند:۲/۳۷۸

**[۲۸۹۸] په سفر کښې د ضرورت مند ملګری خیال ساتل**

۲۸۹۸-[۷] ()[۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ[۲]: «بَيْنَمَا نَحْنُ فِي سَفَرٍ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذْ جَاءَهُ رَجُلٌ عَلَى رَاحِلَةٍ فَجَعَلَ يَضْرِبُ يَمِينًا وَشِمَالًا، [۳] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "مَنْ كَانَ مَعَهُ فَضْلُ ظَهْرٍ فَلْيَعُدْ بِهِ عَلَى مَنْ لَا ظَهْرَ لَهُ [۴] وَمَنْ كَانَ لَهُ فَضْلُ زَادٍ فَلْيَعُدْ بِهِ عَلَى مَنْ لَا زَادَ لَهُ" [۵] قَالَ: فَذَكَرَ مِنْ أَصْنَافِ الْمَالِ [۶] حَتَّى رَأَيْنَا أَنَّهُ لَا حَقَّ لِأَحَدٍ مِنَّا فِي فَضْلٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [۱] او ابو سعید خدري ﷺ وايي [۲] په يوه موقع چې مونږ رسول الله ﷺ سره په سفر کې ملګري وو اچانك يوسړی رسول الله ﷺ ته په اوښ راغلو او اوښ يي د کمزوري څخه چپه ولپه تاويدل شروع کړل [۳] په دي ليدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل کوم سړي سره چې د خپل ضرورت څخه زياته سورلی وي هغه ته پکار دی چې هغه سورلی هغه سړي ته ورکړي د کوم سره چې سورلی نه وي [۴] او کوم سړي سره چې د خپل ضرورت څخه زيات د خوراك څښاك سامان وي هغه ته پکار دی چې هغه د خوراك څښاك سامان هغه سړي ته ورکړي د کوم سره چې د خوراك څښاك سامان نه وي [۵] راوي وايي د دې څخه وروسته حضور ﷺ د مال او د څيزونو د اقسامو ذکر وکړو [يعنی حضور ﷺ د څيزونو نوم اخستو سره وفرمايل کوم سړي سره چې فلانی شی او فلانی شی مثلًا کپړه وغيره د خپل حاجت څخه زياته وي نو هغه په هغه سړي خرچ کول پکار دي کوم سړي سره چې هغه سره شی نه وي] [۶] تردي چې [د حضور ﷺ ترغيب او نصيحت سره] مونږ ته احساس وشو [چې په مونږ کې چاته هغه شي باندې] څه حق نشته چې د هغه سره د هغه د ضرورت څخه زيات دی [بلکه د هغه شي حقيقي مستحق هغه سړی دی چې هغه وخت د هغه څيزونو څخه محروم دی] (مسلم)

**حل اللغات**: ① رَاحِلَةٍ: اوښ، سورلی. ② يَضْرِبُ: ټالئ وهل، تاوول. ③ ظَهْرٌ: شا، سورلی. ④ فَلْيَعُدْ: د عَادَ يَعُوْدُ نه په معنی د واپس کولو، او احسان کولو، ⑤ زَادٍ: توښه، د خوراک څکاک سامان.

**تسهيلات:**

**قوله: يَضْرِبُ يَمِينًا وَشِمَالًا:**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① شارحين حديث د دې حديث دا مطلب بيان کړې دې چه د دې سړی سورلی دومره کمزورې شوې وه چه هغه اودريدې نه شوه. په دې وجه هغه يوطرف نه اوبل طرف ته ټالئی خوړلې او پريشانه وه او هغه سړی به دا ښی اوګس طرف ته تاوهله دا توجيه بعيده

(۱) اخرجه مسلم فی کتاب اللقطة/باب استحباب المؤاساة بفضول المال (رقم-۱۸ - (۱۷۲۸)) و ابو داود فی کتاب الزّکاة/باب فی حقوق المال (رقم-۱۶۶۳) واحمد فی المسند: ۳/۳۴

② یضرب دَ تاوولو په معنی کښې دې. چنانچه دَمسلم شریف په یوروایت کښې دَ یصرف لفظ موجود دې چه دَ راتاوولو په معنی کښې دې. دَ مسلم په دې روایت کښې دَ یصرف نه پس بصره لفظ هم موجود دې. په دې سره مطلب نورزیات واضح شو. دَ دغه سړی سورلی چونکه ډیره زیاته ستړې شوې وه اوهغه سره دَ سفر سامان هم نه وو په دې وجه هغه نبی اوګس طرف ته ستړګې تاوولې چه یومسلمان دَهغه امداداوکړی. نو په دې توجیه سره به پوره حدیث باندې پوهیدل آسان شی خکه چه دې نه پس حضورپاك دغه سړی سره دَامداد کولوترغیب ورکړې دې.

**قوله: فَلْيَعُدْ بِهِ:**

**د فليعد په مفهوم كښې دوه اقوال:** ① په اساس البلاغه کښې علامه زمخشری رحمه الله دَدې معنی رفق اونرمی خودلې ده. ای فلیرفق به، یقال هذا الأمر أعود علیك، أی أرفق بك. علامه طیبی رحمه الله دا معنی لیکلې ده

② په منجد کښې یې لیکلی دی چه عادیعود واپس کولو او احسان په معنی کښې دې "یقال عادالسائل ای ردّهٔ وصرفه، عادفلانًا بالمعروف صنعه معه" یعنی هغه سره ئې احسان اوکړو. دَ زیر بحث حدیث مناسب هم دغه معنی ده

**د نبی علیه السلام د ترغیب اثر:** مطلب دا شو چه کوم سړی سره څه زیاتی سورلی یا سامان وی هغه دې په خپل محتاج رور باندې احسان اوکړی وردې کړی. حضورپاك دومره ترغیب ورکړو چه صحابه کرامو خیال اوکړوچه په زیاتی سامان باندې دَهغوی هیڅ حق نشته دې

**[۲۸۹۹] دسفری مقصد پوره کیدو څخه روسته کورته تلوار کول**

۲۸۹۹—[۸] (¹) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«السَّفَرُ قِطْعَةٌ مِنَ الْعَذَابِ، يَمْنَعُ أَحَدَكُمْ نَوْمَهُ وَطَعَامَهُ وَشَرَابَهُ، [۳] فَإِذَا قَضَى نَهْمَتَهُ مِنْ وَجْهِهِ فَلْيُعَجِّلْ إِلَى أَهْلِهِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهریره رضي الله عنه وایي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] سفر د عذاب یوه ټکره ده چې تاسو نه خو آرام او راحت سره خوب ته پریږ دي او نه طریقي سره خوراك څنباك ته مو پریږدي [۳] هرکله چې په تاسو کې یوسړی چرته په سفر باندې ولاړ شي او د خپل سفر غرض پوره کړي یعنی د کوم مقصد د پاره چې یې سفر کړي دی هغه مقصد

---

¹) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسیر/باب السرعة فی السیر (رقم-۳۰۰۱) ومسلم فی کتاب الإمارة/باب السفر قطعة من العذاب. واستحباب تعجیل المسافر إلی أهله بعد قضاء شغله (رقم-۱۷۹ - (۱۹۲۷) ومالک فی الموطا کتاب الاستئذان/باب ما یؤمر به من العمل فی السفر(رقم-۳۹) واحمد فی المسند:۲/۴۹۶

پوره شي نو هغه ته پکار دی چې خپل کور والاوو ته په واپس راتلو کې تادي وکړي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ①نِطْعَةٌ: ټکړه. حصه. ②نَهْمَتَهُ: ضرورت، حاجت

**تسهیلات:**

**قوله: فَإِذَا قَضَى نَهْمَتَهُ مِنْ وَجْهِهِ فَلْيُعَجِّلْ إِلَى أَهْلِهِ:**

**دحکم په اعتبار سره د سفر دوه قسمونه:** ① د سفر یو قسم واجب اوفرض وی لکه د حج سفر وغیره نود داسې واجب سفر کښې دا حکم نه دې سره دَدې چه دا حدیث هغې ته هم شاملیدې شی

②دویم قسم غیرواجب سفر لکه عام تجارتی یا سیاحی سفر یعنی که غیرواجب سفر وی او هغې ته مسافر متوجه کیدوسره دَمقصد پوره کولودَپاره تلې دې دَ هغه ځائی نه چه کله مقصد پوره شی نوزر دې کورته واپس راځی داحکم دَ غیرواجب سفرونو دَپاره دې

**قوله: السَّفَرُ قِطْعَةٌ مِنَ الْعَذَابِ:**

**سفرته د عذاب حصه وئیلو وجه:** سفردَ عذاب ټکړه ځکه ګرځولې شوې ده چه انسان دَ ټولو آسانونه محروم پاتې کیږی که څرته سهولت حاصل هم وی بیاهم دَ کورنه جدا کیدل دَ وطن اوخاندان نه جدا کیدل ولې څه کمه پریشانی ده؟ په بې مقصد سفرونوکښې اکثر کتلې شوی دی چه دَ بسونو حادثې پیښیږی لکه دَمزارونودَپاره سفر په میلونو باندې او دَ سیل دَپاره اکثر سفرونه دَ مصیبتونوسره مخ کیږی

**[۳۹۰۰] د مسافر مشر د استقبال مسنونیت**

۳۹۰۰-[۹] (١) ①وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَعْفَرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " ②«إِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ تُلُقِّيَ بِصِبْيَانِ أَهْلِ بَيْتِهِ، ③وَإِنَّهُ قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ فَسُبِقَ بِي إِلَيْهِ، فَحَمَلَنِي بَيْنَ يَدَيْهِ، ④ثُمَّ جِيءَ بِأَحَدِ ابْنَيْ فَاطِمَةَ، فَأَرْدَفَهُ خَلْفَهُ، ⑤قَالَ: فَأُدْخِلْنَا الْمَدِينَةَ ثَلَاثَةً عَلَى دَابَّةٍ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ①او عبد الله ابن جعفر ﷠ وايي ②کله چې به رسول کریم ﷺ د سفر څخه وروسته تشریف راوړو نو د حضور ﷺ به استقبال کیدی یعنی د حضور ﷺ اهل بیت به خپل بچي د حضور خدمت کې لیږل ③یوه ورځ چې حضور ﷺ د سفر څخه واپس تشریف راوړو او مدیني ته نزدې راورسیدو نو زه د حضور ﷺ په خدمت کې پیش شوم حضور ﷺ زه پورته کړم او خپل مخې ته یې سورکړم ④بیا د بي بي فاطمې په دواړو

(١) اخرجه مسلم فى كتاب فضائل الصّحابة رضى الله تعالى عنهم/باب فضائل عبد الله بن جعفر رضى الله عنهما (رقم-۶۶ - (۲۴۲۸) و ابو داود فى كتاب الجهاد/باب فى ركوب ثلاثة على دابة (رقم-۲۵۶۶) وابن ماجه فى كتاب الأدب/باب ركوب ثلاثة على دابة (رقم-۳۷۷۳) واحمد فى المسند: ۲۰۳/۱

ځامنو کې يوځوی يعنی حضرت حسن رضي الله عنه يا حضرت حسين رضي الله عنه راوستل شو نو حضور ﷺ هغه خپل وروسته سور کړو [۵] او بيا دغه شان مونږ دري سره په يوه حيوان باندې سواره په مدينه کې داخل شو. (مسلم)

**حل اللغات:** ① سُبِقَ بِيْ: وړاندې کړې شوم، ② فَأَرْدَفَهُ: نو سور ئې کړو هغه روسته.

**تسهيلات:**

**قوله: إِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ تُلُقِّيَ بِصِبْيَانِ أَهْلِ بَيْتِهِ:**

**د نبی عليه السلام دوه قسمه استقبال:** ① دَ غزواتو دَ سفرونو نه په واپسئی صحابه کرامو دَحضورپاك استقبال کړې دې.

② دَحضورپاك لوئی استقبال دَمدينې خلقو په وسله خوزولو سره هغه وخت کړې وو کله چه حضورپاك دَمکې نه هجرت کولوسره مدينې ته تشريف راوړلې وو

**د ماشومانو په ذريعه استقبال:** مطلب داچه دَ ماشومانو په ذريعه سره به دَحضورپاك استقبال کولې شو يعنی دَاهل بيت ماشومان به دَ حضورپاك دَملاقات دَپاره اوړل کيدل په دې وجه دَعزت دار ميلمه په راتلوباندې هم دغه شان دَ علمی شخصياتو په راتلوباندې که چرې عوام الناس استقبال کوی نودابه ناجائزنه وی. خو بيا هم دَشرعی منکراتو نه پاك کيدل پکاردی. ځه دَ اوچ مزاج والا خلق استقبال ته ناجائزوائی

**[۲۹۰۱] په سورلۍ ځان سره خپله بی بی سورول**

٢٩٠١-[١٠] () [١] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، [٢] أَنَّهُ أَقْبَلَ هُوَ وَأَبُو طَلْحَةَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٣] وَمَعَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - صَفِيَّةُ مُرْدِفُهَا عَلَى رَاحِلَتِهِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] حضرت انس رضي الله عنه ځخه روايت دی [٢] چې انس رضي الله عنه او طلحه رضي الله عنه رسول کريم ﷺ ملګرې د خيبر د سفر ځخه واپس راغلل [٣] نو په هغه موقعه بي بي صفيه رضي الله عنها نبي کريم ﷺ سره وه او حضور ﷺ هغه خپلې سورلۍ باندې کينولې وه

**حل اللغات:** ① مُرْدِفُهَا: سوره کړې ئې وه هغه.

**تسهيلات: قوله: صَفِيَّةُ مُرْدِفُهَا عَلَى رَاحِلَتِهِ:**

**د حديث پس منظر:** دا د خيبر نه د واپس کيدلو د وخت واقعه ده چه حضرت صفيه رضي الله تعالى عنها د خيبر په مال غنيمت کښې وه او حضرت دحيه کلبی رضي الله عنه ته په تقسيم کښې رسيدلی وه بيا نبی کريم ﷺ دوی نه واخستله او آزاده ئې کړه او نکاح ئې ورسره وکړه او ځان سره ئې په سورلئ کينوله او مدينی منوری ته ئې راوستله

[١] اخرجه البخاری فی باب قول الرّجل: جعلنی اللّه فداک وقال أبو بکر للنّبیّ صلّی الله علیه وسلّم: «فدیناک بآبائنا وأمّهاتنا» (رقم-٦١٨٥) ومسلم فی کتاب الحجّ /باب ما یقول إذا قفل من سفر الحجّ وغیره (رقم-٤٢٩ - (١٣٤٥)

**[٣٩٠٢] د سفر څخه د حضور ﷺ د واپس راتلو وخت**

٣٩٠٢ — [١١] (١) ① وَعَنْهُ، قَالَ ②: «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَا يَطْرُقُ أَهْلَهُ لَيْلًا، ③ وَكَانَ لَا يَدْخُلُ إِلَّا غُدْوَةً، أَوْ عَشِيَّةً». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت انس رضي الله عنه وايي ② رسول الله ﷺ به خپل كور والاوو ته د سفر څخه د شپې په وخت واپس نه راتلى ③ بلكه د ورځې ابتدايي حصه كې يعنى سحر وخت يا آخري حصه كې يعنى مابنام وخت به په كور كې داخليدى. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① لَا يَطْرُقُ: د شپې به نه راتلو. ② غُدْوَةً: سحر وخت، ③ عَشِيَّةً: مابنام

**تسهيلات:**

**قوله: لَا يَطْرُقُ أَهْلَهُ لَيْلًا:**

**د اوږد سفر څخه د شپې كورته د راتلو ممانعت:** دَ حضرت انس رضي الله عنه دَدې حديث تعليم دا دې چه دَسفرنه كله سړې كورته راځى نوهغه له پكاردى چه دَ ورځې وخت كښې راشى دې پسې دَ حضرت جابر رضي الله عنه حديث نمبر(٣٩٠٣) كښې په واضحه توګه منع كړې شوې ده چه دَ اوږد سفرنه پس دَ شپې وخت په كورته نه دى داخليدل پكار

**د تعارض اشكال:** دې دواړو احاديثوسره دَ راتلونكې حضرت جابر دَ حديث نمبر(٣٩٢١) تعارض دې په كوم كښې چه دَ شپې په وخت كورته راتلل بهتر او ښه ګرځولې شوى دى

**د اشكال جواب:** ① چه كله سفراوږد وى اوخاوند دَ ډيرې مودې دَپاره دَ كور نه بهراوغائب پاتې وى نو په داسې صورت كښې ناڅاپى كورته نه دى راتلل پكار بلكه دَ ورځې اول په جمات كښې دوه ركعته مونځ كول پكاردى اوخلقو سره دَ ملاقات نه پس كورته تلل پكاردى دې دَپاره چه په كوركښې ښځه خپل ځان جوړراجوړكړې اوكه چرې سفردَ لرې نه وى بلكه دَ نيزدې وى نودَ شپې په اوله حصه كښې راتلل بهتر دى لكه څنګه چه په راتلونكى حديث نمبر(٣٩٢١) كښې راځى. دَدې وجه داده چه دَ شپې په اوله حصه كښې راتلوسره به پخپله دغه مسافرته تسلى وى اودَ ناوخته راتلو په وجه به دكور خلق هم پريشانه وى. دې نه علاوه په اوله حصه دَ شپې كښې به خاوند ښځې سره كوروالې كولوسره ټوله شپه آرام هم اوكړى.

② علامه نووى رحمه الله فرمائى چه په كومو احاديثوكښې دَ شپې راتلونه ممانعت دې دَهغه احاديثو تعلق هغه صورت سره دې چه كله سفر اوږد وى اودَخاوند دَ راتګ څه پته نه وى نوكه چرې خاوند ناڅاپى داخل شى اوښځه ئى خيرنه خچنه ناسته وى نوكورنى تعلقات

(١) اخرجه البخارى فى كتاب الحج/باب الدّخول بالعشىّ (رقم-١٨٠٠) ومسلم فى كتاب الإمارة/باب كراهة الطّروق، وهو الدّخول ليلا، لمن ورد من سفر(رقم-١٨٠ - (١٩٢٨)

په خراب شی په مختصر سفرکښې به دا صورت نه وی. بل که چرې سفر اوږد وی اوخاوند ډَخپل راتګ نه مخکښې خبر کړې وی نو په دې صورت کښې هم خاوند هروخت راتلې شی اسلام غواړی چه دَ کورنظام دې دَمضبوط نه زیات مضبوط وی مګر یهود اونصاری اودَ هغوی ایجنټان این جی اوز عائلی نظام تباه کول غواړی دې پسې چه کوم حدیث دې دَ هغې هم دغه تشریح ده.

**[۲۹۰۲] دشپې په وخت دسفر څخه دواپس نه راتلو هدایت**

۲۹۰۲–[۱۳] ( ) [۱]وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲]" «إِذَا أَطَالَ أَحَدُكُمُ الْغَيْبَةَ [۳]فَلَا يَطْرُقْ أَهْلَهُ لَيْلًا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱]حضرت جابر ﷛ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲]کله چې په تاسو کې د چا د غير حاضري موده اوږده شي يعنى د هغه په سفر کې زياتي ورځي ولګيږي [۳]نو هغه دې سفرڅخه دواپس راتلوپه وخت په خپل کورکي دشپې په وخت نه داخليږي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ①الْغَيْبَةَ: د غير حاضري موده. ②فَلَا يَطْرُقْ: نو د شپې دې نه راځي.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَلَا يَطْرُقْ أَهْلَهُ لَيْلًا:

**دشپې کورته د راتلو نقصان:** په شرح السنة کښې يو روايت منقول دې چه حضرت ابن عباس ﷛ بيان کړې دي چه نبی کريم ﷺ د طرف نه ددې ممانعت نه ورستو دوه کسانو په داسې حالت کښې د سفر نه راوپس شو چه شپه وه نو دوې کورته دشپې داخل شول نو دوې خپلې ښځې پردو سړو سره اومندلې.

**په موجوده وخت کښې د شپې د سفرڅخه د راتلو حکم:** موجوده زمانه د موبائيل ده چې څوک د سفرڅخه کورته راځي نو هغه د وړاندې خبر ورکړی وی چې زه به په فلانی وخت د شپې در رسيږم اود کور خلقو ته هم پته وی په دې وجه دحديث ممانعت په داسې صورت باندې حمل نه دې بلکه د حديث محمل هغه موقع ده چې کورته خبرنه کيږی او ناڅاپه کورته راتلل وی

[۱]) اخرجه البخارى فى كتاب النّكاح/باب لا يطرق أهله ليلا إذا أطال الغيبة، مخافة أن يخوّنهم أو يلتمس عثراتهم (رقم-٥٢٤٤) ومسلم فى كتاب الإمارة/باب كراهة الطّروق، وهو الدّخول ليلا، لمن ورد من سفر(رقم-١٨٣ - (٧١٥) و ابو داود فى كتاب الجهاد/باب فى الطّروق (رقم-٢٧٧٦) والترمذى فى كتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فى كراهية طروق الرّجل أهله ليلا (رقم-٢٧١٢) واحمد فى المسند:٣٠٢/٣

**[٣٩٠٤] د سفر څخه ته د شپې کورته د نه راتلو فائده**

٣٩٠٣ــ [ ١٣ ] ( ) ١ وَعَنْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢ " «إِذَا دَخَلْتَ لَيْلًا فَلَا تَدْخُلْ عَلَى أَهْلِكَ ٣ حَتَّى تَسْتَحِدَّ الْمُغِيبَةُ وَتَمْتَشِطَ الشَّعِثَةُ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ او حضرت جابر ﷛ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ٢ که تاسو سفر څخه د واپس راتلو څېل ښار او آبادي کې د شپې وخت راورسيږي نو په څېل کور کې مه داخليږئ ٣ ترڅو پورې چې ښځه خپل زير ناف ويښته صاف نه کړي او هغه ښځه چې د هغه ويښته ګډوډ وي ګمنز کمځى ونه کړي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① تَسْتَحِدَّ: اوسپنه استعمالول يعنى دنامه لاندې ويښته لرې كول. ② الْمُغِيبَةُ: د كور نه بهر د سړ د غير حاضرئ موده. ③ وَتَمْتَشِطَ: امتشاط ګمنز استعمالولو ته وائى ④ الشَّعِثَةُ: د ښځې ګډ وډ ويښته

**تسهيلات: قوله:** تَسْتَحِدَّ الْمُغِيبَةُ:

**د سړی اوښځې دپاره د زيانتی ويښتو کټ کولودوه طريقې:** ① دَ سړی دَپاره اوسپنه استعمالول په طبى لحاظ سره فائده مند دى

② دَ ښځې دَپاره دَ اوسپنې په ځائى څه بل څه طريقه اختيارول بهتر دى مثلاً راشوكول بال صفا وغيره استعمالولو سره لرې كول مناسب دى

**[٣٩٠٥] د سفر څخه واپس راتلو باندې د دعوت کولو مسنونيت**

٣٩٠٥ــ [ ١٤ ] ( ) ١ وَعَنْهُ، ٢ أَنَّ النَّبِيَّ لَمَّا قَدِمَ الْمَدِينَةَ نَحَرَ جَزُورًا، أَوْبَقَرَةً. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ١ حضرت جابر ﷛ وايي ٢ نبي کريم ﷺ چې مديني ته تشريف راوړو نو حضور ﷺ اوښان يا غواوى ذبح كړي (بخاري)

**حل اللغات:** ① جَزُورًا: اوښان يا غوايان.

**تسهيلات: قوله:** نَحَرَ جَزُورًا:

**د سفر څخه په واپسۍ د دعوت کولو مسنونيت:** دجيم پهٔ فتحې سره او د زا په ضمې سره چه کله به نبى کريم ﷺ دلرې سفر نه واپس مدينې منورې ته راغلو نو اوښ يا بل څاروې به ئي ذبح كړو اوددعوت اهتمام به ئي وكړو .نو ددې نه معلومه شوه چه سفرنه په واپسى باندې اهل قرابت (رشته دارو) له دعوت كول مسنون دى او دې ته دعوت قدوم وئيلې شي

---

[١] اخرجه البخاري في كتاب النّكاح/باب طلب الولد (رقم-٥٢٤٦) ومسلم في كتاب الإمارة/باب كراهة الطّروق، وهو الدّخول ليلا، لمن ورد من سفر(رقم-١٨٢ - (٧١٥) و ابو داود في كتاب الجهاد/باب في الطّروق (رقم-٢٧٧٨) واحمد في السند:١٠٣/٣

[٢] اخرجه البخاري في كتاب الجهاد والسّير/باب الطّعام عند القدوم وكان ابن عمر يفطر لمن يغشاه (رقم-٣٠٨٩) واحمد في السند:٣٠١/٣

**[۳۹۰۶] د نبی علیه السلام د سفر څخه د واپس راتلو وخت**

۳۹۰۶-[۱۵] (۱) وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَا يَقْدَمُ مِنْ سَفَرٍ إِلَّا نَهَارًا فِي الضُّحَى، فَإِذَا قَدِمَ بَدَأَ بِالْمَسْجِدِ فَصَلَّى فِيهِ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ جَلَسَ فِيهِ لِلنَّاسِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** کعب ﷛ ابن مالك وايي نبي كريم ﷺ د څاښت وخت څخه علاوه بل هيڅ وخت به د سفر څخه واپس نه راتلی حضور ﷺ چې به د سفر څخه واپس راتلی نو مخکې به يي مسجد ته تشريف وړی او هلته دناستي څخه مخکې به يي تحية المسجد يا د څاښت دوه رکعاته مونځ کوی او بيا د خلقو سره ملاقات د پاره به هلته کيناستلو (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا يَقْدَمُ مِنْ سَفَرٍ إِلَّا نَهَارًا فِي الضُّحَى:

**د نبی علیه السلام د سفر څخه واپسی په مختلفو وختونو کښې:** "د چاشت وخت" دا د اکثريت په اعتبار سر وئيلې شوی دی، يعنی نبی کريم ﷺ به اکثر د چاشت په وخت کښې د سفر نه واپس تشريف راوړو نو ددي وجهې نه چاشت وخت ذکر کړې دې. ګنی ورستونی حديث کښې دا ذکر شوي دي چه نبی کريم ﷺ به د ورځې په اول حصه يعنی د سحر په وخت کښې او په آخری حصه يعنی د ماښام په وخت کښې سفر نه واپس تشريف راوړو نو ددي نه دا معلومه شوه چه نبی کريم ﷺ به صرف د سحر وخت کښې د سفر نه واپس تشريف نه راوړو بلکه د ماښام وخت کښې به ئي هم واپس تشريف راوړو.

**[۳۹۰۷] د سفر په واپسی جوماتته د تلو حکم**

۳۹۰۷-[۱۶] (۲) وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: «كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي سَفَرٍ، فَلَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِينَةَ قَالَ لِي: "ادْخُلِ الْمَسْجِدَ فَصَلِّ فِيهِ رَكْعَتَيْنِ"» رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** او حضرت جابر ﷛ وايي زه يو سفر کې نبي کريم ﷺ سره ملګری وم کوم وخت چې مونږ مدينې ته واپس راغلو نو حضور ﷺ ماته وفرمايل جوماتته لاړ شه او هلته دوه رکعاته مونځ وکړه (بخاري)

[۱] ) اخرجه البخاری فی كتاب الجهاد والسّير/باب الصّلاة إذا قدم من سفر(رقم-۳۰۸۸) ومسلم فی كتاب صلاة المسافرين وقصرها /باب استحباب الرّكعتين فی المسجد لمن قدم من سفر أوّل قدومه (رقم) ۷۴ - (۷۱۶) و ابو داود فی كتاب الجهاد/باب فی الصّلاة عند القدوم من السّفر(رقم-۲۷۸۱) والنسائی فی كتاب المساجد/باب الرّخصة فی الجلوس فيه والخروج منه بغير صلاة (رقم-۷۳۱)

[۲] ) اخرجه البخاری فی كتاب الجهاد والسّير/باب الصّلاة إذا قدم من سفر(رقم-۳۰۸۷) ومسلم فی كتاب صلاة المسافرين وقصرها /باب استحباب الرّكعتين فی المسجد لمن قدم من سفر أوّل قدومه (رقم) ۷۲ - (۷۱۵)

**تسهيلات: قوله:** اُدْخُلِ الْمَسْجِدَ فَصَلِّ فِيهِ رَكْعَتَيْنِ:

**د سفر څخه په واپسۍ جمات کښې دوه ركعته مونځ كول:** ددې حديث نه دا معلومه شوه چه مسافر كله د سفر نه واپس راشي نو اول مسجد ته تلل دنبی كريم ﷺ نه فعلاً او قولاً ثابت دي او په دې كښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چه په دې كښې د شعائر الله تعظيم دي او مسجد د الله تعالى كور دې او مسجد ته تلونكې ګويا د الله تعالى سره ملاقات كونكې دې لهذا كوم كس چه د سفر نه را واپس شي نو د هغه په حق كښې نور بهتر څه كيدې شی چه هغه د ټولونه مخكې د الله تعالى كورته لاړ شي او د الله تعالى سره ملاقات اوكړې او د الله تعالى شكريه ادا كړې څكه چه الله تعالى ددې كس سفر په عافيت سره ختم كړو او واپس يې خپل اهل وعيال ته په عافيت سره ورسولو

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [٣٩٠٨] په سحر وختی كار شروع كولو كښې د بركت دعا

٣٩٠٨ـ[١٧] (١) ١ عَنْ صَخْرِ بْنِ وَدَاعَةَ الْغَامِدِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ «اللّٰهُمَّ بَارِكْ لِأُمَّتِي فِي بُكُورِهَا» " ٣ «وَكَانَ إِذَا بَعَثَ سَرِيَّةً، أَوْ جَيْشًا بَعَثَهُمْ مِنْ أَوَّلِ النَّهَارِ»، ٤ وَكَانَ صَخْرٌ تَاجِرًا. فَكَانَ يَبْعَثُ تِجَارَتَهُ أَوَّلَ النَّهَارِ، فَأَثْرَى وَكَثُرَ مَالُهُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ١ صخر رضي الله عنه بن وداعه غامدي وايي ٢ يوه ورځ رسول الله ﷺ دا وفرمايل يعنى داسې دعايي وفرمايله اې الله! څما د امت د پاره د ورځې ابتدايي حصه كې بركت وركړې [يعنى څما د امت خلق كه د ورځې ابتدايي حصه په سحر كې د علم په طلب كې مشغول وي يا خپل ذريعه معاش كې مصروف وي ياسفر وغيره كوي نو په هغه كې دې هغوى ته بركت حاصل وي] ٣ حضور ﷺ چې به وړوكی لوی لښكر ليږلو نو هغه به يې د ورځې ابتدايي حصه كې ليږلو ٤ او صخر رضي الله عنه چې يوتاجر سوداګر وو د دې دعاء بركت حاصلولو پيش نظر خپل تجارت مال به يې د ورځې ابتدايي په حصه كې ليږلو نو هغه مالدار شو او د هغه په مال كې ډيره اضافه وشوه (ترمذي ابوداود دارمي)

**د حضرت صخر بن وداعه الغامدی تعارف:** نوم عمرو دې او پوره نسب نامه ئې داسې ده. عمرو بن كعب با الحارث بن كعب بن عبدالله بن مالك بن نضر بن الازد. ده دَ قبيله الازد دَ خاندان غامدسره تعلق لرلو. ابن حجر رحمه الله وائی چه حجازی صحابی دې خو قيام ئې په طائف كښې وو.

[١]) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الجهاد/باب فی الابتكار فی السفر (رقم-٢٦٠٦) والترمذی فی كتاب البيوع عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فی التّبكير بالتّجارة (رقم-١٢١٢) و ابن ماجه فی كتاب التّجارات/ باب ما يرجى من البركة فی البكور (رقم-٢٢٣٦) واحمد فی المسند:٤١٦/٣

**وفات:** دَ اسماء الرجال والا دَ ده دَ وفات دَ کال په بيانولوکښې خاموش دی.
**مرويات:** علامه برقی رحمه الله وئيلي دی ده نه صرف يوحديث نقل دې خوابن جوزی په تلقيح کښې وئيلي دی چه ده نه دوه احاديث نقل دی.
**حل اللغات:** ① بُكُورِهَا: د سحر ابتدائی حصه. سحر وختی. ② سَرِيَّةً: وړوکې لښکر. ③ فَأَثْرَى: نو ښه مالدار شو. ④ وَكَثُرَ مَالُهُ: دا دَ أثرى تشريح ده يعنی مال ئې زيات شو
**تسهيلات: قوله:** فَأَثْرَى وَكَثُرَ مَالُهُ:
**صبا وختی کاروبار ته په تلو کښې برکت:** نن صباۍ کافرانو په شان مسلمان امت دَدې حديث خلاف روان دې دَ ورځې ١١ يا ١٢ بجې دوکان ته راځی په دې کښې به خاورې برکت راشی
البته زه افغانستان ته ډير تلې راغلې يم دهغه ځائې دوکانداران سحر وختی دوکانونه خلاصوی اوبيا د ماښام څخه يې بندوی بعضې دوکانداران خو په کښې لا د سحر ناشته هم په دوکانونو کښې کوی خصوصاً خوست کښې دا معمول پابندۍ سره جاری دی الله تعالی دې زمونږ په خوږ وطن پاکستان کښې هم دوکاندارانو ته د سحروختی مارکيټونو پرانستلو توفيق ورکړی

**[٣٩٠٩] دشپې په وخت دسفر کولو حکم**

٣٩٠٩—[١٨] (١) ① وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② "«عَلَيْكُمْ بِالدُّلْجَةِ، ③ فَإِنَّ الْأَرْضَ تُطْوَى بِاللَّيْلِ»". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضی الله عنه وايي چې رسول کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل ② تاسو د شپې په وخت تلل دځان د پاره ضروري وګڼي ③ ځکه چې د شپې وخت زمکه رانغښتلی شي (ابوداود)
**حل اللغات:** ① الدُّلْجَةِ: د شپې په شروع کښې په سفر تلل ② تُطْوَى: رانغښتلې شی
**تسهيلات:**
**قوله:** عَلَيْكُمْ بِالدُّلْجَةِ، فَإِنَّ الْأَرْضَ تُطْوَى بِاللَّيْلِ
**دحديث مفهوم:** دحديث مفهوم دَدې حديث مطلب دانه دې چه دَ ورځې سفرمه کوئی دورځې د سفر څو حضورپاك حکم ورکړې دې چه دَ وخته سفرکوئی دلته مطلب دادې چه د ورځې سفرسره څه حصه دَ شپې هم شاملوئی ځکه چه دَ شپې په سفر کښې يوخوګرمی او دهوپ نه وی بل دا چه څه به نظر نه راځی په دې وجه په سفرکښې ځانله والې او برکت وی هم دا په حديث کښې داسې ذکرشو لکه چه دَده دَپاره زمکه راغونډولې شی

(١) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الجهاد/باب فی الدلجة رقم-(٢٥٧١) واحمد فی المسند:٣/٣٠٥

## [۲۹۱۰] د سفر د شرکاؤ کم ازکم تعداد

۲۹۱۰-[۱۹] ()[۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "[۲] «الرَّاكِبُ شَيْطَانٌ، وَالرَّاكِبَانِ شَيْطَانَانِ، وَالثَّلَاثَةُ رَكْبٌ» ". رَوَاهُ مَالِكٌ، وَالتِّرْمِذِيُّ، أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه**: [۱] عمرو ابن شعیب رحمه الله د خپل پلار څخه او هغه د خپل نیکه (دادا) څخه نقل کوي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲] ① یو سوار یوشیطان دی ② دوه سواره دوه شیطانان دي ③ او دري سواره قافله ده. (مالك ترمذي ابوداود نسائي)

**حل اللغات**: ① رَكْبٌ: قافله.

**تسهیلات**:

**قوله**: وَالثَّلَاثَةُ رَكْبٌ:

**ځانله سفر کوېکی ته د شیطان وئیلو وجوهات**: یعنی دري سواره جماعت دي یو سور یا دوه سواره شیطانان دی

① یو یا دوو ملګروته کله څه پریشانی اورسی نو شیطان ډیر خوشحالیږی

② داهم ممکن ده چه یو یا دوه ملګری به شیطان په آسانئی سره ګمراه کړي شی په دې وجه دې ته سفری شیطان اووئیلې شو خلاصه دا چه په سفرکښې کم نه کم دري ملګری کیدل پکار دی

**په ګنړې سره د سفر کولو فائدې**: ① که چرته یوملګري د څه کار د پاره لاړشی نوباقی دوه به په خپل مینځ کښې په تسلئی سره اوسیږی اوکه چرې د هغه په راتلو کښې تاخیراوشی نوچه بل د خبر د پاره لاړشی

② دې د پاره چه د مونځ اداکولو په وخت صحیح طریقې سره په جمع باندې مونځ اوکړې شی

③ د یو بل د سامان حفاظت به کوی

**په موجوده زمانه کښې په ګنړه د سفر کولو حکم**: د حضورپاك په زمانه کښې به د سفرونومعامله ډیره خطرناکه وه د عربود صحراګانو سختئی لانوري وې اود دښمن خطرې جدا وې په دې وجه د دریو جماعت کیدل د یو ادنٰی درجې انتظام وو. نن صبا خوهغه صورت نشته دې مګر بیاهم په ظاهرحدیث باندې عمل کولوکښې بیشمیره فائدې دی

---

) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد /باب فی الرّجل یسافر وحده (رقم-۲۶۰۷) والترمذی فی کتاب الجهاد عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم /باب ما جاء فی کراهیة أن یسافر الرّجل وحده (رقم-۱۶۷۴)

**[۲۹۱۱] په سفر کښې د امیر د جوړولو حکم**

۳۰-[۲۰] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «إِذَا كَانَ ثَلَاثَةٌ فِي سَفَرٍ فَلْيُؤَمِّرُوا أَحَدَهُمْ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوسعید خدري رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲] که مثلًا په سفر کې دري سړي وي نو په هغوی کې یو امیر جوړول پکار دی (ابوداود)

**تسهیلات:**

**قوله: فَلْيُؤَمِّرُوا أَحَدَهُمْ:**

**په سفر کښې د امیر د جوړولو حکم:** دریو یا د دریونه زیاتو کسانو له پکار دی چه هغوی دې په سفرکښې خپل یوښه ملګرې خپل امیرجوړ کړی دَدې دَپاره چه هغه په سفرکښې دَټولوکارونو انتظام اوخیال کوی اودَ اختلاف اوجګړې په صورت کښې صحیح فیصله اوکړی. دَدې دَپاره هوښیار پوهه او غمخوار سړې پکاردې چه هغه خپل ځان دَملګرو خادم تصورکړی نه چه مخدوم. خپل ځان دَټولونه وړوکې اوګڼړی. ملګروله هم پکاردی چه په جائزکارونوکښې دَهغه تابعداری اوکړی.

**[۲۹۱۲] د سفر غوره ملګری**

۳۰-[۲۱] (۲) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، قَالَ: [۲] «خَيْرُ الصَّحَابَةِ أَرْبَعَةٌ، [۳] وَخَيْرُ السَّرَايَا أَرْبَعُمِائَةٍ، [۴] وَخَيْرُ الْجُيُوشِ أَرْبَعَةُ آلَافٍ، [۵] وَلَنْ يُغْلَبَ اثْنَا عَشَرَ أَلْفًا مِنْ قِلَّةٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] ابن عباس رضی الله عنهما د نبي کریم ﷺ څخه روایت کوي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲] مثلًا د یو سفر بهترین ملګری او رفقاء هغه دی چې کم نه کم د څلورو په تعداد کې وي [۳] په کوچنیو لښکرو کې بهترین لښکر هغه دی چې په هغه کې څلور سوه مجاهدین وي [۴] او لوی لښکرو کې بهترین لښکر هغه دی چې په هغه کې دولس زره مجاهدین وي [۵] او دولس زره مجاهدین د کموالي په وجه هیڅ کله نه مغلوب کیږي (ترمذي ابوداود دارمي) او ترمذي ویلي دي چې دا حدیث غریب دی

**حل اللغات:** (۱) الصَّحَابَةِ: ملګری. (۲) السَّرَايَا: وړې لښکرې. (۳) الْجُيُوشِ: لوئې لښکرې.

---

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد/باب فی القوم یسافرون یؤمّرون أحدهم (رقم-۲۶۰۸)

(۲) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد/باب فیما یستحبّ من الجیوش والرّفقاء والسّرایا (رقم-۲۶۱۱) والترمذی فی کتاب السّیر عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب ما جاء فی السّرایا (رقم-۱۵۵۵)

**تسهیلات:**

**قوله: خَيْرُ الصَّحَابَةِ أَرْبَعَةٌ:**

**په سفر کښې د څلورو ملګرو د شرکت فضیلت:** يعني بهترين ملګري څلور دي ځکه چه درې ادنیٰ درجه ده اودې نه کم منع دی. دڅلورو په دله کښې که يو امام شي نودرې کامل جماعت دې اوکه چرې يو بيمار شي او يو وصي جوړ کړي نوباقي دوه به ګواهان شي.

**قوله: وَخَيْرُ السَّرَايَا أَرْبَعُمِائَةٍ:**

**د سريه دوه مصداقات:** ① سرايا جمع ده دَدې مفرد سريه ده. دا چهاپه مار فوجي دستې ته وائي سريه هغه وی چه دَ څلورو سوو نه زيات نه وی اوکه چرې زيات شو نو بيا هغه په جيش کښې داخل دی.

② هغه لښکر په کوم کښې چې نبی عليه السلام نه وی که نبی عليه السلام په کښې تشريف فرما وی نو هغې ته غزوه وائي.

په اسلام کښې ټول سرايا ۵۶ دی په کوم کښې چه حضورپاك شرکت نه وو کړې.

**قوله: وَخَيْرُ الْجُيُوشِ أَرْبَعَةُ آلَافٍ:**

**د جيش تعداد:** دَغزوه موته چه کومه سريه وه هغه په درې زره صحابه کرامو باندې مشتمل وه. په دې وجه هغه دَ سريه دَ تعريف نه اووتله او دَ جيش په حکم کښې راغله سره دَدې چه په هغې کښې حضورپاك شريك نه وو. دَ جيش اسامه هم دغه معامله وه هغه سره څلور زره لښکر وو. څلور زره لښکر لوئی تعداد دې په دې وجه دې ته بهترين لښکراووئيلې شو. ځکه چه دَ سريه دَپاره څلور سوا لوئی تعداد دې کوم چه بهترين ګرځولې شوې دې

**قوله: وَلَنْ يُغْلَبَ اثْنَا عَشَرَ أَلْفًا مِنْ قِلَّةٍ:**

**د دولسو زرو فوج ماتې نه خوړلو مطلب:** يعني دَ دولسو زرو لښکر په دې وجه ماتې نه خوری چه هغوی لږ دی. هغوی چه کوم ماتې خوړلې دې دَهغې څه بل څه وجه کيدې شی ځکه چه دولسو زرو لښکر يودويړن فوج دې دا لوئی تعداد دې نودَ تعداددَ وجې نه ماتې نه دې خوړلې کيدې شی چه دَ څه نافرمانئی يا غرور تکبر دَ وجې نه ئی ماتې خوړلې وی.

**[۲۹۱۲] د سفر د ملګرو رعايت**

٣٣—[٢٢] ()[1] ① وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ ②: «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَتَخَلَّفُ فِي الْمَسِيرِ، ③ فَيُزْجِي الضَّعِيفَ، وَيُرْدِفُ، وَيَدْعُو لَهُمْ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

[1] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد ، باب فی لزوم الساقة (رقم-۲۶۳۹)

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ﷛ وايي [۲] چې رسول کريم ﷺ به د سفر په دوران کې دتلو په وخت [د تواضع او انکساری په وجه او د نورو د مدد او خبر گيری پيش نظر] د قافلې څخه وروسته تلې [۳] ① حضور ﷺ به د کمزوری سورلی شړله چې هغه ملګرو سره يو ځاى شي ② او کوم کمزور او ضعيف سړى چې به د سورلی څخه د محروم کيدو په وجه پياده تلو هغه به يي په ځان پسې وروسته سورولو ③ او هغه قافلې والاوو د پاره به يي دعا کوله. (ابوداود)

**حل اللغات:** ① يَتَخَلَّفُ: روسته روسته به تلو، ② فِي الْمَسِيرِ: دسفر په دوران کښې، ③ يُزْجِي: شړله به ئې (سورلی)، ④ يُرْدِفُ: سورولو به ئې وروسته (ځان پسې)،

**تسهيلات:** **قوله:** يَتَخَلَّفُ فِي الْمَسِيرِ:

**د سفر د ملګرو د درپو خبرو خيال ساتل:** ① نبی کريم ﷺ به د صحابه کرام رضی الله عنهم نه ورستو تللو وجه تواضع او تعاون وؤ.

② نبی کريم ﷺ به د شاه طرف نه سورلي شړلې دې دپاره چه کمزوره سورلي خپلو رفيقانو ته ملاو شی.

③ کمزورې کس به نبی کريم ﷺ ځان سره په سورلئ شاته کينولو..

④ نبی کريم ﷺ به ټولو خلقو ته دعا کوله.نو د حديث حاصل دا شو چه نبی کريم ﷺ به په قافله کښې د کمزورو خلقو او کمزورو سورلو ډير خاص خيال ساتلو او ټولو ته به يئ دعا کوله.

**[۳۹۱۴] يوځاى کښنې دمه کولو پې وخت د ملګرو راجمع کيدل**

۳۰۰—[۲۳] ()[1] [۱] وَعَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ [۲]: «كَانَ النَّاسُ إِذَا نَزَلُوا مَنْزِلًا تَفَرَّقُوا فِي الشِّعَابِ وَالْأَوْدِيَةِ»، [۳] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " «إِنَّ تَفَرُّقَكُمْ فِي هَذِهِ الشِّعَابِ وَالْأَوْدِيَةِ إِنَّمَا ذَلِكُمْ مِنَ الشَّيْطَانِ» ". [۴] فَلَمْ يَنْزِلُوا بَعْدَ ذَلِكَ مَنْزِلًا إِلَّا انْضَمَّ بَعْضُهُمْ إِلَى بَعْضٍ، [۵] حَتَّى يُقَالَ: لَوْ بُسِطَ عَلَيْهِمْ ثَوْبٌ لَعَمَّهُمْ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ثعلبه خشني ﷛ وايي [۲] مخکې به عام طور سره داسې کيدل چې خلق صحابه ﷿ به په يومنزل پړاؤ کوز شولو نو جدا جدا کيدو سره غرونو درود او واديو کې به خواره شوه [يعنی څوك به چرته کوز يدلو او څوك چرته] [۳] رسول کريم ﷺ [دا طريقه ختمولو د پاره په دې طورا] وفرمايل پوهه شئ چې ستاسو په دې طور دې دريو او واديو کې جدا جدا کيدلو سره کوز يدل خاص د شيطان د طرف څخه دی [يعنی دا د شيطان د

[1] ) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجهاد، باب ما يؤمر من انضمام العسكر وسعته (رقم-۲۶۲۸) واحمد فى المسند: ۱۹۳/۴

دهوکي په سبب دی چې هغه ځکه تاسو جدا جدا کول غواړي چې دښمن په تاسو حصارول پيدا کړي او تاسو ته نقصان او ازار ورسوي! ④د دې ارشاد څخه وروسته خلق چې به کله په يو منزل پړاؤ کوز يدل نو په خپل مينځ کې به دومره نزدي نزدي تيکاؤ کيدل ⑤چې وئيل کيږي که په دې ټولو يوه کپړه خوره کړی شي نو دوئ ټول به پټ کړي.

**حل اللغات:** ① الشِّعَابِ: د شعبٌ جمع ده، د يو غر دَره. ② الْأَوْدِيَةِ: واديانې. ③ انْضَمَّ: جخت جخت او نزدې نزدې به کيدل. ④ لَعَمَّهُمْ: نودوی ټول به پټ کړی.

**تسهيلات: قوله:** إِنَّ تَفَرُّقَكُمْ فِي هَذِهِ الشِّعَابِ وَالْأَوْدِيَةِ إِنَّمَا ذَلِكُمْ مِنَ الشَّيْطَانِ:

**په ميدان جنګ کښې صفتونه جوړل په عهد نبوی پورې خاص کيدل:** چونکه په هغه زمانه کښې به په صف جوړولوسره جنګ کيدلو نودَملګرو يوځائی کيدل به ډير ضروری وو ځکه چه ځان له ملګرې به ئی ليدلو نودښمن به راګيرولو خونن صبا هوائی بمباری کيږی بل راکټ اوګولې راپريوځی نودَدې دَپاره به حکمت عملی هم هغه وی چه دَبچاؤته پاره ښه مفيدوی.

**[۲۹۱۵] په سفر کښې د نبی عليه السلام د ملګرو خيال ساتل**

[٢٣] ()① وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ②«كُنَّا يَوْمَ بَدْرٍ، كُلُّ ثَلَاثَةٍ عَلَى بَعِيرٍ، ③فَكَانَ أَبُو لُبَابَةَ، وَعَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ زَمِيلَيْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، ④قَالَ: فَكَانَتْ إِذَا جَاءَتْ عُقْبَةُ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَا: نَحْنُ نَمْشِي عَنْكَ». ⑤قَالَ: "«مَا أَنْتُمَا بِأَقْوَى مِنِّي، وَمَا أَنَا بِأَغْنَى عَنِ الْأَجْرِ مِنْكُمَا»". رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** ①عبد الله ابن مسعود ﷺ وايي ②دبدر په ورځ (يعنی دجنګ بدر په موقع) زمونږ دا حالت ووچی په مونږ کی هر دری سړی په يوه اوښ باندی سوريدل (يعنی دری دری سړودپاره يواوښ وو او هغوی دري سره به په نمبر نمبر په يو اوښ باندې سوريدل) ③او ابو لبابه ﷺ اوحضرت علي ﷺ د رسول کريم ﷺ په اوښ کې ورسره شريك وو ④حضرت عبد الله بيان کوي چې صورت حال داوو چې کله به په هغه اوښ د رسول کريم ﷺ د ځکته کيدونمبر راغلو نو ابولبابه ﷺ او حضرت علي ﷺ به عرض کوی چې ستاسو په بدله کې به مونږ پياده ځو تاسو ﷺ په اوښ سواره شئ ⑤ليکن حضور ﷺ به ورته وفرمايل نه تاسو زما څخه زيات طاقت لرئ چې بس تاسو د پياده تلو طاقت لرئ او زه پياده نشم تلی او نه زه د آخرت زيات ثواب حاصلولو کې ستاسو څخه بي پرواه يم يعنی زه د آخرت د اجر او ثواب ستاسو څخه کم محتاج نه يم. (شرح السنه)

**حل اللغات:** ① زَمِيلَيْ: ملګری، شريک، ② عُقْبَةُ: دکوزيدلو نمبر، ③ أَغْنَى: بې پرواه، بيزاره،

() اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحديث ۲۶۸۶ واحمد فی المسند ۱/ ۴۲۲

**تسهيلات:**

**قوله: وَمَا أَنَا بِأَغْنَى عَنِ الْأَجْرِ مِنْكُمَا:**

**په جنګ بدر کښې د مسلمانانو د وښانو شمار:** جنګ بدر ته د تلونکو ۳۱۳ صحابه کرامو سره صرف ۷۰ اوښان وو په دې وجه به په يو يو اوښ باندې ډيرو ملګرو سفر کولو. مثلاً دريو کسانو ته به يو اوښ ملاويدلو نو دوه به سواره وو او يو به جلب نيولو سره پيدل روان وو.

**د نبی علیه السلام د نوبت ملګری:** حضورپاك سره هم دغه معامله اوشوه. حضورپاك سره حضرت علی ﷜ اوحضرت ابولبابه ﷜ ملګری وو. کله چه به د حضورپاك د پيدل تللو اود اوښ جلب نيولو نمبر راتلو نو دواړو ملګروبه ورته وئيل يارسول الله مونږ به ستاسو د طرف نه پيدل لاړشو. حضورپاك به اوفرمائيل تاسو ما نه زيات طاقتور هم نه ئی اونه زه د پيدل تګ د ثواب نه بې پرواه يم لهذا په مقرره ترتيب باندې به ځو.

**د نبي عليه السلام عاجزی اود جهاد فضيلت:** د دې حديث نه د جهادی سفر د فضيلت اوعظيم ثواب پته لګی اوداهم معلومه شوه چه په حضورپاك کښې څومره تواضع اوانکساری وه اوداهم معلومه شوه چه حضورپاك د خپلو ملګرود پاره څومره مهربان وو. هغه چا رښتيا وئيلی دی:

لم يخلق الرحمن مثل محمد　　　ابدا وعلمي أنه لا يخلق

ترکومې پورې چه د حضورپاك تقليد دې ترهغه حده پورې د بشريت سليقه هم بشر ته ملاويږی.

**[۳۹۱٦] په سورلی باندې د تقرير کولو ممانعت**

۳۹۱٦-[۲۵] (١) ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، ②قَالَ: لَا تَتَّخِذُوا ظُهُورَ دَوَابِّكُمْ مَنَابِرَ، ③فَإِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى إِنَّمَا سَخَّرَهَا لَكُمْ لِتُبَلِّغَكُمْ إِلَى بَلَدٍ لَمْ تَكُونُوا بَالِغِيهِ إِلَّا بِشِقِّ الْأَنْفُسِ، ④وَجَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ فَعَلَيْهَا فَاقْضُوا حَاجَاتِكُمْ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ①ابوهريره ﷜ د نبي کريم ﷺ څخه نقل کوي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ②د خارويو شا منبر مه جوړوئ ③ځکه چې الله ﷻ حيوان خاص د دې د پاره ستاسو تابع کړي دی چې هغوئ تاسو هغه ښارونه او علاقو ته ورسوي چرته چې تاسو د پياده تلو په ذريعه جاني مشقت او محنت سره رسيږي [يعنی د حيوان څخه مقصود په هغوی سورلی کول او د هغوی په ذريعه خپل مقصد حاصلول دي نو هغوی ته تکليف رسول روانه دی] ④او الله ﷻ زمکه ستاسو د پاره دي غرض ته پيدا کړيده نو تاسو په دې خپل کارونه او خپل حاجتونه پوره کوئ. (ابوداود)

(١) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الجهاد باب في الوقوف على الدابة (رقم-٢٥٦٧)

**حل اللغات:** ① ظُهُورَ: شاګاني، ② مَنَابِرَ: منبرونه، ③ بَالِغِيهِ: رسیدونکی، ④ بِشِقِّ: په تکلیف او مشقت سره

**تسهيلات:**

**قوله** لَا تَتَّخِذُوا ظُهُورَ دَوَابِّكُمْ مَنَابِرَ:

**د ځناورو څخه د منبر جوړولو ممانعت:** یعني دَ سورلئی دَ ځناورو شا دَ کیناستلو اودَ خطبې ورکولو دَپاره منبر مه جوړوئی چه بغیرد ضرورت نه اوبغیرد سفر نه دَهغوی شاګاني دَخپل ګپ شپ دَپاره قیام ګاه جوړه کړئی آخرهغه هم ساه والا دی. هغې ته هم دَ آرام او راحت موقع ورکوئی. دَهغی دَ شاګانونه راکوزشئی اوخپل مجلسونه په زمکه باندې اولګوئی.

**د سورلۍ په شا باندې د خطبه ورکولو استثنائي صورت:** دې نه هغه صورت مستثنٰی دې چه دَيوخاص ضرورت لاندې دَ سورلئی په شا باندې کینی اوخطبه ورکړی دې دَپاره چه آوازئی ترلرې پورې اورسی لکه څنګه چه حضورپاك په يوم عرفه کښې کړې وو

**[۲۹۱۷] د سورلو د راحت خيال ساتل**

| |
|---|
| ۳۹۱۷-[۲۶] (¹) ① وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② كُنَّا إِذَا نَزَلْنَا مَنْزِلًا لَا نُسَبِّحُ حَتّٰى نَحُلَّ الرِّحَالَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. |

**ترجمه:** ① او حضرت انس ﷛ وايي ② مونږ چې به د سفر په دوران کې یا وروسته څه منزل باندې کوز شو نو د ترهغه وخته پورې به مو نفل مونځ نه کوی ترڅوپورې چې د ځارویو څخه مو سامان نه وو کوز کړي (ابوداود)

**حل اللغات:** ① لَا نُسَبِّحُ: نفل مونځ به نه کولو مونږ، ② نَحُلَّ: مونږ به پرانستلو، مونږ به کوزولو، ③ الرِّحَالَ: سامان.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا نُسَبِّحُ حَتّٰى نَحُلَّ الرِّحَالَ:

د سبحه په مصداق کښې دوه اقوال: ① د "سبحه" او "تسبيح" اطلاق اکثر په نفل مونځونو باندې کيږي

② بعضی حضرات فرمائي چه دلته د چاشت مونځ مراد دې ځکه چه په هغه زمانه کښې عام طور په پړاؤنو کښې د دمه کولو وخت به هم د چاشت وخت وو،

د حديث مطلب دا دي چه صحابه کرامو به د مونځ ډير خيال ساتلو ليکن د خپل ځناور خيال ساتلو اهتمام به ئي هم کولو.

---

¹) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد/باب فی نزول المنازل (رقم-۲۵۵۱)

**[۲۹۱۸] په یوه سورلۍ په مخکې حصه باندې د کیناستو حقدار**

۳۹۱۸—[۲۷] (¹) ①وَعَنْ بُرَيْدَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ ②: «بَيْنَمَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَمْشِي إِذْ جَاءَهُ رَجُلٌ مَعَهُ حِمَارٌ، ③فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ ارْكَبْ وَتَأَخَّرَ الرَّجُلُ، ④فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "لَا، أَنْتَ أَحَقُّ بِصَدْرِ دَابَّتِكَ، إِلَّا أَنْ تَجْعَلَهُ لِي". ⑤قَالَ جَعَلْتُهُ لَكَ»، فَرَكِبَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ①حضرت بریده رضی الله عنه وایي ②چې رسول کریم ﷺ په یو سفر کې پیاده لار وهله چې په دې دوران کې اچانك یو سړی خپل خره سره [یعنی په هغه سور] حضور ته راغلو ③او عرض یې اوکړو چې یارسول الله څما په خره سور شه او په دې ویلو سره هغه سړی د خره وروسته طرف ته سور شو چې حضور ﷺ مخکې کیني ④لیکن حضور ورته وفرمایل زه مخکې نه کینم ځکه چې په خپله سورلۍ د مخکې کیناستو ته مستحق یې خو داچې ته ما د هغه حقدار جوړکړې [یعنی اګر چې د هغه سړي په وروسته کیدل د دې د پاره وو چې ګویا حضور ﷺ یې مخکې د کیناستو حقدار جوړ کړي وو لیکن حضور ﷺ د کمال احتیاط پیش نظر په هغه واضحه کړه چې زه ستا په سورلۍ هغه وخت مخکې کینم هرکله چې ته ښکاره الفاظو کې ماته دمخکې ناستې د پاره اووائې] ⑤هغه سړي اوویل چې زه په صراحت سره دا وایم چې ماتاسو ددې حقدار جوړکړې یئ د دې څخه وروسته حضور ﷺ مخکې کیناستلو. (ترمذي ابوداود)

**حل اللغات:** ①بِصَدْرِ دَابَّتِكَ: صدر سینې ته وائی، د څاروی مخکښې حصه.

**تسهیلات:**

**قوله:** أَنْتَ أَحَقُّ بِصَدْرِ دَابَّتِكَ:

**د سورلۍ د مالک د سورلۍ په مخکې سیټ د کیناستو استحقاق:** د نبی کریم ﷺ مذکوره عمل هم په تواضع او انکساری باندې محمول دې او نبی کریم ﷺ ورستو کیناستو نه شرم محسوس نه کړو او ورستو کیناستو باندې راضي شو. مګر کله چه مذکوره کس په صراحت سره خپل حق نبی کریم ﷺ ته وسپارلو. نو بیا نبی کریم ﷺ مخکې کیناستلو نو ددې نه دا معلومه شوه چه سورلۍ باندې د مخکې کیناستو حق د سورلۍ والا دې او د سورلئ مالک خپل حق چا له ورکوی نو هغه ته اختیار دې

**[۲۹۱۹] شیطاني اوښ او شیطاني کور**

۳۹۱۹—[۲۸] (²) ①وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِنْدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②«تَكُونُ إِبِلٌ لِلشَّيَاطِينِ وَبُيُوتٌ لِلشَّيَاطِينِ". ③فَأَمَّا إِبِلُ الشَّيَاطِينِ فَقَدْ رَأَيْتُهَا يَخْرُجُ أَحَدُكُمْ

¹) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد /باب ربّ الدآبّة أحقّ بصدرها (رقم-۲۵۷۲)
²) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد /باب ربّ الدآبّة أحقّ بصدرها (رقم-۲۵۶۸)

بِنَجِيبَاتٍ مَعَهُ قَدْ أَسْمَنَهَا فَلَا يَعْلُو بَعِيرًا مِنْهَا وَيَمُرُّ بِأَخِيهِ قَدِ انْقَطَعَ بِهِ فَلَا يَحْمِلُهُ. ④وَأَمَّا بُيُوتُ الشَّيَاطِينِ فَلَمْ أَرَهَا». ⑤كَانَ سَعِيدٌ يَقُولُ: لَا أُرَاهَا إِلَّا هَذِهِ الْأَقْفَاصَ الَّتِي يَسْتُرُ النَّاسُ بِالدِّيبَاجِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ①او سعيد ابن ابي هند تابعي رحمه الله د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت کوي هغوی دابيان وکړو چې رسول الله ﷺ وفرمايل ②ځني اوښان د شيطانانو د پاره شي او ځني د کورونو دشيطانانو د پاره شي ③کوم اوښان چې د شيطانانو د پاره شي هغه ماليدلي دي څنګه چې ستاسو څخه يوسړی د ښه قسم اوښې اخستو سره اُوځي چې هغه ښې ځربې کړي ليکن په هغه کې يواوښ باندې سوريږي نه او هرکله چې په يوسفر کې خپل هغه مسلمان ورور سره لار قطع کوي چې د خپلې کمزورى او سورلۍ څخه د محرومې په وجه تلو تلو کې ستړی شوی وي نو هغه هم په هغه اوښ نه سوروي ④او کوم کورونه چې د شيطان د پاره وي هغه ماليدلي نه دي ⑤د حديث راوي حضرت سعيد رضي الله عنه وايي ځما ګمان دادی چې هغه کورونه کوم چې د شيطانانو د پاره دی هغه پنجرې دی چې خلق يې د ريشمي کپړې پردو سره پټوي. (ابوداود)

**حل اللغات:** ①نَجِيبَاتٍ: ښه اوښان. ②أَسْمَنَهَا: ځربې اوښې، ③فَلَا يَعْلُو: سوريږې پرې نه. ④الْأَقْفَاصَ: داد قفص جمع ده قفص پنجرې ته وائي دلته مراد کجاوه ده. ⑤الدِّيبَاجِ: ريښم، د ريښمو کپړې

**تسهيلات:**

**قوله:** وَيَمُرُّ بِأَخِيهِ قَدِ انْقَطَعَ بِهِ فَلَا يَحْمِلُهُ:

**بل څوک په سورلۍ د نه سورولو حکم:** يعنى اوښ خالي پريږدي او شړی ئې، نه بل څوک په دې باندې سوره وی اونه پخپله سوريږي. ځکه چه دهغه ضرورت نه وی بلکه کله په خپل مجبوره رور باندې تيريږي هم مګر هغه سوره وی نه دا شيطاني اوښ دې چه دده په شاباندې د يومجبور اوغريب حق نشته دې.

**قوله:** لَا أُرَاهَا إِلَّا هَذِهِ الْأَقْفَاصَ الَّتِي يَسْتُرُ النَّاسُ بِالدِّيبَاجِ:

**سورلو ته د شيطاني پنجرو ويلو وجه:** هغه کجاوې په کومه کښې چه ريښميني کپړې اچولې شوې وی نو د ريښمو د وجې نه دا کجاوې شيطاني پنجرې او جالئي جوړې شوې

**[۲۹۲۰] په يو ځائي کښې د پړاو اچولو د پاره دوه هدايات**

۲۹۲۰—[۲۹] (¹) ①وَعَنْ سَهْلِ بْنِ مُعَاذٍ، عَنْ أَبِيهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ②«غَزَوْنَا مَعَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، ③فَضَيَّقَ النَّاسُ الْمَنَازِلَ وَقَطَعُوا الطَّرِيقَ، ④فَبَعَثَ نَبِيُّ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مُنَادِيًا فِي النَّاسِ: ⑤"أَنَّ مَنْ ضَيَّقَ مَنْزِلًا، أَوْ قَطَعَ طَرِيقًا، فَلَا جِهَادَ لَهُ"». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

¹) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الجهاد ، باب ما يؤمر من انضمام العسكر وسعته (رقم-۲۶۲۹) واحمد في المسند:۳/۴۴۱

**ترجمه:** [۱] او سهل ابن معاذ د خپل پلار څخه نقل کوي هغه اوويل [۲] يو ځل مونږ درسول الله ﷺ سره جهاد ته ولاړو او پړاؤ باندې موقيام وکړ [۳] نو خلقو د هغه پړاؤ ټول ځايونه تنګ کړل او لار يې پرېکړله يعنې بعضې خلقو بلا ضرورته يا د ضرورت څخه زيات ځايونو باندې قبضه وکړله چې د هغه په وجه د نورو خلقو ځايونه تنګ شول دغه شان لاره هم تنګه شوه چې د هغه سره تلونکو راتلونکو ته پريشاني شروع شوه [۴] په دې ليدو سره نبي کريم ﷺ يو اعلانچي خلقو ته داعلان کولو د پاره وليږلو [۵] چې کوم سړی ځای تنګ کړي يا لار يې پرې کړه نو خلقوته د ضرر او تکليف رسولو په وجه هغه ته به د جهاد ثواب نه حاصليږي. (ابو داود)

**حل اللغات:** ① ضَيَّقَ: تنګ کړی، ② قَطَعَ طَرِيقًا: پرې ئې کړه لار، لوټ مار ئې او کړو.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنَّ مَنْ ضَيَّقَ مَنْزِلًا، أَوْقَطَعَ طَرِيقًا، فَلَا جِهَادَ لَهُ

**په جهادي سفر کښې ځانته په تکليف ورکولوسره د ثواب کميدل:** د حديث حاصل دا دې چه په يوه غزوه کښې بعضو حضراتو په لاره کښې سامان کيخودلو، په کوم سره چه لاره بند شوه او بعضو حضراتو د ضرورت نه زيات ځائې ګيرکړو کوم سره چه په غزوه کښې موجود نورو خلقو ته تکليف وؤ نو نبی کريم ﷺ وفرمايل چه تکليف ورکونکی مجاهد ته به د جهاد پوره ثواب نه ملاويږی

**[۳۹۲۱] سفر څخه د واپس راتلو بهترين وخت**

[۳۰] ()[۱] وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، قَالَ: [۲] "«إِنَّ أَحْسَنَ مَا دَخَلَ الرَّجُلُ أَهْلَهُ إِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ أَوَّلَ اللَّيْلِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضي الله عنه د نبي کريم ﷺ څخه نقل کوي حضور ﷺ وفرمايل [۲] د سفر څخه واپس راتلو سړي د پاره خپل کور والاوو ته رسيدو د پاره بهترين وخت د شپې ابتدايي حصه ده. (ابو داود)

**تسهيلات:** **قوله:** أَحْسَنَ مَا دَخَلَ الرَّجُلُ:

**په کلمه ,,ما،، کښې دوه احتمالات:** ① قاضی عياض رحمه الله فرمايي چه دلته ما موصوله ده او محذوف طرفته راجع ده، او هغه وخت دې په کوم وخت کښې چه سړې کور ته راځی.

② که ما مصدريه شي نو مضاف به محذوف وی، أي،، إن أحسن دخول الرجل أهله أول الليل،، په دې صورت کښې به أهله د إن د پاره د خبر کيدو په وجهې محلاً مرفوع دې.

[۱] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد /باب فی الطّروق (رقم-۲۷۷۷)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۲۹۲۲] د سفر په دوران کښې د نبی علیه السلام د خوب کیفیت

۳۹۲۲-[۳۱] (¹) [۱] عَنْ أَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا كَانَ فِي سَفَرٍ فَعَرَّسَ بِلَيْلٍ اضْطَجَعَ عَلَى يَمِينِهِ، [۳] وَإِذَا عَرَّسَ قُبَيْلَ الصُّبْحِ نَصَبَ ذِرَاعَهُ وَوَضَعَ رَأْسَهُ عَلَى كَفِّهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو قتاده رضی الله عنه وايي [۲] رسول کريم ﷺ چې به په سفر کې وو نو يو پړاؤ باندې د شپې آخري حصه کې يعنی سحر ختو ځخه مخکې به کوز يدلو او په ښي آړخ به اوده کيدو [۳] او کله چې به سحر ځخه لږ مخکې کوز يدلو نو خپل ښي لاس اودرولو سره د هغه په تلی هتهيلي به يي خپل سر مبارك اينبودلي يعنی لږ وخت دپاره په دي دوران کې به يې آرام فرمايه چې خوب باندې غالب نشي

**حل اللغات:** ① عَرَّسَ: کوزيدلوبه، پړاؤ به ئې کولو. ② اضْطَجَعَ: څملاستلوبه. ③ نَصَبَ: اودرولو به ئې.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذَا كَانَ فِي سَفَرٍ فَعَرَّسَ بِلَيْلٍ:

**د صبا په وخت کښې د خوب په کيفيت کښې دوه طريقې:** ① يعنی دَ شپې په آخرى حصه کښې چه به حضورپاك ډيره اچوله نوكه په صبا صادق کښې به لږ وخت وو نوحضورپاك به په ښی اړخ باندې ډېره لګولوسره آرام کولو ځکه چه وخت به زيات وو

② که وخت به ډير کم وو نو حضورپاك به ښې لاس اودرولو اودَهغې په تلى باندې به ئې آرام کولو دې دَپاره چه دَ سحر مونځ قضانه شي.

## [۲۹۲۳] د سحر په وخت کښې د سفر شروع کولو فضيلت

۳۹۲۳-[۳۲] (²) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [۲] «بَعَثَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ رَوَاحَةَ فِي سَرِيَّةٍ، فَوَافَقَ ذٰلِكَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، [۳] فَغَدَا أَصْحَابُهُ، وَقَالَ: أَتَخَلَّفُ وَأُصَلِّي مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، ثُمَّ أَلْحَقُهُمْ، [۴] فَلَمَّا صَلَّى مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَآهُ، فَقَالَ: "مَا مَنَعَكَ أَنْ تَغْدُوَ مَعَ أَصْحَابِكَ؟" فَقَالَ: أَرَدْتُ أَنْ أُصَلِّيَ مَعَكَ، ثُمَّ أَلْحَقَهُمْ. [۵] فَقَالَ: "لَوْ أَنْفَقْتَ مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا مَا أَدْرَكْتَ فَضْلَ غَدْوَتِهِمْ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او ابن عباس رضی الله عنهما وايي [۲] چې رسول کريم ﷺ عبد الله ابن رواحه رضی الله عنه د جهاد د پاره يو لښکر سره وليږلو اتفاقي طور هغه د جمعې ورځ وه چې حضور ﷺ ورته جهاد ته

---

¹) اخرجه مسلم في كتاب المساجد/باب قضاء الصلاة الفائتة، واستحباب تعجيل قضائها (رقم) ۳۱۳ - (۶۸۳) واحمد في المسند: ۵/ ۳۰۹

²) اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ۵۲۷ واحمد في المسند ۱/ ۲۲۴

د تلو حکم ورکړي وو ③نو د هغه ملګرې یعنی د لښکر خلق د سحر وخت کې روان شول لیکن عبد الله ﷺ په خپل زړه کې سوچ وکړو یا یوملګري ته یې اوویل زه به وروسته راونیږم چې مخکې دلته په مدینه کې رسول کریم ﷺ سره د جمعې مونځ وکړم بیا به لښکر والاوو سره یوځای شم ④عبد الله ﷺ وایي چې رسول کریم ﷺ د جمعې مونځ وکی او حضو ﷺ هغه ولیدلو چې هغه هم دلته موجود دی نو ورته وي فرمایل ته د سهر په وخت کې خپلو ملګرو سره تلو څخه څه څیز منع کړی هغه عرض اوکړو ما داغوښتل چې ستاسو سره د جمعې مونځ وکړم بیا به د خپلو ملګرو سره یو ځای شم ⑤په دې اوریدو سره حضور ﷺ ورته وفرمایل که ته د زمکې په مخ ټول څیزونه هم خرڅ کړې نو په سحر وخت کې تلونکو د خپلو ملګرو ثواب به حاصل نه کړې. (ترمذي)

**حل اللغات:** ①فَوَافَقَ: اتفاقی طور، موافق شوه، ②فَغَدَا: سحر وخت کښې روان شول، ③أَتَخَلَّفُ: روسته به روان شم، ④أَلْحَقُهُمْ: هغوی سره به یو ځائ شم.

**تسهیلات:**

**قوله: فَوَافَقَ ذٰلِكَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ:**

**دحدیث پس منظر:** په ٨ هجری کښې نبی کریم ﷺ تقریبًا درې زره صحابه کرام دَ روما دَ سلطنت سره دَجهاد دَپاره روان کړی وو. حضرت زید ﷺ اودَ هغوی نه پس حضرت جعفر ﷺ اوبیا عبدالله بن رواحه ﷺ دریواړه حضورپاك یوبل پسې ترتیب سره امیران جوړکړی وو. کله چه دَ مدینې منورې نه دا حضرات اووتل نوحضرت عبدالله بن رواحه ﷺ حضورپاك سره دَ جمعې دَمونځ اداکولو په غرض سره په مدینه کښې حصار شو دَهغوی دواړه ملګری اسلامی لښکر سره لاړل. دَجمعې ورځ وه حضرت عبدالله بن رواحه ﷺ سوچ اوکړو چه کیدې شی چه دا دَ ژوند آخری جمعه وی اودَ حضورپاك آخری زیارت وی دَ مسجدنبوی آخری مونځ وی په دې غرض دَ جمعې مونځ حضورپاك پسې دَ کولو دَپاره حصار شو. جمعه ئې اداکړه کله چه حضورپاك هغه اولیدلو نوتپوس ئې اوکړو چه په څه وجه دې تاخیرکړې دې؟ هغوی عذر بیان کړو چه ملګرو سره ملاویدل څه ګرانه خبره نه ده اوس به لاړ شم. حضورپاك سره دَجمعې دَ مونځ اداکولو فضیلت حاصل شو.

**قوله: مَا أَدْرَكْتَ فَضْلَ غَدْوَتِهِمْ:**

**د الله په لار کښې د یو صبا وتلو ثواب:** په دې باندې حضورپاك اوفرمائیل په زمکه کښې چه کوم څه دی هغه ټول هم خرچ کړې بیا هم دَجهاد په سفرکښې سحروختی دَ تلو فضیلت نه شې حاصلولې. معلومه شوه چه دَجهاد عمل دیر اوچت عمل دې اودادَ ټولو نه افضل عمل دې. [الکاشف، ۲۱۲/۷]

**[۳۹۲۴] د شرمخ د څرمن د استعمال ممانعت**

۳۹۳۳-[۳۳] (¹) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②«وَلَا تَصْحَبُ الْمَلَائِكَةُ رُفْقَةً فِيهَا جِلْدُ نَمِرٍ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ①او ابوهریره ﷺ وايي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل ②هغه قافلي سره د رحمت فرښتي نه وي چې په هغه کې د شرمښ څرمن وي (یعنی د شرمښ په څرمن سوریدو سره ناسته یادهغه استعمالول ممنوع دی ځکه چې په دي سره دتکبرشان پیدا کیږي) (ابوداود)

**حل اللغات:** ① لَاتَصْحَبُ: نه ملګري کیږي، ② رُفْقَةً: قافله، ③ جِلْدُ: څرمن. ④ نَمِرٍ: پړانګ. شیرمخ.

**تسهیلات:**

**قوله: وَلَا تَصْحَبُ الْمَلَائِكَةُ رُفْقَةً فِيهَا جِلْدُ نَمِرٍ:**

**د شرمخ د څرمن په وجود سره د فرښتو دعدم شرکت وجه:** یعني دَ شرمخ څرمن ئې په سورلئی خوره کړه اوسفر کوی یا ئې په زمکه باندې خوره کړې او په هغې کیني چونکه په دې سره په زړه او دماغو کښې تکبر پیدا کیږی چه زه په شرمخ ناست یم دَدې تکبر په وجه د رحمت فرښتې ملګرتیانه کوی.

**[۳۹۲۵] د سفر امیر که د ملګرو خادم**

۳۹۳۵-[۳۴] (²) ① وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " ②«سَيِّدُ الْقَوْمِ فِي السَّفَرِ خَادِمُهُمْ، ③فَمَنْ سَبَقَهُمْ بِخِدْمَةٍ لَمْ يَسْبِقُوهُ بِعَمَلٍ إِلَّا الشَّهَادَةَ» " رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي " شُعَبِ الْإِيمَانِ "

**ترجمه:** ①او سهل ﷺ بن سعد وايي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل ②په سفر کې د جماعت یعني د سفر کونکو امیر او سردار د هغوی خادم دی ③کوم سړی چې د هغه سفر کونکو په خدمت کې سبقت وي وړی د هغه په مقابله کې هیڅ سړی د شهادت څخه علاوه د بل هیڅ عمل په ذریعه سبقت نشي اوړی یعني مخکې کیدی نشي (بیهقي)

**حل اللغات:** ① سَيِّدُ: سردار، مشر، ② خَادِمُ: خدمت کونکې.

**تسهیلات:**

**قوله: سَيِّدُ الْقَوْمِ فِي السَّفَرِ خَادِمُهُمْ**

**دحدیث په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① کوم سړي چې دَ خپلو ملګرو امیر جوړشو نودَ ملګرو خادم هم دغه دې. بیا هغه له پکاردی چه دَخپلو ملګروخدمت کوی. داسې دې نه وی چه پخپله مشر جوړشی کینی او په نورو باندې حکم چلوی. په دې وجه دَ حدیث په

¹) اخرجه ابوداود في السنن كتاب اللّباس/باب في جلود النّمور والسّباع (رقم-٤١٣٠)
²) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ٨٤٠٧

آخرې الفاظو کښې ارشاد دې چه خادم کله دَخدمت په وجه وړاندې کيږي نو دَهغه مقام ته هيڅوك نه شي رسيدلې مګر هغه سړې چه دَ شهادت مقام حاصل کړي.

④ کوم سړې چې دَخپلو ملګرو خدمت کوي هغه په اصل کښې دَ ټولو سردارجوړيږي. څکه چه هغه دَ خدمت دَ وجې نه دَ ټولو زړونه اوګټي. بل په هرکارکښې خلق دَهغه محتاج وي دغه شان هغه دَ ټولو سردارجوړيږي سره دَ دې چه سړې غريب وي.

## [۳] بَابُ الْكِتَابِ إِلَى الْكُفَّارِ وَدُعَائِهِمْ إِلَى الْإِسْلَامِ

### کافرانوته دَخطونوپه ذريعه دَدعوت ورکولوبيان

**خلاصة الباب:**

**فيه أحد وثلاثون حديثاً مشتملة على ست مسائل:**

① إرسال المكاتيب إلى الملوك:, قيصر: ۱،-کسرى: ۲، نجاشي: ۳،/ فارس: ۱۱

② المكاتيب التفصيلية إلى الملوك: ۱، ۱۱۔

③ الدعوة إلى الإسلام قبل القتال: ۴۔

④ عدم تمنى القتال وهذا من الدعوة قبل القتال: ۵۔

⑤ الكف عن القتال إلى عدم سماع الأذان: ۶، ۱۰۔

⑥ تأخير الإغارة على الكفار إلى الظهر: ۵، ۷، ۸، ۹۔

**کافرانوته د جنګ څخه وړاندې د دعوت ورکولودوه صورتونه:** ① کافرانوته دَ جنګ نه وړاندې دعوت ورکول واجب دي په دې شرط چه هغوی ته دعوت نه وي رسيدلې.

② کافرانوته که چرې د جنګ څخه وړاندې د اسلام دعوت وررسيدلې وي نوبيا په دويم خل دعوت ورکول مستحب دي. په دې باندې دکتاب الجهادپه شروع کښې په تفصيل سره خبره شوې ده.

**د دعوت مختلفې طريقې:** دَ دعوت ډيرې زياتې طريقې دي پخپله ورتلل اودعوت ورکول يا په يونشرياتي ادارې سره اعلان کول يا په يوه مشهوره واقعه باندې کافران خبرول چه مسلمان هم يوقوم دې چه څان سره خپل آسماني کتاب او مذهب لري. هم دَدغه طريقونه يوه طريقه کافرانوته دَدعوت دَپاره خط ليکل هم دي. په اسلام کښې دعوت يوه شعبه ده ليکن دَدې څه خاص متعين شکل نشته دې. دَ زمانې دَ احوالو مطابق چه څوك کومه يوه جائزطريقه هم اختياره وي دَ دعوت کار کيږي.

**د صلح حديبيه فائدې:** کله چه حضورپاك دَمکې کافرانوسره دَ لسوکالو دَپاره په حديبيه کښې په جنګ بندئې باندې صلح اوکړه نودَدغه صلحې ډيرې زياتې فائدې حاصلې شوې.

① کافرانو ډیر نیزدې نه مسلمانان اولیدل اوپه خپل مینځ کښې تعلق لرلو دوجې نه کافران په ښه شان سره په اسلام باندې پوهه شو اوبیاښه پوره تعداد کښې ئې اسلام قبول کړو

② حضورپاك کله په جزیره عرب کښې د دښمن نه مطمئن اوفارغ شو نو د جزیره عرب نه بهرئې د دنیا ټولوکافرانوته د خطونو په ذریعه داسلام دعوت ورکړو حضورپاك سره دې چه پخپله د جزیره عرب نه بهر نه دې تلې مګر دخطونو په ذریعه حضورپاك د دعوت پیغام اورسولو اودومره دعوت ضروری اودجهاد دپاره کافی وو

**د نبی علیه السلام د مختلفو ملکونو حاکمانو ته د اسلام دعوت ورکول:** هغه وخت په دنیاباندې دوه لویوطاقتونوحکومت کولو (لکه څنګه چه زمونږ په دورکښې روس اوامریکه وو روس خو دړې وړې شو اوس ان شاء الله دامریکې نمبردې) د یوطاقت نوم فارس وو اودبل طاقت نوم روم وو. خلقو به د فارس مشرته کسری او د روم مشرد قیصر په نوم باندې یادولو. حضورپاك قیصر اوکسری دواړو ته خطونه اولیږل چنانچه هغه خلقو به د مهرنه بغیرڅه خط نه قبلولو په دې وجه حضورپاك یوه ګوتمه جوړه کړه او په هغې باندې ئې دا نقش کړل محمدرسول الله. ددې د لیکلوطریقه داسې وه چه لفظ دالله دټولودپاسه وو دې نه پس لفظ رسول اود دې نه پس دټولولاندې محمد لفظ وو

الله

رسول

محمد

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[۳۹۳۶] د قیصر روم په نوم د نبی علیه السلام خط**

۳۹۳٦-[۱] (¹) [۱] عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا: [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَتَبَ إِلَى قَيْصَرَ يَدْعُوهُ إِلَى الْإِسْلَامِ، [۳] وَبَعَثَ بِكِتَابِهِ إِلَيْهِ دِحْيَةَ الْكَلْبِيَّ، [۴] وَأَمَرَهُ أَنْ يَدْفَعَهُ إِلَى عَظِيمِ بُصْرَى لِيَدْفَعَهُ إِلَى قَيْصَرَ، [۵] فَإِذَا فِيهِ: "بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ مِنْ مُحَمَّدٍ عَبْدِ اللّٰهِ وَرَسُولِهِ إِلَى هِرَقْلَ عَظِيمِ الرُّومِ، سَلَامٌ عَلَى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدَى،

**ترجمه:** [۱] ابن عباس رضی الله عنهما وایي [۲] نبي کریم ﷺ قیصر یعنی د روم بادشاه ته یوخط ولیکی په هغه کې د اسلام دعوت ورکول شوی وو [۳] او هغه خط يې د دحیة کلبي صحابي رضی الله عنه

¹) اخرجه البخاری فی کتاب بدء الوحی/کیف کان بدء الوحی إلی رسول الله صلّی الله علیه وسلّم؟(رقم-۷) ومسلم فی کتاب الجهاد والسّیر/باب کتاب النّبیّ صلّی الله علیه وسلّم إلی هرقل یدعوه إلی الإسلام (رقم-۷٤ - (۱۷۷۳) واحمد فی المسند: ۲٦۳/۱

په لاس لیږلی وو [٤] او هغه ته یي داحکم کړي وو چې هغه خط د بصرٰی حاکم ته ورسوئ چې هغه یي قیصر ته ورسوي [٥] په هغه خط کې دالیکلي وو: بسم الله الرحمن الرحیم دمحمد د جانب څخه چې د الله خاص بنده او رسول دی د هرقل په نوم چې د روم حکمران اعلی دی ،په هغه چادي سلامتیا وي چې د اسلام د قبولیت او خپل نیك کردار او اعمالو په ذریعه د هدایت پیرو ی وکړی د دې

**حل اللغات:** ① دِحْيَةَ الْكَلْبِيِّ: د یو صحابی نوم دی.

[١] أَمَّا بَعْدُ، فَإِنِّي أَدْعُوكَ بِدِعَايَةِ الْإِسْلَامِ [٢] أَسْلِمْ تَسْلَمْ. وَأَسْلِمْ يُؤْتِكَ اللَّهُ أَجْرَكَ مَرَّتَيْنِ، [٣] وَإِنْ تَوَلَّيْتَ فَعَلَيْكَ إِثْمُ الْأَرِيسِيِّينَ، وَ﴿قُلْ يَاأَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلَى كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلَّا نَعْبُدَ إِلَّا اللَّهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَقُولُوا اشْهَدُوا بِأَنَّا مُسْلِمُونَ﴾ [آل عمران: ٣]»)" مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [٤] وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ، قَالَ: "مِنْ مُحَمَّدٍ رَسُولِ اللَّهِ" وَقَالَ: "إِثْمُ الْيَرِيسِيِّينَ" وَقَالَ: "بِدِعَايَةِ الْإِسْلَامِ".

**ترجمه:** [١] څخه وروسته زه تاته د اسلام کلمه شهادت دعوت درکوم [٢] ته اسلام قبول کړه د دنیا او آخرت د عذاب څخه به محفوظ او مامون شی ته مسلمان شه الله ﷻ به درته دوچنده اجر درکړي یو اجر خو خپل نبي باندې د ایمان راوړلو او دویم اجر ما محمد باندې د ایمان راوړلو [٣] او که تا مخ وګرځولو [یعنی اسلام قبول نه کړي نو په تادې واضحه وي چې د دې انکار او اعراض مخ اړولو په وجه به] په تا صرف د خپلې ګناه وبال نه وي بلکه ستا د ملك والاوو او ستا د رعیت ګناه به هم په تاوي ځکه چې ستا اسلام نه راوړلو سره هغوی به هم په کفر کې مبتلا وي ځکه د هغوی د ګمراهي ذمه واري به هم په تاوي ﴿ای اهل کتابو! داسې کلمي او دین طرف ته راشئ چې زمونږ او ستاسو په مینځ کې یوشان مشترك دی یعنی دې کلمه اودین کې زمونږ او ستاسو د رسولانو او کتابونو په مینځ کې څه اختلاف نشته او هغه کلمه اودین دادی چې مونږ د الله څخه ماسوا د بل چا عبادت نه کوو د هغه سره څوك نه شریك کوو او په مونږ کې هیڅوك د الله څخه ماسوا رب جوړ نه کړی څنګه چې عیسایانو حضرت عیسی علیه السلام رب جوړ کړي دی که اهل کتاب ددې خبري قبلولو څخه اعراض او انکاروکړي نو اې مؤمنانو تاسو دا اعلان وکړئ چې اې کافرانو شاهدان اوسئ چې مونږ مسلمانان یو.﴾ (بخاري مسلم) [٤] او د مسلم په یوروایت کې مِنْ مُحَمَّدٍ عَبْدِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ: په ځای مِنْ مُحَمَّدٍ رَسُولِ اللَّهِ: دی او «إِثْمُ الْأَرِيسِيِّينَ په ځای إِثْمُ الْيَرِيسِيِّينَ دی او د: بِدَاعِيَةِ الْإِسْلَامِ په ځای بِدِعَايَةِ الْإِسْلَامِ دی.

**حل اللغات:** ② أَسْلِمْ: اسلام قبول کړه، مسلمان شه، ③ تَسْلَمْ: ته به سلامت پاتې شې، ④ تَوَلَّيْتَ: تا مخ واړولو، انکار دې اوکړو، ⑤ الْأَرِيسِيِّينَ: د قوم غټان او چوهدریان خو دلته ترې عام ماتحت مراد دی. ⑥ دِعَايَةِ الْإِسْلَامِ: د اسلام دعوت.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَبَعَثَ بِكِتَابِهِ إِلَيْهِ دِحْيَةَ الْكَلْبِيَّ:

**د دحیة الکلبی د سفارت د انتخاب وجه:** داصحابی ډیرښائسته اووجیهه اوشکیل وو. دَ "یوسف هذه الامت" په لقب سره مشهور ووهم په دې وجه حضورپاك دَ سفیرپه توګه روان کړې وو اوحضرت جبرائیل آمین به هم دَده په شکل کښې وحی راوړله او راتلو به.

**قوله:** مِنْ مُحَمَّدٍ عَبْدِ اللهِ وَرَسُولِهِ إِلَى هِرَقْلَ عَظِيمِ الرُّومِ:

**د هرقل تعارف:** دا دَ روم دَبادشاه نوم دې. په هغه زمانه کښې دَ دنیا په غټو طاقتونوکښې یوطاقت روم وو دَ کوم دارالخلافه چه قسطنطینیة وو. اودَ یورپ دَ مختلف ممالکونه علاوه دَمصر شام اوفلسطین علاقې هم دَ ده زیر اثر وې. دَ هرقل په نوم باندې حضورپاك یوخط اولیږلو دَ حضرت دحیه کلبی ﷺ په واسطه سره. دَ بصریٰ شام ګورنرته داخط اورسیدو اوهغه هرقل ته اورسولو. هرقل اولوستلو او ډیر په احترام ئې خان سره کیخودو.

**فائده: د مختلفو ملکونود بادشاهانو لقبونه:** ① دَ فارس دَ بادشاه لقب خسرو وو کوم ته چه په عربی کښې کسریٰ وائي.

② دَ ترکودَ بادشاه لقب خاقان وو. ③ دَ مصر دبادشاه لقب فرعون وو

④ دَ روم دَ بادشاه لقب به قیصر وو ⑤ دَ یمن دَبادشاه لقب تبع وو.

⑥ دَحبشه دَبادشاه لقب نجاشی. ⑦ دَ چین دَ بادشاه لقب فغفور وو.

⑧ دَ هندوستان دَ بادشاه لقب راجه وو

**قوله:** عَظِيمِ الرُّومِ:

**غیرمسلم په ښه لقب سره د یادولوجواز:** دَدې لفظ نه معلومه شوه چه دَ دنیا په لحاظ دَ یولوئی منصب والا سړی دَ مقام خیال ساتل جائز دی. حضورپاك هرقل دَ عظیم الروم په نوم سره یاد کړې دې دَ غیرمسلم دَباره دَ سلام طریقه "والسلام علی من اتبع الهدیٰ" وی په دې وجه حضورپاك السلام علیکم اونه فرمائیل.

**قوله:** بِدِعَايَةِ الْإِسْلَامِ:

**د دعایة الاسلام مفهوم:** داعیه عافیة اودَ عاقبة په شان مصدر دې کوم چه دَ الدعوة په معنی کښې دې. په یوروایت کښې "دعایة" هم دې اوهغه هم دَ دعوت په معنی کښې دې.

**قوله:** تَسْلَمْ:

**په دنیا کښې مختصر مګر مؤثرخط:** یعنی عقائد فاسدو شرکیه اواخلاق ردّیه قبیحه اوهلاکتونونه به بچ شې. دا لفظ دَ تاء فتحې او دَ سین په سکون سره اودَ لام فتحې

اومیم په سکون سره دې وئیلی شی که په دنیاکښې چرته چا د تولونه زیات زور دار اومختصرخط لیکلې دې نوهغه د حضرت سلیمان عليه السلام خط دې کوم چه په قرآن کښې ذکردې لیکن دَدغه خط نه د حضورپاك خط زیات مختصر اوزیات زوردار دې

**قوله:** يُؤْتِكَ اللّٰهُ أَجْرَكَ مَرَّتَيْنِ:

**د دوؤ اجرونو د ملاویدو وجه:** دَ یهودو اونصاریٰ نه چه کوم سړې په خپل نبی باندې ایمان راوړی اوبیا محمد ﷺ قبول کړی نوهغوی ته به دوه اجرونه ملاویږی

**قوله:** وَإِنْ تَوَلَّيْتَ فَعَلَيْكَ إِثْمُ الْأَرِيسِيِّينَ:

**د اریسین په اعراب کښې دوه اقوال:** ① دې همزه مفتوح ده دَ دې نه پس راء باندې کسره ده یاء ساکن ده بیا په سین باندې کسره بیا په یاء باندې شد اوبیا یاء ساکن او په آخره کښې نون دې.

② دا لفظ یریسیین هم راغلې دې دَ همزه په ځائی باندې یاء مفتوح ده باقی کلمه هم دغه انداز سره ده دا لفظ اریسین هم راغلې دې په همزه باندې کسره راء باندې شد دې بیا یاء ساکن ده.

**د اریسیین مصداق:** دَ صحیح قول مطابق په ملك چوهدری اوپه غټوکسانانوباندې دَدې لفظ اطلاق کیدلو چنانچه بعضې روایاتوکښې "أَكَّارِيْنَ" لفظ هم راغلې دې چه دَ زمیندار اومزارع په معنی کښې دې. په حدیث کښې دَدې لفظ نه عام رعایا مراد اخستې شوې دې

**قوله:** أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللّٰهِ:

**دتحلیل اوتحریم واکدارانوباندې د ارباب اطلاق:** هیڅ یوسړی ته دَ حلال حرامولو او دَحرام حلالولواختیار ورکول هغه رب جوړول دی. عیسایانو خلقو به دا اختیار خپلو مشرانوته ورکولو. حضرت عدی بن حاتم رضي الله عنه چه کله مسلمان شو نوهغه دَ رسول الله ﷺ نه سوال اوکړو یارسول الله مونږ هیڅ کله هم خپل پادریان رب نه دی جوړکړی؟ حضورپاك ارشاد اوفرمائیلو چه آیا هغوی ته مو دَ حلال حرام کولو اختیارورکړې وو که نه؟ هغه وئیل چه دا اختیارخو مو ورکړې وو حضورپاك اوفرمائیل چه هم دغه خو رب جوړول دی.

**دهرقل په رد عمل:** هرقل دَ رسول الله ﷺ دَ خط ډیر زیات احترام اوکړو اودَخپل ملك مشرانوته ئی دَ ایمان راوړو درخواست هم اوکړو لیکن خلق په دې اوران شو لهذا هغه اسلام قبول نه کړو اګرچه دَ قبلولوئی بار بار خواهش اوکړو. امام بخاری رحمه الله په بخاری شریف کښې اشاره کړې ده چه هرقل په کفرباندې مړشوې دې. په عام توګه دَ مذهب په اعتبار دَ روم خلق عیسایان وو.

**د هرقل وفات:** کله چه صحابه کرام په انطاکیه باندې قابض شو نو هرقل د بنځې اوبچو سره په کشتئی کښې کیناستو اود شام په زمکه باندې ئې نظر واچولواو وئې وئیل "السلام علیك یا أرض الشام لا أراك الى یوم القیامة" دې وینانه پس خپل خوئی قسطنطین له لاړو او بیا مړشو

**[۲۹۲۷] دَ فارس بادشاه پرویز په نوم دَ نبی علیه السلام خط**

۳۹۲۷-[۲] ( ) [۱] وَعَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] بَعَثَ بِكِتَابِهِ إِلَى كِسْرَى مَعَ عَبْدِ اللهِ بْنِ حُذَافَةَ السَّهْمِيِّ، [۳] فَأَمَرَهُ أَنْ يَدْفَعَهُ إِلَى عَظِيمِ الْبَحْرَيْنِ، [۴] فَدَفَعَهُ عَظِيمُ الْبَحْرَيْنِ إِلَى كِسْرَى [۵] فَلَمَّا قَرَأَ مَزَّقَهُ، [۶] قَالَ ابْنُ الْمُسَيَّبِ: فَدَعَا عَلَيْهِمْ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ يُمَزَّقُوا كُلَّ مُمَزَّقٍ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او ابن عباس ﷺ وايي [۲] نبي كريم ﷺ د كسرىٰ په نوم خپل خط مبارك د عبد الله ابن حذافه سهمي ﷺ په لاس وليږلو چې تقريباً په هغه مضمون مشتمل وو كوم چې قيصر وغيره ته ليږلی وو [۳] او هغه ته يې داحكم وركړی چې هغه داخط مبارك د بحرين حاكم ته يوشي چې هغه يې كسرىٰ ته ورسوي [۴] نو عبد الله ابن حذافه ﷺ هغه خط مبارك د بحرين حاكم ته وي وړی او د بحرين حاكم هغه كسرىٰ ته ورسوى [۵] كسرىٰ چې خط اووئيلو نو په هغه د عمل كولو په ځاى هغه يې اوشلولو [۶] د حديث يوراوي ابن مُسيّب وايي چې حضور ﷺ كسرىٰ او د هغه رعايا د پاره يې دابد دعا وكړله چې هغوى دي ټكړې ټكړې كړې شي بالكل ټكړې ټكړې يعنى څنګه چې دا خط يې ټكړې ټكړې كړلو دغه شان هغوى دي هم ټكړې ټكړې شي. (بخاري)

**حل اللغات:** ①عَظِيمِ الْبَحْرَيْنِ: د بحرين بادشاه، ②كِسْرَى: د بحرين د بادشاه نوم دې ③مَزَّقَهُ: اوئې شلولو. ④دَعَا عَلَيْهِمْ: بد دعا ئې ورته اوكړه، ⑤كُلَّ مُمَزَّقٍ: ټكړې ټكړې دې شى،

**تسهيلات:**

**قوله: إِبْعَثْ بِكِتَابِهِ إِلَى كِسْرَى مَعَ عَبْدِ اللهِ بْنِ حُذَافَةَ السَّهْمِيِّ:**

**دحديث پس منظر:** دَ روم په شان فارس هم دَ ساسانيانو ايرانيانو عظيم طاقتور سلطنت وو. يوطرف ته دَ دې حدود سنده پورې خواره شوى وو او دَبل طرف نه عراق اودَ عربو ځه علاقې مثلاً يمن بحرين اوعمان هم دَدې ماتحت وو. دادَ ايشياء عظيم مملكت اودَ دنيا دويم سپرپاور وو. دَبادشاه لقب ئى خسرو وو كوم ته چه په عربى كښې كسرىٰ وئيلې كيدلو. هغه وخت دَ دغه بدبخت بادشاه نوم پرويز وو حضورپاك دَ حضرت عبدالله بن حذافه سهمى ﷺ په لاس باندې دكسرىٰ په نوم خط اوليږلو. پرويز ډير مغرور وو هغه

---

( ) اخرجه البخاري في كتاب الجهاد والسّير /باب دعوة اليهود والنّصارى، وعلى ما يقاتلون عليه، وما كتب النّبيّ صلّى الله عليه وسلّم إلى كسرى، وقيصر، والدّعوة قبل القتال(رقم-۲۹۳۹) واحمد في المسند: ۲۴۳/۱

غصه شو چه زما نوم ئې روستو ليکلې دې خپل نوم ئې اول ليکلې دې. په دې باندې هغه دَ حضورپاك خط اوشلولو وئې غورزولو. حضورپاك هغه ته بد دعا اوکړه

**دخط شلولو څخه روسته پيش شوى واقعات:** ① په تاريخ کښې ليکلى دى چه دې بدبخت دَ حضورپاك دَ گرفتارولو دَپاره دوه کسان مدينې ته روان کړل. دا قاصدان مدينې ته راغلل حضورپاك اوفرمائيل چه دَ صبا پورې انتظار اوکړئ.

② دويم صبا حضورپاك هغوى ته اوفرمائيل زما رب ستاسو رب اووژلو اودَ پرويز خوئې شيرويه هغه قتل کړې دې.

③ يا شيرويه دَ پلار په خزانه کښې دَ زهرو نه ډکه يوه شيشه اوليدله په کوم چه ليکلې وو "دواء نافع للباه" هغه دَ قوت باء دائې اوگنړله زهر ئې اوڅکل او مړشو. شپږ مياشتو کښې دواړه ختم شو.

④ بيا خلقو بنت کسرىٰ (آرميدخت) خپله مشره جوړه کړه. رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو هغه قوم هيڅ کله کاميابيدې نه شى دَچا مشرى چه دَ ښځې په لاس کښې وى.

⑤ بيا دَحضرت سعد بن ابى وقاص رضی الله عنه په مشرئى کښې صحابه دغه طرف ته متوجه شو اودَ فارس آخرى بادشاه يزدجر ئې په خاوروکښې دَ هميشه دَپاره اوده کړو اودَ قيامته پورې دَ قيصر اوکسرىٰ نوم اونښه ختمه شوه.

**[۲۹۲۸] مختلفو بادشاهانو ته دَ نبى عليه السلام دعوتى خطونه**

۳۹۲۸-[۳] (۱) ① وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: ② أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَتَبَ إِلَى كِسْرَى وَإِلَى قَيْصَرَ وَإِلَى النَّجَاشِيِّ وَإِلَى كُلِّ جَبَّارٍ يَدْعُوهُمْ إِلَى اللهِ، ③ وَلَيْسَ بِالنَّجَاشِيِّ الَّذِي صَلَّى عَلَيْهِ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت انس رضی الله عنه وايي ② چې نبي کريم ﷺ د ايران بادشاه کسرىٰ د روم بادشاه قيصر د حبشو بادشاه نجاشي او هر متکبر او مقتدر بادشاهانو ته خطونه وليکل چې په هغه کې هغوى الله يعنى د اسلام دين طرف ته وبلل شوه ③ او دا نجاشي چې حضور ﷺ ورته داخظ ليکلى وو هغه نجاشي نه دى چې د هغه د پاره نبي کريم ﷺ په مدينه کې غائبانه د جنازي مونځ کړي وو. (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: وَإِلَى النَّجَاشِيِّ وَإِلَى كُلِّ جَبَّارٍ يَدْعُوهُمْ إِلَى اللهِ:**

[1] ) اخرجه مسلم فى كتاب الجهاد والسير/باب كتب النبىّ صلّى الله عليه وسلّم إلى ملوك الكفّار يدعوهم إلى الله عزّ وجلّ (رقم-۷۵ - (۱۷۷٤) والترمذى فى كتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب فى مكاتبة المشركين (رقم-۲۷۱۶)

**دنجاشي تعارف:** دنجاشي لفظ په اصل کښې نجوس وو دَحبشې بادشاه ته به هغه خلقو نجوس وئيلې وو عربو دالفظ نجاشي جوړکړو نن صبا دَحبشه نوم کافرانو ايتهوپيا کيخودلې دې دَپاره چه دَ مسلمانانو تاريخ ختم کړی په زيربحث حديث کښې دا تنبيه ده چه حضورپاك دَ حبشې کوم نجاشي ته خط ليکلې وو داهغه نجاشي دې چاچه اسلام قبول کړې وو او حضورپاك دَهغه دَ جنازې مونځ ورکړې وو

**[۲۹۲۹] مجاهدينو ته څو هدايات**

۳۹۲۹-[۴] ()[۱] وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ[۲]: «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا أَمَّرَ أَمِيرًا عَلَى جَيْشٍ، أَوْ سَرِيَّةٍ[۳] أَوْصَاهُ فِي خَاصَّتِهِ بِتَقْوَى اللّٰهِ وَمَنْ مَعَهُ مِنَ الْمُسْلِمِينَ خَيْرًا، [۴] ثُمَّ قَالَ: "اغْزُوا بِاسْمِ اللّٰهِ، فِي سَبِيلِ اللّٰهِ، [۵] قَاتِلُوا مَنْ كَفَرَ بِاللّٰهِ، [۶] اغْزُوا فَلَا تَغُلُّوا، وَلَا تَغْدِرُوا، وَلَا تُمَثِّلُوا، وَلَا تَقْتُلُوا وَلِيدًا، [۷] وَإِذَا لَقِيتَ عَدُوَّكَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ فَادْعُهُمْ إِلَى ثَلَاثِ خِصَالٍ -، أَوْ خِلَالٍ -

**ترجمه:** [۱] سلمان بن بريده خپل پلار حضرت بريده ﷺ څخه نقل کوي هغه وفرمايل [۲] رسول الله ﷺ چې به يو سړی د يو کوچني يالوی لښکر امير مقرر کوی نو خاص طور سره د هغه دذات سره متعلق [۳] هغه ته به يې دالله څخه د ويرېدلو او د هغه سره جهاد ته تلونکو مسلمانانو سره د خير ښيګړې کولو نصيحت کوی چې د مجاهدينو لښکر ستا په حکم کې ځي هميشه د هغوی سره د خير ښيګړې معامله کوه او د هغوی په حق کې حسن سلوك احسان نرمي او د ملاطفت رويه اختياروه [۴] او د دې څخه وروسته به يې دا فرمايل د الله نوم اخستو سره د الله په لار کې جهاد کوه يعنی د الله ﷻ رضا او خوشنودي د پاره [۵] او د هغه د دين جنډه سربلند کولو په غرض اسلام دښمنه طاقتونو سره جنګ کوه د هغه سړي خلاف جهاد کوه چې هغه په الله سره کفر کړي دی [۶] جهاد کوه ① د غنيمت مال کې خيانت مه کوه ② عهد شکني مه کوه ③ مثله مه کوه يعنی د چا اعضاء جسم لکه پوزه غوږ وغيره مه پريکوه ④ او بچی مه قتلوه [۷] او اې امير لښکر هرکله چې ته د خپل مشرکو دښمنانو مخې ته ورسيږې نو مخکې هغوی ته د درېو څيزونو څخه د يوه اختيارولو دعوت ورکړه يا د حديث راوي د خپل شك اظهار کوي چې حضور ﷺ ثلث خصال په ځای ثلث خلال وفرمايه خصال او خلال دا [دواړو يوه معنی ده]

**حل اللغات:** ① أَمَّرَ: مقررکول به ئې. ② لَاتَغُلُّوا: غنيمت کښې خيانت مه کوه. ③ لَاتَغْدِرُوا: عهد شکنی مه کوه. ④ وَلَاتُمَثِّلُوا: مثله مه کوه. ⑤ وَلِيدًا: واړه ماشومان.

[1]) اخرجه مسلم فى كتاب الجهاد والسير /باب كتب النبىّ صلّى الله عليه وسلّم الى ملوك الكفّار يدعوهم إلى الله عزّ وجلّ (رقم-۷۵ - (۱۷۷٤) ومسلم فى كتاب الجهاد والسير /باب تأمير الإمام الأمراء على البعوث. ووصيّته إيّاهم بآداب الغزو وغيرها (رقم-۳ - (۱۷۳۱) و ابو داود فى كتاب الجهاد /باب فى دعاء المشركين (رقم-۲٦۱۲) والترمذى فى كتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم /باب فى مكاتبة المشركين (رقم-۲۷۱۷)

١ فَأَيَّتُهُنَّ مَا أَجَابُوكَ فَاقْبَلْ مِنْهُمْ وَكُفَّ عَنْهُمْ، ٢ ثُمَّ ادْعُهُمْ إِلَى الإِسْلَامِ، فَإِنْ أَجَابُوكَ فَاقْبَلْ مِنْهُمْ وَكُفَّ عَنْهُمْ، ٣ ثُمَّ ادْعُهُمْ إِلَى التَّحَوُّلِ مِنْ دَارِهِمْ إِلَى دَارِ الْمُهَاجِرِينَ، ٤ وَأَخْبِرْهُمْ أَنَّهُمْ إِنْ فَعَلُوا ذَلِكَ فَلَهُمْ مَا لِلْمُهَاجِرِينَ، وَعَلَيْهِمْ مَا عَلَى الْمُهَاجِرِينَ، ٥ فَإِنْ أَبَوْا أَنْ يَتَحَوَّلُوا مِنْهَا فَأَخْبِرْهُمْ أَنَّهُمْ يَكُونُونَ كَأَعْرَابِ الْمُسْلِمِينَ، ٦ يَجْرِي عَلَيْهِمْ حُكْمُ اللهِ الَّذِي يَجْرِي عَلَى الْمُؤْمِنِينَ، ٧ وَلَا يَكُونُ لَهُمْ فِي الْغَنِيمَةِ وَالْفَيْءِ شَيْءٌ إِلَّا أَنْ يُجَاهِدُوا مَعَ الْمُسْلِمِينَ،

**ترجمه:** ١ په دي خصلتونو کې چې کوم څيز تاسره اختيار کړي نو ته هغه منظور کړه او هغه د دې څخه زيات په څه بل شي مه مجبوره کوه ٢ بيا هغوی ا سلام ته راؤبله يعنی هغه دروخيزونو کې د ټولو مخکښی شی دادی چې هغوی ته داسلام دعوت ورکړه که هغوی دعوت قبول کړي نو ته يي هم منظور کړه او د هغوی سره جنګ کولو څخه منع شه ٣ بيا که هغوی اسلام قبول کی نو هغوی ته د خپل ملك يعنی دار الحرب څخه د مهاجرينو ملك يعنی دار الاسلام ته د منتقل کيدو يعنی د هجرت دعوت ورکړه ٤ او هغوی ته دا وښايه که هغوی داسې وکړي يعنی هجرت کولو سره دار الاسلام ته راشي نو هغوی ته به هغه حقوق حاصل وي کوم چې مهاجرينوته حاصل دی او په هغوی به هغه ذمه واري عائد کيږي کومې چې مهاجرينو باندې عائد دی ٥ که هغوی ترك سکونت اختيارولو ته تيار نه وي نو هغوی ته وښايه چې په داسې صورت کې به هغوی د ديهاتی مسلمانانو په شان وي ٦ او په هغوی به د الله داسې حکم نافذ کول کيږي کوم چې ټولو مسلمانو باندې نافذ کيږي يعنی مونځ روژه اوزکوة وغيره واجب کيدل او د قصاص اوديت په شان د احکامو نافذ کيدل ٧ او د غنيمت او مال فئ کې به د هغوی هيڅ حصه نه وي البته هغوی ته به هغه وخت حصه ورکولي شي هرکله چې مسلمانانو سره شريکيدو سره جهاد وکړي

**حل اللغات:** ⑦ كُفَّ: بند اوسه، منع شه، ⑦ فَاقْبَلْ: قبول کړه. ⑧ التَّحَوُّلِ: منتقل کيدل، ⑨ أَعْرَاب: د باندو اوسيدونکی، کلی وال،

١ فَإِنْ هُمْ أَبَوْا فَسَلْهُمُ الْجِزْيَةَ، فَإِنْ هُمْ أَجَابُوكَ فَاقْبَلْ مِنْهُمْ وَكُفَّ عَنْهُمْ، ٢ فَإِنْ هُمْ أَبَوْا فَاسْتَعِنْ بِاللهِ وَقَاتِلْهُمْ، ٣ وَإِذَا حَاصَرْتَ أَهْلَ حِصْنٍ فَأَرَادُوكَ أَنْ تَجْعَلَ لَهُمْ ذِمَّةَ اللهِ وَذِمَّةَ نَبِيِّهِ فَلَا تَجْعَلْ لَهُمْ ذِمَّةَ اللهِ وَلَا ذِمَّةَ نَبِيِّهِ، ٤ وَلَكِنِ اجْعَلْ لَهُمْ ذِمَّتَكَ وَذِمَّةَ أَصْحَابِكَ، ٥ فَإِنَّكُمْ أَنْ تُخْفِرُوا ذِمَمَكُمْ وَذِمَمَ أَصْحَابِكُمْ أَهْوَنُ مِنْ أَنْ تُخْفِرُوا ذِمَّةَ اللهِ وَذِمَّةَ رَسُولِهِ،

**ترجمه:** ١ او که هغوی د اسلام دعوت قبول نه کړي او د مسلمانيدو څخه انکاروکړي نو دويم شی دادی چې هغوی څخه د جزئي مطالبه وکړه که هغوی جزيه ورکول قبول کړل نو ته هم هغه قبول کړه او د هغوی سره جنګ کولو څخه منع شه ٢ او که هغوی جزيه ورکول هم قبول نه کړي نو دريم شی دادی چې ته د الله ﷻ څخه مدد طلب کولو سره د هغوی

سره جنگ شروع کړه ۳ او هرکله چې ته د يوې قلعه يا د کلي (ښار) د خلقو يعنی د دښمن محاصره وکړې او هغه قلعه او کلي (ښار) واله ستا څخه د الله او د هغه د نبي عهد امان آخستل وغواړي نوته هغوی ته د الله او د هغه د نبي د طرف څخه د امان ورکولو عهد مه کوه ۴ بلکه خپل او د خپلو ملګرو د طرف څخه عهد امان ورکړه ۵ ځکه که ته خپل او د خپلو ملګرو ورکړي عهد امان مات کړي نو دا به د الله او د هغه د رسول د عهد امان ماتولو څخه زيات اسانه وي

> ۱ وَإِنْ حَاصَرْتَ أَهْلَ حِصْنٍ فَأَرَادُوكَ أَنْ تُنْزِلَهُمْ عَلَى حُكْمِ اللَّهِ فَلَا تُنْزِلْهُمْ عَلَى حُكْمِ اللَّهِ، ۲ وَلَكِنْ أَنْزِلْهُمْ عَلَى حُكْمِكَ فَإِنَّكَ لَا تَدْرِي أَتُصِيبُ حُكْمَ اللَّهِ فِيهِمْ أَمْ لَا؟». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او هرکله چې ته د يوې قلعه د خلقو محاصره وکړې او هغه قلعه واله تاته د الله په حکم د خپلې محاصرې پورته کولو درخواست وکړي نو ته د الله په حکم د هغوی محاصره مه پورته کوه ۲ بلکه په خپل حکم باندې د هغوی محاصره پورته کړه ځکه چې تاته دا معلومیدی نشي چې ته د هغوی په باره کې فیصله کولو په وخت کې د الله حکم ته رسيدلی يې يانه يعنی تاته به دا څنګه معلومه شي چې تا د هغوی د محاصرې پورته کولو کومه فيصله کړې ده هغه د الله په نز صحيح هم ده که نه او د هغه د حکم مطابق هم ده يانه او کيدی شي چې ستا څخه خطاء وشي څنګه چې د مجتهد شان دی چې هغه صحيح حکم ته هم رسيدی شي او خطاء کې هم اخته کيږي. (مسلم)

**حل اللغات:** ⑩ أَنْ تُخْفِرُوا: که تاسو مات کړئ، بې لوظی اوکړئ.

**تسهيلات: قوله:** ثُمَّ ادْعُهُمْ إِلَى الْإِسْلَامِ

**اول حکم د اسلام دعوت ورکول:** د اسلامی جهاد اول حکم دا دې چې کوم قوم سره جهاد کولې شی هغوی ته به د اسلام دعوت ورکړې شی.

**قوله:** ثُمَّ ادْعُهُمْ إِلَى التَّحَوُّلِ مِنْ دَارِهِمْ إِلَى دَارِ الْمُهَاجِرِينَ:

**د اسلام قبلولو څخه روسته دوه صورتونه:** ① دَحديث مطلب دادې چه دَدعوت نه پس که چرې خلقو اسلام قبول کړو نوبيا دغه خلقوته اووايئ چه هغه ښارونوته راشئ چرته چه مسلمانان آباد دی. که دغه خلقو هجرت اوکړو او دَ کلونه ښاريوته راغله نو دَمهاجرينو ټول حقوق به هغوی ته ملاويږي

**قوله:** فَإِنْ أَبَوْا أَنْ يَتَحَوَّلُوا مِنْهَا فَأَخْبِرْهُمْ أَنَّهُمْ يَكُونُونَ كَأَعْرَابِ الْمُسْلِمِينَ:

② که چرې هغه خلق ښاريوته رانغلل نوبيا به دَهغوی معامله دَ کليوالو په شان کيږي. که په جهاد کښې شريك شونو په مال غنيمت کښې به ورته حصه ملاويږي کنی نه به ملاويږي البته دَاسلام قوانين به په هغوی باندې نافذ کيږي.

**قوله**: فَإِنْ هُمْ أَبَوْا فَسَلْهُمُ الْجِزْيَةَ

**دویم حکم د جزیه د قبلولو صورت**: یعنی که کافرانو اسلام قبول نه کړو نودَدعوت اسلام دویم خصلت دادې چه دَهغوی په وړاندې دَ جزیه ورکولو خبره کیږدئی.

**قوله**: فَاسْتَعِنْ بِاللّٰهِ:

**دریم حکم جهاد کول**: که دَ جزیه ورکولونه هم دغه خلقو انکاراوکړو نوبیادَدعوت اسلام دریم خصلت دادې چه دَ الله تعالی نوم واخلئی او دغه خلقوسره جنګ اوکړئی.

**قوله**: وَإِذَا حَاصَرْتَ أَهْلَ حِصْنٍ:

**په خپل اختیارصلح کول**: دَ جهاددَمقدس جنګ دَ آدابونه یوادب دادې چه کله تاسودَ یوقلعې نه ګیره واچوئی او دَقلعې والا تاسو نه دَالله تعالی دَ نوم په ذمه وارئی وعدهٔ اوامان اخستل غواړی نو تاسو دَالله تعالی په ذمه وارئی باندې معاهده مه کوئی بلکه په خپل اختیاراو سوچ باندې معاهده کوئی ځکه چه که معاهده دَ څه مجبورئی دَ وجې نه ماتول وی نودابه بهتر وی چه ستاسو په حوالې سره کوم عهد اوامان ورکړې شوې وو هغه مات شی اودَالله تعالی اودَهغه دَ رسول ﷺ نافرمانی اونه شی.

**قوله**: فَأَرَادُوكَ أَنْ تُنْزِلَهُمْ عَلَى حُكْمِ اللّٰهِ:

**د محصورینوسره فیصله د خپل امیرپه رائې سره کول**: دغه شان دَ جنګ په آدابو کښې دویم ادب دادې که دَ یوې قلعې محاصرین په دې شرط دَ قلعه نه راکوزیدل غواړی چه دَهغوی باره کښې دَالله تعالی څه حکم وی هغه به په دوی باندې نافذ کیږی داسې معاهده هم مه کوئی بلکه هغوی ته اووایه چه زمونږ په حکم باندې راکوزشئی کومه فیصله چه مونږ کوو هغه به نافذ وی داځکه چه تاسو ته څه معلومه ده چه دَدوی باره کښې دَ الله تعالی څه حکم دې او چرته دې. هغه خلق به څه بل څه وائی او تاسو به څه بل څه وایئې دغه شان به تاسو په کشمکش کښې پریوځئی. په دې وجه هغوی ته صفا او وائی چه زمونږ مشر کومه فیصله اوکړی هم دَ هغې به اعتبار وی. ښکاره خبره ده چه مسلمان مشربه دَ شریعت خلاف فیصله نه کوی کومه فیصله چه هم وی په انصاف او حکمت باندې به وی.

**[۲۹۲۰] د نمر د زوال څخه روسته د جنګ د شروع کولو حکمت**

۲۹۳۰ - [۵] (¹) ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: ② «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي بَعْضِ أَيَّامِهِ الَّتِي لَقِيَ فِيهَا الْعَدُوَّ انْتَظَرَ حَتَّى مَالَتِ الشَّمْسُ، ② ثُمَّ قَامَ فِي النَّاسِ فَقَالَ: "يَا أَيُّهَا النَّاسُ! لَا تَتَمَنَّوْا

---

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسّیر/باب: کان النّبیّ صلّی الله علیه وسلّم إذا لم یقاتل أوّل النّهار اخّر القتال حتّی تزول الشّمس (رقم-۲۹۶۵) ومسلم فی کتاب الجهاد والسّیر/باب کراهة تمنّی لقاء العدوّ والأمر بالصّبر عند اللّقاء (رقم-۲۰ - (۱۷٤۲) و ابو داود فی کتاب الجهاد/باب فی کراهیة تمنّی لقاء العدوّ (رقم-۲۶۳۱)

لِقَاءَ الْعَدُوِّ، وَاسْأَلُوا اللّٰهَ الْعَافِيَةَ، فَإِذَا لَقِيتُمُوهُمْ فَاصْبِرُوا، ۳ وَاعْلَمُوا أَنَّ الْجَنَّةَ تَحْتَ ظِلَالِ السُّيُوفِ "، ۴ ثُمَّ قَالَ: " اللّٰهُمَّ مُنْزِلَ الْكِتَابِ، وَمُجْرِيَ السَّحَابِ، وَهَازِمَ الْأَحْزَابِ، اهْزِمْهُمْ وَانْصُرْنَا عَلَيْهِمْ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ عبد الله ابن ابي اوفى وايي ۲ چې رسول كريم ﷺ خپلو ورځو څخه يوه ورځ كله چې حضور ﷺ دښمن سره په مقابله وو يعنى د جهاد په موقع ميدانِ جنګ كې وو نمر زوال كيدو پورې د جنګ شروع كولو انتظار كولو بيا چې نمر په زوال شو ۳ نو حضور ﷺ خلقوته خطبه وركولو د پاره اودريدلو او وي فرمايل اې خلقو! تاسو دښمن سره د مقابلې ارزو مه كوئ يعنى دا مه غواړئ چې كفارو سره د قتل وقتال بازار ګرم شى ځكه چې داغوښتل ګويا د ابتلاء او مصيبت خواهش كول دي چې ممنوع دي بلكه الله ﷻ څخه د آمن وعافيت طالب وشي هو كله چې د دښمن سره مقابله شى نو بيا پوره بهادرى سره ټينګ اوسئ او صبر او استقامت څخه كار اخلې ۳ او په دې خبره پوهه شئ چې جنت د تورو د سايه (سورې) د لاندې دى يعنى تاسو جنت ته بالكل نزدې يئ ۴ د دې څخه وروسته حضور ﷺ دا دعا وكړله : اې الله! كتاب نازلونكيه! وريځې چلونكيه او د كفارو جماعت ته شكست وركونكيه دي دښمنانو ته شكست وركړې او مونږ ته په دوئ فتح راكړې (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** ① مَالَتِ الشَّمْسُ: مائل شو نمر، زوال اوشو. ② لَا تَتَمَنَّوْا: تمنا مه كوئ، خواهش مه لرئ. ③ ظِلَالِ : سيورى، ④ مُجْرِيَ : چلونكې، ⑤ السَّحَابِ: وريځې، ⑥ هَازِمَ: شكست وركونكې، ⑦ الْأَحْزَابِ: ډلې.

**تسهیلات: قوله:** لَا تَتَمَنَّوْا لِقَاءَ الْعَدُوِّ:

**د جنګ د تمنا كولو څخه ممانعت:** مطلب دا دې چه دجنګ تمنا او ارمان مه كوى ځكه چه جنګ يوه بلا (مصيبت او ازمېښت) دې او د بلا تمنا او ارمان كول صحيح نه دې بلكه ددې نه د فخر او تكبر بوى راځى، ددې وجهې نه د جنګ تمنا كولو نه ځان ساتى او په خپل طاقت او قوت باندې بهروسه مه كوئ او همشه د الله تعالى دفضل او رحمت دعاګانې غواړئ

**قوله:** وَاسْأَلُوا اللّٰهَ الْعَافِيَةَ:

**د مصيبت په وخت كښې د عافيت سوال كول:** مګر كله چه تاسو باندې كوم مصيبت يا بيمارى راشى نو په هغې صبر كوئ او د الله تعالى نه د عافيت دعاګانې غواړئ او كله چه كفارو سره د جنګ موقع راشى نو بهادرى او همت نه كار اخلې او دغه شان خپله تمنا كولو سره په انسان كښې تكبر او په ځان باندې كامل اعتماد كول راځى او دا كار د عبديت نه خلاف دې نو ددې وجې د لقاءعدونه ممانعت دې، هم دغه شان د لقاءعدوانجام

هم معلوم نه دي چه فتح به حاصلیږي او که شکست، نو ددې وجې هم ممنوع دي. (التعلیق الصبیح ج ۴ ص ۳۵۳)

**قوله:** أَنَّ الْجَنَّةَ تَحْتَ ظِلَالِ السُّيُوفِ:

**د مذکوره جملې مطلب او وسعت:** ظل نه مراد هغه سایه (سورې) دي کوم چه د انسان او د تور په میخ کښې حائل شوې څیز نه حاصلیږي

د تورې نه مراد جنګې وسلحې دي په دې کښې توپک، راکټ، مزائیل وغیره په جهاد کښې په کار راتلونکې ټولې وسلحې مراد دې حدیث الباب کښې د توری ذکر ددې دپاره شوې دې چه په هغې زمانه کښې به عموماً په جنګ کښې توره استعمالیده او د توری د سوری (سایه) نه مراد په جهاد کښې چلیدونکې توری دی اګرکه هغه د کفارو وي یا د مسلمانانو

**دمقابلې څخه وړاندې د خپلې فتحې د دعا غوښتلو مسنونیت:** په حدیث الباب کښې د دښمن خلاف د خپلې فتح دپاره دعاګانو غوښتو ذکر دي نو ددې نه معلومه شوه چه د جهاد نه مخکې دمخالفینو خلاف دعا کول او د الله تعالی نه مدد غوښتل سنت دي.

**[۲۹۳۱] د صبا راختو څخه وړاندې په دشمن د حملې کولو مما نعت**

[۲] (١) [١] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: [٢] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ إِذَا غَزَا بِنَا قَوْمًا لَمْ يَكُنْ يَغْزُو بِنَا حَتَّى يُصْبِحَ وَيَنْظُرَ إِلَيْهِمْ، [٣] فَإِنْ سَمِعَ أَذَانًا كَفَّ عَنْهُمْ، وَإِنْ لَمْ يَسْمَعْ أَذَانًا أَغَارَ عَلَيْهِمْ، [٤] قَالَ: فَخَرَجْنَا إِلَى خَيْبَرَ، فَانْتَهَيْنَا إِلَيْهِمْ لَيْلًا، فَلَمَّا أَصْبَحَ وَلَمْ يَسْمَعْ أَذَانًا رَكِبَ وَرَكِبْتُ خَلْفَ أَبِي طَلْحَةَ [٥] وَإِنَّ قَدَمِي لَتَمَسُّ قَدَمَ نَبِيِّ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -».

**ترجمه:** [١] او حضرت انس رضی الله عنه وایي [٢] چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم چې به په مونږ سره د یو دښمن قوم سره جهاد کوی یعنی کله چې د جهاد په موقع یو داسې دښمن آبادي باندی د حمله اور کیدو اراده فرمایله چې د هغوی د حالاتو به علم نه وو او مونږ خلق به د حضور صلی الله علیه وسلم سره په جهاد کې شریك وه نو د سحر کیدو څخه مخکې به زمونږ سره په هغوی نه حمله اورکیدو [٣] بیا چې سحر به شو نو د هغه دښمنانو آبادی او د هغوی په ټیکاوړنو به یې نظر اچوی چې مشاهدي یا قرائن څخه دامعلومه شي چې داکوم خلق دي ① که د هغوی د طرف څخه به د اذان اواز واوریدل شو نو د هغوی سره جنګ کولو څخه به منعه شوه ② او که د آذان اواز به یې وانه وریدلو او قرینی څخه به ثابته شوه چې داخلق مسلمانان

(١) اخرجه البخاری فی کتاب الأذان، باب ما یحقن بالأذان من الدماء (رقم-٦١٠) ومسلم فی کتاب الجهاد والسیر/باب غزوة خیبر (رقم-١٢٠ - (١٣٦٥) والترمذی فی کتاب السیر عن رسول الله صلّى الله علیه وسلّم/باب فی البیات والغارات (رقم-١٥٥٠) والنسائی فی کتاب المواقیت/باب التّغلیس فی السّفر (رقم-٥٤٧) ومالک فی الموطا کتاب الجهاد/باب ما جاء فی الخیل والمسابقة بینها، والنّفقة فی الغزو (رقم-٤٨)

نه دي نو په هغوی به یې حمله کوله ۴ حضرت انس ﷛ وایي کوم وخت چې مونږ د حضور ﷺ سره د جهاد د پاره خیبرته روان شو نو د هغوی سرحدونو ته د شپې وخت ورسیدو کوم وخت چې سحر شو او د هغوی د طرف څخه آذان وانه وریدل شو نوحضور ﷺ په سورلی سور شو او زه د ابو طلحه ﷛ په سورلی هغه پسې وروسته کیناستم ۵ او زمونږ سورلی د حضور سورلی ته دومره نزدې وه چې څما پښې به دحضور ﷺ په قدم مبارك لګیدلي

**حل اللغات:** ①كَفَّ: بند به شو، منع به شو، ②أَغَارَ: حمله به ئې کوله،

١ قَالَ: فَخَرَجُوا إِلَيْنَا بِمَكَاتِلِهِمْ وَمَسَاحِيهِمْ، ٢ فَلَمَّا رَأَوُا النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالُوا: مُحَمَّدٌ وَاللهِ، مُحَمَّدٌ وَالْخَمِيسُ، ٣ فَلَجَئُوا فِي الْحِصْنِ، فَلَمَّا رَآهُمْ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٤ قَالَ: "اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ، خَرِبَتْ خَيْبَرُ، إِنَّا إِذَا نَزَلْنَا بِسَاحَةِ قَوْمٍ ﴿فَسَاءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِينَ﴾ [الصافات: ۱۷۷]». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ حضرت انس ﷛ وایي هرکله چې سحر کیدو باندې خیبرواله زمونږ د راتګ څخه ناخبره خپلو پټو ته تلو د پاره خپل پهاوړي تهیلي یعنی د کرکیلی سامان آخستلو د خپلو کورونو څخه راووتل او زمونږ طرف ته راغلل ٢ او هغوی حضور ﷺ ولیدلو نو په چغو چغو یې وئیل شروع کړل محمد ﷺ راغلو قسم په خدای محمد راغلو او د هغوی لښکر راغلو ٣ په دې ویلو سره هغوی وتښتیدل او په قلعه کې پناه ګزین شول ٤ هرکله چې رسول کریم ﷺ هغوی داسې په تیښته ولیدل نو ګویا دا د هغوی شکست تعبیر کولو او د فال د مخه یې وفرمایل الله ډیرلوی دی الله ډیر لوی دی خیبر برباد شو په دې کې شك نشته زمونږ د مسلمانانو جماعت یا انبیاء چې کله د یوقوم په میدان کې د جنګ د پاره کوز شي نو د هغه ویرولی قوم سحر ډیر خراب شي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ③مَكَاتِلِهِمْ: مکاتل "دَ مکتل جمع ده غتې تهیلئی ته متکل وائی، د کر کیلې سامان والا بوجئ. ④مَسَاحِيهِمْ: مساحی "مفرد ئی مسحات دې زمکې وغیره کرلو سامان (کدال وغیره) ته وائی. ⑤الْخَمِيسُ: دَ پنځو دستو لښکرته خمیس وائی. ⑥فَلَجَئُوا: نو پناه ئې واخسته، پټ شول، ⑦الْحِصْنِ: قلعه. ⑧خَرِبَتْ: برباد شو. ⑨سَاحَةِ: میدان، علاقه. ⑩فَسَاءَ: خراب شی. ⑪الْمُنْذَرِينَ: ویرولی شوی،

**تسهیلات: قوله: وَالْخَمِيسُ:**

**د حملې کولو څخه وړاندې د اذان د انتظار کولو حکمت:** دَ کافرانو په یوه علاقه دَحملې کولو نه مخکښې که چرې اذان اوشی نو بیا په احتیاط سره جنګی کاروائی کول پکار دی دې دَپاره چه مسلمانانو ته نقصان اونه رسیږی لیکن که اذان نه وی نو بیا په ښه پوره انداز سره حمله کیږی په دې وجه حضورپاك احتیاط اوکړو.

**[۳۹۳۲] د حملې دپاره د ماسپخين د وخت انتظار کول**

۳۹۳۲-[۷] (¹) ① وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ مُقَرِّنٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «شَهِدْتُ الْقِتَالَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ③ فَكَانَ إِذَا لَمْ يُقَاتِلِ الْقِتَالَ أَوَّلَ النَّهَارِ انْتَظَرَ حَتّٰى تَهُبَّ الْأَرْوَاحُ وَتَحْضُرَ الصَّلَاةُ.» رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① او نعمان بن مقرن وايي ② زه د رسول كريم ﷺ سره په جنگ كې شريك شوم ③ كله چې به يوه ورځ حضور ﷺ دسهر په وخت كې جنگ شروع كوله نو د هغه وخت انتظار به يي كولو هركله چې هوا اوچليږي اودماسپخين دمونځ وخت راشي. (بخاري)

**د راوي مختصر تعارف:**

**د حضرت نعمان بن مقرن تعارف:** نوم نعمان دَ پلار نوم عمرو بن مقرن بن عائدمزني. كنيت ابوعمرو دې بعضو ابوالحكيم كنيت بيان كړې دې. مشهور صحابي دې. دَ څلورو كسان سره دَ رسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضر شو اومسلمان شو. بصره كښې اوسيدو بيا كوفې ته لاړو. حضرت عمر ﷺ هغه دَ نهاوند حاكم مقرركړې وو.

**وفات:** ۲۰ هـ كښې په مقام نهاوند كښې شهيد شو.

**مرويات:** دَ هغه نه شپې روايتونه نقل دي.

**حل اللغات:** ① تَهُبَّ: اوچليږي، ② الْأَرْوَاحَ: هواګانې.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَكَانَ إِذَا لَمْ يُقَاتِلِ الْقِتَالَ أَوَّلَ النَّهَارِ:

**دجهاد كولودپاره دوه وختونه:** ① جهاد مقدس به دَ رسول الله ﷺ په زمانه مباركه كښې په دوو وختونو كښې كيدلو. دَ سحرنه واخله تر نمر تيزيدوپورې بيا به بنديدلو.
② دې نه پس به ماسپښين كښې كيدلو كله چه تاؤ به كم شو.

**د ماسپخين د وخت د انتظار كولو دوه وجوهات:** ① په زيربحث حديث كښې داخبره كړې شوې ده چه كه چرې حضورپاك دَ سحروختي په جهادكښې دَ جنگ دپاره نه وتلو نوحضورپاك به انتظار كولو چه دَ ماسپښين نه پس دَ نصرت او دَ امداد هواګانې راوالوزي. دَ هواګانوالوتلو مطلب دادې چه دَ الله تعالى دَ طرف نه امداد نازل شي.
① دَ ماسپښين دَمونځ نه پس عامو مسلمانانو په مونځونو كښې او دَ مونځونونه پس دَ مجاهدينو دَپاره دعاګانې غوښتلې چه يا الله دَ مجاهدينو نصرت او امداد اوفرمائې. معلومه شوه چه دَ مجاهدينو دَ پاره په جماتونو كښې دعاګانې كول پكاردي.

---

¹) اخرجه البخاري في كتاب الجزية/باب الجزية والموادعة مع أهل الحرب (رقم-۳۱۶۰)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۲۹۳۳] د غرمي د زوال څخه وروسته د جنګ ابتداء

۳۹۳۳-[۸] (١) [١] عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ مُقَرِّنٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [٢] «شَهِدْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، فَكَانَ إِذَا لَمْ يُقَاتِلْ أَوَّلَ النَّهَارِ انْتَظَرَ [٣] حَتَّى تَزُولَ الشَّمْسُ وَتَهُبَّ الرِّيَاحُ وَيَنْزِلَ النَّصْرُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] نعمان ﷺ ابن مقرن وايي [٢] زه رسول کريم ﷺ سره په غزاګانو کې شريک شوی يم حضور چې به د ورځي ابتدايي حصه کې يعنی د سحر په وخت کې جنګ نه چيړی نو ترهغه وخته پورې به يې د جنګ د ابتداء کولو انتظار کولو [٣] ترڅوپوري چې به نمر نه وو زوال شوی هوا به نه وه چليدلي او د نصرت يعنی د فتح هوا به نه وه نازله شوي يا د نصرت نازليدو مطلب دادی چې ترڅوپوري د ماسپخين د مونځ څخه وروسته د اسلام د مجاهدينو د پاره د مسلمانانو د دعا برکت سره به د فتح آثار ظاهر شوي نه وه. (ابوداود)

**حل اللغات:** ① وَيَنْزِلَ: او نازل به شو، ② النَّصْرُ: مدد

**تسهيلات:**

**نوټ:** د دي حديث شرح په مخکنی حديث نمبر (۳۹۳۲) په تسهيل کنبې تيره شوې ده.

## [۲۹۳٤] دَ نبی عليه السلام د جنګ وختونه

۳۹۳۴-[۹] (٢) [١] وَعَنْ قَتَادَةَ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ مُقَرِّنٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [٢] «غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَكَانَ إِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ أَمْسَكَ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، [٣] فَإِذَا طَلَعَتْ قَاتَلَ، فَإِذَا انْتَصَفَ النَّهَارُ أَمْسَكَ حَتَّى تَزُولَ الشَّمْسُ، [٤] فَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ قَاتَلَ حَتَّى الْعَصْرِ، ثُمَّ أَمْسَكَ حَتَّى يُصَلِّيَ الْعَصْرَ، ثُمَّ يُقَاتِلُ. [٥] قَالَ قَتَادَةُ: كَانَ يُقَالُ: عِنْدَ ذٰلِكَ تَهِيجُ رِيَاحُ النَّصْرِ، وَيَدْعُو الْمُؤْمِنُونَ لِجُيُوشِهِمْ فِي صَلَاتِهِمْ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] قتاده ﷺ د حضرت نعمان ابن مقرن ﷺ څخه روايت کوي هغه وفرمايل [٢] ما د نبي کريم ﷺ په ملګرتيا کې جهاد کړي دی حضور ﷺ به د سحر ختو څخه وروسته ترهغه وخته پورې جنګ نه شروع کوی ترڅوپوري چې د سحر د مونځ څخه فارغه شو او نمر به نه وو راختلی [٣] چې نمر به راوختلو نو جنګ [جهاد] به يې شروع کوی بيا چې به کچه غرمه شوه [يعني شرعي کچه غرمه چې د ځانبت وخت دی چې پخې غرمي ته نژدې وي] نو د غرمي زوال کيدو پورې به دجنګ څخه منع شو [٤] بيا چې غرمه به په زوال شوه

---

[1] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد، باب فی أیّ وقت يستحبّ اللّقاء (رقم-۲۶۵۵) والترمذی فی کتاب السّير عن رسول اللّه صلّی اللّه عليه وسلّم/باب ما جاء فی السّاعة الّتی يستحبّ فيها القتال (رقم-۱۶۱۳) واحمد فی المسند:۵/٤٤٤

[2] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب السّير عن رسول اللّه صلّی اللّه عليه وسلّم/باب ما جاء فی السّاعة الّتی يستحبّ فيها القتال (رقم-۱۶۱۲)

او د ماسپخين مونځ به يي اوکړو نو ترمازيگر پورې به يې جنگ کوی بيابه منع شوه تردي چې د مازيگر مونځ کولو څخه وروسته بيابه په جنگ کې مشغول شوو [۵] قتادہ رحمه الله وايي وئيل کيږي [يعنی صحابه رضي الله عنهم به د حضور ﷺ د دي جنگي نظام الاوقات د حکمت به باره کې وئيل] داپه دې وجه وو چې په دي وختونوکي د نصرت و فتح هواگاني چليږي او مسلمانان خپلو مونځو کې دخپلو لښکرو د پاره د فتح او کامرانی دعاگاني کوي [يعنی مونځ څخه وروسته دعاگاني غواړي يا د مونځ په دوران کې دعاگاني کوي څنگه چې د قنوت ويلو په سلسله کې احاديث منقول دي ] (ترمذي)

**حل اللغات:** ① اِنْتَصَفَ النَّهَارُ: و رځ به نيمه شوه، کچه غرمه. د ځاخت وخت، ② تَهِيجُ: چليږی. ③ رِيَاحُ :هواگاني، ④ النَّصْرُ: مدد.

**تسهيلات:**

**نوټ:** د دي حديث تشريح وړاندي په يو نزدې حديث ۳۹۳۲ په تسهيل کښې تيره شوې ده.

**[۳۹۳۵] داذان په اوريدو د حملې کولو څخه ممانعت**

٣٩٣٥- [١٠] ( ) [١] وَعَنْ عِصَامٍ الْمُزَنِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [٢] «بَعَثَنَا رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي سَرِيَّةٍ، فَقَالَ: [٣] "إِذَا رَأَيْتُمْ مَسْجِدًا، أَوْ سَمِعْتُمْ مُؤَذِّنًا فَلَا تَقْتُلُوا أَحَدًا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] عصام مزنی رحمه الله وايي [٢] چې رسول الله ﷺ مونږ د جهاد دپاره په يو وړوکي لښکرکي وليږو او وي فرمايل [٣] هرکله چې په يوځای کې تاسو جومات مسجد ووينی يامؤذن څخه آذان واوری نو هلته هيڅوك مه قتلوی. (ترمذي ابوداود)

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذَا رَأَيْتُمْ مَسْجِدًا:

**په دارالحرب کښې د حملې په وخت د مسلمانانو وجود دوه صورتونه:** ① که مسلمانان په دار رب کښې وی او په خپل مذهب په آزادۍ سره عمل نشی کولې خو د څه مجبوری . هجرت نشته کولې نويو اسلامی لښکرکه په داسې دارالحرب باندې حمله کوی هغوی به پوره احتياط کوی چې مسلمان قتل نکړی

② که په دارالحرب کښې مسلمانان اوسيږی اوهغوی دَ اعلان او خبر باوجود دَ کافرانو نه جدا نه شی نوبيابه دهغوی لحاظ نه شی ساتلی جنگ به ورسره کولې شی اگرچه کفار مسلمانانولره دَ ډهال په توگه استعمال کړی هغه وخت دکافر په نيت وهل پکاردی دَداسې مسلمان وينه بلادیت ده

[١] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد باب فی دعاء المشرکين (رقم-٢٦٣٥) والترمذی فی کتاب السير عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب (رقم-١٥٤٩)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۲۹۳۶] اهل فارس ته د خالد بن ولید رضی الله عنه خط

۲۹۳۶-()[۱۱] [۱] عَنْ أَبِي وَائِلٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] كَتَبَ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ إِلَى أَهْلِ فَارِسَ: بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ مِنْ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ إِلَى رُسْتَمَ وَمِهْرَانَ فِي مَلَإِ فَارِسَ. [۳] سَلَامٌ عَلَى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدَى. [۴] أَمَّا بَعْدُ فَإِنَّا نَدْعُوكُمْ إِلَى الْإِسْلَامِ، [۵] فَإِنْ أَبَيْتُمْ فَأَعْطُوا الْجِزْيَةَ عَنْ يَدٍ وَأَنْتُمْ صَاغِرُونَ، [۶] فَإِنْ أَبَيْتُمْ. فَإِنَّ مَعِيَ قَوْمًا يُحِبُّونَ الْقَتْلَ فِي سَبِيلِ اللهِ كَمَا يُحِبُّ فَارِسُ الْخَمْرَ، [۷] وَالسَّلَامُ عَلَى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدَى. رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** [۱] حضرت ابووائل رضی الله عنه وايي [۲] حضرت خالد بن وليد رضی الله عنه د يران خلقو يعنی د سردارانو په نوم داخط وليږلو بسم الله الرحمن الرحيم د خالد بن وسيد د طرف څخه د رستم او مهران په نوم چې د ايران د سردارانو څخه دی [۳] په هغه چادي سلامتيا وي چې د حق او هدايت پيروي کوي [۴] د دې څخه وروسته واضحه دي وي چې مونږ تاسو ته د اسلام قبلولو دعوت درکوو [۵] که تاسو اسلام نه قبلوی نو ذلت او خواری سره خپل لاس سره جزيه اداء کئ [۶] او که تاسو دي جزيي اداء کولو څخه هم انکار کوی نو ناسو ته خبرېدل پکار دی چې هلاکت او پښيماني ستاسو مقدر جوړ شوی دی ځکه چې بي شك شبهي زماسره د داسې خلقو جماعت دی چې وينه بهيول يا د الله په لار کې ځان قربانول داسې خوښوي ځنګه چې د ايران خلق شراب خوښوي [يعنی ځنګه چې تاسو ايران واله د شرابو په نشه کې کيف او سرور حاصلوئ دغه شان ځما د جماعت خلقو ته قتل وقتال کې سرمستي او سرشاري حاصليږي يا هغوی ته ځان اخستلو او ځان ورکولو کې هغه خوښي او لذّت حاصليږي کوم چې تاسو په شرابو کې محسوسوئ] [۷] او سلامتيا دي په هغه وي چې د هغه حق او هدايت پيروي کوي.

**حل اللغات:** ① مَلَاْ: سرداران، مشران، ② فَارِسَ: ايران، ③ إِنْ أَبَيْتُمْ: که تاسو انکار اوکړو. ④ عَنْ يَدٍ: په خپل لاس سره، ⑤ صَاغِرُونَ: ذليله، رسوا.

**تسهیلات:**

**قوله:** يُحِبُّونَ الْقَتْلَ فِي سَبِيلِ اللهِ كَمَا يُحِبُّ فَارِسُ الْخَمْرَ:

**د خالدبن ولید مؤثر خط:** يعنی دا خيال دَ دماغونه اوباسئی چه مونږ دَ مرګ نه ويريدونکی يو مونږ ته دَ جنګ په ميدان کښې جنګيدلوسره او دَ شهادت جام نوش کولوسره هم هغه شان مستی اومزه حاصليږی لکه ځنګه چه تاسو ته په شرابوڅکلو کښې خوند اومزه حاصليږی. دَ داسې قوم مقابله تاسو نه شئی کولې لهذا زمونږ لار هيڅ بې هيڅه مه بندوئی. سبحان الله دا يودور وو په کوم چه اسلام ترننه پورې ناز کوی.

[۱]) اخرجه البغوی فی شرح السنة باب ا لتأمير فی الحرب (جزء:۱۱ ص:۹)

حضرت خالد رضي الله عنه داخط دَ فارس خلقوپه نوم هغه وخت لیکلې وو کله چه هغوی دَ جهادپه شروع کښې په عراق کښې وو بیاحضرت صدیق اکبر رضي الله عنه هغه دَعراق نه شام طرف ته راؤغوښتلو اودَ لښکرامیرئې جوړکړو. هغوی دَ مصر په لار صعیدمصرته اورسیدل اوهلته ئې عظیم جهاد اوکړو

# [۴] بَابُ الْقِتَالِ فِي الْجِهَادِ

## په جهادکښې دَ جنګ دَ ترتیب بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثلاثة وعشرون حديثاً مشتلمة على إثنى عشرة مسئلة:**

① حصول الجنة بسبب الجهاد في سبيل الله: ۱-

② التأهب للجهاد في سبيل الله: ۲، ۱۱-

③ جواز التورية للقتال قولاً وفعلاً : ۲، ۳-

④ جواز الاستخدام من النساء فى سفر الجهاد: ۴، ۵-

⑤ النهي عن قتل بعض الناس وحكمهم : ۶، ۷، ۹، ۱۶، ۱۹، ۲۰-

⑥ جواز إهلاک أموال الكفار في القتال: ۸، ۱۷-

⑦ استعمال السهام والسيوف والمنجنيق فى القتال: ۱۰، ۱۸، ۲۳-

⑧ وقت القتال: ۱۴، ۱۷-

⑨ شعارالمجاهدين فى القتال: ۱۲، ۱۳ ، ۱۴ -

⑩ النهي عن الصوت عند القتال: ۱۵-

⑪ الإجابة للمبارزة: ۲۱-

⑫ جواز التحيز إلى فئة المسلمين: ۲۲-

**د باب القتال في الجهاد مباحث:** دَفقهې په ټولو کتابونو کښې دې باب سره کیفیة القتال لفظ لګولې شوې دې. په احادیثو کښې هم کیفیت قتال بیانول مقصود دی ځکه چه په دې باب کښې څومره احادیث مذکوردی تقریبًا په ټولو کښې دَ قتال دَ څه نه څه کیفیت ذکردې. ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی ای فی حث القتال وترغیبه وثوابه یعنی په دې باب کښې دَ کافرانوسره دَ جنګیدلو دَترغیب بیان دې. دَدې دَ ثواب بیان دې او کافرانوسره دَ جنګیدلودَپاره دَ تیارولو او تیزولو بیان دې.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۲۹۳۷] شهيد او جنت

۳۷۔۔۔۔[۱] () [۱] عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «قَالَ رَجُلٌ لِلنَّبِيِّ يَوْمَ أُحُدٍ: أَرَأَيْتَ إِنْ قُتِلْتُ، فَأَيْنَ أَنَا؟ [۳] قَالَ "فِي الْجَنَّةِ" [۴] فَأَلْقَى فِي يَدِهِ، ثُمَّ قَاتَلَ حَتَّى قُتِلَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**توجمه:** [۱] حضرت جابر ﷺ وايي [۲] د احد د جنګ په ورځ د جنګ په ميدان کې يو سړي نبي کريم ﷺ ته اوويل تاسو وښايئ که زه قتل شم [يعنی د اسلام د دښمنانو د لاسه په جهاد کې شهيد شم نو زه به کوم ځای يم يعنی جنت ته به ځم يا دوزخ ته] [۳] حضور ورته وفرمايل جنت ته [۴] په دي اوريدو سره هغه سړي جنت ته د تلو ارزو کې د شهادت مرتبه زر تر زر حاصلولو د پاره هغه کجوري وغورځولي چې د خوراك د پاره يي په لاس کې وي او په جهاد کې مشغول شو تردي چې شهيد شو. (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَأَيْنَ أَنَا؟:

**شهادت في سبيل الله او جنت:** يو صحابی فرمائی که زه په جهاد کښې شهيد شم نو زه به جنت ته ځم که جهنم ته، نو نبی کريم ﷺ وفرمائيل چه ته به د جنت اعلی مقام ته ځې کوم چه د شهيدانو دپاره دې، نو کله چه دا زيرې يی واوريدو نو لاس کښې ئی چه کومې قجوری وې هغه يی وغورځولې او په جنګ کښې مشغوله شو تر دې چه شهيد شو.

## [۲۹۳۸] په جنګ کښې د توريه سنت

۳۸۔۔۔۔[۲] () [۱] وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «لَمْ يَكُنْ رَسُولُ اللّٰهِ يُرِيدُ غَزْوَةً إِلَّا وَرَّى بِغَيْرِهَا، [۳] حَتَّى كَانَتْ تِلْكَ الْغَزْوَةُ يَعْنِي غَزْوَةَ تَبُوكَ - غَزَاهَا رَسُولُ اللّٰهِ فِي حَرٍّ شَدِيدٍ، [۴] وَاسْتَقْبَلَ سَفَرًا بَعِيدًا، وَمَفَازًا وَعَدُوًّا كَثِيرًا، [۵] فَجَلَّى لِلْمُسْلِمِينَ أَمْرَهُمْ، [۶] لِيَتَأَهَّبُوا أُهْبَةَ غَزْوِهِمْ، [۷] فَأَخْبَرَهُمْ بِوَجْهِهِ الَّذِي يُرِيدُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**توجمه:** [۱] کعب ابن مالك ﷺ وايي [۲] چې رسول کريم ﷺ چې به د څه غزا يعنی جهاد کولو اراده کوله نو د هغه په ځای به يي د دويم ځای توريه فرمائيله [۳] تردي چې داغزا

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب غزوة أحد (رقم-۴۰۴۶) ومسلم فی کتاب الإمارة/باب ثبوت الجنة للشهيد (رقم-۱۴۳ - (۱۸۹۹))والنسائی فی کتاب الجهاد/باب ثواب من قتل فی سبيل الله عزّ وجلّ (رقم-۳۱۵۴) واحمد فی المسند: ۳۰۸/۳

[۲] ) اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب حديث کعب بن مالک، وقول الله عزّ وجلّ: {وعلى الثلاثة الذين خلّفوا} [التوبة: ۱۱۸] (رقم-۴۴۱۸) ومسلم فی کتاب التّوبة/باب حديث توبة کعب بن مالک وصاحبيه (رقم-۵۳ - (۲۷۶۹)) واحمد فی المسند: ۴۵۶/۳

یعنی غزوه تبوك واقع شوه رسول کریم ﷺ غزوه تبوك د سخت ترینی گرمی په زمانه کې وکړله [۴] حضور ﷺ د دې د پاره د لرې سفر وکړو او بې آب وګیاه ځنګلات یې قطع کړل او په دې کې د دښمنانو تعداد هم ډیر زیات وو [۵] حضور ﷺ چې د دې غزا اراده وکړله نو په دې باره کې مسلمانانو ته یې صاف صاف اعلان اوکړو او ددې غزا په دوران کې پیښیدونکې مشکلات او پریشانې یې وضاحت سره بیان کړې [۶] چې خلق د جهاد د پاره په ښه شان تیار شي او خپل د جهاد سامان درست کړي [۷] او حضور ﷺ صحابه ﷺ ته د هغه لارو او مقاماتو په باره کې هم ښودلې وو چې حضور ﷺ تبوك ته درسیدو د پاره اختیارول غوښتل. (بخاري)

**حل اللغات:** ① وَرَّي: دا لفظ دَ توریة نه دې کوم چه دَ باب تفعیل نه دې. توریه تعریض او کنایه ته وائی ② مَفَازًا: بې آب وګیا میدان، سحرا. ③ فَجَلَّى: نوښکاره ئې اوکړو. صفا صفا ئې اووئیل. ④ لِيَتَأَهَّبُوا: چه ښه تیارې وکړي، ⑤ أُهْبَةَ: د ساز وسامان.

**تسهیلات:**

**قوله:** لَمْ يَكُنْ رَسُولُ اللهِ يُرِيدُ غَزْوَةً إِلَّا وَرَّى بِغَيْرِهَا:

**د توریه تعریف:** توریه تعریض او کنایې ته وائی چې د یو څیز دوه معانی وی یوه قریبه وی او بله بعیده وی متکلم د خپلې خبرې څخه بعیده معنی واخلی او مخاطب د دې د خبرې څخه قریبه معنی واخلی.

**مثال:** دهجرت په موقع د نبی علیه السلام سره حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه وو یو کس نبی علیه السلام نه پیژندلو او ابوبکر رضی الله عنه ئې پیژندلو نو د ابوبکر رضی الله عنه څخه یې تپوس اوکړو ، ،من معک،، تاسو سره دا سړې څوک دې؟ دوی ورته اوفرمائیل ،،رجل یهدینی السبیل،، دا یو سړې دې چې لار راته ښائی، دلته مخاطب ترې قریبه معنی واخستله چې دلیل (د دال په زیر سره) دې یعنی هغه کس چې دنیاوی لار ورته ښائی اوابوبکر صدیق رضی الله عنه ترې بعیده معنی واخستله یعنی د آخرت لاره، یعنی دا حضرت راته د آخرت لار ښائی نو دې ته توریه وائی.

**په جنګ کښې د توریې صورت:** په جنګ کښې توریه دا ده چې چه دَ دښمن نه اصل حقیقت پټ کړې شی اوبله خبره ظاهره کړې شی. مثلاً تګ یو طرف ته دې اوتفتیش اوتذکرې دَ بل طرف شروع کړې شی. دَمثال په توګه دَ حضورپك اراده دَ فتح مکې په موقع باندې مکې ته دَ تلو وه لیکن حضورپاك دَ خیبر دَ احوال لټون اوتذکرې شروع کړې. په دې حکمت عملی کښې دا فائده وی چه دښمن په ناخبرئی کښې وی اوهغوی دَ جنګ دَ تیاری نه غافل پاتې شی او په هغوی باندې حمله کیږی. هم دې ته "الحرب خدعة" وئیلې

شوې دې. په دې کښې تصریح نه وی که په صراحت سره اوونیلې شی چه زه حیدر آباد ښارته ځم او په زړه کښې ئی پټ ساتلی وی چه زه مقبوضه کشمیر ته ځم نودا توریه نه ده بلکه دا صریح دروغ دی د کوم چه په شریعت کښې اجازت نشته دې.

**قوله:** حَتّٰى كَانَتْ تِلْكَ الْغَزْوَةُ يَعْنِي غَزْوَةَ تَبُوكَ:

**په غزوه تبوک کښې د توریې په ځائې د صراحت څخه د کار اخستلو وجه:** حضورپاك په غزوه تبوك کښې د کنایې اوتعریض نه کار وانخستلو بلکه په واضحه توګه ئی اعلان اوکړو چه د جهاد د پاره تبوك ته تلل دی. د دې تصریح وجه داوه چه دا د مشقتونونه ډك سفر وو، لار ډیره زیاته لرې وه ځکه چه د مدینې نه تبوك تقریباً زر کلومیټره دې. د خوراك د څیزونو کمې وو اوسخته ګرمی وه نود مکمل تیاری ضرورت وو. په دې وجه حضورپاك ښکاره اعلان اوکړو.

**د غزوه تبوک مختصرپیژندګلو:** دا غزوه په ۹هجری کښې پیښه شوې وه او حضورپاك سره د دیرش زرو لښکر وو، په مقابله کښې رومیان عیسایان د لاکهونو په تعداد کښې وو. د مدینې نه د خیبر په لاره تلو سره وړاندې د العُلا علاقه راځی دې نه پس مدائنِ صالح او وادی ثمود راځی دې نه پس د تبوك علاقه ده.

**[۳۹۲۹] په جنګکی حکمت عملی عمل کول**

| |
|---|
| ۳۹۳۰—[۳] () ۱ وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ " «الْحَرْبُ خَدْعَةٌ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |

**ترجمه:** ۱ حضرت جابر ﷺ وايي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل ۲ جنګ د مکر ودهوکه نوم دی (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① خَدْعَةٌ: چال اوتدبیر. مکر اوحیله.

**تسهیلات: قوله:** الْحَرْبُ خَدْعَةٌ:

دخدعة په اعراب کښې دوه اقوال ① دالفظ د خاء په ضمې سره دې او دال ساکن دې ② مګر د اهل لغت په نیزپه خاء باندې فتحه او په دال سکون ډیر فصیح او بهتر دې

**دحدیث مطلب:** په جنګ کښې کثرت د تعداد دومره فائده نه ورکوی څومره چه مکر او فریب او چال او تدبیر ورکوی نن صبادې چل اوتدبیرته حکمت عملی وائی چنانچه

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسّیر/باب: الحرب خدعة (رقم-۳۰۳۰) ومسلم فی کتاب الجهاد والسّیر/باب جواز الخداع فی الحرب (رقم-۱۷ - (۱۷۳۹)) و ابو داود فی کتاب الجهاد . باب المکر فی الحرب (رقم-۲۶۳۶) والترمذی فی کتاب الجهاد عن رسول الله صلّى الله علیه وسلّم/باب ما جاء فی الرّخصة فی الکذب والخدیعة فی الحرب (رقم-۱۶۷۵) واحمد فی المسند:۳۰۸/۳

کامیاب کماندر هغه وی چه دَ جنګی حکمت عملئ او داؤ پیچ نه زیات کار اخلی او دَدښمن لوئی فوج په شاته کیدو باندې مجبور کړی.

**د حکمت عملئ د جواز شرط:** په دې جنګی حکمت عملی کښې هر تدبیر او مکر او حیله جائز ده لیکن دا ضروری ده چه په دې حکمت عملی سره دَ مقرر شوې معاهدې خلاف ورزی او نه شی او نه هغه مقرر شوې معاهده ماته شی کومه معاهده چه دښمن سره شوې وی.

**په جهاد کښې د دروغو وئیلو اجازت:** علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه دَ جهاد په معامله او دَدې په فائده کښې صریح دروغ وئیل هم جائز دی مګر تعریض زیات بهتر دې. په دې وجه دَ ښکاره دروغو نه بچ کیدل پکاردی.

**[۲۹٤۰] په جهاد کښې د ښځو د شرکت حکم**

۳۹۳۰-[۴] (۱) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ [۲]: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَغْزُو بِأُمِّ سُلَيْمٍ، وَنِسْوَةٍ مِنَ الْأَنْصَارِ مَعَهُ، [۳] إِذَا غَزَا يَسْقِينَ الْمَاءَ وَيُدَاوِينَ الْجَرْحَى. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت انس رضی الله عنه وایي [۲] رسول کریم صلی الله علیه وسلم چې به صحابه ؤ رضی الله عنهم سره جهاد ته تشریف وړی نو د ځان سره به یي بي بي ام سلیم رضی الله عنها او د انصارو نوري ښځي هم بوتلي [۳] هغه ښځو به د اسلام غازیانو باندې اوبه څکلي او د زخمیانو مرهم پټی او خدمت به یي کولو (مسلم)

**حل اللغات:** ① الْجَرْحَى: زخمیان.

**تسهیلات:**

**قوله:** يَغْزُو بِأُمِّ سُلَيْمٍ، وَنِسْوَةٍ مِنَ الْأَنْصَارِ مَعَهُ:

**د جهاد دوه صورتونه او د ژناڼو حکم:** ① په ښځو باندې په عام و حالاتو کښې جهاد فرض نه دې ② که دا جهاد فرض عین شی او دشمن دَ کورونو دَ دروازو پورې راؤرسی. بیا په هره ښځه باندې دَخپل عزت او ناموس دَ حفاظت دَپاره جنګیدل فرض دی

**قوله:** إِذَا غَزَا يَسْقِينَ الْمَاءَ وَيُدَاوِينَ الْجَرْحَى:

**د بوډۍ ګانو ژناڼو په جهاد کښې د شرکت جواز:** اوکه په عام و حالاتو کښې ښځې په جهاد کښې شریکیدل غواړی نو ځوانې ښځې ځان سره بوتلل جائز نه دی. بوډۍ ګانې ښځې دَ زخمیانو دَ خیال ساتلو او مرهم پټئ کولو دَپاره او اوبه ورکولو او خوراك پخولو په غرض سره تلې شی

---

(۱) اخرجه مسلم فی کتاب الجهاد والسیر/باب غزوة النساء مع الرجال (رقم-۱۳۵ - (۱۸۱۰) و ابو داود فی کتاب الجهاد/باب فی النساء یغزون (رقم-۲۵۳۱) والترمذی فی کتاب السیر عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی خروج النساء فی الحرب (رقم-۱۵۷۵)

بعضې فقهاؤ لیکلی دی چه په میدان جنګ کښې بالکل په آخری مورچو کښې د ضرورت په وخت د پردې سره ښځې په جنګ کښې شرکت هم کولې شی که خاوند د خپل خدمت یا د مباشرت ضرورت پوره کولو د پاره ښځه بوتلل غواړی نو د آزادې ښځې په ځائی خپله وینځه د دې خدمت د پاره بوتلل ډیر بهتر دی

**د زنانو د پاره د زخمی مجاهدینو د علاج حدود:** د زخمیانو په خدمت کښې ښځې د زخمی د بدن په هغه حصه باندې دوائی لګولې شی چرته چه زخم لګیدلې دې او هغه حصې ته لاس هم لګولې شی دې نه علاوه عام بدن ته لاس نه شی لګولې

**په جنګ کښې د ښځو د شرکت دوه فائدې:** ① په هغه زمانه کښې به ښځو لره جنګ ته د بوتللو یوه فائده دا وه چې ښځو به سړو ته د تختیدونه پیغور ورکولو او منع کول به ئې په دې وجه به سړی ښه په زړه جنګیدل ام سلیم. ام عمارد. ام عطیه. ام ابان. خوله وغیره رضی الله عنهن هغه بهادرې ښځې دی چه په ډیرو جنګونو کښې ئې باقاعده حصه اخستې ده او کافران ئې تختولی دی

② د ښځو د وجې نه به سړی په بهادرئی سره جنګیدل او د تختیدونو به ئې نه شو اخستلې

## [۲۹۴۱] په غزواتو کښې د زنانو خدمات

۳۹۴۳ — [۵] (١) [١] وَعَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ [٢]: غَزَوْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سَبْعَ غَزَوَاتٍ [٣] أَخْلُفُهُمْ فِي رِحَالِهِمْ، فَأَصْنَعُ لَهُمُ الطَّعَامَ، وَأُدَاوِي الْجَرْحَى، وَأَقُومُ عَلَى الْمَرْضَى. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] بي بي ام عطیه رضی الله عنها وایې [٢] زه د رسول کریم ﷺ سره په اوو غزاګانو کې شریکه شوې یم [٣] زه به د جنګ په میدان کې ① د هغه مجاهدینو څخه وروسته د هغوی په ډیرو کې اوسیدم ② هلته به مې د هغوی د پاره طعام پخولو ③ او د زخمیانو مرهم پټی ④ او دوا دارو به مې کول ⑤ او د بیمارانو خدمت به مې کولو (مسلم)

**حل اللغات:** ① أَخْلُفُهُمْ: روستو دهغوی نه. ② رِحَالِهِمْ: په ډیرو دهغوی کښې. په سامانونو دهغوی کښې. ③ الْجَرْحَى: زخمیان. ④ أَقُومُ: خدمت به مې کولو

## [۲۹۴۲] په جهاد کښې د ښځو او د بچو د قتل ممانعت

۳۹۴۳ — [۶] (٢) [١] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ [٢]: «نَهَى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ قَتْلِ النِّسَاءِ وَالصِّبْيَانِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[1] ) اخرجه مسلم فی کتاب الجهاد والسیر /باب النساء الغازیات یرضخ لهن ولا یسهم. والنهی عن قتل صبیان أهل الحرب (رقم-۱۴۲ - (۱۸۱۲)

[2] ) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسیر /باب قتل النساء فی الحرب (رقم-۳۰۱۵)

**ترجمه:**[۱]او عبد الله ابن عمر رضي الله عنهما وايي [۲]چې رسول كريم ﷺ د ښځو او هلكانو د قتل څخه منع فرمايلي ده (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** نَهَى رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-عَنْ قَتْلِ النِّسَاءِ وَالصِّبْيَانِ:

**په مذكوره كسانو كښې د بعضو د قتلولو جواز صورتونه:** ① ماشوم هم كه دَ جنگ دَپاره ميدان ته راځي او څه نه څه په جنگ كښې حصه اخلي نو هغه هم قتلولې شي ② دغه شان هغه ماشوم چه دَ سردار او بادشاه بچې وي په كوم باندې چه ټول خلق متفق كيدو سره راجمع كيږي. دَ دغه ماشوم قتلول هم جائز دي.

③ دغه شان كه مسلمانان دَ شپې په كافرانو باندې حمله اوكړي او په كورونوكښې ښځې اوبچې اووژلې شي نوداهم دَ مجبورئى دَ وجې نه جائز دي. ځكه چه دَدې نه بچ كيدل گران دي.

④ كه پادرى او ښځې كافرانوته جنگى مشورې وركوي يا په جنگ كښې شركت كوي يا مالى امدادكوي يا پادرى وادده كړې وي او بچې پيدا كول شروع كړى نوبيا دَ دغه خلقو وژل جائز دي.

⑤ دَ شيخ فانى نه زوړ بوډا مراد دې دوى مه وژنئى هغه كه هلته جنگى تدبير او مشورې وركوى نووژل ئې جائز دي. حضورپاك دَ دريد بن صمه دَ وژلوحكم وركړې وو او دَهغه عمر ۱۲۰ كاله وو. په جنگ حنين كښې هم داسې شوې وو ځكه چه دريد ډير زيات پوهه او مشوره كار سړې وو.

**[۲۹۴۲]دشپې په حمله كښې د ښځواو د زنانو قتليدل**

٣٩٤٣-[٤] ( )[۱]وَعَنِ الصَّعْبِ بْنِ جَثَّامَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ[۲]: «سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-عَنْ أَهْلِ الدِّيَارِ يُبَيَّتُونَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ، [۳]فَيُصَابُ مِنْ نِسَائِهِمْ وَذَرَارِيِّهِمْ، قَالَ[۴]: "هُمْ مِنْهُمْ". [۵]وَفِي رِوَايَةٍ: "هُمْ مِنْ آبَائِهِمْ"». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱]او صعب ابن جثامه رضي الله عنه وايي [۲]چې رسول كريم ﷺ څخه د هغه مشركينو په باره كې پوښتنه وشوه كوم چې كور واله دي (يعنى چې ابادي كې وسيږي) [۳]كه هغوى باندې د شپې حمله وشي او د هغه په نتيجه كې د هغوى ښځې او بچې ووژل شي نو څه حكم دى [۴]حضور ﷺ وفرمايل هغوى هم د هغوى څخه دي [۵]او په يو روايت كې دي چې حضور ﷺ وفرمايل هغوى د خپلو پلرونو تابع دي (بخاري مسلم)

---

[۱]) اخرجه البخاري في كتاب الجهاد والسير/باب إذا نزل العدوّ على حكم رجل (رقم-٣٠٤٣)

**حل اللغات:** ① يَبِيتُونَ: د شپې حمله اوشی په هغوی باندې، ② فَيُصَابَ: ورسولې شی، قتل کړې شی. ③ وَذَرَارِيهِمْ: اولاد د هغوی

**تسهيلات:**

**قوله: يُبِيتُونَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ:**

**دشپې په حمله کښې د ښځو او د ماشومانود قتل حکم:** په دښمن باندې په حالت د غفلت کښې د شپې حمله کول او که په دې حمله کښې بغير د ارادې نه ښځې يا ماشومان قتل شی نو ددوې باره کښې ئې وفرمايل چه دا هم د سړو په شان دی او د ښځو او د ماشومانو د غير ارادی قتل دوجهې نه په مجاهدينو باندې څه قسمه ګناه نشته ځکه چه تياره کښې امتياز کول مشکل وی. او د ابن عمر رضي الله عنه په حديث کښې دښځو او ماشومانو په ارادی سره قتل کولو نه منع راغلې ده.

**قوله: قَالَ: هُمْ مِنْهُمْ:**

**دقتل په جواز کښې د سړواوښځود سړو سره برابری:** يعنی په ښځو او ماشومانو باندې به هم د سړو په ضمن کښې حمله کولې شی.

**[۲۹۴۴] د کافرانو د ونو د پريکولو او سوزولو حکم**

۳۹۴۳ - [۸] (۱) ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، ② «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَطَعَ نَخْلَ بَنِي النَّضِيرِ وَحَرَّقَ، ③ وَلَهَا يَقُولُ حَسَّانُ: وهان على سراة بنى لؤى ... حريق بالبويرة مستطير ④ وَفِي ذَلِكَ نَزَلَتْ ﴿مَا قَطَعْتُمْ مِنْ لِينَةٍ أَوْ تَرَكْتُمُوهَا قَائِمَةً عَلَى أُصُولِهَا فَبِإِذْنِ اللَّهِ﴾ [الحشر: ۵]» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابن عمر رضي الله عنه وايي ② چې رسول کريم ﷺ د بني نضير د کجورو د ونو پريکولو او سوزلو حکم وکړ ③ په دې باره کې د دربارِ رسالت صحابي شاعر حضرت حسان ابن ثابت انصاري رضي الله عنه دا شعر اووئيلو يعنی د بني لؤیّ سردارانو د پاره خوره شوي بويره مقام سوزول آسان شو ④ او د دې متعلق دا آيت کريمه نازل شو مَا قَطَعْتُمْ مِنْ لِينَةٍ أَوْ تَرَكْتُمُوهَا قَائِمَةً عَلَى أُصُولِهَا فَبِإِذْنِ الله هغه چې تاسو د کجورو د ونو څخه څه پريکړئ يا مو د هغه په جرړو ولاړې پريښودلې يعنی پرې مونه کړلې نو دا ټول د الله په حکم سره دي (بخاري. مسلم)

**حل اللغات:** ① حَرَّقَ: اوئې سوزول، ② لِينَةٍ: د کجورو ونې، ③ أُصُولِهَا: په تنو خپلو. په جرړو خپلو.

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/ باب حديث بنی النضير. رقم الحديث ۴۰۳۱. ومسلم فی کتاب الجهاد والسير/ باب جواز قطع اشجار الکفار وتحريقها رقم الحديث ۴۶۵۱

**تسهيلات:**

**قوله:** قَطَعَ نَخْلَ بَنِي النَّضِيرِ وَحَرَّقَ:

**په مدينه كښې د يهودو درې قبيلې:** رسول الله ﷺ چه كله ډمكې نه مدينې ته هجرت اوكړو نو په مدينه كښې ډحضورپاك واسطه ډ يهوديانو سره راغله په هغه وخت په مدينه كښې د يهوديانودرې قبيلې وې.

① بنوقريظه

② بنوقينقاع دوى سره څه معاهده نه وه كړې نومسلمانانوهم ډشروع نه هغوى ډ مدينې نه اوويستل دوى سره څه معاهده نه وه كړې نومسلمانانوهم ډشروع نه هغوى ډ مدينې نه اوويستل

③ بنونضير دوى سره نبى عليه السلام معاهده اوكړه مگر بيائى غدارى اوكړه تردې چه ډ حضورپاك ډ قتل سازش ئى اوكړو په دې باندې مسلمانانوډهغوى محاصره اوكړه هغوى قلعه كښې بند شو. حضورپاك ډهغوى ډ باغونو ډ سوزولو حكم وركړو په دې باندې يهودو اوويئيل چه داخوصرف فساد دې. په دې باندې ډ قرآن آياتونه نازل شو چه دا هرڅه ډ الله تعالى په حكم باندې شوى دى.

**د بنونضيرد علاقې نوم:** بويره د بنونضيرډ علاقې نوم دې چرته چه ډهغوى باغونه وو دغه باغونوته چه كله اور اولگولې شو نو په دې باندې حضرت حسان ﷺ ډ طنز په توگه باندې يوڅو اشعار اوويئيل ډ كوم نه چه يوشعر په دې حديث كښې ذكردې يعنى په قريشو باندې ډير آسان تير شو هغه اوركوم چه مونږ په بويره مقام كښې لگولې وو چه شغلې ئى وهلې او راؤچتيدو

اوس مسئله دا راؤوتله كه ډ باغونو او ډ فصلونوډ سوزولو ضرورت پيښيږى نوسوزول جائز دى ليكن بغيرد مجبورئى نه نه دى سوزول پكار

**قوله:** وَهَانَ عَلَى سَرَاةِ بَنِي لُؤَيِّ:

**د بنو لوئي په مصداق كښې دوه اقوال:** ① د بنو لوئې څخه مراد مراد صحابه كرام اخستې شى چه هغوى ته اور لگولو كښې څه مشكل پيښ نه شو يعنى يوسرى هم مزاحمت اونه كړې شو

② ډ بنى لوئى څخه مرادډ مكې قريش هم كيدې شى اوډا زيات واضح دى

مطلب دا چه په بويره مقام كښې لگيدلې اور ډ كافرانوډپاره آسان شو هغوى مزاحمت اونه كړې شو او په آسانئى سره ئى دغه ذلت قبول كړو ابوسفيان بن حارث چه ډ حضورپاك خپلوان وو هغه ډ دې شعر جواب وركړو.

أَدَامَ اللهُ ذٰلِكَ مِنْ صَنِيْعٍ وَحَرَّقَ فِيْ نَوَاحِيْهَا السَّعِيْرُ
سَتَعْلَمُ أَيُّنَا مِنْهَا بِنُزْهٍ وَتَعْلَمُ أَيَّ أَرْضَيْنَا نَضِيْرُ

يعنى الله تعالي دُ دې اور شغلي دُ مدينې په اطرافو کښې خورې کړې او دې ته ئې هميشه والې ورکړی ډير زر به تاسو ته پته اولګی چه ددې اور نه مونږ څومره لرې يو اوتاسو ته به داهم پته اولګی چه دا په مونږ کښې د چا د زمکې نقصان دې

**[۳۹٤٥] په دشمن د ناڅاپه حملې کولو جواز**

۳۹٤٥-[۹] (¹) [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَوْنٍ: أَنَّ نَافِعًا كَتَبَ إِلَيْهِ يُخْبِرُهُ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَخْبَرَهُ [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - غَارَ عَلَى بَنِي الْمُصْطَلِقِ غَارِّيْنَ فِي نَعَمِهِمْ بِالْمُرَيْسِيعِ [۳] فَقَتَلَ الْمُقَاتِلَةَ وَسَبَى الذُّرِّيَّةَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او عبد الله ابن عون رحمه الله څخه روايت دی چې د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما ازاد کرده غلام حضرت نافع رحمه الله عبد الله ابن عون رحمه الله ته يوخط وليکی چې په هغه کې حضرت نافع رحمه الله هغه خبرکی چې ابن عمر رضي الله عنهما نافع رحمه الله ته بيان وکړو [۲] چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم بنی مصطلق باندې هغه وخت حمله کړې وه هرکله چې هغوی مريسيع کې د خپلو څاروو په مينځ کې غافل پراته وه [۳] نو حضرت د هغوی جنګيالي قتل کړل او د هغوی ښځې او بچې ېې قيديان جوړولو سره راوستل. (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** ① غَارَ: حمله ئې کړې وه. ② سَبَى: قيديان ئې کړل.

**تسهيلات:**

**قوله: غَارَ عَلَى بَنِي الْمُصْطَلِقِ:**

**د بنو مصطلق پيژندګلو:** دَ بنوخزاعه يوڅانګه ده او مريسيع دَ يوځائی نوم دې چه دَمدينې نه تقريبًا ۸۰ کلوميټره فاصله باندې دې. ۵هجری کښې په دې مقام باندې جنګ شوې وو اوکافران وژلې شوی وو هم په دې سفرکښې په حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها باندې بهتان لګيدلې وو

**قوله: غَارِّيْنَ فِي نَعَمِهِمْ:**

**په ناخبرۍ کښې دحملې کولو جواز:** يعنی هغه خلق بالکل بې خبره وو دې نه معلومه شوه چه کله دعوت يوځل اورسيږی نوبيا بغيردَ دعوت نه په کافرانو باندې حمله کيدې شی که چرې دعوت نه وی رسيدلې او په کاروائی کولوکښې مصلحت وی نوبياهم حمله کيدې شی سره دَدې چه منع ده

¹) اخرجه البخاري في كتاب العتق/ باب من ملك من العرب رقيقا فوهب وباع وفدى وسبى الذرية رقم الحديث ٢٥٤١، ومسلم في كتاب الجهاد والسير/ باب جواز الاغارة على الكفار الذين بلغتهم دعوة الاسلام رقم الحديث ٤٦١٦

**قوله:** فَقَتَلَ الْمُقَاتِلَةَ وَسَبَى الذُّرِّيَّةَ:

**د ماشومانو قید کول:** یعنی دَ جنګ قابل خلق ئی قتل کړل او واړه ماشومان ئی ګرفتار کړل او غلامان ئی جوړ کړل

**[۲۹٤٦] د غشو ساتلو هدایت**

۳۹٤۷-[۱۰] () [۱] وَعَنْ أَبِي أُسَيْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ لَنَا يَوْمَ بَدْرٍ حِينَ صَفَفْنَا لِقُرَيْشٍ وَصَفُّوا لَنَا: [۳] "إِذَا أَكْثَبُوكُمْ فَعَلَيْكُمْ بِالنَّبْلِ» ". [۴] وَفِي رِوَايَةٍ: " «إِذَا أَكْثَبُوكُمْ فَارْمُوهُمْ وَاسْتَبْقُوا نَبْلَكُمْ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. [۵] وَحَدِيثُ سَعْدٍ: "هَلْ تُنْصَرُونَ" ،سَنَذْكُرُهُ فِي بَابِ "فَضْلِ الْفُقَرَاءِ". [٦] وَحَدِيثُ الْبَرَاءِ: بَعَثَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَهْطًا فِي بَابِ "الْمُعْجِزَاتِ" إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابو اسید ﷺ وایي [۲] چې نبي کریم ﷺ د بدر د غزا په ورځ په میدان جنګ کې هرکله چې مونږ د قریشو خلاف او قریش زمونږ خلاف صف آراشو نومونږ ته داحکم راکول شو [۳] چې هرکله دښمن یعنی قریش مکه تاسو ته دومره نزدې راشي چې ستاسو تیر هغوی ته رسیدی شي نو هغوی په تیر ولی [۴] او په یوبل روایت کې دادی چې حضور ﷺ وفرمایل هغه دښمنانو باندې هغه وخت تیر وچلوي هرکله چې هغوی تاسو ته نزدې راشي او خپل تیرونه باقي وساتئ [یعنی خپل ټول تیرونه مه ختموئ بلکه په احتیاط استعمالولو سره څه باقي هم وساتئ چې دښمن بي وسلي کیدو څخه فائده اخستو سره په تاسو غالب رانشي.] (بخاري) [۵] او د حضرت سعد روایت هَلْ تُنْصَرُوْنَ به باب فضل الفقراء کې [٦] او د حضرت براء روایت بَعَثَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ رَهْطًا به په باب المعجزات کې انشاء الله تعالی مونږ ذکر کو.

**د حضرت ابواسید مالک بن ربیعه تعارف:** نوم مالك ابواسید ئی کنیت اودَ قبیله خذرج سره تعلق وو. نسب نامه ئی مالك بن ربیعه بن بدن بن عامر بن عوف بن حارث. دَ هجرت نه وړاندې مسلمان شوي وو. په ټولوغزواتوکښې ئی شرکت کړې وو. دَ بدر دَ شرکت تذکره خو په بخاری شریف کښې هم ذکر ده. دَ مکې دَ فتحې په موقع باندې دَ بنوساعده جهنډا هم دَ ده په لاس کښې وه. دَ وفات نه وړاندې ئې دَ سترګو نظر ختم شوې وو.

**وفات:** ۶۸هـ مدینه منوره کښې وفات شو. په بدری صحابه کرامو ﷺ کښې دَ ټولونه آخری صحابی ﷺ هم دې وفات شو. دَ مرګ په وخت کښې دَ هغوی عمر ۷۸ کاله وو.

**مرویات:** دَ دوی دَروایاتوشمیر ۲۸ دې په دې کښې څلور په بخاری اوڅلورمسلم کښې دی او په یو باندې دَ دواړو اتفاق دې.

() اخرجه البخاري في كتاب الجهاد / باب التحريض على الرمي رقم الحديث ۲۹۰۰

**حل اللغات:** ① أَكْثَبُوكُمْ: رانزدې شی هغوی تاسوته. ② النَّبْل: غشی. نیزې. ③ وَاسْتَبْقُوا" یعنی غشی فضول مه ضائع کوئی بلکه د ضرورت د موقع دپاره ئی بچ اوساتئی

**تسهیلات:**

**قوله:** إِذَا أَكْثَبُوكُمْ فَعَلَيْكُمْ بِالنَّبْلِ: یعنی کله چه کافران ښه رانیزدې شی بیا په هغوی باندې غشی اوورولئ دې دپاره چه یو غشې هم ضائع نه شی

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۲۹٤۷] د جنګ په میدان کښې د لښکر تیاری

۳۹۳۷-[۱۱] (۱) ① عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ ②: «عَبَّأَنَا النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِبَدْرٍ لَيْلًا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① عبد الرحمن بن عوف ﷺ وایي ② چې نبي کریم ﷺ په بدر کې مونږ د شپې تعبیه کړلو یعني تیاریي کړلو

**حل اللغات:** ① عَبَّأَنَا: دا د تعبیة نه دې د تیارولو او ډکولو په معنی کښې دې

**تسهیلات:**

**قوله:** عَبَّأَنَا النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**دشمن باندې د نږدې څخه د حملې کولو تدبیر:** یعنی حضورپاک د بدر په موقع کښې د شپې په وخت زمونږ صفونه جوړکړی وو اودا هدایت ئی اوفرمائیلو چه ترکومې پورې دښمن رانیزدې شوې نه وی دې نه مخکښې غشی مه خرابوئی بلکه چه کله دښمن نیزدې راشی بیا غشی اوولئی

### [۲۹٤۸] د اسلام د مجاهدینو دپاره امتیازي نښې

۳۹۳۸-[۱۲] (۲) ① وَعَنِ الْمُهَلَّبِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ② " «إِنْ بَيَّتَكُمُ الْعَدُوُّ ③ فَلْيَكُنْ شِعَارُكُمْ حم لَا يُنْصَرُونَ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ① حضرت مهلب ﷺ وایي ② چې رسول الله ﷺ په غزوه خندق کې مونږ ته وفرمایل که دښمن په تاسو د شپې حمله وکړي ③ نو ستاسو مسلمانانو علامه (نام شب) حم لَا يُنْصَرُونَ الفاظ کیدل پکار دي (ترمذي ابوداود)

**حل اللغات:** ① بَيَّتَكُمْ: د شپې حمله اوکړی په تاسو، ② شِعَارُكُمْ: پته علامه اوخاص نښه،

(۱) اخرجه الترمذی فی کتاب الجهاد / باب ما جاء فی الصف والتعبیة عند القتال رقم الحدیث ۱۷۷۸

(۲) اخرجه الترمذی فی کتاب الجهاد / باب ما جاء فی الشعار رقم الحدیث ۱۷۸۳

**تسهيلات: قوله:** حم لَا يُنْصَرُونَ:

**د نبی علیه السلام د کوډ ورډ اصطلاح:** يعنى اې حكم نازلونكيه الله دَ كافرانو امدادمه كوه په فوجي اوجنګى اصطلاح كښې داسې مختصر الفاظو ته كوډ ورډ وائى دې دپاره چه دَ خپلو ملګرو دَ پيژندګلودپاره په ميدان كښې يوعلامت وى

**[۲۹۴۹] د اسلامی لښکر خفيه ټکی (کوډ ورډ)**

۲۹۴۹- [۱۳] (۱) ①وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ②كَانَ شِعَارُ الْمُهَاجِرِينَ: عَبْدَ اللّٰهِ، وَشِعَارُ الْأَنْصَارِ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ①او سمره ابن جندب ﷛ وايي ②يوي بلي غزاكي لفظ عبد الله د مهاجرينو علامه وه او لفظ عبد الرحمن د انصارو علامه وه. (ابوداود)

**[۲۹۵۰] د مسلمانانو شعار (أَمِتْ)**

۲۹۵۰- [۱۴] (۲) ①وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ②: غَزَوْنَا مَعَ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، زَمَنَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَبَيَّتْنَاهُمْ نَقْتُلُهُمْ، ③وَكَانَ شِعَارُنَا تِلْكَ اللَّيْلَةَ: أَمِتْ أَمِتْ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ①سلمه ابن اكوع وايي ②د رسول الله ﷺ په زمانه كې مونږ يو وخت د حضرت ابوبكر صديق ﷛ په سربراهي كې جهاد وكړو مونږ دښمنانو باندې د شپې حمله وكړه او هغوى مو قتل كړل ③او په هغه شپه زمونږ شناختي علامه أَمِتْ أَمِتْ الفاظ وه د دې الفاظو معنى ده اې الله! دښمن د مرګ په ګودر كوز كړې (ابوداود)

**حل اللغات:** ①فَبَيَّتْنَاهُمْ: دشپې حمله اوكړه مونږه په هغوى باندې. ②أَمِتْ أَمِتْ: مړه ئې كړې. مړه ئې كړې.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَكَانَ شِعَارُنَا تِلْكَ اللَّيْلَةَ: أَمِتْ أَمِتْ:

**د مذكوره جملې مطلب:** دلته تكرار تاكيد دپاره دې. بعضې حضراتو فرمايلى دى چه مخاطب الله تعالى دې چه ياالله دا دښمنان زمونږ په لاس هلاک او تباه كړې او يا كفر ختم كړې چه ټول كفار مسلمانان شى.

**[۲۹۵۱] د جنګ په وخت كښې د شور كولو كراهت**

۲۹۵۱- [۱۵] (۳) ①وَعَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ②كَانَ أَصْحَابُ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَكْرَهُونَ الصَّوْتَ عِنْدَ الْقِتَالِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

(۱) اخرجه ابوداود فى كتاب الجهاد / باب فى الرجل ينادى بالشعار رقم الحديث ۲۵۹
(۲) اخرجه ابوداود فى كتاب الجهاد رقم الحديث ۲۵۹۸
(۳) اخرجه ابوداود فى كتاب الجهاد / باب فيما يومر به من الصمت عند اللقاء رقم الحديث ۲۶۵۸

**ترجمه:** ۱ قیس ابن عباد رحمه الله وايي ۲ د رسول الله ﷺ صحابه و رضي الله عنهم به د جنګ په ميدان کې د جنګ په وخت د الله نوم اخستو څخه علاوه شور وشغب نه خوښوی

**تسهیلات:**

**قوله:** يَكْرَهُونَ الصَّوْتَ:

**په جهاد کښې فخريه نعرې بد ګڼل:** امام مظهر رحمه الله فرمائی چه د جنګ کونکو عام عادت دا وي چه د جنګ په وخت کښې د ډير تعداد په وجه يا دښمن لره د ويرولو په وجه يا د شجاعت او بهادرۍ ښکاره کولو په وجه اوچت آوازونه کوی او دا وائي "أنا الشجاع الطالب للحرب" ليکن صحابه کرامو به دغه شان آوازونه بد او مکروه ګڼل بلکه صحابه کرامو به د الله تعالى ذکر کولو او الله اکبر به ئي وئيلو. (التعليق الصبيح ج۴، ص۳۶۰)

**[۳۹۵۲] د دښمن د ماشومانو د قتلولو ممانعت**

۳۹۵۲ - [۱۶] (۱) ۱ وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۲ "«اقْتُلُوا شُيُوخَ الْمُشْرِكِينَ، وَاسْتَحْيُوا شَرْخَهُمْ" ; أَيْ صِبْيَانَهُمْ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ سمره ابن جندب رضي الله عنه د رسول کریم ﷺ څخه نقل کوي چې رسول کریم ﷺ وفرمايل ۲ د مشرکینو يعنی دښمنانو لوی عمر واله خلق قتلوئ او دهغوی کم عمره بچي ژوندي پريږدئ. (ترمذي ابوداود)

**حل اللغات:** ① شُيُوخَ: ډير عمر والا، بوډاګان. ② اسْتَحْيُوا: ژوندی پريږدئ. ③ شَرْخَهُمْ: أَيْ صِبْيَانَهُمْ: ماشومان دهغوی.

**تسهیلات:** **قوله:** شُيُوخَ الْمُشْرِكِينَ:

**د شيوخ څخه مراد:** دَ شيوخ مفرد شيخ دې دلته دَ شيخ نه مراد بوډا نه دي بلکه دَ بچو په مقابله کښې ځوانان او سړی مراد دي.

**[۳۹۵۳] د دښمن د باغونو او فصلونو د سوزولو جواز**

۳۹۵۳ - [۱۷] (۲) ۱ وَعَنْ عُرْوَةَ قَالَ ۲: «حَدَّثَنِي أُسَامَةُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ عَهِدَ إِلَيْهِ قَالَ: ۳ "أَغِرْ عَلَى أُبْنَى صَبَاحًا وَحَرِّقْ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ حضرت عروه رحمه الله وايي ۲ چې حضرت اسامه رضي الله عنه ماته دا بیان وکړو هرکله چې رسول الله ﷺ اسامه رضي الله عنه د يولښکر امير جوړولو سره جهاد د پاره وليږلو نو دا هدايت او تاکيد يي ورته وکی ۳ چې ته اُبنا باندې دسهار په وخت کې حمله وکړه او د دښمن کور بار فصل او درمن او ونې او باغونه وسوزوه (ابوداود)

(۱) اخرجه ابوداود فی کتاب الجهاد / باب فی قتل النساء رقم الحديث ۲۶۷۲
(۲) اخرجه ابوداود فی کتاب الجهاد / باب فی الحرق فی بلاد العدو رقم الحديث ۲۶۱۸

**حل لغات**: ① أَبِرْ: یعنی په کافرانو باندې تباهی اوبربادی واچوئ ② أَمِتْ: دا په شام کښې د یوځائ نوم دې دلته حضورپاك د تباهئ اوبربادئ حکم ورکړې وو

**تسهیلات**:

**نوټ**: ترجمې څخه مطلب واضح دې

**[۳۹۵۴] د نزدې څخه په دشمن د حملې کولو هدایت**

۳۹۵۴-[۱۸] ( ) ① وَعَنْ أَبِي أُسَيْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمَ بَدْرٍ: " ② إِذَا أَكْثَبُوكُمْ فَارْمُوهُمْ، ③ وَلَا تَسُلُّوا السُّيُوفَ حَتَّى يَغْشَوْكُمْ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: ① او ابو اسید ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ د جنګ بدر په ورځ د اسلام مجاهدینو ته وفرمایل ② په میدانِ جنګ کې چې کفار یعنی دښمن تاسو ته بالکل نزدې راشي نو په هغوی تیر چلوئ ③ او توره ترهغه وخته پورې د تیکي څخه مه را اوباسئ ترڅوپورې چې هغوی تاسو ته بالکل نزدې راونه رسیږي. (ابوداود)

**حل لغات**: ① وَلَا تَسُلُّوا: تاسو ما راؤباسی ② يَغْشَوْكُمْ: پټ کړی تاسو یعنی بالکل رانزدې شی تاسو ته.

**تسهیلات**:

**قوله**: حَتّٰى يَغْشَوْكُمْ:

**د کافرانو د مقابلې دپاره دوه طریقې**: د حدیث الباب نه دا خبره ظاهره شوه چه کله کفار لرې وی نو په غشو باندی په هغوئ حمله کوی او کله چه هغوی نزدی شی نو بیا په تورو باندی جنګ کوئ

**[۳۹۵۵] د دښمن د مزدورانو او خادمانو د قتلولو ممانعت**

۳۹۵۵-[۱۹] ( ) ① وَعَنْ رَبَاحِ بْنِ الرَّبِيعِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ ②: «كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي غَزْوَةٍ فَرَأَى النَّاسَ مُجْتَمِعِينَ عَلَى شَيْءٍ، فَبَعَثَ رَجُلًا فَقَالَ ③: " انْظُرُوا عَلَى مَا اجْتَمَعَ هٰؤُلَاءِ؟ ④ " فَجَاءَ فَقَالَ: عَلَى امْرَأَةٍ قَتِيلٍ ⑤ فَقَالَ: " مَا كَانَتْ هٰذِهِ لِتُقَاتِلَ ⑥ " وَعَلَى الْمُقَدِّمَةِ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ، ⑦ فَبَعَثَ رَجُلًا فَقَالَ: " قُلْ لِخَالِدٍ: لَا تَقْتُلِ امْرَأَةً وَلَا عَسِيفًا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: ① او رباح ابن ربیع ﷺ وايي ② مونږ په یوه غزاکې د رسول کریم ﷺ سره د جنګ په میدان کې وو حضور ﷺ ولیدل چې څه خلق په یوځای کې په څه شي سره جمع دي حضور ﷺ یو سړی ولیږلو او وي فرمایل ③ هلته لاړشه او وګوره خلق څه شي سره جمع کیږي؟ ④ هغه سړی واپس راغلو عرض یې اوکړو چې یوه ښځه قتل شویده خلق د هغه لاش ته راجمع شوي دي ⑤ حضور ﷺ وفرمایل هغه ښځې خو جنګ نه کوي ⑥ بیا هغه

( ) اخرجه ابوداود فی کتاب الجهاد / باب فی سل السیوف عند اللقاء رقم الحدیث ۲۶۶۴

( ) اخرجه ابوداود فی کتاب الجهاد / باب فی قتل النساء رقم الحدیث ۲۶۷۱

ولي قتل شوه د لښکر د مخکنو صفونو مقدمة الجيش کی حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه وو ۷نو حضرت خالد ته يي څوك واستولو اودا فرمان يي ورکړو چې ښځی او مزدوران مه وژنه . (ابوداود)

**حل اللغات:** ①الْمُقَدِّمَةِ: د لښکر ړومبنی خلق. ②عَسِيفًا: خادم ، غلام

**تسهیلات: قوله:** وَلَا عَسِيفًا:

**دعسیف معنی:** عسيف يعنی اجير او خادم کوم چه د جنګجو سره د هغه د خدمت دپاره وی،يعنی غلام اوښځې په جهاد کښې مه قتلوئی.

**[۳۹۵٦] جهاد ته د تګ په وخت کښې مجاهدینو ته هدایات**

۳۹۵٦-[۲۰] () ۱وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ۲: «انْطَلِقُوا بِاسْمِ اللَّهِ، وَبِاللَّهِ وَعَلَى مِلَّةِ رَسُولِ اللَّهِ، ۳لَا تُصِيبُوا شَيْخًا فَانِيًا، وَلَا طِفْلًا صَغِيرًا، وَلَا امْرَأَةً، ۴وَلَا تَغُلُّوا، ۵وَضُمُّوا غَنَائِمَكُمْ، ۶وَأَصْلِحُوا، ۷وَأَحْسِنُوا فَإِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱وحضرت انس رضي الله عنه وايي رسول کريم صلی الله علیه وسلم د مجاهدينو جهاد ته د ليږلو په وخت دا هدايات ورکړل ۲ځئ د الله په نوم اخستوسره د الله تائيد او توفيق سره او د الله د رسول په دين باندې د دغه ځای څخه کوچ کوئ ۳ياد لرئ شيخ فاني يعنی ډيربوډا سړي مه وژنئ، مه وړوکې هلك او مه ښځه قتلوئ ۴د غنيمت په مال کې خيانت مه کوئ ۵د غنيمت مال جمع کوئ ۶په خپل مينځ کې صلح او صفايي ساتئ [د اصلحوا ①يوه معنی خو داده چې تاسو مجاهدين خپل تنازعات ختمولو سره د يوبل سره ميل ميلاپ سره اوسئ ②يا دا معنی ده که تاسو مصلحت ووينئ نو د دښمن سره صلح کوئ ③او دا معنی هم کيدی شي چې تاسو خپل ديني او دنياوي معاملات ټيك ساتئ] ۷او په خپلو کې يو د بل سره خير ښيګړه کوئ ځکه چې الله ﷻ خير ښيګړه کونکی دوست لري

**تسهیلات:**

نوټ ددي حديث شرح وړاندې د حديث نمبر (۳۹۴۲) په تسهيل کښې تيره شوې ده.

**[۳۹۵۷] دبدر د جنګ آغاز**

۳۹۵۷-[۲۱] () ۱«وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ۲: لَمَّا كَانَ يَوْمُ بَدْرٍ تَقَدَّمَ عُتْبَةُ بْنُ رَبِيعَةَ، وَتَبِعَهُ ابْنُهُ وَأَخُوهُ، ۳فَنَادَى: مَنْ يُبَارِزُ؟ ۴فَانْتُدِبَ لَهُ شَابٌّ مِنَ الْأَنْصَارِ، فَقَالَ: مَنْ أَنْتُمْ؟ فَأَخْبَرُوهُ. ۵فَقَالَ: لَا حَاجَةَ لَنَا فِيكُمْ، إِنَّمَا أَرَدْنَا بَنِي عَمِّنَا. ۶فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " قُمْ يَا حَمْزَةُ! قُمْ يَا عَلِيُّ! قُمْ يَا عُبَيْدَةُ بْنَ الْحَارِثِ! ۷" فَأَقْبَلَ حَمْزَةُ إِلَى عُتْبَةَ، وَأَقْبَلْتُ إِلَى شَيْبَةَ، ۸وَاخْتَلَفَ بَيْنَ عُبَيْدَةَ وَالْوَلِيدِ ضَرْبَتَانِ، فَأَثْخَنَ كُلُّ

---

() اخرجه ابوداود في كتاب الجهاد / باب في دعاء المشركين رقم الحديث ۲٦۱٦

() اخرجه ابوداود في كتاب الجهاد / باب في المبارزة رقم الحديث ۲٦٦۷

وَاحِدٍ مِنْهُمَا صَاحِبَهُ، ۹ ثُمَّ مِلْنَا عَلَى الْوَلِيدِ فَقَتَلْنَاهُ، وَاحْتَمَلْنَا عُبَيْدَةَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ حضرت علي کرم الله وجهه وايي ۲ کوم وخت چې د جنګ بدر ورځ راغله او د جنګ په ميدان کې د اسلام مجاهدين او د مکي کفار د يوبل مخکې صف آراشول ۳ نو د مکي د کفارو څخه عتبه ابن ربيعه د جنګ د پاره صف څخه راوتلو سره را مخکې شو هغه پسي د هغه ځوی يعنی وليد ابن عتبه او د هغه ورور شيبه ابن ربيعه هم راغلو عتبه په چغه اوويل څوك شته چې زمونږ مقابلي ته د جنګ د پاره ميدان ته راشي ۴ د اسلام د مجاهدينو د جانب څخه د دې جواب د انصارو څو ځوانانو ورکی يعنی هغوی عتبه او د هغه د ملګرو سره جنګ کولو د پاره صف څخه ميدان ته راووتل عتبه چې هغوی وليدل نو پوښتنه يي ورځخه وکړه چې تاسو څوك يئ؟ هغه ځوانانو عتبه ته وښودل چې مونږ د مديني انصار يو ۵ عتبه ورته اوويل مونږ ته ضرورت نشته يعنی مونږ ستاسو سره د جنګ اراده نه لرو بلکه مونږ خو د خپل ترۀ ځامنو يعنی مکي څخه هجرت کولو سره تلونکو قريشي مسلمانانو سره جنګ کول غواړو ۷ په دې اوريدو سره رسول کريم ﷺ خپل صف مخاطب کولو سره وفرمايل اې حمزه ﷺ ته ودريږه اې علي ﷺ ته ودريږه اې عبيده ابن حارث ته ودريږه [او مخکې کيدو سره طاقت نشه کې د دې سرمستو د غرور او تکبر سرمات کړ] نو حمزه ﷺ د عتبه مقابلي ته ورغلو [او هغه يي قتل کړو] او زه [يعنی علي ﷺ] د شيبه مقابلي ته ورغلم [او هغه مي قتل کړو] ۸ او د عبيده او وليد په مينځ کې دوه سخت ګذارونه وشول او په هغوی کې هريوه خپل مقابل زخمي او کمزوری کی ۹ بيا مونږ په وليد حمله وکړله او هغه مو قتل کړو او عبيده چې د وليد د ګذار څخه سخت زخمي شوی وو د جنګ د ميدان څخه مو په پورته کولو سره راوړو

**حل اللغات:** ①مَنْ يُبَارِزُ: څوک شته زمونږ دمقابلې؟ ②فَانْتَدَبَ: نو راووتل. ③فَأَثْخَنَ: نو زخمي کړو. ④مِلْنَا: حمله اوکړه مونږ. ⑤احْتَمَلْنَا: راپورته کړو مونږ

**تسهيلات:**

**قوله:** وَكَانَ شِعَارُنَا:

**د کافرانو د طرف د مبارزې اعلان:** د سيدنا علی ﷺ نه روايت دې (چه په جنګ بدر کښې) درې کفار عتبه بن ربيعه او د هغه نه روستو د هغه ځوئې وليد بن عتبه. او د عتبه رور شيبه بن ربيعه. دا درې واړه ميدان ته رامخکښې شو او هر يو چغه کړې چه (من يبارز؟) نو د هغې په جواب کښې درې انصاری ځوانان ميدان ته راغلل (عبدالله بن رواحه. عوف بن عفراء. معوذ بن عفراء) چه کله دوی مقابلې ته راغلل نو عتبه ترې تپوس اوکړو (من انتم؟) هغوی ورته اووې چه مونږ فلانې فلانې يعنی د انصارونه يو ،

**قوله:** لَاحَاجَةَ لَنَا فِيكُمْ:

**دانصاروسره د مقابلې څخه انکار:** نو هغه ډیر په فخر او تکبر سره اووې چه مونږ ته ستاسو ضرورت نشته ( انما اردنا بنی عمنا ) مونږ ته خو د مقابلې دپاره د خپل خاندان قریشو سړی پکار دی، رسول الله ﷺ او مسلمانانو دا ټول منظر لیدلو، پس هغه وې فرمائیل ( قم یا حمزة، قم یا علی، قم یا عبیدة ابن الحارث ) پس دا درې واړه حضرات میدان ته راغلل چونکه مقابله فردا فردا وه په دې وجه سیدنا حمزه رضی الله عنه د عتبه طرف ته متوجه شو، علی رضی الله عنه فرمائی چه زه د شیبة طرف ته متوجه شوم (دې دواړو خو خپل مقابل الحمد الله ختم کړل) وړاندې علی رضی الله عنه فرمائی ه د عبیده او د هغه د مقابل ولید ترمینځه مقابله اوشوه. هر یو بل لره زخمی کړو (مونږ چونکه فارغ شوې وو نو مائل شو د ولید طرف ته) او هغه مو قتل کړو، او خپل ملګرې عبیده مو د میدان نه راوچت کړلو.

**په اسلام کښې اولنۍ مبارزه:** حافظ لیکلې دی چه دا د ټولو نه اولنۍ مبارزه ده کومه چه په اسلام کښ پیښه شوې ده، ابن قدامه په جواز مبارزه باذن الامام کښ دا واقعه هم پیش کړې ده د دې نه علاوه هم بعض نور مثالونه د دې لیکلې شوې دی چه د هغې نه په بعض کښ د امام اذن هم ثابت نه دې، که څوک غواړی هلته دې اوګوری. د حدیث الباب نه معلومیږی چه مبارزه باذن الامام او بغیر د اذن الامام دواړه جائز دی لکه چه دا د جمهورو مسلک دې، ځکه چه د حمزه او علی مبارزه خو بالاذن وه خو د انصارو مبارزه بغیر د امام د اذن نه وه. لم ینکر علیهم النبی صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قاله الخطابی.

**قوله:** ثُمَّ مِلْنَا عَلَى الْوَلِيدِ فَقَتَلْنَاهُ:

**دمبارز داعانت حکم:** دلنه یوه مسئله بله اختلافی ده، هغه دا چه د مبارز اعانت جائز دې یا نه؟ د قیاس تقاضه خو دا ده چه جائز نه وی ځکه چه مقابله د کافر سره ده. پس د امام اوزاعی او سحنون مالکی په نزد دا اعانت مکروه دې لکن عند الجمهور تجوز لهذا الحدیث. (اوجز) په دې حدیث باندې منذری سکوت کړې دې او د دې تخریج ئې نه دې کړې. په صحیح بخاری کښ مختصرادا دی. قیس بن عباد فرمائی چه دا آیت کریمه ( هذان خصمان اختصموا فی ربهم ) د هغه خلقو په باره کښ نازل شوې دې چا چه په جنګ بدر کښ مبارزه کړې وه. حمزه او علی او عبید حافظ لیکی چه په دې روایت کښ د مبارزه تفصیل نه دې ذکر شوې او بیا د دې نه روستو حافظ د سیرة ابن اسحاق وغیره نه د دې مبارزې تفصیل ذکر کړې دې (فتح الباری (ص ۴۶ ج ۷)

**[۲۹۵۸] د مدد را رسیدو په غرض د میدان څخه د تختیدو جواز**

۳۹۵۸-[۲۲] ()[١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [٢]«بَعَثَنَا رَسُولُ اللَّهِ فِي سَرِيَّةٍ، [٣]فَحَاصَ النَّاسُ حَيْصَةً [۴]فَأَتَيْنَا الْمَدِينَةَ، فَاخْتَفَيْنَا بِهَا، وَقُلْنَا: هَلَكْنَا"، [٥]ثُمَّ أَتَيْنَا رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ! نَحْنُ الْفَرَّارُونَ. [٦]قَالَ: "بَلْ أَنْتُمُ الْعَكَّارُونَ وَأَنَا فِئَتُكُمْ» "رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١]او حضرت ابن عمر ﷺ وايي [٢]يو وخت رسول كريم ﷺ يوځاى ته د جهاد د پاره زمونږ يولښكر وليږلو [٣]هلته رسيدو سره زمونږ د لښكر خلق په تيښته شول [۴]نو مونږ مديني ته واپس راغلو نو د شرم او ندامت څخه خپلو كورونو كې پټ كيناستو او مونږ په خپل مينځ كې خپل زړه كې اوويل چې د دښمنانو د مقابلي څخه تښتيدو سره مونږ چې كومه ګناه كړي ده د هغه په وجه خو ګويا مونږ هلاك شو [٥]بيا مونږ درسول كريم ﷺ په خدمت كې حاضر شوو او عرض مو وكړو يارسول الله! مونږ خو په ميدان پريښودلو سره را تښتيدونكي خلق يو [٦]حضور ﷺ وفرمايل نه بلكه تاسو دوباره حمله كونكي خلق يئ او زه ستاسو جماعت يم. (ترمذي)

[١]وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ نَحْوَهُ وَقَالَ: " «لَا، بَلْ أَنْتُمُ الْعَكَّارُونَ " [٢]قَالَ: فَدَنَوْنَا فَقَبَّلْنَا يَدَهُ [٣]فَقَالَ: " أَنَا فِئَةُ الْمُسْلِمِينَ» ". [۴]وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ أُمَيَّةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ: كَانَ يَسْتَفْتِحُ. وَحَدِيثُ أَبِي الدَّرْدَاءِ " ابْغُونِي فِي ضُعَفَائِكُمْ " فِي بَابِ "فَضْلِ الْفُقَرَاءِ" إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى.

**ترجمه:** [١]او ابوداود هم داسې روايت نقل كړي دى او په هغه كې دا الفاظ دي چې نه بلكه تاسو دوباره حمله كونكي خلق يئ [٢]ابن عمر ﷺ وايي امونږ چې وليدل چې حضور زمونږ څخه د څه جواب طلب كولو يا څه سرزنش كولو په ځاى شفقت آميز انداز كې زمونږ حوصله آفزائي وكړله نو د زيات عقيدت او محبت څخه! مونږ حضور ﷺ ته ورنږدي شو او دحضور ﷺ لاس مبارك مو ښكل كړو [٣]حضور ﷺ وفرمايل زه د مسلمانانو جماعت يم [۴]اوحديث داميه بن عبدالله كان يستفتح الخ اوحديث دابو درداء ابغوني في ضعفائكم به په باب فضل الفقراء كې ذكر كړو ان شاء الله تعالى

**حل اللغات:** ① حَاصَ: اوتختيدل. ② حَيْصَةً: په تيښته كولوسره. ③ فَاخْتَفَيْنَا: نو پټ كيناستو مونږ. ④ الْفَرَّارُونَ: دمبالغې صيغه ده. ډيره تيښته كونكى. زيات تختيدونكى. ⑤ الْعَكَّارُونَ: دمبالغې صيغه ده. دوباره حمله كونكى. بار بار حمله كونكى. ⑥ فَدَنَوْنَا: نومونږ نزدې شو. ⑦ فِئَةُ: جماعت. ډله

[١]) اخرجه الترمذي في كتاب الجهاد / باب ما جاء في الفرار من الزحف رقم الحديث ١٨٢٠

**تسهيلات:**

**قوله: بَلْ أَنْتُمُ الْعَكَّارُونَ وَأَنَا فِئَتُكُمْ:**

**د صحابوؤ د خالدبن وليد په وينا واپس كيدوباندي د تيښتي گمان كول:** مطلب هم دغه دي چه تاسو دَدښمن نه تختيدلي نه ئي بلكه دَخپل مركز طرف ته راغلي ئي صحابه كرامو خيال اوكړو چه مونږ راؤتختيدو حقيقت داسې نه وو بلكه حضرت خالد بن وليد په ډير هوښيارتوب سره صحابه دَ تنگ مقام نه شاته راوستل اوبيا په كولاؤ ميدان كښې اوجنگيدل نودښمن اوتختيدو صحابه واپس راغله حضرت خالد ﷺ چه فوج دَكومې حكمت عملئى لاندې شاته كړې وو هم دغه صحابه كرامو تيښته اوگڼړله

**د حديث پس منظر:** سيدنا عبدالله بن عمر ﷺ خپله يوه واقعه عبدالرحمن بن ابى ليلى ته بيانوى چه يو كرت زه په يوه سريه كښې اوم د رسول الله ﷺ د سرايا نه. زمونږ د سريه والا د انهزام او شكست د وجې نه د جنگ نه اوتختيدل. زه هم په تيښته كونكو كښې اوم. پس چه كله مونږ د ميدان جنگ نه راوتلو نو مونږ سوچ اوكړو بلكه خپل مينځ كښې مو يو بل ته اووې چه اوس څه اوكړو مونږ خو د جنگ نه تختيدلي يو. او واپس شوي يو د الله پاک په غضب سره، يعنى داسې كار مو كړې دې كوم چه د الله پاک او د هغه د رسول د غضب باعث وى. نو مونږ د هغه سره دا صلاح او مشوره اوكړه چه مدينې منورې ته داخل شو. يعنى په مدينه كښې د شپې په وخت داخليدو سره خپلو خپلو ورونو ته اورسيږو نو د شپې به مو څوک وينى هم نه، بيا د سحر په وخت به د رسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضر شو. هغه فرمائى. پس مونږ مدينې ته داخل شو بيا به د تجويز او ارادې مطابق سحر د رسول الله ﷺ په خدمت كښې د تلو اراده اوكړه په دې خيال چه كه زمونږ قصور معاف كيږى نو په مدينه منوره كښې به ايسار شو. او كه داسې نه وى نو د مدينې منورې نه به چرته لرې لاړ شو.

**د صبا دمانځه نه وړاندې د نبى عليه السلام د دروازې سره ناسته:** هم دا ټول مضمون مونږ په ذهن كښې ساتلو سره د سحر د مانځه نه مخكښې د هغه د حجرې په دروازه باندې كيناستلو. چه كله رسول الله ﷺ بهر تشريف راوړلو نو مونږ د هغه په ليدو باندې اودريدو. او د خپل جرم اعتراف كولو سره مو هغه ته عرض اوكړو ﴿ نحن الفرارون ﴾ چه مونږ ټول ميدان جنگ نه تيښته كونكى يو. رسول الله ﷺ زمونږ طرف ته متوجه شو او وې فرمائيل ﴿ لابل انتم العكارون ﴾ رسول الله ﷺ اوفرمائيل نه بلكه تاسو واپس كيدو سره دوباره حمله كونكى يئ (د رسول الله ﷺ دا طرز عمل او كلام اوريدلو سره په مونږ كښې ساه راغله او په هغه باندې مو ځان قربان كړو. پس وړاندې په روايت كښې دى)

بس مونږ هغه ته نور هم نزدې شو او مونږ ټولو د هغه لاس مبارک خکل کړو.

**قرآني آيت طرف ته اشاره:** رسول الله ﷺ زمونږ نوره هم توجه پيدا کړه او وې فرمائيل (**انا فئة المسلمين**) چه زه د مسلمانانو پناه ګاه يم او د مرکزي فوج قائم مقام يم. رسول الله ﷺ هغوی ته (**عكارون**) اوفرمائيلو. يعنې (**متحيزون**) او دا اشاره ده د آيت کريمه طرف ته (**وَمَنْ يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُ إِلَّا مُتَحَرِّفًا لِقِتَالٍ أَوْ مُتَحَيِّزًا إِلَىٰ فِئَةٍ فَقَدْ بَاءَ بِغَضَبٍ مِنَ اللَّهِ**) يعنې کوم سړي چه ميدان جنګ پريخودلو سره اوتختی هغه د الله پاک د غضب مستحق وی. خو د دې حکم نه دوه مستثنی دي. يو متحرف لقتال. او يو متحيز الی فئة. يعنې دا دوه کسان د فرار من الزحف په وعيد کښې داخل نه دی. او رسول الله ﷺ د ابن عمر رضي الله عنه دې سريه ته (**متحيزا الى فئة**) نه شمار کړل. د دې مطلب دا دې چه که مسلمان فوجی د مختصر او ناکافی کيدو د وجې نه د ميدان جنګ نه په دې وجه واپس شی چه د مرکزی فوج نه تعاون حاصل کړی نو بيا دا په دې وعيد کښې داخله نه ده. او دا فرار، فرار نه دې. په داسې طريقه چه رسول الله ﷺ هغه خلقو ته فرمائی او تسلی ورکوی چه ستاسو دا تيخته فرار نه دې بلکه تحيز الى فئة دې. مدينه منوره او رسول الله ﷺ په منزله د مرکزی فوج دی. لهذا تاسو دوباره د مقابله کولو دپاره دلته ماته د مدد اخستلو دپاره راغلی يئ.

**د حديث په متابعت کښې دحضرت عمر رضي الله عنه قول:** حافظ ابن کثير فرمائی چه په يوه موقع باندې سيدنا عمر رضي الله عنه هم داسې فرمائيلې وو. چه کله په جنګ جسر کښې د مجوسيانو د لښکر د کثرت وجې ابو عبيد شهيد کړې شو د وجې نه نو سيدنا عمر رضي الله عنه اوفرمائيل (**لوانحاز الى كنت له فية**) چه که هغه زما طرف ته راغلې وې يعنې په طور د مدد طلب کولو نو زه به د هغوی دپاره (**فية**) ثابت شوی وی

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۲۹۵۹] د طائف غزوه کښې د منجنيق (مجنفي) استعمال**

۲۹۵۹ - [۲۳] (۱) [۱] عَنْ ثَوْبَانَ بْنِ يَزِيدَ: [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَصَبَ الْمَنْجَنِيقَ عَلَى أَهْلِ الطَّائِفِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ مُرْسَلًا

**ترجمه:** [۱] او ثوبان ابن يزيد څخه روايت دی [۲] چې نبي کريم ﷺ د اهل طائف په مقابله کې منجنيق نصب کی دا روايت ترمذي بطريق ارسال نقل کړي دی

(۱) اخرجه الترمذی فی کتاب الادب / باب ما جاء فی الاخذ من اللحية رقم الحديث ۲۹۸۹

**حل اللغات:** ① نَصَبَ: نصب ئې كړل. اوئې لګول. ② الْمَنْجَنِيقَ: چمرېتاق. پټاقه (د کانړي ویشتلو آله. لینده)

**تسهیلات: قوله: نَصَبَ الْمَنْجَنِيقَ:**

**د منجنيق د استعمال طريقه:** دا په اصل کښې دَ فارسئي لفظ دې يعنې "مَن چه نیک" زه څومره ښه یم دا به یوجنګی وسله وه کومه چه به په لاس باندې استعمالیدله اودَ نن صبا دَ راکټو کاربه ئې کولو دَدې به دا صورت وو چه یولوئی کانړې به ئې په دې آله کښې کیخودو او راښکلوبه ئې اوبیابه ئې ورپریخودلو هغه کانړې به په زوره لاړو قلعې سره به اولګیدلو په کوم سره چه به دیوالونه ماتیدل بیا به صحابه کرام دننه وردا خلیدل

**د طائف دقلعې فتح کولودپاره په اول ځل د منجنيق استعمال:** دَ طائف قلعه چونکه ډيره مضبوطه وه او په دې کښې مالك بن عوف دکافرانو کمان کولو ۲۵ورځو پورې قلعه فتح نه شوه په دې وجه دَدې دَپاره منجنيق استعمال کړې شو په اسلام کښې دا ړومبې موقع ده چه صحابه کرامو منجنيق استعمال کړو په دې جنګ کښې حضرت طفيل بن عمرو ﷺ ته منجنيق اوټينك ملاؤشوې وو دَ ياجرش مقام نه دوو صحابه کرامو ټينك راوستلې وو اودلته استعمال شوې هم وو بل حضورپاك دَ قلعه نه چاپيره تراخه ازغي خواره کړی وو چه دننه نه څوك په تيختنه لاړنه شي

**دطائف موجوده محل وقوع:** طائف نن هم دَ حجاز لوئی ښار دې دَ مکې نه ۳۶يا ۴۵ميل فاصله باندې واقع دې کوم چه ۹۰کلوميټر دې نن صبا چه کوم ځائی ته مشناة وائی هم په دې ځائی کښې اصل طائف آباد وو دې وخت کښې په طائف کښ دوه باغونه دی چرته چه دوه واړه جماتونه جوړشوی دی دَيوجمات نوم مسجد علی دې اودَدويم جمات نوم مسجد الجعثی دې دَدې دوو جماتونو په مينځ کښې يو وادی ده دکوم نوم چه "وج" دې دَمحققينو خيال دې چه هم دَدې مقام نه حضورپاك دَ طائف محاصره کړې وه اوغالبًا هم په دې ځائی حضورپاك منجنيق نصب کړې وو نن صبا چه دَ طائف جامع مسجد کوم ځائی جوړدې هم په دې ځائی حضور پاك په طائف کښې قيام کړې وو

# [۵] بَابُ حُكْمِ الْأُسَرَاءِ

**د قیدیانو د احکاماتو بیان**

**خلاصة الباب:**

**فيه سبعة عشر حديثاً مشتملة على اثنى عشرة مسئلة:**

① فضيلة من يقاد إلى الجنة في السلاسل: ١.

② جواز قتل الجاسوس: ٢، ٣.

③ حكم التنفيل بسلب الجاسوس: ٢، ٣.

④ جواز حبس العدو: ٤، ٥، ٧، ١٥.

⑤ التثبت في أمر الأسير: ٥، ٧، ١٧.

⑥ جواز فك الأسير بشفاعة أحد: ٦.

⑦ إلقاء القتلى في البيرذلة لهم: ٨.

⑧ رد الأسارى إلى المقاتلين بعد توبتهم: ٩.

⑨ التفدية بالأسيربالعوض المالي: ١٠، ١٤.

⑩ حكم المن على الأسير: ١١، ١٢.

⑪ حكم قتل الأسير: ١٢، ١٣، ١٥، ١٧.

⑫ عدم رد من هاجر إلى دارالإسلام قبل تمام الصلح: ١٦.

**قوله** الْأُسَرَاءِ:

**د اسیر لغوی معنی:** أسراء د اسیر جمع ده . اسیر قیدی او راګیر شوی سړی ته وائی د جنګ په میدان کښې چه څنګه مقابله کیږی او خلق وژلې کیږی هلته خلق ګرفتارولې هم شی ګرفتار د دواړو طرفونو نه وی د مسلمانانو هم وی او د کافرانو هم وی

**د قیدیانو سره څلور طریقې اختیارول:** ①کله هسې بغیر د څه عوضه احسان کولو سره پریخودې شی لکه اندیا چې په پاکستان باندې په اوویشتمې فروری کال ۲۰۱۹ کښې حمله اوکړه او پاکستانی پائلټ هغوی جهاز اوغورځولو . او د هغوی یو پائیلټ ئې ګرفتار کړو چې نوم ئې ابی نند وو . او زمونږ وزیر اعظم عمران خان هغه اندیا ته بغیر د څه عوض او بدلې څخه واپس حواله کړو اګرچې په دې واپس کولو باندې ډیر پاکستانیان خفه وو

④ کله دَ قیدیانو بدلون کولې شی لکه څنګه چې پاکستان په کال ۲۰۲۰ کښې د ملائشیا سره د قیدیانو تبادله کړې وه.
⑤ کله په تاوان اداکولو سره خلاصولې شی لکه څنګه چې پاکستان د امریکې ریمنډوس امریکې څخه عوض واخستلو او امریکې ته ئې حواله کړو
⑥ کله قتلولې هم شی لکه څنګه چې په یو جنګ کښې مسلمانانو د یهودیانو قیدیان قتل کړی وو. نو په اسلام کښې دَ قیدیانو مکمل قوانین موجود دی.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۲۹۶۰] په هتکړو کښې جنت ته داخلیدل

۲۹۶۰- [۱] (۱) ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، «عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② " عَجِبَ اللَّهُ مِنْ قَوْمٍ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ فِي السَّلَاسِلِ» ③وَفِي رِوَايَةٍ: " «يُقَادُونَ إِلَى الْجَنَّةِ بِالسَّلَاسِلِ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①او ابوهریره رضی الله عنه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم څخه نقل کوي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل ②الله په هغه قوم باندې تعجب کوي یعنی هغه خلقو څخه خوشحالیږلو چې په زنځیرونو کې تړلي په جنت کې داخلیږي ③او په یو روایت کې دا الفاظ دي چې الله ﷻ د هغه خلقو څخه خوشحالیږلو چې په زنځیرونو کې تړلي جنت طرف ته بوتلل شي (بخاري)

**حل اللغات:** ①عَجِبَ: تعجب کوی، خوشحالیږی. ②السَّلَاسِلِ: زنځیرونه. ③يُقَادُونَ: راوستلې به شی، بوتللې به شی.

**تسهیلات:**

**قوله:** عَجِبَ اللَّهُ مِنْ قَوْمٍ:

**دتعجب څخه مراد:** الله تعالی په داسې قوم باندې تعجب اوفرمائیلو چه په زنځیرونو کښې تړلي به جنت کښې داخلیږی تعجب دلته دَ رضا اوخوشحالئی په معنی کښې دې اومطلب دادې چه دَ داسې خلقو نه به الله تعالی راضی اوخوشحاله وی چه په زنځیرونو کښې تړلي شوی جنت ته داخلیږی

**قوله:** يُقَادُونَ إِلَى الْجَنَّةِ بِالسَّلَاسِلِ

**په هتکړو کښې جنت ته داخلیدو کښې اقوال:** ① دَ حدیث اکثر شارحینو وئیلی دی چه دې نه هغه کافران مراد دی کوم چه مسلمانانو قیدیان جوړکړی په زنځیرونو تړلي دارالاسلام ته راوستې دی اوهم په دغه حال کښې هغوی مسلمانان شوی دی. دَ جنت نه

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد / باب الاساری فی السلاسل رقم الحدیث ۳۰۱۰

مراد بعض خلقو اسلام مراد اخستې دي ځکه چه اسلام دَ جنت دداخليدو سبب دې په دې وجه على سبيل المجاز سبب وئيلو سره مسبب مرادواخستلې شو (۱)

② علامه ابن جوزى رحمه الله وضع سلاسل په مجازباندې محمول كولوسره وئيلى دى "يدخلون الجنة فى السلاسل "مطلب دا نه دې چه هغه خلق به په زنځيرونوكښې تړلې شوې اسلام كښې داخليږى بلكه دا دَاكراه نه كنايه ده اومطلب دادې چه هغه خلق قيدى جوړيدو سره دارالاسلام ته راوستې شى خوچه كله دَ اسلام دَ حقانيت معترف كيږى نو په خپله خوشحالئى به په اسلام كښې داخليږى (۲)

③ علامه كرمانى رحمه الله اودَهغوى په اتباع كښې علامه برماوى رحمه الله فرمائيلى چه دَ قوم نه دلته هغه مسلمانان قيديان هم مراد كيدې شى چه كافرانوسره په زنځيرونوكښې تړلې وى او بيا په تړلوكښې وفات شى ياقتل كړې شى نو دَ حشر په ورځ به هغوى هم دغه شان راوچتولې شى دَ داسې خلقو جنت كښې داخليدل يقينى دى په دې وجه په حديث كښې دَ حشر په ورځ راوچتيدلوتعبير دخول جنت سره اوكړې شو (۳) خلاصه دا چه دَدې حضراتو په نيز "يدخلون الجنة فى السلاسل" حشرنه كنايه ده

④ ليكن علامه عينى رحمه الله فرمائيلى دى چه دكرمانى داتوجيه دَمجازدَ قبيل نه ده كله چه لفظ جنت دَهغې په حقيقى معنى محمول كولې شى نودا په مجاز باندې دَ محمول كولوځه ضرورت دې اوځه مانع هم نشته چه دَ جنت نه دلته مصداق حقيقى مراد وى او يدخلون الجنة فى السلاسل تقدير وى يدخلون الجنة، وكانوا فى الدنيا فى السلاسل (۴)

⑤ علامه طيبى رحمه الله فرمائى دلته دَ سلاسل نه مراد دَ جذب هغه كيفيت دې چه دَ الله تعالى منتخب بنديګان دَ ضلالت نه هدايت طرف ته راكاږى اودَ قعرمذلت نه ښكته پريوتلو نه درجات عاليه طرف پورته راكاږى ښكاره خبره ده چه دَدې توجيه په صورت كښې دَحديث الفاظ په حقيقت باندې محمول نه دى په دې وجه حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عينى رحمه الله فرمائيلى دى چه دَعلامه طيبى رحمه الله دا توجيه هم دَ مجازدَ قبيل نه ده (۵) حقيقت دادې چه لفظ جنت نه دلته حقيقى معنى مراد اخستل راجح دى لكه چه دَعلامه عينى رحمه الله رائې ده اودَدې جملې مطلب دادې چه كله كافران مسلمانان په ميدان جهاد

(۱) عمدة القاري:۶/۴۸۲ إرشاد الساري:۶/۴۸۲.
(۲) فتح الباري:۶/۱۷۹ وإرشاد الساري:۶/۴۸۲.
(۳) شرح الكرماني:۱۳/۲۲عمدة القاري:۱۵/۳۵۸ إرشاد الساري:۶/۴۸۲.
(۴) عمدة القارى۱۵/۳۵۸.
(۵) فتح الباري:۶/۱۷۹ عمدة القاري:۱۵/۳۵۸.

کښې راګیر کړی او په زنځیرونو کښې اوتړی او قتل ئی کړی نو هغوی به هم په هغه حال کښې جنت ته داخلولې شي. دابه د هغوی د پاره د اعزاز سبب وی چه هغوی داسې تکلیفونه او سختئي برداشت کولو سره د الله تعالی په لارکښې خپل ځان قرباني کړو والله اعلم

دغه شان وضع سلاسل هم په حقیقت باندې محمول دې هم دغه رائې د حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه قسطلاني رحمه الله هم ده.

**د ابن جوزی او علامه طیبی د اقوالو تضعیف:** د حافظ ابن جوزی رحمه الله په نیزد دې نه اکراه او علامه طیبي رحمه الله په نیزد دې نه د جذب کیفیت مراد دې دا صحیح نه ده. حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه قسطلاني رحمه الله فرمائیلی دی چه وړاندې په کتاب التفسیرکښې حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت نه د دې تائید کیږی چه وضع سلاسل په حقیقت باندې محمول دې حضرت ابوهریره رضی الله عنه د ﴿كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ﴾ تفسیر داسې کړې دې خیر الناس للناس یاتون بهم في السلاسل في أعناقهم حتی یدخلوا في الاسلام [۱]

حافظ ابن حجر رحمه الله د یوبل روایت نه هم استدلال کړې دې چه د ابو الطفیل رضی الله عنه د طریق نه امام بخاری رحمه الله مرفوعًا نقل کړې دې

روایت دا دې رایت ناسا من امتی یساقون إلی الجنة فی السلاسل کرهًا، قلت یا رسول الله من هم؟ قال: قوم من العجم یسبیهم المهاجرون فیدخلونهم فی الاسلام مکرهین [۲]

**[۳۹۶۱] د دښمن د جاسوس د قتلولو حکم**

۳۹۶۱- [۲] [۳] ①وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ②: «أَتَى النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَيْنٌ مِنَ الْمُشْرِكِينَ وَهُوَ فِي سَفَرٍ، ③فَجَلَسَ عِنْدَ أَصْحَابِهِ يَتَحَدَّثُ، ثُمَّ انْفَتَلَ، ④فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " اطْلُبُوهُ وَاقْتُلُوهُ " ⑤فَقَتَلْتُهُ فَنَفَّلَنِي سَلَبَهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①او حضرت سلمه ابن اکوع رضی الله عنه فرمایي ②یو وخت د مشرکینو دښمنانو یو جاسوس نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته راغلو کوم وخت چې حضور صلی الله علیه وسلم په سفر کې وو ③هغه جاسوس د معلومات حاصلولو د پاره د حضور صلی الله علیه وسلم صحابه رضی الله عنهم سره کیناستلو او خبري یې وکړې بیا لاړو ④نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته چې د هغه په باره کې معلومه شوه نو حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل هغه تلاش کی او قتل یې کئ ⑤نو ما هغه تلاش کی او قتل مې کړو حضور صلی الله علیه وسلم د هغه سامان او اسباب ماته راکړل (بخاري مسلم)

[۱] ) صحیح بخاری:۲/ ۶۵۴ کتاب التفسیر باب کنتم خیر أمة أخرجت للناس رقم:۵۸۸۷.
[۲] ) فتح الباری:۶/ ۱۷۱.
[۳] ) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد / باب الحربی اذا دخل دار الاسلام بغیر امان رقم الحدیث ۳۰۵۱، ومسلم

**حل اللغات:** ①-عَيْنٌ: جاسوس، ②انْفَتَلَ: لاړو، واپس شو، ③فَنَفَّلَنِي: راثې کړو ماته (دانعام په طور)، ④سَلَبَهُ: دهغه سامان او اسباب

**تسهيلات: قوله:** وَهُوَفِي سَفَرٍ:

**دسفر تعين:** په صحيح مسلم کښې امام مسلم رحمه الله دترجمة الباب متذکره روايت دَ عکرمه بن عمار په طريق سره نقل کړې دې په هغې کښې تصريح ده چه دا دَغزوه هوازن سفروو ([1])

**قوله:** فَجَلَسَ عِنْدَأَصْحَابِهِ يَتَحَدَّثُ،ثُمَّ انْفَتَلَ:

**دکافرانود جاسوس راتلل اوبيا تلل:** دَ بهرنه راتلونکې داجاسوس دَ صحابه کرامو په ډله کښې شامل شو هغوی سره يوځائې شو هغوی سره ترخوراك پورې اوکړو اوهغوی ته خبر اونه شو چه دا دَ دښمن مخبر اوجاسوس دې بيا دا چه هغه په پټه باندې په داسې مهارت سره اوتختيدو چه صحابه کرامو ته قطعًا احساس اونه شو

**قوله:** "اطْلُبُوهُ وَاقْتُلُوهُ:

حضورپاك اوفرمائيل هغه اولټوئی اوقتل ئی کړئی. نو حضرت سلمه بن اکوع رضي الله عنه فرمائی هغه ما قتل کړو اودَهغه وسله او سامان حضورپاك هم هغه ماته راکړل ([2])

**قوله:** فَقَتَلْتُهُ:

**د جاسوس د قتلولو حکم:** دا سړې چونکه جاسوس ووپه دې وجه دَ ده قتلول ضروری وو دغه شان هغه کافرهم قتلولې شی چه حربی وی اوبغيردَ امان طلب کولونه دَ مسلمانانو علاقه کښې داخل شوې وی

**قوله:** فَنَفَلَنِي سَلَبَهُ:

**سلمه بن اکوع ته زياتی حصه ورکول:** دَ نفل جمع انفال راځی دَدې معنی دَ زياتوالی ده فاء ساکن اومتحرك دواړه سَره لوستل صحيح دی لهذا فنفله سلبه معنی به په دې صورت کښې داسې شی رسول الله صلى الله عليه وسلم سلمه بن اکوع رضي الله عنه ته دَهغه دَمقررحصې نه زياته ورکړه په نفلی مونځ باندې هم دَ نوافل اطلاق دَدې دَپاره کيږی چه هغه زياتی فرائض وی ابن اثير رحمه الله ليکی النفل بالتحريك: الغنيمة، وجمعه أنفال. والنفل بالسكون وقد يحرك: الزيادة، وبه سميت النوافل في العبادات، لانها زائدة على الفرائض. ([3])

[1] ) صحيح مسلم:۸۸/۲ کتاب الجهاد باب استحقاق القاتل سلب القتيل رقم:۱۷۵٤.وفيه: قال (سلمة بن الاكوع رضي الله عنه)غزونامع رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم هوازن..... الخ.

[2] ) فتح الباری:۱۶۸/۶ وعمدة القاری: ٤۱۱/۱٤.

[3] ) النهاية لابن الير:۹۹/۵وفتح الباری:۵۱۲/۵

**په دې کښې دوه صورتونه:** دحربي کافردارالاسلام ته د داخليدو دوه صورتونه دي
① که چرې کافرحربي دَ امان طلب کولو نه بغيردَ دارالاسلام په حدودو کښې داخل شي
② که چرې کافر حربي اووائي چه ما امان راوړلې راغلې يم

**په اول صورت کښې (۳) مذاهب:**

① دَامام مالك رحمه الله امام ته اختياردې چه که هغه ئې قتل کوي قيدي ئې جوړه وي اوکه فديه اخستوسره ئې پريږدي.[1]
② امام شافعي رحمه الله په نيزقتل کولوغلام جوړولو او فديه اخستل پريخودلوسره دَ امن اواحسان اختيارهم حاکم وخت ته حاصل دې.[2]
③ که چرې کافر حربي دعوىٰ اوکړي چه هغه دَخپل ملك دَحاكم د طرف نه دَ قاصد په حيثيت سره راغلې دې نو احناف[3] او حنابله[4] په نيز دَدغه دا خبره به په دې شرط قبلولې شي چه هغه سره دَحاكم وخت تحريروي اويقين وي چه دا تحرير هم دَ حاكم وخت دې

**په دويم صورت کښې (۳) مذاهب:**

①امام اوزاعي امام شافعي او امام احمد رحمهم الله په نيزدې دَ هغه داخبره ردکړې شي او امام ته اختياردې چه هغه دې دَ خپل اختيار مطابق ده ته کوم قسم سزا هم چه وي ورکړي [5] هم دغه مسلك دَ امام مالك رحمه الله هم دې [6]
② دَ احنافو دَ فقهاؤ په نيز حربي جاسوس دَ خپلې دعوى دَ تصديق دَپاره دې ثبوت پيش کړي نودَ دې نه تعارض کول جائزنه دي. سزا ورکولونه دې بغيرپريخودې شي [7]
③ امام محمد رحمه الله فرمائي هغه چه چاله په لاس ورغلودَهغه غلام دې جوړکړې شي [8]
④ امام احمد رحمه الله فرمائي که چرې دَ تجارت په غرض په دارالاسلام کښې دَ حربيانو تګ راتګ معمول وي او په دې صورت کښې مشتبه جاسوس دَ يوسوداګرپه حيثيت سره خپله پيژندګلو اوکړي نودې نه به تعارض نه شي کولې [9]
علامه شامي رحمه الله په ردالمحتارکښې ليکلي دي که يومسلمان کافرحربي ته دَ امان

---

[1] ) فتح الباري:۱۶۸/۶.
[2] ) المجموع شرح المهذب للنوي:۲۳۸/۲۱ باب عقد الذمة.
[3] ) ردالمحتارعلى الدرالمختار: ۱۶۸/۴سعيد.
[4] ) المغني لابن قدامة: ۴۳۳/۱۰ فصل:۷۴۹۱.
[5] ) المغني لابن قدامة: ۴۳۳/۱۰ فصل:۷۴۹۱.
[6] ) شرح ابن بطال:۲۱۳/۵.
[7] ) ردالمحتار على الدرالمختار: ۱۶۸/۴سعيد.
[8] ) شرح ابن بطال:۲۱۳/۵.
[9] ) المغني لابن قدامة: ۴۳۳/۱۰.

ورکولودعوی اوکړه نودَ دوو مسلمانانو ګواهانونه دي دَ دي دعوی تصدیق واخلی چه واقعتًا هغه دي حربی ته امان ورکړي دي؟ که ګواهانو تصدیق اوکړو نودي به پریخودي شی (١)

**د دارالحرب د مسلمان دالاسلام ته د داخليدوحکم:** ① که په دارالاسلام کښې داخليدونکي حربی مسلمان وی نودَ امام ابوحنيفه امام شافعی او بعض فقهاء مالکيه رائي داده چه امام وخت دې هغه ته دَخپلې خوښې مناسب سزا ورکړی دي قتل کول جائزنه دی (٢)

② امام مالك رحمه الله فرمائی يجتهدفيه الامام خو علامه عينی او امام نووی رحمه الله فرمائی چه دَدغه اجتهاد وضاحت امام مالك رحمه الله نه دې فرمائيلې چه ددې مطلب څه دي؟(٣) البته قاضی عياض رحمه الله فرمائی چه دَ بعض فقهاء مالکيه دَ رائي مطابق مسلمان حربی قتل کول جائزدی وقال عياض: قال كبار أصحابه ـ أی أصحاب مالك ـ يقتل (٤)

**[٣٩٣] دکافرسامان د هغه د مسلمان قاتل دپاره**

٣٩٣-[٣] (٥) ١ وَعَنْهُ، قَالَ ٢: «غَزَوْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - هَوَازِنَ، ٣ فَبَيْنَا نَحْنُ نَتَضَحَّى مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٤ إِذْ جَاءَ رَجُلٌ عَلَى جَمَلٍ أَحْمَرَ، فَأَنَاخَهُ، وَجَعَلَ يَنْظُرُ، ٥ وَفِينَا ضَعْفَةٌ وَرِقَّةٌ مِنَ الظَّهْرِ، وَبَعْضُنَا مُشَاةٌ ٦ إِذْ خَرَجَ يَشْتَدُّ فَأَتَى جَمَلَهُ، ٧ فَأَثَارَهُ فَاشْتَدَّ بِهِ الْجَمَلُ،

**ترجمه:** ١ وسلمه رضي الله عنه ابن اکوع وايي ٢ مونږ د رسول کريم صلى الله عليه وسلم سره د قبيله قيس يوشاخ هوازن خلاف جهاد کي شريك وو ٣ يوه ورځ هغه وخت چې مونږ رسول کريم صلى الله عليه وسلم سره د غرمي طعام خوړلو ٤ چانك يوسړی چې ددښمن جاسوس وو او سُور اوښ باندي سور وو هغه اوښ کينولو او اخوا ديخوايي کتل (يعنی هغه زمونږ د حالت او کيفيت اندازه اخستله) ٥ هغه وخت مونږ د خپلي خسته حالی او پياده پائي په وجه ډير کمزوري کيدو زمونږ سره د سورلی کمی وو او په مونږ کې بعضې خلق پياده وه ٦ هغه سړي (چې زمونږ د کمزوری اندازه ولګوله چې مونږ د سورلو د کمی او خپلي خسته حالي په وجه سخت پريشان او کمزوري يو نو دښمن ته د دې اطلاع ورکولو د پاره هغه) اچانك زمونږ د مينځ څخه په منډه ووتلو ٧ او خپل اوښ ته رسيدو سره په هغه سوَريدو څخه هغه يي ودروی

(١) ردالمحتار على الدرالمختار: ٦/٢٦٦ كتاب الجهاد فصل فی استئمان الكافر. دارالمعرفة بيروت.
(٢) عمدة القاری: ١٤/٢٩٧.
(٣) شرح النووی علی صحيح مسلم: ٢/٨٩وعمدة القاری: ١٤/٢٩٧.
(٤) عمدة القاری: ١٤/٢٩٧وبذل المجهود: ١٢/١٧٨الابواب والتراجم ص: ٢٠٣.
(٥) اخرجه البخاری ومسلم

او هغه اوښ هغه اخستو سره تيزي سره وزغلوی

**حل اللغات:** ① فَأَنَاخَهُ: کینوله هغه اوښه. د اوښې کناستو دپاره استعماليږي. ② ضَعْفَةٌ: کمزوري. ③ رِقَّةٌ: ستړی والې. ④ مُشَاةٌ: پياده تلونکي. ⑤ نشتد: په تيزئ سره. ⑥ أَثَارَهُ: راوې پارولو هغې لره (راپاڅې څولو).

۱ فَخَرَجْتُ أَشْتَدُّ حَتَّى أَخَذْتُ بِخِطَامِ الْجَمَلِ، فَأَنَخْتُهُ، ۲ ثُمَّ اخْتَرَطْتُ سَيْفِي، فَضَرَبْتُ رَأْسَ الرَّجُلِ، ۳ ثُمَّ جِئْتُ بِالْجَمَلِ أَقُودُهُ وَعَلَيْهِ رَحْلُهُ وَسِلَاحُهُ، ۴ فَاسْتَقْبَلَنِي رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَالنَّاسُ. ۵ فَقَالَ: "مَنْ قَتَلَ الرَّجُلَ؟" ۶ قَالُوا: ابْنُ الْأَكْوَعِ ۷ فَقَالَ: "لَهُ سَلَبُهُ أَجْمَعُ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ ما چې داصورت حال وليدلو نو زه هم د هغه خلقو د مينځ څخه ووتلم او هغه سړي پسې مې منډه کړه او هغه مې رالاندې کی او د اوښ مهار مې اونيولو او هغه مې کينولو ۲ او بيا خپله توره راؤښکلو سره په هغه سړي مې ګذار وکړو چې د هغه سر ختم شو ۳ د دې څخه وروسته اوښ چې په هغه باندې د هغه سامان وو او د هغه هتيار وو رابنکلو سره مې راوړل ۴ کوم وخت چې رسول کريم ﷺ او نور خلق څما مخې ته راغلل ۵ نو حضور ﷺ وفرمايل هغه سړی چا قتل کړې دی ۶ صحابه و ﷺ اوويل سلمه ابن اکوع ؓ ۷ نو حضور ﷺ وفرمايل د هغه ټول سامان حقدار هم دی يعنی سلمه ؓ دی (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ⑦ بِخِطَامِ: مهار. واګې. ⑧ اخْتَرَطْتُ: ما راؤښکله. ⑨ أَقُودُهُ: رابنکلو مې هغه. ⑩ رَحْلَهُ: سامان او اسباب دهغه. ⑪ سِلَاحُهُ: وسله دهغه. جنګی سامان. ⑫ سَلَبَهُ: پاتې مال دهغه. ⑬ أَجْمَعُ: ټول

**تسهيلات:**

**قوله:** غَزَوْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - هَوَازِنَ:

**د هوازن پيژندګلو:** دا د يومشهورې قبيلې نوم دې چه په غشو ويشتلو کښې ډير مشهور وو په حنين او اوطاس کښې هوازن سره لويه معرکه اوشوه د عرفات او طائف په مينځ کښې د يوې وادئی نوم حنين دې

**قوله:** فَبَيْنَا نَحْنُ نَتَضَحَّى مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**دتضحيه مختلف معانی:** ① دا لفظ د تضحيه نه دې په اصل کښې په سفرکښې د واښو په خائی کښې د کوزيدلو او د اوښانو څرولو او آرام کولو دپاره به استعماليدلو

② بيا د نرمئی دپاره استعماليدو بيا د چاشت د مونځ دپاره استعمال شو

③ بيا د چاشت په وخت د خوراك دپاره استعمال شو دلته هم دغه معنی مراد ده.

## [٢٩٦٢] د مديني د عهد شكن يهوديانو متعلق فيصله

٣٩٦٣-[٣] (١) ①وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ②: «لَمَّا نَزَلَتْ بَنُو قُرَيْظَةَ عَلَى حُكْمِ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ، بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَجَاءَ عَلَى حِمَارٍ، ③فَلَمَّا دَنَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "قُومُوا إِلَى سَيِّدِكُمْ". ④فَجَاءَ فَجَلَسَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ⑤"إِنَّ هَؤُلَاءِ نَزَلُوا عَلَى حُكْمِكَ". ⑥قَالَ: فَإِنِّي أَحْكُمُ أَنْ تُقْتَلَ الْمُقَاتِلَةُ وَأَنْ تُسْبَى الذُّرِّيَّةُ. ⑦قَالَ: "لَقَدْ حَكَمْتَ فِيهِمْ بِحُكْمِ الْمَلِكِ. ⑧وَفِي رِوَايَةٍ: "بِحُكْمِ اللَّهِ"». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**توجمه:** ①ابوسعيد خدري رضي الله عنه وايي ②هركله چې په مدينه کې آباد د بنو قريظه يهود سعد ابن معاذ رضي الله عنه خپل حکم فيصله کونکی منلو باندې راکوز شو [يعنی هغوی په دي آماده شول چې سعد ابن معاذ رضي الله عنه کومه فيصله وکړي مونږ به هغه منو] نو رسول الله ﷺ د حضرت سعد رضي الله عنه راغوښتلو د پاره يوسړی وليږلو نو سعد ابن معاذ رضي الله عنه په يو خره باندې سور راغلو ③کوم وخت چې هغه نزدې راورسيدو نو رسول کريم ﷺ حاضرينوته اوويل تاسو خلق د خپل سردار [تعظيم يا د هغه مدد د پاره] ودريږئ ④سعد ابن معاذ رضي الله عنه حضور ته نزدې کيناستلو نو رسول کريم ﷺ هغه مخاطب کولو سره وفرمايل ⑤دا خلق يعنی د بنوقريظه يهوديان تاحکم فيصله کونکی جوړولو باندې راضي شوی دی ⑥سعد ابن معاذ رضي الله عنه اوويل زه دافيصله کوم چې دي يهوديانو کې کوم خلق د جنګ کولو صلاحيت لري هغوئ دي قتل شي او د هغوی ښځي او بچي دي قيد کړي شي ⑦حضور ﷺ په دي اوريدو سره وفرمايل تا د دوئ په باره کې د بادشاه د حکم مطابق فيصله کړيده [يعنی تاداسي فيصله کړيده چې په هغه سره الله ﷻ هم راضي دی] ⑧او په يوروايت کې دا الفاظ دي چې تا د الله د حکم مطابق فيصله کړيده (بخاري . مسلم)

**حل اللغات:** ①دَنَا: نزدې شو ②الْمُقَاتِلَةُ: جنګيالی، جنګ کونکی ③تُسْبَى: قيديان دې جوړکړې شي.

**تسهيلات:**

**قوله:** قُومُوا إِلَى سَيِّدِكُمْ:

**دحديث پس منظر:** حضرت سعد رضي الله عنه دَ انصارو سردارو جنګ خندق کښې هغه باندې ژور زخم لګيدلې وو هغه دَ يهودو اودَ بنوقريظه په غدارئی باندې دَ الله تعالی نه دعاغوښتې وه چه اې الله ماته ترهغه وخته پورې مرګ مه راکوې ترکومې پورې چه په يهودو باندې خپل زړه يخ نه کړم هلته دَ جنګ خندق نه پس فوری مسلمانانو دَ بنوقريظه محاصره اوکړه ٢٥ورځونه زياته محاصره وه نوهله يهوديان دَخپلو قلعه ګانونه په

---

(١) اخرجه البخاري في كتاب الجهاد والسّير/باب إذا نزل العدوّ على حكم رجل (رقم-٣٠٤٣) ومسلم في كتاب الجهاد والسّير/باب جواز قتال من نقض العهد، وجواز إنزال أهل الحصن على حكم حاكم عدل أهل للحكم (رقم-٦٤ - (١٧٦٨) واحمد في المسند:٢٢/٣

راکوزیدو باندې راضي شو مګر بدبختو اوونیل چه زمونږ فیصله دې محمد ﷺ نه کوی بلکه سعدبن معاذ رضي الله عنه دې اوکړی د حضرت سعد رضي الله عنه دغه خلقو سره پخوانی تعلقات هم وو اوداخلق د یوبل حلیف هم وو د یهودیانوخیال وو چه سعدبه زمونږ په حق کښې فیصله اوکړی

**د سعد دپاره د اودریدو حکم کولو وجه:** حضرت سعد رضي الله عنه چونکه زخمي وو په دې وجه مسجدنبوی د خوانه په خرباندې سور راوستلې شو کله چه محله بنوقریظه ته اورسیدو نوحضورپاك اوفرمائیل "قوموالی سیدکم" چونکه دهغوی د امداد ضرورت وو په دې وجه حضورپاك اوفرمائیل د خپل سردار د امداددپاره اودریږئی دې د خرنه راکوز کړئی

**د یوې غلط فهمۍ ازاله:** لهذا ددې حدیث د هغه حدیث سره تعارض نشته دې په کوم کښې چه راغلی دی "من سره أن يتمثل له الرجال قياماً فليتبؤمقعده من النار" ځکه چه دلته مجبوری وه شوقیه د چا د پاره لاس په نامه اودریدل منع دی. دویم جواب دادې چه دلته صرف د استقبال په توګه د احترام اواکرام دپاره اودریدل وو دې نه صرف استقبال ثابتیږی داعاجمو د ممنوع قیام سره ددې څه تعلق نشته دې دکوم ذکر چه من سره والا حدیث کښې دې

**قوله:** لَقَدْ حَكَمْتَ فِيهِمْ بِحُكْمِ الْمَلِكِ:

**د سعد د فیصلې تائید:** بهرحال حضرت سعد رضي الله عنه فیصله اوکړه چه د جنګ قبل یهودیان قتل کړئی اوښځې او ماشومان غلامان جوړکړئی هم دغه فیصله د تورات هم وه حضورپاك اوفرمائیل د سعد فیصله دعرش د بادشاه فیصله ده

**[۲۹۶٤] د یمامه د سردار د اسلام راوړلو واقعه**

۳۹۶۳-[۵] (¹) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ [۲]: «بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خَيْلًا قِبَلَ نَجْدٍ، [۳] فَجَاءَتْ بِرَجُلٍ مِنْ بَنِي حَنِيفَةَ، يُقَالُ لَهُ: ثُمَامَةُ بْنُ أُثَالٍ، سَيِّدُ أَهْلِ الْيَمَامَةِ [۴] فَرَبَطُوهُ بِسَارِيَةٍ مِنْ سَوَارِي الْمَسْجِدِ، [۵] فَخَرَجَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: [۶] "مَاذَا عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ؟" [۷] فَقَالَ: عِنْدِي يَا مُحَمَّدُ! خَيْرٌ: [۸] إِنْ تَقْتُلْ تَقْتُلْ ذَا دَمٍ، [۹] وَإِنْ تُنْعِمْ تُنْعِمْ عَلَى شَاكِرٍ، [۱۰] وَإِنْ كُنْتَ تُرِيدُ الْمَالَ فَسَلْ تُعْطَ مِنْهُ مَا شِئْتَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضي الله عنه وایي [۲] رسول کریم ﷺ یولښکر جهاد کولو د پاره نجد ته ولیږلو د لښکر [۳] خلقو د قبیله بنوحنیفه یوسړي نیولو سره مدینې ته راوستی

¹) اخرجه البخاري في كتاب المغازي /باب وفد بني حنيفة، وحديث ثمامة بن [ص: ۱۷۰] أثال (رقم ۴۳۷۲) ومسلم في كتاب الجهاد والسير /باب ربط الأسير وحبسه، وجواز المن عليه (رقم-۵۹ - (۱۷۶٤) و ابو داود في كتاب الجهاد ، باب في الأسير يوثق (رقم-۲۶۷۹)

چې د هغه نوم ثمامه ابن اثال وو چې د یمامه ښار د خلقو سردار وو [۴]هغه سړی مسجد نبوي کې یوي ستني سره وتړل شو چې ونه تښتي [۵]رسول کریم ﷺ هغه ته تشریف راوړو او د هغه څخه یي پوښتنه وکړه [۶]وایه ثمامه تاسره د ویلو او د اوریدلو د پاره څه دي یعنی وښایه چې ستا څه حال دی یا څما په باره کې ستا څه خیال دی زه به تاسره څنګه سلوك کوم [۷]ثمامه اوویل زماسره خیر او خیر دی [یا زما سره ډیر مال دی] [۸]که تاسو ما قتل کړئ نو یوخون واله سړی به قتل کړئ چې د قتلیدو مستحق دی [د دې الفاظو په ذریعه ګویا ثمامه د خپل تقصیر اعتراف او اقرار وکړو یا د هغه د دې الفاظو دا مطلب وو که تاسو ماقتل کړئ نو یوداسي سړی به قتل کړئ چې د هغه خون به ضائع کیږي نه خکه چې څما قوم به څما خون معاف نه کړي بلکه ستاسو څخه به بدله اخلي په دې صورت کې هغه ګویا د خپل امارت ریاست او دجاهت دعوی وکړله] [۹]او که تاسو ما باعزته رهاکړئ زماسره ښه سلوك وکړئ نو یوسړي سره به ښه سلوك وکړئ چې شکر ګذار او قدردان دی [یعنی زه به هم د دې نیك سلوك تاسو ته بدله درکړم] [۱۰]او که تاسو مال غواړئ نو وغواړئ څومره مال چې غواړئ دربه کول شي

**حل اللغات:** ① خَيْلًا : د شهسوارانو یوه دسته، ② رَبَطُوهُ : اوئې تړلو هغه. ③ سَارِيَةٍ : ستن. ④ مَا عِنْدَكَ یعنی ستا څه خیال دې چه زه به تاسره څه کوم؟ ⑤ عِنْدِي يَا مُحَمَّدُ! خَيْرٌ یعنی ستاباره کښې ښه ګمان دې خکه چه ته به ظلم نه کوې. ⑥ ذَادَمٍ: وینې والا یعنی مجرم. ⑤عَلَى شَاكِرٍ: شکر ګذار. قدردان.

[۱]فَتَرَكَهُ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حَتَّى كَانَ الْغَدُ، [۲]فَقَالَ لَهُ: " مَا عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ؟ " [۳]فَقَالَ: عِنْدِي مَا قُلْتُ لَكَ: إِنْ تُنْعِمْ تُنْعِمْ عَلَى شَاكِرٍ، وَإِنْ تَقْتُلْ تَقْتُلْ ذَا دَمٍ، وَإِنْ كُنْتَ تُرِيدُ الْمَالَ فَسَلْ تُعْطَ مِنْهُ مَا شِئْتَ. [۴]فَتَرَكَهُ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حَتَّى كَانَ بَعْدَ الْغَدِ، [۵]فَقَالَ لَهُ: " مَا عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ؟ " [۶]فَقَالَ: عِنْدِي مَا قُلْتُ لَكَ: إِنْ تُنْعِمْ تُنْعِمْ عَلَى شَاكِرٍ، وَإِنْ تَقْتُلْ تَقْتُلْ ذَا دَمٍ، وَإِنْ كُنْتَ تُرِيدُ الْمَالَ فَسَلْ تُعْطَ مِنْهُ مَا شِئْتَ.

**توجمه:** [۱]په دې خبرو اوریدو سره حضور ﷺ هغه په خپل حال پریښودی چې دویمه ورځ راغله [۲]نو حضور ﷺ بیا د هغه څخه پوښتنه وکړه وایه ثمامه تاسره ویلو اوریدلو د پاره څه شته؟ [۳]هغه اوویل زماسره هغه څیز دی چې ماویلي دي او که تاسو ښه سلوك وکړئ نو یوداسي سړي سره به ښه سلوك وکړئ چې شکر ګذار او قدردان دی که تاسو ماقتل کی نو یوخون واله سړی به قتل کړئ او که تاسو مال غواړئ نو وغواړئ څومره مال چې غواړئ دربه کول شي [۴]حضور ﷺ په دې ورځ هم د هغه خبري اوریدو سره په خپل حال پریښودی چې دریمه ورځ راغله [۵]نوحضور ﷺ بیا د هغه څخه پوښتنه وکړه وایه ثمامه تاسره څه دي؟ [۶]هغه اوویل زماسره هغه څیز دی چې ماویلي دي که تاسو

راسره ښه سلوك وكړئ نو داسې سړي سره به ښه سلوك وكړئ چې شكر گذار او قدردان دى كه قتل مي كړئ نو يو خون واله سړى به قتل كړئ او كه تاسو مال غواړئ نووغواړئ خومره مال چې غواړئ دربه كول شي

[۱] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " أَطْلِقُوا ثُمَامَةَ " [۲] فَانْطَلَقَ إِلَى نَخْلٍ قَرِيبٍ مِنَ الْمَسْجِدِ، فَاغْتَسَلَ، ثُمَّ دَخَلَ الْمَسْجِدَ، [۳] فَقَالَ: أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، [۴] يَا مُحَمَّدُ! وَاللَّهِ مَا كَانَ عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ وَجْهٌ أَبْغَضَ إِلَيَّ مِنْ وَجْهِكَ، [۵] فَقَدْ أَصْبَحَ وَجْهُكَ أَحَبَّ الْوُجُوهِ كُلِّهَا إِلَيَّ، [۶] وَاللَّهِ مَا كَانَ مِنْ دِينٍ أَبْغَضَ إِلَيَّ مِنْ دِينِكَ، [۷] فَأَصْبَحَ دِينُكَ أَحَبَّ الدِّينِ كُلِّهِ إِلَيَّ،

**ترجمه:** [۱] په دي اوريدو سره رسول كريم ﷺ حكم وكى چې ثمامه دي رهاشي [۲] نو رهايي څخه وروسته ځه ويلو اوريدلو څخه بغير د كجورو هغه ګڼ باغ ته ورغلو غسل يي وكړو بيا راغې او د حضور ﷺ مخكي يي [۳] وويل أَشْهَدُ اَنْ لَّااِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ يعنى زه د ريښتيني زړه اعتراف او اقرار سره شاهدي اداكوم چې الله څخه ما سوا بل معبود نشته او شاهدي اداكوم چې محمد ﷺ د الله بنده او د هغه رسول دى [۴] بيايي اوويل اې محمد! قسم په خداى ځما په نز د زمكي په مخ ستاسو د مخ څخه زيات نفرت آنګيز هيڅ څيز نه وو يعنى ځما ستاسو د ذات څخه زيات نفرت بل هيڅ شي سره نه وو [۵] ليكن اوس ستاسو مخ مبارك ځما په نز د دنيا د ټولو مخونو څخه زيات خوږ دى [۶] قسم په خداى ځما په نزد ستاسو د دين څخه زيات نفرت آنګيز دين نه وو [۷] ليكن اوس ستاسو دين ځما په نز د ټولو دينونو څخه زيات خوږ دى

**حل اللغات:** ⑨ أَطْلِقُوا: پريږدئ. خلاص كړئ.

[۱] وَوَاللَّهِ مَا كَانَ بَلَدٌ أَبْغَضَ إِلَيَّ مِنْ بَلَدِكَ، فَأَصْبَحَ بَلَدُكَ أَحَبَّ الْبِلَادِ كُلِّهَا إِلَيَّ. [۲] وَإِنَّ خَيْلَكَ أَخَذَتْنِي وَأَنَا أُرِيدُ الْعُمْرَةَ، فَمَاذَا تَرَى؟ [۳] فَبَشَّرَهُ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، وَأَمَرَهُ أَنْ يَعْتَمِرَ، [۴] فَلَمَّا قَدِمَ مَكَّةَ، قَالَ لَهُ قَائِلٌ، أَصَبَوْتَ؟ [۵] فَقَالَ: لَا، وَلَكِنِّي أَسْلَمْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، [۶] وَلَا وَاللَّهِ لَا يَأْتِيكُمْ مِنَ الْيَمَامَةِ حَبَّةُ حِنْطَةٍ حَتَّى يَأْذَنَ فِيهَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -». رَوَاهُ مُسْلِمٌ، وَاخْتَصَرَ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او قسم په خداى ځما په نزد ستاسو د ښار څخه زيات نفرت انګيزبل هيڅ ښهر نه وو ليكن اوس زما په نزد ستاسو ښار د دنيا د ټولو ښارونو څخه ماته زيات خوږ دى [۲] بيا هغه عرض اوكړو يا رسول الله! ستاسو لښكر زه هغه وخت ګرفتار كړي وم چې ما دعمره اداء كولو د پاره مكي ته د تلو اراده كوله نو اوس تاسو ماته څه حكم راكوئ آيا زه عمري د پاره مكي ته لاړ شم يانه [۳] رسول كريم ﷺ مخكي خو بشارت وركى چې د اسلام قبلولو په وجه تاته شرف او عظمت د انسانيت حاصل شوى دى او ستا مخكني ګناهونه بخښل شويدي بيايي هغه ته د عمري كولو حكموكړو [۴] د دي څخه وروسته

ثمامه عمري كولو د پاره مكي ته ورسيدو يو ويونكي هغه ته اوويل چې ته بي دينه شوى يي ⑤ ثمامه جواب وركى نه ما د رسول كريم ﷺ په لاس مبارك اسلام قبول كړي دى زه بي دينه شوى نه يم ⑥ او يادلرئ قسم په خداى اوس به د يمامه څخه تاسو ته د غنمو يوه دانه هم نشي درليږلى ترڅوپورې چې رسول كريم ﷺ د هغه اجازت اونكړى (مسلم) دا روايت بخاري هم اختصار سره نقل كړي دى

**حل اللغات:** ⑤أَصَبَوْتَ؟: آيا ته صابى اوبددين شوې؟ ⑧حَبَّةُ حِنْطَةٍ: دانه د غنمو

**تسهيلات:**

**قوله:** بَعَثَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- خَيْلًا قِبَلَ نَجْدٍ:

**دثمامه گرفتاري:** دَ شهسوارانو يوه دسته دَ جهاد په غرض دَ نجدطرف ته روانه كړې شوې وه هغوى ثمامه گرفتاركړو چه دَ قوم سردار وو او دَ مسجدنبوى دَ ستنونه يوې ستنې پورې اوتړلې شو

**قوله:** وَإِنْ تَقْتُلْ تَقْتُلْ ذَادَمٍ:

يعنى كه ما قتل كړې نوزما بدله به اخستې شى زما وينه به ضائع كيږى نه دويم مطلب دادې چه ما قتل كړې دې مجرم يم تاسو به يومجرم قتل كړئى

**قوله:** إِنْ تُنْعِمْ: يعنى كه احسان دې اوكړواوزه دې معاف كړم نو په يوشريف زاده قدردان شكرشناس او شكركونكې سړى باندې به احسان اوكړې دړې ورځې دغه شان سوال او جواب روان وو بيا په دريمه ورځ حضورپاك دَ احسان په توگه هغه پريخودو څكه چه دَ خليفه اوامير په اختياركښې داسې خلاصول جائز دى

**قوله:** أَصَبَوْتَ؟: آيا ته صابى اوبددين شوې؟ هغه اوفرمائيل نه بلكه زه مسلمان شوې يم اوس به دَمحمد عربى ﷺ دَسفارش نه بغير دَيمامه نه دَ غلې يوه دانه هم اهل مكه له نه راځى

**[٢٩٦٥] جبير ابن مطعم رضي الله عنه ته د اسلام ترغيب**

٢٩٦٥ - [٢] (١) ①وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، ②«أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ فِي أُسَارَى بَدْرٍ ③"لَوْ كَانَ الْمُطْعِمُ بْنُ عَدِيٍّ حَيًّا، ثُمَّ كَلَّمَنِي فِي هَؤُلَاءِ النَّتْنَى لَتَرَكْتُهُمْ لَهُ»" رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① او جبير ابن مطعم رضي الله عنه وايي ② رسول كريم ﷺ د جنگ بدر د قيديانو په باره كې وفرمايل ③ كه مطعم ابن عدي ژوندى وى او مانه يي د دې ناپاكو قيديانو په حق كې سفارش كړي وې نومابه دا قيديان دمطعم په سفارش (رهاكړي وى) پريښى وى (بخاري)

**حل اللغات:** ①النَّتْنَى: ناپاكه. بدبويه.

(١) اخرجه البخارى فى كتاب فرض الخمس/باب ما منّ النبىّ صلّى الله عليه وسلّم على الأسارى من غير أن يخمّس (رقم-٣١٣٩) و ابو داود فى كتاب الجهاد/باب فى النّهى أن يفدّ الـسّير بين إصبعين (رقم-٢٥٨٩) واحمد فى المسند: ٨٠/٤

**تسهيلات:**

**قوله: وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ:**

**د حالت كفر سماع په حالت اسلام كښې نقل كول:** حضرت جبير رضی الله عنه د دې حديث راوی دې مګر کوم وخت چه هغوی دا حديث اوريدلې دې هغه وخت هغه مسلمان نه وو بلکه په جنګ بدر کښې د نورو کافرانوسره ګرفتارشوې وو حديث خوئی په حالت د کفرکښې اوريدلې دې مګر بيان ئی په حالت د اسلام کښې کوی

**دمعطم بن عدی پيژندګلو:** دهغوی د پلار نوم مطعم بن عدی وو هغه دکفرپه حالت کښې مړشوې وو مطعم بن عدی هغه سړې وو چاچه حضورپاك ته د طائف نه په واپسئ باندې پناه ورکړې وه اوحضورپاك ئی خپل ځان سره مکه مکرمه کښې خپله داخل کړې وو چونکه هغه لوئی احسان کړې وو په دې وجه حضورپاك ﴿هَلْ جَزَآءُ الْإِحْسَانِ إِلَّا الْإِحْسَانُ﴾ په توګه باندې اوفرمائيل چه که نن مطعم ژوندې وې اود بدر د دې بدبوئی داره مشرکانو قيديانو په باره کښې ئی ماته سفارش کړې وې نودهغوی د خاطره به مې ټول پريخودې وې

**[٢٩٦٦] په حديبيه كښې د نيولى شوى كافرانو پريخودل**

٣٩٦٦-[٧] (١) ١وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، ٢«أَنَّ ثَمَانِينَ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ هَبَطُوا عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنْ جَبَلِ التَّنْعِيمِ مُتَسَلِّحِينَ، ٣يُرِيدُونَ غِرَّةَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَأَصْحَابِهِ، ٤فَأَخَذَهُمْ سِلْمًا، فَاسْتَحْيَاهُمْ. ٥وَفِي رِوَايَةٍ: فَأَعْتَقَهُمْ، فَأَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالَى ﴿وَهُوَ الَّذِي كَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ عَنْهُمْ بِبَطْنِ مَكَّةَ﴾ [الفتح: ٢٤]». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١حضرت انس رضی الله عنه راوي دی ٢د صلح حديبيه په کال د نبي کريم ﷺ خلاف د مکې اتيا سړي هتيار اخستو سره د تنعيم د غر څخه راکوز شولو ٣د هغوی اراده داوه چې نبي کريم ﷺ او د هغوی صحابه رضی الله عنهم باندې ناڅاپي حمله کولو سره هغوی ته نقصان ورسوی ٤ليکن حضور ﷺ جنګ څخه بغير هغوی ټول بې بس او ذليل کولو سره ګرفتار کړل او بيا هغوی يې ژوندي پريښودل ٥او په يو روايت کې داسې دي او بيا هغوی رها شو په دې سره الله ﷻ دا آيت نازل کړو وَهُوَ الَّذِي كَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ عَنْهُمْ بِبَطْنِ مَكَّةَ او هغه الله داسې دی چې هغه د مکې اطرافو کې د کفارو لاسونه ستاسو خلاف او ستاسو لاسونه د هغوی خلاف بند کړل (مسلم)

---

[1]) اخرجه مسلم فى كتاب الجهاد والسير/باب قول الله تعالى: {وهو الذى كف أيديهم عنكم} [الفتح: ٢٤] الآية (رقم-١٣٣ - (١٨٠٨) و ابو داود فى كتاب الجهاد . باب فى المن على الأسير بغير فداء (رقم-٢٦٨٨) والترمذى فى كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة الفتح (رقم-٣٢٦٤) واحمد فى المسند:٣/١٢٤

**حل اللغات:** ① هَبَطُوا: راکوز شول، ② مُتَسَلِّحِينَ: وسله ، جنګی سامان راخستونکی، ③ غِرَّةً: ناخاپی حمله، ④ سِلْمًا: بغیر د جنګ نه، ⑤ اسْتَحْيَاهُمْ: ژوندی ئې پریخودل، آزاد ئې کړل.

**تسهیلات:**

**نوټ:** د حدیث د ترجمې څخه مطلب واضح دي.

**[۲۹٦۷] په بدر کښې مړه شوو مشرکانو ته خطاب**

۳۹٦۷ــ[۸] (١) [١] وَعَنْ قَتَادَةَ قَالَ ذَكَرَ لَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَنْ أَبِي طَلْحَةَ، [٢] «أَنَّ نَبِيَّ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَمَرَ يَوْمَ بَدْرٍ بِأَرْبَعَةٍ وَعِشْرِينَ رَجُلًا مِنْ صَنَادِيدِ قُرَيْشٍ [٣] فَقُذِفُوا فِي طَوِيٍّ مِنْ أَطْوَاءِ بَدْرٍ خَبِيثٍ مُخْبِثٍ [٤] وَكَانَ إِذَا ظَهَرَ عَلَى قَوْمٍ أَقَامَ بِالْعَرْصَةِ ثَلَاثَ لَيَالٍ [٥] فَلَمَّا كَانَ بِبَدْرٍ الْيَوْمَ الثَّالِثَ أَمَرَ بِرَاحِلَتِهِ فَشُدَّ عَلَيْهَا رَحْلُهَا، ثُمَّ مَشَى وَاتَّبَعَهُ أَصْحَابُهُ [٦] حَتَّى قَامَ عَلَى شَفَةِ الرَّكِيِّ فَجَعَلَ يُنَادِيهِمْ بِأَسْمَائِهِمْ يَا فُلَانُ بْنَ فُلَانٍ;

**ترجمه:** [١] او قتاده رحمه الله وايي چې انس بن مالك رضي الله عنه د ابوطلحه رضي الله عنه حوالي سره زمونږ مخکې دا بیان وکړو [٢] چې د الله نبي ﷺ د بدر د جنګ په ورځ دمکې د قریشو د کفارو څلورویشت مقتولین سردارانو په باره کې حکم وکی [٣] چې هغوی دې خپلې ټیکاونې ته ورسول شی نو د هغوی مړي د بدر په یوداسې کوهي کې وغورځول شوه چې ناپاك ووا وناپاك کونکی وو [٤] د رسول کریم ﷺ دا عادت وو چې کله حضور ﷺ یوقوم [یعنی دښمنانو باندې غلبه او فتحه راله نو هغه د جنګ په میدان کې به یې درې شپې قیام فرمایلو] د دې عادت مطابق حضور ﷺ د جنګ ګټلو څخه وروسته د بدر د جنګ په میدان کې هم درې شپې قیام وکی [٥] او هرکله چې درې ورځې تیرې شوی نو حضور ﷺ د خپلې سورلی اوښې باندې د کجاوې تړلو حکم وکی کجاوه وتړل شوه او حضور ﷺ د هغه ځای څخه روان شو او صحابه رضي الله عنهم هم ورپسې روان شول [٦] هرکله چې هغه کوهي ته ورسیدو چې په هغه کې د قریشو د سردارانو مړي غورځول شوي وه نو حضور ﷺ د هغه کوهي په غاړه اودریدلو اودهغه سردارانو او د هغوی د پلرونو نومونه اخستل یې شروع کړل چې اې فلان ابن فلان او اې فلان ابن فلان اوبیا هغوی مخاطب کولو سره یې وفرمایل

**حل اللغات:** ① صَنَادِيدِ: دَ صندید جمع ده أشراف اوسردار ته وائی. ② فَقُذِفُوا: نو اوغورزولی شو. ③ طَوِيٍّ: کوهی. ④ خَبِيثٍ: ناپاک. ⑤ مُخْبِثٍ: ناپاکه کونکې. ⑥ الْعَرْصَةِ: صحن (دجنګ میدان). ⑦ شَفَةِ الرَّكِيِّ: دکوهی غاړه.

[١] أَيَسُرُّكُمْ أَنَّكُمْ أَطَعْتُمُ اللهَ وَرَسُولَهُ فَإِنَّا قَدْ وَجَدْنَا مَا وَعَدَنَا رَبُّنَا حَقًّا فَهَلْ وَجَدْتُمْ مَا وَعَدَ رَبُّكُمْ حَقًّا [٢] فَقَالَ عُمَرُ يَا رَسُولَ اللهِ مَا تُكَلِّمُ مِنْ أَجْسَادٍ لَا أَرْوَاحَ لَهَا [٣] قَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ

---

(١) اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب قتل أبی جهل (رقم-۳۹۷٦) ومسلم فی کتاب الجنّة وصفة نعیمها وأهلها/باب عرض مقعد المیّت من الجنّة أو النّار علیه، وإثبات عذاب القبر والتعوّذ منه(رقم-۷۸ - (۲۸۷۵) واحمد فی المسند: ۱٤۵/۳

مَا أَنْتُمْ بِأَسْمَعَ لِمَا أَقُولُ مِنْهُمْ ۴ وَفِي رِوَايَةٍ مَا أَنْتُمْ بِأَسْمَعَ مِنْهُمْ وَلَكِنْ لَا يُجِيبُونَ. ۵ مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ وَزَادَ الْبُخَارِيُّ قَالَ قَتَادَةُ أَحْيَاهُمُ اللهُ حَتَّى أَسْمَعَهُمْ قَوْلَهُ تَوْبِيخًا وَتَصْغِيرًا وَنِقْمَةً وَحَسْرَةً وَنَدَمًا».

**ترجمه:** ۱ چې آيا اوس تاسو ته دابنه معلومېږي چې تاسو د الله او د هغه د رسول اطاعت کړي وې بيشکه مونږ ته خو هغه څيز معلوم شو چې د هغه زمونږ سره زمونږ رب قطعي وعده کړي وه [يعنی ستاسو په مقابله کې زمونږ فتح او باطل طاقتونو باندې زمونږ غلبه] او آيا تاسو هم هغه څيز پيدا کړو چې د هغه ستاسو پروردګار ستاسو سره قطعي وعده کړي وه [يعنی ستاسو د عذاب مطلب داچې مونږ ته خو د الله د وعدې مطابق فتح او کاميابي حاصله شوه آيا تاسو ته هم عذاب حاصل شو چې د هغه څخه ستاسو پروردګار تاسو بيرولي وئ ګويا د حضور ﷺ داسوال د زجر او توبيخ د مخه وو] ۲ حضرت عمر رضی الله عنه عرض اوکړو يارسول الله! آيا تاسو داسې جسمونه مخاطب کوئ چې په هغوی کې رحونه نشته ۳ رسول کريم ﷺ ورته وفرمايل قسم دی په هغه ذات چې د هغه په لاس کې د محمد ﷺ ساه ده دي جسمونو ته چې زه څه وايم ته د هغه زيات اوريدونکی نه يې ۴ او په يو رايت کې داسې دي ته د دوئ څخه زيات اوريدونکی نه يې ليکن فرق صرف دومره دی چې ته جواب ورکولو باندې قادر يې او دوئ جواب نشي ورکولی. ۵ (بخاري مسلم) بخاري رحمه الله داهم نقل کړي دی قتاده رحمه الله وفرمايل الله تعالی هغه سرداران د قريشو د حضور ﷺ د خطاب په وخت ژوندی کړي وو چې د حضور ﷺ خبره واوري چې دهغه سره په دې دنيا کې د حضور ﷺ په مخکې هغوی ته سرزنش وشو او هغوی ذلت خواري عذاب افسوس او پښيماني محسوس کړله.

**حل اللغات:** ۸ تَوْبِيخًا: دپاره د رټلواو ملامته کولو، ۹ وَتَصْغِيرًا: دپاره د ذليل کولو، ۱۰ وَنِقْمَةً: پښيمانه کول.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَقُذِفُوا فِي طَوِيٍّ مِنْ أَطْوَاءِ بَدْرٍ خَبِيثٍ مُخْبِثٍ:

**په طوی او قليب کښې فرق:** آباد کوهی ته وائی اوقليب هغه کوهی ته وائی کوم چه وران او شاړ وی. راويانو زيات خيال نه دې کړې نو دَ طوی لفظ هم بعضې راويانو ذکرکړې دې او بعضو دَ قليب لفظ استعمال کړو لږ شان فرق دې چا خيال نه دې کړې. دَ بدر کوهی وران او شاړ وو.

**قوله:** فَجَعَلَ يُنَادِيهِمْ: دَ تبکيت اوتذليل، توهين، تحقير اوتخسير په غرض حضورپاک دَ قريشو سردارانو سره دا خبرې اترې کړی دی. حضرت حسان رضی الله عنه دغه منظر په خپلو اشعارو کښې داسې بيان کړې دې:

فغادرنا أبا جهل صريعا وعتبة قد تركنا بالجبوب
وشيبة قد تركنا في رجال ذوي حسب اذا نسبوا النسيب
ينا ديهم رسول الله لما قذفناهم كباكب في القليب
الم تجدوا كلامي كان حقا وامر الله يأخذ بالقلوب
فما نطقوا ولو نطقوا لقالوا اصبت وكنت ذا رأي مصيب

**ترجمه** مونږ ابوجهل پرمخې غورزولو سره پريخودو او عتبه هم مونږ په کانړيزه زمکه باندې پريخودو. اوشيبه مونږ داسې خلقو سره قتل کړو او پريخودو چه دَ لوئی حسب نسب والا وو. رسول الله ﷺ هغوی ته هغه وخت آواز ورکولوکوم وخت چه مونږ هغوی گنده کوهی کښې شکته پورته غورزولو سره پريخودې وو حضورپاك اوفرمائيل چه آيا تاسو زما خبره رښتيا اوموندله؟ حالانکه دَ الله تعالی حکم په زړونو کښې ورکوزيږی کافرانودَ قريشو خبره اونه کړه که چرې هغوی جواب ورکولې شوې نوهم دا به ئی وئيل چه تاسو رښتيا وئيلې وو اوستاسو رائې صحيح وه.

**نوټ**: د سماع موتی وړاندې تفصيل سره تيره شوې ده

**[٣٩٦٨] وفد هوازن ته د دوو خبرو اختيار ورکول**

٣٩٦٨ــ[٩] (١) [١]وَعَنْ مَرْوَانَ وَالْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ، [٢]«أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَامَ حِينَ جَاءَهُ وَفْدُ هَوَازِنَ مُسْلِمِينَ [٣]فَسَأَلُوهُ أَنْ يَرُدَّ إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ وَسَبْيَهُمْ [٤]فَقَالَ فَاخْتَارُوا إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ إِمَّا السَّبْيَ وَإِمَّا الْمَالَ [٥]قَالُوا فَإِنَّا نَخْتَارُ سَبْيَنَا [٦]فَقَامَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَأَثْنَى عَلَى اللهِ بِمَا هُوَ أَهْلُهُ،

**ترجمه**: [١]ومروان او مسور ابن مخرمه راويان دي [٢]چې رسول کريم ﷺ هغه وخت خطبه ارشاد فرمايلو د پاره اودريدلو کوم وخت چې قبيله هوازن خلق اسلام قبلولو څخه وروسته د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شول [٣]او هغوئ حضور ﷺ ته داعرض اوکړو چې د هغوی مال او قيديان واپس ورکړي [٤]حضور ﷺ هغوی ته وفرمايل په دوو څيزونو کې يو څيز اختيار کئ يا خوبه قيديان رها شي يا مال واپس واخلئ [٥]هغوی عرض اوکړو مونږ خپل قيديان رها کول خوښوو [٦]بيا رسول کريم ﷺ د صحابه ﷺ مخکې خطبه وفرمايله مخکې حضور ﷺ د الله ﷻ حمد او ثناء بيان کړه چې د هغه هغه مستحق دی

[١]ثُمَّ قَالَ أَمَّا بَعْدُ فَإِنَّ إِخْوَانَكُمْ قَدْ جَاءُوا تَائِبِينَ [٢]وَإِنِّي قَدْ رَأَيْتُ أَنْ أَرُدَّ إِلَيْهِمْ سَبْيَهُمْ [٣]فَمَنْ أَحَبَّ مِنْكُمْ أَنْ يُطَيِّبَ ذَلِكَ فَلْيَفْعَلْ [٤]وَمَنْ أَحَبَّ مِنْكُمْ أَنْ يَكُونَ عَلَى حَظِّهِ [٥]حَتَّى نُعْطِيَهُ إِيَّاهُ مِنْ أَوَّلِ مَنْ يَفِيءُ اللهُ عَلَيْنَا

(١) اخرجه البخاري في كتاب الإجارة /باب إذا وهب شيئا لوكيل أو شفيع قوم جاز (رقم-٢٣٠٧) و ابو داود في كتاب الجهاد ، باب في فداء الأسير بالمال (رقم-٢٦٩٣)واحمد في المسند: ٤/ ٣٢٧

فَلْيَفْعَلْ[٦] فَقَالَ النَّاسُ قَدْ طَيَّبْنَا ذٰلِكَ يَارَسُولَ اللّٰهِ

**ترجمه:**[١] بيايي وفرمايل د دې څخه وروسته د دې قبيله هوازن خلق چې ستاسو ديني يانسبي ورونه دي دخپل كفر څخه توبه كولو سره او مسلمانيدو سره تاسو ته راغلي دي [٢] ما داخيز مناسب ګڼلى دى چې د دوي قيديان واپس وركړم [٣] نو په تاسو كې چې كوم سړى خوښي سره قيديان واپس كول غواړي هغوى دي داسې وكړي يعنى هغه سره چې كوم قيديان دي هغه دي واپس راكړي [٤] او كوم سړى چې خپلي حصي باندې قائم اوسيدل غواړي [٥] نو هغه وخته پورې چې مونږ هغه ته د هغه عوض د هغه مخكې راتلونكى مال څخه ور كړو كوم چې الله ﷻ مونږ ته د غنيمت په طور راكړي نو هغه دي داسې وكړي ايعنى كوم سړى چې د خپلي حصي قيديان بغير معاوضه وركول نه غواړي نو هغه دي مونږ ته وښايي چې هغه به څه معاوضه آخلي چې مونږ دا انتظام وكو چې اوس چرته مخكې د غنيمت مال راشي د هغه څخه د هغه هغه معاوضه اداء شي [٦] خلقو يعنى صحابه ﷺ وو يا بلا امتياز ټولو صحابه وُ ﷺ عرض اوكړو يارسول الله مونږ په دي يعنى د قيديانو په واپس دركولو په خوښى سره آماده يو

**حل اللغات:** ① عَلَى حَظِّهِ: په حصه باندې، معاوضه باندې.

[١] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِنَّا لَا نَدْرِي مَنْ أَذِنَ مِنْكُمْ مِمَّنْ لَمْ يَأْذَنْ [٢] فَارْجِعُوا حَتَّى يَرْفَعَ إِلَيْنَا عُرَفَاؤُكُمْ أَمْرَكُمْ [٣] فَرَجَعَ النَّاسُ فَكَلَّمَهُمْ عُرَفَاؤُهُمْ، [٤] ثُمَّ رَجَعُوا إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَأَخْبَرُوهُ أَنَّهُمْ قَدْ طَيَّبُوا وَأَذِنُوا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] رسول كريم ﷺ وفرمايل مونږ ته دي مجمع كې دانشي معلوميدى چې په تاسو كې كوم سړى راضي دى او كوم سړى راضي نه دى د دې فرق نشي كيدى [٢] نو تاسو ټول خلق خپل خپل كورته واپس لاړ شئ او خپل خاندان او د قبيلي د سردارانو څخه په دي باره كې مشوره واخلي تردي چې ستاسو هغه سرداران تفصيل سره زمونږ په مخكې تاسو فيصله پيش كړو [٣] نو ټول خپلو كورونو ته واپس ولاړل او هركله چې د هغوى سردارانو د هغوى سره خبري اترې وكړي [٤] نو هغه خلق د حضور ﷺ په خدمت كې واپس راغلل او حضور ﷺ ته يې وښودل چې هغوى د قيديانو واپس وركولو باندې راضي دي او هغوى د دې امر اجازت وركړي دى

**حل اللغات:** ② طَيَّبُوا: راضى دى. ③ أَذِنُوا: اجازت ئې وركړې دې

**تسهيلات:**

**قوله:** فَسَأَلُوهُ أَنْ يَرُدَّ إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ وَسَبْيَهُمْ:

**دجنګ حنين مال غنيمت:** په جنګ حنين كښې شپږ زره انسانان قيد شوې وو په كوم كښې چه ماشومان هم وو ښځې هم وې اوبوډاګان اوځوانان هم وو. حضورپاك دَ غنائمو

په تقسیم کښې کافی تاخیراوکړو دې دپاره چه دَ هوازن خلق دَ مذاکراتودپاره راشی. هغه خلق ډیر تاخیرسره راغلل لیکن داسې قصیدې ئې اووئیلې چه خلق ئې اوژړول. حضورپاك اوفرمائیل چه اوس دَ غنائمو مالونه تقسیم شوی دی. اوس تاسو په دوو خبروکښې یوه خبره خوښه کړئی یا مال واپس واخلئی یا مال پریږدئی خپل قیدیان واپس کړئی. هغوی خلقو اووئیل چه مونږ خپل انسانان واپس کول غواړو.

**قوله:** أَمَّا بَعْدُ فَإِنَّ إِخْوَانَكُمْ قَدْ جَاءُوا تَائِبِينَ:

**د نبی علیه السلام مدبرانه فیصله:** رسول الله ﷺ دَ صحابه کرامو په وړاندې یوه خطبه اووئیله او وئی فرمائیل چه دَهوازن خلق مسلمانان شوی دی او راغلی دی. اوس دَ دوی قیدیان چه څوك په خوشحالئی سره واپس کول غواړی واپس دې کړی اوڅوك چه نه واپس کول غواړی هغوی دې هم قیدیان واپس کړی. مگر هغوی دې دَ خپل قیدی په بدله کښې زمونږ نه بیاغلام واخلی. صحابه کرامو وئیل مونږ په واپس کولوباندې راضی یو. حضورپاك اوفرمائیل چه مونږ ته نه ده معلومه چه څوك خوشحال دې اوڅوك خوشحال نه دې. تاسو دَخپلې قبیلې سردارانوسره خبره اوکړئی. سردارانوهم دَ خوشحالئی اظهاراوکړو نوبیا ټول قیدیان واپس کړې شو اومالونه تقسیم شو په کوم کښې چه څلویښت زره چیلئی وې څلیریش زره اوښان وو اوڅلور زره اوقیه په لاس کښې راغلی وو.

## [۲۹۶۹] دقیدیانوتبادله

۲۹۶۹—[۱۰] ([1]) ①وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ②: «كَانَ ثَقِيفُ حَلِيفًا لِبَنِي عُقَيْلٍ ③فَأَسَرَتْ ثَقِيفُ رَجُلَيْنِ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ④وَأَسَرَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَجُلًا مِنْ بَنِي عُقَيْلٍ ⑤فَأَوْثَقُوهُ فَطَرَحُوهُ فِي الْحَرَّةِ ⑥فَمَرَّ بِهِ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَنَادَاهُ يَا مُحَمَّدُ يَا مُحَمَّدُ فِيمَ أُخِذْتُ

**ترجمه:** ①او عمران رضی الله عنه بن حصین وایي ②قبیله ثقیف د بنو عقیل حلیف وو. ③کوم وخت چې د قبیله ثقیف خلقو د رسول کریم ﷺ صحابه گرفتار کړل ④نو د رسول کریم ﷺ صحابه رضی الله عنهم وو د بنو عقیل یو سړی گرفتار کی ⑤او هغه یي مضبوطي ستن سره تړلو سره حرّه [کاڼریجنه زمکه] کې وغورځوی ⑥رسول کریم ﷺ د اخوا څخه تیر شو نو هغه قیدي ورته آواز وکی محمد ﷺ محمد ﷺ ! زه په کوم جرم کې گرفتار شوی یم

**حل اللغات:** ① حَلِيفًا: دجنگ بندئ لوظ کونکی، معاهده کونکی، ② أَسَرَتْ: قید کړل، ③ طَرَحُوهُ: وئې غورزولوهغه،

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب النّذر/باب لا وفاء لنذر فی معصیة الله، ولا فیما لا یملک العبد (رقم-۸ - (۱۶۴۱) و ابو داود فی کتاب الأیمان والنّذور/باب فی النّذر فیما لا یملک (رقم-۳۳۱۶) واحمد فی المسند: ۴/۴۳۰

[١] قَالَ بِجَرِيرَةِ حُلَفَائِكُمْ ثَقِيفٍ [٢] فَتَرَكَهُ وَمَضَى [٣] فَنَادَاهُ يَا مُحَمَّدُ يَا مُحَمَّدُ فَرَحِمَهُ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٤] فَرَجَعَ وَقَالَ مَا شَأْنُكَ [٥] قَالَ إِنِّي مُسْلِمٌ [٦] فَقَالَ لَوْ قُلْتَهَا وَأَنْتَ تَمْلِكُ أَمْرَكَ أَفْلَحْتَ كُلَّ الْفَلَاحِ [٧] قَالَ فَفَدَاهُ رَسُولُ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِالرَّجُلَيْنِ اللَّذَيْنِ أَسَرَتْهُمَا ثَقِيفٌ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] حضور ﷺ ورته وفرمایل د خپل حلیف قبیله ثقیف د خلقو په جرم کې یعنی د قبیله ثقیف خلقو زمونږ دوه مسلمانان نیولي دي د هغوی په بدله کې ته نیول شوی یې [٢] په دې ویلو سره حضور ﷺ هغه په خپل حال یعنی په هغه ځای کې پرېښودی او په مخکې لاړل هغه [٣] بیا حضور ﷺ ته اواز وکی محمد ﷺ محمد ﷺ! [٤] د رسول کریم ﷺ په هغه رحم راغلو حضور ﷺ هغه ته واپس راغلو او ورته وې وفرمایل ته په کوم حال کې یې [٥] هغه اوویل زه مسلمان یم [٦] حضور ﷺ ورته وفرمایل کاشکې چې تا داخبره هغه وخت کړې وو هرکله چې ته د خپل اختیار مالك وې [یعنی ته چې د قید کیدو څخه مخکې په ځان دې اختیار لری او په تاڅه دباؤ نه وو] که هغه وخت په طریقه د رغبت دې داویلي وی چې زه مسلمان یم نو تابه نجات پیداکړې وو کامل نجات [یعنی په دنیا کې خو به دې دا نجات پیداکړې وو چې قید شوی به نه وی او په آخرت کې به دې د دوزخ د عذاب څخه خلاصون پیداکړې وو] [٧] راوي وایي د دې څخه وروسته رسول کریم ﷺ هغه د هغه دوو سړو په بدله کې چې ثقیف گرفتار کړې وو، پرېښودلو. (مسلم)

**حل اللغات:** ⑫ جَرِيرَةِ: په جرم کنبې، ⑬ أَفْلَحْتَ: ته به کامیاب وې، ⑭ فَفَدَاهُ: نو پرېخودلو هغه،

**تسهیلات:**

**قوله:** قَالَ بِجَرِيرَةِ حُلَفَائِكُمْ ثَقِيفٍ فَتَرَكَهُ:

**د قیدیانو د بدلون فیصله:** په معاهده معاقده اومحالفه کنبې به داسې کیدل چه دَ یو بل په بنه او بدو کنبې به دواړه برابر شریکیدل. بنوثقیف اوبنوعقیل دَ یو بل معاهدوو بنوثقیف دَ صحابه کرامو نه دوه کسان قید کړې وو. صحابه کرامو دَ بنوعقیل یو سړې گرفتار کړو اوئې تړلو په گرمو شگوباندې ئې واچولو. حضورپاك هلته تیریدلو نوهغه قیدی آواز ورکړوچه زه ئې په کوم جرم کنبې گرفتارکړې یم؟ حضورپاك جواب ورکړو ستاسو دَمعاهد بنوثقیف په جرم کنبې ته راگیرکړې شوې ئې هغوی زمونږ دوه کسان گرفتارکړی دی. بله ورځ دغه سړی بیا آواز ورکړو زه مسلمان شوې یم. حضورپاك اوفرمائیل چه که اول دې اسلام راوړلې وې نو یوه خبره وه اوس خو ته دَنفاق په توگه هم وئیلې شې چه زه مسلمان یم دې دَپاره چه تاته آزادی ملاؤشی. دې نه پس حضورپاك دَخپلو دوو صحابه کرامو په بدله کنبې دا سړې پرېخودو. په دې حدیث سره دَقیدیانو دَ بدلون تعلیم ملاؤشو.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۲۹۷۰] د جنګ بدر د قیدیانو څخه د ابو العاص د پرېښودو واقعه**

۲۹۷۰-[۱۱] ()[۱] عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ[۲]: «لَمَّا بَعَثَ أَهْلُ مَكَّةَ فِي فِدَاءِ أُسَرَائِهِمْ[۳] بَعَثَتْ زَيْنَبُ فِي فِدَاءِ أَبِي الْعَاصِ بِمَالٍ[۴] وَبَعَثَتْ فِيهِ بِقِلَادَةٍ لَهَا كَانَتْ عِنْدَ خَدِيجَةَ أَدْخَلَتْهَا بِهَا عَلَى أَبِي الْعَاصِ[۵] فَلَمَّا رَآهَا رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-رَقَّ لَهَا رِقَّةً شَدِيدَةً[۶] وَقَالَ إِنْ رَأَيْتُمْ أَنْ تُطْلِقُوا لَهَا أَسِيرَهَا وَتَرُدُّوا عَلَيْهَا الَّذِي لَهَا فَقَالُوا نَعَمْ

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه رضي الله عنها وايي [۲] د بدر په جنګ کې چې الله ﷻ حضور ﷺ ته د مکي کفارو باندې غلبه او فتح ورکړله او په هغوی کې څه خو قتل شو او څه قیدي جوړ ولو سره مدیني ته راوستل شو بیا حضور ﷺ د هغوی د رهایي په بدله کې مال طلب کی نو اهل مکه د هغوی د رهایي خلاصون په بدله کې معاوضه ولیږله [۳] د حضور ﷺ نور مبارکه بي بي زینب رضي الله عنها هم د خپل خاوند ابو العاص د رهایي په بدله کې څه مال ولیږلو [۴] چې په هغه کې د هغه هغه هار هم وو کوم چې مخکې بي بي خدیجي رضي الله عنها سره وو او خپلي لور بي بي زینب رضي الله عنها ته یې دابو العاص سره د نکاح په وخت داخ جهیز کې ورکړي وو [۵] رسول کریم ﷺ چې هغه هار ولیدلو نو بي بي زینب رضي الله عنها د پاره د حضور ﷺ زړه مبارک ډیر نرم شو [یعنی هغه وخت د خپلي لور بي بي زینب رضي الله عنها د غربت او تنهایي احساس کولو سره او د بي بي خدیجي رضي الله عنها د جدایي یا د تازه کېدو په وجه چې د هغه په ښت کې به داهار وو د حضور ﷺ په زړه مبارک جوش راغلی] [۶] او حضور ﷺ صحابه و رضي الله عنهم ته وفرمایل که تاسو مناسب ګڼی نو د زینب رضي الله عنها د خاطره ابو العاص قیدي بلامعاوضه رها کی او زینب رضي الله عنها ته د هغه ټول څیزونه چې هغه د ابو العاص د رهایي د پاره رالیږلی دی واپس راکی صحابه و رضي الله عنهم عرض اوکړو ښه ده چې مونږ د بي بي زینب رضي الله عنها مال واپس ورکولو سره ابو العاص بلا معاوضه رها کوو نو ابو العاص آزاد شو

**حل اللغات:** ① فِدَاء: دقیدی آزادولو فدیه. ② قِلَادَة: هار، امیل. ③ رَقَّ: نرم شو.

[۱] وَكَانَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-أَخَذَ عَلَيْهِ أَنْ يُخَلِّيَ سَبِيلَ زَيْنَبَ إِلَيْهِ[۲] وَبَعَثَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-زَيْدَ بْنَ حَارِثَةَ وَرَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ[۳] فَقَالَ كُونَا بِبَطْنِ يَأْجَجَ حَتَّى تَمُرَّ بِكُمَا زَيْنَبُ فَتَصْحَبَاهَا حَتَّى تَأْتِيَا بِهَا». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او د رهایي په وخت حضور ﷺ د ابو العاص څخه دا عهد او وعده واخستله چې هغه حضور ﷺ ته د زینب رضي الله عنها د راتلو په لار کې خنډ جوړنشي یعنی حضور ﷺ د ابو العاص درها کولو په وخت هغه ته اوویل دا پخه وعده وکړه چې مکي ته رسیدو سره

() اخرجه ابوداود في السنن كتاب الجهاد، باب في فداء الأسير بالمال (رقم-۲۶۹۲) واحمد في المسند: ۲۷۶/۶

به زينب رضي الله عنها ماته مديني ته راليږلو او د هغه په لار کې به خند کيږي نه ۲ بيا رسول کريم ﷺ زيد ابن حارثه رضي الله عنه او په انصارو کې يو سړی مکې ته وليږلو ۳ او هغوی ته يې اوويل تاسو خلق بطن ياجج کې ايسار شي هرکله چې زينب رضي الله عنها د مکې څخه روانيدو سره هلته تاسو ته راشي نو تاسو د هغه سره شئ او مديني ته يې راولئ (احمد ابوداود)

**حل اللغات:** ④ يَأْجَجَ: دمکې په لار کښې يوه وادی ده، ⑤ فَتَصْحَبَاهَا: نو تاسو دهغې ملګری شئ.

**تسهيلات:**

**قوله: بَعَثَتْ زَيْنَبُ فِي فِدَاءِ أَبِي الْعَاصِ بِمَالٍ:**

**د ابوالعاص د خلاصولو دپاره د زينب هار راليږل:** ابوالعاص دحضورپاك خوم وو دده په نکاح کښې حضرت زينب رضي الله عنها وه. حضرت زينب رضي الله عنها د خپل خاوند دراخلاصولو دپاره هغه هار اوليږلو کوم هار چه د رخصتئي په وخت حضرت خديجة الکبرى رضي الله عنها هغې ته ورکړې وو. حضورپاك چه کله دا هار اوليدلو نو زوړ وخت ورته رايادشو. په حضورپاك باندې د ژړا کيفيت راغې اوحضورپاك خپلو صحابه کرامو ته اوفرمائيل چه که زماد لور هار هم واپس کړې شی اوقيدی هم پريخودې شی نو ښه به وی.

**بغير عوضه د ابوالعاص آزادول:** صحابه کرامو دا خبره خوښه کړه اوحضورپاك ابوالعاص سره دا شرط اولګولو چه زما لور مدينې ته روانه کړه. چنانچه ابوالعاص وفاداری اوکړه او د بطن يا جج په مقام باندې ئې حضرت زينب رضي الله عنها دوو صحابه کراموته حواله کړه اوصحابه کرامودا مدينې ته بوتله. په دوی کښې يو دحضورپاك په ځوئی نيولې زيدبن حارثه وو. د دې حديث نه معلومه شوه چه دين يو مضبوط نظام دې اود دې د آبادولو دپاره ډيرې لوئی قربانئی ورکړې شوی دی.

### [۳۹۷۱] د جنګ بدر قتل شوي قيديان

٣–[١٢] (١) وَعَنْهَا «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَمَّا أَسَرَ أَهْلَ بَدْرٍ قَتَلَ عُقْبَةَ بْنَ أَبِي مُعَيْطٍ وَالنَّضْرَ بْنَ الْحَارِثِ وَمَنَّ عَلَى أَبِي عَزَّةَ الْجُمَحِيِّ.» رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

او بي بي عائشه رضي الله عنها راويه ده چې رسول کريم ﷺ د بدر په جنګ کې د مجاهدينو خلاف جنګيدونکو کوم کفار قيد کړي وو په هغوی کې عقبه ابن ابي معيط او نضر ابن حارث يې قتل کړه او ابو عزه جمحي يې آزاد کولو سره ممنون کی

**حل اللغات:** ① أَسَرَ: قيد کړی وو. ② وَمَنَّ: او آزاد ئې کړو. خلاص ئې کړو.

(١) اخرجه البغوى فى شرح السنة رقم الحديث ٢٧١١

**تسهيلات:**

**قوله: لَمَّا أَسَرَ أَهْلَ بَدْرٍ:**

**د درې کافرانو پیژندګلو:**

① عقبه بن ابی معیط هغه بدبخت وو چه حضورپاك ته ئې په مکه مکرمه کښې سخت تکلیف رسولې وو. عقبه دَ اوچتې درجې بې وقوف اودَابوجهل یوکارخاص او چمچه وه هغه څوځل په حضورپاك باندې لاس اوچت کړې وو او په بدن باندې ئې ورته ګندګی اچولې وه. دې په جنګ بدر کښې قید کړې شوې وو اوقتل کړې شو

② نضر بن حارث دَ قرآن دښمن وو اودوی پورې به ئې توقې مسخرې کولې. اودا په یې وئیل محمد(صلی الله علیه وسلم) تاسو ته د عادیانو اوثمودیانو قصې کوی راځې زه تاسو ته دهغې څخه ښکلې قصې کوم دغه شان د نبی علیه السلام په مذمت کښې به ئې اشعار وئیلو او وینزې به یې ګرولې. دې په جنګ بدر کښې قید کړې شوې وو اوقتل کړې شو

③ ابوعزه جمحی شاعروو دې هم په جنګ بدر کښې ګرفتارشوې وو خو دې نبی علیه السلام په دې شرط باندې خلاص کړو چه بیابه دَ مسلمانانو خلاف نه لاس استعمالوی اونه ژبه. دا بدبخت بیا دَاحدمیدان ته راغلو او بیا په لار کښې راګیرکړې شو اودَ ګرفتارئی نه پس حضورپاك دَده دَقتلولو حکم ورکړو او وئی فرمائیل چه مسلمان دَ یوې سورې نه دوه ځل نه شی چیچلې.

**[۳۹۷۲] عقبه بن ابی معیط ته د نبی علیه السلام جواب**

٣٩٧٢-[١٣] (١) وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لَمَّا أَرَادَ قَتْلَ عُقْبَةَ بْنَ أَبِي مُعَيْطٍ قَالَ مَنْ لِلصِّبْيَةِ قَالَ النَّارُ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

او ابن مسعود ﷺ راوي دی چې رسول کریم ﷺ چې د عقبه ابن ابي معیط د وژلو اراده وکړله نو هغه اوویل څما بچی به څوك پالي؟ حضور ﷺ ورته وفرمایل اور. ابوداود.

**تسهيلات:**

**قوله: قَالَ مَنْ لِلصِّبْيَةِ:**

**د مذکوره جملې مطلب:** که تاسو څه قتل کړم نو څما د بال بچ پرروش (خیال) به څوك ساتی، نو نبی کریم ﷺ وفرمائیل چه هغوې به اور کښې وی.

(١) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد/باب فی حمل السّلاح إلی أرض العدوّ (رقم-٢٧٨٦)

**قوله: قَالَ النَّارُ:**

**د في النار په مفهوم کښې دوه احتمالات:** ① دا چه على أسلوب الحكيم جواب دې چه تا د پاره اور تيار دې ته د خپل ځان غم و فکر کوه، د بچو غم مه کوه او د هغوې الله تعالى کفيل دې. "ومامن دابة في الأرض إلاعلى الله رزقها". التعليق الصبيح ج ۴، ص ۳۷۱)

② د النار نه مراد ضائع کيدل دی چه ستا په شان به دوی هم اور کښې سوزی.

**[۲۹۷۳] د جنګ بدر قيديانو باره کښې مسلمانانو ته د دوو خبرو اختيار**

۲۹۷۳ – [۱۴] (١) [١] وَعَنْ عَلِيٍّ «عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنَّ جِبْرِيلَ هَبَطَ عَلَيْهِ فَقَالَ لَهُ [٢] خَيِّرْهُمْ يَعْنِي أَصْحَابَكَ فِي أُسَارَى بَدْرٍ الْقَتْلَ، أَوِ الْفِدَاءَ عَلَى أَنْ يُقْتَلَ مِنْهُمْ قَابِلًا مِثْلُهُمْ [٣] قَالُوا الْفِدَاءَ وَيُقْتَلَ مِنَّا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت علي کرم الله وجهه د رسول کريم ﷺ څخه روايت کوي چې حضرت جبرائيل علیه السلام حضور ﷺ ته تشريف راوړو او ورته وي وئيل [٢] چې تاسو ﷺ خپلو صحابه و ﷺ ته د جنګ بدر د قيديانو په باره کې اختيار ورکی برابره خبره ده که هغه قيديان قتل کړي يا فديه واخلي يعنى مال اخستو سره هغوى پريږدي ليکن د فديه آخستو په صورت کې به راتلونکي کال ته د هغه صحابه ﷺ دومره يعنى اويا سړي وژلى شي [٣] صحابه ﷺ دا اختيار اوريدو سره عرض اوکړو چې مونږ فديه آخستل او خپل اويا سړو وژل اختيار وو دا روايت امام ترمذي رحمه الله نقل کړي دى او ويلي يي دي چې دا حديث غريب دى.

**حل اللغات:** ① هَبَطَ: راکوز شو. ② الْفِدَاءَ: دقيدى دخلاصولو فديه.

**تسهيلات:**

**قوله: الْقَتْلَ، أَوِ الْفِدَاءَ:**

**صحابه کرامو ته دجنګ بدرپه قيديانوکښې د دوو خبرو اختيار:** بدرکښې چه کوم خلق ګرفتار شوی وو هغه دَ اهل مکه اويا کسان وو په کوم کښې چه لوئى لوئى نوموړى اشخاص هم وو. حضورپاك ته الله تعالى د دوو خبرو اختيارورکړې وو

① د دوی د قتلولو اختيار

② د دوی څخه فديه اخستل

**قوله: أَوِ الْفِدَاءَ عَلَى أَنْ يُقْتَلَ مِنْهُمْ قَابِلًا:**

**د فديه په صورت کښې د اويا کسانو د شهادت پيشنګوئى:** ليکن دَ فديه په صورت کښې به

---

(١) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب السّير عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فى قتل الأسارى والفداء (رقم-١٥٦٧)

بيا ستاسو اوياکسان وژلي کيږي دا فيصله حضورپاك د صحابه کرامو په مخکښې کيخوده اوخپله رائې ئې دا ښکاره کړه چه فديه اخستل ښه دی صديق اکبر رضی الله عنه هم فديه اخستل بهتر اوګرځول دې دپاره چه د فديه په مال سره به د جهاد ميدان مستحکم شی. باقي مونږ د شهادت لټونکی يو که زمونږ کسان راتلونکی کال کښې شهيدان شي نوهيڅ بدی نشته دعام صحابه کرامو هم دغه رائې وه

**دعمر اوسعد بن معاذ رضی الله عنهما مخالفت:** صرف دحضرت عمر رضی الله عنه اوحضرت سعد بن معاذ رضی الله عنه دواړو رائې دا وه چه دا د قريشو صناديد دی فديه نه دی اخستل پکار بلکه قتلول پکاردی بهرحال فيصله د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم اوعام صحابه کرامو په رائې باندې اوشوه په دې باندې د الله تعالى دطرف نه سخت وعيدراغلو حضورپاك اوفرمائيل چه دغه ونې پورې عذاب رسيدلې وو که چرې عذاب راغلې وې نود عمر اوسعدنه بغيريه بل څوك نه بچ کيدل

**يواشکال:** ددې اوس سوال دادې چه کله مسلمانانوله الله تعالى د دواړو څيزونو نه د يواختيارولو اختيار ورکړې وو نوبيا دا وعيد او رټنه ولې راغله؟

**د اشکال جواب:** ددې جواب دادې چه دا اختيارهم دامتحان په توګه باندې وو د الله تعالى په نيزفديه نه اخستل ووچه ټول کافران قتل شی په دې وجه رټنه راغله.

**[۳۹۷٤] د قيديانو تحقيق او تفتيش**

٣٩٧٤ - [١٥] ( ) [١] «وَعَنْ عَطِيَّةَ الْقُرَظِيِّ قَالَ [٢] كُنْتُ فِي سَبْيِ بَنِي قُرَيْظَةَ، عُرِضْنَا عَلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٣] فَكَانُوا يَنْظُرُونَ فَمَنْ أَنْبَتَ الشَّعَرَ قُتِلَ وَمَنْ لَمْ يُنْبِتْ لَمْ يُقْتَلْ [٤] فَكَشَفُوا عَانَتِي فَوَجَدُوهَا لَمْ تُنْبِتْ فَجَعَلُونِي فِي السَّبْيِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] او عطيه قرظي رحمه الله وايي [٢] د بني قريظه کوم خلق چې قيدي جوړولو سره رواستل شوی وو په هغوی کې زه هم وم مونږ رسول کريم صلی الله علیه وسلم ته پيش شو [٣] هغه وخت صحابه رضی الله عنهم داطريقه اختيار کړه چې په قيديانو کې کوم کم عمر واله وو د هغوی د نامه لاندې حصې کولاؤولو سره يې کتله د چا د نامه لاندې حصې باندې چې ويښته راختلی وو هغه به قتلولی شو څکه چې د نامه لاندې حصه باندې ويښته راوتل د بلوغ علامه ده نو داسې سړي به دمسلمانانو سره جنګ کونکی شميرل کيدې او د چا ويښته چې نه وو راختلی هغه به نه شو قتلولی څکه چې هغه به ذريت يعنی بچو کې شمير کيدی [٤] نو څما د نامه لاندې حصه هم خلاصه شوه هرکله چې هلته ويښته پيدانه شوه نو زه هم په قيديانو کې ژوندی وساتل شوم (ابوداود ابن ماجه دارمي)

[١] ) اخرجه ابوداود فى السنن رقم الحديث ٤٤٠٤ والترمذى فى السنن رقم الحديث ١٥٨٤ والنسائى فى السنن رقم الحديث ٣٤٢٩

**حل اللغات:** ① عُرِضْنَا: پيش کړې شو مونږه. ② أَنْبَتَ: راختلي وي. ③ الشَّعَرَ: ويښته. ④ عَانَتِي: عانة د نامه لاندې حصې ته وائي په کومه چه ويښته راخيجي (سپګنړ)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَمَنْ أَنْبَتَ الشَّعَرَ قُتِلَ:

**زيرناف ويښته د بلوغ علامت ګرځول:** داد بنوقريظه طرف ته نسبت دي حضرت عطيه ﷺ ته الله تعالى د اسلام توفيق ورکړو او اوس هغه په آخرت کښې به مزوکښې دي او په دنياکښې د مسلمانانو دپاره شيخ الحديث جوړشو صحابه کرامو د نامه لاندې ويښته د بلوغ علامت ګرځولې دې فقهاء کرامو هم داد بالغ کيدو نښه ګرځولې ده

**[۳۹۷۵] دحديبيه په موقع مشرکانو ته د غلامانو دواپس کولو څخه انکار**

٣٩٧٥—[١٢] ( ) ١ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ ٢ «خَرَجَ عِبْدَانٌ إِلَى رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَعْنِي يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ قَبْلَ الصُّلْحِ فَكَتَبَ إِلَيْهِ مَوَالِيهِمْ ٣ قَالُوا يَا مُحَمَّدُ وَاللهِ مَا خَرَجُوا إِلَيْكَ رَغْبَةً فِي دِينِكَ وَإِنَّمَا خَرَجُوا هَرَبًا مِنَ الرِّقِّ ٤ فَقَالَ نَاسٌ صَدَقُوا يَا رَسُولَ اللهِ رُدَّهُمْ إِلَيْهِ ٥ فَغَضِبَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-

**ترجمه:** ١ او حضرت علي کرم الله وجهه وايي ٢ د حديبئي د صلح په ورځ د مسلمانانو او د مکي د کفارو په مينځ کې د معاهدې ليکلو څخه مخکې څه غلامان د مکي څخه راتلو سره د رسول کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شو دهغوى مالکانو حضور ﷺ ته وليکل ٣ اې محمد ﷺ قسم په خداى داغلامان تاسو ته د دې د پاره نه دى راغلي چې ستاسو دين طرف ته رغبت لري بلکه داخلق د غلامى څخه د خلاصيدو په غرض راتښتيدلي دى ٤ کله چې صحابه ﷺ کې څني خلقو چې دا مکتوب خط وليدلو نو عرض بې اوکړو يارسول الله تاسو دا غلامان خپلو مالکانو ته واپس وليږئ هغوى بالکل صحيح خبره ليکلي ده ٥ په دې اوريدو سره حضور ﷺ غضبناك شو

**حل اللغات** ① مَوَالِيهِمْ: د مولى جمع ده. مالکان دهغوى (دغلام مالک ته مولى وائي ② هَرَبًا: په تيختنه.

١ وَقَالَ مَا أُرَاكُمْ تَنْتَهُونَ يَا مَعْشَرَ قُرَيْشٍ ٢ حَتَّى يَبْعَثَ اللهُ عَلَيْكُمْ مَنْ يَضْرِبُ رِقَابَكُمْ عَلَى هَذَا ٣ وَأَبَى أَنْ يَرُدَّهُمْ وَقَالَ هُمْ عُتَقَاءُ اللهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ او وې فرمايل اې قريشو زه وينم چې تاسو خپلې سرکښى او نافرماني څخه نه منع کيږئ ٢ ترڅو پورې چې الله ﷻ په تاسو هغه سړي مسلط نه کړي چې ستاسو دا فيصلې اچې دا غلامان دې د هغوى مالکانو ته واپس وليږل شي او دغه شان د هغوى د مسلمانيدو څخه وروسته هغوى دې دار الحرب ته حواله شي) په بناء ستاسو څټونه دې

---
[1] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الجهاد، باب في عبيد المشركين يلحقون بالمسلمين فيسلمون (رقم-٢٧٠٠)

والوځول شي [۲] او بيا حضور ﷺ د هغه غلامانو د واپسی مطالبه رد کړله او وي فرمايل چې دوئ د الله ﷻ آزاد کړده دي. (ابوداود)

**حل اللغات:** ⓷ مَشْعَرَ: ډله، جماعت، ⓸ عُتَقَاءُ اللهِ: د الله آزاد کړي شوی.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَغَضِبَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**د نبی عليه السلام د غصه کيدو وجه:** حضورپاك ځکه په غصه شوچه داغلام خالص مسلمان وو اوخلقو دا مطالبه کوله چه دې خپلو پخوانو مشرانوته واپس کړئی اود آزادولو نه پس بيا دې غلام جوړکړئی.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۲۹۷٦] د حضرت خالد د عدم احتياط يوه واقعه**

۲۹۷٦ - [۱۷] ( ) [۱] عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ [۲] «بَعَثَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ إِلَى بَنِي جَذِيمَةَ فَدَعَاهُمْ إِلَى الْإِسْلَامِ [۳] فَلَمْ يُحْسِنُوا أَنْ يَقُولُوا أَسْلَمْنَا [۴] فَجَعَلُوا يَقُولُونَ صَبَأْنَا صَبَأْنَا [۵] فَجَعَلَ خَالِدٌ يَأْسِرُ وَيَقْتُلُ [٦] وَدَفَعَ إِلَى كُلِّ رَجُلٍ مِنَّا أَسِيرَهُ [۷] حَتَّى إِذَا كَانَ يَوْمٌ أَمَرَ خَالِدٌ أَنْ يَقْتُلَ كُلُّ رَجُلٍ مِنَّا أَسِيرَهُ

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عمر رضي الله عنه وايي [۲] رسول کريم ﷺ خالد ابن وليد يوې قبيلې بني جذيمه ته وليږلو خالد رضي الله عنه هغه خلقوته د اسلام دعوت ورکی [۳] هغه خلق د اضطراب او پريشانۍ په حالت کې په ښه شان يې دا ونه وئيل شوه چې مونږ اسلام راوړو يعنی هغوی خپلو ژبو سره د اسلام کلمه پوره طور سره اداء نه کړی شوه [۴] بلکه هغوی دا وئيل شروع کړل چې صَبَأْنَا صَبَأْنَا يعنی مونږ خپل دين پريښودی خپل دين پريښودی [۵] خالد رضي الله عنه چې د هغوی د ژبې څخه دا واوريدل نو د هغوی بعضې خلق يې قتلول او بعضې گرفتارول شروع کړل [٦] او بيا مونږ خلق چې هغه سره وو هغوی څخه هرسړي ته د هغه قيدي حواله شو يعنی داخلق قيدي جوړ شول هغوی زمونږ په مينځ کې تقسيمولو سره يو يو قيدي هريوه ته حواله شو او داحکم يې اوکړو چې مونږ د دې قيديانو ترهغه وخته پورې حفاظت او نگراني کوو ترڅوپورې چې مونږ ته د هغوی د قتلولو حکم راکول شي [۷] هرکله چې هغه ورځ راغله چې خالد رضي الله عنه د هغه قيديانو د قتلولو فيصله وکړله نو مونږ ته يې حکم راکی چې په مونږ کې هرسړی دې خپل قيدي قتل کړي

**حل اللغات:** ⓵ صَبَأْنَا صَبَأْنَا: مونږ خپل دين پريښودی، مونږ خپل دين پريښودې. يعنی اسلام مو قبول کړې دې. ⓶ يَأْسِرُ: قيد کول به ئې.

---

[۱] ) اخرجه البخاري في كتاب الأحكام/باب إذا قضى الحاكم بجور. أو خلاف أهل العلم فهو رد(رقم-۷۱۸۹) واحمد في المسند: ۱۵۱/۲

[۱]فَقُلْتُ وَاللهِ لَا أَقْتُلُ أَسِيرِي وَلَا يَقْتُلُ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِي أَسِيرَهُ[۲]حَتَّى قَدِمْنَا عَلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَذَكَرْنَاهُ[۳]فَرَفَعَ يَدَيْهِ فَقَالَ اللّهُمَّ إِنِّي أَبْرَأُ إِلَيْكَ مِمَّا صَنَعَ خَالِدٌ مَرَّتَيْنِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:**[۱]دا حکم اوریدو سره ما یعني ابن عمر ﷺ اوویل قسم په خدای زه خپل قیدي نه قتلوم او نه به ځما ملګرو کې څوك سړی خپل قیدي قتلوي بلکه مونږ خلق به خپل قیدیان ترهغه وخته پورې په خپل حفاظت کې ساتو ترڅوپورې چې مونږ د رسالت دربانه ونه رسیږو او په دې باره کې څه آخري حکم حاصل نه کو [۲]نو مونږ خپل قیدیان په خپل حفاظت کې وساتل تردې چې د نبي کریم ﷺ په خدمت کې حاضر شو او د حضور ﷺ مخکې مو پوره واقعه بیان کړه [۳]حضور ﷺ د واقعې تفصیل اوریدو سره خپل دواړه لاسونه پورته کولو سره دا اوویل چې اې الله! زه ستا په حضور کې د خالد ﷺ د عمل څخه د خپلې بیزارۍ او بې رضایي اظهار کوم حضور ﷺ دا الفاظ دوه ځله ارشاد وفرمایله. (بخاري)

**حل اللغات:**[۳]أَنِّي أَبْرَأُ: زه بیزاري ښکاره کوم.

**تسهیلات:**

**قوله:** صَبَأْنَا صَبَأْنَا:

**دابن عمر رضی الله عنهما د قیدیانو د قتلولو څخه انکار کول:** دادَ اسلام قبلولو یو تعبیر وو په دې باره کښې صحابه کرامو ﷺ او حضرت خالد ﷺ داخیال اونه کړو چه دا خلق په اسلام کښې دَداخلیدلو په غرض دا الفاظ وائی. په دې وجه بعضې صحابه کرامو خپل قیدیان دَ خلاصولو په ځائې قتل کړل. په دې باندې حضورپاك لاسونه اوچت کړل اودَ حضرت خالد ﷺ دَدې فعل نه ئې دَ براءت اعلان اوکړو. علماؤ لیکلی دی چه دَ وینې تویولو په سلسله کښې په مبهم الفاظو باندې کله هم عمل نه دی کول پکار.

# [۶ بَابُ الْأَمَانِ]

**دامان ورکولو بیان**

**خلاصة الباب:**

**فيه ثمانية أحاديث مشتملة على أربع مسائل:**

① اعتبار أمان المرأة: ۱، ۲.

② عدم جواز الغدر في الأمان: ۳، ۴.

③ عدم جواز الغدر بالرسول: ۵، ۶، ۸.

④ حكم الوفاء بحلف الجاهلية: ۷.

**دامان تعریف:** امن او امان د خوف اویرې ضد دې چاته د خان مال او عزت او ناموس تحفظ ورکولو ته امن ونیلې شی

**دامان درې صورتونه:** ① معاهد اوحلیف یعنی کومو ملکونو یاخلقوسره چه د جنگ نه کولو خصوصی حکم ورکړې شوې وی اود وخت خلیفه هغوی سره د جنگ نه کولو معاهده کړې وی په ټولو مسلمانانو باندې دَدې خیال ساتل ضروری دی یاد ساتئی چه کافرانو سره د لسو کالونه زیات د جنگ بندئی معاهده کول جائزنه دی

② یو کافرحربی داراسلام ته راشی امن اوغواړی او په مسلمانانو کښې او سیږی ده ته مستأمن ونیلې شی دده د خان اومال دواړو حفاظت ضروری دې اوداد مسلمانانو ذمه واری ده

③ کوم سړې چه د یوقوم. ملك یا د یو قبیلې دطرف نه قاصد جوړشوې راغلې وی دهغه حفاظت لازم دې لفظ امان دې دریواړو صورتونو ته شامل دې

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۲۹۷۷] د بی بی اُم هانی یو رشته دار ته امان ورکول**

۲۹۷۷-[۱] ( )[۱] «عَنْ أُمِّ هَانِئٍ بِنْتِ أَبِي طَالِبٍ قَالَتْ [۲] ذَهَبْتُ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَامَ الْفَتْحِ فَوَجَدْتُهُ يَغْتَسِلُ وَفَاطِمَةُ ابْنَتُهُ تَسْتُرُهُ بِثَوْبٍ [۳] فَسَلَّمْتُ فَقَالَ مَنْ هَذِهِ فَقُلْتُ أَنَا أُمُّ هَانِئٍ بِنْتُ أَبِي طَالِبٍ [۴] فَقَالَ مَرْحَبًا بِأُمِّ هَانِئٍ [۵] فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ غُسْلِهِ قَامَ فَصَلَّى ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ مُلْتَحِفًا فِي ثَوْبٍ،

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب الجزیه/باب أمان النساء وجوارهن (رقم-۳۱۷۱) ومسلم فی کتاب الحیض/باب تستر المغتسل بثوب ونحوه (رقم ۷۲ (۳۳۶) و ابو داود فی کتاب الصلاة،باب صلاة الضحی (رقم-۱۲۹۰) ومالک فی الموطا کتاب قصر الصلاة فی السفر . باب صلاة الضحی (رقم-۲۸)

**ترجمه:** ① بي بي ام هاني رضي الله عنها بنت ابي طالب وايي ② د مكي د فتح په موقع زه د رسول كريم ﷺ په خدمت كي حاضر شوم رسول كريم ﷺ هغه وخت غسل كوى او د هغوى ﷺ لور بي بي فاطمي رضي الله عنها كيري سره په حضور ﷺ پرده كړيوه ③ ماسلام عرض كي حضور ﷺ پوښتنه وكړه څوك ده ماعرض اوكړو زه ام هانى بنت ابوطالب يم ④ حضور ﷺ وفرمايل ام هاني دي په خيره راشي ⑤ بيا چي حضور ﷺ د غسل څخه فارغه شو نوجسم مبارك څخه كپړه چاپيره كولو سره حضور ﷺ اودريدلو او د څاښت مونځ يي اته ركعاته وكى

**حل اللغات:** ① مُلْتَحِفًا: چاپيره كونكي وو.

① ثُمَّ انْصَرَفَ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ زَعَمَ ابْنُ أُمِّي عَلِيٌّ أَنَّهُ قَاتِلٌ رَجُلًا ② أَجَرْتُهُ فُلَانَ بْنَ هُبَيْرَةَ ③ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ قَدْ أَجَرْنَا مَنْ أَجَرْتِ يَا أُمَّ هَانِئٍ، وَذٰلِكَ ضُحًى» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ ④ وَفِي رِوَايَةٍ لِلتِّرْمِذِيِّ قَالَتْ: أَجَرْتُ رَجُلَيْنِ مِنْ أَحْمَائِي فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ أَمَّنَّا مَنْ أَمَّنْتِ.

**ترجمه:** كوم وخت چي د مونځ څخه فارغه شو نو ما عرض اوكړو يارسول الله ځما د مور خوى يعنى دحضرت علي رضي الله عنه گمان دى چي هغه د هغه سړي قتلونكى دى ② كوم ته چي ما په خپل كور كي پناه وركړيده يعنى فلانى سړى چي د هبيره څوى دى ③ نو رسول كريم ﷺ وفرمايل اي اُمّ هاني ! چاته چي تا پناه وركړي ده گويا هغه ته مونږ پناه وركړه بي بي امّ هاني رضي الله عنها وايي دا واقعه د څاښت د وخت ده ④ او د ترمذي په روايت كي داسي دي چي بي بي اُمّ هاني رضي الله عنها رسول كريم ﷺ ته عرض اوكړو ما دوو سړو ته پناه وركړيده چي ځما د خاوند رشته دار دى چي رسول كريم ﷺ وفرمايل زمونږ د طرف څخه هغه سړي په امان دى چاته چي تا آمان وركړي دى.

**حل اللغات:** ② أَحْمَائِي: زما دخاوند رشته داران.

**تسهيلات:**

**قوله: فَوَجَدْتُهُ يَغْتَسِلُ وَفَاطِمَةُ ابْنَتُهُ تَسْتُرُهُ بِثَوْبٍ:**

**دغسل محل وقوع:** حضورپاك د فتح مكه په موقع باندي دَ وادى محصب سره په يوځائى باندي دَ خپل اوسيدودپاره يوه خيمه نصب كړي وه اوهم هلته ئى خپله جنډا خښه كړي وه. په دغه ځائى باندي نن صبا يوجمات موجود دي دَ كوم نوم چه مسجد راية دي كوم چه دَ چهيره بازار په آخره كښي واقع دي حضورپاك په دي ځائى كښي غسل فرمائيلو چه ام هانى رضي الله عنها هلته راغله. دَام هانى اصل نوم فاخته يا عاتكه وو دَحضورپاك دَ تره ابوطالب لور وه. دَهغي دَخاوند نوم هبيره وو

**د فتح مكي په موقع د امن ملاويدو ځلور شرطونه:** دَ فتح مكه په ورځ حضورپاك دَعام معافئى اعلان كړي وو خو څو شرطونه ئي لګولي وو.

① چې څوک حرم ته داخل شي هغه په امن کښې دې.
② چې څوم مسجد حرام ته داخل شي هغه په امن کښې دې.
③ چې څوك وسله اوغورزوي هغه په امن کښې دې
④ چې دَ کور دروازه بنده کړي هغه په امن کښې دې.
⑤ چې څوم دَ ابوسفيان کورته داخل شي هغه په امن کښې دې.

**قوله**: قَدْ أَجَرْنَا مَنْ أَجَرْتِ يَا أُمَّ هَانِئٍ:

**د امن ملاويدل**: حضرت علي رضي الله عنه چه کله دَخپلې خور ام هانی رضي الله عنها کَورکښې داخل شو نوهلته يو سړې ملاؤ شو. حضرت علي خيال اوکړو لکه چه دې سړي ته امن حاصل نه دې لهذا هغه ئې قتلول غوښتل. حضرت ام هانی رضي الله عنها رامخې ته شوه مګر حضرت علي رضي الله عنه سخت په غصه کښې وو. ام هانی رضي الله عنها رامنډه کړه اوحضورپاك له راغله او امن ئې حاصل کړو. حضورپاك امن ورکړو. ام هانی رضي الله عنها حضرت علي رضي الله عنه ته ابن امی دَ شفقت په توګه اووئيل څکه چه دَمور مينه زياته وي.

**قوله**: وَفِي رِوَايَةٍ لِلتِّرْمِذِيِّ:

**د مامون کس تعارف**: دَ فلان بن هبيره نه هم دغه سړې مراد دې چه دَ هبيره څوئی وو. په تفصيلي روايت کښې دی چه دا دوه سړي وو چه دَ هبيره رشته دار وو کيدې شي يوئی څوئی وي دويم بل څوك وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۲۹۷۸] د ښځې د امان په مسلمانانو لزوم

۲۹۷۸-[۲] (١) ١ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ ٢ «إِنَّ الْمَرْأَةَ لَتَأْخُذُ لِلْقَوْمِ يَعْنِي تُجِيرُ عَلَى الْمُسْلِمِينَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: ١ حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل ٢ ښځه د يوقوم د پاره عهد آخستی شي يعنی هغه د مسلمانانو د طرف څخه پناه ورکولی شي (ترمذي)

**تسهيلات**: **قوله**: إِنَّ الْمَرْأَةَ لَتَأْخُذُ لِلْقَوْمِ:

**دښځې د امان ورکولو اعتبار**: يعنی دَ کم نه کم تر بې نامې سړې تردې چه که ښځه هم په جنګ کښې يوکافرته پناه ورکړی نو په ټولو مسلمانانوباندې لا زم دی چه هغوی دَدغه ښځې دَ عهد اوامان حفاظت او خيال اوساتی اوغداری اونه کړی.

(١) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب السير عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی أمان العبد والمرأة (رقم-١٥٧٩)

**[٢٩٧٩] د امن ورکولو څخه روسته د قتلولو سزا**

٢٩٧٩–[٣] (١) ①وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَمِقِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ ②«مَنْ أَمَّنَ رَجُلًا عَلَى نَفْسِهِ فَقَتَلَهُ أُعْطِيَ لِوَاءَ الْغَدْرِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه:** ①او عمرو بن حمق وايي چې ما د رسول کريم ﷺ څخه واوريدل ②کوم سړی چې چاته د سرآمان ورکړي او بيا هغه قتل کړي نو د قيامت په ورځ به هغه ته د بدعهدي نښه ورکول شي (شرح السنه)

**حل اللغات:** ①لِوَاءَ: جهنډا ، ②الْغَدْرِ: دهوکه، بې لوظی.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ أَمَّنَ رَجُلًا عَلَى نَفْسِهِ فَقَتَلَهُ:

**د مامون د قتلولو سزا:** د يعنی په عرصاتو دَ قيامت کښې به مشهورولې شی چه فلانکی سړی غداری کړې وه په دې شهرت سره به دَ دغه سړی تذليل اوسپکاوې کيږی. خلقوته به وئيلې شی چه اوګورئی دا سړې څومره ذليل دې.

**قوله:** أُعْطِيَ لِوَاءَ الْغَدْرِ:

**د وعده خلافۍ جنډه ملاويدل:** ده ته به د وعده خلافې جهنډا ورکړې شي، لکه چه دا کنايه ده ددې نه چه د قيامت په ورځ به د خلقو مينځ کښې شرمنده کړې شې او په بل حديث کښې ذکر دی چه قيامت په ورځ به د وعده خلافي کونکو دپاره يو خاص نښه وي چه هغوي سره به دوې پيژندلې شي چه دا هغه خلق دې کومو چه به غداري او بی لوظی کوله، او دا خبره دې واضح وي چه د قيامت په ورځ به د مسلمانانو پټ ګناهونه نه ظاهريږي بلکه ښکاره ګناهونه به ظاهريږي، نو لهذا حديث الباب د پرده پوشی والا حديث خلاف نه دې.

**[٢٩٨٠] د وعدې د پوره کولو تاکيد**

٢٩٨٠–[۴] (٢) ①وَعَنْ سُلَيْمِ بْنِ عَامِرٍ قَالَ ②«كَانَ بَيْنَ مُعَاوِيَةَ وَبَيْنَ الرُّومِ عَهْدٌ ③وَكَانَ يَسِيرُ نَحْوَ بِلَادِهِمْ ④حَتَّى إِذَا انْقَضَى الْعَهْدُ أَغَارَ عَلَيْهِمْ ⑤فَجَاءَ رَجُلٌ عَلَى فَرَسٍ، أَوْ بِرْذَوْنٍ ⑥وَهُوَ يَقُولُ اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ وَفَاءٌ لَا غَدْرٌ ⑦فَنَظَرُوا فَإِذَا هُوَ عَمْرُو بْنُ عَبَسَةَ فَسَأَلَهُ مُعَاوِيَةُ عَنْ ذَلِكَ

**ترجمه:** ①او سليم ابن عامر تابعي رحمه الله وايي ②امير معاويه رضي الله عنه او د روميانو په مينځ کې دا معاهده شوې وه چې دومره ورځې به يو بل سره جنګ نه کوئ ③او حضرت معاويه

(١) اخرجه ابن ماجه فی السنن كتاب الدّيات/باب من أمن رجلا على دمه فقتله (رقم-٢٦٨٨) واحمد فی المسند:٢٢٣/٥

(٢) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الجهاد/باب فی الإمام يكون بينه، وبين العدوّ عهد فيسير إليه (رقم-٢٧٥٩) والترمذی فی كتاب السّير عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فی الغدر (رقم-١٥٨٠)

ﷺ به د دې وعدې په زمانه کې د روميانو په ښارونو کې ګشت لګولو د حالاتو اندازه به يې اخستله [۴] چې کله د وعدې موده تيره شي نو په هغه ورځ روميانو باندې په يو ځل حمله وکړي او د هغوی تيکاوني به لوټ کړي که هغه د ګښتې په ذريعه د هغوی د حالاتو او تيکاونو جائزه اخستو په خای خپل کيمپ کې پروت وې او بيا د وعدې موده ختميدو باندې حمله يې کړې وې نو د هغه روميانو د بيداريدو په وجه جنګي فائده نه شوه حاصليدی [۵] بيا په هغه ورځو کې هرکله چې امير معاويه ﷺ خپل لښکر والاوو سره د روميانو په ښار کې ګرځيدی يو سړی عربي يا ترکي اس باندې سوريدو ويلو سره راغلو [۶] چې الله اکبر الله اکبر د وفا لحاظ ساتي نه چې د بدعهدي يعنی تاسو باندې معاهده پوره کول لازم دی نه چې تاسو د معاهدې خلاف ورزي کوی ګويا هغه دا واضحه کړه چې تاسو خلق د وعدې په زمانه کې د دښمنانو په ښارونو کې ګشت لګولو ګرځئ نو دا د خپل وعدې د پاسداری لحاظ ساتلو علامه نه ده بلکه دا وعده شکني او د وعدې د خلاف ورزي حکم کې داخل دی [۷] هرکله چې خلقو وليدل نو معلومه شوه چې دا سړی يوصحابي حضرت عمرو ابن عَبَسه ﷺ دی، حضرت معاويه ﷺ د هغه څخه داخبره ويوښتله چې د روميانو په ښارونو کې ګرځيدل د عهد شکني برابر څنګه دی

**حل اللغات:** ① يَسِيرُ: تلو راتلو به، ② نَحْوَ: طرف، ③ أَغَارَ: حمله به اوکړی، ④ بِرْذَوْنٍ: تُرکی اس.

[۱] فَقَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ يَقُولُ مَنْ كَانَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ قَوْمٍ عَهْدٌ فَلَا يَحُلَّنَّ عَهْدًا وَلَا يَشُدَّنَّهُ [۲] حَتّٰى يَمْضِيَ أَمَدُهُ أَوْ يَنْبِذَ إِلَيْهِمْ عَلٰى سَوَاءٍ [۳] قَالَ فَرَجَعَ مُعَاوِيَةُ بِالنَّاسِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] هغه اوويل ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي د کوم سړي او يوقوم په مينځ کې چې وعده وي نو هغه ته پکار دی چې هغه خپله وعده ماته نه کړي او نه يې بدله کړي [۲] تردې چې د هغه وعده موده تيره شي يا هغوی خبرولو سره د برابري په بنياد خپله وعده ماته کړي يعنی د هغه وعدې خلاف کول يا خو په هغه صورت کې جائز دی هرکله چې د وعدې وخت ختم شوی وي يا په هغه صورت کې جائز دی هرکله چې د څه مجبوري يا مصلحت په بناء د مودې په دوران کې وعده ماتول ضرور شوی وي او مخالف فريق د مخکې څخه اګاه شوی وي چې زمونږ او ستاسو په مينځ کې کومه وعده شوي وه مونږ هغه ماتوو اوس مونږ او تاسو دواړه برابر يو چې د چا څه مرضي وي هغه دې وکړي [۳] د حديث راوي مسلم ابن عامر وايي امير معاويه ﷺ د حضرت ابن عَبَسَه ﷺ داخبره او د حضور ﷺ د حديث په اوريدو سره خپلو خلقو سره د روميانو د ښار څخه خپل کيمپ ته واپس راغلو (ترمذي ابوداود)

**حل اللغات:** ⑤ لَا يَشُدَّنَّهُ: تغير دې نه کوی په معاهده کښې، ⑥ فَلَا يَحُلَّنَّ: معاهده دې نه ماتوی اوغداري دې نه کوی. ⑦ يَنْبِذَ: د وعدې ماتولو خبرداري ورکول.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَكَانَ يَسِيرُ نَحْوَ بِلَادِهِمْ:

**دمعاهدې په دوران کښې په دشمن د حملې د تیاری کولوحکم:** حضرت معاویه رضی الله عنه دَ معاهدې په دوران کښې حمله نه کول غوښتل بلکه هغوی دا سوچ اوکړو چه کله دَمعاهدې موده ختمه شی نودَحملې کولودَپاره به فوج تیار شی. په دې غرض هغه اسلامی فوجونه دَ روم سرحدته رسول غوښتل. حضرت معاویه رضی الله عنه دا تیاری کوله چه یو صحابی په عربی اس یا ترکی اس باندې راغلو او وئی فرمائیل چه وفاداری کوئی غداری مه کوئی یعنی یا دَ مودې پوره کیدو نه پس فوج روان کړئی اویا په وجه دَ مصلحت دَمعاهدې دَختمولو واضح اعلان اوکړئی دې دَپاره چه دښمن ناخبره پاتې نه شی. "ینبذالیهم علی سواء" هم دغه مطلب دې. حضرت معاویه رضی الله عنه دا حدیث اوریدو سره فوجونه واپس کړل. سبحان الله دَ دین دَ یوې خبرې څومره خیال ساتل وو؟ دَدې حدیث ترجمه اومطلب صاحب مظاهر حق جدید صحیح نه دې لیکلې خیال کول پکاردی

**قوله:** وَلَا يَشُدَّنَّهُ:

**په معاهده کښې دخیانت ممانعت:** مطلب دادې چه په معاهده کښې دې څه تغیر نه کوی که دَنوې معاهده سره ولې نه وی دائی دَ مبالغې په توګه اوفرمائیل چه په معاهده کښې دې څه تغیرنه کوی ګنی دَ تجدید دَ معاهدې ممانعت نشته دې.

**[۳۹۸۱] د معاهدې پابندی کول**

۳۹۸۱-[۵] (۱) ①وَعَنْ أَبِي رَافِعٍ قَالَ ②«بَعَثَتْنِي قُرَيْشٌ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-فَلَمَّا رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-أُلْقِيَ فِي قَلْبِي الْإِسْلَامُ ③فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنِّي وَاللّٰهِ لَا أَرْجِعُ إِلَيْهِمْ أَبَدًا ④قَالَ، إِنِّي لَا أَخِيسُ بِالْعَهْدِ وَلَا أَحْبِسُ الْبُرُدَ وَلَكِنِ ارْجِعْ ⑤فَإِنْ كَانَ فِي نَفْسِكَ الَّذِي فِي نَفْسِكَ الْآنَ فَارْجِعْ ⑥قَالَ فَذَهَبْتُ، ثُمَّ أَتَيْتُ النَّبِيَّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-فَأَسْلَمْتُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ①او ابورافع رضی الله عنه وایي ②د صلح حدیبیه په مقام کفار قریش زه خپل قاصد جوړولو سره درسول الله ﷺ په خدمت کې ولیږلم هرکله چې ځما نظر په رسول الله ﷺ ولګیدلو نو بي اختیاره ځما په زړه کې د اسلام صداقت او حقانیت ځای وکړلو ③ما عرض اوکړو یارسول الله قسم په خدای زه به اوس هیڅکله دي کفار قریش ته واپس ورنشم ④حضور ﷺ وفرمایل زه نه خو وعده ماتوم او نه قاصدان بنده وم البته اوس ته واپس لاړ شه ⑤که ستا په زړه کې هغه څیز یعنی اسلام قائم وي کوم چې داوخت دی نو بیا ماته راسه ⑥حضرت ابورافع رضی الله عنه وایي د حضور ﷺ د حکم مطابق زه مکې ته واپس

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد/باب فی الإمام یستجنّ به فی العهود (رقم-۲۷۵۸) واحمد فی المسند: ۸/۶

ولاړم او بیا د حضورﷺ په خدمت کې حاضر شوم او اسلام مي قبول کی یعنی د خپل اسلام اعلان مي وکړو (ابوداود)

**حل اللغات:** ①لَا أَخِيسُ: ای لا أنقض العهد. خاس یخیس دَ معاهدې ماتولو په معنی کښې دې. ②لَا أَحْبِسُ: نه بندوم ③الْبُرُدَ: دادَ برید جمع ده. ډاك او پیغام اوړونکی راوړونکی قاصدته وائی.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَلَا أَحْبِسُ الْبُرُدَ:

**دبرید مختلف لغوی مراحل:** ① علامه طیبی ﷫ لیکی چه برید په اصل کښې قچرته وئیلې شو دا لفظ په اصل کښې بریده دم وو کوم چه دَ فارسئی لفظ دې یعنی هغه قچرډ کوم دَ لکئی وینښته چه پرې کړې شوی وی. دَداسې قچرو دَ لکئی نه به اوږده وینښته پرې کولې شو بیا عربو دا مخفف کړو نو برید شو.

② بیا دَدې اطلاق دَ قچرپه سوریدونکی باندې اوشو.

③ بیا برید په هغه مسافت باندې وئیلې شو کوم چه دَ اس دَمنډې مقداروو چه دولس میله پورې به وو.

**د ډاک رسولو پخوانی طریقه:** پخوانئی زمانه کښې دَ ډاك او پیغام اوړلو راوړلو یوعجیبه تیزنظام قائم وو. هغه به داسې وو چه په هر بریدباندې به ښه تازه اس ولاړ وو مثلاً دَ لاهورنه دهلی پورې دَمغل بادشاهانو په زمانه کښې په هربریدباندې به اسونه وو. دولس میله پورې اس دَ ښه تیز ګاډی په شان منډې وهی بیا ستړې کیږی دَ یوبرید پورې چه به دغه اس منډه وهله نودَ یوبریدنه پس به دا اس پاتې کیدو اودَ هغه ځائی نه به تازه دم اس سامان اخستلو او روانیدلوبه دویم برید ته رسیدوسره به اودریدو. دَهغه ځائی نه به بل اس روانیدو. نودَسحر دَ وخت تماتر په دَ لاهورنه دَ ماښام کیدونه وړاندې دهلی ته رسیدل اودَهغه ځائی نه به لاهورته سامان راتلو. دَ ډاك نظام به هم دغه شان چلیدلو

**[۲۹۸۲] دقاصدانو دقتلولو حرمت**

۲۹۸۲—[۶] (¹) ① وَعَنْ نُعَيْمِ بْنِ مَسْعُودٍ ② «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ لِرَجُلَيْنِ جَاءَا مِنْ عِنْدِ مُسَيْلِمَةَ ③ أَمَا وَاللّٰهِ لَوْلَا أَنَّ الرُّسُلَ لَا تُقْتَلُ لَضَرَبْتُ أَعْنَاقَكُمَا». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او نُعیم ابن مسعود ﷛ څخه روایت دی ② رسول کریمﷺ هغه دوو سړوته وفرمایل کوم چې د مسیلمه څخه راغلی وو ③ چې یادلرئ قسم په خدای که د قاصد

¹) اخرجه ابوداود: فی السنن کتاب الجهاد/باب فی الرّسل (رقم-۲۷۶۱) واحمد فی المسند: ۳/ ۴۸۷

قتلول شرعي طور سره ممنوع نه وی نو مابه ستاسو څټونه الوځولي وی (احمد ابوداود)

**حل اللغات:** ① الرُّسُلَ: قاصدان

**تسهيلات:**

**قوله:** قَالَ لِرَجُلَيْنِ:

**د قاصدانو مصداق:** دا دوه قاصدان وو دَ يونوم عبدالله بن نواحه وو اودَ بل نوم ابن اثال وو لکه چه په حديث نمبر (۳۹۸۳) کښې راځی.

**قوله:** جَاءَا مِنْ عِنْدِ مُسَيْلِمَةَ:

**د مسيلمه کذاب پيژندګلو:** داسړې مسيلمه کذاب وو چه دَحضورپاك دَ وصال نه پس ئې دَ نبوت دعویٰ کړې وه. بلکه دَحضورپاك په آخری عمرکښې ئې دعویٰ کړې وه. حضورپاك له په يووفدکښې دې هم راغلې وو مګر ملاقات ئې نه دې کړې ده حضورپاك ته يوخط ليکلې وو حضورپاك په جواب کښې "الی مسيلمة الکذاب" ليکلې وو هم په دې سره کذاب مشهورشو. حضرت صديق اکبر ﷺ چه دَ مرتدينو خلاف کوم جنګونه کړې وو په هغې کښې زيات جنګونه هم دې مسيلمه کذاب سره شوی وو حضرت خالد ﷺ په ده باندې حمله اوکړه مسيلمه کذاب سره څلويښت زره طاقتور فوج وو دَ يمامه په جنګ کښې په يوه قلعه کښې لاس په لاس جنګ اوشوپه ګڼ شميرکښې صحابه کرام شهيدان شو. وحشی بن حرب ﷺ په مسيلمه کذاب باندې حمله اوکړه او قتل ئې کړو دغه وخت دَ مسيلمه کذاب عمر ۱۲۰ کاله وو. چرته چه دا جنګ اوشو دَ اکثرو مړو دَ وجې نه دَ دغه ځائې نوم حديقة الموت مشهورشوې وو الرسل قاصد چه څنګه پيغام راوړی هم هغه شان واپس پيغام اوړی هم په دې وجه دا په خپل مينځ کښې دَ رابطې اودَ مذاکراتو واحد ذريعه وی. کوم چه دَ طرفينو په مفادکښې وی. په دې وجه په بين الاقوامی توګه دَ قاصدانو احترام کولې شی اودوی قتلولې نه شی دَ اسلام قانون هم دغه دې ليکن نن صبا چه کوم سفيران وی داصرف جاسوسان وی مګر نوم ئې دَ قاصد اوسفيردې

**قوله:** لَضَرَبْتُ أَعْنَاقَكُمَا:

**په متنبی باندې د ايمان راوړلکی سزا:** يعنی دَحضورپاك په وړاندې دې دواړو قاصدانو دَ مسيلمه کذاب دَ نبوت ګواهی ورکړه په دې وجه واجب القتل وو خو که قاصدان نه وې.

**[۲۹۸۳] د جاهليت په زمانه کښې د شوو وعدو پوره کولو حکم**

۲۹۸۳—[۷] (¹) [۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ فِي خُطْبَتِهِ [۳] أَوْفُوا بِحِلْفِ الْجَاهِلِيَّةِ فَإِنَّهُ لَا يَزِيدُهُ يَعْنِي الْإِسْلَامَ إِلَّا شِدَّةً [۴] وَلَا تُحْدِثُوا حِلْفًا فِي الْإِسْلَامِ». [۵] رَوَاهُ وَذَكَرَ حَدِيثَ عَلِيٍّ: "الْمُسْلِمُونَ تَتَكَافَأُ" فِي كِتَابِ الْقِصَاصِ.

**ترجمه:** [۱] او عمرو ابن شعيب خپل پلار څخه او هغه د خپل نيکه (دا دا) څخه نقل کوي [۲] چې رسول کريم ﷺ يوه ورځ د خپلي خطبي په دوران کې دا وفرمايل [۳] چې تاسو د زمانه جاهليت قسم پوره کوي ځکه چې هغه يعنى اسلام هغه قسم زيات مضبوطوي مطلب دادى چې خپل قسم او خپل وعده پوره کول په اسلام کې ډير زيات ضروري دى د دې اعتبار څخه اسلامي احکام او ايفايي وعده [۴] او حلف کې څه قضاء نشته او په اسلام کې حلف يعنى قسم ته رواج مه ورکوي. [۵] امام ترمذي رحمه الله داحديث د حسين ابن ذکوان په سند سره بروايت عمرو رضي الله عنه نقل کړي دى او ويلي يې دى چې دا حديث حسن دى. اودعلي رضي الله عنه روايت المسلمون تتکافا دمائهم په کتاب القصاص کې ذکرشوي دي.

**حل اللغات:** ① أَوْفُوا: وفا کوئ، پوره کوئ، ② حِلَفِ: معاهده، ③ لَا تُحْدِثُوا: نوې معاهده مه کوئ، ④ تَتَكَافَأُ: برابر دى (يوشان دى).

**تسهيلات:**

**قوله: قَالَ فِي خُطْبَتِهِ أَوْفُوا بِحِلْفِ الْجَاهِلِيَّةِ:**

**دجاهليت د زمانې معاهدې د پوره کولو حکم:** يعنى دَ جاهليت په زمانه کښې چه کومه معاهدې شوې ده دَهغې خيال اوساتئ اسلام هغه نه ماتوى بلکه نوره ئې مضبوطه اومستحکم کوى. ليکن په دې کښې به هغه تولو قواعدو ته کتلې شى چه دَ اسلام دَ قواعدو مطابق وى دَ اسلام مخالف قواعدبه په ځائى نه شى ساتلې.

**قوله: وَلَا تُحْدِثُوا حِلْفًا فِي الْإِسْلَامِ:**

**من جانب الله د ميراث دحقوقو تقررى:** يعنى دَميراث دَ احکاماتودَ نافذ کيدونه پس دَ بل څه نوې معاهده ضرورت نشته چه څوك چالره خپل وارث جوړولو معاهده اوکړى ځکه چه کوم حقوق اسلام ورکړى دى ميراث هغه متعين کړى دى.

(¹) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب السير عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب ما جاء فى الحلف (رقم-١٥٨٥)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۲۹۸۴] د قاصدانو د قتلولو څخه ممانعت**

۳۹۸۳-[۸] (۱) [۱] عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ [۲] «جَاءَ ابْنُ النَّوَّاحَةِ وَابْنُ أُثَالٍ رَسُولَا مُسَيْلِمَةَ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ لَهُمَا [۳] أَتَشْهَدَانِ أَنِّي رَسُولُ اللَّهِ [۴] فَقَالَا نَشْهَدُ أَنَّ مُسَيْلِمَةَ رَسُولُ اللَّهِ [۵] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - آمَنْتُ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ [۶] وَلَوْ كُنْتُ قَاتِلًا رَسُولًا لَقَتَلْتُكُمَا [۷] قَالَ عَبْدُ اللَّهِ فَمَضَتِ السُّنَّةُ أَنَّ الرَّسُولَ لَا يُقْتَلُ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] ابن مسعود ﷺ وايي [۲] چې مسيلمه د نبوت مدعي دوه قاصدان ابن نواحه او ابن اثال د رسول كريم ﷺ په خدمت كې حاضر شو حضور ﷺ هغوى ته وفرمايل [۳] آيا تاسو ددي حقيقت شاهدى وركوي چې زه د الله رسول يم [۴] هغه دواړو وئيل نه. بلكه مونږ د دې امر شاهدي وركوو چې مسيلمه د خداى رسول دى [۵] نبي كريم ﷺ په دې اوريدو سره وفرمايل ما په الله او د هغه په رسول ايمان راوړي دي [۶] كه زه د قاصدانو او استازو قتلونكى وى نو يقينًا مابه تاسو دواړه قتل كړي وو [۷] عبد الله ابن مسعود ﷺ وايي د حضور ﷺ د دې ارشاد گرامي پيشِ نظر بيا داسنت جارې شو يعنى دا ضابطه وگرځيده چې هيڅ قاصد او استازي دې نشي قتلولى برابره خبره ده كه هغه هرڅومره غير مناسب خبره ولي ونه كړي او د قتل شزا دار ولي نه وي. (احمد)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَقَالَ لَهُمَا أَتَشْهَدَانِ أَنِّي رَسُولُ اللَّهِ:

**د مسيلمه د قاصدانو سره د نبى عليه السلام مكالمه:** حضورپاك دَ مسيلمه كذاب دَ دوو قاصدانو نه دَ خپل نبوت اورسالت گواهي اوغوښتله نوهغوى په جواب كښې اووئيل چه مونږ خو صرف مسيلمه رسول منو په دې وجه ستاسو دَ نبوت گواهى نه شو وركولې دَدې په جواب كښې حضورپاك دَ لوئى منصف په حيثيت سره جواب كښې اوفرمائيل چه زه الله تعالى اودَهغه رسولان منم مسيلمه كذاب رسول نه دې بلكه كذاب اوملعون دې اوستاسو دَ ناخوښه خبرو اترو په وجه تاسو واجب القتل ئى ليكن زه قاصدان نه قتلوم په دې وجه تاسو بچ شوئى.

(۱) اخرجه احمد فى المسند: ۱/ ۳۸۴

# [۷] بَابُ قِسْمَةِ الْغَنَائِمِ وَالْغُلُولِ فِيهَا]

## دَ مال غنیمت تقسیم او په دې کښې خیانت بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه تسعة وأربعون حديثاً مشتملة على أربع عشرة مسئلة:**

① حل الغنائم للأمة المحمدية: ۱، ۱۷، ۲۸.

② التنفيل وإيفاءه: ۲، ۵، ۷، ۶، ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۲۳، ۴۳، ۴۴. ذكرهذا تبعا و تتميما.

③ سهام الراكب والراجل في الغنيمة: ۳، ۲۲.

④ عدم السهم في الغنيمة للمرأة والعبد والصبي: ۴، ۲۱.

⑤ رد مال المسلم إليه بعد الآخذ من الكفار: ۸.

⑥ حكم الخمس: ۹، ۱۰، ۴۲، ۴۷.

⑦ حكم الفيئ: ۱۰.

⑧ الزجرلمن يغل في الغنيمة: ۱۱، ۱۲، ۱۴، ۲۷، ۲۸، ۲۹، ۳۰، ۳۱، ۳۲، ۴۰، ۴۹.

⑨ جوازالانتفاع ببعض الغنائم: ۱۵، ۱۶، ۳۶، ۳۷، ۳۸.

⑩ جواز التنفيل بعد إخراج الخمس: ۲۴، ۲۵.

⑪ السهم في الغنيمة لمن يحضر القتال: ۲۶.

⑫ إصطفاء النبي ﷺ سيفه ذالفقار: ۳۴.

⑬ إعطاء الغنيمة للمؤلفة القلوب: ۴۵.

⑭ السهم لبعض الغائبين: ۴۶.

**دغنیمت لغوی معنی:** غنائم دَ غنیمت جمع ده.میدان جهادکښې دَ جنګ په ذریعه چه دکافرانونه کوم مال حاصلیږی هغې ته مال غنیمت وائی. که یومال دَ جنګ نه بغیرحاصل شی هغې ته مال فئی وائی دکوم ذکرچه په جداباب کښې راتلونکې دې مال غنیمت ته انفال اونفل هم وائی. نفل دَ زیاتی په معنی کښې دې. چونکه دَ جهاداصل مقصود اعلاء کلمة الله وی اومال دَ دغه مقصود نه زیاتی وی په دې وجه دې ته نفل او زیاتی وئیلې شی

**غنیمت سره متعلق بعضې اصطلاحات:**

① **الغنيمة**: په جهادفی سبیل الله کښې دَ متو په زور باندې چه دَ کافرانونه کوم مال اخستې شی هغې ته غنیمت وائی.

② **الفئ**: دَ جنګ نه بغیرصرف په کافرانوباندې دَحملې په ذریعه چه کوم مال حاصلیږی هغې ته مال فئ وائی.

③ **تنفیل**: دا دَنفل نه دې کوم چه دَ زیاتی په معنی کښې دې بادشاه یا دَ جنګ امیر په څه کارنامه باندې دَ مجاهد دَپاره دَ انعام چه کوم اعلان کوی هغه تنفیل دې مثلاً بادشاه وائی که چا فلانکې قلعه فتح کړه نو هغه ته به دَ دغه قلعې دَ مال لسمه حصه مال ورکولې شی یا د کافر بادشاه لور به هغه ته ملاویږی.

④ **السلب**: سلب په زور دَاخستلو په معنی کښې دې بادشاه یا امیرالحرب چه کله اعلان اوکړی چه کوم سړی کوم کافر قتل کړو نو هغه ته به دَ دغه مقتول دَبدن سامان ملاویږی. مثلاً ګهړئی کپړې څپلې دَ جیب سامان وسله او سورلی وغیره ټول په سلب کښې داخل دی.

⑤ **الرضخ**: رضخ دَعطیه یعنی ورکړې په معنی کښې دې. کوم خلقو ته چه دَ مال غنیمت نه حصه نه شی ورکولې هغه که په جهاد کښې چرته حاضر شی نو دَغنیمت دَحصې په ځائی هغه ته څه ورکړه کیږی هم دغې ته رضخ وائی. دَ خمس اخوا کولو نه پس دَباقی مال نه دا عطیه غلامانو ماشومانو او ښځو ته ورکولې شی.

⑥ **الصفی**: صفی دَ انتخاب او خوښولو په معنی کښې دې دَغنیمت دَتقسیم نه وړاندې به نبی کریم چرته یوه توره یا زغره یا وینځه منتخب کوله او اخستله به ئی دَدې نوم صفی وو چنانچه وئیلی شی چه ام المؤمنین صفیة ﷞ من الصفیة دَ نبی کریم نه پس دا حصه منسوخ کړې شوه. اوس دْ یو بادشاه دَ پاره دَمال غنیمت نه صفی اخستل جائزنه دی.

⑦ **غلول**: په مال غنیمت کښې خیانت ته غلول وئیلی شی چه ډیره لویه ګناه ده باقی تفصیلات زما دَ کتاب دعوت جهاد په ابواب غنائم کښې دی هلته کتل پکاردی

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۳۹۸۵] مسلمانانو دپاره د مال غنیمت د مال حلال والی

۳۹۸۵—[۱] (۱) [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] قَالَ " «فَلَمْ تَحِلَّ الْغَنَائِمُ لِأَحَدٍ مِنْ قَبْلِنَا، [۳] ذَلِكَ بِأَنَّ اللّٰهَ رَأَى ضَعْفَنَا وَعَجْزَنَا [۴] فَطَيَّبَهَا لَنَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] حضرت ابوهریره ﷛ د رسول الله ﷺ څخه نقل کوي [۲] چه حضور ﷺ وفرمایل د غنیمت مال زمونږ څخه مخکې هیڅ امت د پاره حلال نه وو [۳] هرکله چې الله ﷻ زمونږ مالي حیثیت کمزورې او مونږیې عاجز ولیدو [۴] نو دا مال غنیمت یې زمونږ د پاره حلال اوګرځولو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات**: ① طَيَّبَهَا: پاک ئې اوګرځولو مونږ دپاره، یعنی حلال ئې کړو راته.

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب فرض الخمس/باب قول النبیّ صلّی الله علیه وسلّم: «احلّت لکم الغنائم» (رقم-۳۱۲٤) ومسلم فی کتاب الجهاد والسّیر/باب تحلیل الغنائم لهذه الأمّة خاصّة (رقم-۳۲ - (۱۷٤۷) واحمد فی المسند: ۳۱۷/۲

**تسهيلات:**

**قوله: فَلَمْ تَحِلَّ الغَنَائِمُ لِأَحَدٍ مِنْ قَبْلِنَا:**

**دامت محمدی بعضي خصوصيات:** ① پخوانوامتونوکښې دَ غنيمت مال او دَ قربانئ غوښه استعمالول منع وو دَ آسمان نه به اور راتلو اوقبول شوې مال به ئې سوزولو. دَدې امت دَپاره په الله تعالى حلال اوګرځول.

② په يهوديانو باندې وازګه حرام کړې شوې وه

③ دَ پخوانو امتونودَپاره دَ جمات نه بهر اودَ جمع نه بغير مونځ کول جائز نه وو دَدې امت ④ دَپاره دا ټول جائز دی.

⑤ دَ پخوانوامتونودَپاره دَ اوبو نه علاوه دَ طهارت دَ حاصلولو بل هيڅ ذريعه نه وه دَدې امت دَپاره ئې خاوره دَ اوبوپه ځائې کړه اودَ تيمم حکم ورکړې شو.

⑥ په يهوديانو دَ هفتې په ورځ دَ کبانو ښکار کول حرام وو

⑦ په يهوديانو دَ اوښ غوښه حرام وه.

⑧ پخوانوامتونوچې به دَ شپې ګناه کوله نودَ ورځې به ورته په دروازه ليکلې شوې.

د پخوانو امتونو په کپړا چه به نجاست لګيدلو نوهغه به ئې پرې کوله دَ وينځلو اجازت نه وو.

**[۳۹۸۶] د مقتول سلب د قاتل دپاره**

۳۹۸۶ — [۲] ( )[1] ① وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، ② قَالَ: «خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَامَ حُنَيْنٍ، ③ فَلَمَّا الْتَقَيْنَا كَانَتْ لِلْمُسْلِمِينَ جَوْلَةٌ، ④ فَرَأَيْتُ رَجُلًا مِنَ الْمُشْرِكِينَ قَدْ عَلَا رَجُلًا مِنَ الْمُسْلِمِينَ، ⑤ فَضَرَبْتُهُ مِنْ وَرَائِهِ عَلَى حَبْلِ عَاتِقِهِ بِالسَّيْفِ، ⑥ فَقَطَعْتُ الدِّرْعَ، ⑦ وَأَقْبَلَ عَلَيَّ ⑧ فَضَمَّنِي ضَمَّةً ⑨ وَجَدْتُ مِنْهَا رِيحَ الْمَوْتِ، ⑩ ثُمَّ أَدْرَكَهُ الْمَوْتُ ⑪ فَأَرْسَلَنِي،

**ترجمه:** ① ابو قتاده رضی الله عنه وايي چه ② (د فتح مکي څخه وروسته) د غزوه حنين په کال مونږ (د جهاد د پاره) د رسول الله ﷺ سره روان شو ③ کوم وخت چې کافرو سره زمونږ مقابله وشوه نو څه وخت د پاره مسلمانانو ته د شکست صورت حال مخې ته راغې ④ ما وليدل چې يو مشرك يو مسلمان باندې غالب راغلې دې ⑤ ما د هغه د وروستو څخه د

[1] ) اخرجه البخار ی فی کتاب المغازی/باب قول الله تعالی: {ويوم حنين إذ أعجبتكم كثرتكم فلم تغن عنكم شيئا وضاقت عليكم الأرض بما رحبت ثمّ ولّيتم مدبرين. ثمّ أنزل الله سكينته} [التوبة: ۲۶]- إلی قوله - {غفور رحيم} [البقرة: ۱۷۳] (رقم-۴۳۲۱) ومسلم فی کتاب الجهاد والسّير/باب استحقاق القاتل سلب القتيل (رقم-۴۱ - (۱۷۵۱))و ابو داود فی کتاب الجهاد/باب فی السّلب يعطی القاتل (رقم-۲۷۱۷) والترمذی فی کتاب السّير عن رسول الله صلّی الله عليه وسلّم/باب ما جاء فی من قتل قتيلا فله سلبه (رقم-۱۵۶۲) ومالک فی الموطا کتاب الجهاد/باب ما جاء فی السّلب فی النّفل (رقم-۱۸)

هغه د غاړي په رګ د توري (مضوط) ګذار اوکړو ⑥ نو د هغه زغره مې پريکړله ⑦ هغه مشرك په ما باندې حمله اوکړه ⑧ او هغه دومره زور سره زه دباو کړم ⑨ چې د هغه په وجه ماته د مرګ مزه راغله [يعنى زه مرګ ته نزدې شوم] ⑩ بيا هغه مرګ رالاندې کړو ⑪ نو هغه زه پريښودم.

**حل اللغات:** ① جَوْلَةٌ: ګشت، تاويدل، يعنى کافران په مونږ باندې راتاو شو ② عَلَا: غلبه ئې کړې ده، زور آورشوې دې، ③ حَبْلِ عَاتِقِهِ: د غاړې رګ، ④ الدِّرْعَ: زغره، ⑤ ضَمَّةً: زور، دباو،

① فَلَحِقْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، ② فَقُلْتُ: مَا بَالُ النَّاسِ؟ ③ قَالَ: أَمْرُ اللَّهِ، ④ ثُمَّ رَجَعُوا ⑤ وَجَلَسَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ⑥ فَقَالَ: مَنْ قَتَلَ قَتِيلًا ⑦ لَهُ عَلَيْهِ بَيِّنَةٌ ⑧ فَلَهُ سَلَبُهُ ⑨" فَقُلْتُ: مَنْ يَشْهَدُ لِي؟ ⑩ ثُمَّ جَلَسْتُ، ⑪ فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِثْلَهُ ⑫ فَقُلْتُ: مَنْ يَشْهَدُ لِي؟ ⑬ ثُمَّ جَلَسْتُ، ⑭ ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِثْلَهُ، ⑮ فَقُمْتُ،

**ترجمه:** ① ددې څخه وروسته زه حضرت عمر ابن خطاب سره يوځاى شوم ② او ورته ومې وئيل خلقو ته څه شوي دي [چې د دښمن د مقابلې څخه تښتي]؟ ③ هغوى اوويل د الله حکم داسې دى [يعنى داڅه چې کيږي د قضاء او قدر مطابق کيږي] ④ بيا خلق [ددې عارضې پسپايې څخه وروسته دوباره جنګ د پاره ميدان جنګ ته] واپس راغلل ⑤ او رسول کريم ﷺ په يوځاى کيناستلو ⑥ او وې فرمايل کوم سړى چې د دښمن يو سړى قتل کړو ⑦ او د هغه د قتلولو څوك شاهد وي [اګر که هغه يوشاهد وي] ⑧ نو مقتول څخه اخستل شوى مال به د هغه قتلونکى سړى [يعنى د قاتل] وي ⑨ [په دې اوريدو سره ما اراده وکړه چې د هغه مشرك د قتليدو واقعه بيان کړم ليکن] په زړه کې مې اوويل چې څما شاهدې به کوم سړى اداکوي [چې ما هغه مشرك قتل کړې دى] ⑩ آخر زه کيناستم ⑪ رسول کريم ﷺ دغه شان بيا وفرمايل [چې کوم سړى د دښمن يو سړې قتل کړو او د هغه د قتلولو څوك شاهد وي نو مقتول څخه اخستل شوى مال به د هغه سړي وي] ⑫ ما بيا [دا اودريدلو سره خپله واقعه بيانول وغوښتل ليکن ما] په زړه کې اوويل چې څما شاهدې به کوم سړى اداکوي ⑬ نو زه بيا کيناستم ⑭ رسول کريم ﷺ دغه شان بيا [په دريم ځل] وفرمايل ⑮ دا ځل هم زه ودريدم [خو په ژبې سره مې څه ونه وئيل]

**حل اللغات:** ⑨ سَلَبُهُ: د دشمن پاتې شوى مال،

① فَقَالَ: "مَالَكَ يَا أَبَا قَتَادَةَ؟" ② فَأَخْبَرْتُهُ، ③ فَقَالَ رَجُلٌ: صَدَقَ، وَسَلَبُهُ عِنْدِي فَأَرْضِهِ مِنِّي. ④ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: لَاهَا اللَّهِ، ⑤ إِذًا لَا يَعْمِدُ إِلَى أَسَدٍ مِنْ أُسْدِ اللَّهِ ⑥ يُقَاتِلُ عَنِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ فَيُعْطِيكَ سَلَبَهُ. ⑦ فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "صَدَقَ فَأَعْطِهِ" ⑧ فَأَعْطَانِيهِ، ⑨ فَابْتَعْتُ بِهِ مَخْرَفًا فِي بَنِي سَلِمَةَ؛ ⑩ فَإِنَّهُ لَأَوَّلُ مَالٍ تَأَثَّلْتُهُ فِي الْإِسْلَامِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ حضور ﷺ وفرمایل اې ابو قتاده رضي الله عنه څه خبره ده [چې ته څه عرض او حاجت د پاره برابر ودرېږې او کینې خو په ژبې سره څه نه وایې] ۲ بیا ما حضور ﷺ ته اووئیل [چې ما فلانی مشرك قتل کړې دی] ۳ یو سړې [ځما په خبره اوریدو سره] اوویل [ابوقتاده رضي الله عنه] رښتیا وائې او د هغه مشرك مال زما سره موجود دې تاسو هغوی ځما د طرف څخه راضي کړئ [چې دې خپل حق څخه دستبردارشي او هغه ته د هغه مشرك د مال په عوض کې څه بل څيز ورکړی شي یا هغه په دې خبره راضي کړئ چې هغه زماسره په دې حقله څه مصالحت وکړي] ۴ حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه [دا اوریدو سره هغه سړي ته] اوویل نه، قسم په خدائ داسې نشي کیدی ۵ [رسول کریم ﷺ] په دې معامله کې د ابو قتاده رضي الله عنه د مرضی خلاف څه اراده نه کوي ابو قتاده رضي الله عنه د الله د زمریانو څخه یو زمري دې ۶ چې دالله او د هغه د رسول ﷺ خوشنودي د پاره دښمن سره جنګ کوي بیا دا [څنګه ممکنه ده چې کوم مال باندې د ابوقتاده رضي الله عنه حق دې] هغه تاته درکړي ۷ رسول کریم ﷺ هغه سړي ته وفرمایل ابوبکر رضي الله عنه ټیك وایي ته ابوقتاده رضي الله عنه ته د هغه مشرك (مقتول) مال ورکړه ۸ نو هغه سړی هغه مال ما ته راکړو ۹ او ما وروسته د هغه مال په ذریعه یوباغ واغستلو چې قبیله بنو سلمه کې واقع وو ۱۰ او دا د ټولو څخه مخکنی مال وو چې ماته اسلام راوړلو څخه وروسته حاصل شو. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ⑤ لَاهَا اللهِ: "ای لاوالله" دا قسم دې خو زیات مشهور نه دې. ⑧ مَخْرَفًا: باغ. ⑨ تَأَثَّلْتُهُ: چه ما هغه حاصل کړو، ذخیره کول او حاصلولو ته وائی.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَقَالَ رَجُلٌ: صَدَقَ، وَسَلَبُهُ عِنْدِي فَأَرْضِهِ مِنِّي:

**دحدیث پس منظر:** اصل قصه داسې وه چه یوکافر جنګ حنین کښې یومسلمان پسې شو حضرت ابوقتاده رضي الله عنه دَ شانه هغه کافر په توره باندې اووهلو هغه راتاؤ شو اوحضرت ابوقتاده رضي الله عنه نی دومره دباؤ کړو چه دَ مرګ خوشبوئی بوئی کړه لیکن چونکه کافر ډیر زیات زخمی شوې وو په دې وجه راپریوتلو ابوقتاده رضي الله عنه واپس شو دَهغه دَ بدن سامان یو بل صحابی کوز کړو نبی کریم چه کله دَ سلب اعلان اوکړو نوابوقتاده رضي الله عنه ګواه لټول شروع کړه دې دَپاره چه دَ دغه مقتول سلب حاصل کړې شی. بیا دغه سړی دَ سلب دَ اخستلو اعتراف اوکړو مګر دَ سلب نه واپس کولوخبره ئی اوکړه او په دې باندې صدیق اکبر رضي الله عنه قسم خوړلوسره اوفرمائیل چه داسې به هیڅ کله نه کیږی. بیا نبی کریم سلب ابوقتاده رضي الله عنه ته ورکړو ابوقتاده رضي الله عنه په محله بنی سلمه کښې په دغه سامان باندې یوباغ واخستلو دکوم نه چه هغه مال ذخیره کړو. مخرف باغ ته وائی.

**قوله:** مَنْ يَشْهَدُ لِي؟:

**دمذكوره جملې مطلب:** يعنى ما په زړه كښې اوونيل چه زما په مقتول باندې به زما دپاره څوك ګواهي وركړى صرف اودريدم بيا كيناستم په ژبه مې هيڅ اونه وئيل

**قوله:** فَأَرْضِهِ مِنِّي:

**د راضى كولو درې صورتونه:** يعنى يوسړى اقرار اوكړو چه د مقتول سلب زما سره دې اوقاتل ابوقتاده رضي الله عنه دې اوس په دې درې طريقو كښې ماته هره يوه منظور ده

① تاسو زما دطرفه هغه راضى كړئى

② هغه له دخپل طرف نه څه مال وركړئى

③ هغه دې په مفت كښې ماته مال پريږدى.

**قوله:** إِذًا:

**د ،،اذا،، د استعمال مفهوم:** تنوين سره دې "اى اذا صدق ابوقتادة" يعنى چه كله د ابوقتاده خبره رښتيا وى.

**قوله:** لَا يَعْمِدُ:

**دابوبكر رضى الله عنه د قول مطلب:** د ضرب يضرب نه دې "اى لا يقصد النبى فى إبطال حقه واعطاء سلبه إياك" يعنى چه كله د ابوقتاده رضي الله عنه خبره رښتياوى نو قسم په خدائى چه نبى كريم ﷺ به داسې چرې هم اونه كړى چه دالله تعالى د زمرو نه د يوزمرى مال تاته دركړى

**قوله:** تَأَثَّلْتُهُ:

**د مقتول د سلب په استحقاق كښې مذهبين:**

① دجمهورو په نيز سلب يو ضابطه اوقاعده ده چه چاكوم وخت هم يو كافر مړكړو دهغه سلب هم د دغه قاتل دې

② احناف فرمائى چه سلب مستقل ضابطه نه ده بلكه په وختى توګه باندې د اميرالحرب يا د بادشاه د اعلان په بنياد باندې ملاويږى كه چرې امير اعلان اونه كړو نوچاته به هم نه ملاويږى ظاهر احاديث د جمهورو په حق كښې دى

**[۳۹۸۷] د مال غنيمت تقسيم**

۳۹۸۷-[۳] (¹) [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا: [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَسْهَمَ لِلرَّجُلِ وَلِفَرَسِهِ ثَلَاثَةَ أَسْهُمٍ: [۳] سَهْمًا لَهُ وَسَهْمَيْنِ لِفَرَسِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

¹) اخرجه البخارى فى كتاب الجهاد والسّير /باب سهام الفرس (رقم-۲۸۶۳) ومسلم فى كتاب الجهاد والسّير /باب كيفيّة قسمة الغنيمة بين الحاضرين (رقم-۵۷ - (۱۷۶۲) و ابو داود فى كتاب الجهاد /باب فى سهمان الخيل (رقم-۲۷۳۳) وابن ماجه فى كتاب الجهاد /باب قسمة الغنائم (رقم-۲۸۵۴)

**ترجمه:** [۱] او ابن عمر [۲] وايي چه رسول كريم ﷺ مال غنيمت څخه د يوسړي او د هغه اس د پاره درې حصې ورکړې [۳] يعنې يوه حصه خو خپله د هغه او دوه حصې د هغه د اس (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① سَهْمًا: حصه

**تسهيلات:**

**قوله: ثَلَاثَةَ أَسْهُمٍ:** ميدان جهاد كښې دوه قسمه خلق جنګيږي يوقسم هغه خلق وي چاسره چه اس وي اودويم قسم پيدل خلق وي. اوس دَ اس والا حصه او پيدل والا حصه كښې خوفرق دې چه دَ اس والا ته به زياته ملاويږي او پيدل ته به كمه ملاويږي ليكن دَحصې په تعين كښې دَ فقهاؤ اختلاف دې چه چاته به څومره حصه ملاويږي.

**د فارس مجاهد په حصه كښې دوه مذاهب:**

① دَ ائمه ثلاثه جمهورو په نيزبه پيدل ته يوه حصه ملاويږي او اس والا ته به درې حصې ملاويږي. يوه حصه به دَهغه خپله وي اودوه حصې به هغه ته دَ اس دَ وجهې ملاويږي

② دَ ائمه احناف په نيز به پيدل ته يوه حصه ملاويږي او اس والا ته به دوه حصې ملاويږي. يوه حصه به دَهغه وي اوبله حصه به ئې دَ اس وي

**د اول فريق دليل:** دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دې چه په خپله مدعاباندې واضح دليل دې

**د اول فريق د دليل څخه دوه جوابونه:** ① صاحب هدايه فرمائي دَحضرت ابن عمر رضي الله عنه په دواړو روايتونو كښې تعارض دې نودواړه ساقط دي. لهذادَ حضرت مجمع بن جاريه رضي الله عنه روايت دَ احنافو دَ استدلال دَپاره سالم پاتې شو. (خودا جواب ديرتسلي بخش نه دې)

② دا په تنفيل او نور زياتي انعام باندې محمول دې دې دَپاره چه په دې طريقه سره دَ اسونو والوحوصله افزائي اوشي اوخلق دَ زيات نه زيات اسونه واخلي او جهاد له راشي.

**د دويم فريق دلائل:** ① وَعَنْ مُجَمِّعِ بْنِ جَارِيَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: «قُسِمَتْ خَيْبَرُ عَلَى أَهْلِ الْحُدَيْبِيَةِ، فَقَسَمَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَمَانِيَةَ عَشَرَ سَهْمًا، وَكَانَ الْجَيْشُ أَلْفًا وَخَمْسَمِائَةٍ فِيهِمْ ثَلَاثُمِائَةِ فَارِسٍ، فَأَعْطَى الْفَارِسَ سَهْمَيْنِ، وَالرَّاجِلَ سَهْمًا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** او مجمع رضي الله عنه بن جاريه وايي په خيبر كې حاصل شوي مال غنيمت او زمكه د هغه خلقو په مينځ كې تقسيم شو كوم چې په حديبيه كې شريك وه رسول كريم ﷺ د خيبرمال غنيمت او زمكه اتلس حصو كې تقسيم كړله او صلح حديبيه كې شريك د لښكر تعداد پنځلس سوه سړو باندې مشتمل وو چې په هغه كې درې سوه سواره وه دغه شان سواروته حضور ﷺ دوه حصې وركړې او پياده ته يوه حصه اوابوداود رحمه الله داروايت نقل

کړي دی او ويلي يي دي چې په دي باره کې د ابن عمر رضي الله عنه روايت زيات صحيح دی او په هغه اکثره آئمه وو عمل کړي دی او د مجمع رضي الله عنه په دي روايت کې واهمه واقع شويده مجمع ويلي دي چې دري سوه سواره وه حالانکه د سورو تعداد دوه سوه وو.

**استدلال**: په دي کښې په واضحه توګه باندې ذکر دی چه په خيبر کښې پيدل ته يوه حصه او اس والا ته دوه حصې ورکړې شوې وې الفاظ داسې دی ((فأعطى الفارس سهمين والراجل سهماً)) دَحضرت مجمع بن جاريه رضي الله عنه په روايت کښې دَ اموال غنائم دَ حصو تقسيم اودَ مجاهدينو دَ تعداد بيان هم موجود دې دکوم نه چه دَ احنافو دَ مسلك په واضحه توګه ثبوت کيږي اودَ جمهورو دَ مسلك نفی کيږي. هغه داسې چه دَ خيبر دَ مالونو حصې ۱۸ وې او مجاهدين پنځلس سوه وو په کوم کښې چه درې سوه دَ اسونووالا وو او دولس سوه پيدل وو دَ دريو سوو اسونو والا نه هر سلو کسانو ته دوه دوه حصې ورکړې شوې نو شپږ حصې لاړې باقی دولس حصې پاتې شوې اودَ دولس سوو پيدل والونه هر سل سلو ته يوه يوه حصه ورکړې شوه نو پنځلس سوو مجاهدينو باندې اتلس حصې پوره تقسيم شوې

که چرې دَ جمهورو دَمسلك مطابق دَ اسونو والؤته درې حصې ورکړې شوې وې نودريو سوو مجاهدينو ته به ۹ حصې ملاؤشوې وې او دولس سوو ته به دولس حصې ملاؤ شوې وې نودغه شان به دَ ټول مال غنيمت ۲۱ حصې شوې وې حالانکه دَحضرت مجمع بن جاريه رضي الله عنه په روايت کښې په واضحو الفاظو کښې راغلی دی ((فقسمها رسول الله صلى الله عليه وسلم ثمانية عشر سهماً)) يعنی ټولې اتلس حصې وې.

**د مجمع بن جاريه په حديث باندې د ضعف اعتراض**: دَدې روايت متعلق امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی چه دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنه دا زير بحث روايت اصح او راجح دې اودَ مجمع بن جاريه رضي الله عنه په روايت کښې يوراوی ته وهم شوې دې په حقيقت کښې درې سوا اسونو والا نه وو دوه سوا اسونووالا وو دوو سوو ته شپږ حصې ملاؤ شوې وې.

**داعتراض جواب**: که چرې دوه سوا دَ اسونو والا هم اومنلې شی بيابه هم دَ جمهورو خبره جوړه نه شی ځکه چه داخو فيصله شوې ده چه مجاهدين پنځلس سوه وو چه دَ حديبيه نه نيغ راغلی وو او خيبرکښې جنګيدل که اسونو والا دوه سوا وو نوپيدل ديارلس سوا شو چاته چه که ديارلس حصې ورکړې شوې نوشپږ او ديارلس به نورلس حصې شی حالانکه داخبره فيصله شوې ده چه حصې هم اتلس وې.

② په مصنف ابن ابی شيبه کښې دَحضرت ابن عمر رضي الله عنه روايت د دوی مستدل دې الفاظ ئې دا دی. ((للفارس سهمان وللراجل سهم))

**د مصنف ابن ابی شیبه د روایت وجه ترجیح:** احنافو دحضرت ابن عمر رضي الله عنه روایت راجح گرځولي دي ددې وجه دا ده چه اس د جهاد آله ده او سړي ذی الاله دې د آلې درجه د ذی الاله نه زیاتیدل نه دی پکار ځکه چه انسان د اس نه بغیر جنگ کولې شی لیکن اس بغیرد نسان نه جنگ نه شی کولې

**[۳۸۸] په مال غنیمت کښې د غلامانو او د ښځو دپاره د حصې نشتوالې**

۳۹۹۸ — [۳] ( )[۱] وَعَنْ يَزِيدَ بْنِ هُرْمُزَ، قَالَ: [۲] «كَتَبَ نَجْدَةُ الْحَرُورِيُّ إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ [۳] يَسْأَلُهُ عَنِ الْعَبْدِ وَالْمَرْأَةِ [۴] يَحْضُرَانِ الْمَغْنَمَ، [۵] هَلْ يُقْسَمُ لَهُمَا؟ [۶] فَقَالَ لِيَزِيدَ: اكْتُبْ إِلَيْهِ [۷] أَنَّهُ لَيْسَ لَهُمَا سَهْمٌ، [۸] إِلَّا أَنْ يُحْذَيَا. [۹] وَفِي رِوَايَةٍ: كَتَبَ إِلَيْهِ ابْنُ عَبَّاسٍ: [۱۰] إِنَّكَ كَتَبْتَ إِلَيَّ تَسْأَلُنِي: [۱۱] هَلْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَغْزُو بِالنِّسَاءِ؟

**ترجمه:** [۱] او یزید ابن هرمز وایي [۲] چې نجده حروري ابن عباس رضي الله عنه ته یوخط ولیکلو [۳] چې په هغې کې ئ د غلام او د ښځو په باره کې دا تپوس کړې وو [۴] چې هرکله هغوی د مال غنیمت د تقسیم په وخت موجود وي [۵] نو هغوی ته به هم د مال غنیمت څخه حصه ورکول شي یانه؟ [۶] ابن عباس رضي الله عنه یزید ته یعنی ماته وفرمایل چې ته خما د طرف څخه [نجده حروري ته] دا جواب ولیکه [۷] چې د دې دواړو حصه مقرره نه ده [۸] البته (د تقسیم په وخت) هغوی ته دي دغه شان څه ورکول شي [۹] او په یوروایت کې دا سې دي چې ابن عباس رضي الله عنه [نجده ته] جواب کې ولیکل [۱۰] چې تاخط لیکلو سره زما څخه دا تپوس کړې وو [۱۱] چې آیا رسول الله ﷺ به په جهاد کې ښځې د ځان سره بوتلې

**حل اللغات:** ① الْحَرُورِيُّ دا د حروراً طرف ته منسوب دې چه د کوفې په اړخونوکښې د یو ځائی نوم دې د خوارجو رومبې اجتماع هم په دې مقام باندې شوې وه ② نَجْدَةُ: د خوارجو دمشرنوم دې ③ الْمَغْنَمَ: مال غنیمت. ④ أَنْ يُحْذَيَا: حذی عطیې ته وائی غلامانو او ښځو ته د مال غنیمت نه څه عطیه ورکول

[۱] وَهَلْ كَانَ يَضْرِبُ لَهُنَّ بِسَهْمٍ: [۲] فَقَدْ كَانَ يَغْزُو بِهِنَّ [۳] يُدَاوِينَ الْمَرْضَى [۴] وَيُحْذَيْنَ مِنَ الْغَنِيمَةِ، [۵] وَأَمَّا السَّهْمُ فَلَمْ يَضْرِبْ لَهُنَّ بِسَهْمٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او آیا حضور ﷺ به هغه ښځو ته مال غنیمت څخه حصه ورکوله؟ [نو د دې جواب دادی!] [۲] چې حضور ﷺ به ښځې په جهاد کې د ځان سره بوتلې [۳] چې د بیمارانو دارودرمل به یې کول! اود زخمیانو مرهم پټئ به یې لګوله! [۴] اوهغوی ته به دمال غنیمت څخه هسې لږ څه ورکول شو [۵] لیکن هغوی د پاره څه حصه نه وه مقرره شوي (مسلم)

( ) اخرجه مسلم فى كتاب الجهاد والسّير/باب النّساء الغازيات يرضخ لهنّ ولا يسهم. والنّهى عن قتل صبيان أهل الحرب (رقم-۱۳۹ - (۱۸۱۲) و ابو داود فى كتاب الجهاد/باب فى المرأة والعبد يحذيان من الغنيمة (رقم-۲۷۲۷)

**تسهيلات:**

**قوله: أَنَّهُ لَيْسَ لَهُمَا سَهْمٌ، إِلَّا أَنْ يُحْذَيَا:**

**د غلامانو او ښځو په مالِ غنيمت کښې عدم حصه:** غلامانو او ښځو ته حصه نه شي ورکولې صرف دَ خوشحالولو اوزړه ساتنې په توګه څه عطيه ورکولې شي څکه چه په دوی باندې دَ جنګيدو ذمه واری نشته دې هم دغه مسئله دَ نابالغ هلکانو هم ده

**[۳۹۸۹] بعضې مجاهدينو ته دانعام په توګه دزياتی ورکولو جواز**

۳۹۸۹—[۵] ( )١ وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: "٢ «بَعَثَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِظَهْرِهِ مَعَ رَبَاحٍ غُلَامِ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٣ وَأَنَا مَعَهُ، ٤ فَلَمَّا أَصْبَحْنَا ٥ إِذَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ الْفَزَارِيُّ قَدْ أَغَارَ عَلَى ظَهْرِ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٦ فَقُمْتُ عَلَى أَكَمَةٍ ٧ فَاسْتَقْبَلْتُ الْمَدِينَةَ ٨ فَنَادَيْتُ ثَلَاثًا: يَا صَبَاحَاهُ،

**ترجمه:** ١ او سلمه ابن اکوع ﷺ وايي چه ٢ [د مسلمانانو او د قريشو په مينځ کې وعده کيدو څخه [وروسته حديبيي څخه د واپس راتلو په دوران کې په لار کې] رسول کريم ﷺ د خپلې سورلئ اوښ رباح سره چې د رسول کريم ﷺ غلام وو مخکې وليږلو ٣ زه هم رباح سره شوم [مونږ دواړو د شپې په يوځای کې قيام اوکړو] ٤ کوم وخت چې سحر شو ٥ نو مونږ ته معلومه شوه چې عبد الرحمن فزاري [چې د مسلمانانو يومشهور دښمن او کافر وو] د رسول کريم ﷺ په اوښانو يې حمله وکړله [او هغه يې د ځان سره وتښتول] ٦ زه يوې غونډې (ټيلې) باندې وختم ٧ او د مدينې طرف ته مې مخ کړو ٨ او درې ځله مې يا صباحاه [يعنی خبردار دښمن را ورسيدو] نعره هم بلنده کړه

**حل اللغات:** ① بِظَهْرِهِ: په واپسئ کښې. ② أَغَارَ: حمله کولو او تباهئ کولوته ونيلې شي ③ أَكَمَةٍ: اوچتې غونډئ ته وائی

١ ثُمَّ خَرَجْتُ فِي آثَارِ الْقَوْمِ ٢ أَرْمِيهِمْ بِالنَّبْلِ، ٣ وَأَرْتَجِزُ وَأَقُولُ: ٤ أَنَا ابْنُ الْأَكْوَعِ وَالْيَوْمُ يَوْمُ الرُّضَّعِ ٥ فَمَا زِلْتُ أَرْمِيهِمْ ٦ وَأَعْقِرُ بِهِمْ ٧ حَتَّى مَا خَلَقَ اللهُ مِنْ بَعِيرٍ مِنْ ظَهْرِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ٨ إِلَّا خَلَّفْتُهُ وَرَاءَ ظَهْرِي، ٩ ثُمَّ اتَّبَعْتُهُمْ أَرْمِيهِمْ ١٠ حَتَّى أَلْقَوْا أَكْثَرَ مِنْ ثَلَاثِينَ بُرْدَةً ١١ وَثَلَاثِينَ رُمْحًا ١٢ يَسْتَخِفُّونَ، ١٣ وَلَا يَطْرَحُونَ شَيْئًا ١٤ إِلَّا جَعَلْتُ عَلَيْهِ آرَامًا مِنَ الْحِجَارَةِ،

**ترجمه:** ١ زه د هغه قوم [يعنی د عبد الرحمن او د هغه د ملګرو] قدمونو په نښه روان شوم ٢ او تير پسې مې بل تير ويشتلو ٣ هغه وخت خما په ژبه اوچت آواز کې رجز يعنی رزميه شعر وو ٤ أَنَا ابن الاکوع واليوم يوم الرُّضَّع [يعنی اي د دين دښمنانو په کولاو غوږ

¹) اخرجه مسلم في كتاب الجهاد والسّير /باب غزوة ذي قرد وغيرها (رقم-١٣٢ - (١٨٠٧) واحمد في المسند: ٥٢/٤

واوریئ! زه د اکوع ځوی یم نن ورځ د خرابو خلقو ایعنی ستاسو دښمنانو دینا د هلاکیدو ورځ ده [۵] ما دغه شان برابر تیرونه ویشتل [۶] او د هغوی د سورلو پښي مي پریکولي اپه مخکې تلم! [۷] تردي چې د رسول کریم ﷺ د اوښانو څخه الله پیدا کړی هیڅ اوښ باقي پاتې نه شو [۸] چې ما خپل وروسته نه وي پریښی. [۹] ما تیرونو وررولو سره د هغوی تعاقب جاري وساتلو [۱۰] تردي چې هغوی د دیرشو څخه زیات خپل څادرونه [۱۱] او دیرش نیزې [۱۲] وغورځولې دپاره چه ځان سپک کړی ایعنی هغوی تښتیدوکې خپل څادرونه او خپلي نیزي غورځولي چې د جسم د سپك کیدو په وجه تیښته کې آساني وی! [۱۳] او هغوی چې کوم څیز غورځولو [۱۴] مابه په هغې د نښي په طور کاڼي ایښودل

**حل اللغات**: ⑫ النَّبْلِ: غشی، نیزې، ⑤ وَأَرْتَجِزُ: مادَ رجز شعرونه ونیل ⑥ يَوْمُ الرُّضَّعِ: ددې مفرد راضع دې. کمینه او ذلیل ته وائی ⑦ عَلَى ظَهْرِ: دَ ظهرنه مراد دَ سورلئ اوښان دی ⑧ وَأَعْقِرُ: او خپې مې ماتولې. ⑨ خَلْفَهُ: روسته مې پریخودل هغه. ⑩ بُرْدَةً: څادرونه. ⑪ رُمْحًا: نیزې. ⑫ يَسْتَخِفُّونَ: يعنى زياتى سامان ئى اوغورزولو دې دپاره چه دَ تيختې دپاره سپك شى. ⑬ يَطْرَحُونَ: چه غورزول به هغوى. ⑭ آرَامًا: ددې مفرد ارم دې. علامت ته وائى

[۱] يَعْرِفُهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابُهُ، [۲] حَتَّى رَأَيْتُ فَوَارِسَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۳] وَلَحِقَ أَبُو قَتَادَةَ فَارِسُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَبْدِ الرَّحْمٰنِ [۴] فَقَتَلَهُ [۵] قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۶] خَيْرُ فُرْسَانِنَا الْيَوْمَ أَبُو قَتَادَةَ، [۷] وَخَيْرُ رَجَّالَتِنَا سَلَمَةُ ". [۸] قَالَ، ثُمَّ أَعْطَانِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَهْمَيْنِ: [۹] سَهْمَ الْفَارِسِ وَسَهْمَ الرَّاجِلِ، [۱۰] فَجَمَعَهُمَا إِلَيَّ جَمِيعًا، [۱۱] ثُمَّ أَرْدَفَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَاءَهُ عَلَى الْعَضْبَاءِ [۱۲] رَاجِعَيْنِ إِلَى الْمَدِينَةِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [۱] چې رسول کریم ﷺ او د هغوی ملګري که وروسته څخه راښي ...ر د به پیژني [۲] تردي چې ماد رسول کریم ﷺ سواره په راتلو ولیدل [۳] "او بیا مې دا ولیدل چې! حضرت ابوقتاده ﷺ چې هغه نه به د رسول کریم ﷺ شهسوار ونیل کیدو عبد الرحمن بي رالاندي کړو اکوم چې هغه د حضور ﷺ اوښان تښتول غوښتل! [۴] او هغه یې قتل کړو [۵] بیا ادي هنګامي ختمیدو څخه وروسته! رسول کریم ﷺ وفرمایل [۶] نن زمونږ په سورو کې د ټولو څخه ښه ابو قتاده ﷺ دي [۷] او په پیادو کې د ټولو څخه ښه پیاده سلمه ابن اکوع دې [۸] د دې څخه وروسته رسول کریم ﷺ اهغه کافرو څخه په لاس راغلی مال زمونږ په مینځ کې تقسیم کړو نو! ماته یې دوه حصې راکړي [۹] یوه حصه د سوار اچې هغه بحسب اختلاف مذهب دوه حصې دي یا دري حصې! او یوه حصه د پیاده [۱۰] دواړه حصې یوځای کولو سره ماته یې راکړي [۱۱] او بیا زه رسول کریم ﷺ خپلي اوښې عضباء باندې ترشا کینولم [۱۲] او د مدینې طرف ته روان شو «مسلم»

**تسهيلات:**

**قوله:** يَا صَبَاحَاهُ:

**دپخوانی زمانی د خطري ټلی**: پخوانئی زمانه کښې به چه څوك دَ امداد دپاره رابللې شو نو دَ عربو په معاشره کښې به داقسم نعري لګولې شوې دَدې مطلب دادې چه دښمن دَ سحرپه وخت کښې حمله کړې ده تیارشئی او امداداوکړئی فوجی کاروائی اکثر دَ سحر په وخت کښې کیږی

**قوله:** وَالْيَوْمُ يَوْمُ الرُّضَّعِ

**د مذکوره رجزپه مفهوم کښې دوه اقوال**: ① نن به هم هغه خلق کامیاب وی چاله چه شریفانو ښځو پیئی ورکړی وی یعنی نن به په پیئو فیصله کیږی دَ بهادرې مور پیئی به ئی بهادر جوړوی اودَ ویریدونکې مور پیئی به ئی وریدونکې جوړوی

② درضع په مفهوم کښې دوه اقوال ددې معنی کمینه او ذلیل دې یعنی نن دَ دغه کمینه او ذلیلو خلقو دَ هلاکت ورځ ده چه په خله کښې سینې نیولوسره پیئی څکی دې دپاره چه دَ پیئو لوشلو آواز څوك نه اوری اوپیئی اونه غواړی

**قوله:** إِلَّا جَعَلْتُ عَلَيْهِ آرَامًا مِنَ الْحِجَارَةِ .

**د آرام لغوی تحقیق**: ددې مفرد ارم دې لکه أعناب اوعنب. علامت ته وائی په کلوکښې اوس هم دا رواج دې چه په لرګی وغیره څیزونو باندې کانړې ایږدی داعلامت وی چه داد چا مال دې نوڅوك دې ته لاس نه لګوی بعضې خلق درې کانړی ایږدی کوم چه دَ دریو طلاقو د قسم خوړلوطرف ته اشاره کوی ارم په معنی دَعلامت دې

**[٣٩٠٠] بعضې مجاهدینوته د هغوی د حصې څخه زیاته برخه ورکول**

٣٩٠٠ – [٢] (١) ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا: ②«أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُنَفِّلُ بَعْضَ مَنْ يَبْعَثُ مِنَ السَّرَايَا، ③لِأَنْفُسِهِمْ خَاصَّةً ④سِوَى قِسْمَةِ عَامَّةِ الْجَيْشِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ① او ابن عمر ﷠ وایي ② چه رسول کریم ﷺ به بعضې خلقو د پاره څه زیاته حصه مقررکوله کوم چې به هغوی د جهاد دپاره لیږل ③ د عام لښکر په نسبت دا حصه به خاص کرده هغوي دپاره وه ④ دعام لښکر دحصې څخه سوا (زیاتی حصه به وه) (بخاري مسلم)

**حل اللغات**: ① يُنَفِّلُ: زیاتی حصه به ئې مقرروله

(١) اخرجه البخاري في كتاب فرض الخمس/باب: ومن الدّليل على أنّ الخمس لنوائب المسلمين (رقم-٣١٣٥) ومسلم في كتاب الجهاد والسّير/باب الأنفال (رقم-٣٩ - (١٧٥٠) و ابو داود في كتاب الجهاد/باب في نفل السّريّة تخرج من العسكر (رقم-٢٧٤٦)

**تسهیلات:**

**قوله: كَانَ يُنَفِّلُ بَعْضَ مَنْ يَبْعَثُ مِنَ السَّرَايَا:**

**بعضې مجاهدینوته د زیاتی ورکولو بعضې وجوه:** نبی کریم ﷺ به د مال غنیمت په تقسیم کښې بعضو مجاهدینو ته د خپلې حصې نه هم زیاته حصه ورکوله، او د دې زیاتی حصه ورکولو بعضې وجوهات دا کیدې شي

① زیاته حصه ورکول جهاد طرف ته د رغبت ورکولو په وجه وو او دا د لښکر امیر د پاره جائز دی

② زیاته حصه ورکول د بهادرۍ په وجه وو

**[۳۳] ابن عمر رضی الله عنه ته د خمس څخه زیاتی حصه ورکول**

۳۳ - [۷] (١) [١] وَعَنْهُ، قَالَ [٢] «نَفَّلَنَا رَسُولُ اللهِ نَفَلًا سِوَى نَصِيبِنَا مِنَ الْخُمُسِ، [٣] فَأَصَابَنِي شَارِفٌ، [٤] وَالشَّارِفُ: الْمُسِنُّ الْكَبِيرُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او ابن عمر رضی الله عنهما وايي [٢] چه يو وخت رسول کريم ﷺ مونږ خلقوته د خمس د مال څخه زمونږ د مقرر حصو څخه علاوه هم څه زيات مرحمت کړل [٣] نو څما حصه کې يو شارف راغلو [٤] او شارف هغه اوښي ته وايي چې بوډئ او د ډير عمر وي (مسلم)

**حل اللغات:** ① نَفَلًا: زياتي. ② شَارِفٌ: أي الْمُسِنُّ الْكَبِيرُ: ډير عمر والا اوښه.

**تسهیلات:**

**نوټ:** د ترجمې څخه مطلب واضح دی

**[۳۴] د مسلمانانو په مال د کافرانو د قبضې حکم**

۳۴ - [۸] (٢) [١] وَعَنْهُ، قَالَ: [٢] «ذَهَبَتْ فَرَسٌ لَهُ [٣] فَأَخَذَهَا الْعَدُوُّ، [٤] فَظَهَرَ عَلَيْهِمُ الْمُسْلِمُونَ [٥] فَرُدَّ عَلَيْهِ فِي زَمَنِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [٦] وَفِي رِوَايَةٍ: [٧] أَبَقَ عَبْدٌ لَهُ [٨] فَلَحِقَ بِالرُّومِ [٩] فَظَهَرَ عَلَيْهِمُ الْمُسْلِمُونَ، [١٠] فَرَدَّ عَلَيْهِ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ [١١] بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] او د ابن عمر رضی الله عنهما په باره کې منقول دی [٢] چه يو ځل د هغه اس وتښتيدلو [٣] چې دښمنانو (يعنی کافرو) اونيولو [٤] بيا چې مسلمانانو ته په هغه کافرو فتح حاصله شوه (او د هغوی مال غنيمت کې هغه اس هم راغلو) [٥] نو ابن عمر رضی الله عنهما ته د هغه اس ورکړې شو (او هغه مال غنيمت کې شمير نه شو) او دا (واقعه) د رسول کريم ﷺ د

(١) اخرجه مسلم فی كتاب الجهاد والسير/باب الأنفال (رقم-٣٨ - (١٧٥٠)

(٢) اخرجه البخاری فی كتاب الجهاد والسير/باب إذا غنم المشركون مال المسلم ثمّ وجده المسلم (رقم-٣٠٦٧) و ابن ماجه فی كتاب الجهاد/باب ما أحرز العدوّ ثمّ ظهر عليه المسلمون (رقم-٢٨٤٧)

زماني ده ⑥ او په يو روايت کې دادی ⑦ چې د ابن عمر ﷜ غلام اوتښتيدلو ⑧ او روم ته ورسيدو ⑨ بيا چې مسلمانانو ته په روميانو فتح حاصله شوه ⑩ نو خالد ابن وليد ﷜ ابن عمر ﷜ ته د هغه غلام ورکړو ⑪ او دا د نبي کريم ﷺ د زماني څخه وروسته واقعه ده. (بخاري)

**حل اللغات:** ①ظَهَرَ: غلبه حاصله کړه، زورآور شو، ②أَبَقَ: اوتختيدو.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَأَخَذَهَا الْعَدُوُّ:

**دمذکوره جملې مطلب:** يعنى دَحضرت ابن عمر ﷜ اس اوتختيدو نودښمن اونيولو بيامسلمانان غالب شو او اس ئې دَهغوی نه واپس کړو دغه شان دَهغوی غلام تختيدلې ووبيا مسلمانان غالب شو نوهغه هم مسلمانانو واپس کړو

**په مال مسلم دکافر قبضه سبب د ملکيت دې که نه په دې کښې ۲ مذاهب:**

که چرې کافران دَ مسلمانانوڅه مال باندې غلبه اوکړي او خپل ځان سره ئې يوسی اواحراز هم اوکړي نوآيا هغه خلق به دَ دغه مال مالکان شی که نه؟ په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې

①امام شافعي ﷫ فرمائي چه کافران به دَ دغه مال مالکان کيږی نه داچه دَ چا مال دې هم دَهغه به وی نوکه روستو بيا مسلمانانوغلبه حاصله کړه اوهم هغه مال ئې په زور واخستلو نودَشوافعو په نيزبه دا مال اصل مالك ته ورکولې شی لکه چه دامال دَهغه دَملکيت نه نه دې وتلې

② دَجمهورو په نيزبه کافران دَ دغه مال مالکان شی. نوکه چرې دا مال په کافرانوکښې نه دې تقسيم شوې اودَ مسلمانانو لاس ته دَ تقسيم نه مخکښې راغلو نودابه دَ اصل مالك وی. ليکن په کافرانوکښې دَ تقسيميدو نه پس که دَ مجاهدينو لاس ته راغلو نواوس به دا په مال غنيمت کښې شاملولې شی اوپه عامو مسلمانانو به تقسيمولې شی.

**داول فريق دلائل:**

① وَعَنْهُ، قَالَ: «ذَهَبَتْ فَرَسٌ لَهُ فَأَخَذَهَا الْعَدُوُّ، فَظَهَرَ عَلَيْهِمُ الْمُسْلِمُونَ فَرُدَّ عَلَيْهِ فِي زَمَنِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَفِي رِوَايَةٍ: أَبَقَ عَبْدٌ لَهُ، فَلَحِقَ بِالرُّومِ فَظَهَرَ عَلَيْهِمُ الْمُسْلِمُونَ، فَرَدَّ عَلَيْهِ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**توجمه:** اودابن عمر ﷜ په باره کې منقول دی يووقت د هغه آس وتښتيدلو چې دښمنانو يعنی کافرو اونيولو بيا چې مسلمانانو ته په هغه کافرو فتح حاصله شوه او د هغوی مال غنيمت کې هغه آس هم راغلو نو ابن عمر ﷜ ته د هغه آس ورکول شو او هغه مال

غنيمت کې شمير نه شو دا واقعه د رسول کريم ﷺ د زماني ده او په يو روايت کې دادي چې د ابن عمر رضي الله عنه غلام تښتيدلو سره روم ته ورسيدو بيا چې مسلمانانو ته په روميانو فتح حاصله شوه نو خالد ابن وليد رضي الله عنه ابن عمر رضي الله عنه ته د هغه غلام ورکړي دا د نبي کريم ﷺ د زماني څخه وروسته واقعه ده (بخاري)

② په بخاری کښې د سلمه بن اکوع واقعه ده په هغې کښې سلمه بن اکوع ته د راجل او فارس حصې ملاوشوې وو

**د دويم فريق دليل:** ① جمهورو د "للفقراء المهاجرين" نه استدلال کړې دې طرز د استدلال داسې دې چه د صحابه کرامو اموال په مکه مکرمه کښې وو ليکن د کافرانولاس ته د تلو د وجهې الله تعالی د دغه مال مالکان د فقراؤ په نوم سره ياد کړی دی دې نه معلومه شوه چه د مسلمانانودا مال د کافرانو په ملکيت کښې تلی وو او د تقسيم نه پس کافران د هغې مالکان شوی وو. او د تقسيم نه مخکښې کافران د دغه مال مالکان نه جوړيږی

**د تخيلى غلام د واپس ملاويدو په مسئله کښې ۲ مذاهب:**

که چرې غلام مرتد کيدوسره اوتختيدو نو د ټولو امامانوپه نيز اتفاقاً کافران به د هغه مالکان شی.

① که مسلمان يا ذمی غلام اوتختيدو اوکافران د هغې مالکان شی نو امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی چه کافران د دې مالکان کيدې نه شی.

② مګر جمهور وائی چه د مرتد غلام په شان د مسلمان غلام به هم کافران مالکان شی

**د فريقينو دلائل:** دواړو فريقو د زير بحث حديث د اجزاؤ نه استدلال کړې دې مګر دا باريک اجتهادی فرق دې په دې وجه د دلائلو ضرورت نشته.

**[۳۳] د خيبر د مال خمس څخه د بنوعبد شمس اوبنو نوفل محروميا**

۳۳- [۹] (۱) [۱] وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: [۲] «مَشَيْتُ أَنَا وَعُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۳] فَقُلْنَا: أَعْطَيْتَ بَنِي الْمُطَّلِبِ مِنْ خُمُسِ خَيْبَرَ، [۴] وَتَرَكْتَنَا [۵] وَنَحْنُ بِمَنْزِلَةٍ وَاحِدَةٍ مِنْكَ؟! [۶] فَقَالَ: "إِنَّمَا بَنُو هَاشِمٍ وَبَنُو الْمُطَّلِبِ شَيْءٌ وَاحِدٌ" [۷] قَالَ جُبَيْرٌ: [۸] وَلَمْ يَقْسِمِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِبَنِي عَبْدِ شَمْسٍ وَبَنِي نَوْفَلٍ شَيْئًا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او جبير ابن مطعم رحمه الله وايي [۲] چه زه او حضرت عثمان ابن عفان رضي الله عنه د رسول کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شو [۳] او عرض مو وکړو چې تاسو د خيبر د خمس څخه بنو مطلب ته حصه ورکړله [۴] او مونږ ته مو رانه کړله [۵] حالانکه ستاسو په اعتبار سره مونږ

---

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب غزوة خيبر (رقم-۴۲۲۹)

تول د يوي مرتبي يو ۶ حضور ﷺ وفرمايل [زه د دي څخه علاوه نور په هيڅ نه پوهيږم] چې بنوهاشم او بنو مطلب يودي ۷ حضرت جبير رضي الله عنه وايي ۸ چې رسول كريم ﷺ بنو عبد شمس [يعنى حضرت عثمان رضي الله عنه وغيره] او بنو نوفل [يعنى حضرت جبير رضي الله عنه وغيره] ته څه ورنه كړل (بخاري)

**حضرت جبير بن مطعم رضى الله عنه مختصر تعارف:** نوم ئې جبير كنيت ابومحمد، دَ پلار نوم ئې مطعم قريشي وو. دَ صحيح قول مطابق حضرت جبير رضي الله عنه دَ صلح حديبيه او فتح مكه په مينځنۍ موده كښې مسلمان شوې (۱) دَ حنين په غزوه كښې شريك شوې وو په واپسۍ كښې حضور پاك ﷺ سره وو (۲). دې دَ علم الانساب لوئ عالم وو او په دې كښې ډير ماهر وو. داعلم هغه دَ حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه نه حاصل كړې وو. حضرت عمر رضي الله عنه ته چه كله دَ نسب دَ تحقيقاتو ضرورت پيش شو نو د ده په مدد سره به ئې تحقيقات كول. دې دَ خپل قوم سردار ووخوپه ده كښې دَ تكبر نوم هيڅ څيز نه وو. دَ قريشو په حكيم ترين خلقو كښې دَ ده شمير وو. (۳)

**وفات:** ۵۷ھ كښې مدينه منوره كښې وفات شوې وو. (۴) يوشاعر وائي:

موت سے کس کو رستگاری نہیں ہے؟ — آج وہ کل ہماری باری ہے

**ترجمه:** دَ مرګ نه هيڅ چا ته خلاصې نشته نن هغه مړشو صبا زمونږ واردې.

**مرويات:** دَ هغه نه ۶۰ شپيته احاديث نقل دى په دې كښې شپږ متفق عليه دى. بخارى اومسلم په يو يو كښې منفرد دى.

**تسهيلات:**

**قوله:** مِنْ خُمُسِ خَيْبَرَ:

**دحديث پس منظر:** دَمال غنيمت نه پنځمه حصه دَ بيت المال وى اودَ خمس دا حصه به دَ نبى كريم په ذوى القربى اوفقراء وغيره كښې تقسيميدله دَخيبر مال چه كله راغلو نونبى كريم دَخمس نه خپل ذوى القربى بنوهاشم اوبنوالمطلب ته وركړه مګر بنونوفل او بنى عبدالشمس ته ئى هيڅ ورنه كړل

**د عثمان او د جبير بن مطعم د نبى عليه السلام په خدمت كښې حاضرى:** په دې خبره دَ پوهيدلودَپاره حضرت عثمان رضي الله عنه اوحضرت جبيربن مطعم رضي الله عنه نبى كريم له لاړل اوعرض ئې اوكړو يارسول الله! قرابت كښې مونږ او بنوالمطلب ستاسو دَپاره برابر يو داخبره صحيح ده چه ستاسو تعلق دَ بنوهاشم سره دې په دې فضيلت كښې مونږ مداخلت نه كوو چه بنوهاشم ته دې ولې وركړو ليكن بنوالمطلب اومونږ قرابت كښې ستاسودَپاره

(۱) اصابه).(۲) مسنداحمد ۸۴/۴) (۳) اسدالغابه ۲۷۳/۱) (۴) استیعاب

برابر يو ځکه چه دَ عبدمناف څلورځامن وودکومو نومونه چه دادي. ① هاشم ② مطلب ③ عبدشمس ④ نوفل

نبي کريم دَهاشم دَ اولاد نه وو حضرت عثمان دَ عبدشمس دَ اولاد نه وو حضرت جبير بن مطعم دَ نوفل دَ اولاد نه وو. دَ دې حضراتو شکايت دا وو چه بنوالمطلب ته چه کله په خمس کښې حصه ورکړې شوه نوموږ دې ولې پريخودو حالانکه په قرابت دارئ کښې هيڅ فرق نشته دې؟

**دنبي عليه السلام جواب**: دَ دې په جواب کښې نبي کريم اوفرمائيل چه دَ قرابت حق صرف بنوهاشم اوبنوالمطلب ته حاصل دې ځکه چه دې خلقو په اسلام اوجاهليت کښې دَ يوځائى اوسيدو مظاهره کړې ده. ځکه چه کله قريشو بنوهاشم سره بائيکاټ اوکړو نوبنوالمطلب دَ بنوهاشم ملګرتيا اوکړه اوبنوعبدشمس او بنونوفل بائيکاټ کولوکښې دَ کافرانو پوره ملګرتيا اوکړه لهذا دَهغوى قرابت زمونږ نه ختم شو نو په خمس کښې هم دَهغوى حق پاتې نه شو. راتلونکى حديث نمبر(٣٠٢٧) کښې دَدې واقعې نور تفصيل موجود دې.

**[٣٠٣]د مال فئ حکم**

٣٠٣-[١٠] ()① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "③ «أَيُّمَا قَرْيَةٍ أَتَيْتُمُوهَا ④ وَأَقَمْتُمْ بِهَا، ⑤ فَسَهْمُكُمْ فِيهَا ⑥ وَأَيُّمَا قَرْيَةٍ عَصَتِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ; ⑦ فَإِنَّ خُمُسَهَا لِلَّهِ وَلِرَسُولِهِ، ⑧ ثُمَّ هِيَ لَكُمْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ① او ابوهريره ﷺ وايي ② چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ③ کوم کلي (ښار) ته چې تاسو لاړ شئ ④ او په هغې کې قيام اوکړو ⑤ نو د هغې په مال کې ستاسو حصه ده ⑥ او کوم کلي (ښار) چې د الله او د هغه د رسول ﷺ نافرماني اوکړی ⑦ نو د هغې په مال کې پنځمه حصه د الله او د هغه رسول ﷺ د پاره ده ⑧ او بقيه ستاسو ده (مسلم)

**حل اللغات**: ① عَصَت: نافرمانى اوکړى،

**تسهيلات**:

**قوله**: أَيُّمَا قَرْيَةٍ أَتَيْتُمُوهَا وَأَقَمْتُمْ بِهَا، فَسَهْمُكُمْ فِيهَا:

**د مقبوضه علاقو دوه قسمونه**: ① يعنى داسې زمکې ته تاسو راغلئى او په کښې حصار شوئى چه دَ هغه ځائى خلقو نه جنګ اوکړو اونه ئى مزاحمت اوکړو اودَهغوى مالونه دَ غنيمت په توګه تاسوته ملاؤشو نودا مال فئ دې. په کوم کښې چه مجاهدين مقاتلين

(١٠) اخرجه مسلم فى كتاب الجهاد والسّير/باب حكم الفىء (رقم-٤٧ - (١٧٥٦)) و ابو داود فى كتاب الخراج والإمارة والفىء/باب فى إيقاف أرض السّواد وأرض العنوة (رقم-٣٠٣٦) واحمد فى المسند:٣١٧/٢

اومدینه کښې اوسیدونکې غیرمجاهدین ټول شریکیږي او ټولوته حصه ملاویږي او په دې کښې خمس نه وي
④کوموښاریوچه د الله تعالی نافرمانی کړې ده یعنی دهغه ځائی اوسیدونکود مجاهدینو مقابله اوکړه جنګ ئې اوکړو اوماتې خوړلوسره اوتختیدل اودغنیمت مال مسلمانانو نه ملاؤشو نو په دې کښې به خمس ویستلوسره بیت المال ته حواله کولې شي او باقی څلورحصې به په مجاهدینو کښې تقسیمیږي
**په مال فئ کښې عدمِ خمس:** بهرحال د حدیث خلاصه داده چه مال فئ کښې خمس نه وي په مال غنیمت کښې وي آخری جمله ئې هم لګم کښې ئې فرمائیلي دي چه خمس هم به تاسو مسلمانانو کښې تقسیمیږي زما ذاتی مال نه دې

**[۳۹۹۵] په مال غنیمت کې د خیانت کونکو دپاره عذاب**

۳۹۹۵—[۱۱] ( )[۱] وَعَنْ خَوْلَةَ الْأَنْصَارِيَّةِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [۳] "«إِنَّ رِجَالًا يَتَخَوَّضُونَ فِي مَالِ اللّٰهِ بِغَيْرِ حَقٍّ [۴] فَلَهُمُ النَّارُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي خولة انصاریه رضی الله عنها وایي [۲] چه ما د رسول کریم ﷺ نه دا واوریدل [۳] چې بعضې خلق د الله په مال (یعنی غنیمت، فئ او د زکوة په مال) کې بغیر دځه استحقاق نه تصرف کوي [۴] نو داسې خلق به د قیامت په ورځ د اور سزاوار وي (بخاري)
**د حضرت خوله انصاریه مختصر تعارف:** نوم خوله کنیت ام محمد او ام حبیبه وو د پلار نوم ئې عامر وو. بعضو د پلار نوم قیس بن فهد وئیلې دې او بعض خلقو د عامرقیس بن فهد لقب ورکړې دې. بعضو وئیلی دی چه د خولانیه قبیلې نه وه
**مرویات:** بعض وائی چه د هغې نه هم یوروایت نقل دې او بعضو وئیلی دی چه د هغې نه اته احادیث نقل دی یو روایت کوم چه په کتاب کښې موجود دې هغه بخاری کښې دې. باقی د احادیثو په نورو کتابونوکښې دی د هغې نه نعمان بن ابی العیاش عموماً روایت کوی.
**حل اللغات:** ①يَتَخَوَّضُونَ: خوض ورننوتل او مشغولیدل. دلته په مال غنیمت کښې تصرف کول مراد دی
**تسهیلات:**
**قوله:** إِنَّ رِجَالًا يَتَخَوَّضُونَ فِي مَالِ اللّٰهِ:
**په قومی مالیت کښې د خیانت حکم:** خوض د ورننوتلو په معنی کښې دې دلته په اوقاف، مال غنیمت، زکوة او په مال فئ کښې بې ځایه تصرف کول مراد دی داخبره یاد لرئی چه

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب غزوة خیبر (رقم-۲۸۱۸) واحمد فی المسند: ۶/۴۱۰

په دې احادیثو کښې ظاهراً په غلول او مال غنیمت کښې دَ خیانت کولو الفاظ راغلي دي مګر داصرف مال غنیمت نه دې بلکه مشترکه قومي دولت او دَمسلمانانو امانت مراد دي لهذا په سرکاري ادارو کښې، مذهبي مدارسو کښې اوجهادي اوغیرجهادي تنظیمونو کښې چه کوم مشترکه مالونه وي په هغه ټولو باندې دا الفاظ صادق راځي. ځوک دې دا خیال نه کوي چه داخودَ مال غنیمت دَ خیانت خبره ده زه سرکاري دفتر یا کمپنی یا مدرسه یا دَ تنظیم یا دَ اوقاف په مال کښې خیانت کوم

**[٣٩٩٣] مشترکه قومي څیز کښې دَخیانت مختلف صورتونه**

٣٩٩٣ — [١٢] (١) ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ٢ «قَامَ فِينَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ، ٣ فَذَكَرَ الْغُلُولَ، ٤ فَعَظَّمَهُ وَعَظَّمَ أَمْرَهُ، ٥ ثُمَّ قَالَ: ٦ "لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ يَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ٧ عَلَى رَقَبَتِهِ بَعِيرٌ لَهُ رُغَاءٌ ٨ يَقُولُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! أَغِثْنِي، ٩ فَأَقُولُ لَا أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا، ١٠ قَدْ أَبْلَغْتُكَ. ١١ لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ يَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى رَقَبَتِهِ فَرَسٌ لَهُ حَمْحَمَةٌ،

**ترجمه:** ١ او حضرت ابوهریره رضي الله عنه وايي ٢ چه رسول کریم ﷺ زمونږ مخکښې خطبه ارشاد وفرمایله ٣ او [د هغه خطبې په دوران کښې] په مالِ غنیمت کښې د خیانت ذکر یې اوکړو ٤ حضور ﷺ دا ډیره لویه ګناه وښودله او په ډیر اهمیت سره یې بیان کړله ٥ بیایې وفرمایل ٦ خبردار زه په تاسو کښې هیڅوک د قیامت په ورځ په دې حال کښې ونه وینم ٧ چې هغه په خپل څټ برېږ کونکې اوښ سورکړې (میدان حشر ته) راشي [مثلاً کوم سړی چې مالِ غنیمت کښې د اوښ خیانت وکړي نو هغه سړې به میدان حشر کښې داسې حالت کښې راشي چې د هغه په غاړه به هغه اوښ سوروي او برېږ به کوي] ٨ او بیا ماته دا اووائي یا رسول الله ځما فریاد رسي (شفاعت) وکړئ ٩ او زه د هغه په جواب کښې دا اووایم چې زه اوس ستا د هیڅ شي ذمه وار نه یم [یعنی زه تا د الله د عذاب څخه خلاصولې نشم] ١٠ ځکه چې ماتاته [په دنیا کښې د شریعت احکام] رسولي وو ١١ او خبردار زه په تاسو کښې څوک د قیامت په ورځ په دې حال کښې ونه وینم چې هغه په خپل څټ هنرهنر کونکې اس سورکړې (میدان حشرته) راشي

**حل اللغات:** ① الْغُلُولَ: خیانت. ② لَا أُلْفِيَنَّ: زه اونه وینم. بیا نه مومم. ③ رُغَاءٌ: د اوښ برېږ کول. ④ أَغِثْنِي: زما فریاد رسی اوکړه. زما مدد اوکړه. ⑤ فَرَسٌ: اس. ⑥ حَمْحَمَةٌ: د اس هنرېدل.

(١) اخرجه البخاري في كتاب الجهاد والسير/باب الغلول وقول الله تعالى: {ومن يغلل يأت بما غلّ} [آل عمران: ١٦١] (رقم ٣٠٧٣) ومسلم في كتاب الإمارة/باب غلظ تحريم الغلول (رقم-٢٤ - (١٨٣١) واحمد في المسند: ٤٢٦/٢

۱ فَيَقُولُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! أَغِثْنِي، ۲ فَأَقُولُ: لَا أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا، ۳ قَدْ أَبْلَغْتُكَ، ۴ لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ يَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى رَقَبَتِهِ شَاةٌ لَهَا ثُغَاءٌ ۵ يَقُولُ: يَارَسُولَ اللّٰهِ! أَغِثْنِي ۶ فَأَقُولُ: لَا أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا ۷ قَدْ أَبْلَغْتُكَ. ۸ لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ يَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى رَقَبَتِهِ نَفْسٌ لَهَا صِيَاحٌ ۹ فَيَقُولُ: يَارَسُولَ اللّٰهِ! أَغِثْنِي ۱۰ فَأَقُولُ: لَا أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا ۱۱ قَدْ أَبْلَغْتُكَ. ۱۲ لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ يَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى رَقَبَتِهِ رِقَاعٌ تَخْفِقُ،

**ترجمه:** ۱ اوبیا ماته دا اووائي چې يارسول الله ځما فرياد رسي وکړئ ۲ نو زه به د هغه په جواب کې اووايم چې زه ستا دپاره څه نشم کولې ۳ ځکه چې ماتاته [د شريعت احکام] رسولي وو [يعنې ته مي د مخکې ښخه اګاه کړې وې چې مال غنيمت کې خيانت يا په څه شي کې ناحق تصرف کول لويه ګناه ده] ۴ او خبردار زه په تاسو کې هيڅوك د قيامت په ورځ په داسې حال کې ونه وينم چې هغه خپل څټ باندې بې بې (د ګډې آواز) کونکې بزه (چيلئ) راوړي (ميدان حشرته) راشي ۵ او بيا ماته دا اووائي چې يارسول الله ځما فرياد رسي وکړئ ۶ او زه د هغه په جواب کې دا اووايم چه زه اوس ستا د هيڅ شي ذمه وار نه يم ۷ ځکه چې ماتاته [د شريعت احکام] رسولي وو ۸ او خبردار زه په تاسو کې هيڅوك د قيامت په ورځ په داسې حال کې ونه وينم چې هغه خپل څټ باندې يو چغې وهونکې سړې [يعنې هغه غلام يا وينځه چې هغه د غنيمت قيديانو کې خيانت کولو سره اخستلي وي] سورکړي (ميدان حشرته) راشي ۹ اوبيا ماته دا اووائي چې يارسول الله ځما فرياد رسي وکړئ ۱۰ او زه د هغه په جواب کې دا اووايم چې زه اوس ستا د هيڅ شي ذمه وار نه يم ۱۱ ځکه چې ماتاته [د شريعت احکام] رسولي وو ۱۲ او خبردار زه تاسو کې هيڅوك د قيامت په ورځ داسې حال کې ونه وينم چې هغه په خپل څټ باندې هواکې بنورونکې کپړې اچولې (ميدان حشرته) راشي

**حل اللغات:** ۵ ثُغَاءٌ: د چيلئ يا ګډې بې بې کول. ۸ نَفْسٌ: انسان. ۹ صِيَاحٌ: د انسان چغې او فرياد کول. ۱۰ رِقَاعٌ: د رقعة جمع ده. د کپړې ټوټې. جهنډې. ۱۲ تَخْفِقُ: چه خوزى راخوزى

۱ فَيَقُولُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! أَغِثْنِي، ۲ فَأَقُولُ: لَا أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا، ۳ قَدْ أَبْلَغْتُكَ. ۴ لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ يَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى رَقَبَتِهِ صَامِتٌ، ۵ فَيَقُولُ: يَارَسُولَ اللّٰهِ! أَغِثْنِي، ۶ فَأَقُولُ: لَا أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا، ۷ قَدْ أَبْلَغْتُكَ". ۸ مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ ۹ وَهٰذَا لَفْظُ مُسْلِمٍ، وَهُوَ أَتَمُّ.

**ترجمه:** ۱ او بيا ماته دا اووائي چې يارسول الله ځما فرياد رسي وکړئ ۲ او زه ورته په جواب کې دا اووايم چې زه اوس ستا د هيڅ شي ذمه وار نه يم ۳ ځکه چې ما تاته [د شريعت احکام] رسولي وو ۴ او خبردار زه په تاسو کې هيڅوك د قيامت په ورځ په دې حال کې ونه وينم چې هغه خپل څټ باندې سره زر سپين زر اچولې (ميدان حشرته) راشي ۵ او بيا ماته دا اووائي چې يارسول الله ځما فرياد رسي وکړئ ۶ او زه د هغه په جواب

کې دا اووایم چې اوس زه ستا د هیڅ شي ذمه وار نه یم ۞ ځکه چې ماتاته [د شریعت احکام] رسولي وو ۞ داروایت [د معنی او مضمون په اعتبار څخه] بخاري او مسلم دواړو نقل کړي دي ۞ او الفاظ د مسلم دي چې د بخاري د الفاظو په نسبت پوره او مکمل دي.

**حل اللغات:** ⑫صَامِتٌ: سره زر او سپین زر،

**قوله:** فَذَكَرَ الْغُلُولَ، فَعَظَّمَهُ وَعَظَّمَ أَمْرَهُ:

**په مالِ غنیمت کښې د خیانت کولوسختوالې:** دَ حضرت ابوهریره ﷺ روایت دې چه رسول اکرم ﷺ مونږ ته دَخطبه ورکولودَپاره اودریدو اوپه مال غنیمت کښې دَغلا ذکر کولو سره دا ګناه کبیره اوګرځوله او (دَدې په تنیجه کښې ملاویدونکې) سزا سختی ئې بیان کړه

**قوله:** لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ يَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى رَقَبَتِهِ شَاةٌ:

**دمذکوره جملې مفهوم:** په تاسوکښې دې یو سړې هم په مال غنیمت کښې خیانت کونکې نه شی چه زه هغه دَ قیامت په ورځ په داسې حالت کښې اوګورم چه دَ هغه په سټ باندې چیلئی وی او چغې وهی یا اس وی او هنرېږی اوهغه سړې فریاد کولوسره وائی یارسول الله! زما امداد (شفاعت) اوکړه نوزه به ورته وایم زه ستا امداد (شفاعت) نه شم کولې دَالله تعالی پیغام خوماتاسوته دررسولې وو.

**قوله:** لَا أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا:

**دعدمِ ملک مصداق:** مطلب دادې چه زه به دَ الله تعالی نه ستاسودَ بخښنې په درخواست کولوکښې امدادنه شم کولې ځکه چه شفاعت خودَ الله تعالی په رضاباندې موقوف دې په سورت انبیاء کښې دا مضمون واضحه کولوسره فرمائی: ۞ لَا يَشْفَعُونَ إِلَّا لِمَنِ ارْتَضَى ۞

**قوله:** قَدْ أَبْلَغْتُكَ:

**دمذکوره جملې مطلب:** دَدې جملې نه دَ رسول اکرم ﷺ منشاء داوه چه ماتاسوته دَ حق خبره خودلې وه په دې وجه دَخپل ځان دَ بخښلودَپاره به تاسو سره څه عذرنه وی.(۱)

علامه عینی رحمه الله حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چه دَ مذکوره ارشاد نه دَ رسول الله ﷺ مقصد دَدَغه جرم دَ سختوالی احساس رابیدارول وو ګنی نبی کریم به دَ خپل امت دَ ګناهګارانودَپاره دَ قیامت په ورځ ضرور شفاعت کوی.

---

۱) عمدة القاري: ۱۵/۱۰ وفتح الباري: ۶/۲۲۹.

**قوله: لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ يَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى رَقَبَتِهِ رِقَاعٌ تَخْفِقُ:**

**د مذکوره جملې مطلب:** دَهغه په سټ کښې به دَ کپړې ټکړې وی چه حرکت به کوی. رقاع د رقعة جمع ده دَ کپړې ټکړې ته وائی (۱) تخفق: ای التحرك دَ باب ضرب نه دَدې معنی حرکت کول دی

**د رقاع په مفهوم کښې اقوال:** دَدې لفظ په تشریح کښې شراح حدیث مختلف اقوال نقل کړی دی ① علامه ابن جوزی رحمه الله فرمائی دې نه مطلقًا کپړې مراد دی
② علامه حمیدی رحمه الله فرمائی چه دې نه هغه حقوق مراد دی کوم چه په رقاع کښې تحریر کیږی المراد بها ما عليه من الحقوق المكتوبة في الرقاع خودا رائې ردکولو سره ابن جوزی رحمه الله فرمائی چه رقاع په کپړو باندې محمول کول زیات مناسب او بهتردی (کوم چه حسی اومحسوس کیدونکې څیزدې) ځکه چه په حدیث کښې هم دَ حسی خیانت ذکردې ورد عليه ابن الجوزي: بأن الحديث سيق لذكر الغلول الحسي، فحمله على الثياب أنسب (۲)

**د دویمې رائې تضعیف:** خودَدې رائې په رد کولو سره علامه کرمانی رحمه الله اوعلامه عینی رحمه الله فرمائی چه رقاع نه بعینه کپړې مراد نه دی بلکه دَدې په عموم کښې ځناور نقدی سامان کپړې ټول اجناس شامل دی

**د غنیمت څخه د مالِ مسروقه د واپس کولووجوب:** علامه ابن منذر رحمه الله فرمائی دَ مال غنیمت دَ تقسیمَ نه وړاندې په سارق باندې مسروقه مال واپس کول بالاجماع واجب دی

**د مال مسروقه په مجاهدینوتقسیمولودعدم امکان په صورت کښې ۳ مذاهب:**

① که دا مال دَ اسلامی لښکردَ خوریدونه پس واپس کړې شی او مستحقینوته دَدغه مال رسول ممکن پاتې نه شی نوامام ثوری امام اوزاعی امام مالك او امام احمدبن حنبل رحمهم الله مسلك دادې چه هغه سړې به دَ مسروقه مال خمس امیرته واپس کړی اوباقی حصه دې صدقه کړی (۳)

② امام شافعی رحمه الله فرمائی چه چاسره مال غنیمت وی نودَهغې دوه صورتونه دی
۱- چه مال غنیمت دهغه شرعی حق وی یعنی دَ غنائم دَ تقسیم په وخت دَهغې مالك جوړشوې وی په دې صورت باندې ښکاره خبره ده چه دَهغې صدقه کول واجب نه دی
۲- چه شرعی حق نه وی بلکه غلائی کړې وی نو په دې صورت کښې ښکاره خبره ده چه

(۱) عمدة القاري: ۱۰/۱۵ وإرشاد الساري: ۱۸۲/۵.
(۲) ايضًا.
(۳) المغني لابن قدامة: ۵۲۶/۱۰ كتاب الجهاد أحكام في الغلول، رقم الفصل: ۷۶۰۷ وعمدة القاري: ۱۰/۱۵ وفتح الباري: ۲۲۹/۶ وبذل المجهود: ۲۹۰/۱۲.

دا پردي مال دې او د پردی مال صدقه کول په يو صورت باندې هم جائزنه دی دا مال به د اموال ضائعه په حکم کښې وی يعنی دا به حاکم وخت ته واپس کول واجب وی
③ د احنافو په نيز امام ته اختيار دې چه دهغه سړی مال قبلولو نه انکار کولو سره اووائی چه هغه دې ښخپله مستحق ته دهغه حق اورسوی يا دې دهغې خمس واخلی بيت المال کښې دې جمع کړی باقی حصه دې هغه سړې د لقطه په توګه خپل خان سره اوساتی يا دې مسکينانوته ورکړی يا دې بيت المال کښې جمع کړی. خپل خان سره دې په هغه صورت کښې اوساتی چه کله دهغه اميدوی چه حقدارته به دغه مال اورسوی که چرې اميد ئې نه وی نو بيا دې په مسکينانو کښې تقسيم کړی يا دې بيت المال کښې جمع کړی (۱)

**[۳۸۴] په حقوق المسلمين کښې د خيانت کولو سزا**

۳۸۴-[۱۳] (۲) ① (وَعَنْهُ) قَالَ: ② «أَهْدَى رَجُلٌ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُلَامًا ③ يُقَالُ لَهُ: مِدْعَمٌ ④ فَبَيْنَمَا مِدْعَمٌ يَحُطُّ رَحْلًا لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ⑤ إِذْ أَصَابَهُ سَهْمٌ عَائِرٌ فَقَتَلَهُ، ⑥ فَقَالَ النَّاسُ: هَنِيئًا لَهُ الْجَنَّةُ، ⑦ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَلَّا، ⑧ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ ⑨ إِنَّ الشَّمْلَةَ الَّتِي أَخَذَهَا يَوْمَ خَيْبَرَ مِنَ الْمَغَانِمِ ⑩ لَمْ تُصِبْهَا الْمَقَاسِمُ، ⑪ لَتَشْتَعِلُ عَلَيْهِ نَارًا".

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضی الله عنه وايي ② چه يو کس د رسول کريم ﷺ په خدمت کې يو غلام د هديه په طور پيش کړو ③ چې د هغه نوم مدعم وو ④ (يوه ورځ هغه ميدان جنګ کې) د رسول کريم ﷺ کجاوه خکته کوله ⑤ چې اچانك د يو نامعلومه سړی تير راغلو او هغه باندې ولګيدلو چې د هغې سره هغه په حق ورسيدو ⑥ خلقو اوويل مدعم ته دې جنت مبارك وي (يعنی مدعم خوش قسمته وو چې د حضور ﷺ په خدمت کولو سره شهيد شو او جنت ته ورسيدو) ⑦ په دې اوريدو سره حضور ﷺ وفرمايل نه. داسې نه ده ⑧ په هغه ذات مې دې قسم وي چې د هغه په لاس کې ځما ساه ده ⑨ هغه څادر چې مدعم د خيبر په ورځ د مال غنيمت څخه اخستلې وو ⑩ چه د هغې تقسيم لا نه وو شوې ⑪ هغه اور جوړيدو سره په مدعم شعلې وروي

**حل اللغات:** ① مِدْعَمٌ: د غلام نوم دې ② يَحُطُّ: ښکته کوله ئې، ③ رَحْلًا: کجاوه، ④ عَائِرٌ: نامعلومه غشې چه ناڅاپی راشی او په چا اولګی ⑤ الشَّمْلَةَ: څادر، ⑨ الْمَقَاسِمُ: تقسيم، حصې حصې کول ⑥ لَتَشْتَعِلُ: د اور شعلې تيزول

(۱) بذل المجهود: ۱۲/۲۹۰.
(۲) اخرجه البخاری فی کتاب الأيمان والنذور/ باب: هل يدخل فی الأيمان والنذور الأرض، والغنم، والزروع، والأمتعة (رقم -۶۷۰۷) ومسلم فی کتاب الإيمان/باب غلظ تحريم الغلول، وأنه لا يدخل الجنة إلا المؤمنون (رقم-۱۸۳ - (۱۱۵) و ابو داود فی کتاب الجهاد ، باب فی تعظيم الغلول (رقم-۲۷۱۱)والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: طلاق العبد (رقم-۳۴۲۷) ومالک فی الموطا کتاب الجهاد/باب ما جاء فی الغلول (رقم-۲۵)

١ فَلَمَّا سَمِعَ ذٰلِكَ النَّاسُ ٢ جَاءَ رَجُلٌ بِشِرَاكٍ، أَوْ شِرَاكَيْنِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ٣ فَقَالَ: "شِرَاكٌ مِنْ نَارٍ ٤ أَوْ شِرَاكَانِ مِنْ نَارٍ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ خلقو چې دا شديد وعيد او تنبيه واوريده [چا چې مال غنيمت کې خيانت کول آسان ګڼلي وو او داګمان يې کړي وو چې واړه او حقير څيزونو اخستلو باندې به څه مواخذه نه وي نو هغوی ورپيدل او هغوی چې مال غنيمت څخه کوچني او معمولي څيزونه اخستي وو د هغې واپس راوړل يې شروع کړل ترديچې] ٢ يو سړي يوه تسمه يا دوه تسمي واپس ورکولو د پاره د رسول کريم ﷺ په خدمت کې راوړي ٣ حضور ﷺ د هغې په ليدو وفرمايل دا د اور يوه تسمه ده ٤ يا د اور دوه تسمي دي [يعنی د خيانت څيز به يې په هرحالت کې د دوزخ د اور سزا وار کوی برابره خبره ده که هغه هرڅومره معمولي او حقير شی وي] (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** ⑧ شِرَاكٍ: تسمه، وندني.

**نوټ:** په مال غنيمت کښې د خيانت مضمون په ګڼړو احاديثو کښې بيان شوې دې هغې ته رجوع پکار ده.

## [٣٩٩٨] د مال غنيمت د يو کمبل په وجه جهنم ته تلل

٣٩٩٨ - [١٤] (١) ١ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ٢ «كَانَ عَلَى ثَقَلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ ٣ يُقَالُ لَهُ كِرْكِرَةُ ٤ فَمَاتَ، ٥ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٦ "هُوَ فِي النَّارِ" ٧ فَذَهَبُوا يَنْظُرُونَ ٨ فَوَجَدُوا عَبَاءَةً ٩ قَدْ غَلَّهَا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ١ او عبد الله ابن عمرو ﷺ وايي ٢ چه يو سړی په يوي غزاکي د رسول کريم ﷺ د طرف څخه د سامان او اسباب نګران مقرر شو ٣ چه د هغه نوم کرکره وو ٤ کوم وخت چې هغه وفات شو ٥ نو رسول کريم ﷺ وفرمايل ٦ کرکره په دوزخ کې غورځول شوی دی ٧ خلقو د هغه سامان کتل شروع کړل ٨ نو په هغې کې يو کمبل پيدا شو ٩ چې هغه د مال غنيمت څخه په خيانت اخستي وه (بخاري)

**حل اللغات:** ① ثَقَلِ: بوج. سامان. ② كِرْكِرَةُ: د يو سړی نوم دي. ③ عَبَاءَةً: كمبل. ④ غَلَّهَا: خيانت کړي ئې وو.

**تسهيلات:** **قوله:** عَبَاءَةً: دچوغې په شان څادر او کملی ته عباءة وئيلې شوې دي

(١) اخرجه البخاری فی كتاب الجهاد والسّير/باب القليل من الغلول (رقم-٣٠٧٤) وابن ماجه فی كتاب الجهاد/باب الغلول (رقم -٢٨٤٩) واحمد فی المسند: ١٦٠/٢

**[۳۹۹۹] د تقسیم څخه وړاندې د خوراک څکاک د څیزونو داستعمال جواز**

۳۹۹۹-[۱۵] (¹) وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [۲] «كُنَّا نُصِيبُ فِي مَغَازِينَا الْعَسَلَ وَالْعِنَبَ [۳] فَنَأْكُلُهُ [۴] وَلَا نَرْفَعُهُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي [۲] چه مونږ ته به غزاګانو کې عسل (شهد) او انګور حاصليدل [۳] نو مونږ به هغه خوړل [۴] او وړل به مونه (بخاري)

**تسهيلات: قوله:** كُنَّا نُصِيبُ فِي مَغَازِينَا الْعَسَلَ وَالْعِنَبَ:

**د خوراکي اشياؤ د تقسيم څخه وړاندې د استعمال جواز:** اصول اوقاعده داده چه کوم څیزونه دخوراک څښاک سره متعلق وی یا د اسونو د ګیاه سره متعلق وی نو دمال غنیمت د تقسیم نه مخکښې دداسې څیزونو خوړل او استعمالول جائز دی لیکن دا جائز نه دی چه هغه اوچت کړې شی او یوړلې شی. اوذخیره جوړکړې شی هم ددې ممانعت طرف ته په "ولاترفعه" کښې اشاره ده. د علماؤ په دې باندې اتفاق دې چه مجاهدين ترکومې پورې دارالحرب اومحاذ د جنګ کښې وی هغه وخت هغوی ته دمال غنیمت نه په اندازه د ضرورت د خوراک څښاک دڅیزونو د تقسیم نه مخکښې د استعمالولو اجازت دې او دارالاسلام یعنی د جنګ د محاذ نه واپس کیدو نه پس دا استعمالول جائز نه دی

**[۴۰۰۰] د وازګې په ترلاسه کولو خوشحالي کول**

۴۰۰۰-[۱۶] (²) [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «أَصَبْتُ جِرَابًا مِنْ شَحْمٍ يَوْمَ خَيْبَرَ، [۳] فَالْتَزَمْتُهُ، [۴] فَقُلْتُ: لَا أُعْطِي الْيَوْمَ أَحَدًا مِنْ هٰذَا شَيْئًا، [۵] فَالْتَفَتُّ [۶] فَإِذَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَبَسَّمُ إِلَيَّ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [۷] وَذُكِرَ حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ "مَا أُعْطِيكُمْ" "فِي بَابِ" رِزْقِ الْوُلَاةِ"

**ترجمه:** [۱] او عبد الله ابن مغفل وايي [۲] چه د خيبر په ورځ ماته دوازګې څخه ډکه يوه تهيلۍ په لاس راغله [۳] ما هغه پورته کړه خپلې سينې سره مې ولګوله [۴] او ازره کې ياڼبې سره! مې اوويل نن به زه ددې وازګې څخه هيچاته نه ورکوم [۵] بيا چې ما په وروسته وکتل [۶] نو رسول کريم ﷺ ولاړ وو څما په دې فعل ئ اوخاندل (بخاري . مسلم) [۷] او د ابوهريره رضی الله عنه حديث چې ((ما اعطيتکم)) ئې په ((باب رزق الولاة)) کښې ذکر کړې دې

**حل اللغات:** ① جِرَابًا: تهيلۍ. ② شَحْمٍ: وازګه

¹) اخرجه البخاری فی کتاب فرض الخمس /باب ما یصیب من الطّعام فی أرض الحرب (رقم-۳۱۵٤)

²) اخرجه البخاری فی کتاب فرض الخمس /باب ما یصیب من الطّعام فی أرض الحرب (رقم-۳۱۵۳) ومسلم فی کتاب الجهاد والسّیر /باب جواز الأکل من طعام الغنیمة فی دار الحرب (رقم-۷۲ - (۱۷۷۲) والنسائی فی کتاب الضّحایا/باب ذبائح الیهود (رقم-٤٤۳۵) واحمد فی المسند: ۵۶/۵

**تسهيلات:**

**قوله:** أَصَبْتُ جِرَابًا مِنْ شَحْمٍ يَوْمَ خَيْبَرَ:

**د وازګې په موندلو خوشحالي کول:** جنګ خيبر کښې په شروع کښې دَخوراك دومره تنګي راغله چه صحابه کرامو وابنه اوخوړل دَ خرغوبنه ئې اوخوړله هلته يهوديان اوسيدل دَهغوی دَپاره وازګه استعمالول حرام وو لهذا په هغوی کښې چا دَ وازګې نه ډکه تهيلئ په ډيران باندې !وغورزوله يوصحابی ته چه کله دا تهيله ملاؤ شوه نوسينې پورې ئې اولګوله چه پخپله به ئې خورم چاته به نه ورکوم کله چه ئې شاته اوکتل نونبی کريم مسکې کيدونکې بنکاره شو سبحان الله څه نظاره وه.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۴۰۰۱] د امت محمدی دپاره د مال غنيمت حلت**

۴۰۰۱—[۱۷] (۱) [۱] عَنْ أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۲] قَالَ: [۳] «إِنَّ اللهَ فَضَّلَنِي عَلَى الْأَنْبِيَاءِ، [۴] أَوْقَالَ فَضَّلَ أُمَّتِي عَلَى الْأُمَمِ [۵] وَأَحَلَّ لَنَا الْغَنَائِمَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابو امامه رضی الله عنه د نبي کريم ﷺ څخه روايت کوي [۲] چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۳] بلاشبه الله جل جلاله ماته په نورو انبياؤ باندې بزرګي او فضيلت راکړي دي [۴] يا دايي وفرمايل چې څما امت ته يې په نورو امتونو فضيلت او بزرګي ورکړې ده [۵] او مالِ غنيمت يې زمونږ د پاره حلال وګرځولو (ترمذي)

**تسهيلات:**

**قوله:** أَوْقَالَ فَضَّلَ أُمَّتِي عَلَى الْأُمَمِ:

**دمذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① يعنى الله تعالى زمونږ دپاره مال غنيمت په خاص توګه حلال کړې دې څکه چه دا زمونږ دپاره د نورو امتونو نه لوې فضيلت دې ② ددې څخه مراد دا دی چه الله تعالى زمونږ امت ته په نورو امتونو ډير فضيلتونه ورکړی دی او په هغې کښې يو فضيلت دمال غنيمت حلالوالې هم دې

**[۴۰۰۲] د مقتول مال قاتل ته ورکول**

۴۰۰۲—[۱۸] (۲) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَئِذٍ يَعْنِي: يَوْمَ حُنَيْنٍ: [۳] "مَنْ قَتَلَ كَافِرًا [۴] فَلَهُ سَلَبُهُ". [۵] فَقَتَلَ أَبُو طَلْحَةَ يَوْمَئِذٍ عِشْرِينَ رَجُلًا، [۶] وَأَخَذَ أَسْلَابَهُمْ». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

(۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب السير عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء فی الغنيمة (رقم-۱۵۵۳) واحمد فی المسند: ۲۴۸/۵

(۲) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد/باب فی السلب يعطى القاتل (رقم-۲۷۱۸) واحمد فی المسند: ۱۱۴/۳

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضي الله عنه وايي [۲] چه رسول کریم ﷺ د غزوه حنین په ورځ وفرمايل [۳] کوم سړی چي يو کافر (دښمن) قتل کړو [۴] نو د مقتول مال او اسباب به د هغه قاتل وي [۵] ابوطلحه رضي الله عنه په هغه ورځ د دښمن شل سړي قتل کړل [٦] او د هغوی ټول مال او اسباب يي حاصل کړل (دارمي)

**حل اللغات:** ① أَسْلَابَهُمْ: سَلَبُهُ: د دشمن پاتې شوې مال.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ قَتَلَ كَافِرًا فَلَهُ سَلَبُهُ

**د قاتل دپاره دسلب ملاويدو په قاعده شرعيه کنبي ۲ مذاهب:**

①: جمهورو په نيزد سلب ضابطه او قاعده ده چه په هرحال کښې به قاتل ته ملاويږی که په موقع باندې څوك امير اعلان اوکړی اوکه اونه کړی

① داحنافو په نيزيه موقع باندې وختی اعلان ضروری دې مستقل قاعده اوضابطه نشته دې يادلرئی په سلب کښې خمس نه وی، تفصيل وړاندې تيرشوې دې

**[۳۰۰۳] په سلب کښې عدم خمس**

[۱۹] ( )[1] [۱] وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ، وَخَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ: [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى فِي السَّلَبِ لِلْقَاتِلِ. [۳] وَلَمْ يُخَمِّسِ السَّلَبَ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او عوف رضي الله عنه ابن مالك اشجعي او خالد رضي الله عنه ابن الوليد څخه روايت دی [۲] چې رسول کريم ﷺ د مقتول د مال او اسباب په باره کې حکم وفرمايلو چې هغه د قتلونکي (يعنی د قاتل) حق دې [۳] او هغه مال او اسباب څخه حضور ﷺ خمس [پنځمه حصه] اونه ښکله [څنگه چې به يې د مال غنيمت څخه اوښکله] (ابوداود)

**تسهيلات:**

**قوله:** قَضَى فِي السَّلَبِ لِلْقَاتِلِ

**قاتل دپاره د سلب ملاويدو حيثيت:** د مقتول کافر سامان به په طريقه د نفل يا په طريقه د تشريع قاتل ته ملاويږی

**قوله:** وَلَمْ يُخَمِّسِ السَّلَبَ

**په سلب کښې عدم خمس:** د مقتول سامان ئی د مال غنيمت په شان په پنځه قسمونو کښې تقسيم نه کړو. بلکه د مقتول ټول مال ئی قاتل مجاهد ته ورکړو

[1]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الجهاد /باب في السلب لا يخمس (رقم-۲۷۲۱)واحمد في المسند: ۶۸۲۶

**[۴۰۰۳] دابوجهل اصلي قاتل**

۴۰۰۳—[۲۰] ( ) ① وَعَنْ «عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: ② نَفَّلَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ بَدْرٍ سَيْفَ أَبِي جَهْلٍ، ③ وَكَانَ قَتَلَهُ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه وايي ② چې رسول کريم ﷺ د بدر په ورځ د ابوجهل توره د غنيمت څخه (زما د حصې نه) زياتی راکړه ③ او د ابوجهل قاتل عبد الله بن مسعود وو (ابوداود)

**تسهیلات: قوله:** وَكَانَ قَتَلَهُ

**د ابوجهل په قاتل کښې درې متعارض روايتونه:** ① بعضې رواياتو کښې دی چه د عفراء دوو ځامنو قتل کړې وو

② بعضو کښې دی چه ابن مسعود رضی الله عنه وژلې وو.

③ بعضو کښې دی چه ړومبې حمله حضرت معاذ بن عمروبن جموح اوکړه بيا معوذ راغلو د هغه کار ئې ختم کړو.

**د تعارض دفع کول:** اصل حقيقت دادې چه په ابوجهل باندې د ټولونه ړومبې حمله حضرت معاذ رضی الله عنه اوکړه او د هغه پنډئی پرې کړه او د اس نه ئې ښکته راګذار کړو بيا د ازمری په شان معوذ وراودانګل په هغه باندې ئې ګذاراوکړو تړقيدو چه ابن مسعود رضی الله عنه اورسيدو او د هغه سرئی قلم کړو. په دې اعتبارسره د هريوطرف ته د ابوجهل د قتلولو نسبت کړې شوې دې بلکه دا هم په رواياتو کښې دی چه فرښتو د ابوجهل په قتل کولو کښې عملاً حصه اخستې وه ليکن اصل کردار حضرت معاذ رضی الله عنه ادا کړې وو په دې وجه د هغه مکمل سلب هم هغه ته ملاؤشو باقی دواړو ته هم څه نه څه ورکړې شو لکه چه په زيربحث حديث کښې دی چه د ابوجهل توره حضرت ابن مسعود رضی الله عنه ته ورکړې شوه راتلونکی حديث ۴۳ او حديث ۴۴ کښې پوره تفصيل راځی

**[۴۰۰۵] غلام ته د مال غنيمت د ورکولو جواز**

۴۰۰۵—[۲۱] ( ) ① وَعَنْ «عُمَيْرٍ مَوْلَى آبِي اللَّحْمِ، قَالَ: ② شَهِدْتُ خَيْبَرَ مَعَ سَادَتِي، ③ فَكَلَّمُوا فِيَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ④ وَكَلَّمُوهُ أَنِّي مَمْلُوكٌ ⑤ فَأَمَرَنِي فَقُلِّدْتُ سَيْفًا، ⑥ فَإِذَا أَنَا أَجُرُّهُ ⑦ فَأَمَرَ لِي بِشَيْءٍ مِنْ خُرْثِيِّ الْمَتَاعِ، ⑧ وَعَرَضْتُ عَلَيْهِ رُقْيَةً ⑨ كُنْتُ أَرْقِي بِهَا الْمَجَانِينَ، ⑩ فَأَمَرَنِي بِطَرْحِ بَعْضِهَا وَحَبْسِ بَعْضِهَا». ⑪ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ إِلَّا أَنَّ رِوَايَتَهُ انْتَهَتْ عِنْدَ قَوْلِهِ: الْمَتَاعِ.

[1] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد /باب من أجاز علی جريح مثخن ينفّل من سلبه (رقم-۲۷۲۲)

[2] ) والترمذی فی کتاب السير عن رسول الله صلّی الله عليه وسلّم /باب هل يسهم للعبد (رقم-۱۵۵۷) وابن ماجه فی کتاب الجهاد /باب العبيد والنساء يشهدون مع المسلمين (رقم-۲۸۵۵) واحمد فی المسند: ۲۲۳/۵

**ترجمه:** [۱] او عمیر ﷺ چې د ابي اللحم ﷺ آزاد کرده غلام وو وايي [۲] چه زه د خپل مالکانو سره په غزوه خیبر کې شریك شوې یم [۳] دي غزاته د روانګي په وخت ځما مالکانو د رسول کریمﷺ سره خبري اتري وکړي [یعنی هغوی ځما تعریف او صفت اوکړو او عرض يي اوکړو چې په میدان جنګ کې جنګ د پاره یا د خدمت په غرض عمیر ﷺ هم د ځان سره بوځئ] [۴] او هغوی حضورﷺ ته داهم اووئیل چې زه یو غلام یم [۵] هغهﷺ [ځما د مالکانو درخواست منظور کړو او] ماته يي حکم اوکړو [چې زه مسلح شم او د مجاهدینو سره شامل اوسم] نو زه توري سره مسلح شوم [یعنی یوه توره ځما په ښټ کې واچول شوه زه چې به تلم نو د کم عمرئ په وجه یا د پست قدکیدو (مندري کیدو) په سبب] [۶] هغه توره په زمکه راښکلو سره به تلم [۷] بیا [په دښمنانو غلبه حاصلیدو څخه وروسته د مال غنیمت تقسیم شروع شو نو] حضورﷺ د هغه مال غنیمت څخه لږ ډیر ماته د راکولو حکم اوکړو[۸] او په یوه موقع ما حضورﷺ ته خپل منتر واورولو [۹] چې مابه د لیونتوب مریضانو باندې وئیلو [او حضورﷺ څخه مې د هغې په باره کې معلوم کړل] [۱۰] نو حضورﷺ ماته د هغې د بعضې حصې د موقوف کولو او د بعضې حصو د باقي ساتلو حکم اوکړو[۱۱] داروایت ترمذي او ابوداود نقل کړي دی لیکن د ابوداود روایت لفظ المتاع باندې پوره شوي دي

**حل اللغات:** ① سَادَتِي: مالکان زما، ② فَقُلِّدْتُ: نوماته غاړه کښې واچولې شوه. ③ أَجُرُّهُ: ما راښکله. ④ خُرْثِيِّ الْمَتَاعِ: دَ کور معمولي شان سامان لکه کټوئي وغیره. ⑤ رُقْيَةً: دم درها. ⑥ الْمَجَانِينَ: لیوني، د لیونتوب مریضان، ⑦ بِطَرْحٍ: څه حصه.

**تسهیلات:**

**قوله: كُنْتُ أَرْقِي بِهَا الْمَجَانِينَ:**

**د دم درها جواز:** یعنی مابه دم درها هم کوله. ما چه کله دَنبی کریم (ص) په مخکښې دَ خپل دم درها الفاظ وړاندې کړل نونبی کریم صلی الله علیه وسلم بعضې منع کړل او بعضې ئې باقی اوساتل.

**[۴۰۰۶] د خیبر د مال غنیمت تقسیم**

۴۰۰۶ - [۲۲] (۱) [۱] وَعَنْ مُجَمِّعِ بْنِ جَارِيَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «قُسِمَتْ خَيْبَرُ عَلَى أَهْلِ الْحُدَيْبِيَةِ، [۳] فَقَسَمَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَمَانِيَةَ عَشَرَ سَهْمًا، [۴] وَكَانَ الْجَيْشُ أَلْفًا وَخَمْسَمِائَةٍ، [۵] فِيهِمْ ثَلَاثُمِائَةِ فَارِسٍ، [۶] فَأَعْطَى الْفَارِسَ سَهْمَيْنِ، [۷] وَالرَّاجِلَ سَهْمًا» . [۸] رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. وَقَالَ: [۹] حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ أَصَحُّ وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ، [۱۰] وَأَتَى الْوَهْمُ فِي حَدِيثِ مُجَمِّعٍ [۱۱] أَنَّهُ قَالَ: "ثَلَاثُمِائَةِ فَارِسٍ، [۱۲] وَإِنَّمَا كَانُوا مِائَتَيْ فَارِسٍ.

(۱) اخرجه ابوداود في السنن رقم الحديث ۲۷۳۶، واحمد في المسند ۳/ ۴۲۰

**ترجمه**:او مجمع رضي الله عنه بن جاريه وايي ٢ چه په خيبر کې حاصل شوی مال غنيمت او زمکه د هغه خلقو په مينځ کې تقسيم شوه کوم چې په حديبيه کې شريك وو٣ رسول کريم ﷺ د خيبرمال غنيمت او زمکه اتلس حصو کې تقسيم کړله ٤ او صلح حديبيه کې شريك د لښکر تعداد پنځلس سوه سړو باندې مشتمل وو٥ چې په هغې کې درې سوه سواره وو ٦ دغه شان سواروته حضور ﷺ دوه حصې ورکړې ٧ او پيادو ته يوه حصه ٨ ابوداود رحمه الله دا روايت نقل کړې دی او ويلي يي دي ٩ چې په دې باره کې د ابن عمر رضي الله عنه روايت زيات صحيح دی او په هغې اکثرو ائمه ؤ عمل کړې دی ١٠ او د مجمع رضي الله عنه په دې روايت کې واهمه واقع شويده ١١ په دې وجه مجمع ويلي دي چې درې سوه سواره وه ١٢ حالانکه د سورو تعداد دوه سوه وو.

**تسهيلات**:

**قوله**:فَأَعْطِيَ الْفَارِسُ سَهْمَيْنِ، وَالرَّاجِلُ سَهْمًا:

**د فارس دپاره د دوو حصو مستدل**:دا حديث د احنافو مستدل دی چه فارس دپاره دوه حصې دی او راجل دپاره يوه حصه ده.

**اشکال**: ددې روايت متعلق امام ابوداود رحمه الله فرمايي چه د ابن عمر رضي الله عنه زير بحث روايت اصح او راجح دې او په دې روايت کښې د يو راوی نه وهم راغلې دې. چه په اصل کښې شهسوارن (په اسونو سواره) درې سوه نه وو بلکه دوه سوه وو او دوه سو ته شپږ حصې ملاوشوې وې؟

**د اشکال جواب**: که بالفرض والمحال مونږ دوه سوه شهسواران (په اسونو سورلی کونکی) تسليم کړو نو بيا هم ستاسو خبره صحيح نه ده ځکه چه دا خبره يقينی ده چه مجاهدين پنځلس سوه وو نو که شهسواران دوه سوه وو نو پيدل تلونکې به ديارلس سوه وی. نو که ديارلس حصې دوې ته ورکړلي شوي نو بيا شپږ او ديارلس خو نورلس حصې جوړيږي. حالانکه دا خبره يقيني ده چه ټولي حصي اتلس وې نو لهذا شهسواران دوه سوه نه وؤ. بلکه شهسواران دوه سوه وؤ نه درې سوه

**[٤٠٠٧] بعضې غازيانو ته زياته حصه ورکول**

٤٠٠٧-[٢٣] (١)١ وَعَنْ حَبِيبِ بْنِ مَسْلَمَةَ الْفِهْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ٢ «شَهِدْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ٣ نَفَّلَ الرُّبُعَ فِي الْبَدْأَةِ، ٤ وَالثُّلُثَ فِي الرَّجْعَةِ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: ١ او حبيب ابن مسلمه فهري رضي الله عنه وايي ٢ چه د (يوي غزا په موقع) زه د

(١) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الجهاد/باب فيمن قال الخمس قبل النفل (رقم-٢٧٥٠) واحمد في المسند: ٤/ ١٦٠

حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شوم ③ حضور ﷺ د جنګ په ابتداء کې جنګ کونکوته د غنیمت د مال څخه څلورمه حصه زیاتی ورکړله ④ او د واپس راتلو په وخت یې جنګ کونکو ته دریمه حصه زیاتی ورکړله. (ابوداود)

**حل اللغات:** ①نَفَّلَ: زیاتی حصه، ②الرُّبُعَ: څلورمه حصه، ③فِي الْبَدْأَةِ: په شروع کښې، ④فِي الرَّجْعَةِ: په واپس راتلو کښې.

**تسهیلات: قوله: نَفَّلَ الرُّبُعَ:**

**دتنفيل معنى** :دادَ تنفیل نه دې دَ انعام په توګه زیاتی حصې ته وئیلی شی

**قوله: فِي الْبَدْأَةِ:**

**د بدأة صورت:** دَ البدأة صورت دا وی چه مثلاً څه خلقو دَ اسلامی لښکرپه محاذباندې د رسیدونه وړاندې په کافرانو باندې حمله اوکړه بیا اسلامی لښکر راغلو اوکافرانو ماتې اوخوړلو دغه ړومبی ټولی ته به نبی کریم دَمال غنیمت دَتقسیم نه وړاندې دَټول مال څلورمه حصه دَ انعام په توګه ورکوله اوپه باقی مال کښې به هم د عامو مجاهدینو په شان دَ دوی حصه وه ځکه چه دغه خلقودَ ډیرې بهادرئی مظاهره اوکړه

**قوله: وَالثُّلُثَ فِي الرَّجْعَةِ:**

**درجعة صورت:** د دې رجعة صورت به ئی دا وو چه مثلاً اسلامی لښکربه دَ جنګ دَ محاذ نه واپس لاړو مګر یو ټولې به تردغه وخته پورې اوس هم دَ دښمن په مقابله کښې جنګیدلو نبی کریم به داسې خلقو ته دَ تقسیم نه وړاندې دَ ټول مال دریمه حصه ورکوله ځکه چه دهغوی بهادری به دَ مخکینو کسانونه زیاته وه

**دخمس څخه د تنفیل په تقدیم او تاخیر کښې دوه اقوال:** ① انعام به دَخمس اخواکولونه پس د باقی څلورو حصونه ورکولې شو دا دَ احمدبن حنبل رحمه الله مسلك هم دې

② بعضو وئیلی دی چه دا انعام به دَ خمس دَ مال څخه ورکولې شو

مزید تفصیل په حدیث نمبر(۴۰۰۸) راروان دې

**[۴۰۰۸] دخمس څخه روستهد خمس اوثلث ورکول**

۴۰۰۸—[۲۴] (١) ① وَعَنْهُ ② «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُنَفِّلُ الرُّبُعَ بَعْدَ الْخُمُسِ وَالثُّلُثَ بَعْدَ الْخُمُسِ». ③ إِذَا قَفَلَ. رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حبیب ابن مسلمه فهري رضي الله عنه راوي دی ② چې رسول کریم ﷺ به [د جنګ په ابتداء کې جنګ کونکو مجاهدینوته د غنیمت د مال څخه] د خمس ویستلو څخه

(١) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد/باب فیمن قال الخمس قبل النفل (رقم-۲۷۴۹) واحمد فی المسند: ۴/۰۰۲

وروستو څلورمه زیاتی ورکوله ۳ او کله چه به (اسلامي لښکر) د جهاد نه واپس (خپلو کورونوته) اورسیدو نود خمس ویستلونه وروستوبه ئې دریمه حصه زیاتی ورکوله. (ابوداود)

**حل اللغات:** ① إِذَاقَفَلَ: کله چه به واپس شو (د غزوې نه).

**تسهیلات: قوله:** يُنَفِّلُ الرُّبُعَ بَعْدَ الْخُمُسِ وَالثُّلُثَ بَعْدَ الْخُمُسِ:

**دتنفیل محلِ زمانی:** په مخکنی حدیث کښې دا بیان شوي وو چه په ابتدا د جنګ کښې جنګ کونکې مجاهدینو ته څلورمه حصه او دلښکر واپس کیدلو نه بعد جنګ کونکې مجاهدینو ته دریمه حصه ورکولې شوه لیکن دا وضاحت نه وو شوي چه څلورمه یا دریمه حصه به د خمس ویستلو نه بعد ورکولی شي یا مخکې؟

نو په دي حدیث کښې ددې وضاحت کړي شوي دي چه نبی کریم ﷺ به اول په مال غنیمت کښې خمس ویستلو او بیا به ئې څلورمه او دریمه حصه ورکوله او بیا به ئې هغه په ټول لښکر باندې تقسیمولو.

## [۴۰۰۹] په مال فئ کښې د څه حصې عدم تخصیص

۴۰۰۹ـــ[۲۵] (۱) ۱ وَعَنْ أَبِي الْجُوَيْرِيَةِ الْجَرْمِيِّ، قَالَ: ۲ أَصَبْتُ بِأَرْضِ الرُّومِ جَرَّةً حَمْرَاءَ ۳ فِيهَا دَنَانِيرُ ۴ فِي إِمْرَةِ مُعَاوِيَةَ، ۵ وَعَلَيْنَا رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَنِي سُلَيْمٍ، ۶ يُقَالُ لَهُ: مَعْنُ بْنُ يَزِيدَ ۷ فَأَتَيْتُهُ بِهَا، ۸ فَقَسَمَهَا بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ ۹ وَأَعْطَانِي مِنْهَا مِثْلَ مَا أَعْطَى رَجُلًا مِنْهُمْ، ۱۰ ثُمَّ قَالَ: ۱۱ لَوْلَا أَنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ۱۲ "يَقُولُ لَا نَفَلَ إِلَّا بَعْدَ الْخُمُسِ لَأَعْطَيْتُكَ". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ او ابوجویریه ﷺ وایي ۲ چه ما یوه ورځ د روم په زمکه کې د سور رنګ یو منګې پیدا کړو ۳ چې د دینارو څخه ډك وو ۴ د امیر معاویه ﷺ د خلافت په زمانه کې ۵ هغه وخت زمونږ د علاقې حاکم د رسول کریم ﷺ په صحابه ؤ ﷺ کې یوسړی وو ۶ چې د هغه نوم معن ابن یزید وو ۷ ما هغه [منګې د دینارونو] راواخستو او هغه ته راغلم ۸ هغه هغه دینارونه (د اسلام د مجاهدینو) په مینځ کې تقسیم کړل ۹ او د هغې څخه یې مانه هم دومره راکړل څومره چې د یوسړي په حصه کې راتله [یعنی ماته یې هم د تولو برابر راکړل څه زیات یې رانه کړل] ۱۰ او بیا هغوی وفرمایل ۱۱ که ما د رسول الله ﷺ څخه دا نه وې اوریدلي چې هغوی فرمائیلی دی ۱۲ چې دخمس تقسیمولو څخه روسته د حصې څخه زیاته حصه ورکول نشته نو یقینًا (مابه تاته د نورو څخه زیات) درکړي وی (ابوداود)

**حل اللغات:** ① جَرَّةٌ: منګې، چاټۍ.

---

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد/باب فی النّفل من الذّهب والفضّة ومن أوّل مغنم (رقم-۲۷۵۳) واحمد فی المسند: ۴۷۰/۳

**تسهيلات: قوله**: يُنَفِّلُ الرُّبُعَ بَعْدَ الْخُمُسِ وَالثُّلُثَ بَعْدَ الْخُمُسِ:

**په مالِ فئ کښې عدم تنفيل**: يعنى انعام وغيره دَهغه مال نه ورکولې شى دکوم نه چه خمس اوځى يعنى هغه دې مال غنيمت وى چه دَخمس لرې کولونه پس د باقى څلورو حصونه انعام ورکړې شى لهذا زه انعام څکه نه شم درکولې چه دا مال غنيمت نه دې بلکه مال فئ دې چه دَ جنګ نه بغيرتاسوته حاصل شوې دې په دې وجه تاسو په دې کښې دَ انعام طمع اونه لرئى بلکه دَعامو مسلمانانو په شان به تاسو ته هم حصه ملاويږى

**[۴۰۰] دخيبر په مال غنيمت کښې د بعضې صحابو دپاره حصه**

۴۰۰-[۲۶] (^۱) [۱] وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «قَدِمْنَا فَوَافَقْنَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۳] حِينَ افْتَتَحَ خَيْبَرَ، [۴] فَأَسْهَمَ لَنَا، [۵] أَوْ قَالَ: فَأَعْطَانَا مِنْهَا [۶] وَمَا قَسَمَ لِأَحَدٍ غَابَ عَنْ فَتْحِ خَيْبَرَ مِنْهَا شَيْئًا، [۷] إِلَّا أَصْحَابَ سَفِينَتِنَا جَعْفَرًا وَأَصْحَابَهُ، [۸] أَسْهَمَ لَهُمْ مَعَهُمْ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱] ابوموسى اشعري رضي الله عنه وايي [۲] چه کوم وخت چې مونږ د حبشې څخه راغلو او رسول کريم ﷺ ته ورسيدو [۳] کوم وخت چه خيبر فتح شو [۴] نو حضور ﷺ [د خيبر د مال غنيمت څخه] مونږ ته هم حصه راکړله [۵] يا ابوموسى اشعري رضي الله عنه دا اوويل چې حضور ﷺ د خيبر د غنيمت مال څخه مونږ ته هم حصه راکړله [۶] او حضور ﷺ دى د غنيمت مال څخه هيڅ داسې سړي ته څه حصه ورنه کړله کوم چې د خيبر د فتح په موقع موجود نه وو [۷] علاوه د هغه سړي څخه چې د غزوۀ خيبر په وخت حضور ﷺ سره وه او علاوه زمونږ د کشتى والو څخه يعنى د حضرت جعفر رضي الله عنه او د هغه د ملګرو څخه [۸] چې حضور ﷺ هغه کشتئ والوته هم دهغوى [يعنى په غزوه خيبر کې شريك شوى مجاهدينو] سره حصه ورکړله [باوجود د دې چې مونږ په هغه غزاکې شريك نه وو] (ابوداود)

**حل اللغات**: ① فَوَافَقْنَا: نو اورسيدو مونږه. ② غَابَ: غائب وو، موجود نه وو. ③ سَفِينَتِنَا: سفينة کشتئ ته وائى

**تسهيلات**:

**قوله**: قَدِمْنَا فَوَافَقْنَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ افْتَتَحَ خَيْبَرَ:

**دحديث پس منظر**:

دَ جنګ خيبر په موقع دَحبشې نه دَمدينې طرف ته دَ دويم هجرت په موقع باندې حضرت جعفر رضي الله عنه وغيره صحابه کرام رسيدلې وو نبى کريم دَهغوى دپاره په مال غنيمت کښې حصه مقرر کړې وه نو ابوموسى اشعرى رضى الله عنه دهغې بيان کوى

^۱) اخرجه ابوداود فى السنن کتاب الجهاد/باب فيمن جاء بعد الغنيمة لا سهم له (رقم-۲۷۲۵)

**غير مجاهدينو ته په مال غنيمت كښې حصه وركولو كښې ۲ مذاهب:**

① دَ امام شافعي رحمه الله اصل دادې چه كله په ميدان جنګ كښې جنګ ختم شو اودَ كافرانو دَ ماتې خوړلونه پس دَ غنيمت مال دَمجاهدينو په لاس كښې راغلو نواوس دَ بهرنه دَ راتلونكى هيڅ چا په دې مال كښې هيڅ حق نشته دې دابه صرف په مجاهدينو باندې تقسيميږى دَ شوافع په نيزداراسلام طرف ته دَ إخراج او إحراز شرط نشته دې

② داحنافو اصل دادې چه دَ مجاهدينودَ غلبې نه پس دَ مال غنيمت احراز او اخراج الى دار اسلام هم ضروري دې. دَ احراز نه وړاندې كوم خلق چه ميدان جهادته اورسيدل هغوى به په مال غنيمت كښې حصه اخلى ګنى نه به اخلى

**داول فريق دليل:** شوافع هم د دې حديث الباب څخه استدلال كوى.فرمائى چه اهل سفينه ته حصه څكه وركړې شوه چه تردغه وخته پورې مال جمع كړې شوې نه وو پوره غلبه هم حاصله شوې نه وه نوشريك شو

**د دويم فريق دليل:** احناف هم د دې حديث الباب څخه استدلا ل كوى. فرمائى چه اهل سفينه ته څكه حصه وركړې شوه چه تردغه وخته پورې دَمال غنيمت اخراج او احراز نه وو شوې سره دَدې چه غلبه حاصله شوې وه

**تطبيقى قول:** بعضې حضرات وائى چه دَمجاهدينوپه رضا اورغبت سره هغوى ته حصه وركړې شوه.

**[۲۰۲] د خائن في الغنيمة باندې د جنازې كولوڅخه انكار**

٤٠٠٢-[٢٧] (١) ⓵ وَعَنْ يَزِيدَ بْنِ خَالِدٍ: ⓶ «أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُوُفِّيَ يَوْمَ خَيْبَرَ ⓷ فَذَكَرُوا لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ⓸ فَقَالَ: "صَلُّوا عَلَى صَاحِبِكُمْ" ⓹ فَتَغَيَّرَتْ وُجُوهُ النَّاسِ لِذَلِكَ. ⓺ فَقَالَ: "إِنَّ صَاحِبَكُمْ غَلَّ فِي سَبِيلِ اللَّهِ" ⓻ فَفَتَّشْنَا مَتَاعَهُ ⓼ فَوَجَدْنَا خَرَزًا مِنْ خَرَزِ يَهُودَ ⓽ لَا يُسَاوِي دِرْهَمَيْنِ». رَوَاهُ مَالِكٌ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ⓵ او يزيد ابن خالد رضي الله عنه راوي دى ⓶ چې د رسول كريم صلى الله عليه وسلم د صحابه ؤ رضي الله عنهم څخه يوسړې د خيبر په ورځ وفات شو ⓷ صحابه ؤ رضي الله عنهم رسول كريم صلى الله عليه وسلم ته د هغه ذكر وكړو [يعنى حضور صلى الله عليه وسلم ته يې اووئيل چې فلانى سړى وفات شوې دې] ⓸ حضور صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل تاسو د هغه د جنازې مونځ اوكړئ [زه د هغه د جنازې مونځ نه كوم] ⓹ [خلقو چې داو اوريدل نو د دې [خوف] د وجې څخه د هغوى د مخونو رنګ بدل شو [چې نه ده معلومه چه حضور صلى الله عليه وسلم ولې د هغه د جنازې مونځ نه كوي] ⓺ حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل [زه د

(١) والنسائي في كتاب الجنائز/باب الصّلاة على من غلّ (رقم-١٩٥٩)وابن ماجه في كتاب الجهاد/باب الغلول (رقم-٢٨٤٨) ومالك في الموطا كتاب الجهاد/باب ما جاء في الغلول (رقم-٢٣) واحمد في المسند: ٤/١١٤

هغه د جنازي مونځ په دي وجه نه کوم] چې ستاسو دي ملګري د الله په لار کې [یعنی د غنیمت په مال کې] خیانت کړي وو ⑦ مونږ چې د هغه د اسبابو تالاشي واخسته ⑧ نو مونږ په هغه کې [د یهودیانو دښځو] د (غاړې) هار پیدا کړو ⑨ چې د دوو درهمو برابر هم نه وو [یعنی د هغې قیمت دوه درهمه څخه هم کم وو]. (مالك، ابوداود، نسائي)

**حل اللغات**: ① غَلَّ: خیانت ئې اوکړو، ② فَتَّشْنَا: تفتیش اوکړو مونږ، تلاشی واخستله مونږ، ③خَرَزًا: هار، امیل

**تسهیلات: قوله**: فَوَجَدْنَا خَرَزًا مِنْ خَرَزِ يَهُودَ:

**د نبی علیه السلام د جنازي کولوځخه د انکار وجه**:. یعنی مړ شوي کس د تقسیم نه مخکې معمول مشکړي اغستلی وې، ددې وجهې نه نبی کریم ﷺ جنازه ونه کړه.

**یوه تنبیه**: د نبی کریم ﷺ دا خفګان مونږ ته تعلیم راکولو دپاره وؤ. لهذا ددې مذکوره حدیث نه د صحابی فاسق کیدل مراد نه دي بلکه دي صحابی دا ګناه يوځل کړي وه او د فسق معنی دا ده چه ګناه کبیره کول یا صغیره ګناه همیشه کول او الله تعالی صحابه کرام د فسق نه ساتلي دي کما فی القرآن "وکلا وعد الله الحسنی" لهذا د "الصحابة کلهم عدول" پیش نظر ټول صحابه کرام عادلان دي، او يو ځل نیم ګناه کولو سره عدالت نه ختمیږي. لهذا د مذکوره صحابی صحابیت مقبول دي څنګه چه آدم علیه السلام د غنم دانه خوړلو باوجود هم نبی وؤ نبوت یی ختم نه شو

**[٤٠١٢] د مال غنیمت په حواله کولو کښې په تاخیر باندې وعید**

٤٠٠٣—[٢٨] ()[١] ① وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ② «كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَصَابَ غَنِيمَةً، ③ أَمَرَ بِلَالًا فَنَادَى فِي النَّاسِ، ④ فَيَجِيئُونَ بِغَنَائِمِهِمْ، ⑤ فَيُخَمِّسُهُ وَيُقَسِّمُهُ، ⑥ فَجَاءَ رَجُلٌ يَوْمًا بَعْدَ ذَلِكَ بِزِمَامٍ مِنْ شَعْرٍ، ⑦ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ! هَذَا فِيمَا كُنَّا أَصَبْنَاهُ مِنَ الْغَنِيمَةِ، ⑧ قَالَ: " أَسَمِعْتَ بِلَالًا نَادَى ثَلَاثًا؟ " ⑨ قَالَ: نَعَمْ، ⑩ قَالَ: " فَمَا مَنَعَكَ أَنْ تَجِيءَ بِهِ؟ " ⑪ فَاعْتَذَرَ. ⑫ قَالَ: " كُنْ أَنْتَ تَجِيءُ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، ⑬ فَلَنْ أَقْبَلَهُ مِنْكَ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه**: ① عبدالله ابن عمر رضی الله عنهما وایي ② چه رسول کریم ﷺ چې به د غنیمت مال جمع کولو سره د تقسیمولو اراده وکړله ③ نو حضرت بلال رضی الله عنه ته به یي [د اعلان کولو] حکم ورکړو نو هغه به د خلقو په مینځ کې اعلان اوکړو ④ او [د هغه د اعلان په اوریدو سره به] خلقو خپل خپل غنیمت راوړو [یعنی د چاسره چې به د غنیمت د مال کوم څیز هم وو هغه به یي د رسالت په دربار کې جمع کولو] ⑤ بیا به مخکې حضور ﷺ څني خمس ایعنی

---

[١] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد ، باب فی الغلول إذا کان یسیرا یترکه الإمام ولا یحرّق رحله (رقم-٢٧١٢) واحمد فی المسند: ٢١٣/٢

پنځمه اوباسله] او د هغې څخه وروسته به يې هغه د غنيمت مال [مجاهدينو کې] تقسيمولو ⑥ ايو ځل داسې وشوه چې] يوسړی [د غنيمت د مال څخه خمس ويستلو او هغه د مجاهدينو په مينځ کې د تقسيمولو څخه] يوه ورځ وروسته د ويښتو څخه جوړ يو مهار راوړو ⑦ او عرض يې اوکړو يارسول الله کوم د غنيمت مال چې ځما په لاس راغلی وو په هغه کې دامهار هم وو ⑧ حضور ﷺ ورته وفرمايل بلال رضي الله عنه چې دري خله کوم اعلان کړي وو هغه تا اوريدلی وو؟⑨ هغه اوويل هو نو حضور ﷺ پوښتنه ورځخه وکړه چه بيا هغه وخت راوړلو څخه ته څه شي منع کړي وې؟ ⑪ هغه ددي تاخير د پاره څه عذر بيان کړو ⑫ حضور ﷺ ورته وفرمايل بس اوس دغه شان اوسه [يعنی اوس دا د ځان سره وساته] د قيامت په ورځ دا د ځان سره راوړه [او الله پاك ته د دې تاخير جواب ورکړه] ⑬ اوس زه دا ستا څخه هيڅ کله نه اخلم. (ابوداود)

**حل اللغات:** ① بِزِمَامٍ مِنْ شَعَرٍ: د ويښتو نه جوړشوې مهار

**تسهيلات:**

**قوله:** فَاعْتَذَرَ قَالَ: "كُنْ أَنْتَ تَجِيءُ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، فَلَنْ أَقْبَلَهُ مِنْكَ".

**د عذر نه قبلولو وجه:** چونکه دغه کس داسی عذر پيش کړو کوم چه د اوريدو قابل نه وو. ددې وجهې نبی کريم ﷺ وفرمائيل چه دا اوس ځان سره اساته زه به تاسو نه دا هيڅ صورت کښې قبول نکړم. او د نبی کريم ﷺ دا ارشاد ناراضگی ښکاره کولو دپاره وو. مالک جوړولو دپاره نه وو.

**اشکال:** نبی کريم ﷺ رحمة للعالمين دي ددې باوجود يی دا خبره څنګه وکړه په دې سره خو هغه کس ته مايوسی پيدا شی؟

**داشکال جواب:** د نبی کريم ﷺ دا فرمان ددې وجهې نه وو چه د اوبس مذکوره واګوو سره د ډيرو مجاهدينو حق متعلق وو. لهذا دا معلومات نه وو چه دا واګې د چاه په حصه کښې رسيدلو. اوس ځکه چه تقسيم نه پس ټول مجاهدين منتشر شوي وو. ددې وجهې نه نبی کريم ﷺ د ناراضګی اظهار وکړو چه اُوس هر مجاهد ته خپله حصه ورکول مشکل وو

**[۴۰۱۲] د غنيمت په مال کښې د خيانت سزا**

۳۰۰۳ ــ [۲۹] ( )① وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، ② «أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبَا بَكْرٍ وَعُمَرَ ③ حَرَّقُوا مَتَاعَ الْغَالِّ ④ وَضَرَبُوهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

[۱] ) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الجهاد/باب في عقوبة الغالّ (رقم-۲۷۱۵)

**ترجمه:** [۱] او عمرو ابن شعیب د خپل پلار (شعیب رحمه الله) څخه او هغه (شعیب رحمه الله) د خپل نیکه (حضرت عبد الله ابن عمرو) څخه روایت کوي [۲] چې رسول کریم ﷺ او حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه او حضرت عمر فاروق رضی الله عنه [۳] د غنیمت په مال کې د خیانت کونکي سامان او اسباب وسوزلو [۴] او وهلی ي هم وو (ابو داود)

**حل اللغات:** ①حَرَّقُوا: چه او سوزوی، ②مَتَاعَ: سامان، اسباب، ③الغَالِ: خیانت کونکي.

**تسهیلات:**

**قوله:** حَرَّقُوا مَتَاعَ الْغَالِّ وَضَرَبُوهُ

**د خائن مال سوزولوکښې دوه مذاهب:**

**داول فریق دلیل:** زیربحث حدیث د دوی مستدل دې په دې کښې چه دَ نبی کریم صدیق اکبر او فاروق اعظم رضی الله عنهما په زمانه کښې به دَ خائن مال سوزولې شو

① بعضې فقهاء لکه احمدبن حنبل رحمه الله وغیره وائی چه نن هم حکم هم هغه شان دې چه دَ خائن مال اوسوزولې شی او ژوندې څناور دې بچ کړې شی اومصحف وغیره دې هم نه شی سوزولې هم دغه شان خیانت شوې مال دې هم نه سوزوی څکه چه دادَخائن مال نه دې بلکه دَ بیت المال مال دې. بل ژوندې څناور سوزول هم منع دی

② دَ جمهور فقهاؤ په نیزدَ خائن مال اومتاع به نه شی شوزولې بلکه قاضی دې دَ تعزیر په توګه خائن ته بل څه سزا ورکړی.

**داول فریق د دلیل جواب:** داحضرات فرمائی چه زیر بحث حدیث په تشدید اوتغلیظ باندې محمول دې

چونکه بعض فقهاء دَ تحریق متاع دَ غال دَ جواز قائل دی اودَ حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنه په یوروایت کښې هم دی چه په سنن ابوداؤد کښې نقل دې تحریق متاع غال تصریح ده په دې وجه وړاندې باب لاندې هم د عبدالله بن عمرو رضی الله عنه روایت راروان دې امام بخاری رحمه الله د هغې متعلق باورکوی چه په دې روایت کښې دانقل نه دی چه حضورپاك دَ کرکره نومی غلام مال اومتاع سوزولوحکم ورکړې وو صحیح دادی چه حضورپاك داسې هیڅ حکم نه ووصادرکړې دَ هذا أصح مطلب دادې چه صحیح هم دغه دی دَعبدالله بن عمرو رضی الله عنه په حدیث باب کښې دَتحریق متاع غال ذکر نشته ([۱])

په دې وجه امام بخاری رحمه الله ولومړیلکې صیغه تمریض راوړلوسره دَعبدالله بن عمرو رضی الله عنه ذکر تحریق متاع الغال والا روایت تضعیف اوفرمائیلو اودَعدم ذکر تحریق الغال والا

---

[۱]) عمدة القاري:۱۵/۱۱.

روايت صحت طرف ته ارشاه اوکړه (١) دَ مذکوره جملې نه امام بخاری رحمه الله د سنن ابوداؤد دَ هغه رواياتو دَ ضعف طرف ته اشاره کړې ده په کوم کښې چه تحريق متاع غال ذکر دي

① په سنن ابوداؤد کښې دَحضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما روايت دې عن صالح بن محمد بن زائدة قال دخلت مع مسلمة أرض الروم فأتي برجل قد غل فسأل سالما عنه فقال: سمع أبي يحدث عن عمر بن الخطاب عن النبي صلى الله تعالى عليه وسلم قال: إذا وجدتم الرجل قد غل فاحرقوا متاعه واضربوه (٢)
صالح بن محمد وائی چه زه مسلمه سره روم ته لاړم هلته يو غلول کونکې سړې راوستلې شو دَ سالم بن عبدالله نه دَده باره کښې تپوس اوکړې شو نوهغه اووئيل چه ما د خپل پلار (عبدالله بن عمر رضي الله عنهما) ته عمر بن خطاب رضي الله عنه روايت کولو سره واوريدو چه حضور پاک صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل کله چه تاسو غلول کونکې سړې اووينئ نو دَهغه مال اوسوزوئ او هغه اووژنئ

هم دَدې روايت باره کښې امام بخاری رحمه الله په خپل تاريخ کښې تحريرفرمائی يحتجون بهذا الحديث في أحراق رحل الغال، وهو باطل ليس له أصل، وراوية لايعتمد عليه. (٣) يعنی بعض تحريق متاع غال قائلين دَخپل مسلك دَ اثبات دَپاره دَدې حديث نه استدلال کوی حالانکه داحديث باطل دې دَدې هيڅ اصل نشته اودا روايت کونکې هم معتمدنه دې دَدې حديث په سندکښې صالح بن محمدبن زائده ته ائمه رجال ضعيف ګرځولې دې امام ترمذی رحمه الله دَدې حديث په ذيل کښې په صالح باندې جرح کولوسره تحرير فرمائی صالح منکر الحديث ولم يامر النبي صلى الله تعالى عليه وسلم يحرق متاع الغال (٤)
دَ امام منذری رحمه الله قول دې وصالح بن محمدبن زائده تکلم فيه غير واحد من الئمة وقد قيل انه تفردبه (٥) امام دارقطنی رحمه الله هم دَدې مذکوره روايت تضعيف کولوسره فرمائی أنكروا هذا الحديث على صالح بن محمد، وهذا حديث لم يتابع عليه، ولا أصل لهذا الحديث عن رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم (٦)

---

١) عمدة القاري:١١/١٥.
٢) سنن أبي داؤد:١٥/٢ كتاب الجهاد باب في عقوبة الغال وعمدة القاري:١١/١٥ وفتح الباري:٢٣٠/٦ وإرشادالساري:١٨٢/٥.
٣) فتح الباري:٢٣٠/٦ وإرشادالساري:١٨٢/٥.
٤) جامع الترمذي:١/٢٧٠ أبواب الحدود باب ماجاء في الغال مايصنع به. ونيل الاوطار:١٣٨/٨ وفتح الباري:٢٣٠/٦ وأوجزالمسالك:٣٣٩/٨.
٥) نيل الاوطار للشوكاني:١٨٣٩/٨ كتاب الجهادوالسير باب التشديدفي الغلول وتحريق رحل الغال.
٦) نيل الاوطار للشوكاني:١٨٣٩/٨ كتاب الجهادوالسير باب التشديدفي الغلول وتحريق رحل الغال.

④ دَسنن ابوداؤد دويم روايت دي. **عن عمرو بن شعيب عن أبيه عن جده: أن رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم وأبابكر وعمر حرقوا متاع الغال وضربوه** (١)

دا روايت هم سنداً ضعيف اومضطرب دې ددې په سند کښې زبيربن محمد الخراساني دَ نوم راوي متكلم فيه دي امام بيهقي رحمه الله دَده باره کښې فرمائي **إنه مجهول** (٢) خلاصه دا شوه چه دَامام بخاري رحمه الله په نيزتحريق متاع غال جائزنه دې د مذكوره جملې نه هغوى دَ سنن ابوداؤد دَدې روايتونه ضعيف او بې اصل كيدو طرف ته اشاره كړې ده په كوم كښې چه تحريق متاع غال تصريح ده

**په مال غنيمت کښې دَ خيانت مسئله**:- امام اعظم ابوحنيفه امام مالك امام شافعي رحمهم الله او ډيروصحابه كرامو اوتابعين كرامو په نيز اميرياحاكم ته غلول كونكوډپاره بدني سزا اوتعزير تجويزكولو اختياردې خودَ هغه مال اومتاع سيزل جائزنه دي (٣)

**دَ مخالفينو مسلک او دَهغوى دَدلائلوره**:- حسن بصري. احمدبن حنبل. اسحاق. مكحول او امام اوزاعي رحمهم الله په نيزدَهغه ټول مال اومتاع سوزول جائزدي (٤) البته امام اوزاعي رحمه الله فرمائي چه دَ تحريق دَحكم كونكى اسلحه اولباس مستثنى دي هغه سوزول جائزنه دي (٥) خوحسن بصري رحمه الله فرمائي دَ حيوان اومصحف نه علاوه دَهغه ټول مال او متاع اوسوزوئي (٦)

دې حضراتودَ سنن ابوداؤد دَ رواياتونه استدلال كړې دې امام بخاري رحمه الله دَ جمهورو تائيدكولوسره دَدوى تضعيف كړې دې شاته دَدې تفصيل تيرشوې دې حضرت مولانا فخر الحسن گنگوهي رحمه الله فرمائي دَ جمهورو په نيزدَ سنن ابوداؤد روايات تغليظ باندې محمول دي اودَهغې په نيزدَ رسول اكرم ﷺ نه دَ متاع غال دَ سوزولوحكم چرته نقل نه دې (٧)

امام طحاوي رحمه الله فرمائي كه دا روايات سنداً صحيح هم اومنلې شي خو بياهم دَ استدلال

(١) سنن أبي داؤد:١٥/٢ كتاب الجهاد باب في عقوبة الغال.
(٢) نيل الاوطار للشوكاني:١٨٣٩/٨ كتاب الجهادوالسير باب التشديدفي الغلول وتحريق رحل الغال.
(٣) المغني لابن قدامة:٥٢٤/١٠ كتاب الجهاد باب أحكام في الغلول وشرح النووي على صحيح مسلم:١٢٣/٢كتاب الامارة باب غلظ تحريم الغلول وعمدة القاري:١١/١٥ وشرح ابن بطال:٢٣٥/٥.
(٤) المغني لابن قدامة:٥٢٤/١٠ كتاب الجهاد باب أحكام في الغلول رقم المسئلة: ٧٦٠٣ وشرح النووي على صحيح مسلم:١٢٣/٢كتاب الامارة باب غلظ تحريم الغلول وشرح ابن بطال:٢٣٥/٥وفتح الباري:٦٢٣٠/٠ - ٢٣١ وأوجزالمسالک للمحدث الكاندهلوي:٣٣٨/٨.
(٥) المغني:٥٢٤/١٠وشرح النوى على صحيح مسلم:١٢٣/٢.
(٦) المغني:٥٢٤/١٠وشرح النوى على صحيح مسلم:٢/١٢٣.
(٧) التعليق المحمود على سنن أبي داؤد للعلامة المحدث فخر الحسن گنگوهي:٥/٢ كتاب الجهاد باب في عقوبة الغال.

قابل نه شي جوړيدې خکه چه دا په هغه وخت محمول دی اودمالی سزاحکم نافذالعمل وو روستوداحکم منسوخ شوې اوس هرقسم مالی سزا منسوخ ده امام طحاوی رحمه الله فرمائی لوصح الحديث لاحتمل أن يكون حين كانت العقوبة بالمال (١)

**[٤٠١٤] په خائن د پرده اچونکی حکم**

٤٠٠٣-[٣٠] (٢) ① وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ③ «مَنْ يَكْتُمْ غَالًّا ④ فَإِنَّهُ مِثْلُهُ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او سمره ابن جندب رضی الله عنه ② چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم به فرمایل ③ کوم سړی چې د غنیمت په مال کې د خیانت کونکي خیانت پټ کړو ایعنی هغه د امیر او حاکم په علم کې داخبره رانه وستله چې فلاني سړي خیانت کړې دې! ④ نو د گنهگاریدو په اعتبار سره هغه هم د خیانت کونکی په شان دی (ابوداود)

**حل اللغات:** ① غَالًّا: خیانت کونکې.

**تسهيلات: قوله:** مَنْ يَكْتُمْ غَالًّا فَإِنَّهُ مِثْلُهُ:

**په خائن د پرده اچونکی د خائن سره شرکت:** یعنی چاچه خائن پټ کړو هغه نی بچ کړو اوخیانت شوې مال ئی پټ کړو نودا سړې هم په خیانت کښې برابر شریك دې

**[٤٠١٥] د تقسیم څخه وړاندې د مال غنیمت د خرڅولو ممانعت**

٤٠٠٥-[٣١] (٣) ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ ② «نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ شِرَاءِ الْمَغَانِمِ حَتَّى تُقْسَمَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

ترجمه ① او ابوسعید رضی الله عنه وایي ② چه رسول کریم صلی الله علیه وسلم د غنیمت مال د تقسیمیدو څخه مخکې د هغې د اغستلو څخه منع فرمایلي ده [څکه چې د تقسیم څخه مخکې د هغې څوک مالك نه وي] (ترمذي)

**تسهيلات:**

**قوله:** نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ شِرَاءِ الْمَغَانِمِ حَتَّى تُقْسَمَ:

**د حدیث مفهوم:** امام مظهر رحمه الله فرمائی ددې مطلب دا دي چه کوم مجاهدین خپله

---

(١) شرح النووی علی صحیح مسلم:١٣٢/٢ وشرح ابن بطال:٢٣٥/٥ وعمدة القاری:١١/١٥ وفتح الباری:٢٣١/٦ونيل الاوطار للشوكانى:١٣٩/٨.

(٢) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجهاد /باب النهى عن الستر على من غل (رقم-٢٧١٦)

(٣) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب السّير عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب فى كراهية بيع المغانم حتّى تقسم (رقم-١٥٦٣) و ابن ماجه فى كتاب التجارات/باب النّهى عن شراء ما فى بطون الأنعام وضروعها. وضربة الغائص (رقم-٢١٩٦) واحمد فى المسند:٤٢/٣

حصه خرڅول غواړي نو ددې خرڅول يې جائز نه دى،

**د بيع د ممانعت درې وجوه:** ① ددې غازى حصه مجهوله ده او دمجهول بيع ممنوع ده ② په دې کښې دا معلومات هم نشته چه خرڅونکى غازى ته به په مال غنيمت کښې حصه ملاويږي يا نه، ځکه چه بعض اوقات غازى په وجه د مال غنيمت نه محروميږي ③ دتقسيم نه وړاند هيڅ يو غازى د خپلې حصې مالک هم نه وى نو د ملکيت نه وړاندې مال خرڅول شرعاً جائز نه دى (کذافي المرقاة)

**[٤٠١٦] دتقسيم ځخه وړاندې د حصو د خرڅولو ممانعت**

٤٠١٦ - [٣٢] (١) ① وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، «عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② أَنَّهُ نَهَى أَنْ تُبَاعَ السِّهَامُ حَتَّى تُقْسَمَ». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① او ابو امامه رضي الله عنه د رسول کريم ﷺ ځخه روايت کوي ② چې حضور ﷺ د دې ممانعت اعلان اوکړو چې [د مالِ غنيمت] حصې تر څو پورې تقسيم نشي هغه دې خرڅ نه کړې شى (دارمي)

**تسهيلات: نوټ:** ددې حديث وضاحت دې ځخه وړاندې د حديث نمبر (٤٠١٦) په تشريح کښې تيرشو.

**[٤٠١٧] په غنيمت کښې خيانت کونکې د پاره جهنم**

٤٠١٧ - [٣٣] (٢) ① وَعَنْ خَوْلَةَ بِنْتِ قَيْسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ② سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " ③ «إِنَّ هٰذَا الْمَالَ خَضِرَةٌ حُلْوَةٌ، ④ فَمَنْ أَصَابَهُ بِحَقِّهِ ⑤ بُورِكَ لَهُ فِيهِ، ⑥ وَرُبَّ مُتَخَوِّضٍ فِيمَا شَاءَتْ بِهِ نَفْسُهُ مِنْ مَالِ اللّٰهِ وَرَسُولِهِ ⑦ لَيْسَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَّا النَّارُ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او بي بي خوله بنت قيس رضي الله عنها وايي ② چه ما د رسول کريم ﷺ ځخه دا واوريدل ③ چه بلا شبه دا مال شين او خوږ څيز دې ايعنى مال يو داسې څيز دې چې انسان ته په نظر ښه راځي او زړه خوشحالوي! ④ نو کوم انسان چې دا مال په حق ايعنى حلالې طريقې! سره حاصلوي ⑤ د هغه د پاره په دې کې برکت ورکړې کيږي ⑥ او (يادلرئ) ډير خلق [داسې دي چې! د الله او د هغه د رسول مال ايعنى د غنيمت د مال! ځخه کوم څيز چې د هغوى زړه غواړي په خپل تصرف کې راولي ⑦ د قيامت په ورځ به د هغوى د پاره صرف اور وي (ترمذي)

[1]) اخرجه الدارمي في السنن رقم الحديث ٢٤٧٦

[2]) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الرؤيا عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب قوله لهم البشرى في الحياة الدنيا (رقم-٢٢٧٣) واحمد في المسند: ٣٧٨/٦

**حل اللغات:** ① خَضِرَةٌ: شين، سرسبز، ② حُلْوَةٌ: خوږ، ③ بُورِكَ: برکت به واچولې شي، ④ رُبَّ: ډير، اکثر، ⑤ مُتَخَوِّضٍ: مشغوليدونکی، تصرف کونکی.

**تسهيلات: قوله:** إِنَّ هَذَا الْمَالَ خَضِرَةٌ حُلْوَةٌ:

**د مال د شينکي سره د مشابهت دوه وجوه:** ① نبی کريم ﷺ د مال تشبيه شنکې سره ورکړې ده چه څنګه شنکې ذر اوچيږي نو دغه شان مال هم زر فنا او ختميږي. لهذا داسې فاني مال دپاره الله او رسول ناراض کول او خپل ايمان و تقوی بربادول د مسلمان شان سره مناسب نه دی

② دا مال په نيدولو کښې خائسته او په استعمال کښې مزيدار ښکاري ليکن که هم دا مال په حرام طريقې سره وی نو دا ډير خطرناک دې او دې سره دنيا هم برباد او آخرت هم تباه کيږي.

**قوله:** فَمَنْ أَصَابَهُ بِحَقِّهِ بُورِكَ لَهُ فِيهِ:

**دحق څخه مراد:** دحق نه مراد جائز ذريعه ده يعني که مال حلال وی نو دا برکت والا وی او که داسې نه وی نو بيا د هلاکت ذريعه ده. لکه څنګه چه هوا د باغ طرف نه راشي نو دا دشفا ذريعه جوړيږي اوکه د ډهيران اوګندګی طرف نه راشي نوبيماری او بوئ ترې خوريږي

**قوله:** وَرُبَّ مُتَخَوِّضٍ فِيمَا شَاءَتْ بِهِ نَفْسُهُ:

**د متخوض سره د تشبيه وجه:** د خوض نه جوړشوې دې معنی ده په اوبو کښې ننوتل. لکه څنګه چه بغير د سوچ او فکر نه په اوبو کښې ننوتل د هلاکت باعث دی نو هم دغه شان بغير د تحقيق نه هر قسم مال اغستل هم د هلاکت باعث دی

**[۲۰۱۸] د نبی عليه السلام ذالفقار توره په تنفيل کښې اخستل**

۲۰۱۸-[۳۳] (¹) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَنَفَّلَ سَيْفَهُ ذَا الْفَقَارِ يَوْمَ بَدْرٍ». [۳] رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَزَادَ التِّرْمِذِيُّ: [۴] وَهُوَ الَّذِي رَأَى فِيهِ الرُّؤْيَا يَوْمَ أُحُدٍ.

**ترجمه:** [۱] او ابن عباس رضي الله عنهما وايي [۲] چه رسول کريم ﷺ خپله توره چې د هغې نوم ذوالفقار وو د جنګ بدر په ورځ د حصې څخه زياتی اخستي وه [۳] ابن ماجه او ترمذي دا الفاظ هم نقل کړي دي [۴] چه او (دا هغه توره ده چې د دې متعلق حضور ﷺ د احد دجنګ په ورځ خوب ليدلی وو)

**حل اللغات:** ① تَنَفَّلَ: زياته ئې واخستله.

¹ ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب السّير عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب فی النّفل (رقم-۱۵۶۱) و ابن ماجه فی کتاب الجهاد/باب السّلاح (رقم-۲۸۰۸) واحمد فی المسند:۲۷۱/۱

**تسهيلات:**

**قوله**: تَنَفَّلَ سَيْفَهُ ذَا الْفَقَارِ يَوْمَ بَدْرٍ:

**د ذاالفقار پېژندګلو**: فقار دَ ملاپه تيرکښې مورو (بندونو) ته وائی د دې تورې په شا يا دغه شان مورې مورې وې يعنی آواره نه وی او يا داسې مورې وی څنګه چې د ملا په تيرکښې د ملا دتير جوړونه وی

**د ذاالفقار تورې حاصلونکې**: دا توره د کوم کافرخخه ملاؤ شوې وه؟ دا توره دَ يوکافر منبه بن حجاج په لاس کښې وه حضرت علی ﷺ هغه قتل کړو دَ هغه توره نبی کريم ﷺ ډيره خوښه کړه اوپه توګه دَ صفی نبی کريم ﷺ پخپله واخستله نبی کريم ﷺ په مختلفو جنګونو کښې دا استعمال کړه.

**د مذکوره حکم نسخ**: دَ صفی انتخاب صرف دَ نبی کريم ﷺ سره خاص وو بيا منسوخ شو نبی کريم ﷺ دغه توره حضرت علی ﷺ ته ورکړه.

**قوله**: وَهُوَ الَّذِي رَأَى فِيهِ الرُّؤْيَا يَوْمَ أُحُدٍ:

**په خوب کښې د ذاالفقار تورې ماتيدل**: دَ جنګ احدنه لړشان وړاندې نبی کريم ﷺ په خوب کښې چه کومه توره ماته ليدلې وه هغه هم دغه وه.

لافتی إلا علی لا سيف إلا ذوالفقار

**[٣٠٩] د تقسيم څخه وړاندې دغنيمت د څيز د استعمال ممانعت**

٣٠٠٠-[٣٥] (١) ① وَعَنْ رُوَيْفِعِ بْنِ ثَابِتٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ② أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ③ "«مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ④ فَلَا يَرْكَبْ دَابَّةً مِنْ فَيْءِ الْمُسْلِمِينَ ⑤ حَتَّى إِذَا أَعْجَفَهَا رَدَّهَا فِيهِ ⑥ وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ⑦ فَلَا يَلْبَسْ ثَوْبًا مِنْ فَيْءِ الْمُسْلِمِينَ ⑧ حَتَّى إِذَا أَخْلَقَهُ رَدَّهُ فِيهِ» "رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: ① او رويفع ابن ثابت ﷺ څخه روايت دی ② چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ③ کوم سړې چې په الله او د آخرت په ورځ ايمان لري ④ (د هغه د پاره داقطعًا روانه دی) چې هغه د مسلمانانود مشترک غنيمت مال په يو حيوان ابلا ضرورت شرعي) سور شي ⑤ او بيا چې هغه حيوان کمزورې شي نو هغه د غنيمت په مال کې واپس ورکړي ⑥ او کوم سړې چې په الله او د آخرت په ورځ ايمان لري اد هغه د پاره قطعًا دا روانه دی) ⑦ چې هغه د مسلمانانو د مشترک غنيمت مال څه کپړه ابلا ضرورت شرعي) واچوي ⑧ او بيا چې هغه کپړه زړه شی نو بيت المال ته يې واپس ورکړي (ابوداود)

**حل اللغات**: ① فَيْء: مال غنيمت (په جهاد کښې دجنګ نه بغير حاصل شوې مال. ② إِذَا أَعْجَفَهَا چه کمزورې شی هغه. ③ رَدَّهَا: واپس ئې کړی. ④ إِذَا أَخْلَقَهُ: چه زړه ئې کړی.

[١] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب النکاح/باب فی وطء السبايا (رقم-٢١٥٩)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَلَا يَرْكَبْ دَابَّةً مِنْ فَيْءِ الْمُسْلِمِينَ حَتَّى إِذَا أَعْجَفَهَا رَدَّهَا فِيهِ:

**دحديث متبادره معنى:** الحاصل ددې حديث د ظاهري مفهوم نه دا نتيجه اخذ شوی ده چه که څېل څناور باندې سورلی په مصرف کنبې په کار راوستلو سره نه کمزوره کيږي نو بيا په دې څناور باندې سورلی کولو کنبې هيڅ گناه نشته.

**د حديث صحيح مطلب:** خو په حقيقت کنبې دا مفهوم مراد نه دې او ددی نه دا نتيجه هم نه اخذ کيږي بلکه دا خبره محض محاورة فرمائيلی شوې ده او عام طور باندې په څناور سورلی کولو سره څناور کمزورې کيږي. نو لهذا په داسې څناور باندې د سورلی کولو عادت جوړول غلط دې

**[۴۰۲۰] په غنيمت کنبې د خوراکې اجناسو د خوراک حکم**

۴۰۲۰ — [۳۶] (¹) ۱ وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي الْمُجَالِدِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى، قَالَ: ۲ قُلْتُ: ۳ «هَلْ كُنْتُمْ تُخَمِّسُونَ الطَّعَامَ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ ۶ قَالَ: أَصَبْنَا طَعَامًا يَوْمَ خَيْبَرَ، ۷ فَكَانَ الرَّجُلُ يَجِيءُ ۸ فَيَأْخُذُ مِنْهُ مِقْدَارَ مَا يَكْفِيهِ، ۹ ثُمَّ يَنْصَرِفُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ او محمد ابن ابو المجالد د عبد الله ابن ابي اوفى رضي الله عنه څخه روايت کوي ۲ چې ما [د حضرت عبد الله رضي الله عنه] څخه پوښتنه وکړه ۳ آيا تاسو به د رسول الله ﷺ په زمانه کې د خوراك څيزونو کې هم خمس [يعنى پنځمه حصه] ويستله؟ ۶ هغه وفرمايل چه د غزوه خيبر په ورځ د خوراك څيزونه زمونږ لاس ته راغلی وو نو ۷ هرسړي به راتلو ۸ او د هغې څخه به يې په قدر د كفايت اخستل ۹ او واپس به تلو (ابوداود)

**تسهيلات:**

**قوله:** هَلْ كُنْتُمْ تُخَمِّسُونَ الطَّعَامَ:

**د تپوس کولو مقصد:** سائل تپوس کوی چې د خوراک د څيزونه څخه به هم خمس اغستلی کيږي او که کوم څيزونه د خوراک سره تعلق لرى هغه به د تقسم څخه مستثنى وی

**قوله:** فَكَانَ الرَّجُلُ يَجِيءُ فَيَأْخُذُ مِنْهُ مِقْدَارَ مَا يَكْفِيهِ:

**دجواب مفهوم:** صحابى جواب ورکوی چې د خوراک څيزونو کنبې به خمس نه وی ليکن ددې خبرې لحاظ سائل ضروری دی چه هر څيز دې دومره مقدار کنبې واخستلې شی په څومره چه ضرورت او حاجت پوره کيږي

¹) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجهاد . باب فى النّهى عن النّهبى إذا كان فى الطّعام قلّة فى أرض العدوّ (رقم- ۲۷۰۴)

[۳۰۰۲] د خوراکي په څيزونو کښې عدم خمس

۳۰۰۲-[۳۷] (۱) [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا: [۲] «أَنَّ جَيْشًا غَنِمُوا فِي زَمَنِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا وَعَسَلًا، [۳] فَلَمْ يُؤْخَذْ مِنْهُمُ الْخُمُسُ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دى [۲] چه يو ځل د رسول كريم ﷺ په زمانه کې د مسلمانانو لښکر اچې د جهاد څخه واپس راغلوا نو د غنيمت په مال کې د خوراك څيزونه او عسل (شهد) اخستو سره راغلو انو هغه لښکر والو هغه څيزونو څخه چې څه خوړلي څکلي وو يا هغوى چې څه بچ کړي راوړي ووا [۳] د هغې څخه د هغوى څخه خمس ايعنى پنځمه حصه] وانخستل شوه (ابوداود)

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنَّ جَيْشًا غَنِمُوا فِي زَمَنِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا وَعَسَلًا:

**د طعام څخه مراد:** د طعام څخه مراد انواع دى يا غله ده او يا ددې څخه تيار شوى څزونه دى

[۳۰۰۳] په غنيمت کښې د خوراکي څيزونو عدم تقسيم

۳۰۰۳-[۳۸] (۲) [۱] وَعَنِ الْقَاسِمِ مَوْلَى عَبْدِ الرَّحْمٰنِ، [۲] عَنْ بَعْضِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [۳] «كُنَّا نَأْكُلُ الْجَزُورَ فِي الْغَزْوِ [۴] وَلَا نَقْسِمُهُ [۵] حَتَّى إِذَا كُنَّا لَنَرْجِعُ إِلَى رِحَالِنَا [۶] وَأَخْرِجَتُنَا مِنْهُ مَمْلُوَّةٌ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او قاسم تابعي رحمه الله چې د عبد الرحمن آزاد کړده غلام دې [۲] د رسول كريم ﷺ د بعضې صحابه ؤ رضي الله عنهم څخه روايت کوى [۳] چې مونږ به په غزاګانو کې د اوښ غوښه خوړله [۴] او هغه به مو نه تقسيموله [يعنى مونږ به محاذ جنګ باندې د ضرورت په وخت د غنيمت د مال اوښان ذبح کول او د هغې غوښې د تقسيمولو څخه بغير د خپل خپل حاجت په قدر به مو اخستله] [۵] تردې چې مونږ به د سفر په دوران کې خپلو ډيرو اوخيموته واپس راغلو [۶] نو زمونږ تهيلۍ به د غوښې څخه ډکې وې (ابوداود)

**حل اللغات:** ① الْجَزُورَ: اوښان. ② رِحَالِنَا: ډيرو او خيمو خپلوته. ③ أَخْرِجَتُنَا: د خرج جمع ده تهيلۍ اود خوراك کيخودو لوښى ته وائى. ④ مَمْلُوَّةٌ: ډکې.

**تسهيلات:** **قوله:** كُنَّا نَأْكُلُ الْجَزُورَ فِي الْغَزْوِ

**دمال غنيمت د څاروى ذبح کولو دوه صورتونه:** ① د ضرورت د وجهې مجاهدين ميدان جهاد کښې اوښ ذبح کولې او خوړلې شى په حديث الباب کښې چې د اوښ ذبح کولو

(۱) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجهاد، باب فى إباحة الطعام فى أرض العدو (رقم-۲۷۰۱)
(۲) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجهاد، باب فى إباحة الطعام فى أرض العدو (رقم-۲۷۰۶)

ذكر دي نو دا په ضرورت محمول دي

③ بلاضرورته د غنيمت څخه د هيڅ قسم څاروی ذبح کول جائز نه دی تردې چې وابنه هم دمال غنيمت نه نشي اخستلې

**قوله**: وَأَخْرَجْتَنَا مِنْهُ مَمْلُوَّةً

**د خوراک دپاره د خوراک د اجناسو ساتل**: دادَ جهاد دَميدان منظرخودل دی چه زمونږ لوښی به د غوښې څخه ډک وو او دا یاد ساتل پکار دی چې صحابۆ رضی الله عنهم به دا غوښه دَ خوړلودَپاره اوړله دَ ذخيره کولودَپاره به نه وه

**[٤٠٣٣] د قيامت په ورځ د خيانت کرو رسوائي**

٤٠٣٣ – [٣٩] ( ) [١] وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، [٢] أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ: " [٣] «أَدُّوا الْخِيَاطَ وَالْمِخْيَطَ، [٤] وَإِيَّاكُمْ وَالْغُلُولَ، [٥] فَإِنَّهُ عَارٌ عَلَى أَهْلِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» ". رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه**: [١] او عباده ابن صامت رضي الله عنه څخه روايت دی [٢] چه رسول كريم ﷺ به فرمايل [٣] د تار او ستني هم ادائيگی کوئ [يعنی د غنمت په مال کې دومره معمولي څيزونه هم پټولو سره مه ايږدئ] [٤] او تاسو [د غنيمت په مال کې يا مطلق] خيانت کولو څخه پرهيز کوئ [٥] ځکه چې په دې کې هيڅ شبهه نشته چې خيانت کول به خيانت کونکو خلقو ته د قيامت په ورځ د بې عزتي راوړونکې وي (دارمي)

**حل اللغات**: ① الْخِيَاطَ: خياط: تار ته وائی ② الْمِخْيَطَ: د ګنډلو ستن. ③ الْغُلُولَ: خيانت. ④ عَارٌ: شرم. بې عزتی. رسوائی

٤٠٣٣ – ( ) [١] وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ.

**ترجمه**: [١] او نسائي داروايت د عمرو ابن شعيب رحمه الله څخه او هغه د خپل پلار څخه او هغه د خپل نيکه څخه نقل کړې دې

**تسهيلات**: **قوله**: أَدُّوا الْخِيَاطَ وَالْمِخْيَطَ

**دحديث مفهوم**: مطلب دا دې چې دمال غنيمت د معمولی څيزڅخه هم ځان ساتی که د ګنډلو ستن يا د هغې تار ولې نه وی ځکه چې د قيامت په ورځ به دا خيانت د رسوائی سبب ګرځی لکه څنګه چې په يو بل حديث کښې راځی د خيانت ګراو دهوکه باز دپاره به په ميدان حشريوه جنډه وی خلقو ته به پته لګی چې دا هغه کس دې چې په دنيا کښې ئې غدر دهوکه او خيانت کړې وو

[١] ) اخرجه ابن ما جه في السنن كتاب الجهاد /باب الغلول (رقم-٢٨٥٠) واحمد في المسند: ٣١٨/٥

[٢] ) اخرجه النسائي في السنن كتاب الهبة /باب هبة المشاع (رقم-٣٦٨٨)

**[۴۰۲۵] په مال غنيمت كښي ورو كي خيانت**

۴۰۲۵—[۴۰] (۱) ۱ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: ۲ «دَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَعِيرٍ ۳ فَأَخَذَ وَبَرَةً مِنْ سَنَامِهِ، ثُمَّ قَالَ: ۴ "يَا أَيُّهَا النَّاسُ! إِنَّهُ لَيْسَ لِي مِنْ هَذَا الْفَيْءِ شَيْءٌ ۵ وَلَا هَذَا وَرَفَعَ إِصْبَعَهُ إِلَّا الْخُمُسَ، ۶ وَالْخُمُسُ مَرْدُودٌ عَلَيْكُمْ، ۷ فَأَدُّوا الْخِيَاطَ وَالْمِخْيَطَ" ۸ فَقَامَ رَجُلٌ فِي يَدِهِ كُبَّةٌ مِنْ شَعْرٍ، فَقَالَ: ۹ أَخَذْتُ هَذِهِ لِأُصْلِحَ بِهَا بَرْدَعَةً.

**ترجمه:** ۱ او عمرو ابن شعيب د خپل پلار څخه او هغه د خپل نيكه څخه نقل كوي هغه اوويل ۲ چه يوه ورځ حضور ﷺ [مال في كې ملاو شوي] يو اوښ خواته تشريف راوړو ۳ او د هغې د قب يو وينښته دوه رانښكلو سره يي وفرمايل ۴ اې خلقو! حقيقت دادى چې دى مال فئ كې ځما هيڅ حصه نشته ۵ او [د حضور ﷺ په كومو ګوتو چې هغه وينښته وو خلقوته ښودلو د پاره] هغه ګوته پورته كولو سره يي وفرمايل چې دا مال هم [يعنى دومره معمولي حصه هم زما د پاره نشته] البته خمس [يعنى د پنځمي حصي زه حقدار يم] ۶ ليكن خمس هم [ځما ذات باندې نه خرڅ كيږي بلكه] په تاسو خرڅ كيږي [يعنى د خمس مال ستاسو په خير ښيګړه خرڅ كيږي په دې طور چې په هغې سره ستاسو د پاره هتيار او اسونه وغيره حاصلول كيږي] ۷ نو تاسو سره كه د غنيمت ستن تار پورې وي نو هغه راوړئ جمع يې كړئ ۸ په دې اوريدو سره يو سړى چې د هغه په لاس كې د وينښتو د رسئ يوه ټكړه وه اودريدلو او هغه اوويل ۹ ما د رسي دا ټكړه د ځان سره ساتلې وه چې د دې په ذريعه به د پالان [كتى] لاندې شړئ ته غوټه وركولو سره يي ټيك كړم [اوس په دې باره كې څه حكم دى؟]

**حل اللغات:** ① دَنَا: نزدې شو. ② وَبَرَةً: وينښته، معمولى شان وينښته. ③ سَنَامِ: قُب (د خاروى). ④ الْخِيَاطَ: تار. ⑤ الْمِخْيَطَ: ستن. ⑥ كُبَّةٌ مِنْ شَعَرٍ: د وينښتو يوه ګوله ⑦ بَرْدَعَةً: د زين او ګدئ لاندې كپړه.

۱ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "أَمَّا مَا كَانَ لِي وَلِبَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَهُوَ لَكَ" ۳ فَقَالَ: أَمَّا إِذْ بَلَغَتْ مَا أَرَى ۴ فَلَا أَرَبَ لِي فِيهَا، ۵ وَنَبَذَهَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ رسول كريم ﷺ وفرمايل ۲ ترڅو پورې چې د هغه شي سوال دې كوم چې ځما او د بنو عبد المطلب د حصي دې نو هغه ستا دې [يعنى هغه ټكړې نه څه چې ځما د خاندان بنوهاشم او د هغوى د حليف او ملګرى د بنو عبد المطلب د خلقو حصه ده نو هغه ستا ده هغه خو مونږ تا ته وبخښله ليكن په هغې كې څه چې زمونږ څخه علاوه د نورو مجاهدينو حصه ده د هغه په باره كې ته پوهه شه كه تا هغه څخه هم د هغوى حصي

(۱) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجهاد، باب فى فداء الأسير بالمال (رقم-۲۶۹۴) واحمد فى المسند: ۲/۱۸۴

معاف كړئ نو څه مواخذه به نه وي او كه د هغوى حصې دې معاف نه كړې نو د قيامت په ورځ به نيول كيږي] ۳ هغه [سړى دا اوريدو سره] اوويل هركله چې دا رسئ د ګناه دې حد ته رسيدلې ده كومه چې څما مخې ته ده ۴ نو بيا ماته د دې ضرورت نشته ۵ او [په دې ويلو سره] هغه هغه رسئ وغورځوله (ابوداود).

**حل اللغات:** ⑧فَلَا أَرَبَ: نو نشته دې حاجت زما.

**تسهيلات:**

**قوله: أَمَّا مَا كَانَ لِي وَلِبَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَهُوَ لَكَ:**

**د مال غنيمت د معمولې څيز عظمت:** نبي كريم دَ دغه سړي په جواب كښې اوفرمائيل كه چرې دا معمولې څيززماوي يا زما دَ خاندان وي نومابه دركړې وې مګرداد بيت المال دې دغه سړي په جواب كښې اووئيل چه كله دَدومره معمولې څيزمعامله دومره وړاندې لاړه نو ما ته دَدې هيڅ ضرورت نشته دې دې وينانه پس هغه ګوله په مال غنيمت كښې اوغورزوله.

**[۴۰۲۴] خمس هم په مسلمانانو خرڅ كول**

۴۰۲۴ - [۴۱] ( ) ۱ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ۲ «صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى بَعِيرٍ مِنَ الْمَغْنَمِ، ۳ فَلَمَّا سَلَّمَ أَخَذَ وَبَرَةً مِنْ جَنْبِ الْبَعِيرِ، ۴ ثُمَّ قَالَ: ۵ "وَلَا يَحِلُّ لِي مِنْ غَنَائِمِكُمْ مِثْلُ هَذَا إِلَّا الْخُمُسُ، ۶ وَالْخُمُسُ مَرْدُودٌ فِيكُمْ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ او عمرو ابن عبسه رضي الله عنه وايي ۲ چې رسول كريم ﷺ په يوه موقع يو اوښ ستره ګرځولو سره مونږ ته مونځ راكړو ۳ كوم وخت چې سلام يې اوګرځولو او د مونځ څخه فارغه شو نو د هغه اوښ د اړخ څخه يې يو دوه ويښته راواخستل ۴ او بيايې وفرمايل ۵ چې ستاسو د غنيمت د مال څخه زما د پاره دومره يعنى د دې ويښتو په قدر هم حصه نشته علاوه د خمس څخه ۶ او هغه خمس هم ستاسو ضرورتونوكې خرڅ كول كيږي (ابوداود).

**حل اللغات:** ①وَبَرَةٌ: ويښته. ②جَنْبِ: اړخ. ③الْبَعِيرِ: اوښ

**تسهيلات: قوله: أَخَذَ وَبَرَةً مِنْ جَنْبِ الْبَعِيرِ:**

**د دې واقعې په وقوع كښې دوه اقوال:** ① كه د اړخ يا طرف نه مراد د اوښ د قوب د يو طرف ويخته راويستل وي نو په دې صورت كښې به دا د تيرشوي حديث والا واقعه وى د كومې ذكر چه په تير شوى حديث كښې اوشو.

[1] ) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الجهاد/باب في الإمام يستأثر بشيء من الفيء لنفسه (رقم-۲۷۵۵)

④ که د حدیث ظاهري مفهوم واغستلي شي نو په دي صورت کښې به ددې نه بله واقعه مراد وی

**[۴۰۲۸] په غنيمت کښې د بنوهاشم او بنوالمطلب وحدت**

۴۰۲۸-[۳۲] ()① وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: ②«لَمَّا قَسَمَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَهْمَ ذَوِي الْقُرْبَى بَيْنَ بَنِي هَاشِمٍ وَبَنِي الْمُطَّلِبِ ③أَتَيْتُهُ أَنَا وَعُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ، فَقُلْنَا: ④يَا رَسُولَ اللهِ! هَؤُلَاءِ إِخْوَانُنَا مِنْ بَنِي هَاشِمٍ، ⑤لَا نُنْكِرُ فَضْلَهُمْ ⑥ لِمَكَانِكَ الَّذِي وَضَعَكَ اللهُ مِنْهُمْ ⑦ أَرَأَيْتَ إِخْوَانَنَا مِنْ بَنِي الْمُطَّلِبِ أَعْطَيْتَهُمْ وَتَرَكْتَنَا، ⑧وَإِنَّمَا قَرَابَتُنَا وَقَرَابَتُهُمْ وَاحِدَةٌ

**ترجمه:** ① او جبير ابن مطعم ﷺ وايي ② هرکله چې رسول کريم ﷺ د غنيمت د مال څخه د خپل قرابت دارو حصه ايعنی خمس چې د هغې ذکر قرآن مجيد کې دی] بنوهاشم او بنو عبد المطلب په مينځ کې تقسيم کړه ③ نو زه ايعنی جبير ﷺ د بنو نوفل د طرف څخه] او حضرت عثمان ابن عفان ﷺ [د بنو عبد شمس د طرف څخه] د رسول کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شو او مونږ عرض اوکړو ④ يا رسول الله زمونږ دا ورونړه چې د هغوی تعلق بنوهاشم سره دی ⑤ مونږ د هغوی د فضيلت او بزرګۍ څخه انکار خو نه کوو ⑥ څکه چې الله ﷻ تاسو په هغوی کې پيدا کړي يئ ⑦ انو په دي اعتبار زمونږ په نسبت هغوی تاسو ﷺ ته زيات نزدې دی ځکه چې ستاسو او د هغوی جد (نيکه) يو دی يعنی هاشم اګر چې زمونږ او د هغوی جد اعلی (مشر نيکه) هم يو دی يعنی عبد مناف] ⑦ ليکن مونږ ته دا اووايي چې د دې څه سبب دی چې تاسو ﷺ د خمس مال څخه [چې د ذوی القربی حصه ده] زمونږ هغه ورونړو ته خو حصه ورکړله چې د هغوی تعلق بنومطلب سره دی او مونږ مو محروم وساتلو ⑧ حالانکه زمونږ ايعنی بنو نوفل او بنی عبد شمس] او د هغوی ايعنی بنی مطلب] قرابت يودې [په دي طور چې څنګه د هغوی نيکه د هاشم ورور وو دغه شان زمونږ نيکه هم د هاشم ورور وو ګويا د هغه دواړو حضراتو د غرض حاصل داوو چې د غنيمت د مال څخه چې کوم خمس ويستل شی هغه د قرآن مجيد د حکم مطابق ستاسو د قرابت دارو حصه ده نو ستاسو ﷺ د خپلو قرابت دارو يوشاخ بنو مطلب ته مال خمس څخه حصه ورکړله ليکن نورو دوو شاخونو يعنی بنونوفل او بنو عبد شمس ته موهيڅ ورنه کړل هرکله چې داټول شاخونه د يوجدّ اعلی يعنی د عبد مناف اولاد دې نو د دې امتيازي سلوک وجه څه ده؟!]

**حل اللغات:** ①لَا نُنْكِرُ: مونږ انکار نه کوو.

---

) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الخراج والإمارة والفیء/ فی بیان مواضع قسم الخمس وسهم ذی القربی (رقم-۲۹۸۰) والنسائی فی کتاب قسم الفیء (رقم-۴۱۳۷)

[۱] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " إِنَّمَا بَنُو هَاشِمٍ وَبَنُو الْمُطَّلِبِ شَيْءٌ وَاحِدٌ هٰكَذَا " [۳] وَشَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ» . [۴] رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ. وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيِّ نَحْوُهُ وَفِيهِ: [۵] " «إِنَّا وَبَنُو الْمُطَّلِبِ لَا نَفْتَرِقُ فِي جَاهِلِيَّةٍ وَلَا إِسْلَامٍ، [۶] وَإِنَّمَا نَحْنُ وَهُمْ شَيْءٌ وَاحِدٌ» ". وَشَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ.

**ترجمه:** [۱] نو حضور ﷺ اوفرمائیل [۲] چه بنوهاشم او بنومطلب یو خاندان دي دغسي، [۳] او د لاس گوتي يي د بل لاس د گوتو په مینځ کې داخلې کړې [او هغه طرف ته ئې اشاره اوکړه چې (زه) د دې څخه علاوه نور په هیڅ نه پوهیږم چې [څنگه د دې دواړو لاسونو داگوتي په خپلو کې یوځای کیدو سره یوشئ شویدی دغه شان] بنوهاشم او بنو مطلب هم یودي [۴] شافعي، ابوداود او د نسائي په روایت کې هم داسې دي [۵] او په هغه کې [دا الفاظ] دي [چې حضور ﷺ وفرمایل] مونږ او د مطلب اولاد نه په زمانه جاهلیت کې چرته د یوبل مخالف وو او په نه زمانه د اسلام کې [۶] [نو د دې څخه علاوه نور هیڅ نه دی] چې مونږ او هغوی دواړه یوڅیز یو [په دې ویلو سره] حضور ﷺ د دواړو لاسونو گوتي په یوبل کې داخلې کړې.

**حل اللغات:** ③ وَشَبَّكَ: ورئې کړې په یوبل کښې. ⑤ لَانَفْتَرِقُ: نه به جدا کیدو. دیو بل مخالفت به مونه کولو

**تسهیلات:**

**نوټ:** د دې حدیث مکمل تشریح دې نه وړاندې حدیث نمبر (۳۹۹۳) کښې تیره شوې ده هلته اوگورئې

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۴۰۲۸] دَ ابوجهل دَ قتل قصه**

۴۰۲۸ – [۴۳] (١) [۱] «عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ، قَالَ: [۲] إِنِّي وَاقِفٌ فِي الصَّفِّ يَوْمَ بَدْرٍ [۳] فَنَظَرْتُ عَنْ يَمِينِي وَعَنْ شِمَالِي، [۴] فَإِذَا بِغُلَامَيْنِ مِنَ الْأَنْصَارِ [۵] حَدِيثَةٍ أَسْنَانُهُمَا، [۶] فَتَمَنَّيْتُ أَنْ أَكُونَ بَيْنَ أَضْلَعَ مِنْهُمَا، [۷] فَغَمَزَنِي أَحَدُهُمَا، فَقَالَ [۸] أَيْ عَمِّ! هَلْ تَعْرِفُ أَبَا جَهْلٍ؟ [۹] قُلْتُ: نَعَمْ، فَمَا حَاجَتُكَ إِلَيْهِ يَا ابْنَ أَخِي؟ [۱۰] قَالَ: أُخْبِرْتُ أَنَّهُ يَسُبُّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۱۱] وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَئِنْ رَأَيْتُهُ لَا يُفَارِقُ سَوَادِي سَوَادَهُ [۱۲] حَتَّى يَمُوتَ الْأَعْجَلُ مِنَّا،

**ترجمه:** [۱] عبد الرحمن ابن عوف ﷺ وایي [۲] چه د غزوه بدر په ورځ زه د دښمن مقابل صف کې ولاړ وم [۳] ما چې خپل ښي چپ طرف ته نظر وکړو [۴] نو څه گورم چې زه د دوو

١) اخرجه البخاري في كتاب فرض الخمس/باب من لم يخمّس الأسلاب. ومن قتل قتيلا فله سلبه من غير أن يخمّس. وحكم الإمام فيه (رقم-۳۱٤۱)واحمد في المسند: ۱۹۳/۱

انصارو هلکانو په مینځ کې ولاړوم [۵] چې بالکل نو عمروو [۶] ما دا ارمان اوکړو چې کاش چه دا وخت زه د دې دواړو ځخه د زیات طاقتور او تجربه کار سړو په مینځ کې ولاړ وې ایعنی ما هغه دواړه نوعمره هلکان د حوصلي او شجاعت په اعتبار سره بې وقعت وګڼل او دا خیال مي اوکړو چې دا دواړه نوعمره او بې تجربي دي ځکه کیدی شي چې د دښمن د حملي تاب رانه وړي او د جنګ په وخت کې وتښتي چې په هغې سره به ځما ذات باندې هم داغ ولګوي زه په دې خیالاتو او سوچ کې وم چې اچانک! [۷] هغه دواړو کې یوهلك په ما نکاره اولګوله اوماته ئې اوویل [۸] کاکا جي' آیاتاسو ابوجهل پیژنئ؟ اهغه کوم یودې او کوم ځای دې؟ا [۸] ماورته اوویل هو زه یې پیژنم لیکن ای زما وراره' ستا ابوجهل سره څه غرض دی؟ [۱۰] هغه اوویل ماته معلومه شویده چې هغه العین ابوجهل! رسول کریم ﷺ ته کنځل کوي [۱۱] په هغه ذات قسم اخلم چې د هغه په قبضه کې ځما ساه ده که زه هغه ووینم نو ځما جسم به د هغه د جسم ځخه ترهغه وخته پورې نه جداکیږي [۱۲] ترڅوپورې چې په مونږ کې یود مرګ طرف ته ورتلوکی ئادي اونه کړي ایعنی دابوجهل په خلاف ځما په زړه کې دومره نفرت دې چې د هغه په لیدو سره په هغه باندې زه حمله وکړم او ترهغه وخته پورې به د هغه سره جنګ کوم ترڅو چې په مونږ دواړو کې د چا مرګ چې مخکې راتلونکی وي هغه مړ نشي برابره خبره ده که زه شهید شم یا زه هغه جهنم ته ورسوم!

**حل اللغات** : ① حَدِيثَةٍ أَسْنَانُهُمَا: تازه وو غاښونه دهغوی. یعنی کم عمره وو دواړه. ② أَضْلَعَ: د اقوی په معنی کښې دې. طاقتور. ③ فَغَمَزَنِي : نوکاره ئې راباندې اولګوله. اوئې څکوندلم. ④ سَوَادِي سَوَادَهُ: ای جسمی جسمه وشخصی شخصه، د سواد ځخه مراد بدن دې یعنی زما بدن دهغه د بدن نه. ⑤ الأَعْجَلُ: ډیره جلتی کونکې.

[۱] فَتَعَجَّبْتُ لِذٰلِكَ، [۲] قَالَ: وَغَمَزَنِي الْآخَرُ فَقَالَ لِي مِثْلَهَا، [۳] فَلَمْ أَنْشَبْ أَنْ نَظَرْتُ إِلَى أَبِي جَهْلٍ [۴] يَجُولُ فِي النَّاسِ، [۵] فَقُلْتُ أَلَا تَرَيَانِ؟ هٰذَا صَاحِبُكُمَا الَّذِي تَسْأَلَانِي عَنْهُ. [۶] قَالَ: فَابْتَدَرَاهُ بِسَيْفَيْهِمَا، [۷] فَضَرَبَاهُ حَتّٰى قَتَلَاهُ، [۸] ثُمَّ انْصَرَفَا إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَخْبَرَاهُ، [۹] فَقَالَ: "أَيُّكُمَا قَتَلَهُ؟" [۱۰] فَقَالَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا: أَنَا قَتَلْتُهُ،

**ترجمه**: [۱] اعبد الرحمن رضی الله عنه وایي چه! د هغه نوعمر هلك داخبره اوریدو سره زه حیران پاتې شوم اچې خدایه' د دې نوعمر هلك په زړه کې دحضور ﷺ سره څومره محبت دی او د هغه په جذباتو کې همت حوصله. شجاعت او بهادري څومره محشر بپاده یعنی ډیره زیاته ده! [۲] عبد الرحمن رضی الله عنه وایي بیا دویم هلك په ما نوکاره اولګوله او هغه الفاظ یې اوویل کوم چې مخکني هلك ویلي وو [۳] د دې ځخه وروسته ماهیڅ توقف اونکړو او ابوجهل مي ولیدلو [۴] چې د «دښمن» په خلقو کې ګرځي [۵] ما اهغه طرف ته اشاره کولو

سره] هغه دواړو هلکانو ته اوويل آيا تاسو هغه سړې نه وينئ اچې د دښمن په ډله کې ګرځي] دغه ستاسو هغه مطلوب دې چې د هغه په باره کې تاسو زما څخه پوښتنه کوله ايعنی دغه سړې وپيژنئ دا ابوجهل دی] ٦ عبد الرحمن ﷺ وايي [په دي اوريدو سره] هغه دواړو هلکانو خپلې تورې سنبال کړې او سمدستي د ابوجهل طرف ته ورغلل ۷ او په هغه يي حمله وکړه تردې چې هغه يي قتل کړو ۸ بيا هغه دواړه حضور ﷺ ته راغلل او ددې واقعې څخه يي خبر کړو ۹ حضور ﷺ پوښتنه تري نه اوکړه چه په تاسو دواړو کې کوم يو هغه قتل کړې دې؟ ۱۰ په هغوی کې هريوه عرض اوکړو چې ما قتل کړې دې

**حل اللغات:** ⑥لَمْ أَنْشَبْ: هيڅ وخت اونه لګيدو هيڅ انتظار مې اونه کړو. ⑥يَجُولُ: ګشت نې کولو. ګرځيدو راګرځيدو، ⑧فَابْتَدَرَاهُ: نو دواړو ناڅاپه حمله اوکړه په هغه باندې.

۱ فَقَالَ: "هَلْ مَسَحْتُمَا سَيْفَكُمَا؟ ۲" فَقَالَا: لَا ۳ فَنَظَرَ رَسُولُ اللهِ إِلَى السَّيْفَيْنِ، فَقَالَ: ۴ "كِلَاكُمَا قَتَلَهُ". ۵ وَقَضَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَلَبِهِ لِمُعَاذِ بْنِ عَمْرِو بن الْجَمُوحِ ۶ وَالرَّجُلَانِ: مُعَاذُ بْنُ عَمْرِو بْنِ الْجَمُوحِ، وَمُعَاذُ بْنُ عَفْرَاءَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ حضور ﷺ پوښتنه تري نه اوکړه چه آيا تاسو دواړو خپلې تورې صاف کړې دي؟ ۲ هغوی اوويل نه ۳ نو حضور ﷺ د هغه دواړو تورې وکتلې او وې فرمايل ۴ چې تاسو دواړو قتل کړې دې ۵ او رسول کريم ﷺ حکم اوکړو چې د ابوجهل سامان دې معاذ ابن عمرو ابن جموح ته ورکړې شی ۶ او هغه دواړه هلکان [چې ابوجهل يي قتل کړو] معاذ ابن عمرو ابن جموح او معاذ ابن عفراء وو (بخاري، مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** حَتّٰى يَمُوتَ الْأَعْجَلُ مِنَّا:

**دمذکوره جملې مطلب:** يعنی دَ چا دَمرګ وخت چه زرشی اوهغه مرشی دا حمله هم د خودکش حملې په شان ده چه په اصل کښې نورو له لره وژونکې حمله ده

**قوله:** مُعَاذُ بْنُ عَمْرِو بْنِ الْجَمُوحِ، وَمُعَاذُ بْنُ عَفْرَاءَ:

**د دواړو ماشومانود مورپلاروضاحت:** دې نه مخکښې ليکلې شوی دی چه دا دواړه دَمور شريك رونړه وو اود مور نوم ئی عفراء وو او د دواړو پلاران جدا جدا وو دَمعاذ پلار عمرو بن جموح وو اود معوذ د پلار نوم حارث وو اود دواړو دَ مور نوم عفراء وو نوچه د چاطرف ته هم نسبت اوشی صحيح دې هيڅ تعارض نشته دې

**د ابوجهل قاتلان:** اول حمله حضرت معاذ ﷺ کړې وه بيا معوذ حمله اوکړه عکرمه په معاذ باندې حمله اوکړه او اوتختيدو بيا حضرت ابن مسعود ﷺ روستو راغلو د ابوجهل سرئی قلم کړو فرشتو هم په دې کار خيرکښې حصه واخستله نو که په دې .

حضراتو کښې چاته هم د ابوجهل د قتل نسبت اوشی غلط به نه وی ځکه چې هر يو دهغه په قتل کښې حصه اخستې ده.

**[۳۰۳۹] ابن مسعود رضی الله عنه دَ ابوجهل په سينه**

۳۰۳۹ - [۳۴] (۱)[۱] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ بَدْرٍ: [۳] «مَنْ يَنْظُرُ لَنَا مَا صَنَعَ أَبُو جَهْلٍ؟» [۴] فَانْطَلَقَ ابْنُ مَسْعُودٍ فَوَجَدَهُ [۵] قَدْ ضَرَبَهُ ابْنَا عَفْرَاءَ حَتَّى بَرَدَ. [۶] قَالَ: "فَأَخَذَ بِلِحْيَتِهِ، فَقَالَ: أَنْتَ أَبُو جَهْلٍ؟ [۷] فَقَالَ: "وَهَلْ فَوْقَ رَجُلٍ قَتَلْتُمُوهُ؟. [۸] وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَ: [۹] فَلَوْ غَيْرُ أَكَّارٍ قَتَلَنِي». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضی الله عنه وايي [۲] چه رسول کريم ﷺ د جنګ بدر په ورځ د جنګ په ميدان کې وفرمايل [۳] کوم سړې دې چې په ليدو سره مونږ ته ونبايي چې ابوجهل څه وکړل ايعنی دهغه څه حشر شو آيا هغه ووژل شو يا ژوندی دې! [۴] نو ابن مسعود رضی الله عنه ورغلو او هغه ابو جهل په دې حالت کې اوموندلو [۵] چې د عفراء دوارو ځامنو هغه په وهلو وهلو يخ ايعنی قريب المرګ! کړي وو [۶] حضرت انس رضی الله عنه وايي حضرت ابن مسعود رضی الله عنه په دې ليدو سره ابوجهل د ږيرې څخه اونيولو او هغه ته يې اوويل ته ابوجهل يې کنه؟ اابوجهل د ابن مسعود رضی الله عنه په دې سوال باندې پټ طنز او حقارت محسوس کړو [۷] او هغه اوويل ابيشکه زه ابوجهل يم ليکن! آيا ته د هغه سړې څخه زياتې مرتبې والا يې کوم چې تاقتل کړې دې؟ ايعنی کوم سړې چې تاقتل کړې دې د هغه څخه اوچتې مرتبې والا هيڅ سړې نشته د دې الفاظو په ذريعه ګويا ابوجهل دا دعوی وکړله چې قريشو کې زما څخه زيات لوئ مرتبې والا سړې نشته! [۸] او په يوروايت کې دادی چې ابوجهل په دې موقع داوويل [۹] که غير زراعت پيشه خلقو زه قتل کړې وې نو ډيره ښه به وې (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① أَكَّار: زراعت والا ، زميندارى کونکی.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَهَلْ فَوْقَ رَجُلٍ قَتَلْتُمُوهُ؟:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① يومطلب دادې چه دَدې سړی نه زيات تاخوك چرته وژلې دې يعنی زما نه لوئی به تاخوك نه وی وژلې زه د ټولو نه لوئی يم.

② بل مطلب دا دې چې خويو سړې دې وژلې دې په دې باندې څه فخرکوې باقی فوج خو موجود دې

(۱) اخرجه مسلم فى كتاب الجهاد والسّير /باب قتل أبى جهل (رقم-۱۱۸ - (۱۸۰۰)

**دابوجهل سرکشي:** بعضې رواياتوکښې دلته څه تفصيل دې. هغه دا چه کله ابن مسعود رضي الله عنه راغلو نود ابوجهل په سينه باندې کيناستو نود دواړو په مينځ کښې دا مکالمه شوې وه

**ابوجهل:** اې ګډبه مبارك شه په ډير اوچت مقام باندې ناست ئې مګر دا اووايه چه د جنګ ميدان د چا په لاس کښې دې؟

**ابن مسعود رضي الله عنه:** ميدان د محمد عربي ﷺ اود مسلمانانو په لاس کښې دې

**ابوجهل:** د فخرکولو خبره نه ده د يوسړی نه سوا دې هم څوك وژلې دې

**ابن مسعود رضي الله عنه:** ستا په شان اويا مردار پرانه دی

**ابوجهل:** دا اووايه چه زه چا وژلې يم؟

**ابن مسعود رضي الله عنه:** د عفراء ځوئې وژلې يئې

**ابوجهل:** "فلوغيراكارقتلني" افسوس چه زه د زميندار په ځائې چرته بل چا قتل کړې وې

**ابن مسعود رضي الله عنه:** د ابوجهل ډيرې له جټکه ورکولو سره "وقداخزاك الله ياعدوالله" اې د الله تعالی دښمنه الله تعالی ته رسوا کړې

**ابن مسعود رضي الله عنه:** زه تاقتلول غواړم

**ابوجهل:** دا څه ړومبې واقعه نه ده چه يو غلام آقا وژلې وی

**ابن مسعود رضي الله عنه:** زه ستا سر قلم کول غواړم ابوجهل ورته وئيل ته خپله توره اوښايه کله چه ابوجهل د ابن مسعود رضي الله عنه زنګ لګيدلې توره اوليدله نو وئې وئيل

**ابوجهل:** په دې سره نه بلکه زما توره واخله زما سرد تن نه جدا کړه مګر اوږوسره اوچت ئې پريکړه چه زما سر غټ ښکاری او محمد ﷺ اووائې چه واقعې د غټ سردار سر دې

**ابن مسعود رضي الله عنه:** ئې سرقلم کړو او دنبی کريم په مخکښې ئې کيخودو نبی کريم د شکر سجده اداکړه اووئې فرمائيل زما د امت فرعون اووژلې شو

**[۳۰۳۰] چاته ورکړې سره دهغه د دينې فضيلت عدم لزوم**

۳۰۳۰-[۳۵] (١) [١] وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [٢] «أَعْطَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَهْطًا وَأَنَا جَالِسٌ، [٣] فَتَرَكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيهِمْ رَجُلًا [٤] وَهُوَ أَعْجَبُهُمْ إِلَيَّ، [٥] فَقُمْتُ، فَقُلْتُ: [٦] مَا لَكَ عَنْ فُلَانٍ؟ [٧] وَاللَّهِ إِنِّي لَأُرَاهُ مُؤْمِنًا،

**ترجمه:** [١] سعد ابن ابن وقاص رضي الله عنه وايي [٢] چه يوه ورځ هرکله چې زه [مجلس نبوي ﷺ

---

[١] ) اخرجه البخاري في كتاب الزكاة/باب قول الله تعالى: {لا يسألون النّاس إلحافا} [البقرة: ٢٧٣] وكم الغنى (رقم-١٤٧٨) ومسلم في كتاب الإيمان/باب تألف قلب من يخاف على إيمانه لضعفه. والنّهي عن القطع بالإيمان من غير دليل قاطع (رقم-٢٣٦ - (١٥٠)

کي] ناست وم، رسول کريم ﷺ يو جماعت ته څه مال ورکړو ③ او په هغه جماعت کي رسول کريم ﷺ يو سړی پرېښودو [يعنی هغه ته يي هيڅ ورنه کړل] حالانکه هغه سړي ځما په نز [د دين د په اعتبار سره] هغوی ټولو کي ښه وو ⑤ په دي [اليدو] سره زه ودريدم او حضور ﷺ ته مي عرض اوکړو ⑥ چي فلانی سړي د پاره څه دي [يعنی تاسو هغه د خپلي عطيي څخه ولې محروم کړو ؟] ⑦ قسم په خدای زه خو دي مومنِ صادق گڼم

**حل اللغات:** ① رَهْطًا: جماعت، ډله.

① فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "، أَوْ مُسْلِمًا" ② ذَكَرَ ذٰلِكَ سَعْدٌ ثَلَاثًا ③ وَأَجَابَهُ بِمِثْلِ ذٰلِكَ، ④ ثُمَّ قَالَ: "إِنِّي لَأُعْطِي الرَّجُلَ ⑤ وَغَيْرُهُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْهُ ⑥ خَشْيَةَ أَنْ يُكَبَّ فِي النَّارِ عَلٰى وَجْهِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ⑦ وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا ⑧ قَالَ الزُّهْرِيُّ فَنَرَى أَنَّ الْإِسْلَامَ الْكَلِمَةُ، ⑨ وَالْإِيمَانَ الْعَمَلُ الصَّالِحُ.

**ترجمه:** ① رسول کريم ﷺ وفرمايل [داسي مه وايه چي زه يي صادق مومن گڼم بلکه] داسي وايه چي زه هغه مسلمان گڼم ② سعد رضي الله عنه د حضور ﷺ مخکي دري ځله داخبره وکړه ③ او حضور ﷺ هم هر ځل دغه شان جواب ورکړو ④ د دي څخه وروسته حضور ﷺ وفرمايل زه يو سړي ته مال ورکوم ⑤ حالانکه د هغه په نسبت دويم سړي ماته زيات خوښ وي ⑥ او د هغي وجه دا انديښنه ده چي چرته هغه سړي پرمخي په دوزخ کي وانه چول شي (بخاري، مسلم) ⑦ او د بخاري او مسلم په يو روايت کي دادي ⑧ چه زهري دا ويلي دي چي د دي ارشاد گرامي پيش نظر ځما دا اعتقاد دی چي اسلام په اصل کي د کلمي [يعنی د کلمۀ شهادت] نوم دي ⑨ او ايمان د [قلب] عملِ صالح [يعنی د تصديق] نوم دی

**حل اللغات:** ② أَنْ يُكَبَّ: چه واچولي شي. اوغورزولي شي

**تسهيلات:**

**قوله:** أَوْ مُسْلِمًا:

**د مذکوره جملي مطلب:** علامه طيبی رحمه الله فرمائی چه أو د بل په معنی کښې دې يعنی نبی کريم خودل غواړی چه ايمان يو پټ باطنی امر دې دَدې حکم مه لګوئی بلکه صرف په ظاهر باندې حکم اولګوئی کوم چه اسلام دې لهذا ده ته مسلم وايه مؤمن مه وايه.

**قوله:** فَنَرَى أَنَّ الْإِسْلَامَ الْكَلِمَةُ، وَالْإِيمَانَ الْعَمَلُ الصَّالِحُ:

**په ايمان او اسلام کښې د تباين دليل:** په دې روايت سره په اسلام او ايمان کښې دَ تباين پته لګی. تفصيل جلد ۱ کتاب الايمان کښې دې. [الکاشف، ۸/۶۱-۶۰]

**[۴۰۳۱] په جنګ بدر کښې د عثمان رضی الله عنه دپاره حصه مقررول**

۴۰۳۱–[۴۶] ( )[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ يَعْنِي يَوْمَ بَدْرٍ فَقَالَ: [۳] "إِنَّ عُثْمَانَ انْطَلَقَ فِي حَاجَةِ اللهِ، وَحَاجَةِ رَسُولِهِ، [۴] وَإِنِّي أُبَايِعُ لَهُ" [۵] فَضَرَبَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَهْمٍ، [۶] وَلَمْ يَضْرِبْ بِشَيْءٍ لِأَحَدٍ غَابَ غَيْرَهُ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او ابن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دي [۲] چه رسول کریم ﷺ د بدر د جنګ په ورځ خطبه ویلو د پاره اودریدلو او وي فرمايل [۳] بلاشبه عثمان رضی الله عنه د الله او د هغه د رسول په کار تلي دي [۴] څکه زه خپله د هغه د طرف څخه بیعت کوم [۵] بیا رسول کریم ﷺ د حضرت عثمان رضی الله عنه دپاره [د بدر جنګ د غنیمت د مال څخه] حصه مقرره کړه [۶] او حضور ﷺ د حضرت عثمان رضی الله عنه څخه علاوه بل هیڅ سړي د پاره حصه مقرره نه کړه کوم چې په جنګ کې شریك نه وو. (ابوداود)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَضَرَبَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَهْمٍ:

**دعثمان رضی الله عنه دپاره د حصې د مقررولو وجه:** حضرت عثمان رضی الله عنه دَ نبی کریم دَ لوربې بی حضرت رقیه رضی الله عنها په بیمارئی کښې خیال ساتلو کښې مشغول وو دَنبی کریم په حکم باندې په جنګ بدر کښې دَ شرکت کولو دَپاره نه وو تلې هغوی ته دَ بدر والو په شان درجه ملاؤ شوه او مال غنیمت کښې ورته حصه هم ملاؤ شوه

**[۴۰۳۲] په مال غنیمت کښې د یو اوښ او د لسو چیلو برابری**

۴۰۳۲–[۴۷] ( )[۱] وَعَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْعَلُ فِي قَسْمِ الْمَغَانِمِ عَشْرًا مِنَ الشَّاءِ بِبَعِيرٍ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او رافع ابن خدیج رضی الله عنه وايي [۲] چه رسول کریم ﷺ د غنیمت د مال د تقسیم په وخت یو اوښ د لسو بزو برابر اوګرځولو (نسائي)

**تسهيلات:**

**قوله:** يَجْعَلُ فِي قَسْمِ الْمَغَانِمِ عَشْرًا مِنَ الشَّاءِ بِبَعِيرٍ:

**دمذكوره جملې مطلب:** ددې مطلب دا دې چه نبی کریم ﷺ به د مال غنیمت په تقسیم کښې یو اوښ د لسو بیزو په برابر بې تقسیمولو یعنی که دیو مجاهد په حصه کښې به یو اوښ رسیدو نو بل مجاهد ته به ئي لس بیزې ورکولې

[۱] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد /باب فیمن جاء بعد الغنیمة لا سهم له (رقم -۲۷۲۶)
[۲] ) اخرجه النسائی فی السنن کتاب الضحایا /باب ما تجزئ عنه البدنة فی الضحایا (رقم -۴۳۹۱) واحمد فی المسند: ۳/ ۶۴

## [۴۰۳۳] دمال غنيمت مال په آسماني اور سره سوزيدل:

۴۰۳۳-[۳۸] ()[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «غَزَا نَبِيٌّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ، [۳] فَقَالَ لِقَوْمِهِ: [۴] لَا يَتْبَعْنِي رَجُلٌ مَلَكَ بُضْعَ امْرَأَةٍ [۵] وَهُوَ يُرِيدُ أَنْ يَبْنِيَ بِهَا وَلَمَّا يَبْنِ بِهَا [۶] وَلَا أَحَدٌ بَنَى بُيُوتًا وَلَمْ يَرْفَعْ سُقُوفَهَا، [۷] وَلَا رَجُلٌ اشْتَرَى غَنَمًا، [۸] أَوْ خَلِفَاتٍ [۹] وَهُوَ يَنْتَظِرُ وِلَادَهَا، [۱۰] فَغَزَا، [۱۱] فَدَنَا مِنَ الْقَرْيَةِ [۱۲] صَلَاةَ الْعَصْرِ، أَوْ قَرِيبًا مِنْ ذٰلِكَ،

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] انبياء عليهم السلام كې د يونبي [يعنى د حضرت يوشع ابن نون عليه السلام ذكر دي چې يو ځل هغوی] د جهاد اراده وكړه [او هركله چې د جهاد د پاره روانيدل] [۳] نو هغوی خپل قوم ته اوويل [۴] زما سره دې هغه سړې نه ځي چا چې يوې ښځې سره نكاح كړې وي [۵] او هغه خپل كورته راوستلو سره د هغې سره د جماع [كوروالى] اراده لري او لا تر اوسه پورې ئې ورسره جماع نه وي كړې [۶] او زماسره دې هغه سړې نه ځي چې هغه كور جوړكړې وي ليكن تراوسه پورې يې په هغې چت نه وي اچولى [۷] او هغه سړې دې هم زماسره نه ځي چې هغه بلاربي بزې (چيلئ) اخستې وى [۸] يا ئې بلاربي اوښې اخستې وي [۹] او د هغې د بچو د پيداكيدو منتظر وي [۱۰] د دې ځخه وروسته هغه نبي عليه السلام [اخپل باقي ملګرو سره] د جهاد د پاره روان شو [۱۱] او كوم وخت چې هغه كلي ته نزدې ورسيدو [اچرته چې د جهاد اراده يې لرله] [۱۲] نو د مازيګر وخت شوی وو [يعنى هغه داسې وخت هغه كلي ته ورسيدو چې د مازيګر د مونځ وخت ختم شوی وو يا ختميدو ته نزدې وو]

**حل اللغات:** ① بُضْعَ امْرَأَةٍ: د ښځې خاص اندام (شرمگاه)، ② أَنْ يَبْنِيَ: چه كوروالي اوكړی. ③ خَلِفَاتٍ: بلاربي اوښې. ④ وِلَادَهَا: د بچې پيدا كيدو دهغې،

[۱] فَقَالَ لِلشَّمْسِ: [۲] إِنَّكِ مَأْمُورَةٌ وَأَنَا مَأْمُورٌ، [۳] اللّٰهُمَّ! احْبِسْهَا عَلَيْنَا، [۴] فَحُبِسَتْ حَتّٰى فَتَحَ اللّٰهُ عَلَيْهِ، [۵] فَجَمَعَ الْغَنَائِمَ [۶] فَجَاءَتْ يَعْنِي النَّارَ لِتَأْكُلَهَا، فَلَمْ تَطْعَمْهَا، [۷] فَقَالَ إِنَّ فِيكُمْ غُلُولًا، [۸] فَلْيُبَايِعْنِي مِنْ كُلِّ قَبِيلَةٍ رَجُلٌ، [۹] فَلَزِقَتْ يَدُ رَجُلٍ بِيَدِهِ، [۱۰] فَقَالَ: فِيكُمُ الْغُلُولُ، [۱۱] فَجَاءُوا بِرَأْسٍ مِثْلِ رَأْسِ بَقَرَةٍ مِنَ الذَّهَبِ، [۱۲] فَوَضَعَهَا، [۱۳] فَجَاءَتِ النَّارُ فَأَكَلَتْهَا". [۱۴] زَادَ فِي رِوَايَةٍ: " [۱۵] فَلَمْ تَحِلَّ الْغَنَائِمُ لِأَحَدٍ قَبْلَنَا، [۱۶] ثُمَّ أَحَلَّ اللّٰهُ لَنَا الْغَنَائِمَ [۱۷] رَأَى ضَعْفَنَا وَعَجْزَنَا [۱۸] فَأَحَلَّهَا لَنَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] نو هغه نبي عليه السلام نمر مخاطب كولو سره ورته اوويل [۲] ته هم په تلو مامور يې او زه هم د دې كلي فتح كولو باندې مامور يم [۳] اې الله! ته دا نمر ودروه [۴] نو نمر ودرول شو [يعنى د قديم ماهرين فلكيات د نظريې مطابق د نمر رفتار يا د جديد نظر يې مطابق

[1] ) اخرجه البخاري في كتاب المغازي/باب قدوم الأشعريين [ص:۱۷۳] واهل اليمن (رقم-۴۳۹۱) ومسلم في كتاب الجهاد والسير/باب تحليل الغنائم لهذه الأمة خاصة (رقم-۳۲ - (۱۷۴۷) واحمد في المسند: ۲/۳۱۷

د زمکي ګردش په حکم الهي سره بند شو چې د شپي د تیاري څخه مخکې مخکې هغه نبي علیه السلام جهاد وکړو] تردې چې الله جل جلاله هغه نبي علیه السلام ته فتح ورکړله ⑤ بیا چې د غنیمت مال جمع کړې شو ⑥ او د هغې د سوزلو د پاره اور راغلو نو هغه اور د غنیمت مال ونه سوزولو ⑦ په دې لیدو سره هغه نبي علیه السلام خپلو ملګرو ته وفرمایل په تاسو کې د غنیمت په مال کې خیانت واقع شوې دې [یعنی په تاسو کې چا د غنیمت مال کې خیانت کړې دې چې د هغې په وجه دا اور خپل کار نه کوي] ⑧ نو په تاسو کې د هرې قبیلې یویو سړې ته پکار دی چې هغه زما سره بیعت وکړي [کوم وخت چې بیعت شروع شو او د هرې قبیلې یویو سړي خپل لاس د هغه نبي په لاس کې ورکړو] ⑨ نو د یو سړي لاس د هغه نبي په لاس باندې نختې پاتې شو ⑩ هغه نبي هغه سړي ته وفرمایل [په دې ذریعه دا ثابته شوه] چې خیانت ستا د قبیلې د طرفه څخه شوې دې ⑪ بیا د هغه قبیلې خلقو د سرو زرو یو سر راوړو چې د غوایې د سر په شان وو ⑫ او هغه یې کېښودلو ⑬ د دې څخه وروسته اور راغلو او هغه یې وسوزولو ⑭ او په یو روایت کې راوي دا عبارت هم نقل کړې دی ⑮ چې [رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل] زمونږ څخه مخکې د هیچا د پاره د غنیمت مال حلال نه وو ⑯ بیا الله جل جلاله د غنیمت مال زمونږ د پاره حلال کړو ⑰ الله جل جلاله مونږ [مالي طور سره] کمزوري او عاجز ولیدو ⑱ نو د غنیمت مال یې زمونږ د پاره حلال کړو (بخاري . مسلم)

**حل اللغات:** ⑤احْبِسْهَا: اودروه دا (نمر). ⑥غُلُولًا: خیانت. ⑦فَلَزِقَتْ: نو اونختلو .

**تسهیلات:**

**قوله:** غَزَانَبِيٌّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ:

**د نبی مصداق:** ① دایوشع بن نون پیغمبر وو هغه فارغ البال یعنی اوزګار خوانان دَ جهاددَپاره منتخب کړل دې دَپاره چه بې خطرې اوجنګیږی [مسلم: ۷۵/۱]

**قوله:** إِنَّكِ مَأْمُورَةٌ وَأَنَا مَأْمُورٌ، اللّٰهُمَّ احْبِسْهَا عَلَيْنَا:

**نمر د دوبیدو څخه منع کول:** یعنی ماته دَ جهاد حکم دې اوتاته دَ آسمان دَ سفرحکم دې اې الله ته دې رامنع کړې دې دَپاره چه زه دَجهاد عمل مکمل کړم اوپه ښارکښې داخل شم

**قوله:** فَحُبِسَتْ حَتّٰى فَتَحَ اللّٰهُ عَلَيْهِ:

**د مذکوره دعا وجه:** دَنمر دوبیدونه پس دَ هفتې ورځ شروع کیدونکې وه اودَ هفتې په ورځ دَهغوی دَپاره جهادکول منع وو په دې وجه حضرت یوشع علیه السلام دعا اوغوښتله دې دَپاره چه دَ جهاد دَعمل پوره والې اوشی اوښارفتح شی ګنی دَ بلې ورځې پورې به کافران خلق مضبوط شی دې وخت کښې هغوی کمزورې دی اودَهغوی خپې خویدلې دی ددې دعا نه پس نمر رامنع شوکله چه ښارفتح شو نونمر دوب شو. دَدې نه دَ جهاد

دَ اهمیت او عظمت پته لګی. د بنا رفتح کیدو نه پس مال غنیمت را یوځائی کړې شو

**قوله**: فَلْيُبَايِعْنِي مِنْ كُلِّ قَبِيلَةٍ رَجُلٌ:

**د خائن د معلومولو طریقه** : مګر دَ دستور مطابق اور هغه اونه سوزولو حضرت یوشع علیه السلام خلقوته دَمصافحې کولو حکم ورکړو. چه دَ خائن لاس دَهغوی لاس پورې اونختلو نو خائن معلوم شو دَدې حدیث نه معلومه شوه چه دَ یهودو انبیاؤ کرامو جهاد کړې دې. کوم خلق چه جهاد ته دهشت ګردی وائی هغوی په خپل نبی باندې اعتراض کوی [مسلم: ۱/۱۷۵]

[۴۰۳۳] په مال غنیمت کښې د خیانت عذاب

۴۰۳۳-[۳۹] ([1]) ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ② حَدَّثَنِي عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: "③ «لَمَّا كَانَ يَوْمَ خَيْبَرَ ④ أَقْبَلَ نَفَرٌ مِنْ صَحَابَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ⑤ فَقَالُوا: فُلَانٌ شَهِيدٌ، وَفُلَانٌ شَهِيدٌ، ⑥ حَتَّى مَرُّوا عَلَى رَجُلٍ، ⑦ فَقَالُوا: فُلَانٌ شَهِيدٌ. ⑧ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَلَّا ⑨ إِنِّي رَأَيْتُهُ فِي النَّارِ ⑩ فِي بُرْدَةٍ غَلَّهَا، أَوْ عَبَاءَةٍ،

**توجمه**: ① او ابن عباس رضي الله عنه وايي ② چه حضرت عمر ابن خطاب رضي الله عنه مونږ ته دابیان وکړو ③ چې د خیبر ورځ راغله [یعنی څه وخت چې غزوه خیبر ختمه شوه] ④ نو د نبي کریم صلی الله علیه وسلم دصحابه ؤ رضي الله عنهم څه خلق راغلل ⑤ او [په خپل مینځ کې] یي اوویل چې فلانې سړې شهید دې. فلانې سړې شهید دې [یعنی په هغه ورځ چې کوم مسلمانان شهیدان شوي وو د هغوی نومونه اخستو سره د هغوی د شهادت ذکر یي کولو] ⑥ تردې چې هغه خلق د یو سړی [په لاش] باندې تیر شو ⑦ او هغوی اوویل چې دا فلانی سړې شهید دې ⑧ رسول کریم صلی الله علیه وسلم په دې اوریدو سره وفرمایل هیڅ کله نه [تاسو خلقو چې کومه معنی کې دده ته شهید وایئ هغه صحیح نه ده] ⑨ ځکه چې ما داسړې په دوزخ کې سوزیدونکی لیدلې دې ⑩ چه د غنیمت مال څخه ئې یو څادر یا وي فرمایل یو کرښیز [الکیردار] کمبل غلا کړې دې

① ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "② يَا ابْنَ الْخَطَّابِ اذْهَبْ فَنَادِ فِي النَّاسِ: ③ أَنَّهُ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ إِلَّا الْمُؤْمِنُونَ "④ ثَلَاثًا. ⑤ قَالَ: فَخَرَجْتُ فَنَادَيْتُ: ⑥ أَلَا إِنَّهُ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ إِلَّا الْمُؤْمِنُونَ، ⑦ ثَلَاثًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**توجمه**: ① بیا حضور صلی الله علیه وسلم زه مخاطب کولو سره وفرمایل ② اې ابن خطاب، لاړ شه د خلقو په مینځ کې دا اعلان وکړه ③ چې جنت ته به [ابتداءً] صرف مؤمن یعنی کامل مؤمن داخلیږي ④ دا اعلان درې ځله اوکړه ⑤ حضرت عمر رضي الله عنه وايي چه زه ووتلم او دا اعلان

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب السیر عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب ما جاء فی الغلول (رقم-١٥٧٤) واحمد فی المسند: ١/٣٠

مې اوکړو ٦ چې خبردار په جنت کې به صرف مومن داخلیږي. ٧ دا اعلان مې درې ځله اوکړو. (مسلم)

**حل اللغات:** ① بُرْدَةٍ: څادر، ② عَبَاءَةٍ: کمبل.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَقَالُوا: فُلَانٌ شَهِيدٌ:

**په مقتول في المعرکه باندې د شهید اطلاق:** د مذکوره صحابه کرامو مطلب دا وؤ چه دا خلق شهیدان دي نو فوراً جنت اورسیدل، ځکه چه د شهید روح وتلو سره جنت ته رسی او دې ته شهید هم ځکه وائي چه جنت ته حاضریدونکي. نو ددې په جواب کښې نبی کریم ﷺ وفرمایل چه دا کس شهید خو دې لیکن جنت ته نه دې رسیدلی بلکه د خپل خیانت په سزا کښې مبتلا دې او ځه ئې د اور په عذاب کښې وینم.

**قوله:** لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ إِلَّا الْمُؤْمِنُونَ، ثَلَاثًا:

**په عدمِ دخولِ جنت کښې درې اقوال:** ① ابن الملک فرمائي چه په عرف کښې مومن هغه کس ته وئیلې شي کوم چه په نبی کریم ﷺ باندې او د نبی کریم ﷺ په شریعت باندې ایمان لري په دې اعتبار سره چه کوم کس خیانت وکړو نو ګویا چه دې کس د نبی کریم ﷺ او د هغه د دین د تصدیق نه انکار وکړو او د تصدیق په وجهې سره چه کوم احکام نافذ شوی په هغه ئې عمل ونه کړو نو لهذا خیانت ئې وکړو او دمؤمنانو د جماعت نه خارج شو. خودا مطلب صحیح نه دې.

② د نبی کریم ﷺ دا فرمان په وعید، زجر وتشدید باندې مشتمل دې.

③ د نبی کریم ﷺ ددې ارشاد نه مراد متقی او پرهیزګار مؤمن دې. او داخلیدو نه مراد بغیر د عذاب نه د داخلیدل دي.

**د حدیث صحیح مطلب:** ددې ارشاد مطلب به داشي چه کوم مؤمن متقی او پرهیزګار نه وي او ګناه کوي نو دغه کس به په عذاب کښې مبتلا کیږی چه د ګناهونو سزا ورته ملاؤشی او د سزا نه بعد به جنت داخلیږی.

**قوله:** كَلَّا إِنِّي رَأَيْتُهُ فِي النَّارِ:

**د رؤیت في النار څخه مراد:** چه ما هغه په جهنم کښې لیدلی دې. دا په ظاهره د هغه نصوصو خلاف دې کوم چه په دې خبره دلالت کوی چه چا لره حقیقتاً په جهنم کښې اچول به د حشر نه بعد واقع کیږی لهذا دا ارشاد به په تمثیل باندې محمول وی.

# [۸] بَابُ الْجِزْيَةِ

## دَ جزيه بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه سبعة أحاديث مشتملة على خمس مسائل:**

① من يؤخذ عنه الجزية: ۱، ۲، ۴.

② من لا يؤخذ عن الجزية: ۳.

③ أخذ العشور من الجزية: ۵.

④ حكم الضيافة من الجزية: ۶، ۷.

⑤ مقدار الجزية: ۷.

**د جزيه لغوي معنی:** جزيه دَ جزاء نه جوړه شوې ده چه په لغوي اعتبار سره دَ بدلې په معنی کښې دې

**د جزيه اصطلاحي تعريف:** "الجزية مايؤخذمن أهل الذمة" يعنی جزيه هغه خاص محصول اوټيکس ته وائی چه دَ ذميانونه دَهغوی دَ جان او دَمال دَ حفاظت په عوض کښې اخستلې شی په اسلامی حکومت باندې ذمه واری راځی چه هغوی دې دَ ذميانودَ جان اومال اودَ هغوی دَعزت او دَ ناموس حفاظت اوکړی

**د جزيه دوه فائدې:** ① چې کله هغوی اسلام او اهل اسلام دَ نيزدې نه اوګوری او دَ هيڅ يوطرف نه په هغوی باندې څه زور ظلم اوزياتې نه وی اوهرطرف ته دَ اسلام شان اوغلبه وی دَ نفاذ اسلام برکات به وی نوډير زر به دَ اسلام آفاقی کشش هغوی دَ اسلام طرف ته راکاږی چنانچه په لاکهونوذميانو په قرون اولی کښې هم دغه شان اسلام قبول کړې دې
② چه کله په ذميانوباندې دَ جزيې بوج وی دَهغوی قانون به مغلوب وی اودَ اسلام قانون به غالب وی نو په کفرباندې پاتې کيدوکښې به دَ کافرانو هيڅ فائده نه وی بلکه دنياوی نقصان به ئې هم وی او اخروی نقصان هم په دې وجه دَ جزيه دَ ذلت نه دَ وتلودپاره اوددنياوی فوائدو په غرض سره به هغوی دَاسلام طرف ته راځی

**د جزيه قسمونه:**

① **بعد الحرب:** چه اسلامی لښکردَ کافرانو په يوه علاقه باندې حمله کوی اودَ جنګ نه پس هغه فتح کوی اودَهغې نه پس دَ علاقې دکافرانو دَ ځان خلاصی په عوض په هغوی باندې جزيه نافذ کوی په دې کښې دَ وخت دَ خليفه او دَلښکردَ امير مرضی وی چه هغه څومره جزيه مقررکوی دَ کافرانو مرضی نه وی.

② **بعد الصلح**: دَ صلح په توګه ده هغه داچه کافران دَ ويرې دَ وجهې جنګ اونه کړې بلکه دَ صلح په توګه اسلامي لښکر په مخکښې جزيه ورکول قبول کړي دغه شان په جزيې کښې دَ طرفينو رضامندي ی دَ صلح نه پس په مسلمانانوباندې دَدې قائم ساتل لا زمي دی په دې صورت کښې دَ جزيه مقدار دَ طرفينو په رضامندئی سره وی

**په ذميانوباندې دَ اسلام دَ طرفه شرطونه**: دَ جزيه اداکولوسره سره اسلام په ذميانوباندې يوڅونور شرائط هم لګوی کوم چه دادی:

① ذمی به دَ خپل عبادت په ښکاره مشهورتيانه کوی

② ذمی به نوې ګرجا يا عبادت خانه نه جوړوی.

③ په بدن به څه خصوصي علامت ساتی چه دَ ذمی کيدو معلومات کيږی لکه دَ زنار استعمال يا په سرباندې چونټه ساتل وغيره

④ دَ اسلامی قوانينو او قواعدو دَ توهين اوسپکاوی نه به ډډه کوی

⑤ دَمسلمانانونه به زيات دَ شان شوکت لباس نه اچوی.

⑥ ذميان به دَمسلمانانو نه عالی شان مکانات نه جوړوی.

⑦ جزيه به پخپله راوړی او په دفترکښې به اودريږی او په خپل لاس به ئی اداکوی

⑧ په اس باندې به سورلی نه کوی يا دَ مرسډيز او لينډکروزر سورلی به نه کوی

⑨ که چرې مسلمان محصل هغوی له لاړ شی نوذمی لره به دَ ګريوان نه نيسی او جټکه کولوسره به دَهغه نه جزيه وصول کوی

دا نهه شرائط دی چه دَدې نه پس دانه شی وئيلې کيدې چه يوذمی سرې به بغيردَ اسلام قبلولونه پاتې شی. جزيه مقررکول په حقيقت کښې دَاسلام يودعوت دې چه کوم کافر دَ خپل خالق اومالك نه باغی کيږی هغوی سره دا سلوك کول هم دَهغوی سره رعايت دې

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۲۰۳۵] د مجوسيا نو څخه د جزيه د اخستلو جواز

۲۰۳۵—[۱] (۱) ① عَنْ بَجَالَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② كُنْتُ كَاتِبًا لِجَزْءِ بْنِ مُعَاوِيَةَ عَمِّ الْأَحْنَفِ، ③ فَأَتَانَا كِتَابُ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، ④ قَبْلَ مَوْتِهِ بِسَنَةٍ: ⑤ فَرِّقُوا بَيْنَ كُلِّ ذِي مَحْرَمٍ مِنَ الْمَجُوسِ. ⑥ وَلَمْ يَكُنْ عُمَرُ أَخَذَ الْجِزْيَةَ مِنَ الْمَجُوسِ ⑦ حَتَّى شَهِدَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ ⑧ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَهَا مِنْ مَجُوسِ هَجَرَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الجزية /باب الجزية والموادعة مع أهل الحرب (رقم-۳۱۵۶) و ابو داود فی کتاب الخراج والإمارة والفيء /باب فی أخذ الجزية من المجوس (رقم-۳۰٤۳) والترمذی فی کتاب السّير عن رسول اللّه صلّی اللّه عليه وسلّم /باب ما جاء فی أخذ الجزية من المجوس (رقم-۱۵۸۶)

**ترجمه:** ١ حضرت بجاله [تابعي] وائي ٢ چه زه دحضرت جزء ابن معاويه [تابعي چې د حضرت احنف تره وو] سره منشي وم ٣ يو وخت مونږ ته د امير المؤمنين حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه يو خط راغلو ٤ دحضرت عمر رضي الله عنه دوفات څخه يو کال مخکې ٥ [په هغې کې يي داحکم کړي وو] چې مجوسيانو [يعنى آتش پرستو] کې د هغوى د محارمو په مينځ کې جدايي راولئ ٦ [او راوي وايي] چې حضرت عمر رضي الله عنه به مخکې د مجوسيانو څخه جزيه نه اخستله ٧ تردي چې عبد الرحمن ابن عوف رضي الله عنه شاهدي ورکړه ٨ [يعنى هغه دابيان وکړو] چې رسول کريم ﷺ د هَجَر د مجوسيانو څخه جزيه اخستي وه ابيا حضرت عمر رضي الله عنه د مجوسيانو څخه جزيه اخستل شروع کړل] (بخاري)

**حل اللغات:** ① اَلْمَجُوسِ: آتش پرست، ② هَجَرَ: د يوې علاقې نوم دي

١ وَذَكَرَ حَدِيثَ بُرَيْدَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، إِذَا أَمَّرَ أَمِيرًا عَلَى جَيْشٍ فِي "بَابِ الْكِتَابِ إِلَى الْكُفَّارِ".

**ترجمه:** ١ اود بريده رضي الله عنه روايت اذا امّر اميرا على جيش الخ به باب الكتاب الى الكفار کې ذکر شوي دي

**تسهيلات:**

**قوله:** فَرِّقُوا بَيْنَ كُلِّ ذِي مَحْرَمٍ مِنَ الْمَجُوسِ:

**دمجوسيانو په مينځ کښې د تفريق وضاحت:** دَ مجوسيانو په نيز مور لور خور وغيرها محارمو سره نکاح کول هيڅ دَ شرم خبره نه وه اونه منع وو په دې وجه حضرت عمر رضي الله عنه حکم ورکړو چه داسې محارم دَتعلق ازدواج نه جدا کړئ

**قوله:** أَخَذَهَا مِنْ مَجُوسِ هَجَرَ:

**دهجر څخه مراد:** يمن سره نيزدې دَ يوې علاقې نوم دې کومې ته چه نن صبا احساء وائى دې نه علاوه مدينې سره نيزدې دَ يوې علاقې نوم هم هجر وو

**قوله:** حَتَّى شَهِدَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ:

**دعمر رضى الله عنه د مجوسيانو څخه جزيه اخستل:** حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په شروع کښې دَمجوسيانونه جزيه نه اخستله ځکه چه په قرآن کريم کښې آيت وو ٩ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتٰبَ حَتّٰى يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَنْ يَدٍ وَّهُمْ صٰغِرُوْنَ ٧ [سورة التوبه، ٢٩] دَدې آيت نه په ظاهره معلوميدله چه دَ جزيې تعلق صرف د اهل کتاب يهود اونصاراؤ سره دي

مجوس اهل کتاب نه دى بلکه آتش پرست دى کله چه عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه گواهى ورکړه چه نبى کريم دَ هجر علاقې دَ مجوسيانونه جزيه اخستله نوبيا عمر فاروق رضي الله عنه اخستل شروع کړه. دَ جزيه نه اخستلو مطلب دادې چه دوى ژوندى مه پريږدئى بلکه قتل دې کړې شى.

**د عجمو کافرانو څخه د جذیه په اخستلو کښې ۲ مذاهب:**

دَ اهل کتاب او مجوس نه علاوه دَنورو عجم کافرانو نه د جزیه اخستلو په حکم کښې اختلاف دې

① دَ امام شافعي رحمه الله په نیزدَاهل کتاب نه علاوه به دَ نورو کافرانونه جزیه نه شی اخستې که هغه عربی وی که عجمی. البته دَمجوسونه جزیه اخستل شته

② دَاحنافو په نیز اهل کتاب وغیره ټولو کافرانونه جزیه اخستلې شی البته دَ مشرکین عرب اومرتدینو نه به جزیه نه شی قبلولې. دَدوی دَپاره یا اسلام دې یا توره ده

**د امام شافعي دلائل:** ①امام شافعي رحمه الله ﴿مِنَ الَّذِيْنَ أُوْتُوا الْكِتٰبَ﴾ نه دَمفهوم مخالف په توګه استدلال کړې دې

**جواب** مفهوم مخالف زمونږ په نیزڅه دلیل نه دې لهذا دا پیش کول بیکاره دی

② دَمجوسیانو تخصیص اودَهغوی نه جزیه اخستل دَ زیر بحث حدیث دَ وجهې دی

**د احنافو دلیل:** عجم کافران غلامان جوړول دَټولو په نیز جائز دی. دا دَدې خبرې دلیل دې چه دَهغوی نه جزیه اخستل هم جائز دی ځکه چه کله ژوندی پریخودل دکفر په حالت کښې جائز شو نوبیا جزیه اخستل هم جائز کیدل پکاردی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۳۰۳۶]د جزیه مقدار**

۳۰۳۶-[۲] (۱) ① عَنْ مُعَاذٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: ②«أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا وَجَّهَهُ إِلَى الْيَمَنِ ③أَمَرَهُ أَنْ يَأْخُذَ مِنْ كُلِّ حَالِمٍ يَعْنِي: مُحْتَلِمٍ دِيْنَارًا، ④أَوْعَدْلَهُ مِنَ الْمَعَافِرِيِّ: ثِيَابٌ تَكُوْنُ بِالْيَمَنِ» رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① حضرت معاذ رضي الله عنه څخه روایت دې ② کوم وخت چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم حضرت معاذ رضي الله عنه قاضي او حاکم جوړولو سره یمن ته لیږلو ③ نو هغه ته یې داهدایت اوکړو چې (هلته) دې د هر بالغ څخه یودینار د جزیې په طور واخلي ④ یا د یو دینار د قیمت معافري کپړه واخلی چې په یمن کې تیاریږي (ابوداود)

**حل اللغات:** ① مُحْتَلِمٍ: احتلام والا، بالغ. ② الْمَعَافِرِيّ: معافری دَهمدان دَ یوې قبیلې نوم دې، هم دَدوی طرف ته دا کپړه منسوب وه

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الخراج والإمارة والفیء/باب باب فی تعشیر أهل الذمّة إذا اختلفوا بالتّجارات(رقم-۳۰۳۸)

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْ يَأْخُذَ مِنْ كُلِّ حَالِمٍ يَعْنِي: مُحْتَلِمٍ دِينَارًا:

**دجذيه مختلف مقادير:** ① يعنى دَ بالغ سړى نه به يو دينار جزيه اخستې شى.
② كه دينار نه وى نودَ هغې ديناردَ قيمت برابر معافرى كپړه به اخستې شى

**قوله:** أَوْعَدْلَهُ مِنَ الْمَعَافِرِيِّ ثِيَابٌ تَكُونُ بِالْيَمَنِ:

**د معافرى مفهوم:** معافرى هم دَدوى طرف ته دا كپړه منسوب وه دَ روايت په آخره كښې راوى اشاره اوكړه چه دابه په يمن كښې جوړيدونكې يوه كپړه وه علماؤ ليكلى دى چه اوس معافرى دَ يوې كپړې نوم دې اونسبت ختم شوې دې.

**په ذمى باندې د جزيه په لزوم كښې د غنا په شرط كښې ۲ مذاهب:**

① دَ شوافع مسلك دې چه بالغ سړې كه مالدار وى اوكه غريب وى په هغوى به هم په يوه اندازه باندې جزيه راځى.

② دَ احنافو په نيزپه صاحب حيثيت مالداربانديې دكال ۴۸درهم جزيه ده په متوسط باندې ۲۴ درهم ده او په ادنىٰ فقيرباندې دولس درهم سالانه دى.

**داول فريق دليل:** زيربحث حديث د دوى دليل دې د دې څخه په ظاهره معلوميږى چه بالغ سړې كه مالدار وى اوكه غريب وى په هغوى به هم په يوه اندازه باندې جزيه راځى

**داول فريق د دليل دوه جوابونه:** ① زير بحث حديث مجمل هم دې د نورو آثارو څخه د جذيه په مقدار كښې تفصيل بيان شوې دې.
② دجذيه مذكوره مقدار دَ صلح په صورت باندې محمول هم دې

**د دويم فريق دليل:** احنافو دَ څه مرسل رواياتو او دَ حضرت عمر رضي الله عنه دَ عمل نه استدلال كړې دې

**[۴۰۳۷] په مسلمانانو د جزيه عدم وجوب**

۴۰۳۷ـ[۳] (١) ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «لَا تَصْلُحُ قِبْلَتَانِ فِي أَرْضٍ وَاحِدَةٍ، ③ وَلَيْسَ عَلَى الْمُسْلِمِ جِزْيَةٌ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل ② په يوه زمكه كې دوه قبلې نه دي كيدل پكار ③ او مسلمانانو باندې جزيه عائد كيدى نشي (احمد ترمذي ابوداود)

---

(١) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الخراج والإمارة والفىء/ باب فى الذمّىّ يسلم فى بعض السنة هل عليه جزية (رقم-٣٠٥٣) والترمذى فى كتاب الزّكاة عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما جاء ليس على المسلمين جزية (رقم-٦٣٣) واحمد فى المسند: ١/٢٢٣

**تسهیلات:**

**قوله:** لَا تَصْلُحُ قِبْلَتَانِ فِي أَرْضٍ وَاحِدَةٍ:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① دهیڅ یومسلمانانو د زمکې دپاره دامناسب اوصالح نه دی چه هلته دَ مغالبې اومقابلې اودَ مساوات په توګه دوه قبیلې آبادې وی ددې به دا صورت وی چه په مسلمان ملك کښې کافران بغیرد جزیې اوسیږی یا به مسلمانان مجبوره جوړیدو سره دکافرانو په مینځ کښې ذلت سره اوسیږی
② دیهودو او نصاریٰ دپاره په جزیرهٔ عرب کښې داوسیدو هیڅ ګنجائش نشته ځکه چه دهغوی قبله بیت المقدس ده اودمسلمانانوقبله بیت الله ده اودا دواړه په مخالف طرفونوکښې دی لهذا دوی دَ جزیرهٔ عرب نه بهر اوباسئی لکه چه دَ "ارض واحدة" نه مراد جزیرهٔ عرب ده

**قوله:** وَلَيْسَ عَلَى الْمُسْلِمِ جِزْيَةٌ:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① چه یو ذمی سړې وو هغه جزیه ورکوله لیکن بیا هغه بنده کړه لیکن څه موده پس هغه مسلمان شو اوس په هغه چه کومه باقی جزیه وه دَ هغې ورکول لا زم نه دی ځکه چه اوس هغه مسلمان شوې دې او په مسلمان باندې جزیه نه وی.
② یوذمی سړې وو په هغه باندې جزیه مقرر وه بیا هغه مسلمان شو اوس هغه ذمی نه بلکه مسلمان دې نو اوس په هغه باندې جزیه نشته دې

**[۳۰۳۸] په جزیه باندې صلح کول**

۳۰۳۸—[۳] (¹) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «بَعَثَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ إِلَى أُكَيْدِرِ دُومَةَ [۳] فَأَخَذُوهُ، [۴] فَأَتَوْا بِهِ، [۵] فَحَقَنَ لَهُ دَمَهُ، [۶] وَصَالَحَهُ عَلَى الْجِزْيَةِ رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ».

**ترجمه:** [۱] حضرت انس رضی الله عنه وایي [۲] چه رسول کریم صلی الله علیه وسلم حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه د اکیدر دومه مقابلې د پاره ولیږلو [۳] نو حضرت خالد رضی الله عنه هغه د هغه د ملګرو سره اونیولو [۴] او د حضور صلی الله علیه وسلم په خدمت کې یي پیش کړو [۵] حضور صلی الله علیه وسلم د هغه خون معاف کړو [۶] او په جزیه باندې یي د هغه سره صلح وکړله (ابوداود)

**حل اللغات:** ① فَحَقَنَ: نو معاف ئې کړو.

¹) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الخراج والإمارة والفيء/باب باب في تعشير أهل الذمّة إذا اختلفوا بالتّجارات(رقم-۳۰۳۷)

**تسهيلات:**

**قوله: بَعَثَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ إِلَى أُكَيْدِرِ دُومَةَ:**

**د حديث پس منظر:** دومة تبوك سره خواكې دَ يو ښارنوم دې. دَهغې يو مقامى بادشاه وو دَ كوم نوم چه اكيدر وو. دادَ روما دَ سلطنت ماتحت وو. دَ غزوه تبوك په موقع باندې نبى كريم حضرت خالد ﷺ ته حكم وركړو چه لاړشه او اكيدر ژوندې گرفتاركړه او راوله ئې. حضرت خالد ﷺ اوفرمائيل يارسول الله هغه سرې په ښاركښې دننه محفوظه قلعه كښې دې ژوندې ئې څنګه راولم؟ نبى كريم هغه ته اوفرمائيل هغه به تاته په ځنګل كښې ملاؤشي. حضرت خالد ﷺ چه كله قلعه ته نيزدې اورسيدو نو په دې كښې يوه غوا راغله او دَ قلعې ديوال سره ئې سر اومږلو. اكيدر هغې پسې راؤوتلو غوا دَ ځنګل طرف ته او تختيدله او اكيدر ورپسې وو. حضرت خالد ﷺ په اكيدرباندې حمله اوكړه دَهغه رور او وژلې شو او پخپله گرفتارشو. كله چه اكيدر نبى كريم ته راوستلې شونونبى كريم دَهغه اكرام اوكړو. هغه ئې په خپل ښار باندې په ځائى اوساتلو مګر په هغه باندې ئې سالانه جزيه مقرركړه. دوه زره اوښانو اته سوه اسونو څلور سوه زغرو او څلور سوو نيزو باندې صلح اوشوه. روستو بيا اكيدر مسلمان شو. دَاكيدرنه علاوه هم دَډيرو كلو سردارانو نبى كريم سره صلح اوكړه اوجزيه ئې قبوله كړه. شل ورځې پس نبى كريم مدينې طرف ته واپس شو

**[٣٠٣٩]په يهودو او نصاروۆ د عشر (غيراصطلاحى) تقررى**

٣٠٣٩-[٥] (١)[١]وَعَنْ حَرْبِ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَبِي أُمِّهِ، عَنْ أَبِيهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ،[٢]أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:[٣]( «إِنَّمَا الْعُشُورُ: عَلَى الْيَهُودِ وَالنَّصَارَى،[٤]وَلَيْسَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ عُشُورٌ» ). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [١]حرب ابن عبيد الله دخپل نيكه [نانا] څخه او هغه د خپل پلار څخه نقل كوي [٢] چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [٣] يهودو او نصارى وو باندې عشر [يعني لسمه حصه] واجب ده [٤] [هركله چې مسلمانانو باندې څلويښتمه حصه واجب ده نو] په دوئ عشر واجب نه دي (احمد ابوداود)

**حل اللغات:** ①الْعُشُورُ: دَدې مفردعشر دې دَمال لسمې حصې ويستلوته عشر وائى

(١) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الخراج والإمارة والفىء/باب باب فى تعشير أهل الذمّة إذا اختلفوا بالتّجارات(رقم-٣٠٤٦) واحمد فى المسند: ٣/٣٧٤

**تسهيلات: قوله:** إِنَّمَا العُشُورُ:

**دعشر څخه مراد:** دلته دعشر نه اصطلاحی عشر مرادنه دي بلکه لسمه حصه مراد ده او ددې لسمې حصې څخه هغه لسمه حصه مراد ده کومه چې په چونګی باندې دهغوی د مالونو نه عموماً لسمه حصه اخستې شی په دې وجه نی ورته عشر اوونیلو

**د زمکې دوه قسمونه:** ① عشری هغه زمکې ته وائی دکومې مالك چه مسلمان وی په مسلمان باندې صرف دخپلې زمکې د وجهې عشر فرض دي

② خراجی هغه زمکه وی دکومې مالك چه کافر اوذمی وی په هغه باندې د زمکې خراج لا زمی دي

**قوله:** عَلَى اليَهُودِ وَالنَّصَارَى:

**په اهل کتابو د خراج څخه سوا د بل عشر په حکم کښې دوه مذهبونه:**

① دَ شوافع مسلك دادې چه کله په يهودو اونصاراؤ باندې جزيه مقرره نوهم دغه کافی ده دې نه علاوه په هغوی باندې هيڅ عشر وغيره نشته دې.

② احناف فرمائی چه که چرې کافران په خپلو علاقو اوسرحدونوباندې دَمسلمانانو دَ مالونو نه عشر اخلی نوموږ به هم دَهغوی نه عشر اخلو ګنی نه به اخلو داحديث دَ احنافو مؤيد دي

**قوله:** وَلَيْسَ عَلَى المُسْلِمِينَ عُشُورٌ:

**په مسلمان د عدمِ عشر مطلب:** دَحديث مطلب دادې چه په مسلمان باندې دَهغه په اموال تجارت کښې عشر نشته دې. دَ مسلمان دَ زمکې دَعشرنفی دلته مقصودنه ده اوخراج سره سره په اهل کتاب باندې دَهغوی په اموال تجارت کښې عشرهم دي

**[۴۰۴۰] په ذميانو دمعاهدې په پوره کولو جبر کول**

۴۰۴۰ ــ [۲۱] (١) ⑴ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ⑵ «قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّا نَمُرُّ بِقَوْمٍ ⑶ فَلَا هُمْ يُضَيِّفُونَا ⑷ وَلَا هُمْ يُؤَدُّونَ مَا لَنَا عَلَيْهِمْ مِنْ حَقٍّ ⑸ وَلَا نَحْنُ نَأْخُذُ مِنْهُمْ ⑹ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (إِنْ أَبَوْا إِلَّا أَنْ تَأْخُذُوا كَرْهًا فَخُذُوا)». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ⑴ عقبه ابن عامر ﷛ وايي ⑵ چه ما رسول الله ﷺ ته دا عرض اوکړو يا رسول الله، موږ چې جهاد ته تلو سره د يو (فلاني) قوم په آبادئ تيريږو ⑶ نو هغه خلق نه زموږ ميلمستيا کوي ⑷ او نه موږ ته هغه څيز راکوي چې د هغې موږ (د اسلام له مخې) په هغوی حق لرو (يعنی د اسلام د مخه چې په هغوی زموږ داحق دی چې هغوی قرض

(١) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب السّير عن رسول الله صلّى الله عليه وسلّم/باب ما يحلّ من أموال أهل الذّمّة (رقم-۱۵۸۹)

وغيره راكولو سره زمونږ ضرورتونه پوره کړي او زمونږ نګراني وکړي! هغوى دانه پوره کوي [٥] او مونږ هغوى څخه څه څيز په زبر دستئ نه حاصلوو [په دې وجه مونږ سخت پريشانه کيږو او د هغوئ د دې رويه په وجه مونږ اضطراري حالت او لوى نقصان کې مبتلا کيږو! [٦] رسول كريم ﷺ وفرمايل كه هغه خلقو [ستاسو ميلمستيا کولو يا ستاسو په لاس نقد او قرض څه څيز خرڅولو څخه] انکار وکړو [او په دې صورت کې هغوى څخه څه څيز په زبردستئ د اخستلو څخه علاوه څه چاره نه وي] نو په زبردستئ تري نه واخلي (ترمذي)

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّا نَمُرُّ بِقَوْمٍ، فَلَا هُمْ يُضَيِّفُونَا:

**دحديث پس منظر:** دَ رسول الله ﷺ په زمانه کښې به مجاهدين هرطرف ته دَ جهاد دَپاره تلل راتلل لارې به خالي وې چرته نه چرته به دَ ذمي خلقو آبادئي وې په دې وجه نبى كريم په دې ذمي خلقو باندې دَ معاهدې لاندې دَ جزيې سره دا هم لازمي کړې وو چه کله تاسو سره مسلمانان تيريږي نو دَ مجبورئې په وخت به په هغوى باندې خوراك کوئي او په کور کښې به ورله دَ اوسيدو انتظام کوئي.

**قوله:** إِنْ أَبَوْا إِلَّا أَنْ تَأْخُذُوا كَرْهًا فَخُذُوا:

**د چا نه په زور د خوراک اختسلو عدم جواز:** دَ يومسلمان دَپاره جائز نه دى چه هغوى دې داهل كتاب نه په زور باندې خوراك اوخوري. اوپه كومو احاديثو كښې چې كه چرې اهل كتاب خوراك درنه کړو نو تاسو په زور دَهغوى نه اخلئ نودغه ټول په لاندې صورتونو باندې محمول دى

**د ذميانو څخه په زور د خوراک اخستلو جواز صورتونه:** ① چې د مخمصې حالت وى د لوږې څخه انسان هلاكيږى نوهغه دپاره د بل څخه په زور د خوراک څيز اخستل جائزدى ② د مجبورى په وخت كښې په قرض سره د بل زوريوڅيز اخستل جائز دى چې مجبوري ختمه شي نوبيا به ئې ورته وركوى

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[٣٠٣] په ذميانو د مسلمانانو د ميلمستيا وجوب**

٣٠٣ـ[٤] (١) [١] عَنْ أَسْلَمَ [٢] أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، ضَرَبَ الْجِزْيَةَ [٣] عَلَى أَهْلِ الذَّهَبِ [٤] أَرْبَعَةَ دَنَانِيرَ [٥] وَالْوَرِقِ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا، [٦] مَعَ ذَلِكَ أَرْزَاقُ الْمُسْلِمِينَ وَضِيَافَةُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

[١] اخرجه مالک في الموطا كتاب الزكاة / باب جزية أهل الكتاب والمجوس (رقم-٤٣)

**ترجمه:** ١ حضرت اسلم تابعي رحمه الله وايي ٢ چې حضرت عمر ابن خطاب رضي الله عنه [اخپل د خلافت په دورکي] هغوی [ذميانو] باندې جزيه مقرره کړه ٣ چې ډير زيات سره زر يي لرل ٤ څلور ديناره ٥ او کومو ذميانو چې سپين زر لرل په هغوی ئ څلويښت درهمه جزيه مقرره کړه ٦ او د دې څخه علاوه ئ په هغوی د مسلمانانو د خوراك څښاك او د دريو ورځو ميلمستيا مقرره کړي وه (مالك)

**تسهيلات:**

**قوله:** مَعَ ذٰلِكَ أَرْزَاقُ الْمُسْلِمِينَ وَضِيَافَةُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ

**په ذميانو د مسلمانانو د ضيافت حق:** دې نه مراد هم هغه ضيافت دې دکوم ذکرچه دَدې نه وړاندې حديث کښې راغلې دې. دَحالاتو او اشخاصو دَ تفاوت دَ وجهې جزيه مقرر کولو کښې هم مختلف صورتونه په وجود کښې راغلی دی. دلته دَ کال څلور ديناره دَ سړی په سر ذکردی او څلويښت درهم دَ کال ذکردی. ليکن دې سره سره دَ ضيافت حق هم يو اضافي حق دې [سورة النساء:١٢٨]

# [٩] بَابُ الصُّلْحِ

## دَصلح بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثمانية أحاديث مشتملة على ثلاث مسائل:**

① تفصيل صلح الحديبية: ١، ٢، ٣، ٥، ٨.

② بيعة النساء يوم صلح الحديبية: ٤، ٧.

③ الخيانة في عهد الصلح: ٦.

**دصلح لغوي معنی:** په مغرب کښې دی چه صلح په معنی د نيکئ د فساد ضد دې او صلح اسم په معنی د مصالحة دې او تصالح د مخاصمت ضد دې

**د حربيانو سره د صلح کولو حکم:** امام ابن الهمام رحمه الله فرمائی چه اهل حرب سره يا د هغوی قوم سره د مال په بدله کښې بغير د مال نه که امام المسلمين مناسب گنړی او په هغې کښې د مسلمانانو مصلحت هم وی نو صلح کول جائز دی **لقوله تعالٰی ﴿ وإن جنحوا للسلم فاجنح لها ﴾ الاية**

**د صلح د عدم جواز صورت:** د صلح د جواز دپاره د مصلحت للمسلمين قيد بالاجماع ملحوظ دې خو که صلح کول د مصلحت خلاف وی نو بالاجماع صلح کول جائز نه دی.

**قاضی ته دصلح اختيار:** هم دغه شان قاضی ته هم حق شته چه خصمينو په مينځ کې د رفع

اللنزاع صلح ذکړی لکه څنګه چه د کعب بن مالک رضي الله عنه او ابن ابی حدرد په مینځ کښې نبی کریم ﷺ صلح کړی وه

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[٣٠٣٢] د صلح حديبيه واقعه**

٣٠٣٢-[١] (١) ①عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، وَمَرْوَانَ بْنِ الْحَكَمِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا ②قَالَا: «خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ ③فِي بِضْعَ عَشْرَةَ مِائَةٍ مِنْ أَصْحَابِهِ، ④فَلَمَّا أَتَى ذَا الْحُلَيْفَةِ، ⑤قَلَّدَ الْهَدْيَ، ⑥ وَأَشْعَرَ، ⑦ وَأَحْرَمَ مِنْهَا بِعُمْرَةٍ، وَسَارَ ⑧ حَتَّى إِذَا كَانَ بِالثَّنِيَّةِ الَّتِي يُهْبَطُ عَلَيْهِمْ مِنْهَا، ⑨ بَرَكَتْ بِهِ رَاحِلَتُهُ، ⑩ فَقَالَ النَّاسُ: حَلْ حَلْ، ⑪ خَلَأَتِ الْقَصْوَاءُ ⑫ فَقَالَ النَّبِيُّ: ⑬ (مَا خَلَأَتِ الْقَصْوَاءُ، ⑭ وَمَا ذَاكَ لَهَا بِخُلُقٍ، ⑮ وَلَكِنْ حَبَسَهَا حَابِسُ الْفِيلِ)

**ترجمه:** ① اود مسور ابن مخرمه رضي الله عنه او مروان ابن حکم څخه روايت دي ② دا دواړه وايي چې رسول کريم ﷺ د حديبيه په کال د مديني څخه روان شو ③ خپل يو زر صحابه رضي الله عنهم هم ورسره وو ④ کوم وخت چې حضور ﷺ ذو الحليفه ته اورسيدو چه د مديني جنوب کښې [تقريباً شپږ ميله فاصله باندې واقع ده او دي ته ابيار علي هم وايي] ⑤ نو د هدی [يعنی د خپلي قرباني څاروي] په څټ کې يي پټه وتړله ⑥ او زخم يي په ولګولو ⑦ او بيا د ذوالحليفه څخه د عمري د پاره احرام تړلو سره په مخکې روان شو ⑧ تردې چې کوم وخت ثنيه يعنی هغه کنډاو ته ورسيدل د کوم طرف څخه چې اهل مکه باندې ورکوزيدل ⑨ نو د حضور ﷺ اوښه چې د هغه نوم قصواء وو حضور ﷺ اخستو سره کيناستله ⑩ [هرکله چې] خلقو [دا وليدل] نو خلقو دا وئيل شروع کړل چې حَلْ حَلْ [دا لفظ د اوښ اودرولو د پاره وئيل کيږي] ⑪ قصواء نه ودريږی اړي کوي] ⑫ رسول کريم ﷺ په دي اوريدو سره وفرمايل ⑬ نه قصواء نه اړي کوي ⑭ او نه دا د دې عادت دې ⑮ بلکه دا هغه ذات [الله جل جلاله] منع کريده چا چې هاتهي منع کړي وو

**حل اللغات:** ① بِضْعَ: د درې نه واخله تر نهه پورې عدد دپاره استعماليږی. ② قَلَّدَ: غاړه کښې پټئ اوتړله. ③ الْهَدْيَ: د قرباني څاروي ④ أَشْعَرَ: زخم ئې پرې اولګولو ⑤ أَحْرَمَ: احرام ئې اوتړلو ⑥ يُهْبَطُ: کوزيدل به. ⑦ حَلْ حَلْ: څه څه ⑧ خَلَأَتِ الْقَصْوَاءُ: قصوی اوښې اړی شروع کړه يعنی په ځائې اودريدله ⑨ خُلُقٍ: عادت. اخلاق. ⑩ حَابِسُ الْفِيلِ: د هاتيانو منع کونکې.

[1]) اخرجه البخاري في كتاب الشروط/باب الشروط في الجهاد والمصالحة مع أهل الحرب وكتابة الشروط (رقم-٢٧٣١) و اخرجه ابوداود في السنن كتاب الجهاد/باب في صلح العدوّ (رقم-٢٧٦٥) واحمد في المسند: ٣٣١/٤

[۱] ثُمَّ قَالَ: (وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ [۲] لَا يَسْأَلُونِي خُطَّةً يُعَظِّمُونَ فِيهَا حُرُمَاتِ اللَّهِ [۳] إِلَّا أَعْطَيْتُهُمْ إِيَّاهَا)، [۴] ثُمَّ زَجَرَهَا، فَوَثَبَتْ، [۵] فَعَدَلَ عَنْهُمْ، [٦] حَتَّى نَزَلَ بِأَقْصَى الْحُدَيْبِيَةِ [۷] عَلَى ثَمَدٍ قَلِيلِ الْمَاءِ [۸] يَتَبَرَّضُهُ النَّاسُ تَبَرُّضًا، [۹] فَلَمْ يُلَبِّثْهُ النَّاسُ حَتَّى نَزَحُوهُ، [۱۰] وَشُكِيَ إِلَى رَسُولِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَطَشُ، [۱۱] فَانْتَزَعَ سَهْمًا مِنْ كِنَانَتِهِ، [۱۲] ثُمَّ أَمَرَهُمْ أَنْ يَجْعَلُوهُ فِيهِ، [۱۳] فَوَاللَّهِ مَا زَالَ يَجِيشُ لَهُمْ بِالرِّيِّ [۱۴] حَتَّى صَدَرُوا عَنْهُ، [۱۵] فَبَيْنَمَا هُمْ كَذَلِكَ،

**ترجمه:** [۱] بیایي وفرمایل قسم دې په هغه ذات چې د هغه په لاس کې ځما ساه ده [۲] قریش چې زما څخه داسې کومه خبره هم وغواړي چې په هغې کې د الله ﷻ [د حرم] عظمت وي [۳] نو زه به د هغوی هغه خبره پوره کوم [یعنی که نن د مکي خلق د صلح په وخت د داسې خبري مطالبه اوکړی چې په هغې کې د حرمِ مکه د عظمت لحاظ وي نو زه به هغه پوره کوم] [۴] بیا حضور ﷺ اوښه پاځوله نو سمدستي پاڅیدله [۵] او حضور ﷺ د اهلِ مکه لار پریښودلو سره [دویم طرف ته] روان شو [٦] تردي چې د حدیبیه آخري غاړې ته رسیدو سره کوز شو [۷] چرته چې یوه کنده کې لږ شان اوبه وي [او هلته یي پړاو واچولو] [۸] خلقو د هغه کندي څخه لږ لږ شان اوبه اخستو سره استعمالول شروع کړل [۹] تردي چې لږوخت کې یي ټولي اوبه راښکلي [یعنی هغه کنده کې اوبه ډیري لږې وي په دې وجه د خلقو د کم مقدار اخستو باوجود هغه اوبه ډیري زر ختمې شوې] [۱۰] خلقو د رسول کریم ﷺ په خدمت کې د تندې شکایت اوکړو [۱۱] حضور ﷺ د خپل تیر کش څخه یو تیر راوښکلو [۱۲] او صحابه ؓ ته یې حکم اوکړو چې دا د هغه اوبو په کنده کې وغورځوئ [بیا راوي وایي] [۱۳] قسم په خدای د هغه تیر د برکته د هغه خلقو سیراب کولو د پاره هیڅکله نه ختمیدونکي اوبو [ګویا] موجونه وهل [۱۴] تردي چې ټول د هغه اوبو څخه لرې [اخوا] [یعنی الله ﷻ په هغه کنده کې دومره زیاتي اوبه پیدا کړي چې د ټولو خلقو ضرورتونه ډیر په اطمینان سره پوره شوه بلکه چې د هغه ځای نه د تلو نه پس هم اوبه باقي وې] [۱۵] بهرحال صحابه ؓ په دې حالت کې وو

**حل اللغات:** ① خُطَّةً: څه خبره، څه شرط ② ثَمَدٍ: منګې په کوم کښې چه لږې شان اوبه وي. ③ تَبَرُّضًا: لږې لږې ا وبه اخستل ④ نَزَحُوهُ: راویستلې هغه. ⑤ الْعَطَشَ: تنده، ⑥ كِنَانَتِهِ: د تیرکش خپل نه. ⑦ يَجِيشُ: جوش ئې وهلو، ⑧ بِالرِّيِّ: ښه په کثرت سره اوبه راغلې چه خلق ورسره خړوب شو ⑨ صَدَرُوا: خړوب کیدو سره واپس راغله

[۱] إِذْ جَاءَ بُدَيْلُ بْنُ وَرْقَاءَ الْخُزَاعِيُّ فِي نَفَرٍ مِنْ خُزَاعَةَ، [۲] ثُمَّ أَتَاهُ عُرْوَةُ بْنُ مَسْعُودٍ [۳] وَسَاقَ الْحَدِيثَ [۴] إِلَى أَنْ قَالَ: إِذْ جَاءَ سُهَيْلُ بْنُ عَمْرٍو، [۵] فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (اكْتُبْ هَذَا مَا قَاضَى عَلَيْهِ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ). [٦] فَقَالَ سُهَيْلٌ: وَاللَّهِ لَوْ كُنَّا نَعْلَمُ أَنَّكَ رَسُولُ اللَّهِ [۷] مَا صَدَدْنَاكَ عَنِ الْبَيْتِ، [۸] وَلَا قَاتَلْنَاكَ، [۹] وَلَكِنِ اكْتُبْ: مُحَمَّدَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، [۱۰] فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (وَاللَّهِ إِنِّي لَرَسُولُ اللَّهِ [۱۱] وَإِنْ كَذَّبْتُمُونِي". [۱۲]

اَلْكُتُبْ: مُحَمَّدُبْنَ عَبْدِاللهِ)

**توجمه:** ① چې اچانك بديل ابن ورقاء خزاعي د خزاعه څه خلقو سره [د مكي د كفارو د طرف څخه د مصالحت دپاره] راغلو② بيا عروه ابن مسعود هم د حضور ﷺ په خدمت كې راورسيدو ③ د دې څخه وروسته بخاري [هغه اوږدې خبري نقل كړي كومې چې د حضور ﷺ، بديل او عروه په مينځ كې وشوي چې صاحب مصابيح د اختصار پيش نظر دلته نقل نه كړې] ④ او بيا دابيان يې اوكړو چې آخر سهيل ابن عمرو [د اهل مكه آخري سفير او نمائنده جوړيدو سره] راغلو ⑤ نو نبي كريم ﷺ حضرت علي ﷺ ته وفرمايل چې وليكه دا هغه معاهده ده چې په هغې محمد رسول الله ﷺ صلح كړيده⑥ سهيل دا [الفاظ ليدو سره] اوويل قسم په خدائ كه مونږ دا منلې چې تاسو د الله رسول يئ ⑦ نو نه به مونږ خانه كعبي ته تلو څخه منع كولې ⑧ او نه به مو درسره جنګ كولو ⑨ نو داسې وليكئ چه [دا هغه معاهده ده چې] په هغې محمد ابن عبد الله صلح كړيده ⑩ په دې اوريدوسره رسول كريم ﷺ وفرمايل قسم په خدائ زه د الله رسول يم ⑪ اګر چې تاسو ما دروغجن ګڼئ [خير زه د مصالحت د خاطره الفاظو كې ستا دا ترميم تسليمومـ]⑫ اې علي! ته محمد ابن عبد الله وليكه.

**حل اللغات:** ⑩ مَا صَدَدْنَاكَ: مونږ به نه وې بند كړې تاسو،

① فَقَالَ سُهَيْلٌ: وَعَلَى أَنْ لَا يَأْتِيَكَ مِنَّا رَجُلٌ ② وَإِنْ كَانَ عَلَى دِينِكَ ③ إِلَّا رَدَدْتَهُ. ④ فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ قَضِيَّةِ الْكِتَابِ ⑤ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (قُومُوا فَانْحَرُوا ⑥ ثُمَّ احْلِقُوا) ⑦ ثُمَّ جَاءَ نِسْوَةٌ مُؤْمِنَاتٌ ⑧ فَأَنْزَلَ اللهُ تَعَالَى: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا جَاءَكُمُ الْمُؤْمِنَاتُ مُهَاجِرَاتٍ﴾ [الممتحنة: ١٠] الْآيَةَ ⑨ فَنَهَاهُمُ اللهُ تَعَالَى أَنْ يَرُدُّوهُنَّ ⑩ وَأَمَرَهُمْ أَنْ يَرُدُّوا الصَّدَاقَ ⑪ ثُمَّ رَجَعَ إِلَى الْمَدِينَةِ ⑫ فَجَاءَهُ أَبُو بَصِيرٍ رَجُلٌ مِنْ قُرَيْشٍ وَهُوَ مُسْلِمٌ،

**توجمه:** ① بيا سهيل دا اوويل چې ادې د صلح وعده كې داخبره هم تسليم كړئ كه په تاسو كې يو سړې مونږ ته راشي نو مونږ به يې تاسو ته واپس نه دراستووليكن] زمونږ څخه كه يو سړې تاسو ته راشي ② اګر چې هغه ستاسو دين قبول كړي وي ③ نو هغه به مونږ ته واپس راكوئ انو حضور ﷺ داهم قبوله كړه په دې موقع هم په واقعه كښې د اختصار څخه كار اخستل شوى دى يعني صاحب مصابيح دې معاهدي سره متعلق د بخاري بيان كرده ټول تفصيل نه دې نقل كړي يا داچې د بخاري څه بل روايت دې چې په هغې كې صرف دومره قدر بيان شوى دى] بهرحال④ كوم وخت چې حضور ﷺ يا حضرت علي ﷺ صلح نامې ليكلو څخه فارغه شو⑤ نو رسول كريم ﷺ [اخپلو صحابه ﷺ ته] وفرمايل لاړ شئ ځئ اوس د هدې حيوان ذبح كړئ⑥ بيا سرونه اوخروئ ⑦ د دې څخه

وروسته مکي څخه څو ښځي مسلمانیدو سره راغلي ⑧ نو الله ﷻ دا حکم نازل کړو: يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا جَاءَكُمُ الْمُؤْمِنَاتُ مُهَاجِرَاتٍ الآيه. اې ایمان والو! هرکله چې تاسو ته مسلماني ښځي په هجرت راشي الخ ⑨ نو الله ﷻ د دې آیت په ذریعه مسلمانان ددې خبري څخه منع کړل چې هغوی هغه ښځي د مکي کفاروته واپس ورکړي ⑩ او هغوی ته یې د دې خبري حکم ورکړی چې د هغوی مهر واپس ورکړی ⑪ د دې څخه وروسته حضور ﷺ مدیني ته تشریف راوړو ⑫ څه ورځي وروسته د قریشو یوسړې ابو بصیر راغې چه مسلمان شوې وو [مکي څخه راوتلو سره حضور ﷺ ته راغلو]

**حل اللغات:** ⑪ قَضِيَّةِ الْكِتَابِ: فیصله لیکل، صلح نامه. ⑫ اخْلِفُوا: سرونه اوخرایئ. ⑬ الصَّدَاقَ: مهرونه.

| |
|---|
| ① فَأَرْسَلُوا فِي طَلَبِهِ رَجُلَيْنِ، ② فَدَفَعَهُ إِلَى الرَّجُلَيْنِ ③ فَخَرَجَا بِهِ، ④ حَتَّى إِذَا بَلَغَا ذَا الْحُلَيْفَةِ. نَزَلُوا ⑤ يَأْكُلُونَ مِنْ تَمْرٍ لَهُمْ، ⑥ فَقَالَ أَبُو بَصِيرٍ لِأَحَدِ الرَّجُلَيْنِ: ⑦ وَاللَّهِ إِنِّي لَأَرَى سَيْفَكَ هَذَا يَا فُلَانُ جَيِّدًا، ⑧ أَرِنِي أَنْظُرْ إِلَيْهِ. ⑨ فَأَمْكَنَهُ مِنْهُ، ⑩ فَضَرَبَهُ حَتَّى بَرَدَ ⑪ وَفَرَّ الْآخَرُ حَتَّى أَتَى الْمَدِينَةَ، ⑫ فَدَخَلَ الْمَسْجِدَ يَعْدُو، ⑬ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (لَقَدْ رَأَى هَذَا ذُعْرًا؟) ⑭ فَقَالَ: قُتِلَ وَاللَّهِ صَاحِبِي، ⑮ وَإِنِّي لَمَقْتُولٌ. فَجَاءَ أَبُو بَصِيرٍ، |

**ترجمه:** ① د مکي قریشو دوه سړي د هغه په تلاش کې مدیني ته راولیږل ② حضور ﷺ [د صلح د معاهدې د مذکوره شرط مطابق] ابو بصیر ﷛ هغه دواړو سړو ته حواله کړو ③ هغوی دواړو ابوبصیر اخستو سره مکي ته روان شول ④ او هرکله چې یې [رومبنی منزل] ذوالحلیفه کې قیام اوکړو ⑤ او د هغوی سره چې کومي کجوري وې هغه یې خوړلي ⑥ نو ابوبصیر ﷛ په هغوی کې یوسړی ته مخاطب کولو سره اوویل ⑦ قسم په خدائ اې فلانیه! څما خیال دې چې ستا دا توره ډیره ښه ده ⑧ لږ یې ماته هم وښایه چې وې ګورم ⑨ هغه سړی ابوبصیر ﷛ ته د هغه توري کتلو موقع ورکړله [یعنی خپله توره یې د ابو بصیر ﷛ په لاس کې ورکړله ⑩ بس دومره کافي وه چې ابوبصیر ﷛ په هغه په هغه توري سره دومره سخت ګذار وکړو چې هغه سمدستي یخ شو [یعنی مړ شو] ⑪ او بل سړي دالیدو سره د هغه ځای څخه وتښتیدلو تردې چې مدیني ته واپس راغلو ⑫ او د خپل قتل د خوف څخه په منډه مسجد نبوي کې داخل شو ⑬ رسول کریم ﷺ [د هغه حالت لیدو سره] وفرمایل چې داسړی خوفزده معلومیږي ⑭ هغه سړي اوویل هو قسم په خدائ څما ملګری خو قتل شو ⑮ او څما په قتلولو کې هم څه شك نشته [یعنی په ماباندې خوف دې چې زه به هم قتل شم یا زه بچ شوم ګیني زه به هم قتل شوې وم] بیا ابو بصیر راغې.

**حل اللغات:** ⑩ بَرَدَ: یخ شو. ⑪ فَرَّ: اوتختیدو. ⑫ يَعْدُو: منډې ئې وهلې. ⑬ ذُعْرًا: هغه څه ویرونکې حادثه اولیدله ⑮ لَمَقْتُولٌ: قتل شوې یم.

[۱] فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (وَيْلُ أُمِّهِ [۲] مِسْعَرُ حَرْبٍ [۳] لَوْ كَانَ لَهُ أَحَدٌ) [۴] فَلَمَّا سَمِعَ ذٰلِكَ عَرَفَ [۵] أَنَّهُ سَيَرُدُّهُ إِلَيْهِمْ، [٦] فَخَرَجَ حَتّٰى أَتٰى سِيفَ الْبَحْرِ [۷] قَالَ: وَانْفَلَتَ أَبُو جَنْدَلِ بْنُ سُهَيْلٍ [۸] فَلَحِقَ بِأَبِي بَصِيرٍ [۹] فَجَعَلَ لَا يَخْرُجُ مِنْ قُرَيْشٍ رَجُلٌ قَدْ أَسْلَمَ [۱۰] إِلَّا لَحِقَ بِأَبِي بَصِيرٍ [۱۱] حَتّٰى اجْتَمَعَتْ مِنْهُمْ عِصَابَةٌ،

**ترجمه:** [۱] بیا رسول کریم ﷺ د هغه په لیدو سره وفرمایل افسوس دې د ده په مور ایعنی د تعجب او حیرت مقام دی! [۲] دا [ابو بصیر خو] د جنګ اور بلونکې دی [۳] که د ده څوك مددګار وې [نو د ده مدد به یې کړې وو] [۴] ابو بصیر رضي الله عنه چې د حضور ﷺ داخبره واوریده نو هغه پوهه شو [۵] چې حضور ﷺ ما بیا کافرو ته لیږي [٦] نو [دوباره کافروته د حواله کولو د خوف څخه ابوبصیر پټ په پټه] د مدینې څخه ووتلو تردې چې هغه د سمندر په ساحل یوې علاقې ته ورسیدو. [۷] راوي وايي چې ابوجندل بن سهیل رضي الله عنه هم د کفارو د قبضې څخه وتلو سره اوتښتیدلو [۸] او ابوبصیر سره یوځای شو [۹] بیا خو داحال شو [په مکه کې] چه کوم سړي به اسلام قبلولو او د قریشو د قبضې څخه وتلو سره تښتیدلو [۱۰] نو د ابوبصیر سره به یوځای کیدو [۱۱] تردې چې څو ورځو کې [ابوبصیر سره د قریشو څخه] د خلاصیدونکو خلقو یوه لویه ډله جمع شوه.

**حل اللغات:** ⊛وَيْلَ :بد دعا ته وائي خو دلته په معنی د تعجب سره دي ⊛حَرْبٍ: جنګ. ⊛انْفَلَتَ: اوتختیدو.

[۱] فَوَاللّٰهِ مَا يَسْمَعُونَ [۲] بِعِيرٍ خَرَجَتْ لِقُرَيْشٍ إِلَى الشَّامِ [۳] إِلَّا اعْتَرَضُوا لَهَا، [۴] فَقَتَلُوهُمْ، وَأَخَذُوا أَمْوَالَهُمْ. [۵] فَأَرْسَلَتْ قُرَيْشٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٦] تُنَاشِدُهُ اللّٰهَ وَالرَّحِمَ [۷] لَمَّا أَرْسَلَ إِلَيْهِمْ فَمَنْ أَتَاهُ فَهُوَ آمِنٌ، [۸] فَأَرْسَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْهِمْ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او قسم په خدای کله چې به دې خلقو واوریدل [۲] چې د قریشو څه قافله تجارت وغیره د پاره شام طرف ته روانه شویده [۳] نو هغوی پسې به لګیدل [۴] او د هغوی وژلو سره د هغوی مال او اسباب به یې اخستلو [آخر د دې خلقو په وجه چې قریش ډیر تنګ شول او سختې پریشاني کې مبتلا شول نو هغوی ته احساس وشو چې مونږ د مسلمانانو سره یو انتهايي غیر معقول شرط تړلو سره څومره لویه ناداني کړیده چې اوس د هغې نقصان وړو!] [۵] نو یو سړې ئ سفیر او نمائنده جوړولو سره د رسول کریم ﷺ په خدمت کې ولیږلو [٦] او د هغه په ذریعه حضور ﷺ ته یې قسم ورکړو او د هغه قرابت د حق واسطه یې ورکړله [چې د هغوی او حضور ﷺ په مینځ کې وه او دا درخواست یې اوکړو چې تاسو څه ناڅه شکل کې دومره کرم یعنی مهرباني ضرور اوکړئ چې خپل یو سړی ابوبصیر رضي الله عنه او د هغه ملګرو ته ولیږئ او دا حکم ورکړئ چې هغوی مدینې ته راشي او زمونږ هیڅ قافلې سره څه غرض نه کوي] [۷] او هرکله چې تاسو

داحکم ولیږئ او هغه خلق تاسو ته راشي نو بیا مونږ اهل مکه څخه چې کوم سړی مسلمانیدو سره تاسو ته راځي هغه به په امن کې وي [یعنی نه صرف داچې د هغه په لار کې به څه خند نشي اچولې بلکه د هغه به مونږ ته واپس راتلو ضرورت هم نه وي او هغوی اوویل چې تاسو ابوبصیر رضي الله عنه د هغه د طریقه کار څخه منع کړئ مونږ د صلح د معاهدي د دې شرط څخه منع شوا ۸ نو رسول کریم ﷺ یو سړی [ابوبصیر رضي الله عنه او د هغه ملګرو ته] ولیږلو [چې د هغه ئ په ذریعه هغوی ته داحکم ورکړو چې هغوی دي د قریشو قافلو سره څه چیړچاړ نه کوي او ماته دي راشي] (بخاري)

**حل اللغات:** ۞تُنَاشِدُهُ: قسم ئې ورکړو هغه ته.

**تسهیلات: قوله:** عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ:

**د حدیبیه محل وقوع:** دَ یو کوهی نوم دې دَدې په وجه سره دَ ځائی نوم اوګرځیدو حدیبیه دَ مکې او دَ جدې په مینځ کښې دَ یومقام نوم دې دَ کوم چه څه حصه په حرم کښې داخل ده نن صبادې ته شمیسی وائی. دَمکې نه مغرب طرف ته ۱۵میله فاصله باندې حدیبیه واقع ده.دې ځائې کښې د حج یا عمرې احرام تړلودپاره میقات شروع کیږی په کال ۲۰۰۹ کښې حج ته تلې ووم.د خپلو څو ملګرو سره دلته ورغلې ووم.دلته یو کوهی هم وو بعضې کسانووئیل چې دا هغه شارکوهی دې چې د نبی علیه السلام په لیاړو توکلو په کښې اوبه راوتلې وې.

**قوله:** أَنْ يَرُدُّوا الصَّدَاقَ:

**کافرانو ته د مسلمانانو ښځومهرونه واپس کول:** دَالله تعالی تکوینی معامله وه چه صلح حدیبیه کښې دستاویز لیکلو کښې دَ ښځوتذکره چاته هډو یاده هم نه شوه روستو بیا کافران خپیمانه شو مګر هیڅ ورته په لاس رانغله. پیغمبر اسلام ته وحی نازل شوه چه ښځې دَ کافرانو په لاس مه واپس کوئی البته دَ ښځومهر هغوی ته واپس کړئی. دادَ شروع دَ وخت معامله وه بیا په دې کښې بدلون راغلو. چنانچه نن دَ هیڅ قسم یومسلمان سړی کافرانوته دَ واپس کولو معاهده جائز نه ده.

**قوله:** وَيْلَ أُمِّهِ:

**د مذکوره جملې مطلب:** داجمله سره دَدې چه دَبد دعا دَپاره وضع کړې شوې ده مګرداد تعجب اوحیرانتیا دَپاره استعمالیږی. دلته دَ تعجب معنی ده.

**قوله:** مِسْعَرَ حَرْبٍ لَوْ كَانَ لَهُ أَحَدٌ:

**د مسعرحرب په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① یعنی دَ جنګ اور تیزونکې دې. که چرې هغه سره څه ملګری یوځائی شی اودَ هغه امداداوکړی دامطلب زیات واضح دې.

④ ملاعلی قاری رحمه الله ددې مطلب دا ګرځولې دې چه جنګ ګرمونکې دې افسوس چه هغه ته څوك اونشانی چه ماله دې نه راځی چه زه دوباره هغه واپس نه کړم

**قوله: فَخَرَجَ حَتَّى أَتَى سِيفَ الْبَحْرِ:**

**د ابوبصیر رضی الله عنه د سمندرغاړې سره ډیره کیدل:** بهرحال نبی مکرم ابوبصیر دَمدینې نه واپس اولیږلو مګردکافرانو لاس کښې ئی ورنه کړو ابوبصیر لاړو اوسمندر په غاړه ئی ځائی جوړ کړو اوس چه به دکافرانونه کوم مسلمان راخلاص شو راتلوبه نودَ ابوبصیر په معسکرکښې به پاتې کیدو. دادَ هغه مظلومانودَپاره یوه آزاده قبائلی علاقه جوړه شوه نو دَهغوی شمیر ۷۰ ته اورسیدو اوهغوی دکافرانو په مقابله کښې چهاپه مار جنګ شروع کړو دَهغوی په تجارتی قافلوباندې ئی حملې اوکړې

**قوله: فَأَرْسَلَتْ قُرَيْشٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:**

**دقریشونبی علیه السلام ته درخواست کول:** نوبیا قریش پریشانه شو او نبی کریم ته ئی خط اولیکلو اودَ الله تعالی واسطه ئی ورکړه چه ابوبصیر اودَ هغه ملګری مدینې ته راؤغواړه نبی کریم دَ ابوبصیر په نوم خط روان کړو چه مدینې ته راشه هغه وخت ابوبصیر دَ زنکدن په حالت کښې وو هغوی خط واؤریدو او په خپله سینه باندې ئی کیخودو اوساه ئی ورکړه.

**[۴۰۴۳] د صلح حدیبیه درې خاص شرطونه**

**۴۰۴۳—[۲] (١) ① وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «صَالَحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُشْرِكِينَ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ عَلَى ثَلَاثَةِ أَشْيَاءَ: ③ عَلَى أَنَّ مَنْ أَتَاهُ مِنَ الْمُشْرِكِينَ رَدَّهُ إِلَيْهِمْ ④ وَمَنْ أَتَاهُمْ مِنَ الْمُسْلِمِينَ لَمْ يَرُدُّوهُ ⑤ وَعَلَى أَنْ يَدْخُلَهَا مِنْ قَابِلٍ ⑥ وَيُقِيمَ بِهَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ ⑦ وَلَا يَدْخُلَهَا إِلَّا بِجُلُبَّانِ السِّلَاحِ ⑧ وَالسَّيْفِ وَالْقَوْسِ وَنَحْوِهِ ⑨ فَجَاءَ أَبُو جَنْدَلٍ يَحْجِلُ فِي قُيُودِهِ ⑩ فَرَدَّهُ إِلَيْهِمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.**

**ترجمه:** ① او براء ابن عازب رضی الله عنه وايي ② چه رسول کريم صلی الله علیه وسلم د حديبيه په ورځ دري خبرو باندې صلح کړي وه ③ اول خو دا چې د مکي د مشرکينو څخه کوم سړې مسلمانيدو سره حضور صلی الله علیه وسلم ته راشي حضور صلی الله علیه وسلم به هغه مشرکينو ته واپس کوي ④ او مسلمانانو څخه چې کوم سړې مشرکينو ته راشي، مشرکين به هغه نه واپس کوي ⑤ دويم داچي حضور صلی الله علیه وسلم به حج او عمري د پاره سخکال ايعنی دي کال] کې په مکي کې نه داخليږي بلکه آينده کال [مخ کال] ته به مکي ته راځي ⑥ او صرف دري ورځي به په مکه کې پاتې کيږي ⑦ او دريم داچي آينده کال چې په مکه کې داخليږي نو خپل ټول هتيار به غلاف

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب الصّلح /باب الصّلح مع المشرکين (رقم—۲۷۰۰) ومسلم فی کتاب الجهاد والسّير /باب صلح الحديبية فی الحديبية (رقم-۹۲ - (۱۷۸۳) و ابو داود فی کتاب المناسک . باب المحرم يحمل السّلاح (رقم-۱۸۳۲)

کې اینبی راوړي ⑧ توره، لینده او دغه شان نور څیزونه ⑨ په دي موقع ابوجندل حضور ﷺ ته په داسې حال کې راورسید و چې د هغه پښو کي بیړئ پرتي وي (چې د هغې په وجه هغه به په ټوپونو ټوپونو تلوم ⑩ لیکن حضور ﷺ هغه مشرکینو ته واپس کړو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① مِنْ قَابِلٍ: مخ کال، راروان کال، ② بِجُلُبَّانِ السِّلَاحِ: وسلې به په تیکو او بوجو کښې پرتې وی، ③ اَلْقَوْسِ: لینده، ④ يَحْجِلُ: توپونه ئې وهل، په ټوپونو روان وو ⑤ فِي قُيُودِهِ: په زنځیرونو کښې تړلې وو.

**تسهیلات:**

**قوله:** عَلَى ثَلَاثَةِ أَشْيَاءَ: په دې حدیث کښې دَ صلح حدیبیه دَ شرائطونه د اهمو درې شرطونو بیان دې اګرچې نور شرطونه هم داحادیثو او سیرت په کتابونو کښې لیکلی شوی دی خودلته صرف د درې شرطونو ذکردې.

**قوله:** عَلَى أَنَّ مَنْ أَتَاهُ مِنَ الْمُشْرِكِينَ رَدَّهُ إِلَيْهِمْ:

① **دَ مشرکانو کس هغوی ته واپس کول:** څوك مشرك مسلمانانوله راشي نومسلمانان به پابندوی چه هغه به دَ قریشو طرف ته واپس کوی که مسلمان ولې نه وی او کوم مسلمان چه دکافرانو طرف ته لاړشی نوهغوی به هغه قید کوی واپس کوی به نه. هم دغه شرط وو چه دومره سخت وو چه صحابه کرام ئې سخت پریشانه کړل مګر هغوی دَ صلح نظم ضبط په خائې اوساتلو اودَ اسلامی امارت دَ وفادارئې مظاهره ئې وکړه او شرط ئې قبول کړو

**قوله:** وَعَلَى أَنْ يَدْخُلَهَا مِنْ قَابِلٍ:

② **راتلونکی کال ته عمره کول:** راتلونکی کال مسلمانان عمرې له راځی نو وړه وسله به خان سره راوړی اوهغه به هم په تیکو او غلافونوکښې وی بله داخبره چه دې کال به بغیرد عمرې نه ځی

**قوله:** وَيُقِيمَ بِهَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ:

③ **صرف درې ورځې په مکه کښې قیام کول:** راتلونکی کال کښې به صرف درې ورځې مسلمانان قیام کوی بیابه واپس ځی

**باقی درې شرطونه:** ④ دې نه علاوه څلورم شرط دا وو چه لس کالو پورې به جنګ بندی وی

⑤ پنځم شرط دا چه کوم قبائل فریقینو کښې چاسره تلل غواړی هغه دې لاړشی هغوی به هم دَ معاهدې حصه منلی

⑥ شپږم شرط دا چه دَ صلح په موده کښې به خیانت نه کیږی.

**قوله:** وَلَا يَدْخُلَهَا إِلَّا بِجُلُبَّانِ السِّلَاحِ وَالسَّيْفِ وَالْقَوْسِ وَنَحْوِهِ:

**وسله په تيکی کښې کيخودل:** په جيم اولام دواړو باندې ضمه ده باء باندې شد سره فتحه ده دا دُ څرمن دُهغه تهيلئ نوم دې په کوم کښې چه توره وغيره وسله کيخودې شی اودا تړلو سره دکجاوې يا زين شاتنئ حصې سره زوړندولې شوه مراد دا چه دَوسلې نمائش به نه وی په غلافونو اوتيکو کښې به پټه ساتلې شی

**قوله:** فَجَاءَ أَبُو جَنْدَلٍ يَحْجِلُ فِي قُيُودِهِ، فَرَدَّهُ إِلَيْهِمْ:

**دابو جندل رضی الله عنه حديبيه ته راتلل:** ابو جندل دَ سهيل بن عمرو خوئی وو سهيل چه کله هغه اوليدلو نو قلم ئی اودرولو اووئی وئيل چه اول زما خوئی واپس کړئی بيابه صلح نامه ليکلې شی نبی کريم اوفرمائيل چه اوس خولا دستخط نه دې شوې دې خو مخکښې راغلې دې په ده باندې به معاهده نه نافذ کيږی اوکه دَ ابو جند راتلل دَمعاهدې لاندې راځی هم نوزه تانه ابوجندل غواړم چه دا ماله راکړه سهيل انکار اوکړو او ابوجندل په ژړا سره واپس لاړو اهل تاريخ دَ ابوجندل دردناك منظر ليکلې دې ابوجندل بيا دکافرانودَ لاسونو نه راخلاص شو اودَسمندر په غاړه ابوبصيرله لاړو

**[۳۰۴۴] دَ صلح دَ يوسخت شرط حکمت**

۳۰۴۴- [۳] ([1]) ① وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: ② أَنَّ قُرَيْشًا صَالَحُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ③ فَاشْتَرَطُوا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ④ أَنَّ مَنْ جَاءَنَا مِنْكُمْ لَمْ نَرُدَّهُ عَلَيْكُمْ، ⑤ وَمَنْ جَاءَكُمْ مِنَّا رَدَدْتُمُوهُ عَلَيْنَا ⑥ فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنَكْتُبُ هَذَا؟ ⑦ قَالَ: («نَعَمْ ⑧ إِنَّهُ مَنْ ذَهَبَ مِنَّا فَأَبْعَدَهُ اللَّهُ، ⑨ وَمَنْ جَاءَنَا مِنْهُمْ ⑩ سَيَجْعَلُ اللَّهُ لَهُ فَرَجًا وَمَخْرَجًا»). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت انس ﷛ وايي ② چه د مکي قريشو د رسول کريم ﷺ سره مصالحت اوکړو ③ هغوی په رسول کريم ﷺ داشرط ومنلو ④ چې ستاسو څخه کوم سړی مونږ ته راشي مونږ به هغه تاسو ته واپس نه استوو ⑤ او په مونږ کې چې کوم سړي تاسو ته راشي تاسو به هغه مونږ ته رااستوئ ⑥ صحابهٔ و ﷡ [داشرط د خپل ملي حميت او وقار خلاف او د اصول مصالحت د تقاضو څخه لرې ګنلو سره] عرض اوکړو يا رسول الله! آيا مونږ دا شرائط وليکو ايعنی آيا دا شرائط تاسو ﷺ تسليموئ؟] ⑦ حضور ﷺ وفرمايل هو خبره داده چې په مونږ کې کوم سړي هغوی ته ورځئ نو [ظاهره ده چې هغه به مرتد کيدو سره تښتي د دې اعتبار څخه هغه به يوداسي سړي وي چې] الله ﷻ به هغه د خپل رحمت څخه لرې کړې وی ⑨ او په هغوی کې چې کوم مونږ ته راځي [اګر چې

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب الجهاد والسّير/باب صلح الحديبية فی الحديبية (رقم-۹۳ - (۱۷۸٤)

داوخت مونږ به د هغه په ورکولو باندې مجبوره یو! [۱۰] لیکن آخر الله ﷻ به زر د هغه د پاره د خوشحالئ او کشادګي او د خلاصون او نجات سامان پیدا کړي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① فَرَجًا: کشادګی، فراخی، ② مَخْرَجًا: خلاصون، د نجات لار.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَاشْتَرَطُوا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**دمسلمان د واپس کولو شرط:** په صلح حدیبیه کښې په ټولو شرطونو کښې هم دغه شرط په مسلمانانو باندې ډیر سخت وو. چې مونږ خو به خپل مسلمان ورور واپس کوو اوهغوی به مسلمان مونږ ته نه واپس کوی. حضرت عمر رضي الله عنه دنبی کریم په وړاندې په سخته لهجه کښې خبرې اوکړې بیائی دَ صدیق اکبر رضي الله عنه په وړاندې سختې خبرې اوکړې دواړو جواب ورکړو چه دا دَ الله تعالی اودَهغه دَ رسول فیصله ده. اې عمر دا اومنه الله تعالی به خپل رسول بې یارومددګارنه پرېږدی.

**قوله:** نَعَمْ إِنَّهُ مَنْ ذَهَبَ مِنَّا فَأَبْعَدَهُ اللهُ:

**مکې ته دتلونکی په تلوکښې حکمت:** بیا نبی کریم دَ دغه شرط دَحکمت طرف ته اشاره اوکړه چه کوم سړې زما مجلس پرېږدی اودکافرانو مجلس ته ځی هغه به منافق وی نومونږ غواړو چه دغه دَ لستونړی مار اوتختوو. کله چه هغه پخپله ځی اوالله تعالی هغه زمونږ نه لرې کوی نوته ولې پریشان کیږې؟

اوکوم سړې چه دکافرانودَ مجلس نه ماله راځی نوکیدې شی چه څوک جاسوس وی نومونږ له پکاردې چه هغه خپل ځان ته پرینږدو. کله چه قریش پخپله هغه بوځی نوته ولې پریشانه کیږې؟

**قوله:** وَمَنْ جَاءَنَا مِنْهُمْ سَيَجْعَلُ اللهُ لَهُ فَرَجًا وَمَخْرَجًا:

**دراتلونکی مسلمان دپاره آسانتیا پیدا کول:** اوکه هغه رښتونې مسلمان وی نو ډیر زر به الله تعالی دَهغه دَ پاره دَ نجات اوخلاصی آسانه لاره جوړه کړی. په دې باندې ټولو صحابه کرامو دَ نبی کریم دَ ذهانت اعتراف اوکړو چه دادَ نبوت فیصله ده

**[۴۰۴۵] نبی علیه السلام سره د ښځو بیعت**

۴۰۴۵-[۳] (١) [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ «فِي بَيْعَةِ النِّسَاءِ: [۲] إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَمْتَحِنُهُنَّ بِهَذِهِ الْآيَةِ [۳] ﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا جَاءَكَ الْمُؤْمِنَاتُ يُبَايِعْنَكَ﴾ [الممتحنة: ۱۲] [۴] فَمَنْ أَقَرَّتْ بِهَذَا

(١) اخرجه البخاری فی کتاب الشروط/باب ما یجوز من الشروط فی الإسلام والأحکام والمبایعة (رقم-۲۷۱۳) ومسلم فی کتاب الإمارة/باب کیفیة بیعة النساء (رقم-۸۸ - (۱۸۶۶)

الشَّرْطِ مِنْهُنَّ [٥] قَالَ لَهَا: (قَدْ بَايَعْتُكِ) [٦] كَلَامًا يُكَلِّمُهَا بِهِ [٧] وَاللهِ مَا مَسَّتْ يَدُهُ يَدَ امْرَأَةٍ قَطُّ فِي الْمُبَايَعَةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] بي بي عائشه رضي الله عنها د ښځو د بيعت په باره کې فرمايي [٢] چې رسول کريم ﷺ به هغه ښځې (چې مکې څخه به راتلې او د اسلام قبلولو اظهار به يې کولو) د دې آيت کريمه په رڼا کې به يې آزمايلې [٣] يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا جَاءَكَ الْمُؤْمِنَاتُ يُبَايِعْنَكَ الآية: اې نبي هرکله چې مؤمنې ښځې تاسو ته بيعت د پاره حاضرې شي الخ [٤] نو په هغوی کې کومه ښځه چې په دې آيت کې د مذکوره شرائطو منلو اقرار کوی [٥] نو حضور ﷺ به هغوی ته فرمايل ما ته بيعت کړلی [٦] په داسې حالت کې چې حضور ﷺ به ورسره خبرې کولې (او ښځې ته به يې داخبره فرمايله) [٧] خو قسم په خدای هيڅ کله داسې نه دی شوي چې حضور ﷺ يوه ښځه بيعت کړې وي او د هغې لاس يې خپل لاس مبارک سره مس کړې وي (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** ① أَقَرَّتْ: اقرار ئې اوکړو.

**تسهيلات:**

**نوټ:** دې حديث کښې د بيعت ذکر دې د دې تفصيل په اول جلد کښې تيرشوې دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [٣٠٣٦] د صلح حديبيه نورشرطونه

٣٠٣٦ - [٥] (١) [١] عَنِ الْمِسْوَرِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، وَمَرْوَانَ: [٢] أَنَّهُمْ اصْطَلَحُوا [٣] عَلَى وَضْعِ الْحَرْبِ عَشْرَ سِنِينَ [٤] يَأْمَنُ فِيهِنَّ النَّاسُ، [٥] وَعَلَى أَنَّ بَيْنَنَا عَيْبَةً مَكْفُوفَةً، [٦] وَأَنَّهُ لَا إِسْلَالَ [٧] وَلَا إِغْلَالَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] حضرت مسور رضي الله عنه او حضرت مروان څخه روايت دې [٢] چې د مکې قريشو (په حديبيه کې) په کومو خبرو مصالحت کړې وو په هغې کې يوه خبره داهم وه [٣] چې لس کاله پورې به (د فريقينو په مينځ کې) هيڅ جنګ نه وي [٤] دې د پاره چې په دې ورځو کې خلق په امن وامان سره وي [٥] او داخبره هم معاهده کې شامله وه چې زمونږ په مينځ کې دې تړلې ګيډی وي [٦] او داچې مونږ په خپلو کې نه خودې په پټه غلا کوو [٧] او نه خيانت کوو (ابوداود)

**حل اللغات:** ① اصْطَلَحُوا: مصالحت او روغه ئې اوکړه. ② وَضْعِ الْحَرْبِ: د جنګ بندولو. ③ عَيْبَةً مَكْفُوفَةً: تړلې شوې پنډ يا صندوق. ④ لَا إِسْلَالَ: په پټه به د يوبل مال نه پټوی. ⑤ وَلَا إِغْلَالَ: په ظاهری توګه به يوبل سره خيانت نه کوی.

---

(١) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجهاد/باب فى صلح العدو (رقم-٢٧٦٦) واحمد فى المسند: ٣٢٥/٤

**تسهيلات:**

**قوله:** عَلَىٰ وَضْعِ الْحَرْبِ عَشْرَ سِنِينَ يَأْمَنُ فِيهَا النَّاسُ:

**لس کالوپورې جنګ بندي:**

په دې صلح کښې يوه دفعه دا هم وه چې ترلسو کالوپورې به مسلمانان او کافران يو بل سره جنګ نه کوی په دې شرط باندې ډيرې فائدې مرتب شوې بعضې دا دی

① مسلمانانو ته د کافرانو د حملو څخه امن ملاؤ شو.

② کافرانوته د مسلمانانو سره د مل جول موقع په لاس ورغه اود اسلامی تعليماتو څخه متاثره شول ددې په نتيجه کښې د فتح مکې پورې دومره کافران مسلمانان شول چې دومره په تيرو اوولسو کالوکښې نه وو مسلمانان شوې.

③ بيرونی دنيا ته د اسلامی دعوت دپاره نبی عليه السلام خپل قاصدان اوليږل ګويا چې عملی طورپه دې کار شروع شو چې اسلام صرف د مکې او مدينې دپاره نه دې بلکه د ټولې دنيا د نجات ذريعه ده

**قوله:** وَعَلَىٰ أَنَّ بَيْنَنَا عَيْبَةً مَكْفُوفَةً:

**د مذکوره جملې مطلب:** عيبه په اصل کښې صندوقچې يا داسې تهيلئی ته وائی په کوم کښې چه د راز څيزونه پټولې شی ياخاص کپړې کيخودې شی دلته ددې نه داسې زړه اوداسې سينه مرادده په کوم کښې چه راز هم وی اونيازهم، چه د يوبل دپاره خيرخواهی وی د بعضې عناد اوشرفساد تصورنه وی

**قوله:** وَأَنَّهُ لَا إِسْلَالَ وَلَا إِغْلَالَ:

**د ا سلال او اغلال په مينځ کښې فرق:** مطلب دا چه په ظاهری اوباطنی توګه به د يوبل د خان اومال احترام کوی بعضې علماؤ د اسلال نه توره راويستل مراد اخلی او اغلال نه زغره اغوستل مراداخلی يعنی توره تړل او زغره اچولو سره به يوبل سره جګړه نه کوی

**[۴۰۴۷] په قيامت کښې د معاهد دپاره د نبی عليه السلام وکالت**

۴۰۴۷-[۶] (¹) ⑴ وَعَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ، عَنْ عِدَّةٍ مِنْ أَبْنَاءِ أَصْحَابِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ⑵ عَنْ آبَائِهِمْ، ⑶ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ⑷ «أَلَا مَنْ ظَلَمَ مُعَاهِدًا، ⑸ أَوِ انْتَقَصَهُ، ⑹ أَوْ كَلَّفَهُ فَوْقَ طَاقَتِهِ، ⑺ أَوْ أَخَذَ مِنْهُ شَيْئًا بِغَيْرِ طِيبِ نَفْسٍ، ⑻ فَأَنَا حَجِيجُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ⑴ صفوان ابن سليم د رسول کريم ﷺ د څه صحابهٔ و ﷺ د صاحبزادګانو څخه ⑵ او هغه صاحبزادګان د خپل [صحابه] پلارانو څخه ⑶ او هغوی د رسول کريم ﷺ څخه

---

¹) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الخراج والإمارة والفیء /باب باب فی تعشير أهل الذمّة إذا اختلفوا بالتجارات (رقم-۳۰۵۲)

نقل كوي چې حضور ﷺ وفرمايل ④ ياد لرئ كوم سړي چې هغه غير مسلم سړي باندې ظلم اوكړئ كوم سره چې وعده كړې شوې [لكه ذمي او مستامن يعنى امان غوښتونكي] ⑤ يا دهغه حقوق ته يې نقصان ورسولو ⑥ يا په هغه د هغه د طاقت او استطاعت څخه زيات بوج يې واچولو [لكه د يوذمي څخه يې د هغه د حيثيت او استطاعت څخه زياته جزيه واخسته يا هغه حربي مستامن [امان غوښتونكي] څخه چې دار الاسلام ته د تجارت په غرض راغلې وي د هغه د تجارت د مال څخه عشر يعنى لسمي حصې څخه زياته واخسته] ⑦ يا د هغه د مرضى او خوشنودئ څخه بغير هغه څخه يې څه څيز واخستلو ⑧ نو زه به د قيامت په ورځ د هغه سړي خلاف احتجاج كوم (ابوداود)

**حل اللغات:** ① مُعَاهِدًا: چه لوظ د امن ورسره شوې وى، امان وركړې شوې وى ② أوانْتَقَصَهُ: يا نقصان اورسوى هغه ته. حق تلفى ئې اوكړى، ③ أوْكَلَّفَهُ: يا تكليف اورسوى هغه ته. ④ بِغَيْرِطِيبِ نَفْسٍ: د رضامندئ نه بغير. ⑤ حَجِيجُهُ: احتجاج كونكې دهغه.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَأَنَا حَجِيجُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:

**په ذميانود نبى عليه السلام شفقت:** په دې حديث كښې ډير وسعت دې نبى كريم ﷺ فرمائى چه په ذميانو باندې ددوى د حيثيت نه زياته جزيه او د پيداوار خراج ډير مقرر كول. د جزې او د خراج په وصولئ كښې ناجائز ستخې كول، په مختلفو حيلو او بهانو سره دهغوى مال حاصلول، د هغوى څخه رشوت اغستل وغيره په دې ټولو زياتو او حق تلفو كښې به د مسلمان حاكم شفاعت كولو په ځاې زه به هغوې شكايت كومه او هغه به په عذاب كښې كيرومه.

**[٣٠٣٨] د ښځو سره د بيعت كولو مسنون طريقه**

٣٠٣٨—[٤] (١) ① وَعَنْ أُمَيْمَةَ بِنْتِ رُقَيْقَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ② «بَايَعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي نِسْوَةٍ ③ فَقَالَ لَنَا: ④ (فِيمَا اسْتَطَعْتُنَّ وَأَطَقْتُنَّ) ⑤ قُلْتُ: اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَرْحَمُ بِنَا مِنَّا بِأَنْفُسِنَا ⑥ قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ بَايِعْنَا ⑦ تَعْنِي: صَافِحْنَا ⑧ قَالَ: (إِنَّمَا قَوْلِي لِمِائَةِ امْرَأَةٍ كَقَوْلِي لِامْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ)».

**ترجمه:** ① او بي بي اميمه بنت رقيقه ؓ وايي ② چه ما څو ښځو سره د نبي كريم ﷺ څخه بيعت اوكړو ايعنى مونږ څو ښځو اجتماعي طور سره د حضور ﷺ څخه بعيت اوكړو] ③ نو هغه وخت حضور ﷺ مونږ ته وفرمايل [اې بيبيانو!] ④ ماتاسو په هغه څيز

(١) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب السير عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى بيعة النساء (رقم-١٥٩٧) والنسائى فى كتاب البيعة/باب بيعة النساء (رقم-٤١٨١) وابن ماجه فى كتاب الجهاد/باب بيعة النساء (رقم-٢٨٧٤) ومالك فى الموطا كتاب البيعة/باب ما جاء فى البيعة (رقم-٢)

بیعت کړي يي چې په هغې د عمل کولو تاسو طاقت او استطاعت لرئ [یعنی حضور ﷺ د مهربانۍ د مخي د هغه ښځو بیعت د هغوی عملي استطاعت او همت پورې محدود وساتلو] ⑤ ما اوویل بیشکه خپل ذات باندې چې مونږ ځومره مهربانه او رحم دله کیدې شو د هغې څخه ډیر زیات زمونږ په حق کې الله او د هغه رسول رحم کونکی دی ⑥ اوبیا ماعرض اوکړو یارسول الله! زمونږ بیعت وکړئ ⑦ د دی خبري څخه د هغې مراد دا وو چه زمونږ سره مصافحه اوکړئ [یعنی د بیعت کولو په وخت زمونږ لاس په خپل لاس مبارک کې ونیسئ] ⑧ حضور ﷺ وفرمایل ځما سل ښځو ته څه ونیل یوي ښځي ته د ویلو په شان دی [یعنی اول خو ښځي ته د بیعت کولو په وخت صرف په ژبي سره دا ویل کافي دي چې ما ته بیعت کړي يې د هغوی لاس په خپل لاس کې د اخستلو ضرورت نشته دویم داچې که څه ښځي اجتماعي طور سره بیعت کیږي نو په ژبي سره د دې ویلو د پاره هم جدا جدا ښځه مخاطب کول ضروري نه دي بلکه صرف یوي ښځي ته وئیل تولو د پاره کافي دی]

> ① رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَمَالِكٌ فِي الْمُوَطَّأِ ② كُلُّهُمْ مِنْ حَدِيثِ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ ③ أَنَّهُ سَمِعَ مِنْ أُمَيْمَةَ الْحَدِيثِ ④ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ حديث حَسَنٌ صَحِيحٌ ⑤ لَا يُعْرَفُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَهُ ابْنُ الْجَزَرِيِّ.

**ترجمه:** ① روایت کړي دي امام ترمذي، امام نسائی، ابن ماجه او امام مالک په موطا کښې، ② دې ټولو محمد بن منکدر په واسطه حدیث نقل کړي دې ③ چې هغه د حدیث د امامانو څخه اوریدلی دی. ④ او امام ترمذی فرمائیلی دی چې دا حدیث حسن صحیح دې ⑤ د ابن جزری د قول مطابق دا حدیث صرف د ابن المنکدر په روایت سره پیژندې شی

**تسهیلات:**

**قوله:** فِيمَا اسْتَطَعْتُنَّ وَأَطَقْتُنَّ:

**د طاقت قید لګولو فائده:** مطلب دا دي چه مونږ په بیعت کښې د اعمال صالح کولو او دګناهونو نه د بچ کیدو لوظ او وعده کړي وه، خو د استطاعت او د طاقت قید مو نه وو لګولي نبی کریم ﷺ په مونږ باندې مهربانی کولو په وجه اوفرمائیل چه د استطاعت او طاقت قید اولګوئی

**قوله:** بَايِعْنَا تَعْنِي: صَافِحْنَا:

**د بیعت بالید مطالبه:** مذکوره ښځي د بیعت بالید (لاس سره بیعت کولو) مطالبه وکړه نو په جواب کښې نبی کریم ﷺ وفرمائیل چه بیعت بالقول (په خولي سره بیعت) کافي دي او بیعت بالید ته حاجت اوضرورت نشته.

**قوله:** إِنَّمَا قَوْلِي لِمِائَةِ امْرَأَةٍ كَقَوْلِي لِامْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ:

**اشكال:** علامه طيبى رحمه الله په دي خبره بحث كړي دې چه كه څوک سوال وكړي چه دا جواب د سوال مطابق نه دې ځكه چه ددي ښځي سوال او مطالبه مصافحې بالید وه (يعنى لاس ملاوول) او نبى كريم ﷺ مصافحه بالید په ځائ بيعت بالقول ذكر وكړو او دارنګ دې ښځي د ټولو ښځو دپاره مصافحې مطالبه كړي وه نو په جواب كښې نبى كريم ﷺ وفرمائيل چه سل ښځو دپاره زما هغه خبره ده كومه چه ديوى ښځي دپاره ده.

**داشكال دوه جوابونه:** د نبى كريم صلى الله عليه وسلم دا قول (إنما قولي) ددغې زنانه د قول جواب (صافحنا) جواب دې په دوه طريقو سره

① چه بيعت انحصار په قول باندې دې فعل باندې نه دې.

② زما تاته ددې ټولو زنانؤ په مخكې وينا كول داسې دى لكه چه هغوى ته هم دا وينا وشوه يعنى تا سره قولى بيعت داسې دې لكه هغوى سره هم بيعت اوشو

**قوله:** رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ:

**په بعضې نسخو كښې بياض:** د مشكوة په اصل نسخه كښې رواه نه بعد بياض دي. او ددي مطلب دا دې چه د مشكوة مؤلف ته ددې حديث د مآخذ تحقيق نه دې شوي ليكن بعضي شارحينو په حاشيه كښې دا عبارت ليكلي دې څنګه چه ميرک وغيره هم ليكلي دې "رواه الترمذي والنسائي الخ

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۴۰۴۹] د نبي عليه السلام د صلح حديبيه معاهده ليكل

۴۰۴۹ — [۸] (¹) [۱] وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: [۲] «اعْتَمَرَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ذِي الْقَعْدَةِ [۳] فَأَبَى أَهْلُ مَكَّةَ أَنْ يَدَعُوهُ يَدْخُلُ مَكَّةَ، [۴] حَتَّى قَاضَاهُمْ عَلَى أَنْ يَدْخُلَ [۵] يَعْنِي: مِنَ الْعَامِ الْمُقْبِلِ [۶] يُقِيمُ بِهَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ [۷] فَلَمَّا كَتَبُوا الْكِتَابَ، [۸] كَتَبُوا: هٰذَا مَا قَاضَى عَلَيْهِ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللّٰهِ. [۹] قَالُوا: لَا نُقِرُّ بِهَا، [۱۰] فَلَوْ نَعْلَمُ أَنَّكَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مَنَعْنَاكَ، [۱۱] وَلٰكِنْ أَنْتَ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ. [۱۲] فَقَالَ: (أَنَا رَسُولُ اللّٰهِ، [۱۳] وَأَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ).

**ترجمه:** [۱] حضرت براء ابن عازب رضي الله عنه وايي [۲] چه رسول كريم ﷺ ماه ذي قعده سنه ۶ هـ كې عمري د پاره مديني څخه تشريف يوړو [۳] خو اهل مكه انكار وكړو چې هغوى حضور ﷺ ته په مكه كې د داخليدو موقع وركړي (يعنى هغوى حضور ﷺ او صحابه رضي الله عنهم مكې ته د راتلو څخه منع كړل) [۴] تردې چې حضور ﷺ اهل مكه سره په دې خبره

¹) اخرجه البخاري فى كتاب الصلح/باب: كيف يكتب هذا: ما صالح فلان بن فلان. وفلان بن فلان، وإن لم ينسبه إلى قبيلته أو نسبه (رقم-۲۶۹۹) واحمد فى المسند: ۲۹۱۱/۴

مصالحت اوکړو [۵] چې حضور ﷺ دې مخ کال [آئنده کال] ته مکې ته راشي [۶] او هغه وخت هم صرف درې ورځې به مکه کې قیام کوي [۷] صلحنامه چې ولیکل شوه [۸] نو [د حضور ﷺ د طرف څخه] صحابهٔ و ﷺ [د حضور ﷺ اسم گرامي] داسې اولیکلو چې دا هغه وعده ده چې په هغې محمد رسول الله مصالحت کړې دی [۹] اهل مکه [دا الفاظ لیدو سره حضور ﷺ ته] اوویل چې مونږ خو ستاسو رسالت نه تسلیموؤ [۱۰] که زمونږ په دې اعتقاد وې چې تاسو د الله رسول یئ نو مونږ به تاسو د مکې څخه منع کولی ولی. [۱۱] البته مونږ تاسو دومره منو چې تاسو محمد ﷺ یئ چې د عبد الله ځوی یې [نو دې صلح نامه کې د محمد رسول الله په ځائ محمد بن عبد الله ولیکئ] [۱۲] حضور ﷺ وفرمایل زه محمد رسول الله هم یم [۱۳] او محمد بن عبدالله هم یم [داستاسو محض ضد دې چې تاسو نه پوهیږئ چې ځما دا دواړه صفتونه یعنی د الله رسول کیدل او محمد بن عبدالله کیدل په خپلو کې داسې لازم او ملزوم دې چې هغه د یوبل څخه جدا کیدی نشي نو په دې سره هیڅ فرق نه راځي چې دا دواړه ذکر شي یا یو ذکر شی]

**حل اللغات:** ① لَانُقِرُّ: مونږ اقرار نه کوو،

[۱] ثُمَّ قَالَ لِعَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ: [۲] (امْحُ: رَسُولَ اللّٰهِ) [۳] قَالَ: لَا وَاللّٰهِ، [۴] لَا أَمْحُوكَ أَبَدًا. [۵] فَأَخَذَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۶] وَلَيْسَ يُحْسِنُ يَكْتُبُ، [۷] فَكَتَبَ: (هٰذَا مَا قَاضَى عَلَيْهِ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ: [۸] لَا يُدْخِلُ مَكَّةَ بِالسِّلَاحِ [۹] إِلَّا السَّيْفَ فِي الْقِرَابِ، [۱۰] وَأَنْ لَا يَخْرُجَ مِنْ أَهْلِهَا بِأَحَدٍ إِنْ أَرَادَ أَنْ يَتْبَعَهُ، [۱۱] وَأَنْ لَا يَمْنَعَ مِنْ أَصْحَابِهِ أَحَدًا إِنْ أَرَادَ أَنْ يُقِيمَ بِهَا) [۱۲] فَلَمَّا دَخَلَهَا وَمَضَى الْأَجَلُ، [۱۳] أَتَوْا عَلِيًّا، [۱۴] فَقَالُوا: قُلْ لِصَاحِبِكَ، [۱۵] اخْرُجْ عَنَّا، [۱۶] فَقَدْ مَضَى الْأَجَلُ، [۱۷] فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] بیا حضور ﷺ حضرت علي رضي الله عنه ابن ابي طالب ته وفرمایل [چې صلحنامه یې لیکله] [۲] چې د رسول الله لفظ لرې کړه [۳] حضرت علي رضي الله عنه اوویل قسم په خدای [۴] زه خو ستاسو ﷺ نوم هیڅکله ورانولی نشم [۵] [په دې اوریدو سره] حضور ﷺ [د حضرت علي رضي الله عنه د لاس څخه هغه صلحنامه] واخسته [۶] او با وجود د دې چې حضور ﷺ په لیک لوست نه پوهیدلو [۷] لیکن حضور ﷺ د رسول الله لفظ وران کړو او دا ئ ولیکل چې دا هغه وعده ده چې په هغې محمد ابن عبد الله مصالحت کړې دی [۸] [او په دې معاهده کې داشرطونه ووا] چې هغوی به [حضور ﷺ او صحابه رضي الله عنهم] وسلې سره مکې نه داخلیږی [۹] خو داچې د هغوی توري تیکو کې وي [۱۰] او چه دا که اهلِ مکه کې یوسړی حضور ﷺ سره د تلو اراده وکړي نو هغه به د مکې څخه نشي پرینبودلی [یعنی کله چې حضور ﷺ مکې ته راشي او بیا واپس لاړ شي نو د اهل مکه څخه یوسړی به د خان سره نه بوځی] [۱۱]

او چه دا که: حضور ﷺ صحابه و ﷺ څخه يو سړي په مکه کې د پاتې کيدو اراده وکړي نو حضور ﷺ به هغه په مکه کې د پاتې کيدو څخه نه منع کوي ⑫ نو مخکې کال ته چې حضور ﷺ مکې ته تشريف راوړو او په مکه کې د پاتې کيدو دريو ورځو موده پوره شوه⑬ نو اهلِ مکه حضرت علي ﷺ ته راغلل ⑭ او هغوی ته يي اوويل چې تاسو خپل سردار [يعنی حضور ﷺ] ته اووايئ ⑮ چې اوس زمونږ د ښار څخه ووځی ⑯ فيصله شوي موده پوره شويده ⑰نو رسول کريم ﷺ د مکي څخه روان شو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات**: ⑦ امْحُ: ورانه کړه، ⑨ الْقِرَابِ: تيکه، قاش،

**تسهيلات:**

**قوله**: أَنْتَ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ:

**د کافرانو د رسول الله ليکلو څخه انکار**: کافرانو محمدبن عبدالله ليکل غوښتل ځکه چه رسول الله خو هغوی نه منلو. نبی کريم حضرت علی ﷺ ته اوفرمائيل دَ رسول الله لفظ وران کړه حضرت علی ﷺ انکار اوکړو مګر دا انکاردَ نافرمانئی په غرض سره نه ووبلکه دَاطاعت په غرض سره وو په کوم چه ثواب ملاويږي. هم دغه شان انکار حضرت عمر ﷺ په واقعه دَ قرطاس کِښې کړې وومګر روافض حضرت علی ﷺ اونه چيړلو اوحضرت عمر ﷺ ئی پرينخودو. دادَ هغوی دَ بدنيتئی نښه ده.

فعين الرضا عن كل عيب كليلة ولكن عين السخط تبدی المساويا

**د نبی عليه السلام تسلی**: الله تعالی دې نه پس دَ نبی کريم نوم سره ۹ځل دَ رسول لفظ ذکرکړو بلکه په سورت فتح کښې خو بعينه هم دا لفظ راغلو:

مُحَمَّدٌ رَّسُولُ اللهِ ۚ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ ۖ تَرَاهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّنَ اللهِ وَرِضْوَانًا ۖ سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِم مِّنْ أَثَرِ السُّجُودِ ۚ ذَٰلِكَ مَثَلُهُمْ فِي التَّوْرَاةِ ۚ وَمَثَلُهُمْ فِي الْإِنجِيلِ كَزَرْعٍ أَخْرَجَ شَطْأَهُ فَآزَرَهُ فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوَىٰ عَلَىٰ سُوقِهِ يُعْجِبُ الزُّرَّاعَ لِيَغِيظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ ۗ وَعَدَ اللهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِنْهُم مَّغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا ﴿٢٩﴾ [سورت محمد: ۲۹]

# [۱۰] بَابُ إِخْرَاجِ الْيَهُودِ مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ]

## دَ جزیرهٔ عرب نه دَ یهودیانو دَ ویستلو بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه خمسة أحاديث مشتملة على ثلث مسائل:**

① اجلاء النبی ﷺ اليهود من المدينة: ۱، ۴.

② إجلاء عمر ﷺ اليهود من جزيرة العرب: ۲، ۵.

③ وصية النبی ﷺ بإخراج اليهودجزيرة العرب: ۳.

**د جزیرې تعریف:** په نهایه کښې دی چه جزیره د زمکې د هغه حصې نوم دې چه د هغې نه څلورو واړو طرفونو ته اوبه وی یعنی د جزیره عرب په درې طرفونو کښې اوبه دی خو شمالی طرف ئې د ملك شام سره متصل دې لهذا عرب پوره طریقې سره جزیره نه شوه خود اکثریت په اعتبار سره ورته جزیره وئیلې شوې ده.

**د عرب حدود اربعه:** ① د عرب په خلیج کښې فارس او بحر عمان دې،

② په جنوب کښې ئې بحر عرب یا بحر هند دې.

③ په مغرب کښې بحر قلزم او نهر سوئز دې.

④ په شمال کښې دملك عرب رقبه دولس دیارلس لاکهه میل مربع ده کومه چه د ملك شام سره متصل ده او په دې شمالی علاقه کښې څلور پنځه لاکهه مربع میل تقریبا صحرا او غیر اباد رقبې شامل دی.

**د جزیرهٔ عرب په پنځو حصوباندې اشتمال:** جزیره عرب په پنځو حصوباندې مشتمل ده ① تهامه ② نجد ③ حجاز ④ عروض ⑤ یمن.

کله چه دَ جزیرهٔ عرب نوم اخستې شی نو په اوږدوالی کښې دادَ عدن نه دَعراق پورې دې او پلنوالی کښې دَ جده نه دَ شام پورې دې. دلته دَ کتاب په عنوان کښې صرف دَ یهودد اخراج لفظ راغلې دې په دې وجه دَ نبی کریم په مبارکه زمانه کښې صرف یهودیان ویستلې شوې وو اونصاریٰ اوعیسایان نه وو ویستلې شوې. روستودَوی هم اخراج شوې وو. خو په راتلونکو احادیثوکښې صرف د یهود نصاریٰ اواهل کتاب ذکر موجودنه دې بلکه دَمشرکانودَ اخراج ذکر هم دې

**د یهودیانود اخراج وجه:** دَدې اخراج وجه داده چه جزیرهٔ عرب دَ پیغمبر ﷺ وطن دې او په دې کښې دَ اسلام مراکز مکه اومدینه واقع دی په دې وجه په مذهبی اوسیاسی اعتبارسره دَ دغه مراکزو نه دَ کفراوشرك ګندګیانې لرې کول اومفسداومضراثراتو نه دَدې پاکول ډیر اهم او قرین قیاس دی.

**د غير حرمين څخه د يهوديانو د اخراج په حکم کښې دوه مذهبونه:**

① امام شافعي رحمه الله د کافرانو نه د حجاز دغه پاکول مکې اومدينې پورې محدود ګڼرلی دی ② ائمه احناف دا تخصيص نه خوښوی بلکه د پوره جزيره عرب د پاکولو فتوی ورکوی چه دلته دې نه ګرجاوی نه کنيسه نه مندر وی نه ګوردواره نه دې امام باړه وی اونه مرزا اړه اونه دې څه ايمان بګاړه وی بهرحال چه کله په احاديثو کښې مطلق د جزيره عرب نوم راغلې دې او "لايجتمع دينان في جزيرة العرب" الفاظ عام دی نودا عموم د مکې اومدينې پورې محدود کول مناسب نه دی لهذا د شوافع په ځائی د احنافو مسلك خپلول ډير ښه دی خاص کر د نن صبا په دورکښې.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۴۰۰۵] د جزيرة العرب څخه د يهوديانو اخراج**

۴۰۰۵-[۱] (۱) ① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «بَيْنَا نَحْنُ فِي الْمَسْجِدِ، ③ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ④ فَقَالَ "انْطَلِقُوا إِلَى يَهُودَ" ⑤ فَخَرَجْنَا مَعَهُ ⑥ حَتَّى جِئْنَا بَيْتَ الْمِدْرَاسِ، ⑦ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: ⑧ يَا مَعْشَرَ يَهُودَ أَسْلِمُوا تَسْلَمُوا، ⑨ اعْلَمُوا أَنَّ الْأَرْضَ لِلَّهِ وَلِرَسُولِهِ، ⑩ وَأَنِّي أُرِيدُ أَنْ أُجْلِيَكُمْ مِنْ هَذِهِ الْأَرْضِ، ⑪ فَمَنْ وَجَدَ مِنْكُمْ بِمَالِهِ شَيْئًا ⑫ فَلْيَبِعْهُ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي ② چه يوه ورځ چې مونږ مسجد نبوي کې ناست وو③ رسول کريم ﷺ د خپلې حجرې مبارکې څخه راووتلو ④ او وې فرمايل راځئ چې يهوديانو ته ورشو ⑤ نو مونږ خلق د حضور ﷺ سره روان شو⑥ تردې چې د يهوديانو مدرسې ته ورسيدو ⑦ رسول کريم ﷺ اودريدلو او وې فرمايل ⑧ اې د يهوديانو جماعته! تاسو خلق مسلمانان شئ چې [د دنيا د پريشانو او د آخرت د عذاب څخه] سلامتيا حاصله کړئ ⑨ تاسو ته په دې پوهيدل پکار دي چې زمکه د الله او د هغه د رسول ده [يعنی د دې زمکې خالق او مالك حقيقي الله ﷻ دی او د هغه رسول د هغه د نائب او خليفه کيدو حيثيت سره په دې زمکه متصرف او حکمران دې که تاسو د مسلمانيدو څخه انکار کوئ نو بيا واورئ!] ⑩ ما دا اراده کړيده چې زه تاسو د دې زمکې [يعنی جزيرة العرب] څخه جلاوطن کړم⑪ نو په تاسو کې کوم سړې چې خپل مال او اسباب څخه څه داسې شی لري چې د هغې ځان سره وړل ممکن نه وي [لکه جائيداد غير منقوله وغيره] ⑫ نو هغه ته پکار دی چې هغه خرڅ کړي (بخاري مسلم)

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الجزية/باب إخراج اليهود من جزيرة العرب (رقم-۳۱۶۷) ومسلم فی کتاب الجهاد والسّير/باب صلح الحديبية فی الحديبية (رقم-۹۰ - (۱۷۸۳) ومسلم فی کتاب الجهاد والسّير/باب إجلاء اليهود من الحجاز (رقم-۶۱ - (۱۷۶۵) واحمد فی المسند: ۲۹۱۱/۴

**حل اللغات:** ① اَنْطَلِقُوا: واپس شئ، ② بَيْتَ الْمِدْرَاسِ: دَ يهوديانو مدرسه وه. ③ أُجْلِيَكُمْ: جلاوطن کرم تاسو، د وطن نه مو اوباسم، ④ فَلْيَبِعْهُ: نو خرڅ دې کړی.

**تسهیلات:**

**قوله:** بَيْنَا نَحْنُ فِي الْمَسْجِدِ: حضرت ابوهريره ﷺ فرمائی چه په دغه دوران کښې مونږ په جمات کښې ناست وو چه نبی کریم تشریف راوړو.

**په حدیث اشکال:** دَ بنونضیر دَ وطن نه ویستل ۴هجری کښې شوی دی اودَ بنوقریظه تباهی په ۵هجری کښې شوې دی اوحضرت ابوهريره ﷺ ۷هجری کښې مسلمان شوې دی. دغه وخت خوابوهريره ﷺ مسلمان شوې هم نه وو نوهغوی څنګه اووئیل چه دَ بنونضیر دَ وطن دَ ویستو په وخت مونږ په جمات کښې ناست وو؟

**داشکال جواب:** ① ابوهريره ﷺ اکثرداسې قسم جملې ارشاد کوی چه مونږ هلته وو اومونږ اولیدل یا مونږ واؤریدل دې نه ابوهريره ﷺ دَ صحابه کرامو جماعت مراداخلی سره ددې چه هغه هلته پخپله نه وی. مطلب دا چه مونږ دَ صحابه کرامو جماعت هلته ناست وو چه نبی کریم تشریف راوړو. (په احادیثوباندې دَ پوهیدلودپاره دا یوبهترین قاعده ده).

② دلته دَ یهود نه مراد بنوقینقاع دی دَهغوی څه خلق هغه وخت ویستلې شوې وو کوم وخت چه ابوهريره ﷺ مسلمان شوې وو.

**[۳۰۵۱] دَیهودیانو دَ اخراج پس منظر**

۳۰۵۱–[۲] ()[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: [۲] قَامَ عُمَرُ خَطِيبًا فَقَالَ [۳] إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عَامَلَ يَهُودَ خَيْبَرَ عَلَى أَمْوَالِهِمْ [۴] وَقَالَ " [۵] «نُقِرُّكُمْ مَا أَقَرَّكُمُ اللهُ» [۶] " وَقَدْ رَأَيْتُ إِجْلَاءَهُمْ [۷] فَلَمَّا أَجْمَعَ عُمَرُ عَلَى ذَلِكَ [۸] أَتَاهُ أَحَدُ بَنِي أَبِي الْحُقَيْقِ [۹] فَقَالَ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ أَتُخْرِجُنَا [۱۰] وَقَدْ أَقَرَّنَا مُحَمَّدٌ وَعَامَلَنَا عَلَى الْأَمْوَالِ؟

**ترجمه:** [۱] او ابن عمر ﷺ وایي [۲] چه یوه ورځ امیر المؤمنین حضرت عمر فاروق ﷺ خطبې ویلو د پاره اودریدلو او هغه خطبه کې یي وفرمایل [۳] اتاسو ټولو ته معلومه ده چې! رسول کریم ﷺ د خیبر یهودیانو سره د هغوی د مال او جائیداد متعلق یوه معامله فیصله کړې وه [۴] او حضور ﷺ هغه وخت هغه یهودیانو ته فرمایلی وو [۵] چې مونږ به تاسو خیبر کې ترهغه وخته پورې پریږدو ترڅوپورې چې الله ﷻ تاسو پریږدي ایعنی تاسو خلق به ترهغه وخته پورې په خیبرکې د مقیم پاتې کیدو حقدار یئ ترڅوپورې چې الله ﷻ مونږ ته ستاسو د خیبر څخه د جلاوطن کولو حکم رانه کړي! [۶] نو احضرت عمر

---

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب الشروط /باب إذا اشترط فی المزارعة إذا شئت أخرجتک (رقم-۲۷۳۰)

ﷺ اوويل] اوس زه دوئ جلاوطن كول مناسب گنم ⑦ بيا چې حضرت عمر ﷺ ددې خبري فيصله وكړه اچې هغوی دی جلاوطن شي] ⑧ نو د هغوئ يهوديانو د قبيله بني ابي الحقيق يو سړی چې د خپل قوم ډير بوډا او سردار وو دحضرت عمر ﷺ په خدمت كې راغلو ⑨ او هغه اوويل امير المؤمنين! آيا تاسو مونږ جلاوطن كوئ ⑩ حالانكه محمد ﷺ مونږ په خيبر كې پريښي وو او زمونږ د مال او اسباب متعلق يې زمونږ سره يوه معامله هم فيصله كړي وه

**حل اللغات**: ① عَامَلَ : معامله كړې وه، ② نُقِرُّكُمْ : مقرركوو په تاسو، ③ إِجْلَاءَهُمْ : جلاوطن كول ددوی،

| |
|---|
| ① فَقَالَ عُمَرُ أَظَنَنْتَ أَنِّي نَسِيتُ قَوْلَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ② "وَكَيْفَ بِكَ إِذَا أُخْرِجْتَ مِنْ خَيْبَرَ ③ تَعْدُو بِكَ قَلُوصُكَ لَيْلَةً بَعْدَ لَيْلَةٍ؟ ④ فَقَالَ هَذِهِ كَانَتْ هُزَيْلَةً مِنْ أَبِي الْقَاسِمِ ⑤ فَقَالَ كَذَبْتَ يَا عَدُوَّ اللهِ ⑥ فَأَجْلَاهُمْ عُمَرُ ⑦ وَأَعْطَاهُمْ قِيمَةَ مَا كَانَ لَهُمْ مِنَ الثَّمَرِ ⑧ مَالًا وَإِبِلًا وَعُرُوضًا مِنْ أَقْتَابٍ وَحِبَالٍ وَغَيْرِ ذَلِكَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |

**ترجمه**: ① حضرت عمر ﷺ ورته وفرمايل آيا ته داگمان كوي چې زما څخه د رسول الله ﷺ داخبره گني هيره شويده اچې حضور ﷺ تا لره مخاطب كولو سره كړي وه] ② چې هغه وخت به ستا څه حال وي [او ته به څه كوي] هركله چې ته د خيبر څخه جلاوطن شې ③ او د شپې څخه وروسته شپه كې ستا اوښه به تا پسې زغلي [گويا حضور ﷺ ته د هغه راتلونكې ورځ څخه ويرولې وې هركله چې د شپې شپې به تالره د خيبر څخه وتل وي] ④ هغه سړی دا اوريدو سره اوويل چې داخبره خو ابو القاسم د مذاق په طور كړي وه ⑤ حضرت عمر ﷺ ورته وفرمايل اې د خدائ دښمنه! ته دروغ وايې [حضور ﷺ داخبره د مذاق په طور نه وه كړي بلكه د معجزې د مخه يې د يوې غيبي خبري خبر دركړي وو] ⑥ بيا حضرت عمر ﷺ يهوديان جلاوطن كړل ⑦ او د هغوی سره چې د ميوې د قسم څخه څه وو لكه خرما وغيره ⑧ د هغې په قيمت كې يې هغوی ته مال، اوښان او اسباب لكه رسئ او پالان [كټې] وغيره وركړلې (بخاري)

**حل اللغات**: ③ تَعْدُو: زغلي. منډې وهي، ③ قَلُوصُكَ: قلوص" ځوانه او طاقتوره اوښه، ④ هُزَيْلَةً: د ټوقو په طور، ⑤ أَقْتَابٍ: د قَتَبٌ جمع ده وړوكې بوج او كجاوې ته وائي، ⑧ حِبَالٍ: رسئ،

**تسهيلات**: **قوله**: تَعْدُو بِكَ قَلُوصُكَ لَيْلَةً بَعْدَ لَيْلَةٍ:

**د مذكوره جملې مطلب**: يعنې شپه په شپه به ستا ځوانه اوښه تاسو په منډه منډه اوباسي دغه به څنگه منظر وی؟ دَ يهودو سردار اووئيل چه دا ابوالقاسم ﷺ ټوقې كولې. حضرت عمر ﷺ وئيل څه دَ الله تعالى دښمنه دا ټوقې نه وې ته دروغ وائې چنانچه عمر

فاروق ﷺ هغه دَ وطن نه اوويستلو.

**قوله**: وَأَعْطَاهُمْ قِيمَةَ مَا كَانَ لَهُمْ مِنَ الثَّمَرِ:

**يهودو ته د هغوی څیزونو قیمت ادا کول**: يعنى عمر فاروق ﷺ دَ وطن نه ويستونكي يهودو ته دَهغوى دَ باغونواو ميوو په بدله كښې قيمت ادا كولو سره وركړو اوهغه قيمت دَ اوښانو په شكل كښې وو اودَ سامان په شكل كښې وو لكه ډولئى كجاوې او رسئى دائى هغوى ته وركړل دې دَپاره چه په لاره كښې په كار راشى اوباغونه دَ هغې په بدل كښې دَمسلمانانو په لاسونو كښې پاتې شى.

**[۴۰۵۲] د جزيرة العرب څخه د مشركانو د اخراج وصيت**

۴۰۵۲ – [۳] ( )[۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا[۲] «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ أَوْصَى بِثَلَاثَةٍ قَالَ: [۳] " أَخْرِجُوا الْمُشْرِكِينَ مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ[۴] وَأَجِيزُوا الْوَفْدَ نَحْوَ مَا كُنْتُ أُجِيزُهُمْ[۵] " قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: وَسَكَتَ عَنِ الثَّالِثَةِ، [۶] أَوْ قَالَ فَأُنْسِيتُهَا» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] او ابن عباس ﷺ وايي [۲] چه رسول كريم ﷺ د وفات په وخت د دريو خبرو وصيت اوكړو حضور ﷺ وفرمايل [۳] مشركان د جزيرهٔ عرب يعنى د مكي او مديني څخه وباسئ [۴] او قاصدانو او استاذو سره هغه سلوك كوئ كوم چې ما كولو [يعنى ترڅو پوري چې هغوى ستاسو سره وي د هغوى حفاظت كوئ او د هغوى د ژوند ضروريات پوره كوئ] [۵] ابن عباس ﷺ وايي چې رسول اكرم صلي الله عليه وسلم د دريمي خبري څخه خاموشي اختيار كړه [۶] ياابن عباس ﷺ وفرمايل چه دريمه خبره زما څخه هيره شويده (بخاري مسلم)

**تسهيلات**: **قوله**: أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ أَوْصَى بِثَلَاثَةٍ:

**د وفات په وخت كښې د نبى عليه السلام وصيت**: په دې حديث كښې رسول الله ﷺ دَ امت په نوم يوپيغام په شكل دَ وصيت ليږلې دې. نبى كريم دا وصيت هغه وخت فرمائيلې ووكوم وخت چه نبى كريم په مرض الموت كښې وو.

**قوله**: أَخْرِجُوا الْمُشْرِكِينَ مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ:

**د مشركين په مصداق كښې دوه اقوال**: ① علماؤ ليكلى دى چه دې نه مراد يهود اونصارىٰ دى ځكه چه هغوى هم شرك كول شروع كړى دى

[1] ) اخرجه البخاري فى كتاب الجهاد والسّير/باب جوائز الوفد (رقم-۳۰۵۳) ومسلم فى كتاب الوصية/باب ترك الوصية لمن ليس له شيء يوصى فيه (رقم-۲۰ - (۱۶۳۷)

④ ممکن ده اهل کتاب اونور مشرکان مراد وی ظاهره هم دغه شان ده.

**قوله:** وَأَجِيزُوا الْوَفْدَ بِنَحْوِ مَا كُنْتُ أُجِيزُهُمْ:

**د وفدونو عزت کول:** نبی کریم له به د لرې لرې نه د اسلام قبلولو په غرض سره یا د دین د زده کولو په ارادې سره خلق د ټولو په شکل کښې راتلل. خصوصاً په آخری عمر کښې خو به پوره کال وفدونه راتلل نبی کریم به د هغوی اکرام کولو هغوی به ئې حصارول خوراك به ئې ورکولو سملول او څه عطیه ورکولوسره به ئې روانول داهرڅه به کیدل. هم دغه دستور او رواج د باقی ساتلو نبی کریم وصیت فرمائیلې.

**قوله:** أَوْ قَالَ فَأُنْسِيتُهَا

③ **د اسامه لښکرلیږل:** د دریم وصیت باره کښې حضرت ابن عباس ﷺ اوفرمائیل چه مانه خو هیرشوې دی. علماء لیکی چه دریم وصیت د جیش اسامه باره کښې وو چه دا ضرور روان کړئ. په زیر بحث حدیث کښې دې طرف ته اشاره نه ده. بعضې روایاتو کښې د دې ذکر دې. قاضی عیاض ﷫ فرمائی چه دریم وصیت دا وو چه زما قبر د بت په شان مه جوړوئی چه عبادت ئې شروع کړئ. مؤطامالك کښې د دې ذکردې.

**[۴۰۴۳] د جزیرة العرب څخه د یهودو او نصاری جلاوطنی**

۴۰۴۳ ـ [۴] (۱) ⓵ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ: ⓶ أَخْبَرَنِي عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ⓷ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ⓸ «لَأُخْرِجَنَّ الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ ⓹ حَتَّى لَا أَدَعَ فِيهَا إِلَّا مُسْلِمًا» رَوَاهُ مُسْلِمٌ. ⓺ وَفِي رِوَايَةٍ ⓻ «لَئِنْ عِشْتُ ⓼ إِنْ شَاءَ اللَّهُ لَأُخْرِجَنَّ الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ».

**ترجمه:** ⓵ او جابر بن عبد الله ﷺ وایی ⓶ چه حضرت عمر بن خطاب ﷺ ماته بیان وکړو ⓷ چې هغوی د رسول کریم ﷺ څخه دا اوریدلي وه ⓸ چې زه به یهودیان او عیسائیان د جزیره عرب څخه ضرور اوباسم ⓹ تردې چې د مسلمانانو څخه ماسوا به جزیره عرب کې هیڅوك نه پریږدم (مسلم) ⓺ او په یو روایت کې دي ⓻ اچې حضور ﷺ داسې وفرمایل] که زه ژوندی پاتې شوم ⓼ نو زه به انشاء الله یهودیان او عیسائیان د جزیرهٔ عرب څخه ضرور اوباسم.

**حل اللغات:** ⓵ لَا أَدَعَ: نه به پریږدم

**تسهیلات:**

**نوټ:** د جزیرة العرب څخه د یهودو د اخراج مضمون په دې باب کښې بار بار تیرشوې دې.

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الجهاد والسّیر/باب إخراج الیهود. والنّصاری من جزیرة العرب (رقم-۶۳ - (۱۷۶۷)) و ابو داود فی کتاب الخراج والإمارة والفیء/باب فی إخراج الیهود من جزیرة العرب (رقم-۳۰۳۰) والترمذی فی کتاب السّیر عن رسول الله صلّی الله علیه وسلّم/باب ما جاء فی إخراج الیهود والنّصاری من جزیرة العرب (رقم-۱۶۰۷)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

۱ لَيْسَ فِيهِ إِلَّا حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ ۲ لَا يَكُونُ قِبْلَتَانِ ۳ وَقَدْ مَرَّ فِي بَابِ الْجِزْيَةِ

ترجمه ۱ د مصابیح دویم فصل کې د ابن عباس رضی الله عنهما صرف دا یوحدیث وو ۲ لایکون قبلتان الخ ،۳ او هغه د جزیه په بیان کې نقل شوې دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۳۰۵۳] په عهد فاروقی کښې د یهودیانو جلا وطنی**

۳۰۵۳ـــ[۵] ()۱ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا: ۲ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَجْلَى الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى مِنْ أَرْضِ الْحِجَازِ، ۳ وَكَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا ظَهَرَ عَلَى أَهْلِ خَيْبَرَ ۴ أَرَادَ أَنْ يُخْرِجَ الْيَهُودَ مِنْهَا ۵ وَكَانَتِ الْأَرْضُ لَمَّا ظُهِرَ عَلَيْهَا لِلّٰهِ وَلِرَسُولِهِ وَلِلْمُسْلِمِينَ،

**ترجمه:** ۱ او ابن عمر رضی الله عنهما وايي ۲ چه د حجاز زمکې يعنى جزيرة العرب څخه د يهودو او نصارى د جلاوطني كار د حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه په لاس سرته ورسيدو ۳ د دې څخه مخکې چې حضور صلی الله علیه وسلم ته خيبر باندې غلبه حاصله شوي وه ۴ نو حضور صلی الله علیه وسلم خيبر څخه د يهوديانو د ويستلو اراده کړې وه ۵ ځکه چې کومه زمکه باندې [حق دين ته] غلبه حاصله شي هغه زمکه د الله او د هغه درسول او د مسلمانانو شي [چې هلته صرف د الله دين غالب او مسلمانانو ته حق د تصرف او حکمراني حاصل شي]

**حل اللغات:** ① ظُهِرَ: غلبه حاصل شي،

۱ فَسَأَلَ الْيَهُودُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ۲ أَنْ يَتْرُكَهُمْ عَلَى أَنْ يَكْفُوا الْعَمَلَ ۳ وَلَهُمْ نِصْفُ الثَّمَرِ ۴ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «نُقِرُّكُمْ عَلَى مَا شِئْنَا» ۵ فَأُقِرُّوا حَتَّى أَجْلَاهُمْ عُمَرُ فِي إِمَارَتِهِ إِلَى تَيْمَاءَ وَأَرِيحَاءَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ ليکن يهودو رسول کريم صلی الله علیه وسلم ته داعرض اوکړو ۲ چې تاسو دوی [يعنى يهوديان] په دې شرط د خيبر په زمکو قابض او متصرف پريږدئ چې هغوی محنت وکړي [يعنى د باغونو حفاظت او د هغې د اوبه خور سيرابي وغيره ټول کار به کوي] ۳ او د هغې څخه د پيدا شوې ميوو نيمه حصه به د حضور صلی الله علیه وسلم حق وي ۴ نو رسول کريم صلی الله علیه وسلم د هغوی داعرض منظور کړو ليکن دا يې وفرمايل چې مونږ تاسو په خيبر کې

[۱] اخرجه البخاري في كتاب الجهاد والسير/باب: يقاتل عن أهل الذمة ولا يسترقون(رقم-۳۰۵۲) ومسلم في كتاب المساقاة/باب المساقاة، والمعاملة بجزء من الثمر والزرع (رقم-۶ - (۱۵۵۱)

ترهغه وخته پوري پريږدو ترڅوپوري چي مونږ غواړو ⑤ د دې څخه وروسته هغوی په خيبر کي پريښودل شو تردي چي حضرت عمر فاروق ﷜ د خپل خلافت په زمانه کي هغوی ټول د تيماء او د اريحا طرف ته جلاوطن کړل (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ② أَنْ يَكْفُوا: چه کافی شی هغوی، محنت اوکړی هغوی. ③ أُقِرُّوا: پريخودلی شو هغوی، ④ أَجْلَاهُمْ: جلاوطن ئې کړل هغوی، ⑤ إِلَى تَيْمَاءَ وَأَرِيحَاءَ: دا دواړه ځايونه دَ جزيرهٔ عرب نه بهر په شام کښې دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَجْلَى الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى مِنْ أَرْضِ الْحِجَازِ:

**عمر فاروق اود حجاز څخه د يهوديانو اخراج:** دَ اخراج يهود کومه تمنا او تاکيد چه نبی کريم فرمائيلي وو هغه حضرت عمر فاروق ﷜ پوره کړه. معلومه شوه چه حضرت عمر فاروق ﷜ دَ نبی کريم ارشادات پوره کونکي وو. که حضرت عمر فاروق﷜ دَ تاريخ دَ پاڼرونه اخواکړې شی نودَ دين دَتکميل مرحله به نامکمل پاتې شی.

**قوله:** وَكَانَتِ الْأَرْضُ لَمَّا ظُهِرَ:

**په خيبر کښې د يهودو د پريښودو محدود وخت:** يعنی کومه زمکه چه به په جهاد مقدس سره فتح کيدله هغه به دَ الله او دَ هغه دَ رسول اودَمسلمانانو کيدله اوپه مسلمانانو کښې به تقسيميدله. دَ خيبرزمکوسره هم داسې اوشو مګر يهوديانودا درخواست اوکړو چه اوس دَ زميندارئی په توګه مونږ دلته پريږدئی مونږ به زمکې آباده وو نيمه غله به زمونږ وی اونيمه به دَمسلمانانووی نبی کريم اوفرمائيل چه ترکومې پورې مونږ غواړو تاسو به ساتو ګنی اوباسو به مو چنانچه دَعمر فاروق ﷜ دوی اوويستل اوباقی ئې اونه ساتل لکه چه دَ نبی کريم ويستل او باقی نه ساتل شو "تفرکم" کښې دَعمر شان څومره شاندار جوړيږی. تيما او اريحا دا دوه مقامات.

# [۱۱] بَابُ الْفَيْءِ

## دَ فئ بيان

**خلاصة الباب:**
**فيه تسعة أحاديث مشتملة على ثلاث مسائل:**
① خصوصية النبي ﷺ من مال الفيئ: ۱، ۲، ۸، ۹.
② طريق تقسيم مال الفيئ: ۳، ۴، ۵، ۶.
③ كون الفيئ حق العامة: ۷.

**دغنيمت تعريف:** غنيمت هغه مال دې كوم چه د كفارو نه د جهاد او قتال په ذريعه حاصل كړې شوې وى

**دفئ لغوى معنى:** د فئ معنى د واپس كيدل دى د زوال نه پس چه د كومو څيزونو سورې د مشرق طرف ته واپس كيږى هغه سورى ته فئ وائى،

**د مال فئ اصطلاحي تعريف:** او فئ هغه مال دې كوم چه بغير د جهاد او قتال نه د كفارو نه حاصل كړې شوې وى،

**د مال فئ د حصول ذرائع:** ① كله مال فئ په داسې صورت كښې حاصل شوې وى چې كافرانو خپل مال پريخودلو سره تختيدلې وى،
② كله مال فئ كافران په رضامندئ سره د جزيه، خراج په صورت مسلمانانوته وركړى
③ كله مال فئ د تجارتى ډيوټئ وغيره په ذريعه د كافرانوڅخه حاصل شوې وى،

**د مال فئ مصرف:** دَدې څلور حصې به په مكمل توګه دَنبى كريم په لاس كښې وې چه په خپل اختيارسره به ئى خرچ كولې. په دې كښې په ميلمنو باندې خوراك كول اهل وعيال ته وركول اودَ مجاهدينو امداد كول ټول شامل وو. او پنځمه حصه به نبى كريم په هغه چا باندې خرچ كوله دكوم مصارف چه الله تعالى ذكر فرمائيلې دې

**دمال فئ عام مصرف:** دَدې نه نبى كريم په اهل باندې خپلوانو باندې بيبيانو اوبچو وغيره باندې تقسيم كړو په يتيمانوكونډورنډو مسكينانو او محتاجانو باندې خرچ كړو. په مسافرانو اوپسمانده خلقوباندې ئى خرچ كړه. دې نه علاوه نورو دَ خيرښيګړې كارونو كښې هم دَدې مال لګول جائزدى. مثلاً سړك يا پل جوړول هسپتال جوړول مسافر خانه جوړول جمات اومدرسه جوړول په دې ټولو مصارفو كښې مال فئ استعماليدې شى.

**په مال فئ كښې د مراتبوپه رعايت كښې مذهبين:** ① امام شافعى رحمه الله فرمائى چه دَمال فئ په تقسيم كښې دَ هيڅ ترتيب څه لحاظ او اعتبار نشته دې بلكه دَميراث په شان به ټول مستحقين برابرشريك وى.

② دَجمهورو په نيزبه دَدې لحاظ كيږي اوهغه داسې چه اول به افضل ته ورکولې شي بيابه درجه په درجه ورکولې شي. مثلاً دَتولونه اول به اهل بدرته ورکولې شي بيا بيعت رضوان والوته بيااهل بيت ته اوبيابه په عوام کښې تقسيميږي. حضرت عمر فاروق رضي الله عنه به دَدې ترتيب خيال ساتلو

**په مال غنيمت او مال فئ کښې فروق ثلاثه:** ① غنيمت هغه مال دې کوم چه د کفارو نه د جهاد او قتال په ذريعه حاصل کړې شوې وی

او فئ هغه مال دې کوم چه بغير د جهاد او قتال نه د کفارو نه حاصل کړې شوې وی.

② په مال فئ کښې خمس نشته دې اومال غنيمت کښې خمس دې.

③ په مال غنيمت کښې صرف دَ مجاهدينوحق دې اوپه مال فئ کښې دَ تولو مسلمانانو حق دې.

**د مال فئ د حصول دوه مواقع:** ① په مدينه منوره کښې دَبنونضير په اموالو کښې ملاؤشوې وو

② دَ خيبردَ فتح كيدونه پس څه علاقې دَ جنگ نه بغير لاس ته راغلې وې دَهغې نه مال فئ ملاؤشوې وو لکه دَ فدك باغ وو.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۵۵۰۳] په مال فئ کښې د نبی علیه السلام تصرف

۵۵۰۳ - [۱] ([1]) ۱ عَنْ مَالِكِ بْنِ أَوْسِ بْنِ الْحَدَثَانِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ۲ قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: ۳ «إِنَّ اللَّهَ قَدْ خَصَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْفَيْءِ بِشَيْءٍ ۳ لَمْ يُعْطِهِ أَحَدًا غَيْرَهُ. ۴ ثُمَّ قَرَأَ ﴿وَمَا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ مِنْهُمْ﴾ [الحشر: ۶] إِلَى قَوْلِهِ (قَدِيرٌ) ۵ فَكَانَتْ هَذِهِ خَالِصَةً لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ۶ يُنْفِقُ عَلَى أَهْلِهِ نَفَقَةَ سَنَتِهِمْ مِنْ هَذَا الْمَالِ، ۷ ثُمَّ يَأْخُذُ مَا بَقِيَ فَيَجْعَلُهُ مَجْعَلَ مَالِ اللَّهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ مالك ابن اوس ابن حدثان وايي ۲ چه حضرت عمر ابن خطاب رضي الله عنه وفرمايل ۳ الله تعالى د مال فئ په سلسله کې خپل رسول ته يوخاص خصوصيت ورکړې وو ۳ چې د حضور صلى الله عليه وسلم څخه علاوه بل چاته يې هغه خصوصيت نه وو ورکړي ۴ بيا حضرت عمر رضي الله عنه دا آيت مَا اَفَاءَ اللهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْهُمْ ترقديرٌ پورې تلاوت کړو ۵ [او وي فرمايل] دا مال صرف د رسول کريم صلى الله عليه وسلم د پاره مخصوص شوې وو ۶ چې د هغې څخه به حضور صلى الله عليه وسلم خپل

[1] ) اخرجه البخاري فى كتاب فرض الخمس (رقم-۳۰۹۴) ومسلم فى كتاب الجهاد والسّير /باب حكم الفيء (رقم-۴۹ - (۱۷۵۷) واحمد فى المسند: ۲۰۸/۱

کور والو ته د کال خرڅ ورکولو ⑦ د دې څخه وروسته چې به په هغه کې څه پاتې شول نو هغه به یې هغه ځایونو کې خرڅ کوی کوم چې د الله د مال د خرچ کولو ځایونه دي [یعنی هغه باقي مال به یې د مسلمانانو په مفاد او مصالح لکه هتیار او آسونو وغیره خریدارئ باندې خرڅ کولو او محتاج او مسکینانو څخه چې څوك به یې غوښتل د هغه مدد به یې کولو] (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① مَجْعَلَ: د خرچ کولو ځایونه،

**تسهیلات: قوله: لَمْ يُعْطِهِ أَحَدًا غَيْرَهُ:**

**په مال فئ کښې د نبی علیه السلام عمل:** کوم مال چه بغیر د جنګه حاصل شي هغې ته مال فئ وئیلې شي او په مال فئ کښې خمس او تقسیم نه وي بلکه نبی کریم ﷺ ته په مال فئ کښې مکمل اختیار حاصل وؤ چه څنګه خوښه وی هغه شان تصرف په کښې وکړی. نو نبی کریم ﷺ به د مال فئ نه د خپل اهل وعیال د پاره د ټول کال خرچه اخستله او باقي ټول مال به یئ په غریبانانو، مسکینانو، خپلوانو او په دینی ضرورتونو کښې خرچ کولو.

**د وفاة النبی څخه روسته د مال فئ باره کښې اقوال:**

① د نبی کریم ﷺ نه بعد مال فئ د اسلامی ملک د سربراه (مشر) حق دې.

② مال فئ د مجاهدینو او مقاتلینو حق دې یعنی د دوی په مینځ کښې به تقسیمولي شي او دا د امام شافعی رحمه الله یو قول هم دې.

③ دا مال د عام مسلمانانو په لاندې ذکر شوی اجتماعي مفادو کښې خرچ کولې شي.

① په هغه خلقو به خرچ کیږی کوم چه غریبانان وي محتاج وي او د کار کولو قدرت نه لري.

② د ښار حفاظت او د کفارو د شر نه د بچ کیدو د پاره د ښار نه چار چاپیره چیک پوستې باندې، محافظ مجاهدینو یا اسلحه باندې به خرچ کولې شي.

③ د ښار اندرونی تدبیرات مثلاً سیاست، قضاء، اقامت حدود او قیدخانو کښې به خرچ کیږي.

④ د دین د حفاظت کونکی خطباؤ، علماؤ، ائمه او مدرسین د تنخواګانو په مد کښې به خرچ کیږي.

⑤ د ټولو مسلمانانو په منافع کښې به خرچ کیږي، لکه نهر، د بجلی وغیره نظام د پاره.

**قوله: يُنْفِقُ عَلَى أَهْلِهِ نَفَقَةَ سَنَتِهِمْ مِنْ هَذَا الْمَالِ:**

**اشکال:** روایاتو کښې ذکر دي چه نبی کریم ﷺ به خپل ځان سره مال د یو ورځ نه زیات نه ساتلو نو بیا ئي د یو کال خرچه څنګه جمع کوله؟

**د اشکال جواب:** کومو روایاتو کښې چه دا خبره ذکر ده نو د دې تعلق د نبی کریم ﷺ د

ذات مبارک سره دي یعنی خپل ځان دپاره به يئ څه ځيز نه ساتلو، او دلته چه کومه خبره ده ددې تعلق د نبی کریم ﷺ د اهل وعیال سره دې او دا خبره دې هم واضح وې چه نبی کریم ﷺ به کله نه کله خپل ازواج مطهراتو ته د ټول کال خرچه ورکوله یعنی مستقل طور دمعمول نه وو.

**د اهل وعیال دپاره د يو کال د ذخیره کولو جواز:** امام نووی رحمه الله فرمائی چه ددې نه دا خبره معلومه شوه چه اهل وعیال دپاره د ټول کال د ورکولو ژوند د ضرورتونو خرچه جمع کول جائز دی او دا د توکل منافی نه دې بلکه په دی کښې بې فکری او برکت دی

**[۳۰۵۲] د اموال بنو نضیر څخه د نبی علیه السلام خپل اهل ته نفقه ورکول**

۳۰۵۲ـ[۲] ()[۱] وَعَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: [۲] «كَانَتْ أَمْوَالُ بَنِي النَّضِيرِ مِمَّا أَفَاءَ اللّٰهُ عَلَى رَسُولِهِ [۳] مِمَّا لَمْ يُوجِفِ الْمُسْلِمُونَ عَلَيْهِ بِخَيْلٍ وَلَا رِكَابٍ، [۴] فَكَانَتْ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاصَّةً [۵] يُنْفِقُ عَلَى أَهْلِهِ نَفَقَةَ سَنَتِهِمْ، [٦] ثُمَّ يَجْعَلُ مَا بَقِيَ فِي السِّلَاحِ وَالْكُرَاعِ عُدَّةً فِي سَبِيلِ اللّٰهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمر ﷺ څخه روایت دی [۲] چه د [یهودو د قبیله] بنو نضیر مال د دې قسم مال څخه وو چې الله ﷻ خپل رسول ته د څه جد وجهد څخه بغیر عطاکړي وو [۳] د هغې د پاره نه خو مسلمانانو اسونه زغلولي وو نه اوښان [۴] څکه هغه مال حضور ﷺ د پاره مخصوص شوی وو [۵] چې د هغې څخه به حضور ﷺ د خپل کور والو د کال په ضروریاتو کې خرچ کول [٦] او بیا د هغې څخه چې به څه پاتې شو هغه به یې هتیار او د اسونو خریدارئ باندې مصرف کول چې هغه د الله لار [یعنی په جهاد] کې په کار راشي «بخاري مسلم»

**حل اللغات:** ① أَفَاءَ: فاء یفئ فیئا واپس کیدل او رجوع کول. دجهاد نه بغیرچه کوم مال ملاؤ شی هغې ته مال فئ وائی. ② لَمْ يُوجِفْ: نه وو زغلولی، ③ الْكُرَاعِ: اسونه، ④ عُدَّةً: آلات او سامان، «تیار کړې شوې سامان»

**تسهیلات: قوله: يُنْفِقُ عَلَى أَهْلِهِ نَفَقَةَ سَنَتِهِمْ:**

**اشکال:** نبی کریم به دَ توکل دَ وجهې خپل ځان سره څه نه پریخودل. دلته ئې دَ ټول کال خرچه څنګه اوساتله؟

**د اشکال جواب:** نبی کریم به دَخپل ذات دَپاره خرچه نه کیخوده، بلکه په ازواج مطهراتو کښې دَپاره به دَ نبی کریم دَ طرفه داسې کیدل دَټولو دَپاره نه.

---

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسّیر/باب المجنّ ومن يتّرس بترس صاحبه (رقم-۲۹۰٤) ومسلم فی کتاب الجهاد والسّیر/باب حکم الفیء (رقم-٤٨ - (۱۷۵۷) و ابو داود فی کتاب الخراج والإمارة والفیء/باب فی صفایا رسول الله صلّی الله علیه وسلّم من الأموال(رقم-۲۹٦۵) والنسائی فی کتاب قسم الفیء(رقم-٤١٤٠) واحمد فی المسند: ۲۵/۱

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۴۰۵۷] په مال فئ کښې د لونډ او واده کړی حصه**

۴۰۵۷- [۳] (۱) [۱] عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَتَاهُ الْفَيْءُ [۳] قَسَمَهُ فِي يَوْمِهِ، [۴] فَأَعْطَى الْآهِلَ حَظَّيْنِ، [۵] وَأَعْطَى الْأَعْزَبَ حَظًّا، [۶] فَدُعِيتُ فَأَعْطَانِي حَظَّيْنِ [۷] وَكَانَ لِي أَهْلٌ، [۸] ثُمَّ دُعِيَ بَعْدِي عَمَّارُ بْنُ يَاسِرٍ [۹] فَأُعْطِيَ حَظًّا وَاحِدًا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] عوف ابن مالک رضی الله عنه وايي [۲] چه رسول کريم ﷺ ته چې به مال فئ راغلو [۳] نو حضور ﷺ به په هغه ورځ د ضرورتمندو په مينځ کې تقسيمولو [۴] څوک چې به ښځې والا وه هغه ته به يې دوه حصې ورکولې [۵] او مجرد (لونډ، ناواده) ته به يې يوه حصه ورکوله [۶] چنانچه يو ځل يې زه هم وغوښتم او ماته يې دوه حصې عطاکړې [۷] ځکه چې څما ښځه هم وه [۸] او بيا زما څخه وروسته يې عمار ابن ياسر رضی الله عنه وبللې [چې د هغه ښځه نه وه] [۹] نو حضور ﷺ هغه ته يوه حصه ورکړه. (ابوداود)

**حل اللغات:** ① الْفَيْءُ: بغير جهاد نه حاصل شوې مال، ② الْآهِلَ: ښځه لرونکې، اهل والا. ③ حَظَّيْنِ: دوه حصې، ④ الْأَعْزَبَ: لونډ، ناواده،

**تسهيلات:**

**قوله: فَأَعْطَى الْآهِلَ حَظَّيْنِ، وَأَعْطَى الْأَعْزَبَ حَظًّا:**

په دې حديث کښې دا بيان دې چې نبی عليه السلام ته به کله مال فئ راغلو نو د هغوی د تقسيم طريقه دا وه چې لونډ (بې بال بچه) ته به ئې يوه حصه ورکوله او بال بچه دار ته به ئې دوه حصې ورکولې. د هغې ضرورت ته به ئې کتل او هغه شان تقسيم به ئې کولو.

**[۴۰۵۸] په مال فئ سره د غلامانو آزادول**

۴۰۵۸- [۴] (۲) [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: [۲] «رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوَّلَ مَا جَاءَهُ شَيْءٌ [۳] بَدَأَ بِالْمُحَرَّرِينَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او ابن عمر رضی الله عنه وايي [۲] چه ما ليدلي دي چې رسول کريم ﷺ به د مال فئ راتلو څخه وروسته [۳] په هغې کې د ټولو څخه مخکې هغه خلقو ته مرحمت کول چې هغوی به حال کې د غلامي څخه آزاد شوي وو (ابوداود)

**حل اللغات:** ① الْمُحَرَّرِينَ: آزاد شوی غلامان

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الخراج والإمارة والفیء/باب فی قسم الفیء (رقم-۲۹۵۳)
[۲] اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الخراج والإمارة والفیء/باب فی قسم الفیء (رقم-۲۹۵۱)

**تسهیلات:**

**قوله:** أَوَّلَ مَا جَاءَهُ شَيْءٌ بَدَأَ بِالْمُحَرَّرِيْنَ:

**د غلامانو د آزادولو اهمیت:** چونکه دا به بې سروسامان وو په دې وجه دَ تولونه اول به دَ مال فئ تقسیم په دوی کیدلو.

**[۳۰۵۱] دَمال فئ غمی هم تقسیم شو**

۳۰۵۰—[۵] (۱) [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا: [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِظَبْيَةٍ [۳] فِيهِ خَرَزٌ، [۴] فَقَسَمَهَا لِلْحُرَّةِ وَالْأَمَةِ. [۵] قَالَتْ عَائِشَةُ: [۶] كَانَ أَبِي يَقْسِمُ لِلْحُرِّ وَالْعَبْدِ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها وایي [۲] چه یو خل رسول کریم ﷺ ته یوه تهیلی راغله [۳] چې هغه د غمو ځخه ډکه وه [۴] حضور ﷺ هغه غمی بیبیانو [یعنی آزادو ښځو] او وینځو کې تقسیم کړل [۵] بي بي عائشه رضي الله عنها وایي [۶] چه ځما پلار [یعنی حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ته چې غمی به راتلل نو هغوی به هغه غمی] په ازاد او غلامانو سړو کې تقسیمول. (ابوداود)

**حل اللغات:** ① ظَبْيَة: وړه تهیلئ، ② خَرَز: یو قسم قیمتی کانړې، غمې،

**قوله:** كَانَ أَبِي يَقْسِمُ لِلْحُرِّ وَالْعَبْدِ:

**د عائشې رضی الله عنها په قول کښې دوه اشارې:** ① دا اشاره هم ده که هغه ښځه اوسړې به آزاد ووکه غلام یا وینځه وه. چونکه دَنبی کریم په زمانه کښې به دا غمی صرف په ښځوکښې تقسیمیدل سړو ته به نه ملاویدل. حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها دا تخصیص عام کول غواړي اوفرمائی چه دَحضرت ابوبکر رضي الله عنه په زمانه کښې به دا غمی په سړوکښې هم تقسیمیدل.

② دَحضرت عائشې صدیقې رضي الله عنها په دې کلام کښې اشاره ده چه دَمال فئ دا غمی په صدیقی دورکښې صرف په ښځوکښې نه تقسیمیدلو بلکه په سړو کښې به هم تقسیمیدلو

**د غلام ځخه مراد:** ملاعلی قاری رحمه الله لیکی چه کیدې شی چه دَ غلام نه آزاد شوې غلام مراد وی ځکه چه که غلام دَ چا غلام وی نودَهغه خرچه په مالك باندې ده. په مال فئ کښې دَهغه حصه نه وی. بهرحال حق جوړیدل اوعطیه ورکول دواړه جدا ځیزونه دي.

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب، الخراج والإمارة والفیء/باب فی قسم الفیء (رقم-۲۹۵۲) واحمد فی المسند: ۶/۱۵۶

**[٣٠٦٠] د مال فئ په تقسيم کې د فرق مراتب لحاظ**

٣٠٦٠-[٦] ()[١] وَعَنْ مَالِكِ بْنِ أَوْسِ بْنِ الْحَدَثَانِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ[٢] ذَكَرَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَوْمًا الْفَيْءَ فَقَالَ[٣] مَا أَنَا أَحَقُّ بِهَذَا الْفَيْءِ مِنْكُمْ[٤] وَمَا أَحَدٌ مِنَّا بِأَحَقَّ بِهِ مِنْ أَحَدٍ[٥] إِلَّا أَنَّا عَلَى مَنَازِلِنَا مِنْ كِتَابِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ[٦] «وَقَسْمِ رَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[٧] فَالرَّجُلُ وَقِدَمُهُ[٨] وَالرَّجُلُ وَبَلَاؤُهُ[٩] وَالرَّجُلُ وَعِيَالُهُ[١٠] وَالرَّجُلُ وَحَاجَتُهُ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] او مالك ابن اوس ابن حدثان وايي [٢] چه يوه ورځ حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د مال فئ ذکر وکړو او وي فرمايل [٣] د دې مال فئ زه ستاسو څخه زيات حقدار نه يم [٤] او نه په مونږ کې يو سړی د دې مالِ فئ د بل سړي څخه زيات مستحق دې [٥] البته مونږ د الله عز وجل کتاب [٦] او د هغه د رسول د تقسيم مطابق خپلي خپلي مرتبي باندې يو [٧] نو يو سړې هغه دې [چې قبوليت د اسلام کې] مخکيوالي لري[٨] او يو سړې هغه دی چې د دين په لار کې شجاعت [او بهادري او د سعي او مشقت اوصاف] لري [٩] يو هغه سړې دې چې اهل وعيال لري[١٠] او يو هغه سړې دې چې ضرورت او حاجت لري. (ابوداود)

**حل اللغات:** ① عَلَى مَنَازِلِنَا: چه څه مونږ ته نازل شوی دی (د الله کتاب) ② الرَّجُلُ وَقِدَمُهُ: هغه سړې چه په اسلام کښې مخکيوالې لری، ③ الرَّجُلُ وَبَلَاؤُهُ: هغه سړې چه بهادر وی

**تسهيلات:**

**قوله:** إِلَّا أَنَّا عَلَى مَنَازِلِنَا مِنْ كِتَابِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ:

**د مال فئ په تقسيم کښې ترتيب:**

① قديم الاسلام سړې به دَ مال فئ په تقسيم کښې مقدم او افضل وی.

② هغه مسلمان زيات حقدار دې چې بهادروی اوچتې کارنامې پوره کوی. دَدين دَپاره لوئی مشقتونه برداشت کوی هغه زيات مستحق دې.

③ بال بچه دار سړې دې هغه ته به دَهغه دَ اولاد په اعتبارسره زيات ورکولې شی

④ داسې سړې دې چه بالکل محتاج دې هغه زيات مستحق دې.

**د فقهاؤ نظر:** حضرت عمر رضي الله عنه دَ مراتبو دَ فرق لحاظ ساتلې دې هم دغه دَ جمهورو مسلک دې. امام شافعی رحمه الله دَدې قائل نه دې. مسئله اول ليکلې شوې ده راتلونکې حديث هم دغه شان دې.

[١] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الخراج والإمارة والفیء /باب فيما يلزم الإمام من أمر الرّعيّة والحجبة عنه (رقم-٢٩٥٠)

**[۳۰۶] د زکاة، غنیمت او د فئ مصارف**

۳۰۰۶ - [۷] (۱) [۱] وَعَنْهُ قَالَ: [۲] قَرَأَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ﴿إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِينِ﴾ [التوبة: ۶۰]، [۳] حَتَّى بَلَغَ (عَلِيمٌ حَكِيمٌ) [۴] فَقَالَ هٰذِهٖ لِهٰؤُلَاءِ، [۵] ثُمَّ قَرَأَ ﴿وَاعْلَمُوا أَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَأَنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهُ وَلِلرَّسُولِ﴾ [الأنفال: ۴۰] [۶] حَتَّى بَلَغَ (ابْنِ السَّبِيلِ)، [۷] ثُمَّ قَالَ هٰذِهٖ لِهٰؤُلَاءِ،

**ترجمه:** [۱] او مالک رضی الله عنه ابن اوس وايي [۲] چه يوه موقع باندې حضرت عمر فاروق رضی الله عنه دا آيت تلاوت کړو چې په هغې کې د زکوٰة د مصارفو بيان دې إِنَّمَا الصَّدَقٰتُ لِلْفُقَرَآءِ وَالْمَسَاكِيْنِ [۳] او دا آيت هغوی عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ پورې تلاوت کړو [۴] او وې فرمايل چې د دې [زکوٰة د مال] موندونکی مستحق هم دا خلق دي [چې د هغوی ذکر په دې آيت کې شوې دې يعنی فقراء او مساکين وغيره] [۵] بيا هغوی دا آيت اوونيلو وَاعْلَمُوْا اَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَاَنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهُ وَلِلرَّسُوْلِ [۶] او دا آيت يې وَابْنُ السَّبِيْلِ پورې تلاوت کړو [۷] او وې فرمايل چې دا د خمس مال د هغه خلقو حق دې چې د هغوی ذکر په دې آيت کې شوې دې [يعنی د ذوی القربٰی وغيره].

[۱] ثُمَّ قَرَأَ ﴿مَا أَفَاءَ اللّٰهُ عَلَى رَسُولِهٖ مِنْ أَهْلِ الْقُرَى﴾ [الحشر: ۷] ۲) [۲] حَتَّى بَلَغَ (لِلْفُقَرَاءِ)، [۳] ثُمَّ قَرَأَ ﴿وَالَّذِينَ جَاءُوا مِنْ بَعْدِهِمْ﴾ [الحشر: ۱۰]. [۴] ثُمَّ قَالَ هٰذِهِ اسْتَوْعَبَتِ الْمُسْلِمِينَ عَامَّةً، [۵] فَلَئِنْ عِشْتُ [۶] فَلَيَأْتِيَنَّ الرَّاعِيَ وَهُوَ بِسَرْوِ حِمْيَرَ نَصِيبُهُ مِنْهَا، [۷] لَمْ يَعْرَقْ فِيهَا جَبِينُهُ. رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** [۱] د دې څخه وروسته هغوی دا آيت تلاوت کړو [چې په هغه کې د مال فئ حکم بيان شوې دې چې هغه به چا چاته ورکولې شي] مَا اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْ اَهْلِ الْقُرٰى [۲] دا آيت يې لِلْفُقَرَآءِ وَالَّذِيْنَ جَآءُوْا مِنْ بَعْدِهِمْ پورې تلاوت کړو [۳] [يوه نسخه کې دا عبارت دی چې حَتّٰى بَلَغَ لِلْفُقَرَآءِ ثُمَّ قَرَءَ وَالَّذِيْنَ جَآءُوْا [د دې مطابق به مفهوم داوي چې هغوی دا آيت مَآ اَفَآءَ اللّٰهُ ونيل شروع کړل او لِلْفُقَرَاءِ پورې دوه آيتونه يې اوويل او بيا دا آيت وَالَّذِيْنَ جَآءُوْا مِنْ بَعْدِهِمْ يې اوونيلو] [۴] او وې فرمايل چې دې آيت ټول مسلمانان احاطه کړي دي [۵] که زه ژوندی پاتې شوم انو څما حدود خلافت کې به هيڅ داسې مسلمان پاتې نشي چې هغه ته به د هغه حصه ونه رسيږي] [۶] [تردې چې] هغه شپونکي ته به هم د مال فئ څخه د هغه حصه رسيږي، کوم چې په سرو حمير کې وي [چې ديمن يوه پورتنئ ، اولرې علاقه ده] [۷] په داسې حال کې چې د هغې په حاصلولو کې به د هغه په تندي باندې خوله [پسينه] هم نه وي راغلي (شرح السنه)

۱) اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحديث ۲۷۴۰

**حل اللغات:** ① اسْتَوْعَبَتْ: شامل دي ټولو مسلمانانو ته، ② الرَّاعِيَ: ګډبه، شپونکي، ③ يَسَرْ: يمن سره خواکي دَ ځاني نوم دي ④ حِمْيَرَ: دَ يمن يوه مشهوره قبيله ده ⑤ نَصِيبُهُ: حصه دهغه. ⑥ لَمْ يَعْرَقْ: خوله نه وی راغلي، ⑦ جَبِينُهُ: تندي دهغه.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَلَيَأْتِيَنَّ الرَّاعِيَ وَهُوَ بِسَرْوِ حِمْيَرَ نَصِيبُهُ مِنْهَا

**د بسر مصداق:** دَ يمن دَ يوې مشهورې قبيلې نوم دې يعنی هغه کلی والا قبيله به دَ حمير علاقې سرو کښې اوسيدل او ماله به راځی زه به هغه ته هم مال فئ ورکوم ملاعلی قاري ﷫ دَ پورتنی تحقيق نه پس ليکلی دی چه دَ بعضې علماؤ داخيال دې چه سرو حميرد يوې علاقې پوره نوم دې لهذا بيابه دَاضافت صورت نه وی يعنی کلی وال سروحمير دَ ځانی نه به راځی

## [۲۰۳] د فدک په مقدمه د عمر ﷜ استدلال

۲۰۳-[۸] ()[۱] وَعَنْهُ قَالَ [۱] كَانَ فِيمَا احْتَجَّ بِهِ عُمَرُ أَنْ قَالَ [۳] «كَانَتْ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثُ صَفَايَا [۴] بَنُو النَّضِيرِ، وَخَيْبَرُ وَفَدَكُ [۵] فَأَمَّا بَنُو النَّضِيرِ فَكَانَتْ حَبْسًا لِنَوَائِبِهِ [۷] وَأَمَّا فَدَكُ فَكَانَتْ حَبْسًا لِأَبْنَاءِ السَّبِيلِ [۸] وَأَمَّا خَيْبَرُ فَجَزَّأَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةَ أَجْزَاءٍ: [۹] جُزْءَيْنِ بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ [۱۰] وَجُزْءًا نَفَقَةً لِأَهْلِهِ [۱۱] فَمَا فَضَلَ عَنْ نَفَقَةِ أَهْلِهِ [۱۲] جَعَلَهُ بَيْنَ فُقَرَاءِ الْمُهَاجِرِينَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او مالك ﷜ ابن اوس وايي [۲] چه حضرت عمر فاروق ﷜ چې د کومي خبري څخه استدلال اوکړو هغه دا وه چې هغوی وفرمايل [۳] چه رسول کريم ﷺ سره دري انتخابات وو. [۴] بنونضير، خيبراو باغ فدك [۵] [د بنونضير د جلا وطن کيدو څخه وروسته هغوی ته چې کومه زمکه، جائيداد په قبضه کې راغلي وو] [۶] [د هغې څخه حاصليدونکی مال] د حضور ﷺ اخراجات [لکه د ميلمنو ضيافت او تواضع او مجاهدينو د پاره هتيار او د اسونو خريداري وغيره] د پاره مخصوص وو [۷] دفدك محاصل د هغه مسافرو [امداد د پاره] مخصوص وو چې [اګر چې په خپل وطن کې خو مال لري خو] د سفر په دوران کې د هغوی سره مال او اسباب ختم شوي وي [۸] او د خيبر د محاصل رسول کريم ﷺ دري حصي کړې وې [۹] په هغې کې دوه حصي خوبه حضور ﷺ په مسلمانانو تقسيمولي [۱۰] او يوه حصه به يي د خپل اهل وعيال د اخراجاتو د پاره ساتله [۱۱] او په هغې کې هم د اهل وعيال د خرڅ څخه به چې څه پاتې شول [۱۲] هغه به حضور ﷺ نادارومهاجرينو باندې خرچ کول. (ابوداود)

[۱] ) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الخراج والإمارة والفيء/باب في صفايا رسول الله صلى الله عليه وسلم من الأموال (رقم-۲۹۶۷)

**حل اللغات**: ① صَفَايَا: دَ صفية جمع ده خوښول ، انتخاب کول ② حَبْسًا: منع کول، ③ لِنَوَائِبِهِ: د حضور ﷺ اخراجاتو دپاره لکه د میلمنو ضیافت او تواضع او مجاهدینو د پاره هتیار وغیره، ④ جَزَّأَهَا: حصې کړې ئې وې هغه،

**تسهيلات:**

**قوله: كَانَتْ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثُ صَفَايَا:**

**صفی کېښې د نبی علیه السلام خصوصیت**: یعنی دَغنیمت دَمال دَتقسیم نه وړاندې که یو څیزنبی کریم دَخپل ځان دَپاره خوښولو نودا صرف دَنبی کریم سره خاص وو دَنبی کریم نه پس دَ چادَپاره هم جائزنه دی. دَ صفی اطلاق کیدې شی چه دلته دَ مجاز په توګه وی ځکه چه دا اموال خو دَ مال فئ په حساب کېښې راځی. لکه چه په مال فئ باندې دَ صفی اطلاق کړې شوې دې.

**قوله: وَأَمَّا خَيْبَرُ فَجَزَّأَهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةَ أَجْزَاءٍ:**

**دخیبر مالونه په درې حصو کېښې تقسیول**: ① دَخیبر اموال نبی کریم په دریوحصوکښې تقسیم کړل

①-② اودوه حصې ئې دَ عامو مسلمانانو دَپاره خاص کړې.

③ یوه حصه ئې دَ خپل بال بچ دَپاره خاص کړه

ددې مزید تفصیل وړاندې حدیث کښې راځی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۲۰۳] دَ فدک دَ واقعې تفصیل

۲۰۳-[۹] ()[۱] عَنِ الْمُغِيرَةِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: [۲] «إِنَّ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ جَمَعَ بَنِي مَرْوَانَ حِينَ اسْتُخْلِفَ فَقَالَ: [۳] إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَتْ لَهُ فَدَكُ، [۴] فَكَانَ يُنْفِقُ مِنْهَا وَيَعُودُ مِنْهَا عَلَى صَغِيرِ بَنِي هَاشِمٍ [۵] وَيُزَوِّجُ مِنْهَا أَيِّمَهُمْ [۶] وَإِنَّ فَاطِمَةَ سَأَلَتْهُ أَنْ يَجْعَلَهَا لَهَا [۷] فَأَبَى فَكَانَتْ كَذٰلِكَ فِي حَيَاةِ رَسُولِ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۸] حَتّٰى مَضٰى لِسَبِيلِهِ [۹] فَلَمَّا (أَنْ) وُلِّيَ أَبُوبَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ [۱۰] عَمِلَ فِيهَا بِمَا عَمِلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَيَاتِهِ [۱۱] حَتّٰى مَضٰى لِسَبِيلِهِ

**ترجمه**: [۱] او مغیره بن شعبه وایي [۲] [کوم وخت چې] حضرت عمر ابن عبد العزیز [ابن مروان ابن حکم رحمه الله خلیفه جوړ شو نو هغه] د مروان ځامن راجمع کړل او ورته وي فرمایل [۳] چه رسول کریم ﷺ د فدک [په زمکه او جائیداد] خپل ذاتي حق لرلو [۴] چې د

[۱] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الخراج والإمارة والفیء/باب فی صفایا رسول الله صلّى الله علیه وسلّم من الأموال(رقم-۲۹۷۲)

هغې محاصل [آمدني او پیداوار به حضور ﷺ خپل اهل وعیال او فقراؤ او مساکینو باندې] خرچ کول ۴ هم د دې څخه به یې د بنوهاشم د ورو بچو [امداد او اعانت باندې خرچ کولو سره] د هغوی سره به یې حسن سلوك کولو ۵ او د بې واده ښځو او سړو واده به یې کولو ۶ یو ځل بي بي فاطمې رضي الله عنها حضور ﷺ ته دا درخواست کړي وو چې د فدك زمکه او جائیداد ځما په نوم کړئ [ماته د دې د آمدني څخه ځما حصه هم راکړئ] ۷ لیکن حضور ﷺ د هغې درخواست رد کړو د رسول کریم ﷺ په ژوند کې دغه شان چلیدله ۸ تردې چې حضور ﷺ د دې دنیا څخه تشریف وې وړو ۹ او کوم وخت چې حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه خلیفه جوړ شو ۱۰ نو د هغوی معمول هم هغه وو کوم چې د رسول کریم ﷺ په ژوند مبارك کې وو [یعنی د حضور ﷺ د مذکوره معمول په شان حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه هم د فدك محاصل د حضور ﷺ په اهل وعیال او د بنوهاشم د بچو او د نادارو سړو او ښځو په واده باندې خرچ کولو ۱۱ تردې چې حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه په حق ورسیدو.

**حل اللغات**: ① اسْتُخْلِفَ: خلیفه جوړکړې شو، ② فَدَكُ: دَ خیبرپه اطرافو کښې دَ یوکلی نوم دې ③ نَعُودُ: مدد او اعانت به ئې کولو، ④ أَيِّمُهُمْ: ناواده کړی سړی یا ښځې،

۱ فَلَمَّا أَنْ وَلِيَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ۲ عَمِلَ فِيهَا بِمِثْلِ مَا عَمِلَا ۳ حَتَّى مَضَى لِسَبِيلِهِ ۴ ثُمَّ اقْتَطَعَهَا مَرْوَانُ ۵ ثُمَّ صَارَتْ لِعُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ ۶ فَرَأَيْتُ أَمْرًا مَنَعَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاطِمَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ۷ لَيْسَ لِي بِحَقٍّ ۸ وَإِنِّي أُشْهِدُكُمْ أَنِّي رَدَدْتُهَا عَلَى مَا كَانَتْ. ۹ يَعْنِي: عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: ۱ او هغوی څخه وروسته حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه خلیفه جوړ شو ۲ نو په دې سلسله کې د هغوی هم هغه عمل وو کوم چې د هغه دوارو [یعنی حضور ﷺ او حضرت ابوبکر وو] ۳ تردې چې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه هم وفات شو ۴ بیا مروان [د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په زمانه کې یا د خپلې حکمرانئ په دورکې فدك] خپل [او د خپل وارثینو] جاګیر اوګرځولو ۵ اوس هغه جاګیر د عمر ابن عبد العزیز ابن مروان شوې دې ۶ لیکن زه ګورم چې کوم څیز رسول کریم ﷺ خپلې لور بي بي فاطمې رضي الله عنها ته ورنه کړو ۷ د هغې مستحق زه هم نشم کیدې ۸ نو زه تاسو [خپلې دې فیصلې باندې] شاهدوم چې ما فدك په هغه حیثیت واپس کړیدې په کوم چې وو ۹ یعنی د رسول کریم ﷺ، حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په زمانه کې [چې په کومه طریقه د هغې محاصل خرڅ کیدل اوس به بیا په هغه طریقه خرچ کول کیږي او فدك به د هیڅ چا

ذاتي جاګير نه جوړيږي ]

**حل اللغات:** ⑤وُلِّيَ: والی او خليفه جوړکړې شو، ⑥اَقْتَطَعَهَا: بنده ئې اوساتله، خپل جاګير ئې اوګرځولو، ⑦صَارَتْ: اوګرځيده، مقررشوه.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ عُمَرَبْنَ عَبْدِالْعَزِيْزِرَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ جَمَعَ بَنِيْ مَرْوَانَ:

**د فدک وغيره مالونه وقف کښې شاملول:** په دې حديث کښې داخبره دَدې دَ وجهې روانه شوې ده چه بنومروان دَ فدك وغيره وقف شوی مالونه قبضه کولو سره په ذاتی مالونو کښې داخل کړې وو او عمر بن عبد العزيز رحمه الله دَدې راخلاصول او په وقفی حيثيت کښې ساتل غوښتل.

**قوله:** كَانَتْ لَهُ فَدَكُ:

**د فدک محل وقوع:** فدک دَمدينې نه دَ دوو ورځوپه فاصله باندې دا کلې واقع وو. دا يوډير تازه او آباد ځائی وو چرته چه اکثردَ کهجورو او نورو ميوو باغونه هم وو. نبی کريم ته فدك دَ صلح په صورت کښې ملاؤ شوې وو دکوم حيثيت چه دَ مال فئ وو. باغ فدك، اموال دَ بنونضير اودَ خيبر زمکه حضور پاك سره په ذاتی حيثيت کښې وو. نبی کريم به دَ خپل اهل بيت نه علاوه دَعامو مسلمانانو په مصرف کښې دا مالونه راوړل.

**په باغ فدک کښې د ميراث دعوی:** دَنبی کريم دَ وصال نه پس اهل بيت اودَنبی کريم دَ خاندان بعضې کسانوپه دې مالونو باندې دَخپل ذاتی ميراث دعویٰ اوکړه. مګر خلفاء راشدينو رضي الله عنهم دا په وقف حيثيت کښې اوساتل او ميراث جوړيدو ته ئی پرينخودل ځکه چه دَ انبياء عليهم السلام مال په ميراث کښې نه شی تقسيم کيدې اودا ځکه چه دَ وفات نه پس انبياء کرام ژوندی وی دکوم اثر چه په دنيا باندې پريوځی. حضرت فاطمې رضي الله عنها دَنبی کريم په حيات کښې هم دَدې مطالبه کړې وه مګرنبی کريم دَ ورکولونه انکار اوکړو.

**د باغ فدک پس منظر:** زيربحث روايت کښې حضرت عمربن عبدالعزيز رحمه الله دَدې مال پس منظر دَ بنومروان په وړاندې بيانولو سره دا هم په دغه حيثيت دَ وقف کښې اوساتل لکه څنګه چه دَ خلفاء راشدينو رضي الله عنهم په زمانه کښې وو. دَ څه تفصيل سره دا پس منظر دَ قارئينو دَپاره په خپلو الفاظوکښې مخې ته کول غواړم.

**دفاطمې رضی الله عنهما مطالبه کول:** مال فدك باغ فدك وو حضرت فاطمه رضي الله عنها دَنبی

کریم نه اوغوښتلو نبی کریم دَ ورکولو نه انکاراوکړو. نبی کریم به دَدې نه عام خرچ کولو. بیا فاطمه رضي الله عنها دَ صدیق اکبر رضي الله عنه نه اوغوښتلو حضرت صدیق اکبر رضي الله عنه "لانرث ولانورث ماترکناصدقة" حدیث واورولو اودَ ورکولو نه ئې انکاراوکړو. حضرت فاطمه رضي الله عنها په تقاضا دَ بشریت خفه شوه. بیا صدیق اکبر رضي الله عنه دَهغې کورته لاړو او په نمرکښې اودریدو اومعافي ئې غوښتله. حضرت فاطمه رضي الله عنها معاف کړو او په دې سلسله کښې ئې کله هم مراجعت اونه کړو. شپږ میاشتې پس دَحضرت فاطمه رضي الله عنها انتقال اوشو نوهیڅ اوږدې جګړې اونه شوې.

**دبنونضیر دمال مطالبه:** بهرحال دَ فدك په شان دَ بنونضیر دَمالونومسئله هم راوُچته شوه دَنبی کریم دَ انتقال نه بس دا مال دَ وقف په توګه صدیق اکبر رضي الله عنه اوساتلوبیاحضرت عمرفاروق رضي الله عنه ساتنه اوکړه بیاحضرت علی رضي الله عنه اوحضرت عباس رضي الله عنه په مشترکه توګه دَ دې نګرانان جوړکړې شو مګر په خپل مینځ کښې دَاختلاف دَ وجهې دې مال سره متعلق حضرت علی رضي الله عنه اوحضرت عباس رضي الله عنه دَدې دَتقسیم مطالبه اوکړه چه جداجدا به دَخپلې خپلې حصې خیال ساتی. حضرت عمر رضي الله عنه انکاراوکړو او وئې فرمائیل داخوبه یوقسم تقسیم اوشی داسې به نه شی کیدې.

**په اموال بنونضیر د مروان قبضه:** بیامروان دا مال په خپل ذاتی جائیدادکښې شامل کړو او بنومروان په خپل مینځ کښې تقسیم کړو. کله چه حضرت عمر بن عبد العزیز رحمه الله خلیفه جوړشو نوهغوی دَ نورو اصلاحاتوسره دااصلاح هم اوکړه چه دا مالونه ئې دَهغوی نه واپس کړل اودَ وقف په حیثیت سره ئې اوساتل. دَ هغوی دَانتقال دَ وجهې بنومروان بیا دا تقسیم کړل اوداسې ئې غیب کړل چه ترننه پورې ئې پته اونه لګیدله چه دا اموال چرته لاړل. حضرت عمربن عبدالعزیز رحمه الله په زیر بحث روایت کښې هم دا بنائی چه کوم اموال نبی کریم حضرت فاطمه رضي الله عنها ته ورنه کړل زه څوك یم چه هغه به خان سره اوساتم. بهرحال په صدیق اکبر رضي الله عنه او په فاروق اعظم رضي الله عنه دې الله تعالی رحم اوکړی هغوی ډیر مشقتونه اوچت کړل او دَ یوې شرعی مسئلې حفاظت ئې اوکړو.

(الحمد لله ! اتم جلد ختم شو)